# فتح الهداية



## هداية

داول حل لپاره په آسانه معياري پښتو
دهدايې يوه جامع شرحه

ژباړه او ترتيب

مولوي حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه

صداقت كتبخانه
كندهار

وَاللّٰهُ يَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ [القرآن]

# فتح الهدايه

## پښتو شرح

# هدايه

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
د هدايې يوه جامع شرحه

د حديثونو تخريج
د متن بشپړ اعراب
صرفي تحقيق
د لغاتو حل

پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله يوه جامع مقدمه

تعيين د قول راجح
د هري جملې تر خنګ ژباړه
د عنواناتو اضافه
صورت د مسئلې

پنځم ټوک

كتاب الحدود - فصل فى بناء المسجد وغيره


ژباړه او ترتيب:
مولوى حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه



صداقت كتب خانه

بسم الله الرحمن الرحيم



## د کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| ❁ د کتاب نوم | : **فتح الهدایه** پښتو شرح هدایه |
| ❁ ژباړه او ترتیب | : مولوي حبیب الرحمن مدني |
| ❁ ټوک | : پنځم ټوک |
| ❁ خپرندوی | : **صداقت کتب خانه**/ کندهار |
| ❁ کمپوز/ ډیزاین | : صداقت د کتاب چاپولو اداره |
| ❁ د چاپ کال | : ۱۳۹۷ ل./ ۱٤۳۷ هـ.ق. / ۲۰۱۹ م. |
| ❁ د خپرونو لړ | : ۲٦۷ |
| ❁ چاپ شمېر | : ۱۰۰۰ ټوکه |

د تر لاسه کولو ځای:

**صداقت کتب خانه**

کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

ایمیل: sadaqat.books@gmail.com

# فهرس

## كِتَابُ الشِّرْكَةِ



## فَصْلٌ

# كِتَابُ الْحُدُوْد

## (دا) كتاب حدونو (او د شرعي سزاگانو د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح**: تر "كتابُ الأيمان" وروسته د "كتابُ الحُدود" د بيانولو وجه دا ده چي په أيمان (قسمونو) كي چي په حانث كېدلو سره كومه كفاره واجبيږي هغه د عبادت او عقوبت (سزا) په مينځ كي مشتركه ده. او "حَدّ" خالص عقوبت دى. نو د عقوبت په حواله سره په دې دواړو كي څه غوندي مشابهت سته. په همدې وجه مصنف رَحِمَهُ الله تر كتابُ الأيمان وروسته كتابُ الحدود بيان كړى دى.

### د حدّ لغوي او اصطلاحي تعريف

قَالَ: اَلْحَدُّ لُغَةً: هُوَ الْمَنْعُ فرمايي: د حدّ لغوي معنىٰ ده: منع كول وَمِنْهُ الْحَدَّادُ لِلْبَوَّابِ او له همدغه معنىٰ څخه د پيره دار [دربانچي] لپاره د "حَدَّاد" لفظ [مستعمل] دى [يعني په همدې وجه پيره دار ته حدّاد ويل كيږي] وَفِي الشَّرِيْعَةِ هُوَ الْعُقُوبَةُ الْمُقَدَّرَةُ حَقًّا لِلّٰهِ تَعَالىٰ او په شريعت كي حدّ هغه سزا ته وايي كوم چي د الله د حق لپاره متعينه سوې وي حَتّٰى لَا يُسَمَّى الْقِصَاصُ حَدًّا تر دې چي قصاص ته حدّ نه ويل كيږي [يعني له همدې وجهي قصاص ته حدّ نه ويل كيږي] لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ ځكه چي قصاص د بنده حق دى وَلَا التَّعْزِيْرُ او نه تعزير ته [حدّ ويل كيږي] لِعَدَمِ التَّقْدِيْرِ ځكه چي [د تعزير] مقدار متعين نه دى وَالْمَقْصَدُ الْأَصْلِيُّ مِنْ شَرْعِهِ: اَلْاِنْزِجَارُ عَمَّا يَتَضَرَّرُ بِهِ الْعِبَادُ او د حدّ د مشروع كېدلو اصلي مقصد دا دى: چي په كومو شيانو سره بندگانو ته تكليف رسيږي له هغه څخه منع وسي وَالطَّهَارَةُ لَيْسَتْ أَصْلِيَّةً فِيْهِ او [له گناه څخه] پاكېدل د حدّ اصلي مقصد نه دى بِدَلِيْلِ شَرْعِهِ فِيْ حَقِّ الْكَافِرِ ځكه چي حدّ خو د كافر په حق كي [هم] مشروع دى.

**اللغات**: ﴿حَدَّاد﴾ چوكيدار، څوكيدار، منع كونكى. ﴿بَوَّاب﴾ دربانچي (هغه كس چي پر دروازه ولاړ وي او څوك دننه نه پريږدي)، پيره دار. ﴿عُقُوْبَة﴾ سزا. ﴿اِنْزِجَار﴾ د انفعال مصدر دى: منع كېدل. درېدل. رټل (مصباح اللغات). ﴿يَتَضَرَّر﴾ د تفعّل مضارع ده: ضرر او نقصان رسېدل. تكليف رسېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د حدّ لغوي او شرعي (اصطلاحي) تعريف او د حدّ د مشروعيت وجه بيانوي، نو فرمايي چې د حدّ لغوي معنیٰ ده: "منع کول، اجازه نه ورکول، بنديز لګول". له همدې کبله چوکيدار (پيره دار) ته حَدّاد وايي: ځکه چې هغه هر کس او ناکس له داخلېدلو څخه منع کوي او اجازه نه ورکوي.

د حدّ شرعي معنیٰ ده: "داسې سزا (عقوبت) کوم چې خالص د الله د حق په توګه متعين سوې وي" (يعني د الله له طرفه چې کومه سزا ټاکل سوې ده هغه ته حدّ وايي). له همدې کبله قصاص ته حدّ نه ويل کيږي: ځکه چې د هغه سره د بنده حق متعلق وي. او تعزير ته هم حدّ نه ويل کيږي: ځکه چې د تعزير لپاره هيڅ متعين او معلوم مقدار نسته او په هغه کې کمي او زياتوب کيږي.

او د حدّ د مشروعيت اصلي مقصد دا دی چې کوم شيان د بندګانو لپاره مضر او تکليف رسونکي دي (مثلاً غلا، د درواغو تهمت او داسې نور) چې د دغه شيانو دروازه بنده سي او نور کسان له داسې حرکتونو څخه منع سي.

"له جرم او ګناه څخه پاکېدل" د حدّ اصلي مقصد نه دی، ځکه چې حدّ پر کافر هم جاري کيږي، حالانکې هغه بد نصيبه خو په هيڅ ډول له ګناهونو څخه نه پاکيږي.

## د زنا د ثبوت طريقه او د ثبوت مطلب

قَالَ: اَلزِّنَا يَثْبُتُ بِالْبَيِّنَةِ وَالْإِقْرَارِ فرمايي: چې زنا په ګواهۍ او اقرار سره ثابتيږي وَالْمُرَادُ ثُبُوْتُهُ عِنْدَ الْإِمَامِ او له ثبوت څخه مراد د إمام په نيز ثابتېدل دي ايعني زنا په ګواهۍ او اقرار سره د إمامُ المسلمين او قاضي مخته ثابتيږي ا لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ دَلِيلٌ ظَاهِرٌ ځکه چې ګواهي ظاهري دليل دی وَكَذَا الْإِقْرَارُ او همدارنګه اقرار ا هم ظاهري دليل دی ا لِأَنَّ الصِّدْقَ فِيهِ مُرَجَّحٌ ځکه چې په اقرار کې رښتياوالي غالب وي لَا سِيَّمَا فِيمَا يَتَعَلَّقُ بِثُبُوْتِهِ مَضَرَّةٌ وَمَعَرَّةٌ خصوصاً د هغه شيانو په باره کې ا په اقرار کې رښتياوالي غالب وي ا چې د هغو د ثبوت سره نقصان او شرمنده ګي تعلق لري انو د هغه شيانو په باره کې به همدا ګومان کيږي چې اقرار کونکې بالکل رښتيا وايي ا وَالْوُصُولُ إِلَى الْعِلْمِ الْقَطْعِيِّ مُتَعَذِّرٌ او يقيني علم اخبرتيا ا ته رسېدل مشکل وي فَيُكْتَفَى بِالظَّاهِرِ نو ځکه به په ظاهري دليل اکتفاء کيږي.

**اللغات**: ﴿بَيِّنَة﴾ ګواهي، ﴿مُرَجَّح﴾ د تفعيل اسم مفعول دى: راجح، غالب. ﴿مَضَرَّة﴾ مصدرِ ميمي دى: نقصان، ضرر، تكليف، رنځ، كړاو. ﴿مَعَرَّة﴾ دا هم مصدرِ ميمي دى: شرمنده ګي، شرمېدل، بې آبه كېدل (بې پرده كېدل). ﴿وُصُوْل﴾ د ضرب مصدر دى: رسېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي زنا خو يا د ګواهانو په بيّنه (ګواهي) سره ثابتيږي، يا د زاني (زناكاره) په اقرار سره ثابتيږي، او د ثابتېدلو مطلب دا دى چي كله د زنا په هكله زاني اقرار وكړي يا بيّنه پېش كړى سي نو امامُ المسلمين دي هغه زنا تسليم كړي (او د زنا حكم دي پر وكړي) او تر دې وروسته دي حدّ پر جاري كړي، له ثبوت څخه نفسِ ثبوت مراد نه دى؛ ځكه چي زنا يو حسّي فعل دى، او په حقيقت كي د زنا ثبوت بيّنه يا اقرارته ضرورت نه لري، خو په بيّنه يا اقرار سره چي كله دامامُ المسلمين او د قاضي او مفتي مخته زنا ثابته سي، نو پر هغه به سمدستي او په هغه ګړي د زنا حكم لګول كيږي؛ ځكه چي بيّنه ظاهري دليل دى، او قاضي به د ظاهر مطابق حكم لګوي. همدارنګه اقرار هم ظاهري دليل دى؛ ځكه چي په اقرار كي د صدق او رښتياوالي اړخ غالب وي، خصوصاً په هغه وخت كي كله چي اقرار د انسان لپاره مُضر او شرمنده كونكى وي، او په حدّ كي هم داسي كيږي چي د زاني بدن ته ضرر او تكليف رسيږي او هغه په خلكو كي رسوا كيږي او شرمنده كيږي. او څرنګه چي د زاني په فعل (زنا) سره په قطعي او يقيني توګه د قاضي او نورو خبرېدل ممكن هم نه دى، نو په دې وجه به هم په ظاهري دليل اكتفاء او اعتماد كيږي، او د هغه مطابق به فيصله كيږي.

## د زنا د ګواهى بيان

قَالَ: فَالْبَيِّنَةُ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَةٌ مِنَ الشُّهُوْدِ عَلَى رَجُلٍ أَوِ امْرَأَةٍ بِالزِّنَا فرمايي: د ګواهى صورت دا دى چي څلور ګواهان د سړي يا ښځي پر زنا ګواهي وركړي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ [النساء: ۱۵] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: نو تاسي [اې قاضيانو!] پر دې [متهمو] ښځو له خپلو [مسلمانانو] څخه څلور ګواهان وغواړئ! وَقَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ [النور: ۴] او الله تعالىٰ فرمايلي دي: بيا كه هغوى څلور ګواهان وړاندي نه كړي [په دې آيت كي د څلورو ګواهانو يادونه سوې ده، نو ځكه به څلور ګواهان د زنا ګواهي وركوي] وَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ [1] لِلَّذِيْ قَذَفَ امْرَأَتَهُ: ائْتِ بِأَرْبَعَةٍ يَشْهَدُوْنَ عَلَىٰ صِدْقِ مَقَالَتِكَ او نبي ﷺ هغه كس ته وفرمايل چي هغه پر خپلي ښځي د زنا

---

[1] تخريج: رواه البخاري بمعناه، رقم الحديث: ۲۶۷۱.

تهمت لګولی وو: ته څلور ګواهان را وله! چي هغه ستا د خبري پر رښتيا والي ګواهي ورکړي
وَلِأَنَّ فِي اشْتِرَاطِ الْأَرْبَعَةِ يَتَحَقَّقُ مَعْنَى السَّتْرِ او ځکه چي د څلورو ګواهانو په شرط لګولو سره د ستر
[او پرده ساتلو] معنیٰ ثابتيږي [او د مجرم پرده او آبرو خوندي کيږي] وَهُوَ مَنْدُوبٌ إِلَيْهِ او همدا ستر [د زنا
په باره کي] ستر مستحب دی وَالْإِشَاعَةُ ضِدُّهُ او [د زنا] خپرول [نشر کول] د ستر خلاف دي وَإِذَا
شَهِدُوا او کله چي څلور سره ګواهان ګواهي ورکړي سَأَلَهُمُ الْإِمَامُ عَنِ الزِّنَا مَا هُوَ نو إمام [او قاضي]
دي له هغو څخه د زنا په هکله پوښتنه وکړي چي ① زنا څه شي ته وايي ؟ وَكَيْفَ هُوَ ② او زنا
څرنګه کيږي؟ وَأَيْنَ زَنَى ③ او زاني [مشهود عليه] چيري زنا کړې ده؟ وَمَتَى زَنَى ④ او هغه کله
زنا کړې ده؟ وَبِمَنْ زَنَى ⑤ او د چا سره يې زنا کړې ده؟ لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اِسْتَفْسَرَ[❶] مَاعِزًا عَنِ الْكَيْفِيَّةِ
وَعَنِ الْمَزْنِيَّةِ ځکه چي نبي کريم ﷺ له حضرت ماعز ﷺ څخه د زنا د کيفيت [څرنګوالي] او د زنا
کرده ښځي په هکله پوښتنه [او معلومات] کړی وو وَلِأَنَّ الِاحْتِيَاطَ فِي ذَلِكَ وَاجِبٌ او ځکه چي د زنا
په ثابتولو کي احتياط کول واجب دي لِأَنَّهُ عَسَاهُ غَيْرُ الْفِعْلِ فِي الْفَرْجِ عَنَاهُ ځکه کېدای سي چي د
زاني مراد په فرج کي له فعل [او زنا] څخه بغيريو بل شی وي [يعني کتل، مچه اخيستل او داسي نور] أَوْ
زَنَى فِي دَارِ الْحَرْبِ أَوْ فِي الْمُتَقَادِمِ مِنَ الزَّمَانِ يا [کېدای سي چي] هغه په دارُ الحراب کي زنا کړې وي يا
په پخوانۍ زمانه کي يې زنا کړې وي أَوْ كَانَتْ لَهُ شُبْهَةٌ لَا يَعْرِفُهَا هُوَ وَلَا الشُّهُودُ كَوَطْءِ جَارِيَةِ الِابْنِ يا
[کېدای سي چي] د زاني لپاره شبهه وي چي په هغه باندي زاني او ګواهان نه پوهيږي لکه د زوی د
مينځي سره وطي کول فَيَسْتَقْصِي فِي ذَلِكَ نو ځکه به إمام [او قاضي] د زنا په هکله پوره پلټنه
[پوښتنه] کوي [او د زنا د قصې بېخ ته به ځان رسوي] اِحْتِيَالًا لِلدَّرْءِ د دې لپاره چي د "حدّ" دفع کولو
[او ساقطېدلو] ته يوه حيله وسي فَإِذَا بَيَّنُوا ذَلِكَ وَقَالُوا: رَأَيْنَاهُ وَطِئَهَا فِي فَرْجِهَا كَالْمِيلِ فِي الْمُكْحُلَةِ بيا
چي کله ګواهان دا خبري [يعني د پوښتنو جوابونه] بيان کړي او دا ووايي: چي موږ هغه د فلانۍ ښځي
په فرج کي داسي وطي کونکی [او ذکر داخلونکی] وليدی لکه څرنګه چي سلايي په رنجينه کي
داخليږي وَسَأَلَ الْقَاضِي عَنْهُمْ او همدارنګه کله چي [قاضي د ګواهانو په باره کي پوښتنه وکړي

❶ تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ٤٤١٩.

فَعُدِّلُوا فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ او په ظاهر او باطن کي هغوی عادلان ثابت سي حَكَمَ بِشَهَادَتِهِمْ نو [بيا] دي قاضي د هغو پر شهادت فيصله وکړي وَلَمْ يَكْتَفِ بِظَاهِرِ الْعَدَالَةِ فِي الْحُدُودِ او په حدونو کي به قاضي په ظاهري عدالت اکتفاء نه کوي اِحْتِيَالًا لِلدَّرْءِ د دې لپاره چي د "حد" دفع کولو ته حيله وسي قَالَ الطَّيْلًا ❸: اِدْرَءُوا الْحُدُودَ مَا اسْتَطَعْتُمْ نبي ﷺ فرمايلي دي: څومره چي ستاسي وس [او طاقت] وي، حدونه دفع کوئ! بِخِلَافِ سَائِرِ الْحُقُوقِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ په خلاف د نورو حقونو. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [يعني په نورو حقونو کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په ظاهري عدالت اکتفاء کيږي] وَتَعْدِيلُ السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ نُبَيِّنُهُ فِي الشَّهَادَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د ظاهر او باطن عدالت به موږ انشاء الله په "كتابُ الشهادات" کي بيان کړو قَالَ فِي الْأَصْلِ: يَحْبِسُهُ حَتَّى يَسْأَلَ عَنِ الشُّهُودِ او په مبسوط کي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي قاضي به مشهود عليه [زاني] بندي کوي تر دې چي د ګواهانو په باره کي پوښتنه وکړي [او د هغو أحوال ځان ته معلوم کړي] لِلِاتِّهَامِ بِالْجِنَايَةِ ځکه چي هغه په جرم [زنا] سره متهم دی وَقَدْ حَبَسَ ❹ رَسُولُ ﷺ رَجُلًا بِالتُّهْمَةِ او نبي کريم ﷺ د تهمت په وجه يو سړی بندي کړی وو بِخِلَافِ الدُّيُونِ حَيْثُ لَا يُحْبَسُ فِيهَا قَبْلَ ظُهُورِ الْعَدَالَةِ په خلاف د قرضونو. نو په هغوی کي به [د ګواهانو] د عدالت تر ښکاره کېدلو مخکي مقروض [پور وړی] نه بندي کيږي وَسَيَأْتِيكَ الْفَرْقُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او [د حدّ او قرض په مېنځ کي] فرق به انشاء الله ژر ستا [مخ] ته راسي.

**اللغات**: ﴿بَيِّنَة﴾ ګواهي، شاهدي. ﴿إِسْتَشْهِدُوا﴾ د استفعال له باب څخه د جمع مذکر أمرِ حاضر صيغه ده: ګواه درول. د ګواه تلاش کول. ﴿قَذْف﴾ د ضرب مصدر دی: د زنا تهمت لګول. ﴿مَقَال﴾ قول. خبره. ﴿سَتْر﴾ پرده ساتل. پرده داري (پرده پوشي). ﴿إِسْتَفْسَر﴾ د استفعال ماضي ده: پوښتنه کول (معلومات کول). په يو چا يوه خبره سپينول (څرګندول). ﴿مَزْنِيَّة﴾ د ضرب له باب څخه د مؤنث اسمِ مفعول صيغه ده: هغه ښځه چي زنا ور سره سوې وي (زنا کاره ښځه). ﴿عَسَاه﴾ ممکن

---

❸ تخريج: رواه الترمذي في الحدود، رقم الحديث: ١٤٢٤.

❹ تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ٣٦٣٠.

دي. کېدای سي، ﴿عنَاه﴾ د ضرب ماضي ده: مرادول، ﴿دَرْء﴾ د فتح مصدر دی: دفع کول، لیرې کول (ساقطول). ﴿يَسْتَقْصِيْ﴾ د استفعال مضارع ده: د مسئلې تر بېخه ځان رسول، پوره پلټنه او تحقیق کول (تفتیش کول). ﴿مِيْل﴾ سلايي (دا رانجو لرګی). ﴿مَكْحَلَة﴾ هغه ښيښه چې رانجه پکښې خوندي کېږي چې هغه ته رنجينه (يا سرمه داني) وايي.

**تشريح**: په دې عبارت کې صاحب د هدایې د ګواهۍ ورکولو کیفیت او طریقه بیان کړې ده کوم چې له ترجمې څخه ښکاره ده. مختصراً د هغه خلاصه دا ده چې زنا د څلورو ګواهانو په ګواهۍ (بیّنه) سره ثابتیږي، او د څلورو ګواهانو دلیل د قرآن کریم هغه دوه آیتونه دي کوم چې په عبارت کې ذکر سول، او هغه حدیث مبارک دی چې په هغه کې نبي کریم ﷺ له تهمت لګونکي سړي څخه د "اِئْتِ بِأَرْبَعَة" مطالبه کړې ده. په دې سلسله کې عقلي دلیل دا دی چې د څلورو ګواهانو په شرط کېدلو کې د ستر (او پرده ساتلو) رعایت سته، او په زنا او داسې نورو کې ستر غوره او مستحب دی. او د زنا خبر نشر کول او عامول فحش او بې حیائي ده، په حدیث کې ذکر سوي دي "مَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللهُ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَة" (يعني څوک چې دیو مسلمان پرده وساتي، ربُ العالمين به په دنيا او آخرت دواړو کې د هغه پرده وساتي).

**وإذا شهدوا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې کله ګواهان د ګواهي ورکولو لپاره د قاضي مخته راسي، نو قاضي دي له هغو څخه پنځه پوښتني وکړي: ① زنا څه ته وايي؟ ② زنا څنګه کېږي؟ ③ زاني په کوم ځای کې دا کار کړی دی؟ ④ کله او په کوم وخت کې يې کړی دی؟ ⑤ د کومې ښځې سره يې کړی دی؟؛ دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ له حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه څخه د زنا کيفيت او د مزنيه ښځې په هکله پوښتنه کړې وه. لهذا مونږ ته هم په ښه توګه د زنا پلټنه او تحقيق کول پکار دي. د پلټنې او تحقيق کولو عقلي دليل دا دی چې کېدای سي زاني به د ښځې سره په فرج (شرمګاه) کې وطي کړې نه وي، بلکې فقط فرج ته به يې په غور سره کتلي وي، يا مچه به يې اخيستې وي، يا داسې بل حرکت به يې کړی وي چې هغه به زاني په خپل خيال کې زنا ګڼلې وي. يا کېدای سي چې فقط ښځه او سړی به په خونه کې سره يو ځای سوي وي او جماع به يې کړې نه وي لېکن ګواهانو به په خونه کې د دوی په ليدلو سره د زنا تهمت لګولی وي. يا کېدای سي په دارُ الحرب کې زنا واقع سوې وي. يا ډېر مودت مخکې به زنا سوې وي، يا د موطوئه ښځې سره به وطي بالشبهه سوې وي. او واطئ او ګواهانو ته به د دې خبر نه وي، مثلاً هغه ښځه د واطئ د زوی مېنځه وي. او څرنګه چې په دې ټولو

صورتونو کي حدّ نه واجبيږي، نو په دې وجه قاضي او مفتي ته پکار دي چي په ښه توګه د زنا تحقيق او پلټنه وکړي، کېدای سي چي يو داسي صورت را ووځي چي حدّ ختم او دفع سي.

**فَإذا بينوا ذٰلك إلخ**: فرمايي کله چي ګواهان د دې پنځو پوښتنو جواب ورکړي، او دا ووايي چيّ څرنګه په رنجينـه (سرمه دانۍ) کي سلائي ننه کيږي، همدغسي موږ د فلانکي ذکر د فلانۍ ښځي په فرج کي داخل وليدی، نو بيا دي قاضي د ګواهانو د أحوالو او د هغو د ذاتي اخلاق او کردار پلټنه وکړي (او د هغو په باره کي دي پوښتنه وکړي)، کله چي په ظاهر او باطن دواړو کي د هغو عدالت ښکاره سي (چي هغوی عادلان او باوري خلک دي)، نو بيا دي د هغو پر شهادت (ګواهۍ) فيصله وکړي. او قاضي دي فقط په ظاهري عدالت اکتفاء نه کوي، د دې لپاره چي د حدّ دفع کولو يوه حيله جوړه سي، ځکه کله چي د ظاهر او باطن دواړو پلټنه وسي نو کېدای سي چي په ګواهانو کي يوه داسي کمزوري ثابته سي چي د هغه په وجه د دوی ګواهي د قبلولو وړ پاته نه سي نو په دې توګه به حدّ ختم او دفع سي؛ ځکه چي په حديث کي حتی الإمکان د حدّ د ختمولو او دفع کولو حکم سوی دی، په عبارت کي د إِخْتِيَاطًا لِلدَّرْءِ واضح مطلب همدا دی.

د دې په خلاف له حدودو څخه بغير چي نور کوم حقوق دي که په هغوی کي قاضي فقط په ظاهري عدالت اکتفاء وکړي، نو هيڅ حرج او پروا نه لري، د ظاهري او باطني عدالت نور وضاحت به په "كتابُ الشهادات" کي بيان سي (انشاء الله تعالیٰ)

**قال محمد إلخ**: امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ليکلي دي چي د ګواهانو تر شهادت وروسته به قاضي مشهود عليه بندي کړي، او تر څو چي د ګواهانو د أحوالو ښه تحقيق نه وکړي، تر هغه وخته پوري به پر مشهود عليه هيڅ کاروايي نه کوي، ځکه کېدای سي چي ګواهانو پر هغه عيب او تهمت لګولی وي، او د هغو تهمت به د حقيقت سره هيڅ تعلق نه لري، يا کېدای سي چي د هغو شهادت به صحيح وي نو مشهود عليه به وتښتيږي (نو په دې وجهو به يې بندي کوي)، او له نبي کريم ﷺ څخه هم دا ثابته ده چي هغه ﷺ د تهمت پر بناء يو تورن (متهم کس) بندي کړی.

د دې په خلاف د قرضونو مسئله ده، نو د قرض په شخړه او د قرض په مسئله کي به تر هغه وخته پوري مقروض (پوروړی) نه بندي کيږي تر څو چي د ګواهانو عدالت ښکاره نه سي؛ ځکه چي په قرض او دَين کي کفيل اخيستل مشروع دي او د کفيل په ذريعه هغه اداء کېدای سي، لېکن په حدّ کي کفيل اخيستل صحيح نه دی، همدا هغه فرق دی چي صاحبُ د کتاب يې د بيانولو وعده کړې ده، لېکن صاحب د کتاب هغه بيان کړی نه دی، موږ دلته بيان کړی.

## د زنا په هکله د اقرار کولو د شمېر بيان

قَالَ: وَالْإِقْرَارُ أَنْ يُقِرَّ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ عَلَى نَفْسِهِ بِالزِّنَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فِي أَرْبَعَةِ مَجَالِسَ مِنْ مَجَالِسِ الْمُقِرِّ فرمايي: او د اقرار صورت دا دی چي عاقل او بالغ سړی څلور واره، په څلورو مجلسونو کي پر خپل ځان د زنا اقرار وکړي كُلَّمَا أَقَرَّ رَدَّهُ الْقَاضِيْ هر وار چي هغه د زنا اقرار وکړي، نو قاضي دي هغه رد کړي فَاشْتِرَاطُ الْبُلُوغِ وَالْعَقْلِ لِأَنَّ قَوْلَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ أَوْ هُوَ غَيْرُ مُوْجِبٍ لِلْحَدِّ نو د بلوغ او عقل شرط ځکه لګول سوی دی چي د کوچني او لېوني قول معتبر نه دی يا د هغه اقرار [د حدّ واجبېدلو] سبب نه دی وَاشْتِرَاطُ الْأَرْبَعِ مَذْهَبُنَا او د څلورو واره [اقرار کولو] شرط زموږ د مذهب مطابق دی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُكْتَفٰى بِالْإِقْرَارِ مَرَّةً وَاحِدَةً او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په يوه وار اقرار کولو سره اکتفاء کېږي اِعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْحُقُوقِ پر نورو حقونو باندي په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّهُ مُظْهِرٌ او دا ځکه چي يو وار اقرار کول [د زنا لپاره] څرګندونکی دی [يعني په يوه وار اقرار کولو سره هم زنا ښکاره کېږي] وَتَكْرَارُ الْإِقْرَارِ لَا يُفِيدُ زِيَادَةَ الظُّهُورِ او د اقرار مکرر والي د زياتي څرګندوني فايده نه ورکوي [يعني کله چي يو وار په اقرار سره زنا ښکاره سي، نو بيا په بل وار اقرار کولو سره زنا نوره نه ښکاره کېږي، ځکه چي اقرار خو د ګواهۍ په څېر نه دی] بِخِلَافِ زِيَادَةِ الْعَدَدِ فِي الشَّهَادَةِ په خلاف په ګواهۍ د شمېر د زياتوالي وَلَنَا حَدِيثُ مَاعِزٍ [1] او زموږ دليل د حضرت ماعز ﷺ حديث دی فَإِنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَخَّرَ الْإِقَامَةَ إِلَى أَنْ تَمَّ الْإِقْرَارُ مِنْهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فِي أَرْبَعَةِ مَجَالِسَ ځکه چي نبي کريم ﷺ تر هغه وخت پوري د حدّ جاري کول مؤخر کړل تر دې چي د حضرت ماعز له طرفه په څلورو مجلسونو کي څلور وار اقرار پوره سو فَلَوْ ظَهَرَ بِمَا دُونَهَا لَمَا أَخَّرَهَا لِثُبُوتِ الْوُجُوبِ نو که له څلورو وارونو څخه په کمه حدّ ښکاره کېدای نو د وجوب تر ثبوت وروسته به نبي ﷺ د حدّ جاري کول نه مؤخر کولای وَلِأَنَّ الشَّهَادَةَ اخْتَصَّتْ فِيهِ بِزِيَادَةِ الْعَدَدِ او ځکه چي د زنا ګواهي د شمېر په زيادت سره خاص کړی سوې ده فَكَذَا الْإِقْرَارُ نو همداسي به اقرار [هم] د شمېر په زيادت سره خاص کېږي إِعْظَامًا لِأَمْرِ الزِّنَا د دې لپاره د چي د زنا د معاملې اهميت [خلکو ته] څرګند سي وَتَحْقِيقًا لِمَعْنَى السَّتْرِ او چي د ستر [او پرده پوشۍ] معنیٰ ثابته کړی سي وَلَا بُدَّ مِنْ اخْتِلَافِ الْمَجَالِسِ او د اقرار د مجلسونو بدلېدل ضروري دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ لِاتِّحَادِ الْمَجْلِسِ أَثَرًا فِي جَمْعِ الْمُتَفَرِّقَاتِ او ځکه چي د

---

[1] تخريج: رواه البخاری فی الحدود باب:۲۲ رقم الحديث:۶۸۱۵

متفرقاتو [بېلا بېلو شيانو] په جمع کولو کي د مجلس اتحاد لره [غټ] دخل وي [مثلاً که يو څوک په يوه مجلس کي څو واره د سجدې آيت تلاوت کړي، نو هغه ټوله ديوه آيت په څېر شمارل کيږي، او يوه سجده واجبيږي] فَعِنْدَهُ يَتَحَقَّقُ شُبْهَةُ الِاتِّحَادِ فِي الْإِقْرَارِ نو د مجلس د متحد کېدلو په وخت کي به په قرار کي د اتحاد [يو والي] شبهه پيدا سي وَالْإِقْرَارُ قَائِمٌ بِالْمُقِرِّ او اقرار په اقرار کونکي سره قائم دی فَيُعْتَبَرُ اخْتِلَافُ مَجْلِسِهِ دُونَ مَجْلِسِ الْقَاضِي نو ځکه به د مُقِر د مجلس بدلېدل معتبر وي، نه د قاضي د مجلس وَالِاخْتِلَافُ بِأَنْ يَرُدَّهُ الْقَاضِي كُلَّمَا أَقَرَّ او د مجلس د بدلېدلو صورت دا دي چي کله هر وار مُقِر اقرار وکړي نو قاضي دي د هغه اقرار ردّ کړي فَيَذْهَبَ حَيْثُ لَا يَرَاهُ ثُمَّ يَجِيءَ فَيُقِرَّ هُوَ [او] بيا دي مُقِر دومره ولاړ سي چي قاضي هغه نه ويني [او] بيا دي راسي اقرار دي وکړي هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه همداسي نقل سوي دي لِأَنَّهُ عليه السلام ❷ طَرَدَ مَاعِزًا فِي كُلِّ مَرَّةٍ حَتَّى تَوَارَى بِحِيطَانِ الْمَدِينَةِ ځکه چي نبي کريم ﷺ په هر وار کي حضرت ماعز رټلی وو تر دې چي هغه [هر وار] د مدينې تر دېوالونو نيام سوی [پټ سوی] وو.

**اللغات:** ﴿مُظْهِر﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: ښکاره کونکی (څرګندونکی)، ﴿أَخَّرَ﴾ د تفعيل ماضي ده: ځنډول، وروسته کول، مؤخّر کول، ﴿طَرَدَ﴾ د نصر ماضي ده: ليري کول، رټل (غندل)، شړل، ﴿تَوَارَى﴾ د تفاعل ماضي ده: پټېدل، نيامېدل، ﴿حِيطَان﴾ جمع د حَائِطٌ ده: دېوال.

**تشريح:** په دې عبارت کي د اقرار تفصيل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي که عاقل او بالغ سړی پر خپل ځان څلور واره په جلا جلا مجلس کي د قاضي مخته د زنا اقرار وکړي، نو پر هغه به زنا ثابتيږي او قاضي به پر هغه د حدّ جاري کولو فيصله کوي، او څلور واره اقرار کول زموږ په نيز شرط دی، لېکن د شوافعو په نيز فقط په يوه وار اقرار کولو سره پر مُقِر (اقرار کونکي) زنا ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل:** په دې سلسله کي د هغه اول دليل قياس دی، يعني څرنګه چي له حدّ څخه بغير په نورو حقوقو کي فقط يو وار اقرار کافي دی، څلور واره شرط نه دي، همداسي به په حدودو کي هم فقط يو وار اقرار کافي وي، د هغه دويم دليل دا دی چي د اقرار مقصد د زنا ښکاره کول دي، او په يوه وار اقرار کولو سره په پوره توګه زنا ثابتيږي او ښکاره کيږي، لهذا بېله وجهې به څلور واره د اقرار کولو شرط نه لګول کيږي، ځکه چي دا خو د تحصيل د حاصل دی کوم چي پر خپل ځای لغو او ممنوع دی.

**زموږ دليل:** د حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه واقعه ده چي په هغه کي نبي کريم ﷺ تر څلور واره اقرار کولو وروسته پر حضرت ماعز رضي الله عنه حدّ جاري کړی دی، ښکاره خبره ده چي که يو وار اقرار کول د حدّ د جاري کولو

---

❷ تخريج: قدم تخريجه في الحديث السابق

لپاره كافي واى، نو نبي كريم ﷺ به هيڅكله هغه نه دفع كولاى؛ په دې سلسله كي زموږ عقلي دليل (كوم چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب هم دى) دا دى چي په قرآن او حديث دواړو كي د زنا شهادت د څلورو ګواهانو سره د ګواهۍ سره خاص دى (چي پوره څلور ګواهان به ګواهي وركوي)، او په اقرار سره هم د شهادت په څير زنا ثابتيږي، نو ځكه به اقرار هم د څلور وارو (أربع مرّات) سره خاص وي، د دې لپاره چي د زنا اهميت او پر زنا باندي واقع كېدونكي سختي او شدّت خلكو ته معلوم سي، او د ستر (او پرده ساتلو) معنىٰ ثابته سي.

څرنګه چي د حضرت ماعز ﷺ په حديث كي د مجلس د اختلاف او تبديلۍ ذكر سوى دى، نو ځكه د مُقر لپاره د هر وار اقرار په وخت كي د مجلس بدلول ضروري دي، او دا تبديلي د مُقر له طرفه معتبره ده، چي د هغه صورت دا دى چي كله مُقر يو وار اقرار وكړي، نو قاضي دي پر هغه هيڅ توجّه نه كوي، بيا دي مُقر له هغه ځاى څخه دومره ليري ولاړ سي چي د قاضي له ستر ګو څخه پټ سي، بيا دي دويم ځل راسي اقرار دي كړي، او قاضي دي د هغه پر اقرار هيڅ توجّه نه كوي، همداسي دي څلور واره وكړي؛ ځكه چي د حضرت ماعز ﷺ په هكله دا مشهور ده چي نبي ﷺ به هر وار د هغه اقرار ردّ كوى، او هغه به هر وار خپل ځان د مدينې تر دېوالونو نياموى.

د مجلس د اختلاف او بدلون دويم دليل دا دى چي مجلس بيلا بېل (متفرق) شيان جمع كوي، لكه د قي او سجده تلاوت په مسئله كي چي په دې هكله پوره بحث وسو، اوس كه چيري د اقرار مجلس متحد سي (او په يوه مجلس كي څلور واره اقرار وسي)، نو د اقرار د متحد كېدلو شبهه به پيدا سي (چي شايد دا به يو اقرار وي، نه څلور واره)، لهذا د څلورو وارو (أربع مرّات) د تحقّق او ثبوت لپاره مجلس بدلول ضروري دي.

## د اقرار أحكام

قَالَ: فَإِذَا تَمَّ إِقْرَارُهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ سَأَلَهُ عَنِ الزِّنَا مَا هُوَ فرمايي: كله چي اقرار كونكى [مُقر] څلور واره اقرار وكړي نو قاضي دي له هغه څخه د زنا په باره كي پوښتنه وكړي ① چي زنا څه شي ده؟ وَكَيْفَ هُوَ ② او زنا څرنګه كيږي وَأَيْنَ زَنَى ③ او هغه چيري زنا كړې ده وَبِمَنْ زَنَى او د چا سره يې زنا كړې ده فَإِذَا بَيَّنَ ذٰلِكَ كله چي مُقر دا ټولي خبري بيان كړي [او د دې سوالونو جواب وركړي] لَزِمَهُ الْحَدُّ نو پر هغه حدّ لازم سو لِتَمَامِ الْحُجَّةِ ځكه چي حجّت [او دليل] پوره سو وَمَعْنَى السُّؤَالِ عَنْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ بَيَّنَّاهُ فِي الشَّهَادَةِ او د دې شيانو په هكله د سوال كولو مطلب موږ د شهادت په بحث كي بيان كړى وَلَمْ يَذْكُرِ السُّؤَالَ فِيهِ عَنِ الزَّمَانِ او په اقرار كي امام قدوري رَحِمَهُ الله د وخت په هكله د سوال كولو يادونه كړې نه ده وَذَكَرَهُ فِي الشَّهَادَةِ حالانكي د شهادت په بحث كي يې د دې يادونه كړې ده لِأَنَّ تَقَادُمَ الْعَهْدِ يَمْنَعُ الشَّهَادَةَ دُونَ الْإِقْرَارِ ځكه چي د زمانې مخكي والي [او پخوانى

والي] فقط له شهادت څخه مانع دي، نه له اقرار څخه وَقِيلَ: لَوْسَأَلَهُ او ويل سوي دي: که چيري قاضي له مُقر څخه د وخت پوښتنه [هم] وکړي جَازَ نو جائز دي لِجَوَازِ أَنَّهُ زَنَى فِي صِبَاهُ ځکه کېداى سي چي هغه به کوچنيوالي کي زنا کړې وي.

**اللغات**: ﴿بَيَّنَ﴾ د تفعيل ماضي ده: بيانول، څرګندول، ﴿حُجَّة﴾ دليل، ﴿تَقَادُم﴾ د تفاعُل مصدر دی: ډېر مخکي کېدل، پخوانى کېدل، ﴿صِبَا﴾ د کوچنيوالي وخت، کوچنيتوب (وړوکتوب، ماشومتوب).

**تشريح**: فرمايي چي کله مُقر څلور واره اقرار وکړي، نو قاضي دي له هغه څخه د ګواهانو په څېر د زنا په هکله، همدارنګه د زنا د کيفيت او د زنا د مقامْ او داسي نورو په هکله پوښتنه وکړي، او کله چي مُقر د هري پوښتني جواب ورکړي، نو بيا دي قاضي پر هغه حدّ جاري کړي، لېکن قاضي به د مُقر څخه د زنا د وخت پوښتنه نه کوي، ځکه که څه هم د زنا وخت ليري کېدل او د زنا وخت ډېر تېرېدل د شهادت له قبوليت څخه مانع دي، لېکن د اقرار له قبوليت څخه مانع نه دي (يعني که څه هم ډېر وخت تېر سوى وي، بيا به هم د زنا اقرار قبلېږي)، ځکه چي انسان پر خپل ځان په اقرار کولو متهم کېداى نه سي، او د هغه اقرار د هغه په حق کي حجّت وي، بيا هم که قاضي له هغه څخه په دې هکله پوښتنه وکړي، نو څه حرج نه لري، ځکه کېداى سي چي هغه به په کوچنيوالي کي زنا کړې وي، او د کوچنيوالي پر زنا حدّ نه جاري کيږي، نو ځکه د واقعې او معاملې د صفا کولو لپاره په دې باره کي پوښتنه کول غوره دي.

## که اقرار کونکى له خپل اقرار څخه رجوع وکړي؟

فَإِنْ رَجَعَ الْمُقِرُّ عَنْ إِقْرَارِهِ قَبْلَ إِقَامَةِ الْحَدِّ او که چيري اقرار کونکى تر حدّ جاري کېدلو مخکي له خپل اقرار څخه رجوع وکړي أَوْفِي وَسَطِهِ يا د حدّ جاري کېدلو په دوران کي [له خپل اقرار څخه رجوع وکړي] قُبِلَ رُجُوعُهُ وَخُلِّيَ سَبِيلُهُ نو د هغه رجوع به قبلېږي او د هغه لاره به پرېښوول کيږي [يعني له هغه څخه به حدّ ساقطيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ وَهُوَقَوْلُ ابْنِ أَبِي لَيْلَى: يُقِيمُ عَلَيْهِ الْحَدَّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي (او همدا د ابن أبي ليلىٰ قول دی): چي پر هغه به [بيا هم] حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ وَجَبَ الْحَدُّ بِإِقْرَارِهِ ځکه چي د هغه په اقرار سره حدّ واجب سو فَلَا يَبْطُلُ بِرُجُوعِهِ وَإِنْكَارِهِ نو ځکه به [اوس] د هغه په رجوع او انکار کولو سره حدّ نه باطليږي كَمَا إِذَا وَجَبَ بِالشَّهَادَةِ لکه په هغه صورت کي [چي حدّ نه باطليږي] کله چي حدّ په ګواهى سره واجب سي وَصَارَ كَالْقِصَاصِ وَحَدِّ الْقَذْفِ او دا د قصاص او حدِ قذف په څېر سو وَلَنَا: أَنَّ الرُّجُوعَ خَبَرٌ مُحْتَمِلٌ لِلصِّدْقِ او زموږ دليل دا دی: چي رجوع کول يو داسي خبر دی چي په هغه کي د رښتيا والي احتمال سته كَالْإِقْرَارِ لکه په اقرار کي [چي د رښتياوالي احتمال غالب دی] وَلَيْسَ أَحَدٌ يُكَذِّبُهُ فِيهِ او

په رجوع کې بل څوک داسې نسته چې د هغه تکذيب وکړي فَيَتَحَقَّقُ الشُّبْهَةُ فِي الْإِقْرَارِ نو په اقرار کې به شبهه ثابته سي اا او په شبهې سره حدود ساقطيږي ا بِخِلَافِ مَا فِيهِ حَقُّ الْعَبْدِ په خلاف د هغه شي چې په هغه کې د بنده حق سته ا يعني چې هغه د بنده حق دی ا وَهُوَ الْقِصَاصُ وَحَدُّ الْقَذْفِ او هغه قصاص او حدّ قذف دی لِوُجُودِ مَنْ يُكَذِّبُهُ ځکه چې ا په دوی کې ا داسې څوک سته چې د هغه تکذيب وکړي وَلَا كَذٰلِكَ مَا هُوَ خَالِصُ حَقِّ الشَّرْعِ او کوم چې خالص د شريعت حق دی ا يعني حدّ ا هغه داسې نه دی وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ أَنْ يُلَقِّنَ الْمُقِرَّ الرُّجُوعَ او د امام لپاره مستحب دي چې اقرار کونکي ته د رجوع تلقين ور کړي فَيَقُولَ لَهُ: لَعَلَّكَ لَمَسْتَ أَوْ قَبَّلْتَ نو امام دي هغه ته ا داسې ا ووايي: کېدای سي چې تا به ا ښځه ا مسه کړې وي يا مچ کړې به دي وي لِقَوْلِهِ عليه السلام لِمَاعِزٍ: لَعَلَّكَ لَمَسْتَهَا أَوْ قَبَّلْتَهَا [1] ځکه چې نبي کريم ﷺ حضرت ماعز رضي الله عنه ته فرمايلي وو: چې کېدای سي تا به هغه مسه کړې يا مچ کړې وي قَالَ فِي الْأَصْلِ: وَيَنْبَغِي أَنْ يَقُولَ لَهُ الْإِمَامُ: لَعَلَّكَ تَزَوَّجْتَهَا أَوْ وَطِئْتَهَا بِشُبْهَةٍ او په مبسوط کې امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: او مناسب دي چې امام هغه ته دا ا هم ا ووايي: چې کېدای سي تا د هغې سره نکاح کړې وي يا ا کېدای سي ا تا په شبهه کې د هغې سره وطي کړې وي وَهٰذَا قَرِيبٌ مِنَ الْأَوَّلِ فِي الْمَعْنٰى او ا د امام محمد رَحِمَهُ الله ا دا قول د معنیٰ په اعتبار سره اول قول ته نژدې دی.

**اللغات**: ﴿إِقَامَة﴾ د افعال مصدر دی: قائمول، درول، جاري کول. ﴿وَسَط﴾ مينځ، دوران، جريان. ﴿خَلّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: ايله کول، پرېښوول. ﴿قَذْف﴾ د زنا تهمت لګول (پر ښځې د زنا تور لګول). ﴿يُكَذِّبُه﴾ د تفعيل مضارع ده: تکذيب کول، درواغجن ثابتول. ﴿يُلَقِّنَ﴾ د تفعيل مضارع ده: تلقين ور کول، پوهول، په ټينګه ورته ويل. (مطلب دا چې قاضي دي هغه ته د رجوع لاره هواره کړي او هغه دي رجوع ته اړ کړي).
﴿قَبَّلْتَ﴾ د تفعيل ماضي ده: مچول، مچه اخيستل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که مُقر تر حدّ جاري کېدلو مخکې يا د حدّ جاري کېدلو په دوران کې له خپل اقرار څخه رجوع وکړي، نو زموږ په نېز د هغه رجوع مقبوله او معتبره ده او له هغه څخه به حدّ ساقطيږي. لېکن د امام شافعي او ابن أبی ليلیٰ په نېز د هغه رجوع معتبره نه ده او له هغه څخه به حدّ نه ساقطيږي.

**دليل**: د امام شافعي او ابن أبی ليلیٰ دليل دادی چې کله د مُقر په يو وار اقرار کولو سره حد واجب سو، نو بيا به د هغه په انکار او رجوع سره حدّ نه باطليږي، لکه کله چې د ګواهانو په شهادت سره زنا او حدّ ثابت سي، نو بيا

[1] تخريج: رواه الحاكم في المستدرك، رقم الحديث: ۸۰۷۷.

د هغه په انکار سره دا حدّ نه ساقطیږي. او لکه څرنګه چې د مُقر په اقرار سره "حدّ قذف" او "حدّ قصاص" ثابت سي، نو بیا د هغه په انکار سره نه ساقطیږي، همداسي به "حدّ زنا" هم وي چې کله هغه یو وار د مُقر په اقرار سره ثابت سي، نو بیا به نه ساقطیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چې څرنګه په اقرار کي د صدق (رښتیاوالي) اړخ راجح او غالب وي. همداسي په رجوع او انکار کي هم د صدق اړخ غالب وي؛ ځکه چې په رجوع کي هم راجع یک تنها وي. او بل څوک د هغه تکذیب کونکی نه وي، نو کله چې هغه تر اقرار وروسته رجوع او انکار وکړي، نو په یوه معامله کي د اقرار او انکار د جمع کېدلو په وجه په معامله کي شبهه پیدا سي، او حدود په شبهې سره ساقطیږي. نو په همدې وجه موږ د مُقر په رجوع کولو سره د حدّ ساقطېدلو فیصله کړې ده او د هغه رجوع ته مو اعتبار او قبولیت ورکړی دی. او د "حدّ قذف او حدّ قصاص" مسئلې د "حدّ زنا" پر مسئله قیاسول صحیح نه دي. ځکه چې حدّ قذف او حدّ قصاص د بندګانو حق دی، او د هغو په انکار کي مُدّعي مکذّب او دروغجن وي. لېکن حدّ زنا د الله تعالیٰ حق دی، په دې کي نه څوک مُدّعي سته او نه مُکذّب. نو په دې وجه به حدّ قذف او حَدّ قصاص په انکار او رجوع سره نه باطلیږي، لېکن حدّ زنا به په انکار او رجوع سره باطلیږي.

**ویستحبّ للإمام إلخ**: فرمایي: کله چې مُقر د امام یا د قاضي او مفتي مخته د زنا اقرار وکړي. نو هغو ته پکار دي چې مُقر ته د رجوع تلقین ورکړي او د رجوع لاره ورته هواره کړي. او په دې توګه دي څو پوښتني ځني وکړي چې "کېدای سي تا به هغې ته صرف لاس وروړی وي، یا صرف هغه به دي مچ کړې وي او داسي نور". د دې لپاره چې مُقر "هو!" وکړي، او حدّ ختم او ساقط سي، ځکه چې د حضرت ماعز ﷺ سره نبي کریم ﷺ همداسي طریقه اختیار کړې وه.

امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي لیکلي دي چې قاضي ته پکار دي چې مُقر ته داسي هم ووایي چې "کېدای سي هغه ستا ښځه (زوجه) وي، یا ته به د هغې سره وطي بالشبهه کړې وي". ځکه که چیري مُقر په دې صورت کي "هو!" ووایي. نو بیا به هم پر هغه حدّ نه جاري کیږي. او دا قول د معنیٰ په اعتبار سره اول قول ته یعني "لَعَلَّكَ لَمَسْتَهَا أَو قَبَّلْتَهَا" ته زیات نژدې دی، ځکه چې په دې قول کي هم د اول قول په څېر د رجوع تلقین او تأکید سته.



# فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْحَدِّ

## (دا) فصل د حدّ د كيفيت (او طريقې په بيان) كې دى

**تشريح**: مخكې تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د "حدّ" د واجبېدلو بيان وكړى، او اوس د "حدّ" نافذولو بيان كوي، او ښكاره خبره ده چې وجوب له نفاذ څخه مخكې وي، نو په دې وجه صاحب د هدايې د "حدّ" د وجوب مسئلې مخكې بيان كړې دي.

### د رجم كولو (سنګسارولو) طريقه

**وَإِذَا وَجَبَ الْحَدُّ وَكَانَ الزَّانِي مُحْصَنًا** او كله چې حد واجب سي او زاني مُحصن [واده والا] وي **رَجَمَهُ بِالْحِجَارَةِ حَتَّى يَمُوتَ** نو قاضي دې هغه په ډبرو سره رجم كړي تر دې چې هغه مړ سي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ رَجَمَ[1] مَاعِزًا وَقَدْ أُحْصِنَ ځكه چې نبي كريم ﷺ حضرت ماعز رضي الله عنه په داسې حالت كې رجم كړى وو چې هغه واده والا وو وَقَالَ فِي الْحَدِيثِ الْمَعْرُوفِ[2]: وَزِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ او په مشهور حديث كې يې فرمايلي دي: او تر محصن كېدلو وروسته زنا [رجم واجبوي] وَعَلَى هٰذَا إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ او پر همدې د صحابه وو اجماع ده قَالَ: **وَيُخْرِجُهُ إِلَى أَرْضٍ فَضَاءٍ** فرمايي: چې إمام به زاني د پراخې ځمكې [ميدان] وطرف ته باسي **وَيَبْتَدِئُ الشُّهُودُ بِرَجْمِهِ ثُمَّ الْإِمَامُ ثُمَّ النَّاسُ** او د هغه په رجم [سنسكسارولو] سره به ګواهان شروع كوي بيا إمام [او] بيا خلك كَذَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ همداسې له حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوي دي وَلِأَنَّ الشَّاهِدَ قَدْ يَتَجَاسَرُ عَلَى الْأَدَاءِ او ځكه چې كله نا كله ګواهان [د دروغجنې ګواهۍ] پر اداء جرأت [او بې باكي] وكړي كولو ثُمَّ يَسْتَعْظِمُ الْمُبَاشَرَةَ فَيَرْجِعُ بيا په خپل لاس رجم كول غټ [او خطرناك] وګڼي او رجوع وكړي [يعني كله چې اول ګواهانو ته د رجم شروع كولو حكم وسي، نو كله نا كله د دوى لپاره دا خبره غټه او درنه ښكاره سي چې په خپله د رجم كار وكړي او په خپلو لاسو مجرم (مشهود عليه) ووژني، نو كېداى سي چې رجوع وكړي، او د ګواه په رجوع كولو سره حدّ

---

[1] تخريج: قدمه تخريجه.

[2] تخريج: رواه الترمذى فى الفتن باب:١، رقم الحديث:٢١٥٨.

ساقطيږي، او په حديث كې ذكر سوي دي چې څومره ستاسو په وس كې وي، تاسي حدّ ساقطوئ!. او د ګواهانو د رجم په شروع كولو كې د حدّ ساقطېدلو لپاره څه حيله او چل جوړېدای سي، نو ځكه به په دوى شروع كيږي] فَكَانَ فِي بِدَايَتِهِ احْتِيَالٌ لِلدَّرْءِ نو د ګواهانو د رجم په شروع كولو كې به د حدّ دفع كولو [او ساقطولو] ته حيله كېدای سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تُشْتَرَطُ بِدَايَتِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د ګواهانو شروع كول شرط نه دي اعْتِبَارًا بِالْجَلْدِ د دُرې پر وهلو باندې په قياس كولو سره قُلْنَا: كُلُّ أَحَدٍ لَا يُحْسِنُ الْجَلْدَ موږ وايو: چې هر كس ښه دُره نه سي استعمالولای [يعني هر كس په ښه توګه په دُره سره وهل نه سي كولای] فَرُبَّمَا يَقَعُ مُهْلِكًا نو كېدای سي چې د دُرې وهل وژونكي ثابت سي وَالْإِهْلَاكُ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ حالانكې [د دُرې په حدّ كې د مجرم] وژل واجب نه دي وَلَا كَذٰلِكَ الرَّجْمُ او رجم داسي نه دى لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ ځكه چې رجم خو هلاكول [او وژل] دي.

**اللغات:** ﴿رَجَمَ﴾ د نصر ماضي ده: رجم كول، سنګسارول، مجرم په ډبرو وژل. ﴿مُحْصِن﴾ د افعال اسم فاعل دى، د دې لفظ خپله معنیٰ ده: پاك لمنى سړى، مراد څني هغه كس دى چې واده يې كړى وي او ښځه لري (يعني واده والا سړى). همدارنګه هغه به عاقل، بالغ، آزاد او مسلمان وي. په مُحصن سړي كي دا ټوله شيان شرط دى چې وروسته به د دې بحث وسي، ﴿أَرْض فَضَاء﴾ خلاصه ځمكه، پراخه ځمكه (پراخ ډګر)، ميدان. ﴿يَتَجَاسَرُ﴾ د تفاعل مضارع ده: جرأت كول، زړور تيار كول، بې پروايي او بې باكي كول. ﴿يَسْتَعْظِمُ﴾ د استفعال مضارع ده: غټ ګڼل (يو كار پر ځان درون ګڼل). پريو شي د غټ خيال كول. ﴿جَلْد﴾ په دُره سره وهل. ﴿إِتْلَاف﴾ ضايع كول (بربادول). ختمول. هلاكول (وژل).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې كله په ګواهي يا اقرار سره پر زاني باندې زنا ثابته سي، او قاضي د هغه په حق كي د رجم (سنګسارولو) فيصله وكړي او زاني مُحصن هم وي يعني واده والا وي. نو قاضي دي هغه په ډبرو سره رجم وكړي، او تر هغه وخته پوري دي رجم جاري وساتي تر څو چې هغه مړ سي: ځكه چې په همدې حالت كي نبي كريم ﷺ حضرت ماعز رجم كړى وو. او په يو بل حديث كي (كوم چې له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت سوى دى) هم دغه حكم سوى دى چې كه زاني مُحصن وي، نو هغه به رجم كيږي، په ابو داؤد شريف كي هغه حديث داسي ذكر دى "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدٰى ثَلَاثٍ: رَجُلٌ زَنٰى بَعْدَ إِحْصَانٍ فَإِنَّهُ يُرْجَمُ...إلخ". يعني په درې وجهو سره د

مسلمان وينه بيول روا دي، چې له هغو څخه يوه وجه د مُحصن سړي زنا كول دي. نو هغه به رجم كيږي. (بنايه ج: ۶، ص: ۲۰۵)، او د مُحصن سړي په رجم كولو باندي د صحابه وو إجماع هم سوي ده.

**قال ويُخرجه إلخ**: فرمايي چي كله إمام د زاني د رجم كولو اراده وكړي، نو إمام دي هغه د ښار او آبادۍ څخه دباندي پراخ ميدان ته وباسي، او په ګواهانو سره دي د رجم شروع وكړي. بيا دي إمام په خپله هغه رجم كړي، او تر دې وروسته دي په خلګو سره هغه رجم كړي. همدا ترتيب له حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوی دی، د دې عقلي دليل دا دی چي كله نا كله ګواهان د درواغو په ګواهۍ سره پريو چا زنا او حدّ واجب كړي، لېكن كله چي د رجم او سنګسارولو منظر ووينې او په دوی د رجم شروع وسي نو دوی وبيريږي او له ګواهۍ څخه رجوع وكړي، او حكم همدا دی چي حتى الإمكان به حدّ دفع كيږي، نو ځكه د حدّ دفع كولو لپاره د حيلې په توګه له ګواهانو څخه د رجم شروع كول زموږ په نېز شرط دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له ګواهانو څخه شروع كول شرط نه دی، لكه كله چي غير مُحصن (نا واده والا سړی) زنا وكړي او په ګواهۍ سره پر هغه حدّ واجب سي، نو په هغه كي هم له ګواهانو څخه د دُرې وهلو (جَلد) شروع كول شرط نه دي، همداسي به په رجم كي هم له ګواهانو څخه شروع كول شرط نه وي. ګواكي امام شافعي رَحِمَهُ الله رجم پر جَلد باندي قياس كړی دی. لېكن زموږ له طرفه هغه ته جواب دا دی چي هر څوک په ښه توګه دُره نه سي استعمالولای (بلكي دا خو د جلاد او دُره باز كار دی)، نو كېدای سي چي ګواه نا ولده وي او مجرم ته به زياتي او سختي دُرې ور كړي چي د هغه په وجه به مُجرم مړ سي، حالانكي په دُرو وهلو (جَلد) كي د مجرم وژل مقصود نه دي، د دې په خلاف په رجم كي د زاني وژل مقصود دي، نو كه د رجم په صورت كي ګواه ناولده او بې تجربې وي، او په ډېر زور سره پر مجرم د ډبرو باران وكړي، نو هم څه پروا نه لري، لهذا پر جَلد باندي رجم قياسول صحيح نه دي، ځكه چي په دواړو كي فرق سته.

## له رجم څخه د ګواهانو د انكار كولو حكم

قَالَ: **فَإِنْ اِمْتَنَعَ الشُّهُودُ مِنَ الِابْتِدَاءِ** فرمايي: كه چيري ګواهان [د رجم] له شروع څخه منع سي **سَقَطَ الْحَدُّ** نو حدّ ساقطيږي **لِأَنَّهُ دَلَالَةُ الرُّجُوعِ** ځكه چي "منع كېدل" د رجوع كولو دليل دی **وَكَذَا إِذَا مَاتُوا أَوْ غَابُوا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** او همدارنګه په ظاهر روايت كي [حد ساقطيږي] كله چي ګواهان مړه سي يا غائب سي **لِفَوَاتِ الشَّرْطِ** ځكه چي شرط فوت سو **وَإِنْ كَانَ مُقِرًّا ابْتَدَأَ الْإِمَامُ ثُمَّ النَّاسُ** او كه زاني [په خپله] اقرار كونكی وي نو د رجم شروع دي امام وكړي [او] بيا نور خلک **كَذَا رُوِيَ عَنْ**

الْغَامِدِيَّةَ [1] وَرَمَى رَسُولُ اللهِ ﷺ ځخه نقل سوي دي عَلِيٌّ رضي الله عنه همداسي له حضرت علي رضي الله عنه بِحَصَاةٍ مِثْلِ الْحِمَّصَةِ او غامديه ښځه تر ټولو مخکي نبي كريم ﷺ د نخود [چڼي] په څير په کوچني كاڼي سره وويشتله وَكَانَتْ قَدْ اعْتَرَفَتْ بِالزِّنَا او هغې د زنا اقرار کړی وو وَيُغَسَّلُ وَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ او رجم کړی سوي کس [مرجوم] ته به غسل ورکول کيږي او پر هغه به د جنازې لمونځ کيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام فِي مَاعِزٍ: اصْنَعُوا بِهِ كَمَا تَصْنَعُونَ بِمَوْتَاكُمْ [2] ځکه چي نبي كريم ﷺ د حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه په هکله وفرمايل: تاسي د ده سره هغه معامله [او چلند] وکړئ! کوم چي يې تاسي د خپلو مړو سره کوی وَلِأَنَّهُ قُتِلَ بِحَقٍّ او ځکه چي مرجوم د يو حق په وجه سره وژول سوی دی فَلَا يَسْقُطُ الْغُسْلُ نو ځکه به [له هغه ځخه] غسل نه ساقطيږي كَالْمَقْتُولِ قِصَاصًا لکه په قصاص کي چي د وژول سوي کس [ځخه غسل نه ساقطيږي] وَصَلَّى النَّبِيُّ ﷺ [3] عَلَى الْغَامِدِيَّةِ بَعْدَمَا رُجِمَتْ او د غامديه تر رجم کېدلو وروسته نبي ﷺ پر هغې د جنازې لمونځ وکړی.

**اللغات**: ﴿إِمْتَنَعَ﴾ دافتعال ماضي ده: منع کېدل، راګرځېدل. ﴿حَصَاةٌ﴾ شګه، کوچنی ډبره (کوچنی کاڼی). ﴿حِمَّصَة﴾ يوه دانه نخود، چڼه (ډيرو ته حِمَّص) وايي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري ګواهان انکار وکړي چي مور په رجم شروع نه کوو. نو له مشهود عليه ځخه حد ساقطيږي، ځکه چي انکار کول د رجوع علامه (نښه) ده. او په ظاهر روايت کي د ګواهانو د مرګ او د هغو د غائبېدلو هم دغه حکم دی.

که چيري پر زاني په خپل اقرار سره حدّ واجب سوی وي نو په دې وخت کي به إمام په رجم شروع کوي، بيا به خلک رجم شروع کوي؛ ځکه کله چي غامديه نومي ښځي اقرار وکړی، نو تر ټولو مخکي نبي كريم ﷺ په رجم شروع وکړه او هغه يې په کوچنۍ ډبره وويشتله. او له حضرت علي رضي الله عنه ځخه هم دغه ترتيب نقل سوی دی. او سنګسار کړی سوی سړي او ښځي (مرجوم او مرجومه) ته به هم د عامو مړو په څير غسل او کفن ورکول کيږي، او پر دوی به د جنازې لمونځ کيږي. پاته عبارت واضح دی.

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد فى الحدود، رقم الحديث:۴۴۴۳.

[2] تخريج: رواه ابن أبي شيبة فى المصنف، رقم الحديث:۱۱۱۴.

[3] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث:۴۴۴۰. والنسائي فى المجتبى، رقم الحديث:۱۸۴۹.

ساقطيږي، او په حديث کي ذکر سوي دي چي ځومره ستاسو په وس کي وي، تاسي حدّ ساقطوئ!، او د ګواهانو د رجم په شروع کولو کي د حدّ ساقطېدلو لپاره څه حيله او چل جوړېداى سي، نو ځکه به په دوى شروع کيږي ا فَكَانَ فِي بِدَايَتِهِ احْتِيَالٌ لِلدَّرْءِ نو د ګواهانو د رجم په شروع کولو کي به د حدّ دفع کولو [او ساقطولو] ته حيله کېداى سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تُشْتَرَطُ بِدَايَتِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ګواهانو شروع کول شرط نه دي اعْتِبَارًا بِالْجَلْدِ د دُرې پر وهلو باندي په قياس کولو سره قُلْنَا: كُلُّ أَحَدٍ لَا يُحْسِنُ الْجَلْدَ موږ وايو: چي هر کس ښه دُره نه سي استعمالولاى [يعني هر کس په ښه توګه په دُره سره وهل نه سي کولاى] فَرُبَّمَا يَقَعُ مُهْلِكًا نو کېداى سي چي د دُرې د وهل وژونکي ثابت سي وَالْإِهْلَاكُ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ حالانکي [د دُرې په حدّ کي د مجرم] وژل واجب نه دي وَلَا كَذٰلِكَ الرَّجْمُ او رجم داسي نه دي لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ ځکه چي رجم خو هلاکول [او وژل] دي.

**اللغات:** ﴿رَجَمَ﴾ د نصر ماضي ده: رجم کول، سنګسارول، مجرم په ډبرو وژل. ﴿مُحْصِن﴾ د افعال اسم فاعل دى، د دې لفظ خپله معنىٰ ده: پاک لمنى سړى، مراد ځني هغه کس دى چي واده يې کړى وي او ښځه لري (يعني واده والا سړى)، همدارنګه هغه به عاقل، بالغ، آزاد او مسلمان وي. په مُحصن سړي کي دا ټوله شيان شرط دى چي وروسته به د دې بحث وسي، ﴿أَرْض فَضَاء﴾ خلاصه ځمکه، پراخه ځمکه (پراخ ډګر)، ميدان. ﴿يَتَجَاسَرُ﴾ د تفاعل مضارع ده: جرأت کول، زړور تيار کول، بې پروايي او بې باکي کول. ﴿يَسْتَعْظِم﴾ د استفعال مضارع ده: غټ ګڼل (يو کار پر ځان درون ګڼل)، پر يو شي د غټ خيال کول. ﴿جَلْد﴾ په دُره سره وهل. ﴿إِتْلَاف﴾ ضايع کول (بربادول)، ختمول، هلاکول (وژل).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله په ګواهي يا اقرار سره پر زاني باندي زنا ثابته سي، او قاضي د هغه په حق کي د رجم (سنګسارولو) فيصله وکړي او زاني مُحصن هم وي يعني واده والا وي، نو قاضي دي هغه په ډبرو سره رجم وکړي، او تر هغه وخته پوري دي رجم جاري وساتي تر څو چي هغه مړ سي: ځکه چي په همدې حالت کي نبي کريم ﷺ حضرت ماعز رجم کړى وو، او په يو بل حديث کي (کوم چي له حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت سوى دى) هم دغه حکم سوى دى چي که زاني مُحصن وي، نو هغه به رجم کيږي، په ابو داؤد شريف کي هغه حديث داسي ذکر دى "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدٰى ثَلَاثٍ: رَجُلٌ زَنٰى بَعْدَ إِحْصَانٍ فَإِنَّهُ يُرْجَمُ...إلخ"، يعني په درې وجهو سره د

مسلمان وېنه بيـول روا دي، چي له هغو شخه يوه وجه د مُحصن سړي زنا كول دي. نو هغه به رجم كيږي. (بنايه ج:۶، ص:۲۰۵)، او د مُحصن سړي په رجم كولو باندي د صحابه وو إجماع هم سوی ده.

**قال ويُخرجه إلخ**: فرمايي چي كله إمام د زاني د رجم كولو اراده وكړي، نو إمام دي هغه د ښار او آبادۍ شخه دباندي پراخ ميدان ته وباسي، او په ګواهانو سره دي د رجم شروع وكړي. بيا دي إمام په خپله هغه رجم كړي، او تر دې وروسته دي په خلكو سره هغه رجم كړي. همدا ترتيب له حضرت علي ﷺ شخه نقل سوی دی. د دې عقلي دليل دا دی چي كله نا كله ګواهان د درواغو په ګواهۍ سره پر يو چا زنا او حدّ واجب كړي، لېكن كله چي د رجم او سنګسارولو منظر ووينې او په دوی د رجم شروع وسي نو دوی وبيرېږي او له ګواهۍ شخه رجوع وكړي. او حكم همدا دی چي حتى الإمكان به حدّ دفع كيږي. نو ځكه د حدّ دفع كولو لپاره د حيلې په توګه له ګواهانو شخه د رجم شروع كول زموږ په نېز شرط دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له ګواهانو شخه شروع كول شرط نه دی. لكه كله چي غيرِ مُحصن (نا واده والا سړی) زنا وكړي او په ګواهۍ سره پر هغه حدّ واجب سي، نو په هغه كي هم له ګواهانو شخه د دُرې وهلو (جَلد) شروع كول شرط نه دي. همداسي به په رجم كي هم له ګواهانو شخه شروع كول شرط نه وي. ګواكي امام شافعي رَحِمَهُ الله رجم پر جَلد باندي قياس كړی دی. لېكن زموږ له طرفه هغه ته جواب دا دی چي هر څوک په ښه توګه دُره نه سي استعمالولای (بلكي دا خو د جلاد او دُره باز كار دی)، نو كېدای سي چي ګواه نا ولده وي او مجرم ته به زياتي او سختي دُرې وركړي چي د هغه په وجه به مُجرم مړ سي، حالانكي په دُرو وهلو (جَلد) كي د مجرم وژل مقصود نه دي. د دې په خلاف په رجم كي د زاني وژل مقصود دي، نو كه د رجم په صورت كي ګواه ناولده او بې تجربې وي، او په ډېر زور سره پر مجرم د ډبرو باران وكړي، نو هم څه پروا نه لري. لهذا پر جَلد باندي رجم قياسول صحيح نه دي، ځكه چي په دواړو كي فرق سته.

## له رجم شخه د ګواهانو د انكار كولو حكم

قَالَ: **فَإِنْ اِمْتَنَعَ الشُّهُودُ مِنَ الاِبْتِدَاءِ** فرمايي: كه چيري ګواهان [د رجم] له شروع شخه منع سي **سَقَطَ الْحَدُّ** نو حدّ ساقطيږي **لِأَنَّهُ دَلَالَةُ الرُّجُوعِ** ځكه چي "منع كېدل" د رجوع كولو دليل دی **وَكَذَا إِذَا مَاتُوا أَوْ غَابُوا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ** او همدارنګه په ظاهر روايت كي [حد ساقطيږي] كله چي ګواهان مړه سي يا غائب سي **لِفَوَاتِ الشَّرْطِ** ځكه چي شرط فوت سو **وَإِنْ كَانَ مُقِرًّا اِبْتَدَأَ الْإِمَامُ ثُمَّ النَّاسُ** او كه زاني [په خپله] اقرار كونكی وي نو د رجم شروع دي امام وكړي [او] بيا نور خلك **كَذَا رُوِيَ عَنْ**

الْغَامِدِيَّةَ ❶ وَرَمٰى رَسُولُ اللهِ ﷺ ... عَلِيٌّ رضي الله عنه همداسي له حضرت علي ﷺ څخه نقل سوي دي بِحَصَاةٍ مِثْلِ الْحِمَّصَةِ او غامديه ښځه تر ټولو مخکي نبي كريم ﷺ د نخود [چڼې] په څير په كوچني كاڼي سره وويشتله وَكَانَتْ قَدْ اعْتَرَفَتْ بِالزِّنَا او هغې د زنا اقرار كړى وو وَيُغَسَّلُ وَيُكَفَّنُ وَيُصَلّٰى عَلَيْهِ او رجم كړى سوي كس [مرجوم] ته به غسل وركول كيږي او پر هغه به د جنازې لمونځ كيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام فِي مَاعِزٍ: اصْنَعُوا بِهِ كَمَا تَصْنَعُونَ بِمَوْتَاكُمْ ❷ ځكه چي نبي كريم ﷺ د حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه په هكله وفرمايل: تاسي د ده سره هغه معامله [او چلند] وكړئ! كوم چي يې تاسي د خپلو مړو سره كوئ وَلِأَنَّهُ قُتِلَ بِحَقٍّ او ځكه چي مرجوم د يو حق په وجه سره وژول سوى دى فَلَا يَسْقُطُ الْغُسْلُ نو ځكه به [له هغه څخه] غسل نه ساقطيږي كَالْمَقْتُولِ قِصَاصًا لكه په قصاص كي چي د وژول سوي كس [څخه غسل نه ساقطيږي] وَصَلَّى النَّبِيُّ ﷺ ❸ عَلَى الْغَامِدِيَّةِ بَعْدَمَا رُجِمَتْ او د غامديه تر رجم كېدلو وروسته نبي ﷺ پر هغې د جنازې لمونځ وكړى.

**اللغات:** ﴿إِمْتَنَعَ﴾ د افتعال ماضي ده: منع كېدل، راګرځېدل. ﴿حَصَاةٌ﴾ شګه، كوچنۍ ډبره (كوچنى كاڼى). ﴿حِمَّصَةٌ﴾ يوه دانه نخود، چڼه (ډېرو ته حِمَّص) وايي.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه چيري ګواهان انكار وكړي چي مونږ په رجم شروع نه كوو، نو له مشهود عليه څخه حد ساقطيږي، ځكه چي انكار كول د رجوع علامه (نښه) ده، او په ظاهر روايت كي د ګواهانو د مرګ او د هغو د غائبېدلو هم دغه حكم دى.

كه چيري پر زاني په خپل اقرار سره حدّ واجب سوى وي نو په دې وخت كي به امام په رجم شروع كوي، بيا به خلګ رجم شروع كوي؛ ځكه كله چي غامديه نومي ښځي اقرار وكړى، نو تر ټولو مخكي نبي كريم ﷺ په رجم شروع وكړه او هغه يې په كوچنۍ ډبره وويشتله، او له حضرت علي رضي الله عنه څخه هم دغه ترتيب نقل سوى دى. او سنګسار كړى سوى سړي او ښځي (مرجوم او مرجومه) ته به هم د عامو مړو په څير غسل او كفن وركول كيږي، او پر دوى به د جنازې لمونځ كيږي. پاته عبارت واضح دى.

❶ تخريج: رواه ابو داؤد في الحدود، رقم الحديث:٤٤٤٣.
❷ تخريج: رواه ابن أبي شيبة في المصنف، رقم الحديث:١١١٢.
❸ تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث:٤٤٤٠. والنسائي في المجتبى، رقم الحديث:١٨٤٩.

## د غيرِ مُحصن زاني د حدّ طريقه

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُحْصَنًا وَكَانَ حُرًّا او كه چيري زاني واده والا نه وي او آزاد وي فَحَدُّهُ مِائَةُ جَلْدَةٍ نو د هغه حدّ [سزا] سل دُرې دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ [النور: ٢] ځكه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: په زناكاره سړي او ښځه كي هريو تاسي سل [۱۰۰] دُرې ووهئ! إِلَّا أَنَّهُ انْتَسَخَ فِي حَقِّ الْمُحْصَنِ فَبَقِيَ فِي حَقِّ غَيْرِهِ مَعْمُولًا بِهِ مكر د مُحصن په حق كي دا حكم منسوخ سو نو د غيرِ محصن په حق كي پر آيت عمل باقي پاته سو يَأْمُرُ الْإِمَامُ بِضَرْبِهِ بِسَوْطٍ لَا ثَمَرَةَ لَهُ ضَرْبًا مُتَوَسِّطًا [او] امام به [دُره باز ته] په داسي دُره سره د متوسّطه وهلو حكم كوي چي هغه غوټه نه لري لِأَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه [1] لَمَّا أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ الْحَدَّ كَسَرَ ثَمَرَتَهُ ځكه حضرت علي رضي الله عنه چي كله د حدّ جاري كولو اراده وكړه نو د خپلي دُرې غوټه يې ماته كړه وَالْمُتَوَسِّطُ بَيْنَ الْمُبَرِّحِ وَغَيْرِ الْمُؤْلِمِ او متوسط وهل دا دي چي د سختو او د نرمو وهلو په مينځ كي وي لِإِفْضَاءِ الْأَوَّلِ إِلَى الْهَلَاكِ وَخُلُوِّ الثَّانِي عَنِ الْمَقْصُودِ وَهُوَ الْاِنْزِجَارُ ځكه چي اول د هلاكېدلو [مړ كېدلو] سبب جوړېږي او دويم له مقصود څخه خالي دي چي هغه [د مجرم] منع كېدل دي [يعني كه مجرم نرم ووهل سي. نو د حدّ مقصود به حاصل نه سي. او د حدّ مقصود دا دی چي د آينده لپاره مجرم له داسي كار (زنا) څخه منع سي] وَتُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ او له مجرم څخه به جامې كښل كيږي مَعْنَاهُ دُونَ الْإِزَارِ يعني د لنګ [او پرتوګ] څخه بغير نوري جامې [به ځني كښل كيږي] لِأَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَأْمُرُ بِالتَّجْرِيدِ فِي الْحُدُودِ ځكه چي حضرت علي به په حدّونو كي د جامې كښلو حكم كوى وَلِأَنَّ التَّجْرِيدَ أَبْلَغُ فِي إِيصَالِ الْأَلَمِ إِلَيْهِ او ځكه چي [له مجرم څخه] جامې كښل هغه ته د درد په رسولو كي زيات مؤثر دي وَهَذَا الْحَدُّ مَبْنَاهُ عَلَى الشِّدَّةِ فِي الضَّرْبِ او د دغه حدّ مدار د وهلو پر سختي دی [چي مجرم سخت ووهل سي، د دې لپاره چي هغه په آينده كي له زنا څخه منع سي] وَفِي نَزْعِ الْإِزَارِ كَشْفُ الْعَوْرَةِ او د لنګ په كښلو كي د عورت ښكاره كېدل سته فَلْيَتَوَقَّاهُ نو له دې څخه به ځان ساتي وَيُفَرِّقُ الضَّرْبَ عَلَى أَعْضَائِهِ او وهل به جلا

---

[1] تخريج: رواه المالك فى الموطأ مرفوعاً، رقم الحديث: ۱۵۶۰.

کیږي [يعني تقسیمیږي] د هغه پر اندامونو [يعني پر متفرقه او جلا. جلا اندامونو به وهل کیږي] لِأَنَّ الْجَمْعَ فِي عُضْوٍ وَاحِدٍ قَدْ يُفْضِيْ إِلَى التَّلَفِ ځکه چي [فقط] پر یوه اندام وهل کله. کله د مرګ سبب جوړیږي وَالْحَدُّ زَاجِرٌ لَا مُتْلِفٌ او دغه حد منع کونکی [او سزا ورکونکی] دی. هلاکونکی نه دی.

**اللغات:** ﴿جَلْدَة﴾ په دُره سره وهل. ﴿سَوْط﴾ دُره، غمچینه (قمچینه). له چمړې څخه جوړه سوې دوهلو آله (د څرمني چلاخه). ﴿مُبَرِّح﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: بَرَّحَ يُبَرِّحُ تَبْرِيْحًا: سخت تکلیف ورکول. ﴿مُؤْلِم﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: دردونکی. غَيْر مُؤْلِم: نا دردونکي. نرم. کرار. ﴿إِفْضَاء﴾ د افعال مصدر دی: رسول. سبب جوړېدل. ﴿اِنْزِجَار﴾ د انفعال مصدر دی: منع کېدل (راګرځېدل). ﴿تَجْرِيْد﴾ د تفعیل مصدر دی: لڅول (بربنډول). له جامو (کپړو) څخه خالي کول. ﴿فَلْيَتَوَقَّاهُ﴾ د تفعّل له باب څخه د أمرِ غائب صیغه ده: ځان ساتل. احتیاط کول. ﴿يُفَرَّق﴾ د تفعیل مضارع مجهوله ده: جلاکول. متفرّق کول. بېلول.

**تشریح:** مخکي دا خبره ذکر سوه چي رجم (سنګسارول) د هغه زاني لپاره حدّ او سزا ده کوم چي محصن وي. او که چیري زاني غیرِ محصن وي او تر اوسه يې واده کړی نه وي. نو د هغه حدّ سل دُرې دي. دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: "الزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ... إلخ". په دې آیت سره په دې توګه دلیل نیول کیږي چي دا حکم د مُحصن کس په حق کي نه دی. بلکي د مُحصن په حق کي خو رجم دی. نو ښکاره خبره ده چي کله د محصن په حق کي د دې آیت حکم ساقط دی نو د غیرِ محصن په حق کي به دا حکم ثابتیږي.

اودُره بازه (دُره وهونکي سړي) ته به د إمام له طرفه دا حکم کیږي چي هغه به دا مجرم (زاني) په غوټه داره دُره سره نه وهي (يعني داسي دُره به نه استعمالوي چي هغه غوټه لري کوم چي د مرګ سبب جوړیږي). او هغه ته به حکم کوي چي په متوسّطه (درمیانه) وهلو سره مجرم ووهي: ځکه چي همدا د حضرت ﷺ علي طریقه وه. او د متوسّطه وهلو مطلب دا دی چي نه به دومره په زوره وهل کوي چي مجرم هلاک سي او نه به دومره کرار وهل کوي چي مجرم بالکل په خبر نه سي. ځکه چي په دغه حدّ کي نه د هغه وژل مقصود دي او نه پر هغه ناز او شفقت کول مطلوب دي. بلکي د شریعت مقصد دا دی چي هغه دویم وار بیا داسي ناوړه حرکت نه وکړي.

**وينزع عنه ثيابه إلخ:** فرمایي چي د وهلو په وخت کي به له إزار او پرتوګ څخه بغیر نوري جامې له زاني څخه کښل کیږي. إزار او پرتوګ به نه ځني لیري کیږي. ځکه چي په دې سره د هغه عورت

ښکاره کیږي کوم شي په شریعت کي حرام دي. او د نورو جامو په لیري کولو کي عورت هم نه ښکاره کیږي او وهل به پر مجرم ښه أثر هم کوي چي په هر دُره سره به هغه ته د مور نوم په یاد ورځي. او همدا طریقه له حضرت علي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوې ده.

او دُره باز ته پکار دي چي زاني پر جلا، جلا ځایونو او پر متفرّقه اندامونو ووهي. او پر یوه ځای دي ځان نه سترې کوي، ځکه چي کله نا کله له دې څخه د هلاکت او مرگ خطره پیښیږي. حالانکي په دې حدّ کي هلاکت مقصود نه دی. بلکي د وهلو شدّت او مجرم ته سزا ورکول مطلوب دي.

## د دُرې وهلو په دوران کي به کوم اندامونه نه وهل کیږي؟

قَالَ: إِلَّا رَأْسَهُ وَوَجْهَهُ وَفَرْجَهُ فرمایي: مگر زاني به پر سر او مخ او فرج باندي نه وهل کیږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] لِلَّذِي أَمَرَهُ بِضَرْبِ الْحَدِّ: اتَّقِ الْوَجْهَ وَالْمَذَاكِيرَ ځکه نبي ﷺ چي کوم کس ته د حدّ جاري کولو حکم کړی وو، هغه ته یې فرمایلي وو: چي له مخ او جنسي اندامونو څخه ځان ساته! ایعني پر مخ او فرج باندي مجرم مه وهه! وَلِأَنَّ الْفَرْجَ مَقْتَلٌ وَالرَّأْسَ مَجْمَعُ الْحَوَاسِّ او ځکه چي فرج د وژلو ځای دی ایعني داسي ځای دی چي د هغه له وهلو څخه انسان مړ کیږي! او سر د ټولو حواسو د جمع کېدلو ځای دی ایعني حواسِ خمسه ټوله په سر کي موجود دي! وَكَذَا الْوَجْهُ وَهُوَ مَجْمَعُ الْمَحَاسِنِ أَيْضًا او همدارنگه مخ د ښکلاوو د جمع کېدلو ځای دی ایعني انسان چي په کومو اندامونو سره ښایسته دی. هغه په مخ کي دي: یعني سترگي. پزه. غوږونه. خوله او داسي نور! فَلَا يُؤْمَنُ فَوَاتُ شَيْءٍ مِنْهَا بِالضَّرْبِ نو د وهلو په وجه په دې شیانو کي د یو شي فوتېدل ناممکن نه دي وَذَلِكَ إِهْلَاكٌ مَعْنًى او دا د معنیٰ په اعتبار سر هلاکول دي فَلَا يُشْرَعُ حَدًّا لهذا دا به د حد په توگه مشروع نه وي ایعني لهذا پر دې اندامونو به حدّ جاري کول مشروع نه وي! وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ [2] يُضْرَبُ الرَّأْسُ أَيْضًا امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي سر به هم ! په دُره سره ! وهل کیږي رَجَعَ إِلَيْهِ د دې قول وطرف ته هغه رجوع کړې ده وَإِنَّمَا يُضْرَبُ سَوْطًا لِقَوْلِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: اضْرِبُوا * الرَّأْسَ فَإِنَّ فِيهِ شَيْطَانًا او

[1] تخريج: رواه ابن أبي شيبة في المصنف، رقم الحديث:۲۸۶۷۵.

[2] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۵، ص:۱۹)، وكذا في الدر المختار (ج:۳، ص:۱۶۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۴۴].

* تخريج: رواه ابن أبي شيبة في المصنف، رقم الحديث: ۲۹۰۳۳.

په دُرسره به ځکه وهل کيږي چې ابو بکر رضي الله عنه فرمايلي دي: چې ادا مجرم ا پر سر اهم ا ووهئ. ځکه چې اد ده ا په سر کې شيطان دی ايعني پر سر يې هم څو دُرې لګاو کړئ چې دماغ يې برابر سي او شيطاني خواهشات يې له دماغ څخه ووځي ا قُلْنَا: تَأْوِيلُهُ أَنَّهُ قَالَ ذٰلِكَ فِيمَنْ أُبِيحَ قَتْلُهُ موږ وايو: چې د دې تأويل دا دی چې حضرت ابو بکر رضي الله عنه دا قول د هغه کس په هکله ويلی وو چې د هغه وژل مباح ا روا ا وو وَيُقَالُ: إِنَّهُ وَرَدَ فِي حَرْبِيٍّ كَانَ مِنْ دُعَاةِ الْكَفَرَةِ او ادا هم ا ويل سوي دي: چې دا قول د هغه حربي په هکله وو کوم چې د کافرانو داعي ا مُبلغ ا وو وَالْإِهْلَاكُ فِيهِ مُسْتَحَقٌّ او د هغه وژل واجب وو ا يا د دې جملې معنىٰ به دا وي: چې د کفري دعوت چلولو په وجه (د کافر) وژل واجب دي. او هغه د وژلو حقداره دی ا وَيُضْرَبُ فِي الْحُدُودِ كُلِّهَا قَائِمًا غَيْرَ مَمْدُودٍ او په ټولو حدونو کې به زاني په ولاړه وهل کيږي. نه په پروتي سره ايعني په ټولو حدونو کې به مجرم درول کيږي. او نه به پرې ايستل کيږي ا لِقَوْلِ عَلِيٍّ رضي الله عنه [3]: يُضْرَبُ الرِّجَالُ فِي الْحُدُودِ قِيَامًا وَالنِّسَاءُ قُعُودًا ځکه چې حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي دي: چې په حدونو کې به خلک په ولاړې وهل کيږي او ښځې به په ناستې وهل کيږي وَلِأَنَّ مَبْنَى إِقَامَةِ الْحَدِّ عَلَى التَّشْهِيرِ او ځکه چې د حدّ جاري کولو دار ومدار پر مشهورولو دی وَالْقِيَامُ أَبْلَغُ فِيهِ او درول په دې هکله زيات رسونکي ا او مفيد ا دي ثُمَّ قَوْلُهُ: غَيْرَ مَمْدُودٍ فَقَدْ قِيلَ: الْمَدُّ أَنْ يُلْقَى عَلَى الْأَرْضِ وَيُمَدَّ كَمَا يُفْعَلُ فِي زَمَانِنَا بيا د امام قدوري رحمه الله دا قول "غَيْرَ مَمْدُودٍ" نو اد دې په هکله ا يو قول دا دی: چې مجرم پر ځمکه پرې ايستل سي او ا پر ځمکه ا کش کړی سي لکه څرنګه چې زموږ په زمانه داسې کيږي انو امام قدوري فرمايي چې مجرم به داسې نه وهل کيږي ا وَقِيلَ: أَنْ يَمُدَّ السَّوْطَ فَيَرْفَعَهُ الضَّارِبُ فَوْقَ رَأْسِهِ او بل قول دا دی: چې وهونکی ادُره باز ا خپله دُره کش کړي او تر خپل سر يې پورته کړي ا او په زوره مجرم په ووهي ا وَقِيلَ: أَنْ يَمُدَّهُ بَعْدَ الضَّرْبِ او بل قول دا دی: چې تر وهلو وروسته دُره اد مجرم پر بدن ا کش کړي وَذٰلِكَ كُلُّهُ لَا يُفْعَلُ او دا ټوله کارونه به نه کوي لِأَنَّهُ زِيَادَةٌ عَلَى الْمُسْتَحَقِّ ځکه چې دا پر واجب سوي وهلو زياتوب کول دي ايعني په شريعت کې چې مجرم (غيرِ محصن زاني) د څومره وهلو مستحق دی. دا پر هغه زياتوب کول دي ا

---

[3] تخريج: رواه البيهقي في السنن الكبرىٰ رقم الحديث:۱۸۰۳۷

**اللغات**: ﴿اِتَّقِ﴾ د افتعال له باب څخه د واحد متكلم امرِ حاضر صيغه ده: پرېز كول. ځان ساتل. ﴿مَذَاكِيْر﴾ جنسي غړي، جنسي اندامونه. ﴿مَقْتَل﴾ د نصر له باب څخه د اسمِ ظرف صيغه ده: د قتل كېدلو ځاى. ﴿مَجْمَع﴾ د فتح له باب څخه د اسمِ ظرف صيغه ده: د يو ځاى كېدلو ځاى. د جمع كېدلو ځاى. ﴿إِهْلَاك﴾ د افعال مصدر دى: هلاكول. وژل. ﴿مَمْدُوْد﴾ د نصر له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: كش كړى سوى. ﴿يُلْقٰى﴾ د افعال مضارع مجهوله ده: غورځول. اچول. مراد ځني پر ځمكه پرېباسل دي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي دُره باز (جلاد) چي كله غيرِ محصن په دُره وهي، نو هغه ته پكار دي چي د هغه له مخ، سر او فرج (شرمگاه) څخه ځان وگوري او پر دې اندامونو دي هغه نه وهي؛ ځكه چي نبي ﷺ دُره باز ته دا حكم كړى وو چي هغه به د مخ او فرج له وهلو څخه ځان ساتي. په دې هكله دويم دليل دا دى چي د فرج له وهلو څخه كله انسان مړ كيږي، همدارنگه د انسان سر مجمعُ الحَواس دي (يعني د انسان پنځه سره حواس په سر كي جمع دي)، او مخ مجمعُ المحاسن دى. او د دې اندامونو په وهلو سره هم كله نا كله انسان وژل كيږي، او كه مرگ واقع نه سي، نو عيب خامخا پكښي پيدا كيږي كوم چي د معنىٰ په اعتبار سره د هلاكېدلو او مړ كېدلو په څېر دي. حال دا چي د دُرې په حدّ (حدّ جَلد) كي نه ظاهراً هلاكول مقصود دي او نه باطلاً، نو ځكه د دې اندامو د وهلو اجازه نسته. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مخكنى قول هم داسي وو، لېكن وروسته هغه له خپل قول څخه ودې ته رجوع كړه چي مجرم به پر سر هم وهل كيږي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رجوع د حضرت ابو بكر رضي الله عنه د دې حكم په وجه وه چي هغه فرمايلي دي "اِضْرِبُوا الرَّأْسَ فَإِنَّ فِيْهِ شَيْطَانًا". په دې حكم سره حضرت ابو بكر رضي الله عنه د سر د وهلو اجازه وركړه، لېكن زموږ له طرفه د دې حكم او فرمان دوه جوابه وركول سوي دي: ① دا فرمان د هغه سړي په هكله وو كوم چي مباحُ الدم وو (يعني د هغه وژل روا وو)، او د مباحُ الدم كس وژل مقصود وي. ② دا فرمان د كفارو د يو مُبلّغ (تبليغ كونكي) په هكله وو. او كافر مُبلّغ خو د وژلو حقداره دى، نو ځكه په دې فرمان سره د غيرِ محصن په حق كي د "سر" د وهلو جواز ثابتېداى نه سي.

**ويضرب في الحدود كلّها إلخ**: فرمايي چي په ټولو حدّونو كي به مجرم په ولاړي وهل كيږي. او د هغه لاسونه او پښې به نه تړل كيږي، او مجربه ښځه به په ناستي وهل كيږي. ځكه چي له حضرت علي رضي الله عنه څخه همداسي نقل سوي دي. او عقلي دليل دا دى چي د دُرې د وهلو مقصد دا دى چي د حدّ ننداره وسي او د حدّ خبر مشهور او خپور سي او تر ليري، ليري پې خلك وويني او د هغه ږغ واوري. و دا

مقصد هغه وخت بنه حاصليږي کله چې مجرم ودرول سي او د ولاړې په حالت کي ووهل سي. نو ځکه به نارينه مجرم درول کيږي او د ولاړې په حالت کي به په دُرو سره وهل کيږي.

**ثم قوله غير ممدود إلخ:** په متن کي چي کوم د "غَيْر مَمْدُوْد" جمله ذکر سوې ده. د هغې درې مطلبونه دي.

(١)... اول مطلب يې دا دی چي مجرم پر ځمکه پرې ايستل سي. او د هغه لاس او پښې وتړل سي. بيا هغه پر ځمکه کش کړی سي.

(٢)... دويم مطلب يې دا دی چي دُره باز خپله دُره راکشوي. يعني تر خپل سر دُره پورته کوي او مجرم په وهي.

(٣)... دريم مطلب يې دا دی چي پر بدن باندي د دُرې د لګېدلو څخه وروسته هغه پر بدن را کش کړی سي چي زيات سوخت او تکليف مجرم ته ورسيږي. د "مَدّ" دغه درې مطلبونه دي. او په دوی کي د يوه ګنجائش هم نسته، ځکه چي دا د مجرم (زاني) له سزا څخه زياته سزا ده. کوم چي بالکل ظلم او تجاوز دی.

## د غلام يا د مينځي د زنا حدّ

وَإِنْ كَانَ عَبْدًا جَلَدَهُ خَمْسِينَ جَلْدَةً او که زاني غلام وي [يا مينځه زانيه ي] نو هغه به پنځوس دُرې وهل کيږي لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ [النساء: ٢٥] ځکه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: چي پر مينځو باندي د آزادو ښځو نيمه سزا ده نَزَلَتْ فِي الْإِمَاءِ دا آيت د مينځو په حق کي نازل سوی دی وَلِأَنَّ الرِّقَّ مُنْقِصٌ لِلنِّعْمَةِ او ځکه چي رقيت [غلامتوب] نعمت کموي فَيَكُونُ مُنْقِصًا لِلْعُقُوبَةِ نو سزا به [هم] کموي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ عِنْدَ تَوَافُرِ النِّعَمِ أَفْحَشُ ځکه چي د نعمتونو د ډېربښت باوجود جرم کول ډېر بد دي فَيَكُونُ أَدْعَىٰ إِلَى التَّغْلِيظِ لهذا دا جرم به [د آزاد په حق کي] زيات د سختۍ وطرف ته بلونکي وي [مطلب دا چي څومره جرم بد وي. هغومره به يې ګناه هم سخته وي] وَالرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ او سړی او ښځه په حدّ کي برابر دي لِأَنَّ النُّصُوصَ تَشْمَلُهُمَا ځکه چي نصوص [آيتونه] دواړو ته شامل دي غَيْرَ أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا يُنْزَعُ مِنْ ثِيَابِهَا إِلَّا الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ خو له ښځي څخه به جامې نه کښل کيږي ما سوا له پوستين او پنډو جامو څخه [کوم چي له پمبه وو څخه ډکي وي. لکه کوټ او داسي نور] لِأَنَّ فِي تَجْرِيدِهَا كَشْفُ الْعَوْرَةِ ځکه چي د ښځي د

جامې په ليرې کولو کې د عورت لڅېدل سته وَالْفَرْوُ وَالْحَشْوُ يَمْنَعَانِ وُصُولَ الْأَلَمِ إِلَى الْمَضْرُوبِ او پوستين او پنډې جامې [د بدن] وهل سوې حصې ته له درد رسېدلو څخه مانع دي وَالسَّتْرُ حَاصِلٌ بِدُونِهِمَا او له دې دواړو څخه بغير [هم] پرده حاصله ده فَيُنْزَعَانِ نو ځکه به دا دواړه [له ښځې څخه] کښل کېږي وَتُضْرَبُ جَالِسَةً او ښځه به د ناستې په حالت کې وهل کېږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلِأَنَّهُ أَسْتَرُ لَهَا او ځکه چې ناسته د ښځې لپاره ډېر سترناکه ده [يعني په ناسته کې د ښځې زياته پرده ده] قَالَ: وَإِنْ حُفِرَ لَهَا فِي الرَّجْمِ جَازَ فرمايي: او که د ښځې لپاره په رجم کې ګړی وکيندل سي، نو جائز دي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ حَفَرَ [1] لِلْغَامِدِيَّةِ إِلَى ثُنْدُوَتِهَا ځکه چې نبي کريم ﷺ د غامديه لپاره د هغې تر سينې پورې کړی کيندلی وو وَحَفَرَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ* لِشُرَاحَةَ الْهَمْدَانِيَّةِ او [همدارنګه] حضرت علي رضي الله عنه د شراحه همدانيه لپاره کړی کيندلی وو وَإِنْ تَرَكَ لَا يَضُرُّهُ او که [د کړي کيندل] پرېښوول سي نو هم څه تاوان نه کوي لِأَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْ بِذَلِكَ ځکه چې نبي ﷺ د دې حکم کړی نه وو وَهِيَ مَسْتُورَةٌ بِثِيَابِهَا او ښځه خو په خپلو جامو کې پټه [او په پرده] وي وَالْحَفْرُ أَحْسَنُ [لېکن] کړی کيندل زياته غوره دي لِأَنَّهُ أَسْتَرُ ځکه چې هغه زيات سترناکه دي وَيُحْفَرُ إِلَى الصَّدْرِ او کړی به تر سينې پورې کيندل کېږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلَا يُحْفَرُ لِلرَّجُلِ او د سړي لپاره به کړی نه کيندل کېږي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ مَا حَفَرَ [2] لِمَاعِزٍ ځکه نبي ﷺ د حضرت ماعز لپاره کړی کيندلی نه وو وَلِأَنَّ مَبْنَى الْإِقَامَةِ عَلَى التَّشْهِيرِ فِي الرِّجَالِ او ځکه چې په نارينه وو کې د حدّ مدار پر مشهوره کولو دی وَالرَّبْطُ وَالْإِمْسَاكُ غَيْرُ مَشْرُوعٍ او [د مرجوم کس] تړل او منع کول [نيول] مشروع نه دي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم، باب من اعترف على نفسه بالزنا، رقم الحديث:١٦٩٥/ ٢٢٣٢.

* تخريج: دا أثر په مسند احمد ابن حنبل کې داسې ذکر سوی دی: حدثنا عامر قال: كان لشراحة زوج غائب في الشام...ورجمها يوم الجمعة، وحفر لها إلى السرة وأنا شاهد (يعني د شراحه لپاره تر نامه پورې کړی وکښل سو). (مسند احمد بن حنبل ج:١، ص:١٩٢، رقم:٩٨١)

[2] تخريج: مرّ تخريجه.

**اللغات**: ﴿مُنَقِّص﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: کمونکی، کمي کونکی. ﴿تَوَافُر﴾ د تفاعل مصدر دی: ډېرېدل، ډېرښت، زیاتوالی (پرېوانه کېدل). ﴿أَفْحَش﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: ډېر بد، زیات قبیح. ﴿تَغْلِيظ﴾ د تفعیل مصدر دی: سختي کول. ﴿فَرْو﴾ له وړیني ځرمني څخه جوړه جامه، پوستین. ﴿حَشْو﴾ هغه جامه چي له پمبه وو څخه ډکه سوې وي (په پمبه وو سره ډکه سوې جامه)، یعني کوټ. مراد ځني پنډې ډبلي جامي دي چي د وهلو أثر منع کوي. ﴿تَجْرِيد﴾ د تفعیل مصدر دی: لڅول، جامې ځني کښل. ﴿سَتْر﴾ پرده ساتل، پرده داري (پرده پوشي). ﴿خُفِر﴾ د ضرب ماضي مجهوله ده: کیندل، کلی کښل (غارول). ﴿ثُنْدُوَة﴾ تیان، سینه. ﴿رَبْط﴾ د ضرب مصدر دی: تړل. ﴿إِمْسَاك﴾ د افعال مصدر دی: منع کول، نیول.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که یو غلام یا مینځه زنا وکړي، نو هغه به پنځوس دُرې وهل کیږي. ځکه چي په دې آیت "إِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ" کي د مینځو لپاره د آزادو ښځو نیمه سزا واجب سوې ده، او څرنګه چي د آزادي ښځي حد سل دُرې دي. لهذا د مینځي حد به پنځوس دُرې وي، او کوم حکم چي د مینځي دی، هغه حکم د غلام هم دی، ځکه چي رقیت (غلامتوب) په دواړو کي سته، او څرنګه چي رقیت د غلام او مینځي نعمت نصف ګرځوي، همداسي د دوی عقوبت هم نصف ګرځوي (یعني څرنګه چي د غلام او مینځي په حق کي رقیت د نکاح نعمت او داسي نور نعمتونه نیمایي کوي، همداسي رقیت د دوی سزاګاني هم نیمایي کوي)، او کوم کسان چي الله د آزادی په بې شمېره نعمتونو سره نازولي وي او بیا هغوی جرم او جنایت وکړي، نو د هغو سزا به هم سخته وي، لکه څرنګه چي د قرآن کریم په دې آیت کي د نبي کریم ﷺ پاکو بیبیانو ته خطاب سوی دی: "يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ مَنْ يَأْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ يُضَاعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ".

او د حدّ په حکم کي د ښځي او سړي دواړو حکم برابر دی، ځکه چي شرعي نُصوص دواړو ته برابر شامل دي. لېکن له ښځي څخه به د سړي په څېر جامې نه کښل کیږي. ها! که ښځي پوستین اغوستی وي، یا د پمبې او داسي نورو پنډه جامه یې اغوستې وي، نو هغه به ځني لیري کیږي. ځکه چي د دې شیانو په لیري کولو سره د ښځي عورت نه ښکاره کیږي، همدارنګه که دا شیان لیري نه کړی سي نو پر مجرم (ښځي) به وهل پوره أثر نه کوي (یعني پوستین او داسي نوري پنډې جامې د وهلو له درد او تکلیف څخه مانع دي، حالانکي د وهلو مقصدا همدا دی چي مجرم ته درد او تکلیف ورسیږي او وهل پوره أثر پر وکړي چي مجرم بیا داسي کار نه وکړي). نو ځکه به دا شیان ځني لیري کیږي، لېکن له دې څخه بغیر نور جامې به نه ځني لیري کیږي، ځکه چي دهغوی په لیري کولو سره

ښځه بې پرده كيږي، او د ښځې په حق كې پرده مطلوب ده. همدا وجه ده چې په ناستې د ښځې د وهلو حكم سوى دى (چې ښځه به كښېنول كيږي او د ناستې په حالت كې به وهل كيږي). د دې لپاره چې په هر اعتبار سره د پردې خيال وساتل سي.

**قال وإن حفر لها إلخ:** فرمايي كه د ښځې د رجم كولو لپاره كنده (غار) وكيندل سي. نو ډېره غوره ده. ځكه چې نبي كريم ﷺ د غامديه نومې ښځې تر سينې پورې كنده كيندلې وو او هغه يې رجم كړې وه. همدارنګه حضرت علي رضي الله عنه د شراحه همدانيه لپاره كنده كيندلې وو. خو د رجم كولو لپاره كنده كښل ضروري نه دي. كه نه وكيندل سي، نو هم څه پروا نه لري، ځكه چې نبي ﷺ د كندې كښلو حكم نه وو كړى. او په خپلو جامو سره هم د ښځې پرده كيږي (نو ځكه د كندې كښل ضروري نه دي). لېكن كه بيا هم د ښځې لپاره كنده وكيندل سي، نو دا به د هغې لپاره زياته پرده وي، او د سړي لپاره به كنده نه كښل كيږي، ځكه چې نبي كريم ﷺ د حضرت ماعز اسلمي رضي الله عنه لپاره كنده كيندلې نه وو. او بل دا چې د سړي حد پر تشهير او تعميم مبني دى (چې د هغه د حدّ ننداره وسي، او هغه مشهوره او عام كړى سي)، او كنده كښل د تشهير منافي دي. او د مرجوم كس تړل، منع كول (او نيول) مشروع نه دي، ځكه چې نبي كريم نه حضرت ماعز تړلى وو. او نه يې په يو ډول د هغه د منع كولو حكم كړى وو.

## د إمام له اجازې څخه بغير پر خپل غلام حدّ جاري كول

وَلَا يُقِيمُ الْمَوْلَى الْحَدَّ عَلَى عَبْدِهِ إِلَّا بِإِذْنِ الْإِمَامِ او مالك به پر خپل غلام [او مينځې] حد نه جاري كوي، مګر د إمام په اجازه سره [يعني كه غلام يا مينځه زنا وكړي، نو مالك په خپله پر هغو حدّ نه سي جاري كولاى، ها! كه د امام سره رابطه وكړي او هغه اجازه وركړي، نو بيا مالك پر غلام او مينځې حدّ جاري كولاى سي، ځكه كېداى سي چې مالك پر غلام او مينځې زياتوب وكړي، نو په دې وجه د امام اجازه ضروري ده] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ أَنْ يُقِيمَهُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې مالك ته دا حق سته چې پر غلام [او مينځې] حد جاري كړي لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةً مُطْلَقَةً عَلَيْهِ كَالْإِمَامِ ځكه چې پر خپل غلام مالك ته مطلق ولايت حاصل دى لكه امام ته [چې حاصل دى] بَلْ أَوْلَى بلكي [مالك ته] تر امام هم زيات [ولايت حاصل دى] لِأَنَّهُ يَمْلِكُ مِنَ التَّصَرُّفِ فِيهِ مَا لَا يَمْلِكُهُ الْإِمَامُ ځكه مالك په خپل غلام كي د هغه تصرف ملكيت لري چې امام د هغه ملكيت نه لري [مثلاً خرڅول او داسي نور] فَصَارَ كَالتَّعْزِيرِ نو اد غلام حد [د تعزير په څېر سو [حاصل د عبارت دا دى چې امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې مالك پر خپل غلام او مينځې حدّ جاري كولاى سي، ځكه چې مالك ته پر خپل غلام او مينځې پوره ولايت حاصل دى. او هغه ته تر امام هم زيات ولايت حاصل دى، ځكه چې مالك خپل غلام خرڅولاى سي، حالانكي امام د بل چا غلام نه سي

خرڅولاى، نو دا حدّ د تعزير په څير سو، يعني لكه څرنګه چي مالک خپل غلام ته د إمام له اجازې څخه بغير سزا وركولاى سي، همدارنګه د امام له اجازې څخه بغير حدّ هم پر جاري كولاى سي، ځكه چي غلام د هغه خپل مال دى ا وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام [1] : أَرْبَعٌ إِلَى الْوُلَاةِ وَذَكَرَ مِنْهَا الْحُدُودَ زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دى: چي د څلورو شيانو ذمه واري پر واليانو ده چي له هغوى څخه نبي ﷺ حدود هم ذكر كړل ا يعني څلور شيان والي او امام ته سپارل سوي دي: ① د جمعې لمونځ، ② زكاة، ③ حدود، ④ قصاص، معلومه سوه چي د امام له اجازې څخه بغير څوک حد نه سي جاري كولاى ا وَلِأَنَّ الْحَدَّ حَقُّ اللهِ تَعَالَى او په دې وجه [هم] چي حدّ د الله تعالىٰ حق دى لِأَنَّ الْمَقْصِدَ مِنْهَا إِخْلَاءُ الْعَالِمِ عَنِ الْفَسَادِ ځكه چي د حدونو مقصد دنيا له فساد څخه خالي كول دي وَلِهَذَا لَا يَسْقُطُ بِإِسْقَاطِ الْعَبْدِ همدا وجه ده چي د بنده په ساقطولو سره حدّ نه ساقطيږي فَيَسْتَوْفِيهِ مَنْ هُوَ نَائِبٌ عَنِ الشَّرْعِ وَهُوَ الْإِمَامُ أَوْ نَائِبُهُ لهذا دا حق به هغه كس حاصلوي ا او هغه كس به يې جاري ا كوم چي د شريعت نائب دى او هغه إمام دى يا د هغه نائب دى اعقلي دليل دا دى چي حدّ لګول او جاري كول دا د الله تعالىٰ يعني د شريعت حق دى، ځكه چي د حد مقصد دا دى چي دنيا له فساد څخه پاكه سي، نو ځكه به د شريعت نائب يعني امام يا د هغه نائب حدّ جاري كوي ا بِخِلَافِ التَّعْزِيرِ لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ په خلاف د تعزير، ځكه چي هغه د بنده حق دى وَلِهَذَا يُعَزَّرُ الصَّبِيُّ او له همدې وجهې بچي ته سزا وركول كېداى سي وَحَقُّ الشَّرْعِ مَوْضُوعٌ عَنْهُ حالانكي له بچي څخه د شريعت حق معاف كړى سوى دى [بخلاف التعزير: په دې سره امام شافعي ته جواب وركوي. حاصل يې دا دى چي تعزير يعني تنبيه او ټيټه سزا وركول د بنده حق دى، همدا وجه ده چي د بچي سرپرست (پلار او مور) هغه ته سزا وركولاى، نو كه تعزير د شريعت حق واى، نو د هيڅ ډول په بچي ته سزا وركول صحيح نه واى، ځكه چي بچى د شريعت په احكامو مكلف نه دى (لهذا كله چي مكلف نه دى، نو هغه ته به سزا وركول صحيح نه واى). حالانكي هغه ته سزا وركول صحيح دي، نو معلومه سوه چي تعزير د بنده حق دى، نو په دې وجه حدّ پر تعزير باندي قياسول صحيح نه دي.

**اللغات:** ﴿وُلَاة﴾ جمع د وَالِيْ ده: حاكم، حكمران (واكمن)، إمام. ﴿إِخْلَاء﴾ د افعال مصدر دى: خالي كول ﴿يَسْتَوْفِيْه﴾ د استفعال مضارع ده: اخيستل، حاصلول. ترلاسه كول. ﴿تَعْزِيْر﴾ د تفعيل مصدر دى: له حدّ څخه لاندي سزا ته "تعزير" وايي، (ټيټه سزا وركول)، تنبيه وركول، رټل او غندل.

**تشريح:** عبارت په ترجمه كي تشريح سو.

---

[1] تخريج: رواه ابن أبي شيبة في المصنف ج:۲، ص:۳۸۵، رقم: ۱۰۱۸۹ / ۲۸۴۲۹.

## د "إحصان" (مُحصن والي) مطلب

قَالَ: وَإِحْصَانُ الرَّجْمِ أَنْ يَكُونَ حُرًّا عَاقِلًا بَالِغًا مُسْلِمًا قَدْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً نِكَاحًا صَحِيحًا وَدَخَلَ بِهَا وَهُمَا عَلَى صِفَةِ الْإِحْصَانِ او د رجم محصن كېدل دا دي چې هغه امرجوم ا ① آزاد وي. ② بالغ وي. ③ عاقل وي. ④ مسلمان وي. ⑤ د يوې ښځې سره يې صحيح نكاح كړې وي. ⑥ او د هغې سره يې وطي كړي وي او ادخول په وخت كي ا دواړه د إحصان پر صفت وي فَالْعَقْلُ وَالْبُلُوغُ شَرْطٌ لِأَهْلِيَّةِ الْعُقُوبَةِ نو عقل او بلوغ د سزا د أهليت لپاره شرط دي إِذْ لَا خِطَابَ دُونَهُمَا ځكه چي له دې دواړو ځخه بغير د شريعت خطاب نه ثابتيږي وَمَا وَرَاءَهُمَا يُشْتَرَطُ لِتَكَامُلِ الْجِنَايَةِ بِوَاسِطَةِ تَكَامُلِ النِّعْمَةِ او له دې دواړو اعقل او بلوغ ا ځخه بغير چي انور ا كوم شرطونه دي هغه د نعمت د پوره والي په واسطه سره د جنايت د پوره كېدلو په وجه شرط دي إِذْ كُفْرَانُ النِّعْمَةِ يَتَغَلَّظُ عِنْدَ تَكَثُّرِهَا ځكه چي د نعمت د ډېرښت په وخت كي د نعمت ناشكري كول زيات سخت اأو غليظ ا وي ايعني په دې صورت كي گناه سختيږي ا وَهَذِهِ الْأَشْيَاءُ مِنْ جَلَائِلِ النِّعَمِ او دا شيان له غټو نعمتونو ځخه دي وَقَدْ شُرِعَ الرَّجْمُ بِالزِّنَا عِنْدَ اسْتِجْمَاعِهَا او افقط ا د دې نعمتونو د اجتماع په صورت كي د زنا په وجه رجم مشروع سوى دى فَيُنَاطُ بِهِ نو افقط ا د دې نعمتونو پر اجتماع به د رجم مدار وي بِخِلَافِ الشَّرَفِ وَالْعِلْمِ په خلاف د شريف كېدلو او د علم لِأَنَّ الشَّرْعَ مَا وَرَدَ بِاعْتِبَارِهِمَا ځكه چي شريعت د دې شيانو د اعتبار كولو په باره كي وارد سوى نه دى ايعني شريعت د دې شيانو اعتبار بيان كړى نه دي ا وَنَصْبُ الشَّرْعِ بِالرَّأْيِ مُتَعَذِّرٌ او په اخپله ا رايه سره د شريعت حكم ټاكل ناممكن دي وَلِأَنَّ الْحُرِّيَّةَ مُمْكِنَةٌ مِنَ النِّكَاحِ الصَّحِيحِ او ځكه چي آزاد والى پر صحيح نكاح قدرت وركونكي دى وَالنِّكَاحُ الصَّحِيحُ مُمْكِنٌ مِنَ الْوَطْءِ الْحَلَالِ او صحيح نكاح پر حلالي جماع قدرت وركونكې ده وَالْإِصَابَةُ شِبَعٌ بِالْحَلَالِ او دخول كول په دې حلال كار سره مړونكي دي ايعني د دخول په ذريعه په حلالي جماع سره انسان مړېداى سي او د هغه شهوت پوره كېداى سي ا وَالْإِسْلَامُ يُمَكِّنُهُ مِنْ نِكَاحِ الْمُسْلِمَةِ او اسلام مسلمان سړي ته د مسلماني ښځي پر نكاح قدرت وركوي وَيُؤَكِّدُ اعْتِقَادَ الْحُرْمَةِ او اسلام د زنا د حرمت عقيده قوي كوي فَيَكُونُ الْكُلُّ مُزْجِرَةً عَنِ الزِّنَا لهذا دا ټوله شيان له زنا ځخه منع كونكي

دي وَالْجِنَايَةُ بَعْدَ تَوَفُّرِ الزَّوَاجِرِ أَغْلَظُ او د موانعو د ډېرښت باوجود زنا کول ډېر سخت اسنګين ا جرم دی وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِي اشْتِرَاطِ الْإِسْلَامِ او د اسلام په شرطېدلو کي امام شافعي رَحِمَهُ الله زموږ ا د قول ا مخالف دی ایعني د هغه په نېز د إحصان لپاره اسلام شرط نه دی ا وَكَذَا أَبُو يُوسُفَ فِي رِوَايَةٍ همدارنګه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم په يوه روايت کي مخالف دی اخو راجح قول زموږ (د طرفينو) دی چي د إحصان لپاره اسلام شرط دی ا لَهُمَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ رَجَمَ [1] يَهُودِيَّيْنِ قَدْ زَنَيَا د دوی دواړو دليل هغه حديث دی. کوم چي له نبي کريم ﷺ څخه روايت سوی دی. چي نبي ﷺ يو يهودي سړی او يوه يهودي ښځه د زنا کولو په وجه رجم کړه انو له دې څخه معلومه سوه چي کافر هم رجم کېدای سي ا قُلْنَا: كَانَ ذَلِكَ بِحُكْمِ التَّوْرَاةِ ثُمَّ نُسِخَ موږ جواب ورکوو: چي دا حکم د تورات په وجه سره وو او وروسته دا حکم منسوخ سو يُؤَيِّدُهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: مَنْ أَشْرَكَ بِاللهِ فَلَيْسَ بِمُحْصَنٍ چي د هغه تائيد د نبي کريم ﷺ په دې قول سره کيږي: چي څوک د الله سره شريک ونيسي نو هغه محصن نه دی ایعني مشرک انسان محصن جوړېدای نه سي ا وَالْمُعْتَبَرُ فِي الدُّخُولِ إِيلَاجٌ فِي الْقُبُلِ عَلَى وَجْهٍ يُوجِبُ الْغُسْلَ او هغه دخول معتبر دی چي په قُبل افرج ا کي په دې توګه ذکر دننه کړی سي چي هغه غسل واجبوي وَشَرْطُ صِفَةِ الْإِحْصَانِ فِيهِمَا عِنْدَ الدُّخُولِ او امام قدوري رَحِمَهُ الله په سړي او ښځه کي د محصن والي صفت د دخول په وخت کي شرط ګرځولی دی حَتَّى لَوْ دَخَلَ بِالْمَنْكُوحَةِ الْكَافِرَةِ أَوِ الْمَمْلُوكَةِ أَوِ الْمَجْنُونَةِ أَوِ الصَّبِيَّةِ تر که يو څوک په کافري منکوحه ښځي. يا په مملوکه مينځي. يا په لېونۍ ښځي. يا په کوچنۍ نجلۍ دخول وکړي لَا يَكُونُ مُحْصَنًا نو هغه مُحصن نه ګرځي وَكَذَا ا إِذَا كَانَ الزَّوْجُ مَوْصُوفًا بِإِحْدَى هَذِهِ الصِّفَاتِ وَهِيَ حُرَّةٌ مُسْلِمَةٌ عَاقِلَةٌ بَالِغَةٌ او همدارنګه اخاوند محصن نه ګرځي ا که چيري هغه په دې صفاتو کي په يوه صفت سره متصف وي او د هغه ښځه آزاده. مسلمانه. عاقله او بالغه وي لِأَنَّ النِّعْمَةَ بِذَلِكَ تَتَكَامَلُ ځکه چي په دې شيانو سره نعمت پوره کيږي ایعني په نکاح. اسلام. آزادي. عقل او بلوغ سره نعمت پوره کيږي. او که په دې شيانو کي

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ۴۴۲۶ و ۴۴۵۰.

[2] تخريج: رواه البيهقي في السنن الكبرى، رقم الحديث: ۱۷۳۹۱.

يو شی کم سي، نو په بشپړه توګه نعمت نه پوره کیږي. نو ځکه به رجم هم نه ثابتیږي| إِذِ الطَّبْعُ يَنْفِرُ عَنْ صُحْبَةِ الْمَجْنُوْنَةِ ځکه چي طبيعت د لیونی ښځي له کوروالي |جماع| څخه نفرت کوي وَقَلَّمَا يَرْغَبُ فِي الصَّبِيَّةِ لِقِلَّةِ رَغْبَتِهَا او په کوچنی نجلی کي د خواهش د کمیدلو په وجه خاوند هغې ته کم رغبت کیږي وَفِي الْمَنْكُوْحَةِ الْمَمْلُوْكَةِ او منکوحه مملوکه مینځي ته |هم د خاوند رغبت کم کیږي| حَذَرًا عَنْ رِقِّ الْوَلَدِ د خپل بچي له غلامتوب څخه د ځان ساتلو لپاره |یعني که ښځه مینځه وي نو له هغې څخه چي کوم بچی پیدا کیږي هغه هم غلام شمارل کیږي. نو خاوند به له غلامتوب څخه د خپل بچي د ساتلو لپاره په ښه رغبت او مینه د هغې سره جماع نه سي کولای. بلکي د هغې له جماع څخه به یې نفرت کیږي| وَلَا ائْتِلَافَ مَعَ الِاخْتِلَافِ فِي الدِّيْنِ او د دین د اختلاف سره اُلفت نه وي |یعني که د خاوند او ښځي دین سره جلا وي. نو هم د دوی په مینځ کي پوره اُلفت او رغبت نه وي| وَأَبُوْيُوْسُفَ يُخَالِفُنَا فِي الْكَافِرَةِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د کافري ښځي په هکله زموږ مخالف دی |یعني که خاوند د کافري ښځي سره جماع وکړي. نو د هغه په نېز خاوند محصن ګرځي| وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او د امام ابو یوسف په خلاف هغه دلیل حجت دی کوم چي موږ ذکر کړی |چي د خاوند او ښځي په مینځ کي پوره اُلفت او رغبت نه وي| وَقَوْلُهُ عليه السلام [3] : لَا تُحْصِنُ الْمُسْلِمَ الْيَهُوْدِيَّةُ وَلَا النَّصْرَانِيَّةُ وَلَا الْحُرَّ الْأَمَةُ وَلَا الْحُرَّةَ الْعَبْدُ او |بل دلیل| د نبي ﷺ دا قول دی: چي یهودي او نصراني ښځه مسلمان سړی محصن نه جوړوي. او نه مینځه آزاد سړی محصن جوړوي. او نه غلام آزاده ښځه محصنه جوړوي.

**اللغات:** ﴿إحصان﴾ د افعال مصدر دی: محصن کېدل. محصن والي. ﴿تكامل﴾ د تفاعل مضارع ده: پوره کېدل. ﴿كفران﴾ ناشکري. ناقدري. سپکاوی. ﴿يتغلظ﴾ د تفعل مضارع ده: سختېدل. ﴿تكثر﴾ د تفعل مصدر دی: زیاتېدل. ډېرېدل. ﴿جلائل﴾ جمع د جَلِیل ده: غټ. ستر. ﴿يناط﴾ د مضارع صیغه ده: متعلق کېدل. ﴿متعذر﴾ د تفعل اسم مفعول دی: ناممکن. ﴿إصابة﴾ د افعال مصدر دی: رسېدل. وارد‌ېدل. مراد ځني وطي او دخول کول دي. ﴿شبع﴾ د فتح مصدر دی: مړتیا. سېرابي. آرام او سکون. ﴿يمكنه﴾ د تفعیل مضارع ده: قدرت ورکول. طاقت ورکول. ﴿مزجرة﴾ د

[3] تخريج: رواه البيهقي في السنن الكبرى رقم الحديث: ۱۷۳۹۵

افعال مؤنث اسم فاعل دی: منع کونکی. ﴿أَغْلَظ﴾ زيات سخت. ﴿إِيلاج﴾ د افعال مصدر دی: دننه کول. داخلول. ﴿قُبُل﴾ د ښځي د مخ شرمگاه (فرج). ﴿حَذْر﴾ د سمع مصدر دی: ځان ساتل. ځان ژغورل. ﴿إِيتلاف﴾ د افتعال مصدر دی: په خپل مینځ کي مینه او محبت کول. اُلفت کول.

**تشريح**: مخکي د زاني د رجم کولو لپاره د هغه د محصن کېدلو شرط ذکر سو (چي هغه به مُحصن وي)، په دې عبارت کي د هغه شرط مطلب بيانوي فرمايي چي د مُحصن والي مطلب دا دی چي زاني آزاد وي، عاقل، بالغ او مسلمان وي. او زاني د يوې مسلماني ښځي سره صحيح نکاح کړې وي او په همدې حالت کي د دواړو ملاقات او جماع سوې وي چي دواړه د إحصان پر صفت قائم او باقي وي.

د عقل او بلوغ شرط ځکه لګول سوی دی چي عقل او بلوغ د عقوبت د أهل کېدلو لپاره شرط دي، ځکه چي کوچنی او لېونی دواړه د شريعت په احکامو مکلف نه دي. او رجم (سنگسارول) د شريعت له احکامو څخه يو حکم دی. نو ځکه به د دې لپاره هم عقل او بلوغ ضروري وي. او له دې څخه بغير نور شرائط (يعني نکاح، آزادي او اسلام. دا شرائط) ځکه لګول سوي دي چي د دې شيانو په وجه په انسان کي نعمت پوره کيږي. او په چا کي چي نعمت کامل او پوره وي. د هغه جرم خطرناک او سنګين ګرځي، او که د دومره إنعام او نوازش باوجود زنا وکړي نو د هغه سزا رجم ده. او په دې شرائطو کي شرافت او علم لره هيڅ دخل نسته. ځکه چي دا غير محدود دي. او شريعت دا شيان (شرافت او علم) د إحصان له شرائطو څخه هم شمارلي نه دي. او نه د دوی په هکله يو روايت نقل سوی دی، نو ځکه موږ ته هيڅ حق نسته چي په خپل عقل او رايه سره په شريعت کي يو شی مقرر کړو.

**عقلي دليل**: په إحصان کي د آزادۍ، نکاح او پاته شرائطو د معتبر کېدلو او شرط کېدلو عقلي دليل دا دی چي آزاد سړی يا ښځه د خپلو اُمورو او کارونو "ذمه وار" وي او په تصرّفاتو کي "خود مختار" وي. نو په دې وجه د آزاد سړي لپاره صحيح نکاح کول ممکن وي. او کله چي هغه پر صحيح نکاح قدرت لري، نو ښکاره خبره ده چي هغه به د صحيح نکاح او د حلال وطي په ذريعه له خپلي ښځي څخه آرام حاصلوي (او شهوت به پوره کوي)، او کله چي هغه مسلمان وي، نو لازماً به د مسلماني ښځي سره وطي کوي. او د اسلام په وجه به د هغه په زړه کي د زنا حُرمت او له زنا څخه نفرت وي. او دا شيان (اسلام، نکاح او داسي نور) به هغه له ناوړه حرکت څخه منع کوي. نو ځکه دا شرائط د إحصان په شرائطو او أوصافو کي داخل سوي دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د إحصان لپاره اسلام شرط نه دی (يعني د زاني د محصن کېدلو لپاره د اسلام شرط نه لګوي)، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه هم په يوه روايت کي داسي نقل سوي دي: د

هغو دليل دا حديث دی چي نبي كريم ﷺ پر يوه يهودي سړي او ښځي باندي د رجم حكم جاري كړی وو چي هغو زنا كړې وه. او دوی دواړه "محصنان" ول. نو كله چي په يهودو كي إحصان ثابت سوی دی. نو ځكه به د إحصان لپاره د اسلام شرط لګول صحيح نه وي. لېكن زموږ له طرفه د دې حديث جواب دا دی چي نبي كريم ﷺ خو د اسلام په شروع كي د تورات د حكم مطابق رجم جاري كړی وو. او تر هغه وخته پوري په اسلام كي هيڅ حكم نازل سوی نه وو. له همدې كبله نبي كريم ﷺ د يهودو ځخه د زنا په هكله د توارت د حكم پوښتنه كړې وه. او د دې حديث حكم وروسته منسوخ سو. ځكه چي نبي ﷺ وروسته په ښكاره الفاظو سره وفرمايل "مَنْ أَشْرَكَ بِـاللهِ فَلَيْسَ بِمُحْصِن" چي مشرك محصن كېدلای نه سي. او كله چي مشرك محصن كېدلای نه سي. نو خامخا به د احصان لپاره د اسلام شرط لګول كيږي.

**والمعتبر إلخ:** فرمايي د متن په دې عبارت "قد تَزَوَّجَ إمرأةً نكاحًا صَحِيْحًا و دَخَلَ بها" كي له "دَخَلَ" ځخه هغه "دخول" مراد دی كوم چي د غسل موجب او سبب وي. يعني چي د سړي د ذكر سر (حشفه) د ښځي په فرج كي داخل سي. او د دخول په وخت كي د دوی د محصن كېدل مطلب دا دی چي كه خاوند مسلمان وي او ښځه كافره وي. يا ښځه مملوكه مينځه وي. يا مجنونه او صبيه وي. يا د دې برعكس وي يعني ښځه مسلمانه. آزاده او عاقله او بالغه وي. او خاوند كافر او غلام يا لېونی يا كوچنی وي. نو په دې صورت كي د دوی "دخول" معتبر نه دی. او په دې صورت كي په دخول سره سړی محصن نه ګرځي. ځكه په چا كي چي دا صفات موجود وي. په هغه كي به الهي نعمت په پوره توګه ثابت وي. او بيا د سړي طبيعت د لېونی ښځي د جماع ځخه نفرت كوي. او په كوچنۍ نجلۍ كي بالكل هيڅ خواهش نه وي. همدارنګه د خپل بچي د غلام جوړېدلو د بيري په وجه څوک د مملوكه مينځي سره وطي نه سي كولای (يعني د هغه سره دا بېره وي چي كه زه د خپلي مينځي سره جماع وكړم. نو زما بچی به هم غلام وګرځي). او د ديني اختلاف په وجه د كافري ښځي سره د مسلمان محبت او اُلفت نه پيدا كيږي. نو ځكه به د دې شيانو په وجود كي نه دُخول معتبر وي. او نه به احصان ثابتيږي.

د كافري ښځي په هكله امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله زموږ مخالف دی. د هغه په نېز په كافري ښځي باندي دخول كول په إحصان كي معتبر دي. لېكن زموږ له طرفه هغه ته دا جواب وركول كيږي چي ديني اختلاف د محبت او اُلفت ځخه مانع دی. او د اُلفت د نشتوالي په وجه كما حقهٔ إيلاج او دخول كېدای نه سي. او بيا په حديث كي په ښكاره الفاظو سره دا بيان سوي دي چي يهودي او نصراني ښځه يو مسلمان سړی محصن نه سي جوړولای. همدارنګه نه مينځه يو آزاد سړی محصن جوړولای سي او نه غلام آزاده ښځه محصنه جوړولای سي.

## د رجم سره جَلد (دُره) جمع کول

قَالَ: وَلَايُجْمَعُ فِي الْمُحْصَنِ بَيْنَ الرَّجْمِ وَالْجَلْدِ فرمايي: چې په محصن کې به رجم او دُرې نه سره جمع کيږي لِأَنَّهُ الطَّيْلاً لَمْ يَجْمَعْ [1] ځکه چې نبي ﷺ (دا دواړه) سره جمع کړي نه دي وَلِأَنَّ الْجَلْدَ يَعْرَى عَنِ الْمَقْصُودِ مَعَ الرَّجْمِ ځکه چې د رجم سره (يعني د رجم باوجود) د دُرې وهل له مقصود څخه خالي وي لِأَنَّ زَجْرَغَيْرِهِ يَحْصُلُ بِالرَّجْمِ ځکه چې د بل چا زجر په رجم سره حاصليږي إِذْ هُوَفِي الْعُقُوبَةِ أَقْصَاهَا ځکه چې رجم آخري سزا ده وَزَجْرُهُ لَايَحْصُلُ بَعْدَ هَلَاكِهِ او د زاني تر هلاکېدلو وروسته د هغه زجر نه حاصليږي. (الله دا چې په رجم سره هغه ته زجر ورکول سو. ځکه چې رجم آخري زجر او سزا ده. او تر مرګ وروسته هغه ته زجر نه سي ورکول کېدای)

**اللغات:** ﴿يَعْرَى﴾ د فتح مضارع ده: خالي کېدل. ﴿زَجْر﴾ تنبيه ورکول. رټل (غندل). ﴿أَقْصَاهَا﴾ أَقْصَى: آخري. انتهائي (نهائي).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د محصن زاني په سزا کې به رجم او دُرې وهل نه سره جمع کيږي (يعني داسې به نه کوي چې هغه په دُرو سره هم ووهي. او سنګسارېې هم کړي). ځکه چې نبي کريم له جمع څخه منع کړې ده. دويم دليل دا دی چې رجم د زنا انتهائي او آخري سزا ده. او تر رجم وروسته (يا مخکې) د دُرې په وهلو سره مقصود يعني زجر نه حاصليږي. او داسې کول تحصيل د حاصل دی. نو ځکه جمع صحيح نه ده.

## غيرِ محصن زاني له وطن څخه شړل (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَلَايُجْمَعُ فِي الْبِكْرِ بَيْنَ الْجَلْدِ وَالنَّفْيِ فرمايي: او په بې واده کس کې به د دُرې وهل او له وطن څخه ايستل (دواړه) نه سره جمع کيږي وَالشَّافِعِيُّ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا حَدًّا (البکر) امام شافعي رَحِمَه.. دواړه (د بې واده کس لپاره) د حدّ په توګه سره جمع کوي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً [2]: اَلْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: چې بې واده سړی د بې واده ښځې سره (که چيري زنا وکړي نو د دوی سزا) سل دُرې او يو کال جلا وطن کول دي وَلِأَنَّ فِيهِ حَسْمَ بَابِ الزِّنَا او ځکه چې په

---

[1] تخريج: قد مرّ تخريجه تحت حديث ماعز والغامدية.

[2] تخريج: رواه الجماعة فأخرجه البخاري في باب البكر يجلدان وينفيان، رقم الحديث: ٦٨٣١. و مسلم، وابو داؤد في السنن، رقم الحديث: ٤٤١٥.

جلا وطن کولو د زنا دروازه بندول دي لِقِلَّةِ الْمَعَارِفِ ځکه چي [په پردي ښار کي] تعلقات [او تعارف] کم وي وَلَنَا قَوْله تَعَالَىٰ: فَاجْلِدُوا [النور: ۲] زموږ دليل د الله تعالىٰ دا فرمان دی: "فَاجْلِدُوْا" جَعَلَ الْجَلْدَ كُلَّ الْمُوجَبِ [په دې آيت کي] الله تعالىٰ د دُرې وهل ټوله [پوره] سزا ګرځولې ده رُجُوعًا إِلَىٰ حَرْفِ الْفَاءِ د "فاء" حرف ته په رجوع کولو سره [يعني د هغه دليل د فاء حرف دی کوم چي پر جزاء "فَاجْلِدُوْا" داخل سوی دی] أَوْ إِلَىٰ كَوْنِهِ كُلَّ الْمَذْكُورِ يا دا چي ټوله سزا همدا ده کوم چي ذکر سوې ده وَلِأَنَّ فِي التَّغْرِيبِ فَتْحَ بَابِ الزِّنَا او ځکه چي په جلا وطن کولو کي د زنا دروازه خلاصول دي [نه بندول] لِانْعِدَامِ الِاسْتِحْيَاءِ مِنَ الْعَشِيرَةِ ځکه چي [په پردي ښار کي] د خپل خاندان [د نشتوالي په وجه] شرم او حياء ختمه سي [او زاني خپل سر ته ايله سي. هر څه چي غواړي هغه کولای سي] ثُمَّ فِيهِ قَطْعُ مَوَادِّ الْبَقَاءِ بيا په جلا وطن کولو سره د [ژوندي] پاتېدلو د اسبابو ختمېدل [هم] سته [يعني د جلا وطنۍ سره دا خبره هم تړلې ده چي په بېګانه ښار کي د ښځي او سړي لپاره د رزق او روزۍ انتظام برابر نه سي] فَرُبَّمَا تَتَّخِذُ زِنَاهَا مَكْسَبَةً نو کېدای سي چي ښځه زنا خپله پېشه [او د ګټي ذريعه] وګرځوي وَهُوَ مِنْ أَقْبَحِ وُجُوهِ الزِّنَا او دا د زنا ډېره بده طريقه ده وَهَٰذِهِ الْجِهَةُ مُرَجِّحَةٌ لِقَوْلِ عَلِيٍّ * رضي الله عنه: كَفَىٰ بِالنَّفْيِ فِتْنَةً او همدې جهت [يعني له ښار څخه نه ايستلو] ته د حضرت علي رضي الله عنه په دې قول سره ترجيح ورکول سوې ده: چي له ښار څخه ايستل د فتنې لپاره کافي دي [يعني د فتنې او فساد لپاره بس همدا کافي دي چي ښځه او سړی له ښار څخه ويستل سي، نو د حضرت علي رضي الله عنه دا قول د نفي او تغريب پر ډېر بدوالي دلالت کوي، نو ځکه به زموږ جهت مرجّح وي] وَالْحَدِيثُ مَنْسُوخٌ كَشَطْرِهِ وَهُوَ قَوْلُهُ عليه السلام ❸: الثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَرَجْمٌ بِالْحِجَارَةِ او [د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه بيان سوی] حديث منسوخ دی لکه څرنګه چي د دې حديث [آخري] جزء منسوخ دی او هغه د نبي صلى الله عليه وسلم دا قول دی: "اَلثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ...إلخ" وَقَدْ عُرِفَ طَرِيقُهُ فِي مَوْضِعِهِ او د دې نسخ طريقه پر خپل ځای پېژندل

---

* أثر: رواه عبد الرزاق في المصنف، رقم:۱۳۳۱۳.

❸ تخريج: په مسلم شريف کي پوره حديث داسي ذکر سوی دی: عن عبادة بن ثابت قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: خذوا عني، خذوا عني، فقد جعل الله لهن سبيلاً البكر بالبكر جلد مائة ونفي سنة، والثيب بالثيب جلد مائة والرجم. (باب حد الزنا، رقم الحديث: ۱۶۹۰، ۴۴۱۴)

سوې ده إِلَّا أَنْ يَرَى الْإِمَامُ فِي ذٰلِكَ مَصْلَحَةً خو دا چي امام په جلا وطن كولو كي ښېګڼه اوخير او ويني فَيُغَرِّبَهُ عَلىٰ قَدْرِ مَا يَرَىٰ نو په دې صورت كي چي امام څومره وخت مناسب وګڼي هغومره وخت دي مجرم جلا وطن كړي وَذٰلِكَ تَعْزِيْرٌ وَسِيَاسَةٌ او دا تغريب د تعزير او سياست پر بناء دى لِأَنَّهُ قَدْ يُفِيْدُ فِي بَعْضِ الْأَحْوَالِ ځكه چي دا په ځيني حالاتو كي فايده كوي او په ځيني حالاتو كي فايده نه كوي فَيَكُوْنُ الرَّأْيُ فِيْهِ إِلَى الْإِمَامِ نو ځكه به په دې هكله رايه إمام ته پرېښوول كيږي وَعَلَيْهِ يُحْمَلُ النَّفْيُ الْمَرْوِيُّ عَنْ بَعْضِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او له ځيني صحابه وو څخه چي كوم "جلا وطن كول" نقل سوي دي هغه به هم پر دغه سياست او تعزير باندي حمل كيږي.

**اللغات**: ﴿بِكْر﴾ بې واده كس، مجرّد. ﴿جَلْد﴾ په دُره وهل، د دُرې وهل. ﴿نَفْي﴾ له وطن او ښار څخه ايستل (جلا وطن كول). ﴿تَغْرِيْب﴾ د تفعيل مصدر دى: جلا وطن كول. ﴿حَسْم﴾ بندول. قطع كول (غوڅول). ﴿عَشِيْرَة﴾ قبيله، خاندان. ﴿مَكْسَبَة﴾ د ګټې ذريعه. كسب او پېشه. دنده. ﴿شَطْر﴾ نيمه حصه (نيمه ټوكره). جزء.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي زموږ په نيز كه بې واده سړى او بې اوده ښځه زنا وكړي. نو د دوى سزا فقط سل (۱۰۰) درې دي. او تر دې وروسته به هغو ته د "جلا وطنى" (تغريب) سزا نه وركول كيږي (چي له خپل وطن او ښار څخه وشړل سي). لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به د دوى په سزا كي جلد او تغريب دواړه جمع كيږي.

**د امام شافعي دليل**: د مسلم شريف دا روايت دى: "البكر بالبكر جلد مائة وتغريب عام" (يعني كه بې واده سړى او بې واده ښځه زنا سره وكړي. نو د دوى سزا سل دُرې او جلا وطن كول دي). په دې حديث كي په ښكاره توګه جَلد او تغريب دواړه سره جمع سوي دي. نو ځكه موږ (امام شافعي) وايو چي دواړه به سره جمع كيږي. په دې سلسله كي د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دى چي كله زاني او زانيه له ښار څخه ويستل سي. نو په نوي ښار كي به د دوى تعلقات كم سي. او كله چي تعلقات كم سي. نو د زنا دروازه به بنده سي. نو په دې حواله سره به هم جَلد او تغريب سره جمع كيږي.

**زموږ دليل**: دا دى چي په دې آيت "اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ" كي د غير محصن كس لپاره د زنا پوره سزا سل (۱۰۰) دُرې ټاكل سوې ده. دليل دا دى چي فَاجْلِدُوا جزاء ده. او

فاء پر داخله سوې ده، او تر شرط وروسته چې کله پر جزاء فاء داخله سي. نو هغه جزاء کُل (ټولو) شامله وي. لهذا فقط جَلد به د غير محصن زناکاره لپاره کامله او پوره سزا وي. او بل دا چې په فَاجْلِدُوْا سره سزا بيان سوې ده. او په بيان کي چې څومره مقدار او څومره کلام ته ضرورت وي. هغه ټوله پر يوه ځای بيانيږي. نو معلومه سوه چې په فَاجْلِدُوْا کي پوره سزا بيان سوې ده. او کله چې پوره سزا جَلد ده. نو په دې سزا کي به تغريب نه داخليږي.

زموږ عقلي دليل دا دی چې په جلا وطن کولو کي د زنا دروازه خامخا خلاصيږي. ځکه کله چې زاني او زانيه له خپل ښار څخه ويستل او له خپل وطن څخه وشړل سي. نو هلته به د دوی هيڅ قريب نه وي. نو په بې باکي او جرائت سره به زنا کوي. او عموماً داسي شړل سوي ښځه زنا او بدکاري خپله دنده جوړوي. له همدې کبله حضرت علي ﷺ فرمايلي دي "كَفٰى بِالنَّفْيِ فِتْنَةً" چې له ښار څخه ايستل د فتني او فساد لپاره کافي دي. لهذا په تغريب کي تر ګټې تاوان زيات دی او هغه د إِثْمُهُ أَكْبَرُ مِنْ نَفْعِهِ مصداق دی. نو په دې وجه به تغريب د جَلد سره نه جمع کيږي.

**والحديث منسوخ إلخ:** په دې عبارت سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي. فرمايي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله بيان سوی حديث منسوخ دی، او د نسخ دليل يې دا دی چې د هغه حديث دا حصه او جزء "الثّيب بالثّيب جلد مائة..." هم منسوخ دی. لهذا د دې نسخ په وجه به هم جَلد او تغريب نه سره جمع کيږي.

ها! که چيري امام په تغريب کي مصلحت او خير ووينې، نو هغه د خپل ښه تدبير مطابق د يو څو ورځو لپاره تغريب کولای سي. لېکن دا تغريب به د حدّ په توګه نه وي. بلکي د سزا او سياست مدني په اعتبار سره به وي. او رښتيا هم په ځيني حالاتو کي تغريب فايده من ثابتيږي. نو ځکه زموږ په نيز هم امام ته د ښه تدبير مطابق د تغريب کولو حق ستنه. او حضرت ابن عمر ﷺ او شيخينو رَحِمَهُمَا الله چې د تغريب حکم کړی دی، هغه پر تعزير او سياست مدني باندي محمول دی.

## پر زناکاره مريض د حدّ جاري کولو بيان

| وَإِذَا زَنَى الْمَرِيضُ وَحَدُّهُ الرَّجْمُ او کله چې مريض زنا وکړي او د هغه حدّ رجم وي رُجِمَ نو هغه به رجم کيږي لِأَنَّ الْإِتْلَافَ مُسْتَحَقٌّ ځکه چې هلاکول واجب دي فَلَا يَمْتَنِعُ بِسَبَبِ الْمَرَضِ لهذا د مرض اناروغی) په وجه به دا إتلاف نه منع کيږي وَإِنْ كَانَ حَدُّهُ الْجَلْدَ او که د هغه حدّ دُرې وهل وي لَمْ |
|---|

يُجْلَدُ حَتّٰى يَبْرَأَ نو [تر هغه وخته] به په دُورو نه وهل كيږي تر دې چې جوړ [او روغ] سي كَيْلَا يُفْضِيَ إِلَى الْهَلَاكِ ددې لپاره چې دا [وهل] د هلاكت [مړ كېدلو] سبب جوړ نه سي وَلِهٰذَا لَا يُقَامُ الْقَطْعُ عِنْدَ شِدَّةِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ او له همدې كبله په سخته ګرمي او سخت يخ كې [د غله لاس] نه غوڅول كيږي وَإِذَا زَنَتِ الْحَامِلُ او كله چې حامله ښځه زنا وكړي لَمْ تُحَدَّ حَتّٰى تَضَعَ حَمْلَهَا نو [تر هغه وخته] به حد نه پر جاري كيږي تر دې چې حمل وزېږوي كَيْلَا يُؤَدِّيَ إِلَى هَلَاكِ الْوَلَدِ ددې لپاره چې دا د بچي د هلاكت سبب جوړ نه سي وَهُوَ نَفْسٌ مُحْتَرَمَةٌ [ځكه چې] بچى يو محترم [او د حفاظت قابل] نفس دى [ځكه هغه خو هيڅ خطاء نه ده كړې] وَإِنْ كَانَ حَدُّهَا الْجَلْدَ او كه د حاملې حدّ دُرې وهل وي لَمْ تُجْلَدْ حَتّٰى تَتَعَالٰى مِنْ نِفَاسِهَا أَيْ تَرْتَفِعَ نو [تر هغه وخته] به په دُرو نه وهل كيږي تر دې چې له نفاس څخه پورته سي. يعني نفاس يې ختم سي يُرِيْدُ بِهِ تَخْرُجُ مِنْهُ په [تتعالى] اسره د امام قدوري مطلب دا دى چې هغه [حامله] له نفاس څخه ووځي لِأَنَّ النِّفَاسَ نَوْعُ مَرَضٍ ځكه چې نفاس يو ډول مرض دى فَيُؤَخَّرُ إِلَى زَمَانِ الْبُرْءِ لهذا د جوړېدلو [روغېدلو] تر وخت پوري به جَلْد ځنډول كيږي بِخِلَافِ الرَّجْمِ په خلاف د رجم لِأَنَّ التَّأْخِيْرَ لِأَجْلِ الْوَلَدِ ځكه چې [د رجم] ځنډول د بچي په وجه دى [يعني رجم د حمل (بچي) د ساتني په وجه ځنډول كيږي] وَقَدِ انْفَصَلَ او بچى [خو] پيدا سو انو ځكه به ښځه رجم كيږي، او تر نفاس ختمېدلو پوري به د هغې رجم نه ځنډول كيږي] وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ [*] : أَنَّهُ يُؤَخَّرُ إِلَى أَنْ يَسْتَغْنِيَ وَلَدُهَا عَنْهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دى: چې [د دې ښځې] رجم به تر هغه وخت پوري ځنډول كيږي چې د هغې بچى له هغې څخه بې پروا سي [يعني د هغې له ساتني او پرورش څخه بې پروا سي] إِذَا لَمْ يَكُنْ أَحَدٌ يَقُوْمُ بِتَرْبِيَتِهِ [په دې شرط] كله چې داسي څوك نه وي چې د كوچني تربيت [او پرورش] وكړي لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ صِيَانَةَ الْوَلَدِ عَنِ

---

[*] القول الراجح: هو قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في ردّ المحتار (ج:۳، ص:۱۶۳)، وكذا في الخانية (ج:۴، ص:۴۱۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۳۷]

الضِّيَاعِ ځکه چي د رجم په ځنډولو کي له ضايع کېدلو څخه د بچي ساتل دي وَقَدْ رُوِیَ أَنَّهُ ﷺ قَالَ [1] لِلْغَامِدِيَّةِ بَعْدَمَا وَضَعَتْ: ارْجِعِي حَتَّى يَسْتَغْنِيَ وَلَدُكِ او روايت سوی دی چي غامديه ښځي ته تر حمل زېږولو وروسته نبي ﷺ وفرمايل: واپس ولاړه سه! تر دې چي ستا بچی استا له پرورش څخه ابې پرواسي ثُمَّ الْحُبْلَى تُحْبَسُ إِلَى أَنْ تَلِدَ إِنْ كَانَ الْحَدُّ ثَابِتًا بِالْبَيِّنَةِ بيا به حامله ښځه د بچي تر زېږولو پوري بندي کېږي که چيري حدّ د ګواهئ په ذريعه ثابت سوی وي كَيْ لَا تَهْرُبَ د دې لپاره چي هغه ونه تښتېږي بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ په خلاف د اقرار لِأَنَّ الرُّجُوعَ عَنْهُ عَامِلٌ ځکه چي له اقرار څخه رجوع عمل کونکې ده ايعني د حدّ ساقطونکې ده ا فَلَا يُفِيدُ الْحَبْسُ نو اد اقرار په صورت کي د هغې ابندي کول فايده نه کوي الهذا تر اقرار وروسته به هغه نه بندي کيږي ا.

**اللغات:** ﴿إِتْلَافْ﴾ د افعال مصدر دی: ضايع کول، هلاکول (وژل). ﴿يَبْرَأْ﴾ د فتح مضارع ده: جوړېدل، روغېدل، ښه کېدل. ﴿لَا يُفْضِيْ﴾ د افعال له باب څخه د نفي صيغه ده: رسول. مراد ځني سبب جوړېدل دي. ﴿قَطْع﴾ پرېکول، غوڅول. مراد ځني د غله لاس غوڅول دي. ﴿تَتَعَالَى﴾ د تفاعل مضارع ده: پورته کېدل، يعني له نفاس څخه د ښځي وتل. ﴿يُؤَخَّر﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: ځنډول، مؤخّر کول. ﴿حُبْلَى﴾ بلاربه، حامله. ﴿تُحْبَس﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: قيدول، بندي کول، بنديخانې ته اچول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري يو مريض زنا وکړي او هغه محصن وي يعني د رجم مستحق وي، نو هغه به بېله ځنډه رجم کيږي: ځکه کله چي پر هغه رجم واجب دی. او د رجم مقصد هلاکول او وژل دي، نو د مرض په وجه به د هغه إهلاک (وژل) نه ځنډول کيږي. لېکن که دا مريض غيرِ محصن وي او د رجم مستحق نه وي، بلکي د هغه سزا جَلد يعني سل دُرې وي، نو د هغه تر صحت او روغتيا پوري به د هغه سزا ځنډول کيږي. او د مرض (ناجوړی) په حالت کي به هغه نه وهل کيږي: ځکه چي د مرض په حالت کي په دُرو سره وهل د هلاکت (مرګ) سبب جوړيږي. حالانکي په جَلد سره إهلاک مقصود نه دی. همدا وجه ده چي په زيات يخ او په زياته ګرمي کي د غله (سارق) لاس نه غوڅول کيږي چي دا قطع د هلاکت سبب جوړه نه سي.

[1] تخريج: أخرجه مسلم رقم الحديث: ١٦٩٥ وابن أبي شيبة تحت رقم الحديث: ٢٨٨٠٩

**وإذا زنت الحامل إلخ:** د دې حاصل دا دی که چیرې حامله ښځه زنا وکړي او هغه د رجم مستحقه وي. نو تر څو چې د هغې بچی پیدا نه سي، تر هغه وخته به نه رجم کیږي، ځکه چې د حاملې په رجم کولو سره به د هغې بچی هلاک سي، حالانکي د هغې بچی نفس محترم دی او هغه هیڅ خطاء نه ده کړې، نو د بچي د ساتني لپاره به د حمل د زیږولو تر وخته پوري د هغې رجم ځنډول کیږي.

او که د هغې حد جَلد یعني سل دُرې وي، نو په دې صورت کي به له حمل زیږولو څخه وروسته د نفاس تر ختمېدلو پوري د هغې د جَلد سزا ځنډول کیږي، ځکه چې نفاس هم یو ډول مرض او ناجوړې ده. لهذا د نورو مرضونو په څیر به د نفاس په وجه هم جَلد مؤخر کیږي. (او هر کله چې نفاس ختم سي، نو بیا به هغې ته سزا ورکول کیږي). او د رجم کولو په صورت کي به تر حمل زیږولو وروسته ښځه رجم کیږي ځکه چې په رجم کي إهلاک مقصود وي، او مرض له هغه څخه مانع نه دی. لیکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله یو روایت دا دی چې تر حمل زیږولو وروسته به سمدستي ښځه نه رجم کیږي، او که د هغې د بچي د پرورش او پالني لپاري یو څوک نه وي، نو تر دومره وخت پوري به رجم ځنډول کیږي، تر څو چې بچی له هغې څخه مستغني سي، ځکه چې تر دې مخکي د مور په رجم کولو سره بچی ضایع کیږي، حالانکي مور ته د بچي د حفاظت او ساتلو حکم سوی دی، نه د إتلاف او ضایع کولو. د دې نقلي دلیل دا دی چې نبي کریم ﷺ غامدیه ښځي ته دا فرمایلي وو چې "اِرْجِعِيْ حَتّٰى يَسْتَغْنِيَ وَلَدُكِ". یعني تر څو چې ستا له پرورش څخه بچی مستغني نه سي، تر هغه وخته پوري مور، تا نه رجم کوو. بیا هغه ولاړه او خپل بچی یې را ویستی او د نبي ﷺ په خدمت کي یې حاضر کړی او هغه ډوډۍ خوړل، نبي ﷺ چې بچی ولیدی چې غټ دی او د مور له پرورش څخه مستغني دی، نو بیا یې پر هغې د رجم حکم صادر کړی. معلومه سوه چې د بچي تر مستغني کېدلو رجم ځنډول زیات غوره دي.

**ثم الحبلیٰ إلخ:** فرمایي که د حاملې ښځي زنا په گواهۍ سره ثابته سوې وي، نو د بچي تر زیږولو پوري به هغه بندي کیږي. د دې لپاره چې هغه فرار اختیار نه کړي. لیکن که د هغې په اقرار سره زنا ثابته سوې وي، نو بیا د هغې د بندي کولو هیڅ ضرورت نسته، ځکه چې په دې صورت کي هغې ته دا حق هم سته چې له زنا څخه رجوع وکړي، او د رجوع په ذریعه حدّ ساقط کړي. نو ځکه به هغه نه بندي کیږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْوَطْيِ الَّذِيْ يُوْجِبُ الْحَدَّ وَالَّذِيْ لَا يُوْجِبُهُ

(د) باب د هغه وطي (په بيان کي) دی چي حدّ واجبوی او هغه
چي حدّ نه واجبوي

## کومي وطي ته زنا وايي او د کومي وطي په وجه حد واجبيږي؟ (تفصيلي بيان)

قَالَ: اَلْوَطْءُ الْمُوْجِبُ لِلْحَدِّ هُوَ الزِّنَا فرمايي: چي د حدّ واجبونکي وطي زنا ده وَإِنَّهُ فِيْ عُرْفِ الشَّرْعِ وَاللِّسَانِ: وَطْءُ الرَّجُلِ الْمَرْأَةَ فِي الْقُبُلِ فِيْ غَيْرِ الْمِلْكِ وَشُبْهَةِ الْمِلْكِ او د شريعت او لغت په عرف کي د زنا معنیٰ دا ده: چي سړی د داسي ښځي سره په فرج کي وطي وکړي چي [په هغې کي د سړي] ملکيت [هم] نه وي او د ملکيت شبهه [هم] نه وي لِأَنَّهُ فِعْلٌ مَحْظُوْرٌ ځکه چي دا ممنوع [ناروا] کار دی وَالْحُرْمَةُ عَلَى الْإِطْلَاقِ عِنْدَ التَّعَرِّيْ عَنِ الْمِلْكِ وَشُبْهَتِهِ او مطلق حرمت هغه وخت ثابتيږي کله چي وطي له ملکيت او د ملکيت له شبهي څخه خالي وي يُؤَيِّدُ ذٰلِكَ قَوْلُهُ عليه السلام [1] اِدْرَءُوا الْحُدُوْدَ بِالشُّبُهَاتِ [او] د نبي کريم ﷺ دا قول "اِدْرَءُوا الْحُدُوْدَ بِالشُّبُهَات" هم د دې تائيد کوي [چي د ملکيت په شبهي سره حدّ ساقطيږي او مطلق حرمت نه پاتيږي، د حديث معنیٰ ده: چي تاسي د شبهاتو په وجه حدود دفع کړئ!] ثُمَّ الشُّبْهَةُ نَوْعَانِ: شُبْهَةٌ فِي الْفِعْلِ وَتُسَمَّى شُبْهَةَ اشْتِبَاهٍ وَشُبْهَةٌ فِي الْمَحَلِّ وَتُسَمَّى شُبْهَةً حُكْمِيَّةً بيا شبهه پر دوه قسمه ده: ① شبهه فی الفعل او دې ته شبهۀ اشتباه ويل کيږي. ② او شبهه فی المحل او دې ته شبهۀ حکميه ويل کيږي فَالْأُوْلٰى تَتَحَقَّقُ فِيْ حَقِّ مَنِ اشْتَبَهَ عَلَيْهِ نو اول قسم [شبهه فی الفعل] د هغه انسان [مجرم] په حق کي ثابتيږي چي پر هغه فعل [او ملکيت] مشتبه سي لِأَنَّ مَعْنَاهُ: أَنْ يَظُنَّ غَيْرُ الدَّلِيْلِ دَلِيْلًا ځکه چي د دې مطلب دا دی: چي انسان پر هغه شي د دليل ګومان وکړي کوم چي دليل نه وي وَلَا بُدَّ مِنَ الظَّنِّ لِتَحَقُّقِ الْاِشْتِبَاهِ

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في المصنف، رقم الحديث: ٢٨٤٩٧، ولكن في الحديث: ادفعوا مكان ادرءوا.

او [ په دې صورت کې [ د اشتباه د ثابتېدلو لپاره د ګومان وجود ضروري دی اچې مجرم ووايي: چې ما دا ګومان وکړی چې دا ښځه زما لپاره حلاله ده ] وَالثَّانِيَةُ تَتَحَقَّقُ بِقِيَامِ الدَّلِيلِ النَّافِي لِلْحُرْمَةِ فِي ذَاتِهِ او دويم قسم [شبهه في المحل ] د داسې دليل په موجودېدلو سره ثابتيږي کوم چې بذات خود د حرمت نفي کونکې وي وَلَا تَتَوَقَّفُ عَلَىٰ ظَنِّ الْجَانِي وَاعْتِقَادِهِ او دويم قسم د مجرم پر ګومان او اعتقاد [يقين ] باندې نه موقوف کيږي وَالْحَدُّ يَسْقُطُ بِالنَّوْعَيْنِ او حد به په دواړو قسمونو سره ساقطيږي لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ ځکه چې حديث مطلق دی وَالنَّسَبُ يَثْبُتُ فِي الثَّانِيَةِ إِذَا ادَّعَى الْوَلَدَ او که چيرې زاني [مجرم ] د بچي د نسب دعوىٰ وکړي نو په دويم قسم کې [د هغه سره د بچي ] نسب ثابتيږي وَلَا يَثْبُتُ فِي الْأُولَىٰ وَإِنْ ادَّعَاهُ [ليکن ] په اول قسم کې نه ثابتيږي که څه هم هغه د نسب دعوىٰ وکړي لِأَنَّ الْفِعْلَ تَمَحَّضَ زِنًا فِي الْأُولَىٰ ځکه چې په اول کې صورت کې فعل [وطي ] خالص زنا ده وَإِنَّمَا يَسْقُطُ الْحَدُّ لِأَمْرٍ رَاجِعٍ إِلَيْهِ وَهُوَ اشْتِبَاهُ الْأَمْرِ عَلَيْهِ او [ په اول صورت کې به ] حد ځکه ساقطيږي چې واطئ د داسې شي دعوىٰ کړې ده کوم چې د ده وطرف ته راجع دي او هغه پر ده د فعل [او ملکيت ] مشتبه کېدل دي [يعني د زاني ګومان دا دی چې دا ښځه زما لپاره حلاله ده ] وَلَمْ يَتَمَحَّضْ فِي الثَّانِيَةِ او په دويم قسم [شبهه في المحل ] کې فعل خالص زنا نه ده فَشُبْهَةُ الْفِعْلِ فِي ثَمَانِيَةِ مَوَاضِعَ او شبهه في الفعل په اتو [٨] ځايونو کې سته جَارِيَةِ أَبِيهِ [١] د خپل پلار د مينځې سره په وطي کولو کې وَأُمِّهِ [٢] د خپل مور د مينځې سره په وطي کولو کې وَزَوْجَتِهِ [٣] او د خپلې ښځې د مينځې سره په وطي کولو وَالْمُطَلَّقَةِ ثَلَاثًا وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ [٤] او د مطلقه ثلاثه په عدت کې د هغې سره په وطي کولو کې [يعني چې خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي او بيا د هغې په عدت کې وطي ورسره وکړي. نو په دې صورت کې هم شبهه بالفعل سته ] وَبَائِنًا بِالطَّلَاقِ عَلَىٰ مَالٍ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ [٥] او د مال په عوض کې د طلاق بائن ورکول سوي ښځې په عدت کې د هغې سره په وطي کولو کې ايعني چې خاوند خپلې ښځې ته د مال په بدله کې طلاقِ بائن ورکړي. او بيا په عدت کې وطي ورسره وکړي ] وَأُمِّ وَلَدٍ أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ [٦] او د خپلې آزادي کړی سوي اُم ولد په عدت کې د هغې سره په وطي کولو کې [يعني چې مالک خپله مينځه آزاده کړي او بيا د هغې سره په عدت کې وطي

وکړي ا وَجَارِيَةِ الْمَوْلٰى فِي حَقِّ الْعَبْدِ ا۷ا او د خپل مالک د مينځي سره د غلام په وطي کولو کي ايعني چي غلام د خپل مالک د مينځي سره وطي وکړي ا وَالْجَارِيَةِ الْمَرْهُوْنَةِ فِي حَقِّ الْمُرْتَهِنِ فِي رِوَايَةِ كِتَابِ الْحُدُوْدِ ا۸ا او د مرهونه مينځي سره د مرتهن په وطي کولو کي د کتابُ الحدود د روايت مطابق ايعني چي راهن خپله مينځه مرتهن ته په رهن کي کښيږدي او مرتهن د هغې سره وطي وکړي. نو د کتابُ الحدود مطابق په دې صورت کي هم شبهه ستها فَفِي هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ لَا حَدَّ عَلَيْهِ إِذَا قَالَ: ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِيْ نو که چيري په دې ااتها ځايونو کي واطئ داسي ووايي: زما گومان دا وو چي دا ښځه زما لپاره حلاله ده. نو پر هغه حدّ نه واجبيږي وَلَوْ قَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ وَجَبَ الْحَدُّ او که چيري هغه داسي ووايي: زه په دې خبر وم چي دا ښځه پر ما حرامه ده. نو حدّ نه واجبيږي وَالشُّبْهَةُ فِي الْمَحَلِّ فِي سِتَّةِ مَوَاضِعَ او شبهه في المحل په شپږو ځايونو کي ستة جَارِيَةِ ابْنِهِ ا۱ا د خپل زوی د مينځي سره په وطي کولو کي وَالْمُطَلَّقَةِ طَلَاقًا بَائِنًا بِالْكِنَايَاتِ ا۲ا د کنايي الفاظو په ذريعه د طلاق بائن ورکول سوي ښځي سره په وطي کولو کي وَالْجَارِيَةِ الْمَبِيْعَةِ فِي حَقِّ الْبَائِعِ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ ا۳ا او د خرڅه کړی سوي مينځي تر ور سپارلو مخکي د هغې سره د بائع اخرڅونکي ا په وطي کولو کي ايعني چي مالک خپله مينځه خرڅه کړي او بيا مشتري ته تر ورسپارلو مخکي د هغې سره وطي وکړي، نو په دې صورت کي هم شبهه في المحل ستها وَالْمَمْهُوْرَةُ فِي حَقِّ الزَّوْجِ قَبْلَ الْقَبْضِ ا۴ا او په مهر کي د ورکول سوي مينځي تر قبضه کولو مخکي د هغې سره د خاوند په وطي کولو کي ايعني چي خاوند خپلي ښځي ته په مهر کي مينځي ورکړي، او ښځي تراوسه پر مينځي قبضه کړي نه وي، او خاوند د هغې سره وطي وکړي ا وَالْمُشْتَرَكَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ او د مشترکي مينځي سره د يو شريک په وطي کولو کي وَالْمَرْهُوْنَةُ فِي حَقِّ الْمُرْتَهِنِ فِي رِوَايَةِ كِتَابِ الرَّهْنِ او د مرهونه مينځي سره د مرتهن په وطي کولو کي د کتابُ الرهن د روايت مطابق فَفِي هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ لَا يَجِبُ الْحَدُّ وَإِنْ قَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ نو په دې ځايونو کي حدّ نه واجبيږي که څه هم واطئ داسي ووايي: زه په دې خبر وم چي دا ښځه پرما حرامه ده ثُمَّ الشُّبْهَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ تَثْبُتُ بِالْعَقْدِ وَإِنْ كَانَ مُتَّفَقًا عَلٰى تَحْرِيْمِهِ وَهُوَ عَالِمٌ بِهِ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په عقد انکاح ا سره هم شبهه ثابتيږي که څه هم د عقد حراموالی متفق عليه وي. او واطئ د عقد په حراموالی خبر اهم ا

وي وَعِنْدَ الْبَاقِيْنَ لَا تَثْبُتُ إِذَا عَلِمَ بِتَحْرِيْمِهِ او د پاته فقهاؤ په نيز كه چيري واطئ د دې عقد په حراموالي خبر وي نو شبهه نه ثابتيږي وَيَظْهَرُ ذٰلِكَ فِيْ نِكَاحِ الْمَحَارِمِ عَلَى مَا يَأْتِيْكَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او د محرماتو په نكاح كي د دې اختلاف ثمره به انشاء الله ستا مخ ته | په تفصيلي توګه | راسي.

**اللغات:** ﴿قُبُل﴾ د ښځي مخكني شرمګاه، فرج. ﴿محظور﴾ ممنوع، ناجائز، ناروا. ﴿التعرّي﴾ د تفعّل مصدر دی: خالي كېدل. ﴿إِدْرَءُوا﴾ د فتح له باب څخه د جمع مذكر امرِ حاضر صيغه ده: ليري كول، دفع كول. ﴿ظَنّ﴾ ګومان. ﴿جَانِي﴾ جرم كونكى (مجرم). ﴿مَبِيْعَة﴾ د ضرب له باب څخه د مؤنث اسمِ مفعول صيغه ده: خرڅه كړې سوې (هغه مينځه چي مالک يې خرڅه كړي). ﴿مَمْهُوْرَة﴾ دا هم د مؤنث اسمِ مفعول صيغه ده. له نصر او فتح دواړو څخه راځي: په مهر كي وركول سوې مينځه. د مهر په توګه وركول سوې مينځه. مَهَرَ يَمْهُرُ مَهْرًا: په مهر كي وركول. په مهر كي ټاكل.

**تشريح:** د عبارت مطلب له ترجمې څخه واضح دی. خو ستاسي د آسانۍ لپاره د هغه خلاصه دا ده چي كه د سړي لپاره په ښځه كي نه ملک نكاح وي، او نه ملک رقبه وي، او نه د ملک رقبه شبهه وي. نو د داسي ښځي سره وطي كولو ته زنا وايي (يعني كه يو سړی د پردۍ ښځي سره وطي وكړي چي هغه نه د ده ماينه وي، او نه يې مينځه وي، او د ماينې و مينځي له شبهي څخه هم وتلې وي، نو دغه وطي ته زنا وايي)، او په دې زنا سره حدّ واجبيږي. لېكن كه چيري ملک نكاح وي، يا ملک رقبه وي، يا د ملک رقبه شبهه وي او بيا سړی د ښځي سره وطي وكړي، نو حدّ ساقطيږي.

وروسته فرمايي چي شبهه پر دوه قسمه ده: ① په محل كي شبهه (شبهه في المحل)، ② په فعل كي شبهه (شبهه في الفعل)، (١) شبهه في المحل: دې ته شبهۀ حكميه هم وايي، د دې مطلب دا دی چي په ښځه (مينځه) كي د سړي د ملكيت (مالک كېدلو) شبهه وي، نو دا سړی كه څه هم د هغې سره وطي حرام ګڼي او بيا وطي ور سره وكړي، نو هم به حدّ ساقطيږي، ځكه چي د ملكيت شبهه موجود ده. مثلاً كه پلار د زوی د مينځي سره وطي وكړي، نو كه څه هم پلار د هغې سره وطي حرام ګڼي، بيا هم حدّ ساقطيږي، ځكه چي د ملكيت شبهه موجود ده. لكه مخكي چي په دې هكله بحث وسو چي نبي ﷺ يو بچي ته وفرمايل: أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيْكَ.

(٢) شبهه في الفعل: دې ته شبهۀ اشتباه هم وايي. د دې مطلب دا دی چي د ملكيت شبهه نه وي. بلكي شبهۀ الشبهه وي. كه په دې صورت كي سړی وطي حلال ګڼي او وطي وكړي، نو حدّ به ساقطيږي. او كه وطي حرام ګڼي بيا هم وطي كړي، نو پر هغه به حدّ جاري كيږي. مثلاً د پلار مينځه

د زوې مينځه نه شمارل كيږي، ليكن د توسّع او نژدېكت پر بنياد زوې د پلار شي استعمالولاى سي، نو په دې وجه زوې ته دا شبهه پيدا كيږي چي د پلار مينځي به هم د هغه وي، اوس كه چيري زوې د پلار د مينځي سره وطي وكړي، او د هغه دا گومان وي چي په دې مينځه كي زما ملكيت سته. نو د ملكيت د شبهي په به وجه حدّ ساقطيږي، ليكن كه زوې ووايي چي دا زما لپاره حرامه ده. بيا هم وطي ور سره وكړي. نو پرَ هغه به حدّ جاري كيږي (ځكه چي د هغه په گومان كي هم د ملكيت شبهه نسته).

فالأولى تتحقق في حق من اشتبه إلخ: د دې حاصل دا دى چي شبهه فى الفعل د هغه سړي حق كي ثابتيږي چي په حقيقت كي د هغه لپاره په ښځه كي د ملكيت دليل موجود نه وي. ليكن هغه خپل د ملكيت شبهه او گومان كوي او داسي شى دليل گڼي چي هغه دليل نه وي (مثلاً د زوې مثال كوم چي لوړ ذكر سو. يا مثلاً خاوند د خپلي ښځي د مينځي سره وطي حلال وگڼي. حالانكي د هغې سره وطي حلال نه دي، ځكه چي د ښځي له مينځي څخه فقط خدمت اخيستل حلال دي. ليكن وطي حلال نه دي)، نو په دغه صورت كي د حدّ ساقطولو لپاره د واطئ سړي گومان ضروري دى. يعني كه هغه دا ووايي چي ما دا ښځه د ځان لپاره حلاله گڼله. بيا به حدّ ساقطيږي. او كه ووايي چي ما حرامه گڼله. نو حدّ به جاري كيږي. ځكه چي په حقيقت كي د حلالوالي دليل (شبهه) موجود نه سو.

والثانية تتحقق إلخ: د دې عبارت حاصل دا دى چي شبهه فى الملك د داسي دليل په وجه سره ثابتيږي، كوم چي بذات خود د وطي حُرمت نفي كوي (يعني په ښځه كي د ملكيت شبهه موجوده وي). نو په دې صورت كي د واطئ گومان ضروري نه دى. يعني كه څه هم هغه وطي حرام گڼي. نو هم به حدّ نه جاري كيږي. (ځكه چي په دې صورت كي د ملكيت شبهه موجود ده).

والحد يسقط بالنوعين: فرمايي چي حدّ د شبهي په دغه دواړو قسمونو سره ساقطيږي. ځكه چي دا حديث إِدْرَءُوا الحُدُوْدَ بَالشُّبُهَات مطلق دى، او د شبهه فى المحل يا شبهه فى الفعل قيد پكښي ذكر سوى نه دى.

والنسب يثبت إلخ: په شبهه فى الفعل او شبهه فى المحل كي فرق دا دى چي كه په شبهه فى المحل كي واطئ سړى د خپلي وطي څخه د پيدا سوي كوچني د نسب دعوىٰ وكړي. نو د هغه بچي نسب د ده سره ثابتيږي. ځكه چي د شبهه فى المحل په وجه د هغه فعل يعني وطي خالص زنا نه سوه. او څرنگه چي د نسب په ثابتولو كي احتياط كيږي، نو ځكه به د دې واطئ په دعوىٰ سره د هغه بچي نسب د ده سره ثابتيږي. د دې په خلاف كه واطئ په شبهه فى الفعل كي د خپلي وطي څخه د پيدا سوي كوچني د نسب دعوى وكړي، نو د دعوىٰ باوجود هم د ده سره د بچي نسب نه ثابتيږي. ځكه

چي په محل يعني په موطوئه ښځه کي د هغه هيڅ حق نسته. او د هغه وطي خالص زنا واقع سوه. لېکن څرنګه چي په دې قِسم (شبهه فی الفعل) کي زاني د خپل ملکيت ګومان او شبهه لري او د فعل د اشتباه دعویٰ کوي، نو په دې وجه له هغه حدّ ساقطيږي.

**فشبهة الفعل إلخ:** شبهه فی الفعل په اته ځايونو کي ثابتيږي. کوم چي په ترجمه کي په وضاحت سره ذکره سول، او د هغوی حکم هم په ترجمه کي بيان سو.

**ثم الشبهة عند أبي حنيفة إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که يو څوک د محرمي ښځي سره نکاح وکړي (يعني دا سي ښځه چي د همېشه لپاره نکاح کول ور سره حرام وي). مثلاً يو څوک د خور سره نکاح وکړي او ايجاب او قبول وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په داسي عقد سره هم شبهه ثابتيږي. او په دې شبهه سره به هم حدّ ساقطيږي، لېکن د نورو علماؤ په نېز که واطئ د داسي عقد په حراموالي خبري وي، نو بيا په هغه سره شبهه نه ثابتيږي. لهذا که يو څوک د خبر تيا باوجود د محرمي ښځي سره نکاح وکړي او بيا وطي ور سره وکړي، نو د نورو علماؤ په نېز پر هغه حدّ جاري کيږي. او د دې اختلاف نور وضاحت به وروسته انشاء الله ذکر سي.

## د طلاقِ مغلظه په عدت کي وطي کول

إِذَا عَرَفْنَا هٰذَا وَمَنْ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ وَطِئَهَا فِي الْعِدَّةِ کله چي موږ دا وپېژندل [نو اوس دا هم په ياد لرئ] چي که څوک خپلي ښځي ته درې طلاقه ورکړي بيا په عدت کي د هغې سره وطي وکړي وَقَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ او [بيا] ووايي: چي زه په دې خبر وم چي هغه پر ما حرامه ده حُدَّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي لِزَوَالِ الْمِلْكِ الْمُحَلِّلِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي [د درېو طلاقو په وجه] حلالونکی ملکيت په هر اعتبار سره زائل سو فَتَكُونُ الشُّبْهَةُ مُنْتَفِيَةً نو ځکه به شبهه ختمه [او معدومه] وي وَقَدْ نَطَقَ الْكِتَابُ بِانْتِفَاءِ الْحِلِّ او قرآن کريم [هم] د حلت ختمېدلو خبره بيان کړې ده وَعَلٰى ذٰلِكَ الْإِجْمَاعُ او پر همدې اجماع سوې ده وَلَا يُعْتَبَرُ قَوْلُ الْمُخَالِفِ فِيهِ او په دې سلسله کي د مخالفينو قول معتبر نه دی [يعني کوم خلک چي په دې هکله خلاف کوي او وايي چي په درېو طلاقو سره يو طلاق واقع کيږي. د هغو قول بالکل معتبر نه دی] لِأَنَّهُ خِلَافٌ لَا اخْتِلَافٌ ځکه چي دا خلاف دی اختلاف نه دی وَلَوْ قَالَ: ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِي او که هغه ووايي: چي ما دا ګومان وکړی چي هغه زما لپاره حلاله ده لَا يُحَدُّ نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ الظَّنَّ فِي مَوْضِعِهِ ځکه چي د هغه

ګومان پر خپل ځاي دی لِأَنَّ أَثَرَ الْمِلْكِ قَائِمٌ فِي حَقِّ النَّسَبِ وَالْحَبْسِ وَالنَّفَقَةِ ځکه چي اد عدت په دوران کي اد ملکيت أثر د نسب، حبس او نفې په حق کي پاته وي فَاعْتُبِرَ ظَنُّهُ فِي إِسْقَاطِ الْحَدِّ لهذا د حدّ په ساقطولو کي به د هغه ګومان معتبر وي وَأُمُّ الْوَلَدِ إِذَا أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا وَالْمُخْتَلِعَةُ وَالْمُطَلَّقَةُ عَلَى مَالٍ بِمَنْزِلَةِ الْمُطَلَّقَةِ الثَّلَاثَ او أم ولد چي کله خپل مالک آزاده کړي او خلع کونکې ښځه او د مال په بدله کي طلاقه سوې ښځه د مطلقه ثلاثه په درجه کي دي لِثُبُوتِ الْحُرْمَةِ بِالْإِجْمَاعِ ځکه چي اد دې ښځو ا حرمت په إجماع سره ثابت دی وَقِيَامِ بَعْضِ الْآثَارِ فِي الْعِدَّةِ او په عدت کي اد نکاح د ملکيت ا ځيني آثار پاته دي وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ خَلِيَّةٌ أَوْ بَرِيَّةٌ أَوْ أَمْرُكِ بِيَدِكِ او که ايو شوک ا خپلې ښځي ته ووايي: ته خالي يې يا ته بري يې يا ستا اختيار ستا په لاس کي دی فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا بيا ښځي خپل ځان اختيار کړی ثُمَّ وَطِئَهَا فِي الْعِدَّةِ وَقَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ ا او ا بيا خاوند په عدت کې د هغې سره وطي وکړي او دا يې ووېل: چي زه په دې خبر وم چي هغه پر ما حرامه ده لَمْ يُحَدَّ نو حدّ به نه پر جاري کيږي لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فِيهِ ځکه چي په دې ا کنايي ا الفاظو کي د صحابه وو اختلاف دی فَمِنْ مَذْهَبِ عُمَرَ أَنَّهَا تَطْلِيقَةٌ رَجْعِيَّةٌ د حضرت عمر ﷺ مذهب دا دی چي دا الفاظ طلاقِ رجعي دی ا يعني په دې الفاظو سره طلاق رجعي واقع کيږي ا وَكَذَا الْجَوَابُ فِي سَائِرِ الْجِنَايَاتِ او د ټولو کنايا تو همدغه حکم دی وَكَذَا إِذَا نَوَى ثَلَاثًا او همدارنګه کله چي هغه ا په دې الفاظو سره ا د دريو طلاقو نيت وکړي ا نو هم به حدّ نه پر جاري کيږي ا لِقِيَامِ الِاخْتِلَافِ مَعَ ذٰلِكَ ځکه چي په دې صورت کي اهم ا اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿حُدَّ﴾ د نصر له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده: حد تاکل. حد جاري کول. ﴿مُحَلِّل﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: حلالونکی، حلال ګرځونکی. ﴿نَطَقَ﴾ د ضرب ماضي ده: خبره کول. بيانول. ﴿حَبْس﴾ د ضرب مصدر دی: قيدول. منع کول. ﴿خَلِيَّة﴾ د صفت مشبه مؤنث صيغه ده: خالي. دا کلمه له طلاق څخه کنايه ده. ﴿بَرِيَّة﴾ مخکنی صيغه ده: بري. بېزاره. خلاصه. دا هم له طلاق څخه کنايه ده.

**تشریح: مسئله**: دا ده که يو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي. او بيا د هغې په عدت کې وطي ور سره وکړي او بيا داسې ووايي چې "ما ته معلومه وه چې زما لپاره د هغې سره وطي کول حرام دي"، نو پر هغه به حد جاري کيږي؛ ځکه چې د درېو طلاقونو په وجه سره د وطي او جماع حلالونکې ملکيت په بشپړه توګه زائل سو. لکه څرنګه چې د قرآن کريم په دې آيت کې د هغه زوال بيان سوی دی "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ". او پر دې باندې د اُمت اجماع هم سوې ده. نو دلته شبهه في المحل او شبهه في الفعل دواړه منتفي او نيستي سوه. لهذا کله چې دلته بالکل هيڅ شبهه نسته، نو ښکاره خبره ده چې حد به خامخا واجبيږي. پاته سو دا اعتراض چې د "إماميه" ډلې په نيز درې طلاقه معتبر نه دي. او د "زيديه" ډلې په نيز درې طلاقه يو طلاق دی. لهذا ستاسې دا خبره صحيح نه ده چې دلته بالکل شبهه نسته؟ د دې اعتراض جواب دا دی چې دا خلاف دی، اختلاف نه دی. او موږ د اختلاف جواب ورکوو، نه د خلاف. او په اختلاف او خلاف کې فرق دا دی چې په اختلاف کې مقصد متحد وي او طريقه مختلفه وي. لېکن په خلاف کې طريقه او مقصد دواړه مختلف وي. (عنايه او بنايه ج: ۶، ص: ۲۴۴)

او که خاوند ووايي چې "زما ګومان دا وو چې هغه زما لپاره (په عدت کې) حلاله ده"، نو پر خاوند به حد نه جاري کيږي؛ ځکه چې د هغه ګومان پر خپل ځای دی. ځکه چې اوس هم د هغه د نکاح أثر د نسب. نفقې او منع عن الخروج په حق کې پاته دی. يعني که چيرې د دې ښځې بچی پيدا سي، نو د هغه نسب د دې خاوند سره ثابتيږي. همدارنګه ښځه د عدت په ورځو کې د دغه نکاح په وجه وتلای نه سي. او د نکاح د أثر پاتېدلو په وجه پر خاوند د هغې د عدت د ورځو نفقه واجب ده. نو کله چې په دې وجهو سره په ښځه کې د دغه خاوند د نکاح اثر پاته دی. نو د حد په ساقطولو کې به هم دا أثر مؤثر او اغېزمن وي. او د خاوند ګومان ته به اعتبار ورکول کيږي.

وأم الولد إلخ: فرمايي ① که چيرې مالک خپل اُم ولد آزاده کړي او بيا په عدت کې د هغې سره وطي وکړي، ② يا ښځه د خاوند سره خلع وکړي او خاوند د هغې سره په عدت کې وطي وکړي. ③ يا خاوند ښځې ته د مال په بدله کې طلاق ورکړي او بيا په عدت کې وطي ورسره وکړي. نو دا درې سره ښځې د مطلّقه مغلظه (مطلقه ثلاثه) په حکم کې دي، يعني که تر وطي وروسته واطئ (خاوند) ووايي: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ. نو پر هغه به حد جاري کيږي. او که هغه ووايي: ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِي. نو حد به نه پر جاري کيږي، ځکه چې د دې ښځو حرمت د ټولو په اتفاق سره ثابت دی. او د عدت په ورځو کې د نکاح يو څو آثار پاته وي.

ولو قال لها أنت خلية إلخ: د دې حاصل دا دی چې که خاوند په کنایي الفاظو سره خپلې ښځې ته طلاق ورکړي. بیا د عدت په دوران کې د هغې سره وطي وکړي او بیا ووايي "علمتُ أنها عليّ حرام". نو پر هغه به حدّ نه جاري کیږي، ځکه چې په کنایي الفاظو سره په واقع کېدونکي طلاق کې د صحابه وو اختلاف دی، د حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه په نېز په کنایي الفاظو سره طلاق رجعي واقع کیږي. او د حضرت علي او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُمْ په نېز په دې الفاظو سره طلاق بائن واقع کیږي. همدارنګه که خاوند په کنایي الفاظو سره د درې طلاقو نیت وکړي او بیا د عدت په دوران کې د هغې سره وطي وکړي او ووايي: "علمتُ أنها عليّ حرام"، نو په دې صورت کې به هم پر هغه حدّ نه جاري کیږي، ځکه چې په کنایي الفاظو سره د درې طلاقو نیت کول هم د صحابه وو په مینځ کې مختلف فيه دي، نو د اختلاف په وجه د ملکیت شبهه موجوده ده، او کله چې شبهه سته، نو ښکاره خبره ده چې حدّ به ساقطیږي.

## د زوی د مینځې سره وطي کول

وَلَا حَدَّ عَلَى مَنْ وَطِئَ جَارِيَةَ وَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ او پر هغه کس حدّ نسته چې هغه د خپل زوی او د خپل لمسي د مینځې سره وطي وکړي وَإِنْ قَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ که څه هم هغه ووايي: چې زه په دې خبر وم چې هغه پر ما حرامه ده لِأَنَّ الشُّبْهَةَ حُكْمِيَّةٌ ځکه چې شبهۀ حکمیه [شبهه في المحل] موجوده ده لِأَنَّهَا نَشَأَتْ عَنْ دَلِيلٍ ځکه چې دا شبهه له یو دلیل څخه پیدا سوې ده وَهُوَ قَوْلُهُ عليه السلام: أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيكَ [1] او هغه د نبي ﷺ دا فرمان دی: ته او ستا مال د خپل پلار [په ملکیت کې] یاست وَالْأُبُوَّةُ قَائِمَةٌ فِي حَقِّ الْجَدِّ او د نیکه په حق کې [هم] پلار والی موجود دی وَيَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ او د واطئ [پلار او نیکه] سره به د هغه بچي نسب ثابتیږي وَعَلَيْهِ قِيمَةُ الْجَارِيَةِ او پر واطئ به د مینځې قیمت واجب وي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ [مخکې] دا [خبره] ذکر کړه وَإِذَا وَطِئَ جَارِيَةَ أَبِيهِ أَوْ أُمِّهِ أَوْ زَوْجَتِهِ وَقَالَ: ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِي او کله چې [یو څوک] د خپل پلار یا د خپلې مور یا د خپلې ښځې د مینځې سره وطي وکړي او [بیا] ووايي: ما دا ګومان وکړی چې هغه زما لپاره حلاله ده فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ وَلَا عَلَى قَاذِفِهِ نو پر هغه حدّ نسته او نه د هغه پر تهمت لګونکي حدّ سته وَإِنْ قَالَ: عَلِمْتُ

[1] تخریج: رواه ابن ماجة في السنن، رقم الحدیث: ۲۲۹۱.

أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ او که هغه ووايي: چي زه په دې خبر وم چي هغه زما لپاره حلاله ده حُدَّ نو حدّ به پر جاري کيږي وَكَذَا الْعَبْدُ إِذَا وَطِئَ جَارِيَةَ مَوْلَاهُ او همدارنګه کله چي غلام د خپل مالک د مينځي سره وطي وکړي انو هم دا حکم دی ا لِأَنَّ بَيْنَ هٰؤُلَاءِ انْبِسَاطًا فِي الْاِنْتِفَاعِ ځکه چي د دې کسانو په مينځ کي په خپله خوښه نفع اخيستل جاري دی [مطلب دا چي دا کسان د يوه او بل مال په لوی لاس او په آزاده توګه استعمالوي. او شپه او ورځ يو ځای ږدي سره خوري چي په هغه کي خامخا د يوه او بل مال استعمالول راځي] فَظَنُّهُ فِي الْاِسْتِمْتَاعِ مُحْتَمَلٌ نو د واطئ د فايدې اخيستلو د ګومان احتمال هم پيدا سو [مطلب دا چي د دومره انبساط په وجه واطئ دا ګومان سو چي زما لپاره به د وطي ګنجائش هم وي] فَكَانَ شُبْهَةَ اِشْتِبَاهٍ نو ځکه به دا د اشتباه شبهه [شبهه في الفعل] وي إِلَّا أَنَّهُ زِنًا حَقِيقَةً خو څرنګه چي دا حقيقتاً زنا ده فَلَا يُحَدُّ قَاذِفُهُ نو ځکه به د هغه پر تهمت لګوني حدّ نه جاري کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَتِ الْجَارِيَةُ: ظَنَنْتُ أَنَّهُ يَحِلُّ لِي او همدارنګه کله چي مينځه ووايي: چي ما دا ګومان وکړی چي [زما د مالک] دا غلام زما لپاره حلال دی وَالْفَحْلُ لَمْ يَدَّعِ او غلام هيڅ دعوىٰ نه وکړي فِي الظَّاهِرِ [انو هم به] په ظاهر روايت کي [پر غلام حدّ نه جاري کيږي] لِأَنَّ الْفِعْلَ وَاحِدٌ ځکه چي فعل [زنا] يو دی وَإِنْ وَطِئَ جَارِيَةَ أَخِيهِ أَوْ عَمِّهِ وَقَالَ: ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِي او که چيري [يو څوک] د خپل ورور يا د خپل اکا د مينځي سره وطي وکړي او [بيا] ووايي: چي ما دا ګومان وکړی چي دا مينځه زما لپاره حلاله ده حُدَّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ لَا انْبِسَاطَ فِي الْمَالِ فِيمَا بَيْنَهُمَا ځکه چي د دې دوو کسانو [يعني د وراره او اکا او د ورونو] په مينځ کي په خپله خوښه نفع اخيستل جاري نه دي وَكَذَا سَائِرُ الْمَحَارِمِ سِوَى الْوِلَادِ او همدا حکم د ټولو محارمو دی ماسوا له ولادتي محارمو څخه [يعني هغه محارم د چي د ولادت او پيدائشت په قرابت کي سره شريکان وي. مثلاً پلار و زوی. نيکه و لمسی او داسي نور] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿نَشَأَتْ﴾ د فتح له باب څخه ماضي ده: پيدا کېدل. ﴿أُبُوَّة﴾ پلار والی. پلار کېدل. ﴿قَاذِف﴾ د ضرب اسم فاعل دی: تهمت لګونکی. ﴿إِنبساط﴾ د انفعال مصدر دی: خوشحاله کېدل، تندی ورېنول. پراخېدل. بې تکلف کېدل. ﴿فَحْل﴾ نر. مينده. مراد ځني غلام دی.

**تشريح : مسئله** : دا ده چي د زوى يا د لمسي د مينځي سره وطي كول د حدّ موجب نه دي. ځكه چي دلته شبهۀ حكميه (شبهه في المحل) موجوده ده كوم چي د أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيكَ په حديث سره ثابته ده. او تر وطي وروسته د واطئ له نطفې څخه د پيدا سوي بچي نسب به هم د هغه سره ثابتېږي كه چيري هغه د بچي د نسب دعوىٰ وكړي. لكه څرنگه چي د شبهۀ حكميه او د شبهۀ اشتباه د فرق په بحث كي مو دا خبره بيان كړه.

كه چيري يو څوك د خپل پلار يا د خپلي مور يا د خپلي ښځي د مينځي سره وطي وكړي. يا غلام د خپل مالك د مينځي سره وطي وكړي، او د هغه سړي يا غلام گومان دا وي چي د دې مينځي سره زما لپاره وطي حلال دي، نو په دې صورت كي نه پر واطئ حدّ واجبيږي، او نه پر هغه سړي حدّ واجبيږي كوم چي د دغه وطي په وجه پر واطئ د زنا تهمت ولگوي. ځكه چي دا كسان (يعني زوى او پلار. يا خاوند او ښځه او داسي نوَر) په خپله خوښه او وړين تندي سره يو د بل مال استعمالوي، او په دوى كي د يو او بل د مال استعمالولو عادت جاري دى (او شپه او ورځ يو ځاى ډوډۍ سره خوري). او څرنگه چي د واطئ گومان هم د وطي د حلال والي دى، نو په دې وجه دلته شبهۀ اشتباه (شبهه في الفعل) موجوده سوه او هغه حدّ ساقطوي. لېكن كه چيري واطئ عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ ووايي او د حُرمت په گومان د خپل پلار يا د خپلي مور او داسي نورو د مينځي سره وطي وكړي، نو پر هغه حدّ واجبيږي، ځكه چي مخكي دا خبره تېره سوه چي د شبهۀ اشتباه د تحقق او ثبوت لپاره د واطئ د ظن او گومان وجود ضروري دى. او دلته ظن نسته. نو ځكه د شبهي يو قسم ثابت نه سو او د واطئ فعل خالص زنا سوه، نو ځكه به پر هغه حدّ جاري كيږي. او د دې زنا په وجه به د هغه پر قاذف (تهمت لگونكي) حدّ واجب نه وي، ځكه چي يقيناً واطئ زنا كړې ده.

**وكذا إذا قالت إلخ**: فرمايي كه يو غلام د خپل مالك د مينځي سره وطي وكړي او بيا ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِيْ يا عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ نه ووايي، لېكن مينځه ظَنَنْتُ أَنَّهُ يَحِلُّ لِيْ ووايي او خپل ظن څرگند او بيان كړي. نو د شبهي په تحقق او ثبوت كي به د هغې د گومان اعتبار كيږي او دواړه به له حدّ څخه ژغورل كيږي. ځكه چي د زنا فعل د دواړو وطرف ته منسوب دى، او دواړو په گډه دا كار كړى دى. لهذا كله چي له مينځي څخه د هغې د گومان د څرگندولو په وجه حدّ ساقطيږي نو له غلام څخه به هم ساقطيږي.

**وإن وطى إلخ**: د دې حاصل دا دى چي كه يو څوك د خپل ورور يا د خپل ماما يا د خپلي خاله د مينځي سره وطي وكړي او گومان يې دا وي چي زما وطي د هغې سره حلال دي، نو هم به پر هغه حدّ جاري كيږي. ځكه چي دا كسان په خپل مينځ كي په خپله خوښه او انبساط سره يو د بل مال نه استعمالوي (او په دوى كي د يوه او بل د مال استعمالولو عادت جاري نه دى). لهذا دلته د شبهي يو قسم نه ثابتيږي، نو ځكه به د هغه وطي خالص زنا وي او د حدّ لپاره به موجِب وي. فقط د ولادت په قرابت كي انبساط في المال ثابت دى. نو ځكه به د ولادت په قرابت كي حدّ ساقطيږي.

## د "وطي بالشبهه" يو څو صورتونه

وَمَنْ زُفَّتْ إِلَيْهِ غَيْرُ امْرَأَتِهِ او چا ته چي [د واده په اوله شپه] له خپلي ښځي څخه بغير [بله ښځه] د ناوي په توګه را وستل سي وَقَالَتِ النِّسَاءُ: إِنَّهَا زَوْجَتُكَ او انوري [ښځي [هغه ته] ووايي: چي دا ستا ښځه ده فَوَطِئَهَا او هغه وطي ور سره وکړي لَاحَدَّ عَلَيْهِ نو پر هغه حدّ نسته وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ او پر خاوند مهر واجب دی قَضَى بِذٰلِكَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَبِالْعِدَّةِ حضرت علي ﷺ هم په دې سلسله کي د مهر او عدت فيصله کړې ده وَلِأَنَّهُ اعْتَمَدَ دَلِيلًا او ځکه چي [دلته] خاوند پر يو دليل اعتماد کړی دی وَهُوَ الْإِخْبَارُ فِي مَوْضِعِ الْاِشْتِبَاهِ او هغه دليل [د خاوند] د شکمن کېدلو په ځای کي [د ښځو] خبر ورکول دي إِذِ الْإِنْسَانُ لَا يُمَيِّزُ بَيْنَ امْرَأَتِهِ وَبَيْنَ غَيْرِهَا فِي أَوَّلِ الْوَهْلَةِ ځکه چي اول وار انسان د خپلي ښځي او بلي [پردۍ] ښځي په مينځ کي توپير نه سي کولای فَصَارَ كَالْمَغْرُورِ نو هغه د دوکه ورکول سوي سړي په څير سو وَلَا يُحَدُّ قَاذِفُهُ إِلَّا فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي يُوسُفَ✿ او د هغه پر تهمت لګونکي به حدّ نه جاري کيږي مګر د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په يوه روايت کي [به پر جاري کيږي] لِأَنَّ الْمِلْكَ مُنْعَدِمٌ حَقِيقَةً ځکه چي ملکيت په حقيقت کي نسته وَمَنْ وَجَدَ امْرَأَةً عَلَى فِرَاشِهِ او څوک پر خپله بستره يو ښځه ووينې فَوَطِئَهَا او د هغې سره وطي وکړي فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر هغه حدّ سته لِأَنَّهُ لَا اشْتِبَاهَ بَعْدَ طُولِ الصُّحْبَةِ ځکه چي د ډېر وخت تر يو ځای کېدلو وروسته اشتباه نه سي کېدای [يعني تر ډېر مودت پوري د خپلي ښځي سره د يو ځای اُسېدلو په وجه پر خاوند خپله ښځه نه سي مشتبه کېدلای. بلکي په دې هکله هغه توپير کولای سي] فَلَمْ يَكُنِ الظَّنُّ مُسْتَنِدًا إِلَى دَلِيلٍ نو [د هغه] ګومان به د هيڅ دليل وطرف ته منسوب نه وي وَهٰذَا لِأَنَّهُ قَدْ يَنَامُ عَلَى فِرَاشِهَا غَيْرُهَا مِنَ الْمَحَارِمِ الَّتِي فِي بَيْتِهَا او د اشتباه نه کېدلو دليل دا هم دی چي کله نا کله د ښځي پر بستره له هغې څخه بغير د کور محرمي ښځي [هم] بيديږي وَكَذَا إِذَا كَانَ أَعْمَى او همدارنګه کله چي خاوند نابينا [ړوند] وي

---

✿ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٧٠)، وكذا في فتح القدير (ج:٥، ص:٣٩). [القول الراجح ج:١، ص:٤٣٨]

انو هم دغه حکم دی؛ لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ التَّمْيِيزُ بِالسُّؤَالِ وَغَيْرِهِ ځکه چې د پوښتنې او داسې نورو په ذریعه د هغه لپاره توپیر کول ممکن دي إِلَّا إِنْ كَانَ دَعَاهَا فَأَجَابَتْهُ أَجْنَبِيَّةٌ وَقَالَتْ: أَنَا زَوْجَتُكَ خو که نابينا هغه ښځې ته آواز وکړي او هغه پردۍ ښځه په جواب کې [داسې] ورته ووايي: چې زه ستا ښځه يم فَوَاقَعَهَا او نابينا د هغې سره جماع وکړي [نو په دې صورت کې پر هغه حدّ نشته] لِأَنَّ الْإِخْبَارَ دَلِيلٌ ځکه چې [د أجنبي ښځې غلط] خبر ورکول دليل دی.

**اللغات**: ﴿زُفَّتْ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده. زَفَّ يَزُفُّ زَفَافًا: ناوې (ناوکی) دَ پلار له کور څخه د خاوند کور ته بېول. ناوې خاوند ته را وستل. ﴿لَا يُمَيِّزُ﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي صيغه ده: تمييز کول، توپير کول، فرق کول. ﴿وَهْلَةٌ﴾ او وَهَلَة: تر ټولو مخکې، اول وار، عرب وايي: لقيتهُ أَوَّلَ وَهْلَةٍ (تر ټولو مخکې ما د هغه سره ملاقات وکړی). ﴿مَغْرُوْر﴾ د ضرب له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: چا ته چې دوکه ورکول سوې وي، دوکه سوی سړی. ﴿فِرَاش﴾ بستره (بستر)، د بيديدو ځای. ﴿وَاقَعَهَا﴾ د مفاعلې ماضي ده: جماع کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی واده وکړي او د واده په اوله شپه هغه ته بله ښځه را وستل سي. او يو څو ښځې هغه ته ووايي چې مه حيرانېږه! دا ستا ښځه ده. او دا سړی د هغه سره جماع وکړي. نو په دې جماع سره پر هغه حدّ نه واجبيږي. ليکن د دې (موطوئه) ښځې مهر به پر واجب وي. ځکه چې د داسې مسئلې په هکله له حضرت علي رضي الله عنه څخه همداسې فيصله نقل سوې ده. د دې دويم دليل دا دی چې دلته خاوند د نورو ښځو پر خبر او دليل اعتماد کړی دی. او څرنګه چې په اول وار سړي ته خپله ښځه او بله ښځه نه معلوميږي (او توپير نه سي کولای) او عموماً په دې هکله سړي ته اشتباه راځي. او د اشتباه په مقام کې إخبار دليل دی. نو د همدې دليل په وجه به پر هغه حدّ نه لازميږي. لکه يوه ښځه چې يو سړي ته دوکه ورکړي او په دوکه نکاح ور سره وکړي. او دا سړی د هغې سره وطي هم وکړي، نو پر هغه حدّ نه جاري کيږي. همداسې به په دې مسئله کې پر خاوند حدّ نه جاري کيږي. ځکه چې دا خاوند هم مغرور دی (يعني خبر ورکونکو ښځو دوکه ورکړې ده). همدا وجه ده که پر دې خاوند يو څوک د زنا تهمت ولګوي نو پر تهمت لګونکي (قاذف) به حدّ نه جاري کيږي. ځکه چې په حقيقت کې له ده څخه زنا صادره سوې ده او پر موطوئه ښځې د هغه هيڅ ملکيت نشته. ليکن له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د هغه پر قاذف به حدّ جاري کيږي.

**ومن وجد امرأة إلخ**: دويمه مسئله دا ده که يو څوک پر خپله بستره باندي يوه ښځه ويني او بيا د هغې سره جماع وکړي، نو پر واطئ حدّ واجبيږي، ځکه چي د خپلي ښځي سره تر ډېر وخت تېرولو وروسته د اشتباه هيڅ امکان نسته. لهذا د دې سړي دا ګومان به چي دا زما ښځه ده د هيڅ دليل وطرف ته نه منسوب کيږي، ځکه چي کله نا کله د ښځي (مايني) څخه بغير د کور محرمي ښځي مثلاً خور، مور او لور هم د ښځي پر بستره بيديږي، لهذا کله چي د هغه ظنّ له دليل څخه خالي دی (د ظنّ لپاره يې هيڅ دليل نسته) نو هغه به معتبر هم نه وي او د هغه فعل به خالص زنا وي او حدّ به پر واجب وي. او همدا حکم په هغه صورت کي هم دی چي کله دا سړی نابينا (ړوند) وي او پر خپله بستره يوه ښځه وموندي او بيا د هغې سره وطي وکړي (نو پر هغه هم حدّ واجبيږي). ځکه چي د نابينا سړي لپاره د پوښتني او خبرو په ذريعه د خپلي او بلي ښځي په مينځ کي فرق کول ممکن دي. لېکن که نابينا له دې ښځي څخه پوښتنه وکړي او هغه ووايي چي زه ستا ښځه يم، او بيا نابينا د هغې سره وطي وکړي. نو په صورت کي پر نابينا حدّ نه واجبيږي، ځکه چي هغه د دې ښځي پر خبر باندي د اعتماد کولو په وجه د هغې سره وطي کړي دي، او إخبار د هغه په حق کي دليل دی.

## د محرمو ښځو سره نکاح کول

وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً لَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا او که يو څوک د داسي ښځي سره نکاح وکړي چي د ده لپاره د هغې سره نکاح حلاله نه وي فَوَطِئَهَا او [بيا] هغه وطي ور سره وکړي لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَدُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه حدّ نه واجبيږي وَلَكِنْ يُوجَعُ عُقُوبَةً إِذَا كَانَ عَلِمَ بِذَٰلِكَ لېکن سخته سزا به ورکول کيږي که چيري هغه د دې په حراموالي خبر وي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ◆ وَالشَّافِعِيُّ: عَلَيْهِ الْحَدُّ إِذَا كَانَ عَالِمًا بِذَٰلِكَ صاحبين او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي که چيري هغه د دې په حراموالي خبر وي نو پر هغه حدّ واجب دی لِأَنَّهُ عَقْدٌ لَمْ يُصَادِفْ مَحَلَّهُ ځکه چي دا يو داسي عقد دی کوم چي پر خپل محل واقع سوی نه دی فَيَلْغُو كَمَا إِذَا أُضِيفَ إِلَى الذُّكُورِ نو ځکه به لغو کيږي لکه څرنګه چي [په هغه وخت کي عقد لغو کيږي] کله چي د هغه نسبت د نارينه ؤ وطرف ته وسي [يعني کله چي د هلک سره عقد نکاح وسي نو هغه لغو کيږي، نو د محرمي ښځي عقد به هم لغو

---

◆ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما قال ابن الهمام بعد تفصيل المسئلة: لكن في الخلاصة قال: الفتوى على قولهما (فتح القدير ج:٥، ص:٤٢)، وكذا في الدر المختار (ج:٣، ص:١٦٩). [القول الراجح ج:١، ص:٢٣٩]

کيږي | وَهٰذَا لِأَنَّ مَحَلَّ التَّصَرُّفِ مَا يَكُوْنُ مَحَلًّا لِحُكْمِهٖ او دا حکم ځکه دی چي د تصرف | عقد نکاح | محل هغه دی کوم چي د تصرف د حکم محل وي وَحُكْمُهُ الْحِلُّ او د تصرف | عقد نکاح | حکم حلال کېدل دي | چي ښځي حلاله وي | وَهِيَ مِنَ الْمُحَرَّمَاتِ او دا | منکوحه | ښځه له محرمو ښځو څخه ده وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ الْعَقْدَ صَادَفَ مَحَلَّهٗ دامام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي | ادلته | عقد پر خپل محل واقع سوی دی لِأَنَّ مَحَلَّ التَّصَرُّفِ مَا يَقْبَلُ مَقْصُوْدَهٗ ځکه چي د تصرف | عقد نکاح | محل هغه وي کوم چي د تصرف مقصود قبول کړي وَالْأُنْثٰى مِنْ بَنَاتِ آدَمَ قَابِلَةٌ لِلتَّوَالُدِ او د بني آدم ښځه د بچي زېږولو أهل ده وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ او همدا د تصرف مقصود دی | يعني د عقد نکاح مقصد همدا توالد او تناسل دی | وَكَانَ يَنْبَغِيْ أَنْ يَنْعَقِدَ فِيْ جَمِيْعِ الْأَحْكَامِ لهذا د ټولو أحکامو په حق کي عقد منعقد کېدل | او صحيح کېدل | پکار وو | يعني د ټولو په حق کي نکاح صحيح کېدل پکار وو | إِلَّا أَنَّهٗ تَقَاعَدَ عَنْ إِفَادَةِ حَقِيْقَةِ الْحِلِّ ليکن اد محرمي ښځي په حق کي | دا عقد د حلت له فايدې ورکولو څخه کښېنستی فَيُوْرِثُ الشُّبْهَةَ نو دا عقد به شبهه پيدا کړي | يعني کله چي دا عقد د حلت له فايدې ورکولو څخه کښېنستی نو شبهه پيدا سوه | لِأَنَّ الشُّبْهَةَ مَا يُشْبِهُ الثَّابِتَ لَا نَفْسَ الثَّابِتِ ځکه چي شبهه دې ته وايي کوم چي د ثابت سوي شي سره مشابه وي خاص د ثابت سوي شي په څېر نه وي إِلَّا أَنَّهُ ارْتَكَبَ جَرِيْمَةً وَلَيْسَ فِيْهَا حَدٌّ مُقَدَّرٌ خو | څرنګه چي | هغه يو غټه ګناه کړې ده او په دې هکله يو ټاکل سوی حد نسته فَيُعَزَّرُ نو ځکه به هغه ته | سخته | سزا ورکول کيږي.

**اللغات**: ﴿يُوْجَعُ عُقُوْبَةً﴾ د دې مطلب دا دی: چي مجرم ته به داسي سخته سزا ورکول کيږي چي د هغه په وجه مجرم ودردول سي او د مور رودلي را قي کړي. ﴿لَمْ يُصَادِفْ﴾ د مفاعلې له باب څخه د جحد صيغه ده: واقع کېدل. مخامخ کېدل. ﴿أُضِيْفَ﴾ د افعال له باب څخه ماضي مجهوله ده: نسبت کول. مضاف کول (منسوب کول). ﴿تَوَالُدُ﴾ د تفاعل مصدر دی: زېږونه. بچيان زېږول. اولاد پيدا کول. نسل ډېرول. ﴿يُعَزَّرُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: تنبيه ورکول. سزا ورکول.

**تشريح :** مخکي چي کوم دا خبره ذکره سوه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په عقد نکاح سره هم شبهه ثابتيږي. په دې عبارت کي د هغه خبري وضاحت کوي فرمايي چي که يو سړی په خپلو محرماتو کي د يوې ښځي سره نکاح وکړي او هغه ته دا معلومه وي چي زما لپاره د هغې سره نکاح کول حلال نه دي، مګر بيا هم د هغې سره نکاح وکړي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه حدّ نه واجبيږي، لېکن هغه ته به سخته سزا ورکول کيږي. لېکن د صاحبينو او د امام شافعي په نېز پر هغه حدّ واجبيږي که چيري هغه په حُرمت خبر وي او قصداً يې دا کار کړی وي.

**دليل :** د صاحبينو او د امام شافعي دليل دا دی چي په دې مسئله کي عقد نکاح پر خپل محل (محرمي ښځي) نه دی واقع سوی. ځکه چي د عقد محل هغه دی کوم چي د عقد د حکم محل وي. او محرمه ښځه د عقد نکاح د حکم محل نه ده ځکه چي د عقد نکاح حکم حلّت يعني د منکوحه ښځي حلال والی دی. حالانکي دلته منکوحه (محرمه) ښځه د سړي (عاقد) لپاره په أبدي توګه حرامه ده. لهذا دا عقد پر خپل محل د نه واقع کېدلو په وجه لغو دی او د دې سړي وطي کول خالص زنا ده کوم چي د حدّ موجب دي. د دې مثال دا دی لکه يو سړی چي د لغړ زني (هلک) سره نکاح وکړي. نو هلته عقد لغو کيږي. همداسي به دلته هم عقد لغو وي.

**د امام صاحب دليل :** دا دی چي کوم عقد چي دلته سوی دی هغه پر خپل محل واقع دی ځکه چي عقد نکاح (تصرف) محل هغه دی کوم چي د تصرّف مقصود قبول کړي. او په عقد نکاح سره چي کوم شی مقصود دی يعني توالد او تناسل (بچي زيږول) دا مقصود دلته حاصل دی. ځکه چي ټولي ښځي د بچي زيږولو أهليت لري. لهذا د عقد نکاح د مقصود وطرف ته په نظر کولو سره د هري ښځي سره نکاح حلالېدل پکار دي. لېکن څرنګه چي په محرمات ابديه وو کي حلّت مُفيد او مؤثر نه دی خو بيا هم په دغه عقد سره څه نا څه د حلّت څه شبهه راغله. ځکه چي شبهه دې ته وايي چي د ثابت سوي شي سره مشابه وي او نفس ثابت نه وي. نو ځکه به د دې شبهي په وجه پر عاقد حدّ نه واجبيږي. خو څرنګه چي د هغه جرم دومره غټ دی چي هغه له سزا څخه خلاصېدای نه سي. نو ځکه به امام د خپل تدبير او تجويز مطابق د هغه لپاره د سزا فيصله کوي.

## له فرج څخه بغير په نورو اندامونو يا په دُبر کي د وطي کولو سزا

| وَمَنْ وَطِئَ أَجْنَبِيَّةً فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ او څوک چي له فرج او دُبر څخه بغير په بل اندام کي د پردی ښځي سره وطي وکړي يُعَزَّرُ نو هغه ته به سزا ورکول کيږي حدّ به نه ورکول کيږي لِأَنَّهُ مُنْكَرٌ لَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ مُقَدَّرٌ ځکه چي دا په غير فرج کي وطي کول يو ممنوع کار دی او د هغه لپاره څه |
|---|

سزا تاکل سوي نه ده **وَمَنْ أَتَى امْرَأَةً فِي الْمَوْضِعِ الْمَكْرُوهِ أَوْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ** او څوک چي د ښځي سره په ناوړه ځای [دُبُر] کي وطي وکړي يا د [يو نارينه سره] د قومِ لوط عمل وکړي **فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ**[*] نو پر هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حدّ نسته **وَيُعَزَّرُ** [البکن] هغه ته به سزا ورکورل کيږي **وَزَادَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَيُودَعُ فِي السِّجْنِ** امام محمد رَحِمَهُ الله په جامعِ صغير کي فرمايلي دي: او هغه به بنديخانې ته اچول کيږي **وَقَالَا: هُوَ كَالزِّنَا** او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي لواطت د زنا په څير دی **فَيُحَدُّ** نو ځکه به پر لوطي حدّ جاري کيږي **وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ** او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دی **وَقَالَ فِي قَوْلٍ: يُقْتَلَانِ بِكُلِّ حَالٍ** او امام شافعي رَحِمَهُ الله په بل قول کي فرمايلي دي: چي دواړه به په هر حالت کي وژل کيږي **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: اُقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ**[1] ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: تاسي قتل کړئ! لواطت کونکی کس او د چا سره چي لواطت سوی وي **وَيُرْوَى: فَارْجُمُوا الْأَعْلَى وَالْأَسْفَلَ**[2] او په يوه روايت کي [ذکر سوي] دي: لوړ او لاندي دواړه سنګسار کړئ! **وَلَهُمَا: أَنَّهُ فِي مَعْنَى الزِّنَا** او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي لواطت د زنا په معنیٰ سره دی **لِأَنَّهُ قَضَاءُ الشَّهْوَةِ فِي مَحَلٍّ مُشْتَهًى عَلَى سَبِيلِ الْكَمَالِ عَلَى وَجْهٍ تَمَحَّضَ حَرَامًا لِقَصْدِ سَفْحِ الْمَاءِ** ځکه چي دا [لواطت] د شهوت په ځای په کامله توګه د شهوت پوره کول دي په داسي طريقه سره کوم چي د مني وو د بيولو لپاره خالص حرامه [طريقه] ده [چي د حلت يوه ذره هم پکښي نسته] **وَلَهُ: أَنَّهُ لَيْسَ بِزِنًا** او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي لواطت زنا نه ده **لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فِي مُوجَبِهِ مِنَ الْإِحْرَاقِ بِالنَّارِ وَهَدْمِ الْجِدَارِ**

---

[*] القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله ، قال العلامة داما آفندي رَحِمَهُ الله :...والصحيح قول الإمام، وفی الفتح: أنه يـودع (عند الأمام) فی السجن، حتی يتوب أو يموت، ولو اعتاد اللواطة، قتله الإمام محصنا كان أو غير محصن سياسة (مجمع الأنهر ج:١، ص:٦٠٣)، وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله :...ولا يحدّ عند الإمام (أبي حنيفة) إلا إذا تكرر، فيقتل على المفتیٰ بـه (رد المحتار ج:٣، ص:١٧١)، وهكذا فی الهندية (ج:٢، ص:١٥٠). [القول الراجح ج:١، ص:٣٤١]

[1] تخريج: رواه ابو داؤد فی الحدود، باب:٢٨، رقم الحديث:٤٤٦٢.

[2] تخريج: رواه الطّحاویٰ فی مشكل الآثار، رقم الحديث:٣٢٣٠. وابن ماجة فی السنن رقم الحديث:٢٥٦٢.

وَالتَّنْكِيسِ مِنْ مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ بِاتِّبَاعِ الْأَحْجَارِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ ځکه چې د لواطت د سزا په هکله د صحابه وو اختلاف وو [ځيني وايي] چې هغه [لوطي] دې په اُور کې وسوځل سي او [ځيني وايي چې] پر هغه دې دېوال ونړول سي او [ځيني وايي چې] د لوړ ځای څخه دې سرکول کوني را ايله کړی سي او [سربېره] دې ډبرې پر وورول سي وَلَا هُوَ فِي مَعْنَى الزِّنَا او لواطت د زنا په معنىٰ سره هم نه دی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ إِضَاعَةُ الْوَلَدِ وَاشْتِبَاهُ الْأَنْسَابِ ځکه چې په دې کې [خو] نه د بچي ضايع کېدل سته او نه د نسبونو مشتبه کېدل سته وَكَذَا هُوَ أَنْدَرُ وُقُوعًا همدارنګه دا فعل ډېر کم پېښېدونکی دی [خو نه زموږ په سيمو کې!!!] لِانْعِدَامِ الدَّاعِي مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې [په لواطت کې] شهوت [او داعيه] له يوه طرفه وي وَالدَّاعِي إِلَى الزِّنَا مِنَ الْجَانِبَيْنِ و په زنا کې له دواړو طرفونو څخه شهوت وي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ أَوْعَلَى الْمُسْتَحِلِّ او کوم حديث چې امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه حديث پر سياست محمول دی يا [د لواطت] د حلال ګڼونکي سره متعلق دی إِلَّا أَنَّهُ يُعَزَّرُ عِنْدَهُ خو دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به لواطت کونکي ته سخته سزا ورکول کيږي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿مُنكر﴾ ناخوښه عمل، د ګناه کار، بد فعل، ﴿مُقدّر﴾ ټاکل سوی، اندازه کړی سوی، متعين، ﴿يُودع﴾ د فتح له باب څخه د مضارع مجهولي صيغه ده: ايښول (اچول)، ﴿سِجْن﴾ بنديخانه، قيدخانه، جېل، محبس، جمع: سُجُوْن، ﴿سَفح﴾ د فتح مصدر دی: بيوله، بهول، ﴿مُوْجَب﴾ د افعال اسمِ مفعول دی: واجب کړی سوی شی مراد ځني سزا ده، ﴿إِحْرَاق﴾ د افعال مصدر دی: سوځل، ﴿هَدْم﴾ د ضرب مصدر دی: نړول، ﴿تَنْكِيس﴾ د تفعيل مصدر دی: پر مخې غوځارول، سرکول کوني ايله کول (غورځول)، ﴿أحْجَار﴾ جمع د حَجَرٌ ده: ډبره، کاڼی.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو څوک له فرج او دُبر څخه بغير په بل اندام کې د پردۍ (أجنبي) ښځې سره وطي وکړي يعني د هغې د نس يا د ورون او داسې نورو سره خپل ذکر ومږي او شهوت پوره کړي، نو هغه ته به سخته سزا ورکول کيږي، ځکه چې دا ممنوع کار دی. او په شريعت کې د دې لپاره حدّ ټاکل سوی نه دی. لهذا امام به د خپلې رايې او تدبير مطابق هغه ته سزا ورکوي.

دويمه مسئله دا ده که يو سړی د يوې ښځې سره په دبر (معقد) کې وطي وکړي. يا د يو نارينه (هلک) سره په مقعد کې وطي وکړي چې هغه ته لواطت (د قوم لوط عمل) وايي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه حدّ نسته. ليکن هغه ته به سخت ترينه سزا ورکول کيږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې لواطت د زنا په شير دی. نو ځکه به د زاني په شير پر لوطي هم حدّ جاري کيږي. له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په جامع صغير کې نقل سوي دي چې لوطي به بنديخانې ته اچول کيږي تر دې چې هغه توبه وکړي. له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په دې سلسله کې دوه قوله نقل سوي دي: ① اول قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله موافق دی. ② او دويم قول دا دی چې فاعل او مفعول به دواړه وژل کيږي. ځکه چې له رسول الله ﷺ څخه صراحتاً دا نقل سوي دي: ''أُقتلوا الفاعل والمفعول''. او په بل روايت کې ''فَارجُموا الأعلىٰ والأسفل'' ذکر سوي دي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې لواطت د زنا په معنیٰ سره دی. ځکه چې د زاني په شير لوطي هم د شهوت په محل (ځای) کې خپل شهوت پوره کوي. او څرنګه چې په شريعت کې د زاني سزا حدّ ده. نو د لوطي سزا به هم حدّ وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې لواطت زنا نه ده. ځکه چې د دې په سزا کې د صحابهؤ اختلاف وو. حالانکې د زنا په سزا کې د دوی اختلاف نه وو. او لواطت د زنا په معنیٰ سره هم نه دی. ځکه چې په دې کې د بچي ضايع کول او د نسب مشتبه کېدل هيڅ شی هم نسته. ځکه چې په لواطت سره بچی نه پيدا کيږي او نسب پر بچي مبني دی (يعني چې يو څوک د يو بچي د نسب دعویٰ وکړي) او کله چې بالکل بچی نه وي نو دعویٰ به څرنګه وسي. همدارنګه په لواطت کې د لوطي له طرفه داعيه او شهوت وي او د مفعول له طرفه داعيه ډېره کمه وي. حالانکې په زنا کې د سړي او ښځې دواړو له طرفه کامل شهوت او داعيه وي. نو په دې حواله سره هم لواطت د زنا په معنیٰ سره نه دی. نو ځکه موږ (امام صاحب) وايو چې کومه سزا چې د زنا لپاره ټاکل سوې ده هغه به د لواطت سزا نه وي. ها! څرنګه چې دا يو ډېر قبيح او ممنوع فعل دی. نو ځکه به د هغه سزا سخت ترينه وي.

**ومارواه الخ**: فرمايي کوم حديث چې امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل دليل کې ذکر کړی دی. هغه خو يا پر سياست مدنيه باندې محمول يا دا هغه سړي سزا ده چې لواطت حلال وګڼي او ويې کړي.

## د حيوان او څاروي سره وطي کول

وَمَنْ وَطِئَ بَهِيمَةً او څوک چې د يو څاروي سره وطي وکړي لَاحَدَّ عَلَيْهِ نو پر هغه حد نشته لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الزِّنَا فِي كَوْنِهِ جِنَايَةً وَفِي وُجُودِ الدَّاعِي ځکه چې د جرم کېدلو او د شهوت په موجودېدلو کې دا فعل د زنا په معنیٰ سره نه دی لِأَنَّ الطَّبْعَ السَّلِيمَ يَنْفِرُ عَنْهُ ځکه چې سليم طبيعت له دې څخه نفرت کوي وَالْحَامِلُ عَلَيْهِ نِهَايَةُ السَّفَهِ أَوْ فَرْطُ الشَّبَقِ او پر دې کار هڅونکی شی خو يا انتهائي بېعقلي [احماقت] اوي يا د شهوت زيات راپورته کېدل وي وَلِهَذَا لَا يَجِبُ سَتْرُهُ او له همدې کبله د څاروي شرمګاه پټول [پر مالک] واجب نه دي إِلَّا أَنَّهُ يُعَزَّرُ خو واطئ ته به سزا ورکول کيږي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَالَّذِي يُرْوَى [1] أَنَّهُ تُذْبَحُ الْبَهِيمَةُ وَتُحْرَقُ او هغه حکم کوم چې روايت سوی دی چې مفعوله څاروی به ذبح کيږي او سوځل کيږي فَذَلِكَ لِقَطْعِ التَّحَدُّثِ بِهِ نو هغه حکم د دې لپاره دی چې په دې هکله بحث او مباحثه ختمه سي [او د دې عمل آوازه ختمه سي] وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ [لېکن] داسي کول واجب نه دي.

**اللغات:** ﴿بَهِيمَة﴾ څاروی، چارپای، له درندګانو څخه بغير هر هغه د برّ او بحر حيوان کوم چې څلور پښې لري صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: (كل ذَات أَربع قَوَائِم من دَوَاب الْبر وَالْبَحْر مَا عدا السبَاع. جمع: بهائم)، ﴿فَرْط﴾ د نصر مصدر دی: زياتېدل، غالب کېدل. ﴿الشَّبَق﴾ د باء په فتحه سره، د سمع اسم مصدر دی: شهوت. ﴿تَحَدُّث﴾ د تفعّل مصدر دی: خبري کول، بحث او مباحثه کول (خبري اتري کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو څوک د يو حيوان او څاروي سره وطي وکړي، نو پر هغه حد نشته. ځکه چې د حيوان سره وطي کول نه د زنا په څېر جرم دی او نه په دې کې د زنا په څېر شهوت او داعيه وي. ځکه چې سليم فطرت والا کس له داسي ناوړه حرکت څخه نفرت او انکار کوي. داسي حرکت خو يا د اولي درجې بېوقوف کوي يا يې له شهوت څخه ډېر مغلوب کس کوي. همدا وجه ده چې پر مالک دا واجب نه دي چې د خپل حيوان او څاروي شرمګاه پټه کړي. خو څرنګه چې د هغه دا فعل ډېر ناوړه او ډېر له انسانيت څخه وتلی دی. نو ځکه به د هغه لپاره سزا خامخا وي.

**والذی يروی إلخ:** فرمايي: په حديث کي چې کوم دا حکم ذکر سوی دی چې مفعوله (وطي کړی سوی) حيوان به تر ذبح کولو وروسته سوځل کيږي. دا حکم واجب او ضروري نه دی. بلکي دا حکم په دې وجه دی چې د دې عمل په هکله بحث او مباحثه نه وسي او خلګ د دې آوازه خپره او نشر نه کړي. او ښکاره خبره ده چې کله حيوان وسوځل سي، نو د هغه آواز او ډنډوره ختمېږي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في السنن لا بلفظه رقم الحديث: ۲۲۶۲

## په دارُ الحرب کي زنا کول

وَمَنْ زَنَىٰ فِي دَارِ الْحَرْبِ أَوْ فِي دَارِ الْبَغْيِ او څوک چي په دارُ الحرب کي زنا وکړي يا د باغيانو په حکومت کي زنا وکړي ثُمَّ خَرَجَ إِلَيْنَا بيا زموږ وطرف ته راسي لَا يُقَامُ عَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُحَدُّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حدّ پر جاري کيږي لِأَنَّهُ الْتَزَمَ بِإِسْلَامِهِ أَحْكَامَهُ أَيْنَمَا كَانَ مَقَامُهُ ځکه چي د خپل اسلام راوړلو په وجه هغه پر ځان اسلامي احکام لازم کړي دي، هغه که دئ په هر ځای کي وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : لَا تُقَامُ الْحُدُودُ فِي دَارِ الْحَرْبِ زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: په دارُ الحرب کي به حدود نه جاري کيږي وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الِانْزِجَارُ او ځکه چي [د حدّ جاري کولو] مقصد منع کېدل [او تنبيه ورکول] دي وَوِلَايَةُ الْإِمَامِ مُنْقَطِعَةٌ فِيهِمَا حالانکي په [دار الحرب او دار البغی] دواړو کي د امام ولايت قطع سوی دی فَيَعْرَى الْوُجُوبُ عَنِ الْفَائِدَةِ لهذا د حدّ واجبېدل [او جاري کول] به له فايدې څخه خالي وي وَلَا تُقَامُ بَعْدَ مَا خَرَجَ او له دارُ الحرب څخه به د زاني تر را وتلو وروسته هم حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّهَا لَمْ تَنْعَقِدْ مُوجِبَةً فَلَا تَنْقَلِبُ مُوجِبَةً ځکه چي [د هغه] زنا [په شروع کي] د حدّ موُجب نه وه نو ځکه به [وروسته هم] د حدّ لپاره موُجب نه ګرځي [مطلب دا چي په دارُ الحرب کي د هغه زنا د حدّ قابل نه وه. نو اوس به په دارُ الاسلام کي هم د حدّ قابل نه جوړيږي] وَلَوْ غَزَا مَنْ لَهُ وِلَايَةُ الْإِقَامَةِ بِنَفْسِهِ كَالْخَلِيفَةِ وَأَمِيرِ مِصْرَ او که چيري په غزا کي داسي کس موجود وي چي د هغه لپاره بذاتِ خود د حدّ جاري کولو اختيار وي لکه خليفه ايا د ښار أمير يُقِيمُ الْحَدَّ عَلَى مَنْ زَنَىٰ فِي مُعَسْكَرِهِ نو دا کس [خليفه او د ښار أمير] پر هغه سړي حدّ جاري کولای سي کوم چي په "لښکر ځای" کي زنا وکړي لِأَنَّهُ تَحْتَ يَدِهِ ځکه چي هغه د ده تر ولايت لاندي دی بِخِلَافِ أَمِيرِ الْعَسْكَرِ وَالسَّرِيَّةِ په خلاف د سريه او د لښکر أمير لِأَنَّهُ لَمْ تُفَوَّضْ إِلَيْهِمَا الْإِقَامَةُ ځکه چي دوی دواړو ته د حدّ جاري کولو اختيار ورسپارل سوی نه دی.

---

[1] تخريج: رواه البيهقی رقم الحديث:١٨٦٨٧ وابو داؤد رقم الحديث:٤٤٠٨

**اللغات**: ﴿إِلْتَزَمَ﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله ذمه اخيستل. ﴿إِنْزِجَار﴾ د انفعال مصدر دی: منع کېدل. ﴿يَعْرَى﴾ د فتح مضارع ده: خالي کېدل. ﴿لَا تَنْقَلِب﴾ د انفعال مضارع ده: ګرځېدل، اوښتل. ﴿مُوْجِبَة﴾ د افعال مؤنث اسم فاعل دی: واجبونکی، سبب جوړېدونکی. ﴿مُعَسْكَر﴾ لښکر ځای (لښکر ګاه)، چوڼی. ﴿سَرِيَّة﴾ د سپايانو کوچنی ډله. ﴿لَمْ يُفَوِّض﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: سپارل، حواله کول، تسليمول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی په دارُ الحرب کي زنا وکړي يا د باغيانو په علاقه کي زنا وکړي. بيا دارُ الاسلام ته راسي، نو زموږ په نېز پر هغه حدّ نه جاري کيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه حدّ جاري کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي زاني مسلمان دی او د دنيا په هر طرف او هر ګوټ کي په اسلامي احکامو مکلّف دی (او د دنيا په هر ځای کي پر هغه اسلامي احکام عملي کول ضروري دي). لهذا هغه چي هر ځای هم وي، حدّ به پر جاري کيږي.

**زموږ دليل**: دا حديث دی چي "لا يُقام الحدود في دار الحرب" (يعني په دارُ الحرب کي به حدود نه جاري کيږي). او په دې حديث کي له عدمِ إقامت يعني له "حدّ نه جاري کولو" څخه مراد "حد نه واجبېدل" دي (يعني پر مجرم حدّ نه واجبيږي)، ځکه چي په دارُ الحرب کي د امام ولايت منطقع او معدوم وي، او د ولايت انقطاع د وجوب انقطاع ده (مطلب دا چي په کوم ځای کي د امامُ المسلمين ولايت نه چليږي، هلته اسلامي سزا (حدّ) هم نه واجبيږي)، له همدې کبله د حدّ جاري کولو مقصد دی "يعني نور خلک له داسي حرکت څخه منع کول او تنبيه ورکول" دا مقصد په دارُ الحرب کي نه حاصليږي. او إقامت (يعني د حدّ جاري کول) چي کله له مقصد څخه خالي وي نو بيا إقامت هيڅ فايده هم نه کوي. او څرنګه چي دا زنا په شروع کي (يعني په دارُ الحرب کي) د حدّ موجب نه ده. نو له دارُ الحرب څخه دارُ الاسلام ته تر راتلو وروسته به هم د حدّ موجب نه وي. کنې حکم به له سبب څخه بغير موجود سي. حالانکي له سبب څخه بغير د حکم وجود ناممکن دی.

ولوغزى إلخ: فرمايي که چيري د مجاهدينو په جماعت کي خليفةُ المسلمين يا د ښار أمير موجود وي. او د جماعت په خلکو کي يو څوک زنا وکړي، نو خليفه يا أمير به پر هغه زاني حدّ جاري کوي. ځکه چي زاني د هغه په قبضه کي دی او د هغه ماتحت دی. او هغه ته پر دې زاني د حدّ جاري کولو اختيار حاصل دی. لېکن د لښکر او سريه أمير ته د دې اختيار نسته. لهذا هغه د جهاد په ميدان کي پر هيڅ زاني حدّ نه سي جاري کولای.

## په دارُ الاسلام کي د کفارو د زنا کولو حکم

وَإِذَا دَخَلَ حَرْبِيٌّ دَارَنَا بِأَمَانٍ او کله چي يو حربي کافر په أمان سره زموږ دار [دارُ الاسلام] ته داخل سي فَزَنَى بِذِمِّيَّةٍ بيا د يوې ذمي ښځي سره زنا وکړي أَوْ زَنَى ذِمِّيٌّ بِحَرْبِيَّةٍ يا يو ذمي سړی د يوې حربي ښځي سره زنا وکړي يُحَدُّ الذِّمِّيُّ وَالذِّمِّيَّةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ * نو د امام صاحب په نېز به پر ذمي سړي او ذمي ښځي حدّ جاري کيږي وَلَا يُحَدُّ الْحَرْبِيُّ وَالْحَرْبِيَّةُ او پر حربي سړی او حربي ښځي باندي به حدّ نه جاري کيږي وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ فِي الذِّمِّيِّ او د ذمي سړي په هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دا دی يَعْنِي إِذَا زَنَى بِحَرْبِيَّةٍ يعني کله چي د يوې حربي ښځي سره زنا وکړي فَأَمَّا إِذَا زَنَى الْحَرْبِيُّ بِذِمِّيَّةٍ لېکن که چېري يو حربي سړی د ذمي ښځي سره زنا وکړي لَا يُحَدَّانِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به پر دوی حدّ نه جاري کيږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ الله أَوَّلًا او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يُحَدُّونَ كُلُّهُمْ [بيا] امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وفرمايل: چي پر دوی ټولو به حدّ جاري کيږي وَهُوَ قَوْلُهُ الْآخَرُ او دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْمُسْتَأْمَنَ الْتَزَمَ أَحْكَامَنَا مُدَّةَ مُقَامِهِ فِي دَارِنَا فِي الْمُعَامَلَاتِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي أمان اخيستونکی حربي د خپل پاتېدلو د مودت په اندازه زموږ د اسلامي احکامو التزام کړی دی [يعني مستأمن حربي دومره وخت اسلامي احکام پر ځان لازموي څومره وخت چي هغه په دارُ الاسلام کي پاتيږي] كَمَا أَنَّ الذِّمِّيَّ الْتَزَمَهَا مُدَّةَ عُمُرِهِ لکه څرنګه چي ذمي خپل ټوله عمر د دې التزام کړی دی وَلِهَذَا يُحَدُّ حَدَّ الْقَذْفِ همدا وجه ده [که يو ذمي پر يو چا د زنا تهمت ولګوي نو] پر هغه حدّ قذف جاري کيږي وَيُقْتَلُ قِصَاصًا او په قصاص کي قتل کيږي بِخِلَافِ حَدِّ الشُّرْبِ لِأَنَّهُ يَعْتَقِدُ إِبَاحَتَهُ په خلاف د شرابو د حدّ. ځکه چي ذمي شراب جائز ګڼي وَلَهُمَا: أَنَّهُ مَا دَخَلَ لِلْقَرَارِ بَلْ لِحَاجَةٍ كَالتِّجَارَةِ وَنَحْوِهَا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي حربي په دارُ الاسلام کي د همېشه اوسېدلو لپاره نه راځي بلکي د يو ضرورت په وجه راځي لکه تجارت او

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۷۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۲۱]

داسي نور فَلَمْ يَصِرْ مِنْ أَهْلِ دَارِنَا نو ځکه هغه د دارُ الاسلام له اوسېدونکو شخه نه سو وَلِهٰذَا تَمَكَّنَ مِنَ الرُّجُوعِ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ او له همدې کبله هغه دارُ الحرب ته د رجوع کولو قدرت لري ايعني همدا وجه ده چي هغه بيرته خپل دارُ الحرب ته ځي ا وَلَا يُقْتَلُ الْمُسْلِمُ وَلَا الذِّمِّيُّ بِهِ او د هغه احربي ا د قتل کولو په وجه يو مسلمان يا ذمي نه قتل کيږي ابلکي ديّت به ورکوي ا وَإِنَّمَا الْتَزَمَ مِنَ الْحُكْمِ مَا يَرْجِعُ إِلَى تَحْصِيلِ مَقْصُودِهِ او حربي فقط د هغه اسلامي احکامو التزام کړی دی چي په هغه سره د ده مقصود حاصل سي ايعني د حربي تعلق او سروکار د خپل مقصد سره دی. نو حربي هغه أحکام پر ځان لازموي کوم چي د ده مقصد د حصول سره تعلق لري ا وَهُوَ حُقُوقُ الْعِبَادِ او هغه د بندګانو حقوق دي لِأَنَّهُ لَمَّا طَمِعَ فِي الْإِنْصَافِ ځکه کله چي هغه ا په دارُ الاسلام کي ا د انصاف طمع کړې ده يَلْتَزِمُ الِانْتِصَافَ نو هغه به د انصاف ورکولو ملتزم او پابند اهم ا وي ايعني حربي چي کله د أمان په اخيستلو سره په دارُ اسلام کي د انصاف طمع او غوښتنه کړې ده نو پر هغه به هم انصاف ورکول لازم وي ا وَالْقِصَاصُ وَحَدُّ الْقَذْفِ مِنْ حُقُوقِهِمْ او قصاص او حدّ قذف د بندګانو له حقوقو شخه دي أَمَّا حَدُّ الزِّنَا حَقُّ الشَّرْعِ لېکن زنا اخالص ا د شريعت حق دی وَلِمُحَمَّدٍ وَهُوَ الْفَرْقُ: أَنَّ الْأَصْلَ فِي بَابِ الزِّنَا فِعْلُ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةُ تَابِعَةٌ لَهُ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل (او همدا په ذمي او ذميه کي فرق هم دی) دا دی: چي د زنا په باب کي أصل د سړي فعل وي او د ښځي فعل د هغه تابع وي عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي د دې اتفصيل ا به موږ انشاءالله وروسته ذکر کړو فَامْتِنَاعُ الْحَدِّ فِي حَقِّ الْأَصْلِ يُوجِبُ امْتِنَاعَهُ فِي حَقِّ التَّبَعِ لهذا د اصل په حق کي د حدّ امتناع به د تابع په حق کي هم د حدّ امتناع لره مستلزم وي أَمَّا الِامْتِنَاعُ فِي حَقِّ التَّبَعِ لَا يُوجِبُ الِامْتِنَاعَ فِي حَقِّ الْأَصْلِ لېکن د تابع په حق کي د حد امتناع به د اصل په حق کي د حدّ امتناع لره مستلزم نه وي نَظِيرُهُ: إِذَا زَنَى الْبَالِغُ بِصَبِيَّةٍ أَوْ مَجْنُونَةٍ وَتَمْكِينُ الْبَالِغَةِ مِنَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او د دې مثال دا دی: لکه بالغ سړی چي ديوې کوچنۍ نجلۍ يا لېونۍ ښځي سره زنا وکړي انو فقط پر بالغ سړي به حدّ جاري کيږي ا او الکه ا بالغه ښځه چي پر خپل ځان کوچني هلک يا لېوني سړي ته قدرت ورکړي انو پر بالغي ښځي به حدّ نه جاري کيږي ا وَلِأَبِي حَنِيفَةَ فِيهِ:

أَنَّ فِعْلَ الْحَرْبِيِّ الْمُسْتَأْمَنِ زِنًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د مستأمن حربي فعل زنا ده لِأَنَّهُ مُخَاطَبٌ بِالْحُرُمَاتِ عَلَىٰ مَا هُوَ الصَّحِيحُ ځکه چي د صحيح قول مطابق حربي هم په محرماتو مخاطب دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُخَاطَبًا بِالشَّرَائِعِ عَلَىٰ أَصْلِنَا که څه هم زموږ د أصل مطابق هغه زموږ د شريعت مخاطب نه دی وَالتَّمْكِينُ مِنْ فِعْلٍ هُوَ زِنًا مُوجِبٌ لِلْحَدِّ عَلَيْهَا او پر فعل [زنا] باندي قدرت ورکول دا هغه زنا ده کوم چي پر ښځي [ذميه] باندي د حدّ واجبونکې ده بِخِلَافِ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ په خلاف د کوچني هلک او لېوني سړي لِأَنَّهُمَا لَا يُخَاطَبَانِ ځکه چي هغوی د شريعت په احکامو مخاطب نه دي وَنَظِيرُ هٰذَا الِاخْتِلَافِ: إِذَا زَنَى الْمُكْرَهُ بِالْمُطَاوِعَةِ او د دې اختلاف مثال دا دی: لکه يو مجبور کړی سوی کس چي د داسي ښځي سره زنا وکړي کوم چي په زنا راضي وي تُحَدُّ الْمُطَاوِعَةُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر دې راضي ښځي حدّ جاري کيږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَىٰ عَلَيْهِ لَا تُحَدُّ ليکن [د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به [پر هغې] حدّ نه جاري کيږي.

**اللغات**: ﴿مُسْتَأْمِنٌ﴾ د استفعال اسم فاعل دی: أمان اخيستونکی، هغه حربي کافر کوم چي أمان طلب کړي او دارُ الاسلام ته راسي (او د دارُ اسلام له طرفه هغه ته د هغه پر ځان او مال أمان ورکول سي). ﴿مُقَام﴾ پاتېدل، اوسېدل، درېدل. ﴿تَمَكَّنَ﴾ د تفعل ماضي ده: قدرت لرل، اختيار لرل. ﴿إِمْتِنَاع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل، ناممکن کېدل. ﴿نَظِيْر﴾ مثال، مشابه. ﴿مُطَاوِعَة﴾ د مفاعلې له باب څخه د مؤنث اسم مفعول صيغه ده: راضي ښځه (په خپله خوښه او رضا جماع کونکې ښځه)، چاته پر خپل ځان موقع ورکونکې ښځه. طَاوَعَ يُطَاوِعُ مُطَاوَعَةً: راضي کېدل، اطاعت کول، موقع ورکول.

**تشريح**: مسئله خو بالکل واضحه او آسانه ده. خلاصه يې دا ده چي که په دارُ الاسلام کي حربي سړی يا ښځه زنا وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغو حدّ نه جاري کيږي. ليکن که يو ذمي سړی يا ښځه دا حرکت وکړي، نو پر هغه به حدّ جاري کيږي. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي که ذمي سړی زنا وکړي، نو پر هغه به حدّ جاري کيږي. ليکن که ذمي ښځه د يو حربي سره زنا وکړي، نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دی. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دا دی چي که په دارُ الاسلام هرڅوک زنا وکړي، پر هغه به حدّ جاري کيږي. برابره ده هغه که مسلمان وي يا ذمي او حربي وي. يا که مسلمانه ښځه وي يا ذمي او حربي ښځه وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې کله حربي کس له اسلامي حاکم (واکمن) څخه أمان اخلي او دارُ الاسلام ته راځي، نو هغه (په شروع کې د حاکم سره) دا عهد کوي چې زه تر څو په دې ځای کې يم تر هغه وخته به زه د اسلامي قوانينو پابندي کوم. لکه څرنګه چې ذمي کافر تر خپل مرګ پورې د اسلامي احکامو د عملي کولو عهد او پيمان کوي، او که چيرې ذمي په دارُ الاسلام کې زنا وکړي نو پر هغه حدّ واجب دی، لهذا پر حربي به هم په دارُ الاسلام کې د زنا په وجه حدّ واجبيږي. ها که دغه مستأمن حربي په دارُ السلام کې شرب وڅيښي، نو پر هغه به حدّ نه واجبيږي. ځکه چې د هغه په عقيده شراب حلال دي وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِتَرْكِهِمْ وَمَا يَدِيْنُوْن.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې د دارُ الاسلام د قوانينو پابندي پر هغه کس لازمه ده کوم چې په مستقله توګه دلته (دارُ الاسلام) ته د استوګنې لپاره راسي. او مستأمن حربي خو د يو څو وخت لپاره دارُ الاسلام ته راځي او کله چې خپل کار پوره کړي نو فوراً غوته ټولوي او خپل دارُ الحرب ته ځي. لهذا هغه د خپل کار په اندازه د اسلامي احکامو التزام (او پابندي) کوي. او په کوم مقدار سره چې د ده مقصود حاصليږي فقط د هغو مره مقدار سره د ده سرو کار او مقصد وي او دا مقدار تر حقوقُ العباد پورې محدود دی (ځکه چې حربي دلته د يو تجارت او يو کاروبار لپاره راځي او دا د حقوقُ العباد سره تعلق لري). او څرنګه چې قصاص او حدّ قذف حقوقُ العباد دی. نو پر هغه خو به په دې حقوقو کې حدّ جاري کيږي، لېکن زنا د شريعت حق دی. نو ځکه به د زنا کولو په وجه پر هغه حدّ نه جاري کيږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز خو پر ذمي سړي حدّ سته. لېکن پر ذمي ښځې حدّ نسته. د دوی په مينځ کې د هغه په نيز د فرق وجه دا ده چې په زنا کې أصل د سړي فعل وي او سړی پر ښځې دباو او فشار اچوي او هغه راضي کوي او په فعل کې يې د ځان ملګرې کوي. نو ځکه په دې باره کې د ښځې فعل تابع دی. او قاعده دا ده چې که يو شی (مثلاً حدّ) د أصل په حق کې ممتنع او منتفي وي. نو هغه امتناع د تابع په حق کې هم ثابتيږي. لهذا که ذمي ښځه د يو حربي سره زنا وکړي نو په اصل يعني په حربي کې حدّ ممتنع دی نو ځکه به په تابع يعني په ذمي ښځه کې هم ممتنع کيږي. د دې په خلاف که يو ذمي سړی د يوې حربي ښځې سره زنا وکړي، نو د تابع يعني د حربي ښځې په حق کې چې د حدّ کومه امتناع ده هغه به د أصل (ذمي سړي) په حق کې د حدّ امتناع لزه نه مستلزم کيږي (بلکې پر ذمي سړي به حدّ جاري کيږي)، د دې مثال دا دی چې که يو بالغ سړی د کوچنۍ نجلۍ يا لېونۍ ښځې (مجنونه) سره زنا وکړي نو نجلۍ او مجنونه تابع دي او د دوی په حق کې حدّ ممتنع دی. لېکن دا امتناع د أصل يعني د بالغ سړي په حق کې نه مؤثر کيږي او پر هغه به حدّ جاري کيږي، همدارنګه که يوه بالغه ښځه پر خپل ځان کوچني هلک يا مجنون ته قدرت ورکړي او په هغو زنا وکړي نو څرنګه چې پر أصل يعني پر کوچني هلک او مجنون حدّ نه جاري کيږي، نو پر تابع يعني پر بالغې ښځې به هم حدّ نه جاري کيږي.

**د امام صاحب دليل:** پر مستأمن حربي باندي د حدّ نه واجبېدلو او پر ذمي ښځي د حدّ واجبېدلو په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د مستأمن حربي فعل زنا ده، ځکه چي صحيح خبره دا ده چي حربيان هم د حرام کار (او زنا) نه کولو پابند جوړ سوي دي که څه هم زموږ پر قاعده هغوی په دارُ الاسلام کي د شريعت مخاطب نه دي. اوس چي کله د حربي فعل زنا ده او هغه د يوې ذمي ښځي سره دا کار وکړي نو که څه هم پر حربي حدّ نه جاري کيږي. لېکن ذمي ښځه کوم چيٰ په هر اعتبار سره په شرعي احکامو مخاطبه ده. پر هغې خو به بالکل حدّ واجبيږي.

د دې په خلاف د هلک او مجنون فعل دی. نو هغه زنا نه ده. ځکه چي دا کسان په محرمات شرعيه وو مخاطب نه دي او کله چي د دوی فعل بالکل زنا نه ده. نو ښکاره ده چي د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره د دې کسابو تابع گرځول او له دوی څخه حدّ ساقط منل او د بالغي ښځي د أصل کېدلو پر بناء په هغې کي حدّ واجب گرځول صحيح نه دي.

صاحب د هدايې فرمايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې اختلاف نظير دا دی چي مثلاً يو سړی د زنا پر کولو مجبور کړی سي، او بيا دا سړی په داسي حالت کي د ښځي سره زنا وکړي چي هغه ښځه په زنا خوشحاله وي، نو دا سړی خو مُکرَه دی، او د مُکرَه والي په وجه پر هغه حدّ نه جاري کيږي، نو څرنگه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا سړی أصل دی. لهذا کله چي پر هغه حدّ نه واجبيږي، نو پر تابع يعني پر ښځي به هم حدّ نه واجبيږي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر دې ښځي حدّ واجبيږي، ځکه چي هغه خو مُکرَهه نه ده. همدا د ائمه ثلاثه وو مذهب هم دی. (بناية ج:۶. ص:۲۶۶)

## د کوچني هلک يا لېوني سره د ښځي د زنا کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا زَنَى الصَّبِيُّ أَوِ الْمَجْنُونُ بِامْرَأَةٍ طَاوَعَتْهُ فرمايي: کله چي بچی يا لېونی د يو داسي ښځي سره زنا وکړي چي هغه ودوی ته [پر خپل ځان د زنا] موقع ورکړې فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ وَلَا عَلَيْهَا نو نه پر هغه [بچي يا لېوني] حدّ سته او نه پر ښځي حدّ سره وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يَجِبُ الْحَدُّ عَلَيْهَا امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر ښځي حدّ واجبيږي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ همدا له امام ابو يوسف رحمه الله څخه يو روايت [هم] دی وَإِنْ زَنَى صَحِيحٌ بِمَجْنُونَةٍ أَوْ صَغِيرَةٍ يُجَامَعُ مِثْلُهَا او که صحيح سلامت سړی د يوې لېونۍ ښځي يا د يوې داسي کوچنۍ نجلۍ سره جماع وکړي چي د هغو مره نجلۍ سره جماع کېدلای سي حُدَّ الرَّجُلُ خَاصَّةً نو فقط پر سړي به حدّ جاري کيږي وَهَذَا

بِالْإِجْمَاعِ او دا حکم متفق علیه دی لَهُمَا: أَنَّ الْعُذْرَ مِنْ جَانِبِهَا لَا يُوجِبُ سُقُوطَ الْحَدِّ مِنْ جَانِبِهِ د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې د ښځې عذر له سړي څخه د حدّ ساقطېدل نه ثابتوي ایعني که د ښځې له طرفه عذر وي نو هغه له سړي څخه حدّ نه ساقطوي ا فَكَذَا الْعُذْرُ مِنْ جَانِبِهِ نو همداسې به د سړي عذر هم اله ښځې څخه د حدّ ساقطېدل نه ثابتوي ا وَهَذَا لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا مُؤَاخَذٌ بِفِعْلِهِ او دا ځکه چې په دوی کې هر يو په خپل فعل سره نیول سوی او ذمه وارا دی ایعني هر انسان د خپل فعل ذمه واره دی. او په خپل فعل سره د هغه مؤاخذه کيږي ا وَلَنَا: أَنَّ فِعْلَ الزِّنَا يَتَحَقَّقُ مِنْهُ زموږ دلیل دا دی: چې د زنا فعل ا په حقیقت کې ا د سړي له طرفه ثابتيږي وَإِنَّمَا هِيَ مَحَلُّ الْفِعْلِ او ښځه خو ا فقط ا د فعل محل ده وَلِهَذَا يُسَمَّى هُوَ وَاطِئًا وَزَانِيًا همدا وجه ده چې سړي ته وطي کونکی او زنا کونکی ويل کيږي وَالْمَرْأَةُ مَوْطُوءَةً وَمَزْنِيًّا بِهَا او ښځې ته وطي کړی سوې يا زنا کړی سوې ويل کيږي إِلَّا أَنَّهَا سُمِّيَتْ زَانِيَةً مَجَازًا تَسْمِيَةً لِلْمَفْعُولِ بِاسْمِ الْفَاعِلِ لیکن هغې ته د مجاز په توګه زانيه ازنا کونکې ا ويل کيږي. مفعول ته د اسمِ فاعل په نوم ورکولو سره ایعني کله چې ښځې ته زانيه ويل کيږي. نو په هغه وخت کې مفعول مجازا د فاعل په معنیٰ سره ګرځول کيږي ا كَالرَّاضِيَةِ فِي مَعْنَى الْمَرْضِيَّةِ لکه راضيه چې د راضي کړی سوي په معنیٰ سره دی أَوْ لِكَوْنِهَا مُسَبِّبَةً بِالتَّمْكِينِ يا ځکه چې ا د زنا ا په قدرت ورکولو سره ښځه د زنا سبب جوړېدونکې ده فَتَعَلَّقَ الْحَدُّ فِي حَقِّهَا بِالتَّمْكِينِ مِنْ قَبِيحِ الزِّنَا لهذا پر بد ترین فعل باندې د قدرت ورکولو په وجه به د هغې په حق کې حدّ ثابتيږي وَهُوَ فِعْلُ مَنْ هُوَ مُخَاطَبٌ بِالْكَفِّ عَنْهُ حال دا چې دا د هغه کس فعل دی چې و هغه ته له دې فعل څخه د منع کېدلو حکم سوی دی وَمُؤْثِمٌ عَلَى مُبَاشَرَتِهِ او ا چې هغه ا به د دې پر کولو ګناهګار وي وَفِعْلُ الصَّبِيِّ لَيْسَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ او د بچي فعل په دې توګه نه دی فَلَا يُنَاطُ بِهِ الْحَدُّ نو ځکه به د هغه سره حدّ نه متعلق کيږي.

**اللغات**: ﴿طَاوَعَتْهُ﴾ د مفاعلې له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: راضي کېدل. موقع ورکول (چانس ورکول). اطاعت کول (غاړه ايښودل). ﴿حُدَّ﴾ د نصر له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده: حدّ جاري. حدّ لګول. ﴿مُؤَاخَذٌ﴾ د مفاعلې اسمِ مفعول دی: نيول سوی.

﴿مُسَبِّبَة﴾ د تفعيل مؤنث اسمِ فاعل دی سبب جوړېدونکی، سبب پيدا کونکی. ﴿تَمْكِيْن﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت ورکول (پر خپل ځان چا ته قدرت او اختيار ورکول). ﴿قَبِيْح﴾ بد کار. ﴿كَفّ﴾ د نصر مصدر دی: منع کېدل، منع کول (متعدي او غيرِ متعدي دواړه راځي). ﴿مُبَاشَرَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: کول (يو کار په خپله کول)، ارتکاب. ﴿لَا يُنَاط﴾ د فتح له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: متعلق کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يوه ښځه پر خپل ځان کوچني هلک يا لېوني ته قدرت ورکړي او د زنا کولو موقع ورکړي، نو زموږ په نېز نه پر زاني يعني پر هلک او مجنون حدّ واجبيږي. او نه پر مزنيه (مطاوعه) ښځي حدّ واجبيږي، لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز که څه هم پر هلک يا مجنون حدّ نه واجبيږي، لېکن پر مطاوعه ښځي حدّ واجبيږي. دويمه مسئله دا ده که يو صحيح سالم سړی د يوې لېونۍ ښځي سره زنا وکړي يا د داسې کوچنۍ نجلۍ سره جماع وکړي کوم چي د جماع قابله وي، نو فقط پر زاني سړي حدّ واجبيږي، پر مجنونه او صغيره باندي حدّ نسته. دا مسئله إجماعي او متفق عليه ده.

**دليل**: په مختلف فيه مسئله کي د امام زفر او امام شافعي دليل دا دی چي زاني او زانيه دواړه د خپل فعل او کار ذمه واران وي او د خپل فعل په وجه د دې مؤاخذه او نيوکه کيږي. او که په ښځه کي يو عذر وي مثلاً هغه صبيه يا مجنونه وي او د هغه عذر په وجه پر هغې حدّ واجب نه وي نو دا عذر به د سړي په حق کي نه معتبر کيږي او له هغه څخه به حدّ نه ساقطيږي. همدارنګه که د سړي په حق کي عذر وي نو د هغه عذر به د ښځي په حق کي نه مؤثر کيږي، او څرنګه چي دلته سړی د صبي کېدلو يا مجنون کېدلو په وجه معذور دی، نو په دې وجه خو به پر هغه حدّ نه واجبيږي، لېکن ښځه کوم چي مطاوعه ده پر هغې به حدّ واجبيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي زنا په حقيقت کي د سړي له طرفه صادريږي او عورت خو د وطي مقام او محل وي. همدا وجه ده چي سړي ته "زنا کونکی" او "وطي کونکی" وايي. لېکن ښځي ته مزنيه او موطوئه (زنا کړی سوې او وطي کړی سوې) وايي. او هغې مجازاً ته زانيه (زنا کونکې) وايي. يا په دې وجه هغې ته زانيه وايي چي هغه يو سړي ته پر خپل ځان قدرت ورکوي او د دې ناوړه حرکت سبب جوړيږي. بيا هم د زنا فعل د سړي وي. او هغه له دې فعل څخه منع سوی دی. او د نه منلو په صورت کي د سختي سزا ورکولو حکم سوی دی. لنډه دا چي ښځه فقط په هغه وخت کي مُسَبِّبه ګرځي کله چي هغه يو بالغ سړي ته پر خپل ځان قدرت ورکړي. او څرنګه دلته هغې نابالغ او غير مکلف يعني صبي او مجنون ته پر ځان قدرت ورکړی دی. نو ځکه به هغه مسببه نه وي او د دې مطاوعت په وجه به پر هغې حدّ نه واجبيږي.

## د مُکرَه (مجبور) سړي د زنا کولو حکم

قَالَ وَمَنْ أَكْرَهَهُ السُّلْطَانُ حَتَّى زَنَى فرمايي: او څوک چي حاکم [د زنا پر کولو] مجبور کړي. تر دې چي هغه زنا وکړي فَلَاحَدَّ عَلَيْهِ نو پر هغه حدّ نسته وَكَانَ أَبُوحَنِيفَةَ: يَقُولُ أَوَّلًا: يُحَدُّ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به مخکي ويل: چي پر هغه به حدّ جاري کيږي وَهُوَقَوْلُ زُفَرَ همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الزِّنَا مِنَ الرَّجُلِ لَا يُتَصَوَّرُ إِلَّا بَعْدَ انْتِشَارِ الْآلَةِ ځکه چي د سړي له طرفه فقط د ذکر تر دربدلو وروسته د زنا تصوّر کېدای سي [يعني سړی فقط هغه وخت زنا کولای سي کله چي د هغه ذکر منتشر او ودرېږي] وَذٰلِكَ دَلِيلُ الطَّوَاعِيَةِ او د ذکر درېدل [انتشار] د رضامندۍ دليل دی ثُمَّ رَجَعَ عَنْهُ [لېکن] بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله له دې قول څخه رجوع وکړه فَقَالَ: لَاحَدَّ عَلَيْهِ او ويې فرمايل: چي پر هغه حدّ نسته لِأَنَّ سَبَبَهُ الْمُلْجِئَ قَائِمٌ ظَاهِرًا ځکه چي پر زنا مجبوره کونکی سبب په ښکاره توګه موجود دی وَالِانْتِشَارُ دَلِيلٌ مُتَرَدِّدٌ او د ذکر درېدل يو مشکوک دليل دی لِأَنَّهُ قَدْ يَكُونُ مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ ځکه چي [د ذکر درېدل] کله د ارادې څخه بغير [هم] وي لِأَنَّ الِانْتِشَارَ قَدْ يَكُونُ طَبْعًا لَا طَوْعًا ځک چي د ذکر درېدل کله په طبيعي توګه وي. نه د رضا [او قصد] په توګه كَمَا فِي النَّائِمِ لکه په بيده سړي کي [چي کله نا کله په طبيعني توګه داسي کيږي] فَأَوْرَثَ شُبْهَةً نو دې شبهه پيدا کړه [مطلب دا چي په طواعيت او رضا کي شبهه پيدا سوه. نو ځکه به حدّ نه جاري کيږي] وَإِنْ أَكْرَهَهُ غَيْرُ السُّلْطَانِ او که له باچا [حاکم] څخه بغير [بل چا] هغه مجبوره کړی وي حُدَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغه حدّ جاري کيږي وَقَالَا[*]: لَا يُحَدُّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي حدّ به نه پر جاري کيږي لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ عِنْدَهُمَا قَدْ يَتَحَقَّقُ مِنْ غَيْرِ السُّلْطَانِ ځکه چي د دوی په نيز له باچا څخه بغير [د بل چا] له طرفه هم إکراه ثابتيږي لِأَنَّ الْمُؤَثِّرَ خَوْفُ الْهَلَاكِ وَأَنَّهُ يَتَحَقَّقُ مِنْ غَيْرِهِ ځکه چي اثر کونکی [اغېزمن] شی خو د هلايت ېره ده او هغه د غير [بل چا] له

---

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٧٢)، وكذا في الهندية (ج:٢، ص:١٥٠). [القول الراجح ج:١، ص:٤٢٣]

طرفه اهم ا ثابتېدای سي وَلَهُ: أَنَّ الْإِكْرَاهَ مِنْ غَيْرِهِ لَا يَدُومُ إِلَّا نَادِرًا د امام صاحب رحمه الله دليل دا دی: چي د غير له طرفه إكراه دوام نه كوي مګر ډېر كم اشاذ ونادر ا لِتَمَكُّنِهِ مِنَ الِاسْتِعَانَةِ بِالسُّلْطَانِ أَوْ بِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ ځکه چي مُكرَه امجبور سوی كس اله باچا يا د مسلمانانو له جماعت څخه د مدد غوښتلو قدرت لري وَتَمَكُّنِهِ دَفْعُهُ بِنَفْسِهِ بِالسِّلَاحِ اهمدارنګه اهغه د يو وسلې په ذريعه د إكراه پر دفع كولو قدرت لري وَالنَّادِرُ لَا حُكْمَ لَهُ او نادر شي لره هيڅ حكم نه وي ايعني پر نادر هيڅ حكم صادرېدای نه سي ا فَلَا يَسْقُطُ بِهِ الْحَدُّ نو ځکه به په هغه سره حد نه ساقطيږي بِخِلَافِ السُّلْطَانِ په خلاف د باچا اد إكراه ا لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الِاسْتِعَانَةُ بِغَيْرِهِ ځکه چي مُكرَه د هغه په خلاف له بل چا څخه مدد نه سي غوښتلای اځکه چي د هغه پاور او طاقت تر ټولو خلکو زيات دی ا وَلَا الْخُرُوجُ بِالسِّلَاحِ عَلَيْهِ او نه د هغه په خلاف وسله را ايستلای سي فَافْتَرَقَا نو ځکه دا دواړه سره جلا سول.

**اللغات**: ﴿أَكْرَهَهُ﴾ د افعال ماضي ده. أَكْرَهَ يُكْرِهُ إِكْرَاهًا: مجبوره كول. په يو چا په زوره كار كول. ﴿إِنْتِشَار﴾ د افتعال مصدر دی: غوړېدل. مراد ځني د ذكر پورته كېدل. درېدل او كلكېدل دي. ﴿طَوَاعِيَة﴾ رضامندي. خوښه او رضا. ﴿مُلْجِئ﴾ د افعال اسم فاعل دی: مجبوره كونكی. ﴿مُتَرَدِّد﴾ د تفعل اسم مفعول دی: مشكوك. شكمن. ﴿لَا يَدُوْم﴾ د نصر له باب څخه د نفي صيغه ده: همېشه پاتېدل. دوام كول. ﴿إِسْتِعَانَة﴾ د استفعال مصدر دی: د مرستي طلب كول. مدد غوښتل (كومك غوښتل). ﴿سِلَاح﴾ اسلحه. وسله.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه د وخت حاكم (واكمن) يو څوك د زنا پر كولو مجبور وكړي. او هغه مجبوراً زنا وكړي، نو پر هغه حد نسته. كه څه هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله مخكنی قول دا وو چي پر داسي سړي حد واجبيږي. لېكن وروسته هغه له خپل دې قول څخه رجوع وكړه او د نه وجوب حكم يې وكړی. او د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دا دی چي پر داسي سړي حد واجبيږي. د دې قول (يعني د حد واجبېدلو) دليل دا دی چي تر څو د سړي ذكر نه ودريږي او منتشر نه سي. تر هغه وخته سړی زنا نه سي كولای. او د هغه د ذكر منتشر كېدل او درېدل د دې خبري دليل دا دی چي په هغه خوشالي او رضا زنا كړې ده. او څوك چي په رضا زنا وكړي نو پر هغه حد واجبيږي. نو ځکه به پر دې سړي هم حد واجبيږي.

د مرجوع قول (چي په آخر كي امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه ته رجوع كړې ده) دليل دا دی چي دغه سړي د حاكم د فشار او د هغه د زور په وجه د هلاكت له بيري څخه مجبوراً زنا كړې ده. او د حاكم إكراه له اول څخه تر آخره

پورې موجوده ده. نو ځکه دلته زاني مُکره دی. او پر مُکره سړي حد نه سته. نو ځکه به حد نه پر واجبيږي. او پاته سوه د ذکر د انتشار مسئله. نو د هغه جواب دا دی چي انتشار د رضا او خوښۍ دليل نه سي جوړېدای. ځکه کله نا کله د جماع او زنا له قصد څخه بغير هم انتشار پيدا کيږي. لکه څرنګه چي د بيده سړي ذکر ځيني وخت منتشر کيږي. حال دا چي د هغه قصد د جماع او زنا نه وي. نو په دې وجه انتشار د رضا دليل نه سي شمارل کېدای.

**وإن أكرهه غير السلطان إلخ:** که له حاکم او باچا څخه بغير بل څوک يو سړی د زنا پر کولو مجبور کړي او هغه زنا وکړي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به پر هغه حد جاري کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به حد نه پر جاري کيږي. د دواړو طرفونو دليل له ترجمې څخه واضح دی. په غور سره يې مطالعه کړئ!.

## که په خاوند او ښځه کي يو د زنا دعویٰ وکړي او بل د نکاح دعویٰ وکړي؟ (حکم)

**وَمَنْ أَقَرَّ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فِي مَجَالِسَ مُخْتَلِفَةٍ أَنَّهُ زَنَى بِفُلَانَةٍ** او کوم سړی چي په مختلفه مجلسونو کي څلور واره دا اقرار وکړي چي هغه د فلانۍ ښځي سره زنا کړې ده **وَقَالَتْ هِيَ: تَزَوَّجَنِيْ** او فلانۍ ښځه ووايي: چي هغه زما سره نکاح کړې ده **أَوْ أَقَرَّتْ بِالزِّنَا وَقَالَ الرَّجُلُ: تَزَوَّجْتُهَا** يا دا چي ښځه د زنا اقرار وکړي او سړی ووايي: چي ما د هغې سره نکاح کړې ده **فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ** نو پر سړي حد نسته **وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ فِي ذٰلِكَ** او په دواړو صورتونو کي به پر هغه مهر اواجب اوي **لِأَنَّ دَعْوَى النِّكَاحِ يَحْتَمِلُ الصِّدْقَ** ځکه چي د نکاح دعویٰ کول د رښتياولي احتمال اهم الري **وَهُوَ يَقُوْمُ بِالطَّرَفَيْنِ** او نکاح پر دواړو طرفونو ولاړه ده **فَأَوْرَثَ شُبْهَةً** نو دې اقرار شبهه پيدا کړه **وَإِذَا سَقَطَ الْحَدُّ** او کله چي حد ساقط سو **وَجَبَ الْمَهْرُ تَعْظِيْمًا لِخَطَرِ الْبُضْعِ** نو د بضع د احترام اا او درنښت اڅرګندولو لپاره به مهر واجبيږي.

**اللغات:** ﴿صِدْق﴾ د نصر اسمِ مصدر دی: رښتيا والی (رښتيا ويل). صداقت. ﴿أَوْرَثَ﴾ د افعال ماضي ده: په نتيجه کي پرېښوول. سبب جوړېدل. وارث جوړول. ﴿خَطَر﴾ احترام. درنښت (درناوی). ﴿بُضْع﴾ د ښځي شرمګاه.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی څلور واره په څلورو مجلسونو کي دا اقرار وکړي چي ما د فلانۍ ښځي سره زنا کړې ده. لېکن ښځه وايي چي هغه زما سره نکاح کړې ده. يا ښځه د زنا اقرار وکړي او سړی د نکاح خبره وکړي. نو په دې دواړو صورتونو کي پر يوه هم حد نه واجبيږي. او پر سړي مهر واجبيږي: ځکه چي د نکاح په دعویٰ کي د صدق او رښتياوالي احتمال هم سته. او نکاح له دواړو

طرفونو څخه ثابتيږي هغه که سړی دعوی وکړي يا ښځه دعوی وکړي. لهذا دغه دعوې د حدّ په وجوب کي شبهه پيدا کړه، او په شبهاتو سره حدود ساقطيږي نو ځکه به له دواړو څخه حدّ ساقطيږي، ليکن د ملک بضع د شرافت څرګندولو لپاره به پر سړي (يعني پر خاوند) مهر مثل واجب وي.

## د زنا په وجه د مينځي مړه کېدل (حکم او اختلاف)

وَمَنْ زَنَى بِجَارِيَةٍ فَقَتَلَهَا او کوم کس چي د مينځي سره زنا وکړي او هغه [په زنا سره] قتل کړي فَإِنَّهُ يُحَدُّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي وَعَلَيْهِ الْقِيمَةُ او پر هغه به قيمت [هم واجب] وي مَعْنَاهُ: قَتَلَهَا بِفِعْلِ الزِّنَا د دې مطلب دا دی چي زاني په زنا کولو سره هغه قتل کړي لِأَنَّهُ جَنَى جِنَايَتَيْنِ ځکه چي هغه دوه جرمونه وکړه فَيُوَفَّرُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُكْمَهُ لهذا په دوی کي به هر يوه ته د هغه پوره حکم ورکول کيږي [مطلب دا چي پر دغه کس به د هر جرم حکم جاري کيږي] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❀: أَنَّهُ لَا يُحَدُّ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي پر هغه به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ تَقَرُّرَ ضَمَانِ الْقِيمَةِ سَبَبٌ لِمِلْكِ الْأَمَةِ ځکه چي د قيمت د ضمان ثبوت د مينځي د مالک جوړېدلو سبب دی [يعني د ضمان لازمېدل د مينځي د مالک جوړېدلو لامل دی] فَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَاهَا بَعْدَ مَا زَنَى بِهَا نو داسي سو لکه زاني چي تر زنا کولو وروسته مينځه رانيسي وَهُوَ عَلَى هٰذَا الِاخْتِلَافِ او دا [هم] پر همدغه اختلاف دي وَاعْتِرَاضُ سَبَبِ الْمِلْكِ قَبْلَ إِقَامَةِ الْحَدِّ يُوجِبُ سُقُوطَهُ او تر حدّ جاري کولو مخکي د ملکيت سبب مخته راتلل د حدّ سقوط ثابتوي كَمَا إِذَا مَلَكَ الْمَسْرُوقَ قَبْلَ الْقَطْعِ لکه کله چي غل تر لاس پرېکېدلو مخکي د غلا کړی سوي شي مالک جوړ سي [نو له هغه څخه د لاس پرېکېدلو حدّ ساقطيږي] وَلَهُمَا: أَنَّهُ ضَمَانُ قَتْلٍ د طرفينو دليل دا دی: چي دا قيمت د قتل ضمان دی فَلَا يُوجِبُ الْمِلْكَ نو ځکه به ملکيت نه ثابتوي لِأَنَّهُ ضَمَانُ دَمٍ ځکه چي دا قيمت د خون ضمان دی وَلَوْ كَانَ يُوجِبُهُ فَإِنَّمَا يُوجِبُهُ فِي الْعَيْنِ كَمَا فِي هِبَةِ الْمَسْرُوقِ او که چيري هغه ملکيت ثابتولای نو په ذات [مينځه] کي به يې ثابتولای، لکه د غلا کړی سوي شي په هبه کولو کي [چي داسي کيږي] لَا فِي مَنَافِعِ الْبُضْعِ [او] د بضع په منافعو کي به يې ملکيت نه ثابتولای لِأَنَّهَا اُسْتُوفِيَتْ ځکه چي د

---

❀ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۷۳). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۴۳]

بُضع منافع خو امخكي لا ا حاصل كړې سول وَالْمِلْكُ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا او ملكيت د منسوبېدلو په حالت كي ثابتيږي [يعني ملكيت تر ضمان وركولو وروسته ثابتيږي] فَلَا يَظْهَرُ فِي الْمُسْتَوْفَى لهذا هغه به په حاصل كړي سوي شي [منافعو] كي نه ښكاره كيږي لِكَوْنِهَا مَعْدُومَةً ځكه چي هغه خو نيستي سول وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا زَنَى بِهَا فَأَذْهَبَ عَيْنَهَا او دا د هغه صورت په خلاف دي كله چي [يو ځوک] د مينځي سره زنا وكړي او د هغې يوه ستر گه ختمه كړي حَيْثُ تَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَتُهَا نو [په هغه صورت كي] پر هغه د مينځي قيمت واجبيږي وَيَسْقُطُ الْحَدُّ او حدّ ساقطيږي لِأَنَّ الْمِلْكَ هُنَالِكَ يَثْبُتُ فِي الْجُثَّةِ الْعَمْيَاءِ وَهِيَ عَيْنٌ ځكه چي هلته په ړانده جسم كي ملكيت ثابتيږي او هغه ستر گه ده [يعني هلته په ختمه سوې ستر گه كي ملكيت ثابتيږي] فَأَوْرَثَ شُبْهَةً نو دې ملكيت شبهه پيدا كړه.

**اللغات:** ﴿يُوَفِّر﴾ د تفعيل مضارع ده: پوره وركول (حق پوره وركول). ﴿دَمْ﴾ وينه. خون (وژنه). ﴿يُوْجِبُهُ﴾ افعال مضارع ده: ثابتول. واجبول. ﴿اُسْتُوْفِيَتْ﴾ د استفعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: حاصلول (خپل حق اخيستل). تر لاسه كول. ﴿مُسْتَنِدًا﴾ د استفعال اسم فاعل دى. اِسْتَنَدَ يَسْتَنِدُ اِسْتِنَادًا: نسبت كېدل. منسوب كېدل (تر سبب وروسته متصل راتلل). ﴿عَيْن﴾ ستر گه. ﴿جُثَّة﴾ جسم. جسد. قواره. شكل. څيره.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه يو سړى د يوې مينځي سره په دومره فشار زنا وكړي چي د هغه په وجه مينځه مړه سي. نو پر زاني حدّ هم واجبيږي. او د مينځي قيمت هم پر واجبيږي. ځكه چي هغه دوه جنايته كړي دي: ① يو زنا چي هغه حدّ واجبوي. ② بل قتل چي د هغه بدل قيمت دى. نو ځكه به پر هغه حدّ او قيمت دواړه شيان وي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دى چي پر زاني صرف قيمت واجبيږي. ځكه چي د قيمت تر اداء كولو وروسته هغه د دې مينځي مالک جوړيږي. او تر حدّ جاري كېدلو مخكي مالک جوړېدل حدّ ساقطوي. لكه يو ځوک چي يو شى غلا كړي. بيا تر لاس پرېكېدلو مخكي د هغه شي مالک سي. نو له هغه څخه حدّ (قطعُ اليد) ساقطيږي). همداسي به دلته هم كه تر حدّ جاري كېدلو مخكي زاني د مقتوله مزنيه مينځي مالک سي نو له هغه څخه به حدّ ساقطيږي. او لكه څرنګه چي تر زنا وروسته زاني مزنيه مينځي رانيسي. نو په هغه صورت كي هم د امام ابو يوسف په نېز حدّ ساقطيږي.

**لهما إلخ**: د طرفينو دليل دا دی چي ملکيت خو د يو شي په رانيولو يا په وراثت او هبه کي د يو شي په حاصلولو سره ثابتيږي. د خون د ضمان په ورکولو سره ملکيت نه حاصليږي. حالانکي دلته چي پر زاني کوم قيمت واجب دی. هغه د خون ضمان دی. نو ځکه په دې سره ملکيت نه سي ثابتېدای او کله چي ملکيت نه ثابتيږي. نو پر زاني به د زنا په وجه حدّ واجبيږي. او که چيري مونږ دا خبره تسليم هم کړو چي په دې ضمان سره د زاني مُلکيت (په مينځه کي) ثابتيږي. نو دا ملکيت به د مينځي په عين (ذات) کي ثابتيږي. نه د بضع په منافعو کي. او ملکيت د استناد په توګه په قائم شي کي ثابتيږي. حالانکي زاني خو مخکي ملک بضع حاصله کړه او هغه نيستي سوه. نو ځکه د زاني ملکيت په هغه کي نه سي ثابتېدای. او حدّ د ملک بضع د حاصلولو عوض دی (او هغه نيستي سوه). نو ځکه به پر هغه خامخا حدّ لازميږي (خلاصه دا چي دا ضمان د مينځي قيمت هم جوړېدای نه سي. ځکه چي هغه مړه سو. او کومه نفع (وطي) چي سړي له مينځي څخه حاصله کړې ده. دا ضمان د هغه قيمت هم جوړېدا نه سي. ځکه چي هغه نفع او محل د نفع هم معدوم او نيستي سو. نو ځکه به دا قيمت فقط د ښځي د خون ضمان وي. او حدّ به پر هغه جلا واجبيږي).

د دې په خلاف که يو سړی د يوې مينځي سره زنا وکړي او د هغې يوه سترګه ختمه کړي. نو فقط پر هغه د مينځي د سترګي قيمت واجبيږي. حدّ نه پر واجبيږي. ځکه چي دلته د زاني لپاره د مينځي په سترګه کي ملکيت حاصل سو. او د استناد په توګه په مينځه کي هغه لره ملکيت حاصلېدای سي. ځکه چي مينځه ژوندۍ ده او د ملکيت محل ده. نو په سترګه کي د زاني د ملکيت په ثابتېدلو سره د مينځي په ذات کي د هغه ملکيت شبهه پيدا سوه. او د شبهي په وجه حدّ ساقطيږي. نو ځکه به په دې مسئله کي پر زاني فقط د سترګي قيمت واجبيږي. نه حدّ.

## د مسلمانانو پر أمير (امام) د حدّ نافذولو بيان

قَالَ: **وَكُلُّ شَيْءٍ صَنَعَهُ الْإِمَامُ الَّذِي لَيْسَ فَوْقَهُ إِمَامٌ** فرمايي: او هر هغه کار کوم چي يې داسي إمام (حاکم) وکړي چي تر هغه پورته بل إمام نه وي **فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ إِلَّا الْقِصَاصُ** نو له قصاص څخه بغير (په بل کار کي) پر هغه حدّ نسته **فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِهِ وَبِالْأَمْوَالِ** لېکن په قصاص او مالونو کي به د هغه نيوکه کيږي **لِأَنَّ الْحُدُودَ حَقُّ اللهِ تَعَالَى** ځکه چي حدود د الله حق دی **وَإِقَامَتُهَا إِلَيْهِ لَا إِلَى غَيْرِهِ** او د حدونو د نافذولو اختيار (فقط) حاکم لره سته. نه بل چا لره **وَلَا يُمْكِنُهُ أَنْ يُقِيمَ عَلَى نَفْسِهِ** او دا ممکنه نه ده چي إمام پر خپل ځان حدّ جاري کړي **لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ** (نو) ځکه (پر امام حدّ لازمول) فايده نه کوي

بِخِلَافِ حُقُوقِ الْعِبَادِ په خلاف د بندګانو د حقونو لِأَنَّهُ يَسْتَوْفِيهِ وَلِيُّ الْحَقِّ ځکه چې هغه د حق خاوند [مالک] حاصلوي إِمَّا بِتَمْكِينِهِ أَوْ بِالِاسْتِعَانَةِ بِمَنَعَةِ الْمُسْلِمِينَ يا د [مالک] په قادر جوړېدلو سره يا د مسلمانانو د لښکر په رانښکولو [مرسته غوښتلو] سره وَالْقِصَاصُ وَالْأَمْوَالُ مِنْهَا او قصاص او أموال له حقوقُ العباد څخه دي وَأَمَّا حَدُّ الْقَذْفِ قَالُوا: الْمُغَلَّبُ فِيهِ حَقُّ الشَّرْعِ او کوم چې حد قذف دی. نو علماء فرمايي: چې غالب په هغه کي د شريعت حق دی فَحُكْمُهُ حُكْمُ سَائِرِ الْحُدُودِ الَّتِي هِيَ حَقُّ اللهِ تَعَالَى نو د هغه حکم به د هغه نورو حدونو په څېر وي کوم چې د الله حق دي.

**اللغات**: ﴿يُؤْخَذ﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: نيول. مواخذه کول. ﴿تَمْكِيْن﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت ورکول. اختيار ورکول. ﴿إِسْتِعَانَة﴾ د استفعال مصدر دی: د مدد طلب کول. مرسته غوښتل (ننګول). ﴿سَائِر﴾ د دې لفظ دوې معناوې راځي: ټوله (تمام). نور (پاته). دلته يې آخري معنیٰ مراد ده.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د مسلمانانو أمير او حاکم يو داسې حرکت وکړي چې د هغه په وجه حد واجبيږي مثلاً زنا يا غلا وکړي يا شراب وڅيښي. او تر هغه بل پورته حاکم نه وي. نو پر هغه به حد نه جاري کيږي. ها! که هغه يو څوک قتل کړي نو په قصاص کي به هغه هم قتل کيږي. او د أموالو په هکله به له هغه څخه پوښتنه (حساب وکتاب) کيږي. او په نورو حقوقو کي به پر هغه ځکه حد نه جاري کيږي چې حدود د الله تعالیٰ حق دی. او حد جاري کول فقط د إمام او حاکم کار دی. او إمام پر خپل ځان حد نه سي جاري کولای. نو ځکه په حد واجبولو کي هيڅ فايده نسته. د دې په خلاف هغه حقوق کوم چې د بندګانو سره تعلق لري مثلاً قصاص. أموال او داسې نور. نو د دې حقوقو بدله به له إمام څخه هم اخيستل کيږي. ځکه چې دا حقوق خپل مالک (د حق خاوند) حاصلوي.

او که امام پر يو چا تهمت ولګوي. نو پر هغه به حد قذف نه جاري کيږي. ځکه چې د علماؤ په قول په حد قذف کي د شريعت او الله حق غالب دی (ګواکي هغه هم حق الله دی). لهذا څرنګه چې په نورو حقوقُ الله کي پورتني کبير إمام او حاکم ته سزا او مجازات نه ورکول کيږي. همداسې به په حد قذف کي هم هغه ته سزا نه ورکول کيږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الشَّهَادَةِ عَلَى الزِّنَا وَالرُّجُوعِ عَنْهَا

(دا) باب د زنا په ګواهۍ ورکولو او له ګواهۍ څخه د رجوع کولو (په بیان کې) دی

**تشریح**: مخکې دا خبره ذکر سوه چې زنا خو یا په اقرار سره ثابتېږي، یا په شهادت (ګواهۍ) سره. د اقرار احکام او مسئلې په مخکني باب کې بیان سوې. اوس له دې ځای څخه د شهادت مسئلې بیانېږي، شهادت ځکه له اقرار څخه وروسته بیان سوی دی چې د شهادت د شرائطو د سختوالي په وجه په شهادت سره د زنا ثابتېدل انتهائي شاذ او نادر دي. (بناية ج:۶، ص:۲۷۶)

## په شهادت کې تأخیر کول (ګواهي ځنډول)

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ الشُّهُودُ بِحَدٍّ مُتَقَادِمٍ فرمایي: که چېرې ګواهان د یو پخواني حدّ ګواهي ورکړي لَمْ يَمْنَعْهُمْ عَنْ إِقَامَتِهِ بُعْدُهُمْ عَنِ الْإِمَامِ او له امام څخه د دوی لیري والي دوی له ګواهي ورکولو څخه منع کړي نه وي [یعني په ګواهۍ کې د تأخیر کولو وجه دا نه وي چې د دوی او د إمام په وطن کې ډېره فاصله او لیري والي وي] لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُمْ إِلَّا فِي حَدِّ الْقَذْفِ خَاصَّةً نو د دوی ګواهي به نه قبلېږي مګر فقط په حدّ قذف کې وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَإِذَا شَهِدَ عَلَيْهِ الشُّهُودُ بِسَرِقَةٍ أَوْ بِشُرْبِ خَمْرٍ أَوْ بِزِنًا بَعْدَ حِينٍ او په جامع صغیر کې [ذکر سوي] دي: که چېرې ګواهان تر یو مودت وروسته د یو چا په خلاف د غلا کولو یا د شراب چیښلو یا د زنا کولو ګواهي ورکړي لَمْ يُؤْخَذْ بِهِ نو دا ګواهي به نه قبلېږي [او د دې په وجه به پر مجرم حدّ نه جاري کېږي] وَضَمِنَ السَّرِقَةَ [لیکن] هغه به د غلا ضامن وي [یعني فقط د غلا کولو په حق کې به دا ګواهي قبلېږي] وَالْأَصْلُ فِيهِ: أَنَّ الْحُدُودَ الْخَالِصَةَ حَقًّا لِلَّهِ تَعَالَى تَبْطُلُ بِالتَّقَادُمِ او په دې باره کې اُصول دا دی: چې هغه حدود کوم چې خالص د الله تعالیٰ حق دي هغه په پخواني کېدلو سره باطلېږي [یعني د ډېر وخت په تېرېدلو سره باطلېږي] خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله هُوَ يَعْتَبِرُهَا بِحُقُوقِ الْعِبَادِ هغه دا پر حقوق العباد قیاسوي وَبِالْإِقْرَارِ الَّذِي هُوَ إِحْدَى الْحُجَّتَيْنِ او پر اقرار یې قیاسوي کوم چې له دوو حجتونو څخه

يو حجّت دی وَلَنَا أَنَّ الشَّاهِدَ مُخَيَّرٌ بَيْنَ حِسْبَتَيْنِ مِنْ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ وَالسَّتْرِ زموږ دليل دا دی: چې گواه لره په دوو ثوابونو کي د يوه ثواب حاصلولو اختيار سته يعني [پر مجرم] گواهي اداء کول او [د مجرم] پرده ساتل فَالتَّأْخِيرُ إِنْ كَانَ لِاخْتِيَارِ السَّتْرِ نو [د گواهۍ] تأخير که چيري د ستر [پرده ساتلو] په وجه وي فَالْإِقْدَامُ عَلَى الْأَدَاءِ بَعْدَ ذٰلِكَ لِضَغِينَةٍ هَيَّجَتْهُ أَوْ لِعَدَاوَةٍ حَرَّكَتْهُ نو [تر تأخير وروسته] به د گواهۍ پر اداء کولو د هغه إقدام کول د يو داسي بغض په وجه وي چې هغه يې [پر گواهۍ] را پارولی وي او يا به د يو داسي دښمنۍ په وجه وي چې هغه يې [گواهۍ ته] آماده کړی وي فَيُتَّهَمُ فِيهَا نو [په دې صورت کي] به هغه په خپله گواهۍ کي مُتهم وي وَإِنْ كَانَ التَّأْخِيرُ لَا لِلسَّتْرِ يَصِيرُ فَاسِقًا آثِمًا او که چيري تأخير د ستر [پرده ساتلو] په وجه نه وي نو گواه به فاسق او گنهگار وي فَتَيَقَّنَّا بِالْمَانِعِ نو ځکه موږ د مانع يقين وکړی امطلب دا چې دا دواړه صورتونه (يعني متهم کېدل او فاسق کېدل) په يقيني توگه د شهادت له قبوليت او اداء کېدلو څخه مانع دي. نو ځکه به گواهي له قبليږي] بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يُعَادِي نَفْسَهُ په خلاف د اقرار. ځکه چې انسان د خپل ځان سره دښمني نه کوي فَحَدُّ الزِّنَا وَشُرْبِ الْخَمْرِ وَالسَّرِقَةِ خَالِصُ حَقِّ اللهِ تَعَالَىٰ نو د زنا. شراب خوري او غلا حدّ خالص د الله تعالىٰ حق دی حَتّٰى يَصِحَّ الرُّجُوعُ عَنْهَا بَعْدَ الْإِقْرَارِ همدا وجه ده چې تر اقرار وروسته له دوی څخه رجوع کول صحيح دي فَيَكُونُ التَّقَادُمُ فِيهِ مَانِعًا لهذا په گواهۍ کي به تقادم [د گواهۍ له قبوليت څخه] مانع وي وَحَدُّ الْقَذْفِ فِيهِ حَقُّ الْعَبْدِ او حدّ قذف د بنده حق دی لِمَا فِيهِ مِنْ دَفْعِ الْعَارِ عَنْهُ ځکه چې په هغه کي له بنده څخه د عيب [او پېغور] ختمول دي وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ رُجُوعُهُ بَعْدَ الْإِقْرَارِ همدا وجه ده چې تر اقرار وروسته له هغه څخه رجوع کول صحيح نه دي وَالتَّقَادُمُ غَيْرُ مَانِعٍ فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ او په حقوقُ العباد کي تقادم مانع نه دی لِأَنَّ الدَّعْوَىٰ فِيهِ شَرْطٌ ځکه چې په حقُّ العبد کي دعویٰ شرط ده فَيُحْمَلُ تَأْخِيرُهُمْ عَلَى انْعِدَامِ الدَّعْوَىٰ نو [په حقُّ العبد کي] به د گواهانو تأخير د دعویٰ پر معدوم کېدلو [نشتوالي] باندي حمل کيږي فَلَا يُوجِبُ تَفْسِيقَهُمْ نو ځکه به دا تأخير د دوی تفسيق نه واجبوي [يعني نو ځکه به په حقُّ العبد کي د گواهۍ د ځنډولو په وجه دوی فاسقان نه گرځول کيږي] بِخِلَافِ حَدِّ السَّرِقَةِ په خلاف د غلا د حدّ لِأَنَّ

الدَّعْوَى لَيْسَتْ بِشَرْطٍ لِلْحَدِّ ځکه چي د حدّ لپاره دعویٰ شرط نه ده لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّ اللهِ تَعَالَى ځکه چي حدّ خالص د الله تعالیٰ حق دی عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکي چي دا اخبره ا تېره سوه وَإِنَّمَا شُرِطَتْ لِلْمَالِ دعویٰ خو افقط ا د مال لپاره شرط ده وَلِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى كَوْنِ الْحَدِّ حَقًّا لِلهِ تَعَالَى او ځکه چي د حکم مدار پر دې خبره دی چي حدّ د الله تعالیٰ حق دی فَلَا يُعْتَبَرُ وُجُودُ التُّهْمَةِ فِي كُلِّ فَرْدٍ نو ځکه په هر فرد کي د تهمت موجودېدل معتبر نه دي وَلِأَنَّ السَّرِقَةَ تُقَامُ عَلَى الِاسْتِسْرَارِ عَلَى غِرَّةٍ مِنَ الْمَالِكِ او ځکه چي غلا د مالک د غفلت په وخت کي په پټه کيږي فَيَجِبُ عَلَى الشَّاهِدِ إِعْلَامُهُ نو ځکه پر گواه د مالک خبرول واجب دي وَبِالْكِتْمَانِ يَصِيرُ فَاسِقًا آثِمًا او د ا گواهی ا د پټولو په وجه هغه فاسق او گنهگار گرځي ثُمَّ التَّقَادُمُ كَمَا يَمْنَعُ قَبُولَ الشَّهَادَةِ فِي الِابْتِدَاءِ يَمْنَعُ الْإِقَامَةَ بَعْدَ الْقَضَاءِ عِنْدَنَا بیا چي څرنگه تقادم په ابتداء کي د شهادت له قبولیت څخه مانع دی همداسي زموږ په نېز تر قضاء وروسته هم د حدّ له اقامت اجاري کولو ا څخه مانع دی خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله حَتَّى لَوْ هَرَبَ بَعْدَ مَا ضُرِبَ بَعْضَ الْحَدِّ ثُمَّ أُخِذَ بَعْدَ مَا تَقَادَمَ الزَّمَانُ تر دې که ا یو مجرم ا د حدّ یو څه حصه ووهل سي او ا په دې دوران کي ا هغه وتښتيږي بيا تر يو مودت تېرېدلو وروسته هغه ونيول سي لَا يُقَامُ عَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ الْإِمْضَاءَ مِنَ الْقَضَاءِ فِي بَابِ الْحُدُودِ ځکه چي د حدونو په باب کي حدّ جاري کول له قضاء څخه دي ا يعني ځکه چي د حدّ په باب کي حدّ جاري کول هم د قضاء حصه ده ا وَاخْتَلَفُوا فِي حَدِّ التَّقَادُمِ او د تقادم په اندازه کي مشائخو اختلاف کړی دی وَأَشَارَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ إِلَى سِتَّةِ أَشْهُرٍ امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي شپږو مياشتو ته اشاره کړې ده فَإِنَّهُ قَالَ بَعْدَ حِينٍ ځکه چي هغه "بَعْدَ حِينٍ" فرمايلي دي ا او د حِين إطلاق پر شپږو مياشتو کيږي ا وَهَكَذَا أَشَارَ الطَّحَاوِيُّ او همدارنگه امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم ا دې ته ا اشاره کړې ده وَأَبُو حَنِيفَةَ لَمْ يُقَدِّرْ فِي ذَلِكَ او امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې هکله هيڅ مودت ټاکلی نه دی وَفَوَّضَهُ إِلَى رَأْيِ الْقَاضِي فِي كُلِّ عَصْرٍ او دا يې د هري زمانې د قاضي ته سپارلی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ قَدَّرَهُ بِشَهْرٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی: چي هغه تقادم په

يوې مياشتې سره اندازه کړې دی لِأَنَّ مَا دُونَهُ عَاجِلٌ ځکه چې تر يوې مياشتې کم مودت عاجل وخت دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او همدا له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه يو روايت دی وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح دی وَهَذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ الْقَاضِي وَبَيْنَهُمْ مَسِيرَةُ شَهْرٍ او دا حکم په هغه صورت کې چې کله د قاضي او د ګواهانو په مينځ کې د يوې مياشتې مسافه نه وي أَمَّا إِذَا كَانَ لېکن که چيرې د يوې مياشتې مسافه وي تُقْبَلُ شَهَادَتُهُمْ نو د دوی ګواهي به قبليږي لِأَنَّ الْمَانِعَ بُعْدُهُمْ عَنِ الْإِمَامِ ځکه چې [په دې صورت کې] مانع له امام څخه د دوی لېرې والي دی فَلَا تَتَحَقَّقُ التُّهْمَةُ نو تهمت نه ثابتيږي وَالتَّقَادُمُ فِي حَدِّ الشُّرْبِ كَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او د شرابو په حد کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز همدومره تقادم معتبر دی [يعني د شراب څښلو په حد کې د هغه نيز د تقادم مودت يوه مياشته ده] وَعِنْدَهُمَا يُقَدَّرُ بِزَوَالِ الرَّائِحَةِ عَلَى مَا يَأْتِي فِي بَابِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه [د خولې] د بوی په ختمېدلو سره اندازه کيږي چې د دې بيان به انشاء الله په خپل باب کې [استاسي مخته] راسي.

**اللغات**: ﴿مُتَقَادِم﴾ د تفاعل اسمِ فاعل دی: پخوانی. مخکنی. ﴿تَقَادُم﴾ د تفعل مصدر دی: پخوانی کېدل. مخکې کېدل. ډېر وخت تېرېدل. ﴿حِسبَتَين﴾ د ثواب دوې طريقې. دوه ثوابونه. دوه أجرونه. ﴿سَتَر﴾ پرده داري. پرده ساتل. پرده پوشي. ﴿ضَغِينَة﴾ کينه. بغض. ﴿هَيَّجَتْه﴾ د تفعيل ماضي ده: پارول. لمسول. په اشتعال کې راوستل. ﴿حَرَّكَتْه﴾ دا هم د تفعيل ماضي ده: ښورول. هڅول. آماده کول. ﴿عَدَاوة﴾ دښمني. ﴿تَفْسِيق﴾ د تفعيل مصدر دی: فاسق ګرځول. فاسق شمارل (فاسق ورته ويل). ﴿إِسْتِتْرَا﴾ د استفعال مصدر دی: په پټه د يو شي طلب کول. ﴿كِتْمَان﴾ د نصر مصدر دی: پټول. ﴿إِمْضَاء﴾ د افعال مصدر دی: د حدّ نافذول. حدّ جاري کول. ﴿قَدَّرَهُ﴾ د تفعيل ماضي ده: اندازه کول. مقدار ټاکل. مقرر کول. ﴿عَاجِل﴾ فوراً. ژر (مراد ځني لنډ وخت دی).
﴿مَسِيرَة﴾ مسافه. فاصله (واټن). ﴿رَائِحَة﴾ بوی.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيرې ګواهانو پر يو پخواني حدّ شهادت (ګواهي) ورکړه. او د شهادت له اداء کولو څخه د دوی لپاره هيڅ شی مانع نه وو. يعني نه دا کسان (ګواهان) له امام څخه لېرې وه. او نه دوی په يو مرض مبتلا وه. خو د دې باوجود ګواهانو د شهادت په اداء کولو کې تأخير وکړی. نو په

داسي صورت کي به د دوی شهادت فقط په حدّ قذف کي قبليږي او له دې څخه بغير به په بل شي کي نه قبليږي. په جامع صغير کي دا مسئله بيان سوې ده چي که يو څو خلک ډېر وخت وروسته د يو چا په خلاف د غلا کولو يا د شراب چيښلو يا د زنا کولو ګواهي ورکړي، نو فقط د غلا کولو په حق کي به دا شهادت قبليږي او د زنا او داسي نورو په حق کي به نه قبليږي.

**والأصل إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي په دې سلسله کي زموږ اُصول او قاعده دا ده چي کوم حدود خالص د الله تعالىٰ حق دي هغه په تأخير او تقادم سره باطليږي (يعني په ځنډولو او په ډېر وخت تېرېدلو سره ساقطيږي). لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حقوقُ الله هم د حقوقُ العباد په څير په تأخير او تقادم سره نه باطليږي. او لکه څرنګه چي يو زناکاره يا شراب خوره تر ډېر وخت وروسته د زنا يا د شراب اقرار وکړي نو له هغه څخه حدّ نه ساقطيږي. همداسي تر ډېر وخت وروسته د زنا يا د شرابو په شهادت ورکولو سره هم حدّ نه باطليږي. لېره چي څرنګه اقرار حجّت دی. د امام شافعي په نيز شهادت هم هغسي حجّت دی.

**زموږ دليل**: دا دی چي ګواه لره په دوو خبرو کي د يوې خبري اختيار سته: ① يا دا چي شهادت ورکړي او ثواب حاصل کړي. ② يا دا چي شهادت پټ کړي او د ستر (پرده داری) ثواب حاصل کړي. نو که ګواه د ستر او پرده پوشی په نيت په شروع کي شهادت اداء نه کړی. او بيا تر يو مودت وروسته هغه د شهادت پر اداء کولو إقدام وکړی. نو د هغه دا إقدام به پر بغض او کينه (عداوت) مبني وي. او په دې وجه سره به ګواه د شهادت په اداء کولو کي متهم او تورن وي. او که چيري د شهادت په اداء کولو کي د تأخير کولو وجه ستر او پرده پوشي نه وي او بېله وجهي شهادت ځنډول سوی وي. نو د دې تأخير په وجه به ګواه فاسق او ګناهګاره وي. او دا دواړه صورتونه (يعني متهم کېدل او فاسق کېدل) د شهادت له اداء کېدلو څخه مانع دي. نو ځکه به د هغه شهادت بالکل نه قبليږي.

د شهادت په خلاف د اقرار مسئله ده. نو په اقرار کي تأخير په دې وجه مانع نه دی چي په اقرار سره ثابتېدونکی حکم په خپله پر مُقِر (اقرار کونکي) ثابتيږي. او انسان د خپل ذات سره بغض او عداوت نه کوي. نو په دې د اقرار په صورت کي انسان متهم کېدلای نه سي او تر تأخير وروسته به هم د هغه اقرار معتبر وي.

اوس تاسي زموږ د مخکني اُصول په رڼا کي د عبارت تشريح ته ګورئ! د غلا او د شرابو حدود خالص حقوقُ الله دي. له همدې وجهي د دې شيانو تر اقرار وروسته له اقرار څخه رجوع کول صحيح دي. نو ځکه به په دوی کي تقادم او تأخير د شهادت له قبلېدلو څخه مانع وي. او په حدّ قذف کي له بنده څخه پېغور او عار دفع کيږي. په همدې وجه شريعت هغه حقُ العبد شمارلی دی. او په حقوقُ

العباد كي تقادم د شهادت له قبول څخه مانع نه نوي، نو ځكه وجه موږ إِلَّا فِيْ حَدِّ الْقَذْفِ خاصَّةً وويل او د حدّ قذف استثناء مو وكړه، تقادم ځكه له حقوقُ العباد څخه مانع نه دى چي په حقُ العبد كي دعوىٰ شرط ده، لهذا كله چي په حقُ العبد كي د شهادت په اداء كول كي تأخير راسي، نو دا تأخير به د دعوىٰ پر نشتوالي محمول وي، نو ځكه په دې تأخير سره ګواه فاسق نه سي ګرځول كېداى. او د غلا په حدّ كي د شهادت نه قبلېدلو وجه دا ده چي د قطعُ اليد لپاره دعوىٰ شرط نه ده، ځكه چي غلا خالص د الله حق دى، نو ځكه په دې كي تأخير او تقادم د شهادت له قبوليت څخه مانع ګرځي (او د تأخير او تقادم په وجه د غلا په حدّ كي شهادت باطليږي، د دې خبري دويم دليل به يو څو ليكي وروسته هم ذكر سي)

د دې سلسلې عقلي دليل دا دى چي هغه حدود كوم چي خالص د الله حق وي په هغوى كي د شهادت تأخير د بغض او كينه په وجه وي، او بغض او كينه يو مخفي (پټ) شى چي په هغه هر كس خبرېدلاى نه سي، له همدي كبله په هر، هر فرد كي د دې تهمت (بغض او عدوات) موجودېدل ضروري نه دي، نو په دې وجه موږ پر دې خبره د حكم بنياد كښېښوى چي كوم حدود خالص د الله تعالىٰ حق وي په هغوى كي په تأخير او تقادم سره شهادت باطليږي.

ولأن السرقة تقام إلخ د دې خبري دويم دليل (چي د تأخير او تقادم په وجه د غلا په حدّ كي شهادت باطليږي) دا دى چي غلا د مالك په غفلت سره په پټه كيږي او مالك (مسروق منه) ته د هغه هيڅ علم نه وي نو په همدې وجه مالك د غله په خلاف ګواهيْ نه سي وركولاى. لهذا كوم څوك چي غل ويني نو پر هغه سمدستي ضروري دي چي مالك خبر كړي او په ډاګه شهادت اداء كړي. لېكن كه هغه شهادت اداء نه كړي بلكي تأخير پكښې وكړي، نو دا د هغه د فاسق كېدلو لپاره كافي دي (يعني په دې سره هغه فاسق ګرځي)، نو په دې وجه به هم د هغه شهادت نه قبليږي.

ثم التقادم كما يمنع قبول الشهادة إلخ: فرمايي چي څرنګه تأخير او تقادم په ابتداء كي د شهادت له قبوليت څخه مانع دى، همداسي په انتهاء كي يعني د قاضي تر قضاء (فيصلې) وروسته هم د شهادت له قبوليت څخه مانع دى، ځكه چي انتهاء له ابتداء څخه زياته سپكه او آسانه ده، او كله چي په ابتداء كي معامله لانجمنه او مبهمه وي، نو په انتهاء كي هغه څرنګه واضحه كېداى سي، همدا وجه ده كه پر يوه مجرم د حدّ څه حصه جاري كړى سي بيا هغه وتښتي او څه مودت وروسته هغه ونيول سي نو اوس به پر هغه حدّ نه جاري كيږي، ځكه چي د حدودو په باب كي امضاء يعني حدّ جاري كول هم د قضاء حصه ده (يعني له شهادت قبلېدلو څخه وروسته چي تر كوم وخت پوري په كامله توګه شهادت (او حدّ) جاري كيږي، دې ته قضاء وايي او دا د قضاء وخت دى) او كه په قضاء كي تأخير راسي، نو حدّ ساقطيږي، نو ځكه به اوس دا حدّ ساقطيږي.

**واختلفوا في إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د تقادم په مقدار او اندازه کې زموږ له امامانو څخه مختلفه اقوال نقل سوي دي:

(۱) په جامع صغير کې امام محمد رَحِمَهُ الله د شپږو (۶) مياشتو مودت ته اشاره کړې ده (چې که شپږ مياشتې تيري سي. نو دا ډېر وخت دی او دې ته تقادم او تأخير وايي). ځکه چې امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې داسي ويلي دي: وَإِذَا شَهِدَ عَلَيْهِ الشُّهُوْدُ... بَعْدَ حِيْنٍ. او د حِيْن إطلاق پر شپږو مياشتو کيږي. همدا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله رايه هم ده.

(۲) لېکن له امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې سلسله کې هيڅ مودت ټاکلی نه دی. بلکې د دې مقدار يې د قاضي پر رايه پرې اېښی دی چې که قاضي څومره وخت ډېر وګڼي. نو هغه به ډېر وخت او تقادم ګڼل کيږي. او څومره وخت چې هغه لږ وګڼي. نو هغه به لږ وخت ګڼل کيږي.

(۳) له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د يوې مياشتې مودت تقادم او ډېر وخت دی. ځکه چې تر يوې مياشتې کم وخت قريب او لږ مودت دی. او دا له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه يو روايت هم دی. او همدا صحيح او معتمد مودت دی.

**وهذا الذي إلخ**: فرمايي: کوم تفصيل چې موږ بيان کړی دا تفصيل په هغه صورت کې دی کله چې د قاضي او د ګواهانو د وطن په مېنځ کې د يوې مياشتې فاصله او مسافه نه وي. لېکن که د دوی په منېنځ کې د يوې مياشتې مسافه وي. نو په دې صورت کې به د ګواهانو تأخير پر بُعد (ليري والي) باندي حمل کيږي او داسي تأخير د شهادت له قبوليت څخه مانع نه دی. ځکه چې اوس پر دې ګواهانو د بغض او عداوت تهمت نه سي کېدلای.

او د شرابو په حق کې هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د تقادم مودت يوه مياشته ده. لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دې مودت مقدار فقط دومره وخت دی چې له خولې څخه د شرابو بوی ختم سي. يعني د خولې د بوی تر ختمېدلو مخکې به د شرابو په حد کې شهادت قبليږي. کنې نه به قبليږي (لېکن نن سبا ځيني داسي خوشبويه دارو ګان جوړ سوي چې د هغه په خوړلو سره فوراً د خولې بوی ختميږي. نو په دې هکله د نور غور او فکر کولو ضرورت سته).

## د مُدعی په ناموجوديت کې د حدّ جاري کولو بيان

وَإِذَا شَهِدُوا عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ زَنَى بِفُلَانَةٍ او که (خلورو) خلکو د يو سړي په خلاف ګواهي ورکړه چې هغه د فلانی ښځې سره زنا کړې ده وَفُلَانَةُ غَائِبَةٌ او فلانی ښځه غائبه وه فَإِنَّهُ يُحَدُّ نو (هم) به پر هغه سړي حدّ جاري کيږي وَإِنْ شَهِدُوا أَنَّهُ سَرَقَ مِنْ فُلَانٍ او که دا خلک (داسي) ګواهي ورکړي چې

هغه له فلانكي څخه مال غلا كړى دى ﴿وَهُوَغَائِبٌ﴾ او فلانكى غائب وو ﴿لَمْ يُقْطَعْ﴾ نو د هغه لاس به نه غوڅول كيږي ﴿وَالْفَرْقُ أَنَّ بِالْغَيْبَةِ تَنْعَدِمُ الدَّعْوٰى﴾ او [په دې دواړو مسئلو كې] فرق دا دى چې د غائبېدلو په صورت كې دعوىٰ نه موجوديږي ﴿وَهِيَ شَرْطٌ فِي السَّرِقَةِ دُوْنَ الزِّنَا﴾ حالانكې په غلا كې دعوىٰ شرط ده. نه په زنا كې ﴿وَبِالْحُضُوْرِ يُتَوَهَّمُ دَعْوَى الشُّبْهَةِ﴾ او د [فلانكي] حاضرېدلو په صورت كې [د نكاح] د شبهې د دعوىٰ وهم كېداى سي [يعني د فلانكي د حاضرېدلو په وخت كې د نكاح د دعوىٰ كولو وهم او ګومان كېداى سي] ﴿وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْمَوْهُوْمِ﴾ ليكن موهوم [او ګوماني] شي لره هيڅ اعتبار نسته ﴿وَإِنْ شَهِدُوْا أَنَّهُ زَنٰى بِامْرَأَةٍ لَا يَعْرِفُوْنَهَا﴾ او كه دې خلكو دا ګواهي وركړه چې هغه د داسي ښځې سره زنا كړې ده چې موږ هغه نه پېژنو ﴿لَمْ يُحَدَّ﴾ نو پر زاني به حدّ نه جاري كيږي ﴿لِاحْتِمَالِ أَنَّهَا امْرَأَتُهُ أَوْ أَمَتُهُ﴾ ځكه چې دا احتمال سته چې هغه به د ده ښځه يا مينځه وي ﴿بَلْ هُوَ الظَّاهِرُ﴾ بلكې له مسلمان څخه [همدا ښكاره دي ﴿وَإِنْ أَقَرَّ بِذٰلِكَ﴾ او كه زاني [په خپله] د دې اقرار كړى وي ﴿حُدَّ﴾ نو پر هغه به حدّ جاري كيږي ﴿لِأَنَّهُ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ أَمَتُهُ أَوِ امْرَأَتُهُ﴾ ځكه چې پر زاني دا خبره نه پټيږي چې هغه د ده مينځه يا ښځه ده.

**اللغات**: ﴿يَنْعَدِمُ﴾ د انفعال مضارع ده: نيستي كېدل (نه موجودېدل). ختمېدل. ﴿يُتَوَهَّمُ﴾ د تفعّل مضارع ده مجهوله ده: وهم كول. ﴿لَا يَخْفٰى﴾ د سمع له باب څخه د نفي صيغه ده: پټېدل. نا ځرګندېدل.

**تشريح**: د عبارت له وضاحت څخه مخكې دا دوه اُصول په يادلرئ!: ① د زنا د حدّ ثابتولو لپاره د زانيه ښځې له طرفه د زنا دعوىٰ كول شرط نه دي. ② د غلا د حدّ ثابتولو لپاره د مالک له طرفه د غلا دعوىٰ كول شرط دي (يعني له چا څخه چې مال غلا سوى وي، د هغه دعوىٰ كول ضروري دي).

**صورت د مسئلې**: دا دى كه څلورو خلكو ګواهي وركړه چې زيد د ساجدې سره زنا كړې ده. حالانكې ساجده اوس په ښار كې نسته، بيا به هم پر زيد حدّ جاري كيږي. ځكه چې په زنا كې د ساجدې له طرفه دُ زنا دعوىٰ كول ضروري نه دي.

او كه دوو خلكو ګواهي وركړه چې زيد د خالد مالک غلا كړى دى. او خالد اوس په ښار كې نه وو. نو د زيد لاس به نه پرېكول كيږي. ځكه چې د خالد له طرفه د غلا دعوىٰ كول ضروري دي. او

ځرنګه چې هغه غائب دی نو ځکه د هغه له طرفه دعویٰ نه وسوه (یعني د هغه له طرفه دعویٰ موجوده نه سوه)، نو ځکه به اوس د زید لاس نه پرېکول کیږي. په زنا او غلا کې همدا فرق دی.

**وبالحضور يُتوهّم إلخ**: دا دیو مُقدّر سوال جواب دی. حاصل یې دا دی چې که هغه غائبه مزنیه ښځه (مثلاً ساجده حاضره وای، نو ممکنه وه چې هغې دا ثابته کړې وای چې دغه سړي (زید) زما سره نکاح کړې ده. نو په دې توګه به حدّ ساقط سوي وای. لهذا د دې شبهې باوجود به ځرنګه (پر زید) حدّ جاري کیږي؟ نو د دې جواب ورکوي فرمایي چې دا فقط یو وهم دی. نو ځکه به ودې وهم ته له توجه کولو څخه بغیر حدّ جاري کیږي (یعني دې وهم ته به هیڅ توجه نه کیږي، او په حدّ جاري کولو به شروع کیږي).

**وإن شهدوا أنه زنیٰ إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د کومې ښځې سره چې ګواهانو د زنا ګواهي ورکړې وي (یعني مزنیه ښځه)، که د هغې په باره کې هیڅ ګواه ته معلومات نه وي. او هیڅ ګواه یې نه پېژني چې هغه ښځه څوک ده. نو دا احتمال سته چې هغه ښځه د دې سړي خپله ښځه یا مینځه وي. نو د دې إمکان او احتمال په وجه به پر هغه حدّ نه جاري کیږي.

**وإن أقرّ بذلك إلخ**: او که زاني په خپله اقرار وکړي چې ما زنا کړې ده. نو هغه ته خو معلومه ده چې هغه ښځه زما خپله ښځه یا زما مینځه نه ده. نو که څه هم په دې صورت کې زاني ته د هغې په باره کې هیڅ معلومات نه وي او زاني یې نه پېژني چې هغه ښځه څوک ده. نو بیا به هم حدّ پر جاري کیږي (ځکه چې زاني په دې خبر دی چې هغه زما ښځه یا مینځه نه ده).

## په ګواهانو کې د جبر او رضا په هکله د اختلاف راتللو حکم

وَإِنْ شَهِدَ اثْنَانِ أَنَّهُ زَنَى بِفُلَانَةٍ فَاسْتَكْرَهَهَا او که دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چې فلانکي سړي د فلانۍ ښځه سره په زوره [جبراً] زنا وکړه وَآخَرَانِ أَنَّهَا طَاوَعَتْهُ او نورو خلکو ګواهي ورکړه چې فلانۍ ښځې په رضا دا کار وکړی دُرِئَ الْحَدُّ عَنْهُمَا جَمِيعًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ نو امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به له دواړو څخه حدّ ساقطیږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَا: يُحَدُّ الرَّجُلُ خَاصَّةً او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې فقط پر سړي به حدّ جاري کیږي لِاتِّفَاقِهِمَا عَلَى الْمُوجِبِ ځکه چې په دوی کې هر فریق د حدّ پر مُوجب [زنا] باندې متفق دی وَتَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِزِيَادَةِ جِنَايَةٍ وَهُوَ الْإِكْرَاهُ او له دوی څخه یو فریق د جرم د زیاتوب یعني د جبر [په دعویٰ کې] منفرد دی

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۷۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۲۲]

بِخِلَافِ جَانِبِهَا په خلاف د ښځې له طرفه لِأَنَّ طَوَاعِيَتَهَا شَرْطُ تَحَقُّقِ الْمُوجِبِ فِي حَقِّهَا ځکه چې د هغې په حق کې د زنا د ثبوت لپاره د هغې طواعيت [رضامندي] شرط ده وَلَمْ يَثْبُتْ لِاخْتِلَافِهِمَا لېکن [په طواعيت کې] د دواړو فريقينو د اختلاف په وجه د دې ښځې په حق کې زنا ثابته نه سوه وَلَهُ: أَنَّهُ اِخْتَلَفَ الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې مشهود عليه مختلف دی لِأَنَّ الزِّنَا فِعْلٌ وَاحِدٌ يَقُومُ بِهِمَا ځکه چې زنا يو فعل کوم چې پر نر او ښځې دواړو موقوف دی وَلِأَنَّ شَاهِدَيِ الطَّوَاعِيَةِ صَارَا قَاذِفَيْنِ لَهُمَا او ځکه چې د طواعيت دوه ګواهان پر ښځې او سړي تهمت لګونکي دي وَإِنَّمَا يَسْقُطُ الْحَدُّ عَنْهُمَا بِشَهَادَةِ شَاهِدَيِ الْإِكْرَاهِ و [د طواعيت له دوو ګواهانو څخه به] حدّ د إكراه د دوو ګواهانو په شهادت سره ساقطيږي لِأَنَّ زِنَاهَا مُكْرَهَةً يُسْقِطُ إِحْصَانَهَا ځکه چې د ښځې سره په زوره زنا کول د هغې إحصان ساقطوي فَصَارَا خَصْمَيْنِ فِي ذٰلِكَ لهذا دا دواړه په دې سلسله خصم وګرځېدل وَإِنْ شَهِدَ اِثْنَانِ أَنَّهُ زَنٰى بِامْرَأَةٍ بِالْكُوفَةِ او که دوو ګواهانو ګواهي ورکړه چې فلانکي په کوفه کې د يوې ښځې سره زنا وکړه وَآخَرَانِ أَنَّهُ زَنٰى بِهَا بِالْبَصْرَةِ او نورو دوو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې هغه په بصره کې د ښځې سره زنا وکړه دُرِئَ الْحَدُّ عَنْهُمَا نو له سړي او ښځې دواړو څخه به - حدّ ساقطيږي لِأَنَّ الْمَشْهُودَ بِهِ فِعْلُ الزِّنَا ځکه د کوم شي په باره کې چې ګواهي ورکول سوې ده هغه د زنا فعل دی وَقَدْ اخْتَلَفَ بِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ او د ځای په بدلېدلو سره هغه [د زنا فعل] بدل سو [يعني ګواکي دوې زناوې او دوه فعلونه سول] وَلَمْ يَتِمَّ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصَابُ الشَّهَادَةِ او په دوی کې د يوه په حق کې [هم] د شهادت نصاب پوره نه سو وَلَا يُحَدُّ الشُّهُودُ او پر ګواهانو به [هم] حدّ نه جاري کيږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِشُبْهَةِ الْاِتِّحَادِ نَظَرًا إِلَى اتِّحَادِ الصُّورَةِ وَالْمَرْأَةِ ځکه چې د صورت او د ښځې اتحاد [يو والي] ته په کتلو سره [د زنا] په اتحاد کې شبهه پيدا سوه.

**اللغات**: ﴿إِسْتَكْرَهَهَا﴾ د استفعال ماضي ده: مجبوره کول. ﴿دُرِئَ﴾ د فتح له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده: دفع کېدل، ليرې کېدل، ساقطېدل. ﴿مُوْجِب﴾ د افعال اسم فاعل دی: واجبونکی، ثابتونکی، سبب. ﴿مُكْرَهَة﴾ د افعال مؤنث اسم مفعول دی: مجبوره کړې سوې ښځه (چې په زوره زنا ور سره وسي). ﴿إِحْصَان﴾ د افعال مصدر دی: محصن کېدل، واده والا کېدل. پاک لمنوالي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که دوو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې فلانکي سړي د فلانۍ ښځې سره په زوره زنا کړې ده. او دوو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې هغه د دې ښځې سره په رضا زنا کړې ده. يعني ښځه

هم په زنا راضي ده. نو په دې صورت کي د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز نه به پر سړي حدّ جاري کيږي او نه پر ښځي، يعني له دواړو څخه حدّ ساقطيږي. لېکن د صاحبينو په نېز له ښځي څخه حدّ ساقطيږي او پر سړي به حدّ جاري کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي د دواړو طرفو ګواهان (فريقين) پر دې خبره متفق دي چي دغه سړي د فلانۍ ښځي سره زنا کړې ده. نو ځکه به پر هغه حدّ جاري کيږي، ځکه چي د ده په حق کي د شهادت نصاب پوره دی (يعني پوره څلورو ګواهانو د ده د زنا ګواهي ورکړې ده). خو په دوی کي يوه فريق د ښځي د مُکرَهه کېدلو ګواهي ورکړې ده او دويم فريق هغې د مُطاوعه کېدلو ګواهي ورکړې ده. لهذا د ښځي د مُکرَهه او مُطاوعه کېدلو په حق کي د شهادت نصاب پوره نه دی. بلکي د ښځي طرف مشتبه او مشکوک دی. او په شبهې سره حدّ ساقطيږي، نو ځکه به پر دې ښځي حدّ نه جاري کيږي. فقط سړی به ډبول کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي دلته په مشهود بِهٖ يعني په فعل (زنا) کي اختلاف دی. ځکه چي زنا د سړي او ښځي دواړو له طرفه ثابتيږي. او څرنګه چي د ښځي د مُطاوعه او مُکرَهه کېدلو په حق کي د اختلاف په وجه دا فعل بدل سوی دی، نو ځکه به د سړي په حق کي هم دا فعل مختلف کيږي (او د هغه په حق کي به هم دا اختلاف ثابتيږي). لهذا څرنګه چي د ښځي په حق کي د شهادت نصاب پوره نه دی، هغسي به د سړي په حق کي هم دا نصاب پوره نه وي، نو ځکه به پر يوه هم حدّ نه جاري کيږي.

**ولأن شاهِدَي الطّواعية إلخ**: په دې هکله دويم دليل دا دی چي په دې ګواهانو کي چي کوم فريق د ښځي د مُطاوعه کېدلو ګواهي ورکوي، هغه ګواکي پر سړي او ښځي د زنا تهمت لګوي (ځکه چي د دوی په حق کي د شهادت نصاب ناقص دی. نو ځکه دوی د تهمت لګونکو په درجه کي سوه). لهذا دا فريق خصم (مُدعي) جوړ سو. او د خصم ګواهي نه قبليږي. او که څوک اعتراض چي که دوی تهمت لګونکي (قاذفين) دي نو بايد حدّ قذف پر جاري سي. حالانکي پر دوی حدّ قذف نه جاري کيږي. نو د دې جواب دا دی چي کوم فريق چي د ښځي د مُکرَهه کېدلو ګواهي ورکړه نو ښځه مُحصنه (او پاک لمنې) پاته نه سوه. نو ځکه به پر تهمت لګونکو حدّ قذف نه جاري کيږي. ګواکي دلته هر طرف والا دوه ګواهان (فريقين) خصم وګرځېدل (او دواړه قاذفين وګرځېدل). او د خصم ګواهي لره اعتبار نسته. نو ځکه به دلته نه پر ښځي حدّ جاري کيږي او نه پر سړي.

**وإن شهد إثنان إلخ**: دويمه مسئله دا ده که دوو خلکو دا ګواهي ورکړه چي فلانکي سړي د فلانۍ ښځي سره په کوفه کي زنا کړې ده. او نور دوه خلک راغله او دا ګواهي يې ورکړه چي دغه سړي د هغې سره په بصره کي زنا کړې ده. نو په دې ګواهي سره هم نه زنا ثابت ثابتيږي او نه به پر دې سړي او

ښځي حدّ جاري کيږي، ځکه چي مشهود به زنا ده. او د ځای په بدلېدلو سره دا زنا ګواکي دوې زناوي وګرځېدلې، او پر هري زنا فقط دوه ګواهان دي. نو د شهادت د نصاب د نه پوره کېدلو په وجه به پر يوه هم حدّ نه جاري کيږي.

**ولا يُحدّ الشهود إلخ:** د دې حاصل دا دی چي دلته (ګواکي) ګواهانو پر سړي او ښځي د زنا تهمت لګولی دی نو ځکه پر دوی حدّ قذف جاري کېدل پکار دی. نو جواب ورکوي چي حد به ځکه نه پر جاري کيږي چي دا ښځه هم يوه ده (چي پر هغې د زنا ګواهي ورکول سوې ده) او د صورت په اعتبار سره د زنا معامله هم يوه ده. نو دا شبهه پيدا سوه چي پر يوه زنا به څلورو ګواهانو ګواهي ورکړې وي او همدا شبهه له ګواهانو څخه د حدّ دفع کېدلو لپاره کافي ده. نو ځکه به پر ګواهانو حدِ قذف نه جاري کيږي. او د امام زفر رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي پر ګواهانو به حدّ قذف جاري کيږي.

## د جزئي شي په هکله د ګواهانو د اختلاف حکم

وَإِنْ اخْتَلَفُوا فِي بَيْتٍ وَاحِدٍ او که ګواهان په يوه خونه کي [د کونج او طرف په هکله] اختلاف وکړي حُدَّ الرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ نو پر سړي او ښځي دواړو به حدّ جاري کيږي مَعْنَاهُ: أَنْ يَشْهَدَ كُلُّ اثْنَيْنِ عَلَى الزِّنَى فِي زَاوِيَةٍ د دې مطلب دا دی: چي هر فريق په [جلا] کونج کي د زنا ګواهي ورکړي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يُحَدَّ او قياس دا دی: چي [پر دوی] به حدّ نه جاري کيږي لِاخْتِلَافِ الْمَكَانِ حَقِيقَةً ځکه چي په حقيقت کي [د زنا] ځای مختلف دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ التَّوْفِيقَ مُمْكِنٌ بِأَنْ يَكُونَ ابْتِدَاءُ الْفِعْلِ فِي زَاوِيَةٍ وَالِانْتِهَاءُ فِي زَاوِيَةٍ أُخْرَى بِالِاضْطِرَابِ د استحسان دليل دا دی: چي [د دواړو په مينځ کي] موافقت پيدا کول ممکن دي په دې توګه چي د کار شروع به په يوه کونج کي وې سوي او د اوښتلو را اوښتلو په وجه به په بل کونج کي پای ته رسېدلی وي أَوْ لِأَنَّ الْوَاقِعَ فِي وَسَطِ الْبَيْتِ يا دا چي کار به د خوني په مينځ کي واقع سوی وي فَيَحْسِبُهُ مَنْ فِي الْمُقَدَّمِ فِي الْمُقَدَّمِ وَمَنْ فِي الْمُؤَخَّرِ فِي الْمُؤَخَّرِ نو کوم فريق چي [د خوني] د مخ په طرف کي وي هغه به دا کار [د خوني] د مخ په طرف کي ګڼلی وي او کوم فريق چي [د خوني] د شا په طرف کي وي هغه به دا کار [د خوني] د شا په طرف کي ګڼلی وي فَيَشْهَدُ بِحَسَبِ مَا عِنْدَهُ نو د خپل ګومان مطابق به هر فريق ګواهي ورکړې وي.

**اللغات:** ﴿زَاوِيَة﴾ کونج. جمع: زَاوِيَات. ﴿يَحْسِبُهُ﴾ د حسب له باب څخه د مضارع صيغه ده: ګومان کول. خيال کول. ګڼل. ﴿الْمُؤَخَّر﴾ وروستنی طرف. د شا طرف (د شا حصه).

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که د هر طرف دوه ګواهان (فريقين) په يوه خونه کې د زنا واقع کېدلو ګواهي ورکړي، محض د خونې په کونج او طرف کې د دوی اختلاف وي، نو استحساناً به د دوی ګواهي قبلېږي، او په دغه اختلاف کې به په دې توګه موافقت پيدا کيږي چې سړي او ښځې به يوه کونج کې زنا شروع کړې وي او د اوښتلو را اوښتلو په وجه به بل کونج ته را را سېدلي وي، يا به په دې توګه موافقت پيدا کيږي چې زنا به د خونې په مينځ کې واقع سوې وي. ليکن کوم فريق چې د خونې مخ لخوا دا قصه لېدلې وي هغو به د خونې ديوه طرف ګواهي ورکړې وي او کوم فريق چې د خونې د شا لخوا دا واقعه ليدلې وي، هغو به د بل طرف ګواهي ورکړې وي. او فقط په دې حواله سره به په دوی کې اختلاف راغلی وي، لنډه دا چې دلته د ګواهانو په مينځ کې موافقت کېدای سي نو ګواکې دوی سره متفق دي، نو ځکه به پر سړي او ښځې حدّ جاري کيږي.

## د زنا په هکله د ګواهانو د اختلاف حکم

وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ أَنَّهُ زَنَىٰ بِامْرَأَةٍ بِالنُّخَيْلَةِ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ او که څلورو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې فلانکي په "نُخيله" کې د لمر راختلو پر مهال د يوې ښځې سره زنا وکړه وَأَرْبَعَةٌ أَنَّهُ زَنَىٰ بِهَا عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ بِدَيْرِ هِنْدٍ او څلورو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې هغه د لمر راختلو پر مهال په "دير هند" کې زنا وکړه دُرِئَ الْحَدُّ عَنْهُمْ جَمِيعًا نو له دوی څخه به حدّ ساقطيږي أَمَّا عَنْهُمَا فَلِأَنَّا تَيَقَّنَّا بِكَذِبِ أَحَدِ الْفَرِيقَيْنِ غَيْرَ عَيْنٍ له سړي او ښځې څخه به ځکه حدّ ساقطيږي چې موږ ته په دې دواړو فريقو کې د يوه فريق د درواغجن کېدلو يقين دی وَأَمَّا عَنِ الشُّهُودِ فَلِاحْتِمَالِ صِدْقِ كُلِّ فَرِيقٍ او له ګواهانو څخه به ځکه حدّ ساقطيږي چې د هر فريق د رښتياوالي احتمال [هم] سته وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَىٰ امْرَأَةٍ بِالزِّنَا وَهِيَ بِكْرٌ او که څلورو ګواهانو پر يوې ښځې د زنا ګواهي ورکړه حال دا چې هغه باکره وه دُرِئَ الْحَدُّ عَنْهُمَا وَعَنْهُمْ نو له سړي او ښځې او له ټولو ګواهانو څخه به حدّ ساقطيږي لِأَنَّ الزِّنَا لَا يَتَحَقَّقُ مَعَ بَقَاءِ الْبَكَارَةِ ځکه چې د بکارت سره زنا ثابتېدای نه سي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ: أَنَّ النِّسَاءَ نَظَرْنَ إِلَيْهَا فَقُلْنَ إِنَّهَا بِكْرٌ او د دې مسئلې مطلب دا دی: چې نورې [تجربه کاره] ښځې د هغې کتنه [او معاينه] وکړي او وايي: چې هغه باکره ده وَشَهَادَتُهُنَّ حُجَّةٌ فِي إِسْقَاطِ الْحَدِّ وَلَيْسَتْ بِحُجَّةٍ فِي إِيجَابِهِ او د ښځو ګواهي د حدّ په ساقطولو کې حجّت ده ليکن [د حدّ په ثابتولو کې حجّت نه ده

فَلِهٰذَا سَقَطَ الْحَدُّ عَنْهُمَا وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ نو په همدې وجهې به له سړي او ښځې څخه حدّ ساقطيږي او پر ګواهانو به نه واجبيږي.

**اللغات**: ﴿تَيَقَّنَّا﴾ د تفعّل ماضي ده: يقين كول. ﴿بِكْر﴾ باكره، پېغله (هغه ښځه چې د بكارت پرده يې ثابته پاته وي) ﴿إِيْجَاب﴾ د افعال مصدر دى: واجبول، ثابتول.

**تشريح**: په دې عبارت كې دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... كه څلورو ګواهانو دا ګواهي وركړه چې فلانكي سړي كوفې ته نژدې په "نُخيله" نومي ځاى كې د لمر راختلو په وخت كې زنا كړې ده، او نورو څلورو ګواهانو هم دغسې ګواهي وركړه. لېكن هغو له "نُخيله" څخه بغير د كوفې په "ديرهند" كې د زنا خبره وكړه، نو په دې صورت كې به پر سړي او ښځې هم حدّ نه جاري كيږي او پر ګواهانو به هم حدّ نه جاري كيږي. پر سړي او ښځه به ځكه حدّ نه جاري كيږي چې په دې دواړو فريقينو كې يو فريق په يقيني توګه كاذب دى. ځكه چې په يوه وخت كې د يوه سړي لپاره په دوو جلا جلا ځايونو كې يو كار كول ناممكن دي. لېكن موږ ته دا معلومه نه ده چې د كوم فريق ګواهي او شهادت كاذب دى. نو ځكه به د يوه فريق په شهادت سره هم په يقيني توګه زنا نه ثابتيږي او پر سړي او ښځې به حدّ نه جاري كيږي، او پر ګواهانو به ځكه حدّ قذف نه جاري كيږي چې په هر فريق كې د صادق كېدلو احتمال هم سته يعني د هر فريق په شهادت سره د زنا شبهه هم موجوده ده، او د زنا شبهه له دوى څخه د حدّ وجوب منع كوي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده كه څلورو ګواهانو د يوې ښځې په خلاف د زنا ګواهي وركړه، حالانكې تر ګواهۍ وروسته چې كله نورو ښځو د هغې معاينه وكړه نو هغه يې باكره وشمارله. نو په دې صورت كې هم له ټولو څخه حدّ ساقطيږي، ځكه چې د بكارت باوجود زنا ثابتېداى نه سي (ځكه ښځه چې باكره وي نو زنا به يې څنګه كړې وي!)، او د ښځو ګواهي د حدّ ساقطېدلو لپاره حجّت ده (يعني د حدّ ساقطېدلو په حق كې به د ښځو ګواهي قبليږي) نو ځكه به دلته له سړي او ښځې څخه حدّ ساقطيږي، او له ګواهانو څخه به هم حدّ ساقطيږي، ځكه چې د ښځو ګواهي د حدّ ثابتولو لپاره حجت نه ده (يعني كه څه هم د ښځو په ګواهۍ سره دغه ګواهان قاذفين او تهمت لګونكي ثابت سول. لېكن څرنګه چې د ښځو په ګواهۍ سره حدّ ثابتېداى نه سي. نو ځكه به له هغو څخه حدّ قذف ساقطيږي). ابو عباس عفى الله عنه وعن والديه

## د نا أهله ګواهانو د ګواهۍ حکم

وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او که څلورو ګواهانو د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړه وَهُمْ عُمْيَانٌ أَوْ مَحْدُودُونَ فِي قَذْفٍ أَوْ أَحَدُهُمْ عَبْدٌ أَوْ مَحْدُودٌ فِي قَذْفٍ حال دا چي هغوی ټوله ړانده وه يا محدود فی القذف وه يا په دوی کي يو غلام يا محدود فی القذف وو فَإِنَّهُمْ يُحَدُّونَ نو پر دوی به حد جاري کيږي وَلَا يُحَدُّ الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ او د چا په خلاف چي ګواهي ورکول سوې ده پر هغه به حد جاري کيږي لِأَنَّهُ لَا يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهِمُ الْمَالُ ځکه چي د دې خلکو په ګواهۍ سره مال نه ثابتيږي فَكَيْفَ يَثْبُتُ الْحَدُّ نو حدّ به څرنګه ثابت سي! وَهُمْ لَيْسُوا مِنْ أَهْلِ أَدَاءِ الشَّهَادَةِ حال دا چي دا خلک د شهادت اداء کولو أهل [هم] نه دي وَالْعَبْدُ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلتَّحَمُّلِ وَالْأَدَاءِ او غلام د شهادت اخيستلو او اداء کولو أهل نه دی [يعني غلام پر خپله غاړه نه د ګواهي ذمه واري اخيستلای سي او نه ګواهي اداء کولای سي] فَلَمْ تَثْبُتْ شُبْهَةُ الزِّنَا نو د زنا شبهه ثابته نه سوه لِأَنَّ الزِّنَا يَثْبُتُ بِالْأَدَاءِ ځکه چي زنا د شهادت په اداء کولو سره ثابتيږي وَإِنْ شَهِدُوا بِذَلِكَ وَهُمْ فُسَّاقٌ او که څلورو خلکو [د يو سړي په خلاف] د زنا ګواهي ورکړه حال دا چي هغه فاسقان وه أَوْ ظَهَرَ أَنَّهُمْ فُسَّاقٌ يا تر [ګواهي اداء کولو وروسته] ښکاره سوه چي هغوی فاسقان دي لَمْ يُحَدُّوا نو پر هغو به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ الْفَاسِقَ مِنْ أَهْلِ الْأَدَاءِ وَالتَّحَمُّلِ ځکه چي فاسق د شهادت اخيستلو او اداء کولو أهل دی وَإِنْ كَانَ فِي أَدَائِهِ نَوْعُ قُصُورٍ لِتُهْمَةِ الْفِسْقِ که څه هم د فسوق د تهمت په وجه د هغه په اداء کولو کي څه نُقص سته وَلِهَذَا لَوْ قَضَى الْقَاضِي بِشَهَادَةِ فَاسِقٍ همدا وجه ده که قاضي د فاسق پر شهادت فيصله وکړي يَنْفُذُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز به هغه فيصله نافذيږي وَيَثْبُتُ بِشَهَادَتِهِمْ شُبْهَةُ الزِّنَا انو په دې وجه دلته [د فاسقانو په شهادت سره د زنا شبهه ثابتيږي وَبِاعْتِبَارِ قُصُورٍ فِي الْأَدَاءِ لِتُهْمَةِ الْفِسْقِ يَثْبُتُ شُبْهَةُ عَدَمِ الزِّنَا او د فسوق د تهمت په وجه [د هغو] د شهادت په اداء کولو سره د زنا د نشتوالي شبهه ثابتيږي [چي شايد به مشهود عليه به زنا کړي نه وي] فَلِهَذَا امْتَنَعَ الْحَدَّانِ نو په دې وجه به دواړه حدونه [حدّ زنا او حدّ قذف] نه ثابتيږي وَسَيَأْتِي فِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ بِنَاءً عَلَى أَصْلِهِ أَنَّ الْفَاسِقَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ

الشَّهَادَةِ او په دې باره کې به [انشاء الله] د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف هم راسي کوم چې د هغه پر اُصول مبني دی [او د هغه أصول دا دی] چې فاسق د شهادت أهل نه دی فَهُوَ كَالْعَبْدِ عِنْدَهُ نو فاسق د هغه [امام شافعي] په نیز د غلام په شان دی وَإِنْ نَقَصَ عَدَدُ الشُّهُودِ عَنْ أَرْبَعَةٍ او که چیرې د ګواهانو شمېر له څلورو څخه کم سي حُدُّوا نو پر دوی [ټولو] به حدّ جاري کیږي لِأَنَّهُمْ قَذَفَةٌ ځکه دوی [ټوله] تهمت لګونکي دي إِذْ لَا حِسْبَةَ عِنْدَ نُقْصَانِ الْعَدَدِ ځکه چې د شمېر د کمېدلو په صورت کې ثواب نه حاصلیږي وَخُرُوجِ الشَّهَادَةِ عَنِ الْقَذْفِ بِاعْتِبَارِهَا حال دا چې شهادت د همدې ثواب حاصلېدلو په وجه له تهمت څخه وځي [او شهادت ګرځي].

**اللغات:** ﴿عُمْيَان﴾ جمع د أعْمٰى ده: نابینا، ړونده. ﴿تَحَمُّل﴾ د تفعّل مصدر دی: زغمل، برداشتول، پر ځان اخیستل، تَحَمُّلُ الشَّهَادَةِ: ګواهي پر خپله ذمه اخیستل (یعني ګواه جوړېدل). عرب وایي: تَحَمَّلَ شَهَادَةَ فُلَانٍ (یعني هغه د فلانکي سړي له طرفه د ګواهۍ ورکولو نائب سو او د فلانکي ګواهي يې پر خپله ذمه واخیسته، مطلب دا چې هغه د فلانکي له طرفه ګواه جوړ سو). ﴿فُسَّاق﴾ جمع د فَاسِقٌ ده: بدکار (بد عمله)، ګنهکار. ﴿قُصُوْر﴾ کمي، نُقص، کوتاهي، عیب. ﴿أَصْل﴾ قاعده، اُصول. ﴿قَذَفَة﴾ جمع د قَاذِفٌ ده لکه طَلَبَة چې جمع د طَالِبٌ ده: تهمت لګونکي (تومتګر). قَذَفَ يَقْذِفُ قَذْفًا: د درواغو تهمت لګول (بهتان لګول)، پر یو چا درواغ تړل.

**تشریح: مسئله:** دا ده که چیرې د یو سړي په خلاف څلور ګواهان ګواهي ورکړي، او ټوله ګواهان ړانده وي، یا محدود فی القذف وي، یا په دوی کې یو ګواه غلام یا محدود فی القذف وي، نو د دوی ګواهي به د دوی لپاره وبال وي او فقط پر دوی به حدّ جاري کیږي او د چا په خلاف چې دوی ګواهي ورکړې وي پر هغه به حدّ نه جاري کیږي: ځکه کله چې د ړندو او محدود فی القذف خلکو په ګواهۍ سره مال نه ثابتیږي، نو په هغه سره به د حدّ په شان غټ او أهم شی څرنګه ثابت سي!، حال دا چې دا خلک بالکل د شهادت قابل نه دی، او د دوی په شهادت سره خو د زنا شبهه هم نه ثابتیږي. زنا خو هلته پرېږده!، ځکه زنا خو په صحیح او معتبره ګواهي سره ثابتیږي، او د داسي درجې شهادت په دې خلکو کي نسته، نو ځکه به دوی قاذفین (تهمت لګونکي) شمارل کیږي او حد قذف به پر جاري کیږي.

د دې مسئلې دویم جزء دا دی چې که ټوله ګواهان فاسقان وي یا تر شهادت اداء کېدلو وروسته د دوی فسوق ښکاره سي، نو که څه هم د دوی په شهادت سره زنا نه ثابتیږي. لېکن پر دوی به حدّ قذف

هم نه جاري کيږي؛ ځکه چي زموږ په نيز فاسق د شهادت اداء کولو أهل دی که څه هم د فسوق د تهمت په وجه د هغه په شهادت کي څه نُقص او خامي راځي. نو د شهادت د أهل کېدلو په وجه د فاسق په شهادت سره که څه هم زنا نه ثابتيږي لېکن د زنا به شبهه خامخا ثابتيږي. لېکن د هغه د تهمت (فسوق) وطرف ته په غور کولو سره د عدمِ زنا شبهه ثابتيږي (يعني د هغه فسوق ته په نظر کولو سره د زنا د نشتوالي شبهه ثابتيږي). نو دلته تعارض راغلی د زنا په شبهه او د عدمِ زنا په شبهه کي. نو ځکه به د فاسقو ګواهانو په شهادت سره نه د مشهود عليه په خلاف څه کاروايي کيږي او نه به د دوی په خلاف څه قدم پورته کيږي. په دې مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی. ځکه چي د هغه په نيز فاسق د شهادت اداء کولو أهل نه دی او د غلام په څير دی. نو ګواکي د شوافعو په نيز به پر دې فاسقو ګواهانو حدّ جاري کيږي.

**وإن نقص إلخ:** فرمايي که د ګواهانو شمېر له څلورو څخه کم وي. نو پر هغو به حدّ قذف جاري کيږي. ځکه چي د دوی شهادت ناقص دی. او دوی د شهات اداء کولو له ثواب څخه بې برخي دي. حالانکي د شهادت "قذف نه ګرځېدل" د ثواب حاصلېدلو په اعتبار سره دي (يعني ګواهي او شهادت هغه وخت له قذف او تهمت څخه وځي کله چي په هغه سره ثواب حاصل سي. او له څلورو څخه د کمو ګواهانو په شهادت سره ثواب نه حاصليږي. ځکه چي په قرآن کريم او حديث کي څلور ګواهان شرط دی). لهذا کله چي د شهادت د نقصان په وجه دا مقصود نه حاصليږي. نو دا شهادت به قذف او تهمت وي. او پر شاهدينو (ګواهانو) به حدّ قذف جاري کيږي.

## که تر حدّ جاري کېدلو وروسته د يوه ګواه نا أهليت ښکاره سي

| |
|---|
| **وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا** او که څلورو خلکو د يو چا په خلاف د زنا ګواهي ورکړه **فَضُرِبَ بِشَهَادَتِهِمْ** او د دوی په ګواهي سره هغه سړی ا په دُروا ووهل سو **ثُمَّ وُجِدَ أَحَدُهُمْ عَبْدًا أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ** بيا په دوی کي يو ګواه غلام يا محدود في القذف وموندل سو **فَإِنَّهُمْ يُحَدُّونَ** نو پر دوی ا ټولو ا به حدّ قذف جاري کيږي **لِأَنَّهُمْ قَذَفَةٌ** ځکه چي دوی تهمت لګونکي دي **إِذِ الشُّهُودُ ثَلَاثَةٌ** ځکه ا دوی په حقيقت کي ا درې ګواهان دي **وَلَيْسَ عَلَيْهِمْ وَلَا عَلَى بَيْتِ الْمَالِ أَرْشُ الضَّرْبِ** او د وهلو تاوان به نه پر دې ګواهانو وي او نه پر بيتُ المال **وَإِنْ رُجِمَ فَدِيَتُهُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ** او که مشهود عليه ا مجرم ا رجم کړی سي نو د هغه ديت به پر بيتُ المال وي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** ❁ او دا حکم د امام صاحب |

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الدر المختار (ج:٣، ص:١٧٥). [القول الراجح ج:١، ص:٢٢٦]

رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا: أَرْشُ الضَّرْبِ أَيْضًا عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د وهلو تاوان به هم پر بيتُ المال وي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ عَصَمَهُ اللهُ: مَعْنَاهُ: إِذَا كَانَ جَرَحَهُ ناتوانه بنده وايي (الله تعالىٰ دي اله هر شر څخه اهغه وساتي): د صاحبينو د قول د معنىٰ دا ده: چې كله وهونكي اجلادا مشهود عليه زخمي كړى وي انو په هغه صورت كي به د وهلو ضمان پر بيت المال وي ا وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا مَاتَ مِنَ الضَّرْبِ او پر همدغه اختلاف دي كله چې مشهود عليه له وهلو څخه مړ سي وَعَلَى هٰذَا إِذَا رَجَعَ الشُّهُودُ لَا يَضْمَنُونَ عِنْدَهُ وَعِنْدَهُمَا يَضْمَنُونَ او پر همدغه اختلاف دي چې كله ګواهان له شهادت څخه رجوع وكړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دوى نه ضامن كيږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به ضامن كيږي لَهُمَا: أَنَّ الْوَاجِبَ بِشَهَادَتِهِمْ مُطْلَقُ الضَّرْبِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د دې ګواهانو په شهادت سره مطلق وهل واجب دي إِذِ الِاحْتِرَازُ عَنِ الْجَرْحِ خَارِجٌ عَنِ الْوُسْعِ ځكه چې له زخمي كولو څخه اد جلادا ځان ساتل له وس او طاقت ا څخه وتلى كار دي فَيَنْتَظِمُ الْجَارِحُ وَغَيْرُهُ نو دا ضرب به جارح اجلادا او غير جارح دواړو ته شامليږي فَيُضَافُ إِلَى شَهَادَتِهِمْ نو د ګواهانو د شهادت وطرف ته به منسوبيږي فَيَضْمَنُونَ بِالرُّجُوعِ نو ځكه به په رجوع كولو سره دوى ضامن ګرځي وَعِنْدَ عَدَمِ الرُّجُوعِ تَجِبُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او د رجوع نه كولو په صورت كي به پر بيتُ المال ضمان واجب وي لِأَنَّهُ يَنْتَقِلُ فِعْلُ الْجَلَّادِ إِلَى الْقَاضِي ځكه چې د جلاد ادُره بازا فعل د قاضي وطرف ته منتقل كيږي وَهُوَ عَامِلٌ لِلْمُسْلِمِينَ او قاضي د ټولو مسلمانانو عامل وي فَتَجِبُ الْغَرَامَةُ فِي مَالِهِمْ نو ځكه به د مسلمانانو په مال ابيتُ المالا كي تاوان واجبيږي فَصَارَ كَالرَّجْمِ وَالْقِصَاصِ لهذا اد دې حكم ا داسي سو لكه د رجم او قصاص حكم وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْجَلْدُ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې واجب جَلد اد دُرې وهل ا دي وَهُوَ ضَرْبٌ مُؤْلِمٌ غَيْرُ جَارِحٍ وَلَا مُهْلِكٍ او جَلد دردونكي وهل وي ليكن زخمي كونكي او هلاكونكي نه وي فَلَا يَقَعُ جَارِحًا ظَاهِرًا إِلَّا لِمَعْنًى فِي الضَّارِبِ وَهُوَ قِلَّةُ هِدَايَتِهِ نو اد جلاد وهل ا به په ښكاره جارح نه وي مګر په وهونكي اجلادا كي د يو سبب په وجه چې هغه د وهونكي بې تجربګي ده فَاقْتَصَرَ

عَلَيْهِ نو دا زخمي كول به پر هغه منحصر كيږي [يعني دا زخمي كول به د جلاد سره خاص كيږي او پر هغه به ضمان واجبېدل پكار وي] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الضَّمَانُ فِي الصَّحِيحِ خو په صحيح قول كې به پر هغه [هم] ضمان نه واجبيږي كَيْلَا يَمْتَنِعَ النَّاسُ عَنِ الْإِقَامَةِ مَخَافَةَ الْغَرَامَةِ د دې لپاره چې خلک د تاوان [ضمان] له بيرې د حدّ له جاري كولو څخه منع نه سي.

**اللغات:** ﴿مَحْدُوْد﴾ د نصر اسمِ مفعول دی: هغه كس چې حدّ پر جاري كړی سوی وي. ﴿أَرْش﴾ تاوان. ضمان. تلافي. ﴿إِحْتِرَاز﴾ دافتعال مصدر دی: ځان ساتل (ځان كتل). پرهېز كول. ﴿جَلَّاد﴾ دُره باز. دُره وهونكی (هغه كس چې د حاكم له طرفه مجرمانو ته د سزا وركولو لپاره ټاكل سوی وي). ﴿غَرَامَة﴾ ضمان (تاوان). جرمانه. ﴿جَارِح﴾ د نصر اسم فاعل دی: زخمي كوونكی. ﴿قِلَّة هِدَايَته﴾ د هدايت كمښت. مراد څني بې تجربګي ده. ﴿أُقْتُصِرَ﴾ دافتعال ماضي مجهوله ده: اكتفاء كول. منحصر كول. ﴿مَخَافَة﴾ د سمع له باب څخه مصدرِ ميمي دی: بېره. خطره.

**يادونه:** په دې عبارت كې څه كمي سته؛ تاسي يې په غور سره مطالعه كړئ!.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه څلورو خلكو ديو چا په خلاف د زنا ګواهي وركړه چې د هغو د ګواهي په وجه پر هغه سړي حدّ جاري كړی سو او په دُرو ووهل سو. تر دې وروسته معلومه سوه چې په دوی كې يو ګواه غلام دی يا محدود في القذف دی. نو پر دې ګواهانو به حدّ قذف جاري كيږي. ځكه چې د شهادت نصاب پوره نه دی او په حقيقت كې فقط درې ګواهان دي. او څه مخكې دا خبره تېره سوه چې كه د ګواهانو شمېر له څلورو څخه كم وي، نو دوی ته د شهادت اداء كولو ثواب نه حاصليږي. او د دوی شهادت به فقط د دوی لپاره وبال او د حدّ قذف موجَب وي.

او كوم سړی چې په دُرو وهل سوی دی (يعني مشهود عليه) د هغه د وهلو ضمان د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نه پر ګواهانو واجب دی او نه پر بيت المال. لېكن د صاحبينو په نېز كه هغه د وهلو په وجه زخمي سي. نو پر بيتُ المال د هغه ضمان واجب دی. او كه چيري مشهود عليه رجم كړی سي. نو د هغه ديت د امام صاحب په نېز پر بيتُ المال واجب دی. همدارنګه كه د وهلو په وجه مشهود عليه مړ سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هيڅ‌چا هيڅ شی واجب نه دی. لېكن د صاحبينو په نېز د هغه ديت پر بيتُ المال واجب دی. او كه چيري تر وهلو وروسته ګواهان له خپل شهادت څخه رجوع وكړي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغو ضمان واجب نه دی. لېكن د صاحبينو په نېز پر هغو ضمان واجب دی.

**د صاحبينو دليل:** په دې ټولو صورتونو کې د صاحبينو دليل دا دی چې د ګواهانو په شهادت سره پر مشهود عليه ضرب (وهل) ثابت او واجب سو، او دا ضرب که جارح وي او که مُهلک وي په هر صورت کې د ګواهانو د شهادت وطرف ته د هغه نسبت کيږي، ځکه چې له زخم او هلاکت څخه مجرم ساتل د انسان له طاقت څخه وتلي او ناممکن دي، لهذا په دې ضرب سره که مجرم (مشهود عليه) زخمي سي يا مړ سي او ګواهان له خپل شهادت څخه رجوع وکړي. نو پر دوی به د ضرب ضمان يا د نفس ضمان واجب وي، او که دوی رجوع نه وکړي لېکن په دوی کې يو غلام وي يا محدود فی القذف وي، نو دا ضمان به پر بيتُ المال واجب وي، ځکه چې بيتُ المال د ټولو مسلمانانو دی. او د جلاد (دُره باز) د فعل نسبت د قاضي وطرف ته هم کيږي، او څرنګه چې قاضي د مسلمانانو لپاره مقرر سوی دی، لهذا د قاضي په وجه چې کوم ضمان هم واجب سي هغه به د مسلمانانو په مال (بيتُ المال) کې واجبيږي، يعني هغه به له بيتُ المال څخه اداء کيږي. او لکه څرنګه چې درجم او قصاص په صورت کې د مجرم تر وژل کېدلو وروسته که چيري ګواهان له خپل شهادت څخه رجوع وکړي يا په دوی کې يو ګواه غلام يا محدود فی القذف وخيږي نو د وژل سوي مجرم دِيَت پر بيتُ المال واجبيږي، همداسي به د ضرب په صورت کې هم دا ديت او ضمان پر بيتُ المال واجب وي. او له بيتُ المال څخه به اداء کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د دې ګواهانو په شهادت پر مشهود عليه جَلد (يعني د دُرې وهل) واجب سو، او جَلد هغه وهلو ته وايي کوم چې دردناکه او سخت وي لېکن زخمي کونکي او هلاکونکينه وي، لېکن کله چې جَلد جارح يا مهلک جوړ سي نو د دې مطلب دا دی چې وهونکي (جلاد) تعدّی او زياتوب وکړی، او د بې تجربګي په وجه داسې پيښ سوه، لهذا دا زياتوب او تجاوز به فقط د وهونکي سره خاص وي او په دې کې به نه د ګواهانو څه قصور وي او نه د قاضي. نو ځکه به نه پر ګواهانو ضمان واجبيږي او نه پر بيتُ المال، او پر وهونکي (جلاد) به هم ضمان نه واجبيږي. ځکه که پر هغه ضمان واجب کړی سي، نو په آينده کې به هيڅوک د جلادۍ کار نه کوي او د ضمان ورکولو له بيري څخه به د دغه کار نوم هم نه اخلي.

دا حکم په هغه صورت کې دی کله چې د ګواهانو په شهادت سره ضرب ثابت سوی وی. يعني مشهود عليه محصن نه وي، او که مشهود عليه محصن وي او هغه رجم کړی سي بيا داسي قصه پېښه سي (يعني يو ګواه غلام يا محدود فی القذف ثابت سي. يا ګواهان له شهادت څخه رجوع وکړي). نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم پر بيتُ المال د هغه ديت واجبيږي. د دې چې لپاره چې د مشهود عليه خون ضايع او بې ځايه نه سي.

## پر يوې ګواهۍ د بلې ګواهۍ د اداء کېدلو بيان

وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى شَهَادَةِ أَرْبَعَةٍ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او که څلورو خلکو د څلورو ګواهانو د زنا پر شهادت ګواهي ورکړه لَمْ يُحَدَّ نو پر مشهود عليه به حدّ نه جاري کيږي لِمَا فِيهَا مِنْ زِيَادَةِ الشُّبْهَةِ ځکه چي په دې شهادت کي ډېر شبهات سته وَلَا ضَرُورَةَ إِلَى تَحَمُّلِهَا او د داسي شهادت د اخيستلو او قبلولو ا هيڅ ضرورت نسته فَإِنْ جَاءَ الْأَوَّلُونَ فَشَهِدُوا عَلَى الْمُعَايَنَةِ فِي ذٰلِكَ الْمَكَانِ بيا که مخکني څلور ګواهان راسي او په هغه ځای کي د زنا ليدلو ګواهي ورکړي لَمْ يُحَدَّ أَيْضًا نو ا په دې صورت کي ا به هم پر مشهود عليه حدّ نه جاري کيږي مَعْنَاهُ: شَهِدُوا عَلَى ذٰلِكَ الزِّنَا بِعَيْنِهِ د دې مطلب دا دی: چي بعينه پر هغه زنا ګواهي ورکړي [پر کومه زنا چي وروستني څلورو ګواهانو (فروعو) ګواهي ورکړې وي] لِأَنَّ شَهَادَتَهُمْ قَدْ رُدَّتْ مِنْ وَجْهٍ بِرَدِّ شَهَادَةِ الْفُرُوعِ فِي عَيْنِ هٰذِهِ الْحَادِثَةِ ځکه چي په دغه واقعه کي د فروعو د شهادت په ردّ کولو سره من وجه د هغو [اُصولو] شهادت [هم] ردّ سو إِذْ هُمْ قَائِمُونَ مَقَامَهُمْ بِالْأَمْرِ وَالتَّحْمِيلِ ځکه چي فروع [د شهادت] په معامله کي او د شهادت په اداء کولو کي د اُصولو قائم مقام دي وَلَا يُحَدُّ الشُّهُودُ او پر ګواهانو به [هم] حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ عَدَدَهُمْ مُتَكَامِلٌ ځکه چي د هغو شمېر پوره دی وَامْتِنَاعُ الْحَدِّ عَنِ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ لِنَوْعِ شُبْهَةٍ او له مشهود عليه [مجرم] څخه د حدّ منع کېدل [او ساقطېدل] د يو ډول شبهې په وجه دي وَهِيَ كَافِيَةٌ لِدَرْءِ الْحَدِّ لَا لِإِيجَابِهِ او دا شبهه [فقط] د حدّ دفع کولو لپاره کافي ده [ليکن] د حدّ ثابتولو لپاره کافي نه ده.

**اللغات**: ﴿مُعَايَنَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: کتل (په ستر ګو ليدل، مراد ځني عيني ګواهي ورکول دي). ﴿دَرْء﴾ د فتح مصدر دی: دفع کول، ليري کول (ساقطول). ﴿إِيجَاب﴾ د إفعال مصدر دی: واجبول، ثابتول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: که څلورو خلکو د يوه سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړه، او بيا نورو څلورو خلکو د هغه اولو کسانو پر ګواهۍ باندي ګواهي ورکړه چي هغوی بالکل رښتيا وايي او موږ د هغو ګواهان يو، نو په دې صورت کي به پر مشهود عليه (مجرم) حدّ نه جاري کيږي، ځکه چي په دې ګواهۍ کي څو شبهات پيدا سوه (مثلاً د اُصولو پر ګواهۍ باندي فروعو ولې ګواهي ورکړه؟ (يعني د

اولو خلکو پر ګواهی باندي نورو څلورو خلکو ولي ګواهي ورکړه؟)همدارنګه کله چي په يو معامله کي تر ضرورت زياته ګواهي پېشه کړی سي، نو په هغه ګواهی د دروغو شبهه پيدا کيږي او داسي نور). او د شبهاتو د پيدا کېدلو په صورت کي د ګواهی قبلولو هيڅ ضرورت هم نسته. ځکه چي ګواهي د شبهاتو د ختمولو لپاره وي نه د شبهاتو د ثابتولو او پيدا کولو لپاره. نو ځکه به دلته د فروعو (وروستني څلورو خلکو) ګواهي نه قبليږي.

**فإن جاء الأولون**: فرمايي که چيري فروع ګواهي ورکړي او د هغو ګواهي قبوله نه کړی سي. تر دې وروسته أصول [اول خلک] راسي او په خپلو ستر ګو د ليدلو ګواهي ورکړي (چي موږ زاني په خپلو ستر ګو وليدی چي په زنا لګيا وو) نو هم به د هغو ګواهي ردّ کيږي او نه به قبليږي. ځکه فروعو چي کومه ګواهي ورکړې ده هغه هم د أصول ګواهي ده. او دا ګواهي يو وار ردّ کړی سوه. لهذا په هغې کي شبهه پيدا سوه. نو ځکه به دويم وار په دې باره کي ګواهي نه قبليږي (د في الأمر والتحميل معنیٰ دا ده: چي فروع (وروستني خلک) په ګواهی. او د ګواهی په اداء کولو کي د أصولو (اولو خلکو) قائم مقام دي، نو د ګواهی د ردّ کېدلو کومه وجه چي په فروعو کي سته. هغه په أصولو کي هم سته. نو ځکه به د يو فريق شهادت هم نه قبليږي او پر مشهود عليه به حدّ نه جاري کيږي).

**ولايحد الشهود إلخ**: فرمايي چي پر ګواهانو به هم حدّ قذف نه جاري کيږي. ځکه چي په ګواهانو کي نه څه نقصان او عيب سته او نه د دوی شمېر کم دی. ها! له مشهود عليه څخه د يوې شبهي په وجه حدّ ساقط سو (يعني هغه شبهه چي د هغې په وجه د فروعو ګواهي قبوله نه سوه. او د أصولو ګواهي ردّ کړی سوه). او د حدّ ساقطېدلو لپاره همدومره شبهه کافي ده. لېکن د حدّ ثابتولو لپاره دا شبهه کافي نه ده. ځکه چي تاسو ته معلومه ده چي شبهه خو حدّ ساقطوي لېکن حدّ نه ثابتوي.

## تر حدّ جاري کېدلو وروسته د يوه ګواه د رجوع کولو حکم

وَإِذَا شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او کله چي څلور ګواهان د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړي فَرُجِمَ او هغه رجم کړی سي فَكُلَّمَا رَجَعَ وَاحِدٌ نو کله چي هم [په دې څلورو ګواهانو کي] يو ګواه رجوع وکړي حُدَّ الرَّاجِعُ وَحْدَهُ نو يوازي پر رجوع کونکي ګواه به حدّ جاري کيږي وَغَرِمَ رُبُعَ الدِّيَةِ او هغه به د ديَت د څلورمې حصې ضامن [هم] وي [يعني د ديت د يوې ربع ضمان او قيمت به پر واجب وي] أَمَّا الْغَرَامَةُ فَلِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْحَقِّ کوم چي [يوه ربع] ضمان دی نو د هغه وجه دا ده چي [اوس] څومره ګواهان پر شهادت قائم وي د هغو له شهادت څخه درې رُبع حق پاته دی [يعني پر راجع د ديّت ربع ځکه واجبيږي چي اوس هم درې ګواهان پر خپل شهادت باته او قائم دي

په د حق څلورمه حصه فوت سوې وي امطلب دا چي ديوه ګواه درجوع کولو په وجه فقط د حق يوه ربع فوت چي د هغه په وجه درې ربع پاته دي ا فَيَكُونُ التَّالِفُ بِشَهَادَةِ الرَّاجِعِ رُبْعَ الْحَقِّ نو د راجع په شهادت سره سوه ا وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ الْقَتْلُ دُونَ الْمَالِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د راجع وژل به واجب وي، نه مال [او ضمان] بِنَاءً عَلَى أَصْلِهِ فِي شُهُودِ الْقِصَاصِ اد امام شافعي رَحِمَهُ الله ا دا قول د قصاص په ګواهانو کي د هغه پر أصل مبني دي وَسَنُبَيِّنُهُ فِي الدِّيَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او په کتابُ الديّات کي به موږ انشاء الله د دې بيان وکړو وَأَمَّا الْحَدُّ فَمَذْهَبُ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ کوم چي حدّ دی نو هغه زموږ د دريو امامانو مذهب دی ايعني امام صاحب او صاحبين رَحِمَهُمُ الله ا وَقَالَ زُفَرُ: لَا يُحَدُّ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر راجع به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ الرَّاجِعُ قَاذِفَ حَيٍّ ځکه که چيري راجع پر ژوندي امشهود عليه ا باندي تهمت لګونکی وي فَقَدْ بَطَلَ بِالْمَوْتِ نو د هغه په مړ کېدلو سره تهمت باطل سو وَإِنْ كَانَ قَاذِفَ مَيِّتٍ او که راجع پر مړه امشهود عليه ا باندي تهمت لګونکی وي فَهُوَ مَرْجُومٌ بِحُكْمِ الْقَاضِي نو هغه [خو] د قاضي په حکم سره رجم سوی دی فَيُورِثُ ذَلِكَ شُبْهَةً نو دا به شبهه پيدا کړي ايعني د دې په وجه شبهه پيدا سوه ا وَلَنَا: أَنَّ الشَّهَادَةَ إِنَّمَا تَنْقَلِبُ قَذْفًا بِالرُّجُوعِ زموږ دليل دا دی: چي شهادت به په رجوع کولو سره په تهمت بدليږي لِأَنَّ بِهِ تَنْفَسِخُ شَهَادَتُهُ ځکه چي په رجوع سره د راجع شهادت باطليږي فَجُعِلَ لِلْحَالِ قَاذِفًا لِلْمَيِّتِ نو هغه به فی الحاله پر ميّت باندي تهمت لګونکی ګرځول کيږي وَقَدِ انْفَسَخَتِ الْحُجَّةُ او اد هغه د رجوع په وجه ا به حجّت فسخ کيږي فَيَنْفَسِخُ مَا يَبْتَنِي عَلَيْهِ وَهُوَ الْقَضَاءُ فِي حَقِّهِ نو کوم شی چي پر حجت مبني دی هغه به اهم ا فسخ کيږي او هغه د ده په حق کي د قاضي فيصله ده فَلَا يُورِثُ الشُّبْهَةَ نو دې شبهه پيدا نه کړه ايعني شبهه پاته نه سوه نو ځکه به پر راجع حدّ قذف جاري کيږي ا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَذَفَهُ غَيْرُهُ په خلاف د هغه صورت کله چي له راجع اګواه ا څخه بغير ابل څوک ا پر مرجوم تهمت ولګوي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُحْصَنٍ فِي حَقِّ غَيْرِهِ ځکه چي مرجوم له ګواه څخه بغير اد بل چا ا په حق کي مُحصن نه دی لِقِيَامِ الْقَضَاءِ فِي حَقِّهِ ځکه چي د ګواه په حق کي د قاضي فيصله موجوده ده.

**اللغات**: ﴿غَرِمَ﴾ د سمع ماضي ده: ضمان او تاوان اداء كول. جرمانه اداء كول. ﴿قَاذِف﴾ د ضرب اسمِ فاعل دی: د دراوغو تهمت لګونکی (هغه کس چې په دروغو پر يو چا د زنا تور ولګوي).

﴿يُوْرِث﴾ د افعال مضارع ده: وارث جوړل. شاته پرېښوول (مراد ځني شبهه پيدا كول دي).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه څلور ګواهان د يوه سړي په خلاف د زنا ګواهي وركړي چې د هغه په وجه دا سړی رجم كړی سي. او بيا تر رجم وروسته له دې ګواهانو څخه يو ګواه رجوع وكړي. نو دا رجوع به فقط د هغه په حق كي معتبره وي. او په دې رجوع سره به فقط پر هغه حدّ قذف جاري كيږي او د حدّ سره به پر هغه د مرجوم د دِيّت څلورمه حصه ضمان هم واجب وي. او له هغه څخه بغير به پر نورو ګواهانو نه حدّ جاري كيږي او نه به ضمان پر واجبيږي؛ ځكه چي هغوی پر خپل شهادت قائم پاته دي. او د هغو په شهادت سره د مشهود عليه درې ربعي (درې څلورمي حصې) حق پاته دی او د راجع په رجوع سره فقط يوه ربع حق ختم سوی دی. نو ځكه به پر راجع فقط د يوه دِيّت واجب وي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلك دا دی چي پر راجع ديت نه واجبيږي. بلكي د رجوع په وجه به هغه قتل كيږي. لكه كله چي د قصاص ګواهان د مشهود عليه تر قتل كېدلو وروسته له ګواهي څخه رجوع وكړي. نو پر هغو دِيّت نه واجبيږي بلكي قتل كيږي. همدا حال به د زنا د ګواه هم وي.

**وأما الحدّ إلخ**: فرمايي چي زموږ د ائمه ثلاثه وو په نيز به پر راجع حدّ جاري كيږي. ليكن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز به پر هغه حدّ نه جاري كيږي: د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي كه چيري مسئله داسي وګڼل سي چي دغه راجع د مشهود عليه (مجرم) د وژند په حالت كي پر هغه تهمت او قذف لګولی دی نو د مشهود عليه په مرګ سره دا تهمت ختم سو (ځكه قاعده دا ده چي كله مقذوف دعوی وكړي. نو پر قاذف به حدّ قذف جاري كيږي. او دلته خو مقذوف يعني مشهود عليه مړ سوی دی). او كه چيري داسي وګڼل سي چي هغه د مشهود عليه تر مرګ وروسته په رجوع كولو سره پر هغه تهمت لګولی دی. نو څرنګه چي مقذوف د قاضي په حكم سره رجم سوی او وژل سوی دی. نو ځكه په دې خبره كي شك پيدا سو چي د دغه ګواه په وجه مقذوف رجم سوی دی. نو ځكه به پر ګواه حدّ قذف نه جاري كيږي.

زموږ دليل دا دی چي د دغه ګواه (راجع) شهادت په ابتداء كي حجت وو او د زنا ثابتونكی وو. ليكن د هغه پر رجوع كولو سره دا شهادت په تهمت سره بدل سو او فسخ سو او كله چي فسخ سو. نو هغه د شهادت او ستر له دواړو ثوابونو څخه ووتی او قذف وګرځېدی. او دا سړی پر ميّت (مړه مشهود عليه) به تهمت لګونكی وګرځېدی. او څرنګه چي د ده په شهادت سره د ده په حق كي د قاضي د رجم أمر ثابت سوی وو. نو د شهادت په فسخ كېدلو سره هغه أمر هم فسخ سو (ګواكي قاضي د ده په شهادت سره مجرم نه دي رجم كړی) نو د ده په قذف كي هيڅ شبهه پاته نه سوه. لهذا دئ خالص

قاذف سو، نو ځکه به پر ده حدّ قذف جاري کيږي. لېکن که له ګواه څخه بغير يو بل څوک پر مرجوم تهمت ولګوي نو پر بل سړي به حدّ قذف نه جاري کيږي، ځکه چي مرجوم له ګواه څخه بغير د بل چا په حق کي محصن نه دی چي د هغه په قذف سره دي د هغه إحصان ساقط سوی وی. بلکي په دې صورت کي د مرجوم په رجم کي د قاضي فيصله مؤثره ده، او د دې قاذف په قذف کي شبهه ده. چي د دې شبهي په وجه به پر هغه حدّ نه جاري کيږي.

## تر حدّ جاري کېدلو مخکي د يو ګواه د رجوع کولو حکم

فَإِنْ لَمْ يُحَدَّ الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ حَتَّى رَجَعَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ او که پر مشهود عليه حدّ جاري نه کړی سي تر دې چي له ګواهانو څخه يو ګواه رجوع وکړي حُدُّوا جَمِيعًا نو پر دوی ټولو به حدّ جاري کيږي وَسَقَطَ الْحَدُّ عَنِ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ او له مشهود عليه څخه به حدّ ساقطيږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁: حُدَّ الرَّاجِعُ خَاصَّةً او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي فقط پر راجع به حدّ جاري کيږي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ تَأَكَّدَتْ بِالْقَضَاءِ ځکه چي د قاضي په فيصله سره شهادت مؤکد سو فَلَا يَنْفَسِخُ إِلَّا فِي حَقِّ الرَّاجِعِ لهذا هغه به فقط د راجع په حق کي فسخ کيږي كَمَا إِذَا رَجَعَ بَعْدَ الْإِمْضَاءِ لکه تر حدّ جاري کولو وروسته چي يو څوک رجوع وکړي وَلَهُمَا: أَنَّ الْإِمْضَاءَ مِنَ الْقَضَاءِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي حد جاري کول هم له قضاء څخه دي [يعني د حدّ نفاذ او إجراء هم د قاضي د فيصلې يوه حصه ده] فَصَارَ كَمَا إِذَا رَجَعَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ قَبْلَ الْقَضَاءِ نو داسي سو لکه تر قضا مخکي چي له ګواهانو څخه يو رجوع وکړي وَلِهٰذَا سَقَطَ الْحَدُّ عَنِ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ او په همدې وجه له مشهود عليه څخه حدّ ساقطيږي وَلَوْ رَجَعَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ قَبْلَ الْقَضَاءِ او که تر قضاء مخکي له ګواهانو څخه يو رجوع وکړي حُدُّوا جَمِيعًا نو پر ټولو به حدّ جاري کيږي وَقَالَ زُفَرُ: يُحَدُّ الرَّاجِعُ خَاصَّةً او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي فقط پر رجوع کونکي ګواه به حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ عَلَى غَيْرِهِ ځکه چي د نورو ګواهانو په خلاف به د هغه تصديق نه کيږي [او د راجع پړه به پر نورو ګواهانو نه اچول کيږي] وَلَنَا: أَنَّ كَلَامَهُمْ قَذْفٌ فِي الْأَصْلِ زموږ دليل دا دی: چي د ګواهانو کلام [شهادت] په اصل کي تهمت دی وَإِنَّمَا يَصِيرُ شَهَادَةً

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۷۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۷]

بِاتِّصَالِ الْقَضَاءِ بِهِ او [د دوی] کلام هغه وخت شهادت ګرځي [کله] چې د قاضي فیصله د هغه سره متصل سي فَإِذَا لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ نو کله چې [دلته] د هغه سره د قاضي فیصله متصله نه سوه بَقِيَ قَذْفًا نو هغه تهمت پاته سو فَيُحَدُّونَ لو ځکه به پر [ټولو] ګواهانو حدّ جاري کیږي فَإِنْ كَانُوا خَمْسَةً فَرَجَعَ أَحَدُهُمْ او که ګواهان پنځه وي او [بیا] له دوی څخه یو رجوع وکړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمْ نو [په دې صورت کي] پر ګواهانو هیڅ شی نسته لِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ كُلُّ الْحَقِّ وَهُوَ شَهَادَةُ الْأَرْبَعَةِ ځکه چې [اوس] دومره ګواهان پاته دي چې د هغو په ګواهۍ سره ټوله حق (یعني شهادةُ الأربعة) پاتیږي فَإِنْ رَجَعَ آخَرُ لېکن که یو بل ګواه [هم] رجوع وکړي حُدَّا نو پر هغوی دواړو به حدّ جاري کیږي وَغَرِمَا رُبْعَ الدِّيَةِ او دواړه به د دیت د څلورمي حصې ضمان اداء کوي أَمَّا الْحَدُّ فَلِمَا ذَكَرْنَا کوم چې حدّ دی نو د هغه دلیل په وجه [به جاري کیږي] کوم چې موږ ذکر کړی وَأَمَّا الْغَرَامَةُ فَلِأَنَّهُ بَقِيَ مَنْ يَبْقَى بِشَهَادَتِهِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْحَقِّ او کوم چې ضمان دی نو ځکه چې دومره ګواهان پاته دي چې د هغو په ګواهۍ سره درې ربع حق پاتیږي وَالْمُعْتَبَرُ بَقَاءُ مَنْ بَقِيَ لَا رُجُوعُ مَنْ رَجَعَ او [په دې سلسله کي] د باقي پاتېدونکو ګواهانو بقاء معتبره ده نه د رجوع کونکي رجوع [یعني قاعده دا ده چې په داسي صورت کي هغه ګواهانو ته اعتبار ورکول کیږي کوم چې پر خپل شهادت پاته وي. او رجوع کونکي ګواه له هیڅ اعتبار نسته] عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې [په کتابُ الشهادات کي دا خبره تاسي ته] معلومه سوه.

**اللغات**: ﴿تَأَكَّدَتْ﴾ د تفعّل ماضي ده: مضبوطېدل، ټینګېدل. ﴿إِمْضَاء﴾ د افعال مصدر دی: جاري کول، نافذول. ﴿غَرِمَا﴾ د سمع له باب څخه د تثنیه مذکر غائب ماضي صیغه ده: ضمان او جرمانه اداء کول.

**تشریح**: صورت د مسئلې خو بالکل واضح دی چې د قاضي له قضاء څخه وروسته پرمشهود علیه تر حدّ جاري کېدلو مخکي د یو ګواه په رجوع کولو سره د شیخینو رَحِمَهُمَا اللهُ په نیز به پر ټولو ګواهان حدّ جاري کیږي، لکه څرنګه چې د قاضي تر قضاء (فیصلې) مخکي یو ګواه رجوع وکړي، نو پر ټولو حدّ جاري کیږي، ځکه چې د حدّونو په باب کي حدّ جاري کول هم د قضاء حصه ده او هغه ته قضاء وايي. او تر قضاء مخکي رجوع کول جرم او د حدّ موجب دی. امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په دې صورت کي فقط پر راجع حدّ واجبوي، ځکه چې د قاضي په قضاء سره د ګواهانو شهادت پوخ او

مضبوط سو. لهذا تر قضاء وروسته چي کوم ګواه رجوع وکړي، د هغه رجوع به فقط د هغه په حق کي ثابتيږي. او د نورو ګواهانو په حق کي به نه ثابتيږي.

دويمه مسئله دا ده که د قاضي له قضاء څخه مخکي (او تر شهادت اداء کولو وروسته) يو ګواه رجوع وکړي، نو زموږ په نېز به پر ټولو ګواهانو حدّ جاري کيږي. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز به فقط پر راجع (رجوع کونکي) باندي حدّ جاري کيږي: د امام زفر دليل دا دی چي د راجع خبره فقط د هغه په حق کي معتبره ده، نو له هغه څخه بغير به د نورو ګواهانو په حق کي د هغه تصديق نه کيږي.

زموږ دليل دا دی چي د قاضي تر قضاء مخکي د ګواهانو خبره فقط قذف او تهمت وي. ها! کله چي قاضي د دوی خبره تسليم کړي او د هغه مطابق د رجم يا د جَلد فيصله وکړي، نو بيا د دوی خبري ته شهادت او ګواهي وايي، لېکن څرنګه چي دلته د دوی د خبري سره د قاضي قضاء متصله نه ده، نو ځکه د دوی خبره قذف پاته سوه. او د يوه ګواه رجوع کول و دې طرف ته نوره تقويه ورکړه (او ثابته يې کړه چي زموږ ګواهي قذف ده)، نو ځکه به ټوله قاذفين (تهمت لګونکي) شمارل کيږي. او پر ټولو به حدّ قذف جاري کيږي.

او که چيري د ګواهانو شمېر پنځه وي. او بيا له رجم څخه وروسته په دوی کي يو ګواه له شهادت څخه رجوع وکړي، نو پر يوه ګواه به هم هيڅ شی نه واجبيږي. لېکن که يو بل ګواه هم ور سره يو ځای سي يعني ټوله دوه ګواهان رجوع وکړي، نو بيا به پر هغوی دواړو حدّ قذف جاري کيږي. او دا يو ګواه به د ديت د څلورمي حصې (ربع) ضامن هم وي. لکه په تېر عبارت کي چي په دې هکله تفصيل ذکر سو. په لِمَا ذَكَرْنَا سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله هغه ته اشاره کړې ده.

## د ګواهۍ د غلطېدلو په صورت کي د مرجوم د ديت مسئله

وَإِنْ شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او که څلورو ګواهانو د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړه فَزُكُّوا بيا د ګواهانو تزکيه بيان کړی سوه [يعني بيا نور خلکو د ګواهانو تزکيه او تعديل وکړي چي دغه ګواهان عادله او د شهادت قابله خلک دي] فَرُجِمَ او [د ګواهانو د ګواهۍ] مشهود عليه رجم کړی سو فَإِذَا الشُّهُودُ مَجُوسٌ أَوْ عَبِيدٌ تر دې وروسته ورروسته معلومه سوه چي ګواهان خو مجوسيان يا غلامان دي فَالدِّيَةُ عَلَى الْمُزَكِّينَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو [د مرجوم] ديت به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر تزکيه کونکو خلک واجب وي مَعْنَاهُ: إِذَا رَجَعُوا عَنِ التَّزْكِيَةِ د دې مطلب دا دی: چي کله مُزکين له تزکيه څخه رجوع وکړي وَقَالَا: هُوَ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ديت به پر بيتُ المال واجب وي وَقِيلَ: هٰذَا إِذَا قَالُوا:

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۳، ص:۱۷۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲۸]

تَعَمَّدْنَا التَّزْكِيَةَ مَعَ عِلْمِنَا بِحَالِهِمْ او ويل سوي دي: چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مُزکين اداسي اووايي: چي موږ د ګواهانو په حالت د خبرېدلو باوجود د هغو تزکيه قصداً کړې وه لَهُمَا: أَنَّهُمْ أَثْنَوْا عَلَى الشُّهُودِ خَيْرًا د صاحبينو دليل دا دی: چي مُزکينو د هغه ګواهانو د ښه والي او عادلوالي تعريف کړی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَثْنَوْا عَلَى الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ خَيْرًا بِأَنْ شَهِدُوا بِإِحْصَانِهِ نو دا داسي سو لکه هغوی چي د مشهود عليه د ښه والي تعريف وکړي په دې توګه چي د هغه د محصنوالي ګواهي ورکړي وَلَهُ: أَنَّ الشَّهَادَةَ إِنَّمَا تَصِيرُ حُجَّةً عَامِلَةً بِالتَّزْكِيَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي شهادت په تزکيه سره فعال حجت جوړېږي [يعني شهادت فقط په تزکيه سره عمل او أثر کوي او حجت ګرځي] فَكَانَتِ التَّزْكِيَةُ فِي مَعْنَى عِلَّةِ الْعِلَّةِ نو تزکيه به د علت، د علت [سببُ السبب] په معنیٰ سره وي فَيُضَافُ الْحُكْمُ إِلَيْهَا نو ځکه به حکم د هغه [علةُ العلة] وطرف ته منسوب کيږي بِخِلَافِ شُهُودِ الْإِحْصَانِ په خلاف د إحصان د ګواهانو لِأَنَّهُ مَحْضُ الشَّرْطِ ځکه چي هغه محض يو شرط دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا شَهِدُوا بِلَفْظَةِ الشَّهَادَةِ أَوْ أَخْبَرُوا او په دې کي هيڅ فرق نسته چي مُزکين د شهادت په لفظ سره ګواهي ورکړي يا د خبرو ورکولو په لفظ سره وَهَذَا إِذَا أَخْبَرُوا بِالْحُرِّيَّةِ وَالْإِسْلَامِ او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دوی [مُزکينو] د آزادۍ او اسلام خبر ورکړی وی أَمَّا إِذَا قَالُوا: هُمْ عُدُولٌ وَظَهَرُوا عَبِيدًا لېکن که دوی ويلي وي: چي ګواهان عادلان دي او [بيا] ګواهان غلامان ښکاره سي لَا يَضْمَنُونَ نو [په دې صورت کي] به مُزکين ضامن نه وي لِأَنَّ الْعَبْدَ قَدْ يَكُونُ عَدْلًا ځکه چي ځيني وخت غلام [هم] عادل وي وَلَا ضَمَانَ عَلَى الشُّهُودِ او پر ګواهانو به [هم] ضمان نه وي لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ كَلَامُهُمْ شَهَادَةً ځکه چي د دوی کلام شهادت واقع نه سو وَلَا يُحَدُّونَ حَدَّ الْقَذْفِ او پر هغوی به حدّ قذف [هم] نه جاري کيږي لِأَنَّهُمْ قَذَفُوا حَيًّا وَقَدْ مَاتَ ځکه چي هغو پر ژوندي کس باندي تهمت لګولی وو او هغه [خو] مړ سو فَلَا يُورَثُ عَنْهُ نو ځکه به له هغه شخصه [څوک] نه وارث کيږي [يعني داسي کېدای نه سي چي د هغه تر مرګ وروسته يو قريب د هغه د حدّ قذف وارث جوړ سي او د هغه د حدّ قذف مطالبه وکړي. ځکه چي په حدّ قذف کي ميراث نه چلېږي].

**اللغات:** ﴿زَكَّوْا﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع مذکر غائب ماضي مجهولي صيغه ده: تزکيه کول. د يو چا پاکوالي او صفاوالي بيانول. ﴿عَبِيد﴾ جمع د عَبْدٌ ده: غلام. مريی. ﴿مُزَكِّين﴾ د تفعيل جمع اسمِ فاعل دی: تزکيه کونکي خلک. ﴿تَعَمَّدْنَا﴾ د تفعّل ماضي ده: قصداً يو کار کول (په قصده

کول)، ﴿أَثْنَوْا﴾ د افعال ماضي ده: ثنا بيانول، تعريف کول، ﴿لَا يُوَرَّثُ﴾ د سمع له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: وارث کېدل، وارث جوړېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديو چا په خلاف څلورو ګواهانو د زنا ګواهي ورکړه، او يو شو خلکو د دې ګواهانو تعديل او تزکيه بيان کړه (يعني دوی يې عادلان او صفا خلک وګرځول او د شهادت قابل يې وشمارل)، او بيا د دې ګواهانو د شهادت په وجه مشهود عليه رجم کړی سو: وروسته معلومه سوه چې مشهودٌ عليه خو مجوسي يا غلام وو، او تزکيه کونکو خلکو له خپل تزکيه څخه رجوع وکړه او دا يې ويل چې موږ د دې ګواهانو په فاسقوالي يا غلاموالي خبر وو، لېکن موږ قصداً دا خبره پټه کړه او هغوی مو (ستاسي په مخکي) عادلان ثابت کړل، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د مرجوم ديت پر دغه مُزکّينو (تعديل کونکو خلکو) باندي واجب وي، لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې دا ديت به پر بيتُ المال واجب وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې مُزکينو په خپله تزکيه سره په ګواهانو کي خير او عدالت ثابت کړی او په خپله تزکيه سره يې د دوی ښه والی بيان کړی (چې دا غوره او معتمد خلک دي، مطلب دا چې د صاحبينو په نېز تزکيه د علت په درجه کي نه ده)، لهذا څرنګه چې د مشهود عليه (مجرم) په باره کي يو شوک خلک دا ګواهي ورکړي چې هغه مُحصن دی او وروسته معلومه سي چې هغه محصن نه دی، نو پر هغه خلکو کي ديّت نه واجبيږي، همداسي به دلته هم پر مُزکينو ديت نه واجبيږي، نو د مشهود عليه رجم د قاضي په حکم او فيصله سره لازم سو (يعني ګواکي هغه فقط د قاضي په فيصله سره رجم سوی دی)، نو ځکه به پر بيتُ المال ديّت واجب وي (چې د هغه خون ضايع نه سي).

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې زنا په شهادت سره ثابتيږي، او شهادت بيا په تزکيه سره د حُجّت قابل ګرځي، نو د رجم لپاره تزکيه علةُ العلة (د علت، علت) وګرځېده (مطلب دا چې تزکيه د علت په درجه کي ده)، نو ځکه به حکم د هغه وطرف ته منسوبيږي (ځکه څرنګه چې د علت وطرف ته د حکم نسبت کيږي، همداسي به د علتُ العلة وطرف ته هم د حکم نسبت کيږي)، نو ځکه موږ (امام صاحب) وايو چې که مُزکين له تزکيه څخه رجوع وکړي، نو پر هغو به ديت واجب وي.

بخلاف شهود الإحصان إلخ: د دې حاصل دا دی چې د احصان ګواهي محض ديو شرط په درجه کي ده، د علت په درجه کي نه ده، ځکه کوم خلک چې د مشهود عليه (مجرم) په باره کي دا ګواهي ورکړي چې مشهود عليه محصن دی نو مشهود عليه به رجم سي، او که چيري هغه محصن نه وی نو په دُرو به ووهل سي (معلومه سوه چې د إحصان ګواهي ورکول محض يو شرط دی او د علت په درجه کي نه ده)، نو ځکه به د إحصان پر ګواهانو ديت او ضمان نه واجبيږي، لېکن تزکيه د علت په درجه کي ده،

نو ځکه به پر مُزکّينو ديت او ضمان واجبيږي. لهذا د إحصان پر ګواهانو باندي مُزکين قياسول د صاحبينو لپاره صحيح نه دي.

**ولا فرق إلخ**: فرمايي: برابره ده مُزكين كه د شهادت په لفظ سره د ګواهانو تزكيه وكړي يا د إخبار په لفظ سره، په هر صورت كي به هغه حكم وي كوم چي موږ بيان كړی (يعني كه د نَشْهَدُ لفظ وايي او كه د نُخْبِرُ لفظ ووايي، په دواړو صورتونو كي هيڅ فرق نسته)

او امام د صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مُزكين په هغه صورت كي ضامن ګرځي (او ديت به وركوي) كله چي هغو د ګواهانو د آزاد والي او مسلمانوالي خبر وركړی وي، او كه هغو فقط د ګواهانو د عادلوالي خبر وركړی وي او داسي يې ويلي وي چي ټوله ګواهان عادلان دي او وروسته ګواهان غلامان ثابت سي، نو په دې صورت كي به مُزكّين ضامن نه ګرځي، ځكه چي كله نا كله غلام هم عادل او شريف وي (يعني د عدل صفت په آزاد كس او غلام دواړو كي راتلای سي). لهذا د مُزكينو تزكيه د واقع مطابق ده (او رېښتونې ده)، نو ځكه به پر دوی ضمان (ديت) واجب نه وي. او پر ګواهانو به هم ضمان واجب نه وي، ځكه كله چي مُزكينو غلطي وكړه (او ګواهان ټوله غلامان ثابت سول)، نو د ګواهانو خبره شهادت او ګواهي پاته نه سوه، بلكي د هغو خبره قذف او تهمت وګرځېده، او د مشهود عليه رجم د قاضي په حكم سره لازم سو، نو ځكه به پر ګواهانو هم ضمان واجب نه وي.

**ولا يُحدّون إلخ**: كله چي د ګواهانو خبره قذف وګرځېده، نو بايد پر هغو حدّ قذف جاري سي، په دې جمله سره د هغه جواب وركوي، حاصل يې دا دی چي د حدّ قذف لپاره دا ضروري دي چي د مقذوف له طرفه د حدّ قذف دعوىٰ او مطالبه وسي، او دلته ګواهانو د مجرم دژوند په حالت كي پر هغه تهمت لګولی دی، او اوس هغه مړ سوی دی او په حدّ قذف كي ميراث نه چليږي (يعني د سړي تر مرګ وروسته وارثان د هغه د حدّ قذف مطالبه او دعوىٰ نه سي كولای)، نو ځكه به پر دغه ګواهانو حدّ قذف نه جاري كيږي (او ضمان به هم پر واجب نه وي).

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

| |
|---|
| **وَإِذَا شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا** او كه څلورو ګواهانو د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي وكړه **فَأَمَرَ الْقَاضِي بِرَجْمِهِ** او قاضي د هغه د رجم كولو حكم وكړی **فَضَرَبَ رَجُلٌ عُنُقَهُ** او [په دې حالت كي] يوه سړي د هغه غاړه ووهل [او قتل يې كړی] **ثُمَّ وُجِدَ الشُّهُودُ عَبِيدًا** بيا ګواهان غلامان وموندل سول [يعني غلامان ثابت سول] **فَعَلَى الْقَاتِلِ الدِّيَةُ** نو پر قاتل ديت واجب دی **وَفِي الْقِيَاسِ يَجِبُ الْقِصَاصُ** |

او په قیاس کي پر هغه قصاص واجبيږي لِأَنَّهُ قَتَلَ نَفْسًا مَعْصُومَةً بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه چي هغه په ناحقه سره يو معصوم [بې ګناه] نفس قتل کړی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ الْقَضَاءَ صَحِيحٌ ظَاهِرًا وَقْتَ الْقَتْلِ د استحسان دلیل دا دی: چي په ظاهري توګه د قتل کولو په وخت کي اد قاضي] قضاء صحيح وه فَأَوْرَثَ شُبْهَةً نو هغه شبهه پيدا کړه بِخِلَافِ مَا إِذَا قَتَلَهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه تر قضاء مخکي مشهود عليه قتل کړی وي لِأَنَّ الشَّهَادَةَ لَمْ تَصِرْ حُجَّةً بَعْدُ ځکه چي شهادت تر اوسه حجت ګرځېدلی نه دی [ځکه مخکي ذکر سوه چي شهادت د قاضي په قضاء سره حُجت ګرځي] وَلِأَنَّهُ ظَنَّهُ مُبَاحَ الدَّمِ مُعْتَمِدًا عَلَى دَلِيلٍ مُبِيحٍ او ځکه چي قاتل په يو روا کونکي دليل باندي په اعتماد کولو سره د هغه خون روا ګڼلی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا ظَنَّهُ حَرْبِيًّا وَعَلَيْهِ عَلَامَتُهُمْ نو داسي سو لکه قاتل چي هغه حربي ګڼلی وي او پر هغه د حربيانو نښاني هم وي انو په داسي صورت کي خو قاتل غازي ګرځي، قصاص خو هلته پرېږده!. نو ځکه به په پورتني صورت کي پر قاتل قصاص نه واجبيږي، بلکي فقط ديت به واجبيږي] وَتَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ او دا ديت به د قاتل په مال کي واجب وي لِأَنَّهُ عَمْدٌ ځکه چي دا قتلِ عمد دی وَالْعَوَاقِلُ لَا تَعْقِلُ الْعَمْدَ او عاقله د قتلِ عمد ديت نه اداء کوي وَيَجِبُ ذٰلِكَ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ او دا ديت به په دريو کالو کي واجب وي لِأَنَّهُ وَجَبَ بِنَفْسِ الْقَتْلِ ځکه چي هغه خاص د قتل په وجه واجب سوی دی وَإِنْ رُجِمَ ثُمَّ وُجِدُوا عَبِيدًا او که مشهود عليه رجم کړی سي [او] تر دې وروسته ګواهان غلامان وموندل سي فَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ نو ديت به پر بيتُ المال [واجب] وي لِأَنَّهُ امْتَثَلَ أَمْرَ الْإِمَامِ ځکه چي [په دې صورت کي] قاتل د امام د حکم اطاعت وکړی [هغه قصداً دا کار نه وکړی] فَنُقِلَ فِعْلُهُ إِلَيْهِ نو ځکه به د هغه فعل د إمام وطرف ته منتقل کيږي وَلَوْ بَاشَرَهُ بِنَفْسِهِ او که امام بذاتِ خود هغه رجم کړي وای تَجِبُ الدِّيَةُ فِي بَيْتِ الْمَالِ لِمَا ذَكَرْنَاهُ نو ديت به پر إمام واجبېدای (د هغه دليل په وجه کوم چي مونږ ذکر کړی) كَذَا هٰذَا همداسي به دا هم وي [يعني همداسي به دلته هم ديت فقط پر بيتُ المال واجبيږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا ضَرَبَ عُنُقَهُ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه مشهود عليه قتل کړي

لِأَنَّهُ لَمْ يَأْتَمِرْ أَمْرَهُ ځکه چې (په دې صورت کې) قاتل د إمام د حکم اطاعت نه دی کړی وَإِذَا شَهِدُوا عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او کله چې څلور ګواهان د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړي وَقَالُوا: تَعَمَّدْنَا النَّظَرَ او ووايي: چې موږ قصداً (د سړي او ښځې شرمګاه ته) وکتل قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمْ نو د دوی شهادت به قبليږي لِأَنَّهُ يُبَاحُ النَّظَرُ لَهُمْ ضَرُورَةَ تَحَمُّلِ الشَّهَادَةِ ځکه چې د شهادت اخيستلو (او د ګواه جوړېدلو) د ضرورت په خاطر د هغو لپاره کتل روا دي فَأَشْبَهَ الطَّبِيبَ وَالْقَابِلَةَ نو دا (د کتلو مسئله) د ډاکټر او دايي (د مسئلې) سره مشابه سوه.

**اللغات**: ﴿رَجْم﴾ د نصر مصدر دی: رجم کول، سنګسارول. ﴿مُبِيْح﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: حلالونکی، روا کونکی (روايښت ورکونکی)، ﴿عَوَاقِل﴾ جمع د عَاقِلَة ده: د قاتل نژدې قريبان. ﴿لَا تَعْقِل﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صيغه ده: ديت اداء کول. ﴿إِمْتَثَلَ﴾ د افتعال ماضي ده: اطاعت کول، حکم منل. ﴿لَمْ يَأْتَمِر﴾ فرمانبرداري کول، أمر پر ځای کول (حکم منل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د يو سړي په خلاف څلورو خلکو ګواهي ورکړه، او قاضي پر هغه (مشهود عليه) د رجم حکم صادر کړی او په دې حالت کې يو سړي پر مشهود عليه ګزار وکړی او هغه يې قتل کړی، وروسته معلومه سوه چې ټوله ګواهان غلامان ول، نو پر قاتل به استحساناً ديت واجب وي. حالانکې د قياس تقاضا دا ده چې پر هغه دي قصاص واجب سي، ځکه چې قاتل په ناحقه يو معصوم نفس قتل کړی، او ناحقه قتل قصاص مُوجِب دی (يعني په ناحقه قتل سره قصاص واجبيږي)، د استحسان دليل دا دی چې د قاتل د قتل په وخت کې په ښکاره توګه د قاضي د رجم حکم او فيصله صحيح وه، نو دغه صحت د قصاص په وجوب کې شبهه پيدا کړه، او په شبهه سره قصاص نه واجبيږي، نو ځکه به پر قاتل فقط ديت واجبيږي، نه قصاص. ها! که چيري دغه سړي د قاضي تر قضاء او فيصلې مخکې مشهود عليه قتل کړي وای نو پر هغه به قصاص واجبېدای، ځکه چې تر قضاء مخکې د ګواهانو خبره د شهادت په درجه که نه وي لهذا هغه به د قصاص په وجوب کې شبهه نه پيدا کوي.

د استحسان دويم دليل دا دی چې کله دلته قاضي پر مشهود عليه (مجرم) د رجم فيصله وکړه، نو دا فيصله د مشهود عليه د مباح الدّم کېدلو دليل سو (چې د هغه خون او وژل روا دي). نو قاتل پر همدې دليل اعتماد وکړی او هغه يې قتل کړی، نو په دې حواله سره هم د قاتل د قتل په ناحقوالي کې شبهه پيدا سوه، نو ځکه به پر قاتل فقط ديت واجبيږي چې هغه به د قاتل له مال څخه اداء کيږي.

ځکه چي دا په حقيقت کي قتلِ عمد دی او عاقله د قتلِ عمد ديت نه ورکوي (بلکي هغه فقط د قاتل له مال څخه اداء کيږي). او څرنګه چي دا ديّت په حقيقت کي د قتل په وجه واجب سوی دی. نو ځکه به هغه په دريو کالو کي دننه اداء کيږي.

وإن رُجم إلخ: فرمايي که قاضي پر مشهود عليه (مجرم) د رجم حکم صادر کړي او هغه رجم کړی سی، تر دې وروسته معلومه سي چي ګواهان غلامان ول. نو په دې صورت کي به د مرجوم ديت پر بيتُ المال واجب وي. ځکه چي د جلّاد او رجم کونکي فعل د قاضي وطرف منتقل سو. ځکه چي هغه د قاضي په حکم سره مشهود عليه رجم کړی دی. او که چيري قاضي په خپله يو څوک رجم وکړي او وروسته ګواهان غلامان ثابت سي نو د هغه ديت پر بيتُ المال واجبيږي. لهذا په دې صورت کي به هم فقط پر بيتُ المال د هغه ديت واجب وي. لېکن که د قاضي د رجم تر حکم کولو وروسته يو څوک مشهود عليه قتل کړي، نو بيا به پر قاتل ديت واجب وي (لکه اوس چي دا مسئله بيان سوه). ځکه چي قاضي د رجم حکم کړی وو. نه د قتل. نو ځکه به د قاتل فعل د قاتل وطرف ته نه منتقل کيږي بلکي د قاتل سره به خاص وي او فقط قاتل به د ديّت ضامن وي.

وإذا شهدوا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څلورو خلکو د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړه او يې ويل چي موږ قصداً د هغه او ښځي شرمګاه ته وکتل د دې لپاره چي هيڅ شبهه پاته نه سي (او په پوره توګه موږ ته معلومه سي چي دا سړی او ښځه رښتيا زنا کونکي دي)، نو د هغو ګواهي به قبليږي: ځکه چي د ګواه جوړېدلو د ضرورت په خاطر د غه ځای ته کتل د ګواهانو لپاره روا دي. لکه څرنګه چي د ضرورت په وخت کي د ډاکټر او دايي لپاره د ته ځای ته کتل روا دي او هغوی په دې سره فاسقان نه ګرځي (ځکه چي يو څوک هغه وخت په کتلو سره فاسق ګرځي. کله چي په قصدي ډول بېله ضرور ته شرمګاه ته وګوري).

او که چيري ګواهان د خوند اخيستلو لپاره هغه ته وګوري. نو دوی به فاسقان او مردودُ الشهادة ګرځي. او شهادت به يې نه قبليږي.

## له محصنـوالي څخه د زاني د انکار کولو حکم

وَإِذَا شَهِدَ أَرْبَعَةٌ عَلَى رَجُلٍ بِالزِّنَا او که څلورو ګواهانو د يو سړي په خلاف د زنا ګواهي ورکړه فَأَنْكَرَ الْإِحْصَانَ لېکن هغه سړي [مشهود عليه] له خپل مُحصن کېدلو څخه انکار وکړی وَلَهُ امْرَأَةٌ قَدْ وَلَدَتْ مِنْهُ حال دا چي هغه يوه داسي ښځه [هم] درلوده چي له ده څخه د هغې بچی سوی وو فَإِنَّهُ يُرْجَمُ نو هغه به رجم کيږي مَعْنَاهُ: أَنْ يُنْكِرَ الدُّخُولَ بَعْدَ وُجُودِ سَائِرِ الشَّرَائِطِ د دې مطلب دا دی: چي هغه سړي د إحصان د ټولو شرائطو

تر موجودېدلو وروسته انکار کړی وي [يعني چي په هغه کي د إحصان ټوله شرائط موجود وي او بيا هغه انکار کړی وي] لِأَنَّ الْحُكْمَ بِثَبَاتِ النَّسَبِ مِنْهُ حُكْمٌ بِالدُّخُولِ عَلَيْهِ ځکه چي له هغه شخصه د نسب ثابتېدلو حکم د هغه د دخول کولو حکم دی وَلِهٰذَا لَوْ طَلَّقَهَا يُعَقِّبُ الرَّجْعَةَ همدا وجه که هغه خپل دغه ښځي ته طلاق ورکړي نو تر طلاق وروسته به هغه د رجعت حقدار وي وَالْإِحْصَانُ يَثْبُتُ بِمِثْلِهِ او په داسي دليل سره إحصان ثابتيږي فَإِنْ لَمْ تَكُنْ وَلَدَتْ مِنْهُ لېکن که له هغه شخصه د ښځي بچی پيدا سوی نه وو وَشَهِدَ عَلَيْهِ بِالْإِحْصَانِ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ او [بيا] يوه سړي او دوو ښځو د هغه د محصنوالي ګواهي ورکړه رُجِمَ نو هغه به رجم کيږي خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فَالشَّافِعِيُّ مَرَّ عَلٰى أَصْلِهِ نو امام شافعي رَحِمَهُ الله [خو] پر أصول تللی دی أَنَّ شَهَادَتَهُنَّ غَيْرُ مَقْبُولَةٍ فِي غَيْرِ الْأَمْوَالِ [د هغه أصول دا دی] چي له مالونو شخه بغير [په نورو معاملاتو کي] د ښځو ګواهي مقبوله نه ده وَزُفَرُ يَقُولُ: أَنَّهُ شَرْطٌ فِي مَعْنَى الْعِلَّةِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي إحصان داسي شرط دی کوم چي د علت په معنىٰ سره دی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَتَغَلَّظُ عِنْدَهُ ځکه چي د إحصان په صورت کي رم سختيږي فَيُضَافُ الْحُكْمُ إِلَيْهِ او حکم د إحصان وطرف منسوب کيږي فَأَشْبَهَ حَقِيقَةَ الْعِلَّةِ نو إحصان د حقيقي علت سره مشابه سو فَلَا تُقْبَلُ شَهَادَةُ النِّسَاءِ فِيهِ نو ځکه به په دې کي د ښځو ګواهي نه قبليږي احْتِيَالًا لِلدَّرْءِ د دې لپاره چي د "حدّ" دفع کولو ته يو حيله جوړه سي فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدَ ذِمِّيَّانِ عَلٰى ذِمِّيٍّ زَنٰى عَبْدُهُ الْمُسْلِمُ: أَنَّهُ أَعْتَقَهُ قَبْلَ الزِّنَا نو داسي سو لکه دوه ذميان چي د يو بل داسي ذمي په خلاف (چي د هغه مسلمان غلام زنا کړې وي) دا ګواهي ورکړي: چي هغه تر زنا مخکي دغه غلام آزاد کړی دی لَا تُقْبَلُ نو دا ګواهي به نه قبليږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَنَا: أَنَّ الْإِحْصَانَ عِبَارَةٌ عَنِ الْخِصَالِ الْحَمِيدَةِ زموږ دليل دا دی: چي إحصان دغوره صفتونو نوم دی وَأَنَّهَا مَانِعَةٌ مِنَ الزِّنَا عَلٰى مَا ذَكَرْنَا او هغه صفتونه امُحصن له زنا شخه منع کوي، لکه مخکي چي موږ ذکر کړه فَلَا يَكُونُ فِي مَعْنَى الْعِلَّةِ نو ځکه به إحصان د علت په معنىٰ کي نه وي وَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدُوا بِهِ فِي غَيْرِ هٰذِهِ الْحَالَةِ نو داسي سو لکه ګواهانو چي له دې حالت شخه بغير [په بل حالت کي] ګواهي ورکړې وي بِخِلَافِ مَا ذَكَرَ په خلاف د هغه مثال کوم چي امام زفر رَحِمَهُ الله ذکر کړی [چي که دوه ذميان د يو بل داسي ذمي په خلاف...إلخ] لِأَنَّ الْعِتْقَ يَثْبُتُ بِشَهَادَتِهِمَا ځکه چي د هغو ادوو ذميانو] په شهادت سره آزادي ثابتيږي وَإِنَّمَا لَا يَثْبُتُ سَبْقُ التَّارِيخِ لِأَنَّهُ يُنْكِرُهُ الْمُسْلِمُ أَوْ يَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُسْلِمُ لېکن تر تاريخ [يعني تر زنا] مخکي به

آزادي نه ثابتيږي، ځکه چې مسلمان له دې څخه انکار کوي يا په دې سره مسلمان ته ضرر رسيږي **فَإِنْ رَجَعَ شُهُودُ الْإِحْصَانِ** او که د إحصان ګواهان له خپلې ګواهۍ څخه رجوع وکړي **لَا يَضْمَنُونَ عِنْدَنَا** نو زموږ په نيز به نه ضامن کيږي **خِلَافًا لِزُفَرَ** په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله **وَهُوَ فَرْعُ مَا تَقَدَّمَ** او دا د مخکې ذکر سوي اختلاف فرع ده.

**اللغات**: ﴿إِحْصَان﴾ د افعال مصدر دی: آزاد، مسلمان او واده والا کېدل، محصن کېدل (محصنوالی).

﴿وَلَدَتْ﴾ د ضرب ماضي ده: بچی زېږول (پيدا کېدل)، ﴿يُعَقِّبُ﴾ د تفعيل مضارع ده: وروسته راوړل، وروسته ثابتول، د يُعَقِّبُ الرُّجْعَةَ أصلي مطلب دا دی چې: دا طلاق تر ځان وروسته د خاوند لپاره رجعت ثابتوي، ﴿يَتَغَلَّظُ﴾ د تفعّل مضارع ده: سختېدل، ﴿خِصَال﴾ جمع د خُصْلَةٌ ده: خوی، عادت، صفت، ﴿يَتَضَرَّرُ﴾ د تفعّل مضارع ده: ضرر او تکليف رسېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که څلورو ګواهانو د يو سړي په خلاف ګواهي ورکړه چې هغه زنا کړې ده او هغه محصن دی يعني د رجم مستحق دی، لېکن هغه له خپل محصنوالي څخه انکار وکړی، حالانکې د هغه يوه ښځه وه چې له هغې څخه يې يو بچی هم درلودی، نو دا ښځه او هلک د هغه پر إحصان دليل جوړيږي او هغه به رجم کيږي، ځکه کله چې د هغه سره د يو بچي نسب ثابت دی نو ښکاره خبره ده چې هغه به په ښځې دخول کړی وي، ځکه چې له دخول څخه بغير بچی پيدا کېدای نه سي، همدا وجه که هغه سړی اوس خپلې ښځې ته طلاق ورکړي نو د رُجعت مستحق به وي (يعني د هغه پر ښځې به طلاق رجعي واقع کيږي، ځکه چې بچی پيدا سوی دی)، حالانکې تر دخول مخکې د طلاق ورکولو په صورت کې خاوند د رجعت مستحق نه ګرځي، نو دا د دې خبرې دليل دی چې هغه محصن دی، نو ځکه به رجم کيږي.

او که هغه سړی هيڅ بچی نه لري لېکن يوه سړي او دوو ښځو د هغه د محصنوالي ګواهي ورکړي، نو هم به زموږ په نيز هغه رجم کيږي، لېکن د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه نه رجم کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله خو په دې سلسله کې پر خپل أصول قائم دی چې له أموالو څخه بغير په نورو معاملاتو کې د ښځو شهادت (ګواهي) مقبوله نه ده. او څرنګه چې إحصان هم مال نه دی، نو ځکه به په إحصان کې هم د ښځو ګواهي نه قبليږي. او د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې إحصان داسې شرط دی کوم چې د علت په معنیٰ سره دی ځکه چې په محصنوالي سره د زاني جرم درنيږي او د همدې إحصان وطرف ته (د رجم) حکم منسوبيږي، لهذا إحصان د حقيقي علت يعني د زنا په څير سو. او په زنا کې د ښځو شهادت نه قبليږي، لهذا په إحصان کې به هم د هغوی شهادت نه قبليږي. د دې مثال دا دی چې که د يوه ذمي سړي مسلمان غلام زنا وکړه او دوو ذميانو خلکو د دې ذمي مالک په خلاف دا ګواهي ورکړه چې هغه تر زنا مخکې خپل دغه غلام آزاد کړی دی (يعني دغه غلام د آزادۍ په حالت کې زنا کړې ده. لهذا هغه دې سل دُرې ووهل سي، نه پنځوس دُرې) نو دا شهادت

به نه قبلیږي او د دې شهادت په وجه به غلام ته سزا نه ورکول کیږي، ځکه چي دا شهادت هم د علت په معنیٰ سره دی ځکه چي د إحصان په ځير د دې شهادت مقصود هم پر مسلمان غلام د سزا تکمیل (او بشپړتیا) ده (چي د غلام سزا دي درنه سي او هغه دي پوره سل دُرې ووهل سي). نو څرنګه چي دلته د ذمیانو ګواهي نه قبلیږي، همداسي به د إحصان په باره کي د ښځي ګواهي هم نه قبلیږي.

زموږ دلیل دا دی چي إحصان په انسان کي یو ښه صفت او غوره خصلت دی چي مسلمان له زنا څخه منع کوي (لکه مخکي چي په دې هکله پوره بحث وسو)، نو ځکه به دا د علت په معنیٰ سره نه وي (یعني د إحصان شهادت به د زنا د شهادت په درجه کي نه وي)، او کوم شهادت چي هم د إحصان په باره کي وي هغه به قبلیږي، او د دې مثال دا دی لکه یو سړی او دوې ښځي چي د یو چا په خلاف له زنا څخه بغیر د بل حالت ګواهي ورکړي، مثلاً یو سړی او دوې ښځي وایي چي هغه د فلانۍ ښځي سره نکاح کړې ده نو د دوی ګواهي به قبلیږي، لهذا څرنګه چي له زنا څخه بغیر په بل حالت کي د ښځو شهادت قبلیږي، همداسي به د إحصان په باره کي هم د ښځو شهادت قبلیږي. (أثمار الهدایه ج:۶، ص:۲۹۸)

**بخلاف ما ذكر إلخ:** په دې سره امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي دلته د دوو ذمیانو شهادت پر دوه قسمه دی: ① یو دا چي د ذمیانو په شهادت سره د غلام آزادي ثابتول، نو دا ثابتیږي. ② او بل دا چي تر زنا مخکي د غلام آزادول، دا نه ثابتیږي، ځکه چي مسلمان غلام له دې څخه انکار کوي. او په دې سره مسلمان ته نقصان رسیږي (چي د هغه سزا به کامله او بشپړه وګرځي)، او که چیري بیا هم موږ د دې ذمیانو په شهادت سره تر زنا مخکي د غلام آزادول ثابت کړو، نو د مسلمان په خلاف به د کافر شهادت معتبر او مقبول وګرځي، کوم چي صحیح نه دي، نو په دې وجه به دا شهادت نه قبلیږي.

**فإن رجع إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که ګواهانو د یو سړي پر محصنوالي ګواهي ورکړه چي د هغه په وجه سړی رجم کړی سو، وروسته ګواهانو له خپل شهادت څخه رجوع وکړه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر ګواهانو د دیّت ضمان واجب وي، ځکه چي د هغه په نېز إحصان د علت په معنیٰ سره نه دی (یعني د إحصان شهادت د زنا د شهادت په درجه کي نه دی، او د رجم کېدلو سبب نه دی)، بلکي هغه فقط د شرط په درجه کي دی.

او څرنګه چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز إحصان د علت په معنیٰ سره دی (یعني د إحصان شهادت د زنا په درجه کي دی او د رجم کېدلو سبب دی)، نو ځکه به د رجوع کولو په صورت کي پر ګواهانو د دیّت ضمان واجب وي. والله أعلم علمهٗ أتم



# بَابُ حَدِّ الشُّرْبِ

(دا) باب د شرابو چيښنلو د حدّ (په بيان کي) دی

**تشريح**: د زنا د حدّ بيان ځکه د شرابو د حدّ له بيان څخه مخکي ذکر سوی دی چي د زنا سزا د شرابو تر سزا زياته سخته ده، او د زنا په حد کي نفس قتل کيږي او سنګساريږي، لېکن د شرابو په حدّ کي نفس ته سزا او تکليف ورکول کيږي، نو په دې وجه د زنا د حدّ مسئلې مخکي بيان سوې. او اوس د شرابو د حدّ مسئلې بيانيږي.

## د شرابو د ګواهۍ ورکولو يا د شرابي د نيول کېدلو په صورت کي د حدّ بيان

**وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ** او څوک چي شراب وچيښي **فَأُخِذَ وَرِيحُهَا مَوْجُودَةٌ** او [بيا] هغه ونيول سي په داسي حال کي چي [په خوله کي يې] د شرابو بوی موجود وي **أَوْ جَاءُوا بِهِ سَكْرَانَ** يا خلګ هغه د نشه په حال کي راولي **فَشَهِدَ الشُّهُودُ عَلَيْهِ بِذَلِكَ** او ګواهان د هغه د شراب چيښنلو ګواهي ورکړي **فَعَلَيْهِ الْحَدُّ** نو پر هغه به حدّ [واجب] وي **وَكَذَلِكَ إِذَا أَقَرَّ وَرِيحُهَا مَوْجُودَةٌ** او همدارنګه که هغه اقرار وکړي په داسي حال کي چي د شرابو بوی موجود وي [نو هم به حدّ پر جاري کيږي] **لِأَنَّ جِنَايَةَ الشُّرْبِ قَدْ ظَهَرَتْ** ځکه چي د شراب چيښنلو جرم ښکاره سو **وَلَمْ يَتَقَادَمِ الْعَهْدُ** او مودت [هم] پخوانی سوی نه دی [يعني وخت هم ډېر تېر سوی نه دی] **وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ** عليه السلام ❶: **مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ فَاجْلِدُوهُ** او أصل په دې سلسله کي د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی: څوک چي شراب وچيښي نو تاسي هغه ته د دُرو سزا ورکړئ! او که چيري هغه بيا دا کار وکړي نو بيا د دُرو سزا ورکړئ! **وَإِنْ أَقَرَّ بَعْدَ ذَهَابِ رَائِحَتِهَا** او که د شرابو د بوی تر ختمېدلو وروسته هغه [د شراب چيښنلو] اقرار وکړي **لَمْ يُحَدَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** نو د شيخينو رحمهما الله په نيز به پر هغه حدّ نه جاري کيږي **وَقَالَ مُحَمَّدٌ** ❷ **: يُحَدُّ** او امام محمد رحمه الله فرمايي: چي پر هغه به حدّ جاري کيږي **وَكَذَلِكَ إِذَا شَهِدُوا عَلَيْهِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ رِيحُهَا** او همدارنګه که تر بوی ختمېدلو وروسته

❶ تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ۴۴۸۲.

❷ القول الراجح: قول محمد رحمه الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۸۰)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:۱، ص:۶۱۱)، وكذا في الفتح (ج:۵، ص:۷۸). [القول الراجح ج:۱، ص: ۴۵۰]

خلک د هغه په خلاف ګواهي ورکړي لَمْ يُحَدَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو اهم | به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه حدّ نه جاري کيږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يُحَدُّ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي حد به پر جاري کيږي فَالتَّقَادُمُ يَمْنَعُ قَبُولَ الشَّهَادَةِ بِالِاتِّفَاقِ [حاصل دا چي] تقادم بالاتفاق د شهادت قبوليت منع کوي غَيْرَ أَنَّهُ مُقَدَّرٌ بِالزَّمَانِ عِنْدَهُ خو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز تقام په زمانه [يوې مياشتي] سره اندازه سوی دی اعْتِبَارًا بِحَدِّ الزِّنَا د زنا پر حدّ باندي په قياس کولو سره وَهَذَا لِأَنَّ التَّأْخِيرَ يَتَحَقَّقُ بِمُضِيِّ الزَّمَانِ او دا ځکه چي د زمانې [يوې مياشتي] په تېرېدلو سره تأخير [او تقادم] ثابتيږي وَالرَّائِحَةُ قَدْ تَكُونُ مِنْ غَيْرِهِ او بوی ځيني وخت له شرابو څخه بغير [د بل شي] وي كَمَا قِيلَ لکه څرنګه چي [په دې شعر کي] ويل سوي دي: "يَقُولُونَ لِي انْكَهْ شَرِبْتَ مُدَامَةً خلک ما ته وايي چي ته خپل خوله بوی کړه! تا شراب چيښلي دي فَقُلْتُ لَهُمْ لَا بَلْ أَكَلْتُ السَّفَرْجَلَا" لېکن زه هغو ته ووايم چي ما بهي خوړلی دی وَعِنْدَهُمَا يُقَدَّرُ بِزَوَالِ الرَّائِحَةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا تقادم د بوی په ختمېدلو سره اندازه سوی دی لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ[2]: فَإِنْ وَجَدْتُمْ رَائِحَةَ الْخَمْرِ فَاجْلِدُوهُ ځکه چي حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په دې باره کي فرمايلي دي: که چيري تاسي [په شرابي کي] د شرابو بوی پيدا کړی نو هغه په دُرو ووهئ! وَلِأَنَّ قِيَامَ الْأَثَرِ مِنْ أَقْوَى دَلَالَةٍ عَلَى الشُّرْبِ او ځکه چي د بوی موجودېل د چيښلو تر ټولو قوي دليل دی وَإِنَّمَا يُصَارُ إِلَى التَّقْدِيرِ بِالزَّمَانِ عِنْدَ تَعَذُّرِ اعْتِبَارِهِ او په زمانې سره [د تقادم] اندازه کولو ته هغه وخت رجوع کيږي کله چي د أثر اعتبار کول ناممکن وي [او دلته د أثر اعتبار کول ممکن دی] وَالتَّمْيِيزُ بَيْنَ الرَّوَائِحِ مُمْكِنٌ لِلْمُسْتَدِلِّ او د پېژندونکي [تجربه کار] کس لپاره د بوی تر مينځ توپير کول ممکن دي وَإِنَّمَا تَشْتَبِهُ عَلَى الْجُهَّالِ او بوی [فقط] پر ناپوهانو مشتبه کيږي وَأَمَّا الْإِقْرَارُ فَالتَّقَادُمُ لَا يُبْطِلُهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او کوم چي اقرار دی نو تقادم هغه نه باطلوي، امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز كَمَا فِي حَدِّ الزِّنَا لکه څرنګه چي په حدّ زنا کي [اهم دغه حکم دی] عَلَى مَا مَرَّ تَقْرِيرُهُ لکه مخکي چي د دې بيان تېر سو وَعِنْدَهُمَا لَا يُقَامُ الْحَدُّ إِلَّا عِنْدَ قِيَامِ الرَّائِحَةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به [فقط] د بوی د موجودېدلو په وخت کي حدّ جاري کيږي لِأَنَّ حَدَّ الشُّرْبِ ثَبَتَ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ ځکه چي د شراب چيښلو حدّ د صحابه وو په اجماع سره ثابت دی وَلَا إِجْمَاعَ إِلَّا بِرَأْيِ ابْنِ مَسْعُودٍ

---

[2] تخريج: رواه البخاري بمعناه، ص:٨٩٧، رقم الحديث:٥٠٠١. ومصنف ابن أبي شيبة ج:٥، ص:٥٢٠، رقم:٢٨٦٢٠.

او دابن مسعود رضي الله عنه له رايي څخه بغير اجماع کېدای نه سي وَقَدْ شَرَطَ قِيَامَ الرَّائِحَةِ او ابن مسعود رضي الله عنه د بوی موجودېدل شرط ګرځولي دي عَلىٰ مَا رَوَيْنَا لکه اوس اچي موږ اد هغه قول ارا نقل کړی.

**اللغات**: ﴿أُخِذَ﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: نيول (ګرفتاره کول). ﴿سَكْرَان﴾ نشه سړی (هغه کس چې د نشې په حالت کي وي). ﴿لَمْ يَتَقَادَمْ﴾ د تفاعل له باب څخه د جحد صيغه ده: قديم کېدل. پخوانی کېدل (ډېر وخت تېرېدل). ﴿إِنْكَهْ﴾ د فتح له باب څخه د أمرِ حاضر صيغه ده: خوله بوی کول (د خولې بوی کتل). دا له نَكْهَةٌ څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده "د خولې بوی". ﴿سَفَرْجَل﴾ بُهي. بوهي. سېب ته ورته مشهوره مېوه ده. ﴿مُدَامَة﴾ دانګورو شراب (انګوري شراب). ﴿تَمْيِيز﴾ د تفعيل مصدر دی: فرق او توپير کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی شراب وچيښي او بيا په داسي حالت کي ونيول سي چي د هغه په خوله کي د شرابو بوی موجود وي. يا يو څو خلک شرابي د نشې په حالت کي ونيسي او قاضي ته يې راولي او يو څو خلک د هغه د شرابو پر چيښلو ګواهي هم ورکړي. يا شرابي په خپله د شراب چيښلو اقرار وکړي او د هغه په خوله کي بوی موجود وي. نو پر هغه به د شراب چيښلو حدّ (حدُ الشّرب) جاري کيږي. ځکه چي په شهادت (ګواهی) يا اقرار سره د هغه جرم او جنايت ښکاره سو او په خوله کي د بوی پاتېدل د دې خبره علامت دی چي هغه په دې نژدې وخت کي شراب چيښلي دي نو ځکه به پر هغه حدّ جاري کيږي. او په دې باره کي أصل او بنياد دا حديث دی: "من شرب الخمر فأجلدوه...إلخ".

**فإن أقرّ إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که د شرابي د خولې بوی ختم سي او تر دې وروسته هغه د شراب چيښلو اقرار وکړي. يا تر بوی ختمېدلو وروسته يو څوک د هغه د شرابو پر چيښلو ګواهي وکړي. نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به پر هغه حدّ نه جاري کيږي. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله نيز به د اقرار او شهادت په دواړو صورتونو کي به پر هغه حدّ جاري کيږي. د دې اختلاف حاصل دا دی چي د زمانې تقادم (يعني ډېر وخت تېرېدل) خو بالاتفاق د شهادت له قبوليت څخه مانع دی. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د تقادم مقدار يوه مياشته ده. او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د بوی زائلېدل دي. امام محمد رَحِمَهُ الله د حدّ الشرب تقادم د حدّ الزنا پر تقادم قياس کړی دی[1]. ځکه چي په حدّ الزنا کي تقادم په يوې مياشتي سره اندازه سوی دی. نو په يوې مياشتي سره به تأخير او تقادم ثابتيږي. پاته سوه د بوی مسئله. نو کله نا کله د بُهي. سېب. انګور او داسي نورو په خوړلو سره هم له خولې څخه د

---

[1] **يادونه**: د تقادم د معنیٰ. مقدار او داسي نورو په هکله پوره تفصيل تر دې باب مخکي د "باب الشهادة على الزنا والرجوع عنها" د شروع په عبارت کي ذکر سو. فلا نعيدها هنا. (أحقر حبيب الرحمن مدني)

شرابو بوی راځي، لکه د عبارت په شعر کي چي دې خبري ته اشاره سوې ده چي د بهي په خوړلو سره خلګ د شاعر له خولې څخه د شرابو بوی محسوسوی، لهذا بوی به د تقادم معیار او مقدار نه ټاکل کیږي.

د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي اقرار او شهادت دواړه هغه وخت معتبر ګرځي، کله چي د شرابي په خوله کي د شرابو بوی موجود وي، ځکه چي حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فقط د بوی اعتبار کړی دی او داسي يې فرمايلي دي "فإن وجدتم رائحة الخمر فاجلدوه" (يعني که چيري تاسي د شرابي له خولې څخه د شرابو بوی محسوس کړی، نو بيا هغه په دُرو سره ووهئ). او بل دا چي حدّ الشرب د صحابه وو په اجماع سره ثابت دی او د ابن مسعود په څير د غټ فقيه صحابي د رايي له شموليت څخه بغير اجماع ثابتېدای نه سي. او څرنګه چي د ابن مسعود په نېز د بوی موجودېدل د حدّ جاري کولو لپاره شرط دي، نو ځکه به زموږ په نېز هم د حدّ جاري کولو لپاره بوی شرط وي.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چي أثر يعني د بوی موجودېدل د شراب چیښلو په هکله تر ټولو زيات قوي دليل دی، او په وخت او زمانه سره يو شی هغه وخت اندازه کيږي او هغه وخت زمان ته رجوع کيږي کله چي پر أثر عمل کول او د هغه اعتبار کول ناممکن وي. او څرنګه چي په دې مسئله کي تقادم د شرابي د خولې په بوی سره اندازه کول ممکن دي. نو ځکه به د بوی په ذريعه تقادم اندازه کيږي او د دې لپاره به يو بل مودت نه ټاکل کيږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله دا خبره چي له شرابو څخه بغير له بهي. انګور او داسي نورو څخه هم بوی راځي. نو د دې جواب دا دی چي پېژندونکی او تجربه کاره کس (يعني هغه کس چي د شرابو بوی پېژني هغه) په آساني سره د شرابو او د بهي د بوی په مينځ کي فرق کولای سي حتیٰ چي يو ساده سړی هم په خپل قوت شامه سره د شرابو او د بلي مېوې بوی سره جلا کولای سي. نو دا خبره صحيح نه ده. لهذا تقادم به د خولې په بوی سره اندازه کيږي او تر څو چي د شرابو بوی موجود وي تر هغه وخته به حدّ جاري کيږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز تقادم له شهادت څخه مانع دی. لېکن له اقرار څخه مانع نه دی. نو که شرابي تر يوه کال وروسته هم د شراب چیښلو اقرار وکړي. نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغه حدّ جاري کيږي. د تېر باب په شروع کي په دې عبارت: بِخِلَافِ الإِقْرَارِ. لِأَنَّ الإِنْسَانَ لَا يُعَادِيْ نَفْسَه سره د دې خبري تفصيل بيان سو.

## د شرابو د ګواهۍ ورکولو يا د شرابي د نيول کېدلو په صورت کي د حدّ بيان

فَإِنْ أَخَذَهُ الشُّهُودُ وَرِيحُهَا يُوجَدُ مِنْهُ أَوْ سَكْرَانُ او که ګواهانو شرابي په داسي حال کي ونيوی چي له هغه شخصه د شرابو بوی راتلی يا هغه نشه وو فَذَهَبُوا بِهِ مِنْ مِصْرٍ إِلَى مِصْرٍ فِيهِ الْإِمَامُ بيا ګواهانو هغه له اخپل ا ښار شخصه د إمام ښار ته بوتلی فَانْقَطَعَ ذَٰلِكَ قَبْلَ أَنْ يَنْتَهُوا بِهِ او [د إمام ښار ته] د شرابي تر رسولو مخکي د شرابو بوی ختم سو حُدَّ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د ټولو په قول کي به پر هغه حدّ جاري کيږي لِأَنَّ هٰذَا عُذْرٌ كَبُعْدِ الْمَسَافَةِ فِي حَدِّ الزِّنَا ځکه چي دا يو عذر دی لکه د زنا د حدّ په سلسله کي چي د مسافې ليري والی ايو عذر دی ا وَالشَّاهِدُ لَا يُتَّهَمُ فِي مِثْلِهِ او په داسي معامله کي [په تأخير کولو سره] ګواه نه متهم کيږي وَمَنْ سَكِرَ مِنَ النَّبِيذِ او کوم کس چي په نبيذ سره نشه سي حُدَّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي لِمَا رُوِيَ [1] أَنَّ عُمَرَ أَقَامَ الْحَدَّ عَلَىٰ أَعْرَابِيٍّ سَكِرَ مِنَ النَّبِيذِ ځکه روايت سوی دی چي حضرت عمر ﵁ پر داسي کوچي باندي حدّ جاري کړی کوم چي په نبيذ سره نشه سوی وو وَسَنُبَيِّنُ الْكَلَامَ فِي حَدِّ السُّكْرِ وَمِقْدَارِ حَدِّهِ الْمُسْتَحَقِّ عَلَيْهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ او د نشې اندازه او په نشه سره د مستحق حدّ مقدار به انشاء الله موږ [څه وروسته] بيان کړو وَلَا حَدَّ عَلَىٰ مَنْ وُجِدَ مِنْهُ رَائِحَةُ الْخَمْرِ أَوْ تَقَيَّأَهَا او حدّ نسته پر هغه کس باندي چي له هغه شخصه د شرابو بوی را سي، يا هغه کس چي شراب قی کړي لِأَنَّ الرَّائِحَةَ مُحْتَمِلَةٌ ځکه چي په بوی کي احتمال سته وَكَذَا الشُّرْبُ قَدْ يَقَعُ عَنْ إِكْرَاهٍ أَوِ اضْطِرَارٍ همدارنګه چيښل هم ځيني وخت د جبر او مجبورۍ په وجه وي وَلَا يُحَدُّ السَّكْرَانُ حَتّٰى يُعْلَمَ أَنَّهُ سَكِرَ مِنَ النَّبِيذِ وَشَرِبَهُ طَوْعًا او پر نشه سړي به [تر هغه وخته] حدّ نه جاري کيږي تر دې چي دا معلومه سي چي هغه په نبيذ سره نشه سوی دی او دا چي هغه په خپله رضا نبيذ چيښلي دي لِأَنَّ السُّكْرَ مِنَ الْمُبَاحِ لَا يُوجِبُ الْحَدَّ كَالْبَنْجِ وَلَبَنِ الرِّمَاكِ ځکه چي په روا شي سره پيدا سوې نشه حدّ نه واجبوي لکه بنګي او د آسپي شيدې وَكَذَا شُرْبُ الْمُكْرَهِ لَا يُوجِبُ الْحَدَّ او همدارنګه د مجبور کړی سوي کس شراب چيښل هم [پر هغه] حدّ نه واجبوي وَلَا يُحَدُّ حَتّٰى يَزُولَ عَنْهُ السُّكْرُ او پر شرابي به [تر هغه وخته] حدّ نه جاري کيږي تر دې چي له هغه شخصه نشه ليري سي تَحْصِيلًا لِمَقْصُودِ الْإِنْزِجَارِ د دې لپاره چي د منع کېدلو [او ډېرولو] مقصود حاصل سي وَحَدُّ الْخَمْرِ وَالسُّكْرِ فِي الْحُرِّ ثَمَانُونَ سَوْطًا او په آزاد کس کي د شرابو

---

[1] تخريج: رواه الدار القطني مرفوعاً في السنن رقم الحديث: ٤٧٥٨

او د نشې حدّ اتیا [۸۰] دُرې دی لِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ځکه چې پر همدغه مقدار د صحابه وو اِجماع ده يُفَرَّقُ عَلَىٰ بَدَنِهِ كَمَا فِي حَدِّ الزِّنَا او د حدِّ زنا په شیر به د دې حدّ دُرې هم د هغه د بدن پر جلا جلا حصو وهل کیږي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه مخکې چې [د زنا په حدّ کې د دې بیان] تېر سو ثُمَّ يُجَرَّدُ فِي الْمَشْهُورِ مِنَ الرِّوَايَةِ او د مشهور روایت مطابق به د هغه بدن لڅول کیږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ لَا يُجَرَّدُ إِظْهَارًا لِلتَّخْفِيفِ [لیکن] له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روایت سوی دی: چې د تخفیف څرګندولو لپاره به هغه نه لڅول کیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَرِدْ بِهِ نَصٌّ ځکه چې په دې باره کې هیڅ نص وارد سوی نه دی وَوَجْهُ الْمَشْهُورِ: أَنَّا أَظْهَرْنَا التَّخْفِيفَ مَرَّةً او د مشهور روایت دلیل دا دی چې موږ یو وار تخفیف څرګند کړی [چې سل دُرې به نه وهل کیږي، بلکې اتیا دُرې به وهل کیږي] فَلَا يُعْتَبَرُ ثَانِيًا لهذا دویم وار تخفیف به معتبر نه وي وَإِنْ كَانَ عَبْدًا او که هغه [شرابي یا نشه یي] غلام وي فَحَدُّهُ أَرْبَعُونَ سَوْطًا نو د هغه حدّ څلوېښت دُرې دی لِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ ځکه چې غلامتوب نیمونکی دی عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه مخکې چې [دا مسئله] معلومه سوه وَمَنْ أَقَرَّ بِشُرْبِ الْخَمْرِ أَوِ السُّكْرِ ثُمَّ رَجَعَ او څوک چې د شراب چیښلو یا د نشې کولو اقرار وکړي بیا [تر حدّ جاري کېدلو مخکې] رجوع وکړي لَمْ يُحَدَّ نو حدّ به نه پر جاري کیږي لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّ اللهِ تَعَالَىٰ ځکه چې دا حدّ خالص د الله تعالیٰ حق دی.

**اللغات**: ﴿سُكْر﴾ په دې لفظ کې څلور لغات دي: سَكْر. سَكَر. سُكْر. سُكُر. په دې ټولو لغاتو سره دا لفظ مستعمل دی، د سَمع د باب اسمِ مصدر دی: نشه. نشه کېدل. ﴿طَوْعًا﴾ په رضا. ﴿بَنْج﴾ بنګې. د یو مشهوره بوټې دانو ته وایي. ﴿رِمَاك﴾ آسپه (د آس مؤنث)، ماده آس. ﴿مُنَصِّف﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: نیمونکی (نیمایي کونکی).

**تشریح**: په دې عبارت کې ټوله پنځه مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... که ګواهانو یو شرابي په داسې حال کې ونیوی چې هغه بې هوښه وو یا د هغه له خولې څخه د شرابو بوی راتلی، او بیا ګواهانو هغه له خپل ښار څخه د اِمام ښار ته راوستی. لیکن اِمام ته له رسېدلو څخه مخکې د هغه د خولې بوی ختم سو، نو هم به د ټولو فقهاؤ په نیز پر هغه حدّ جاري کیږي: ځکه چې د اِمام ښار ته د هغه رسول یو عذر دی، او عذر حدّ نه ساقطوي. همدا وجه ده چې د عذر ګواه په تقادم او تأخیر کولو سره نه متهم کیږي (لکه مخکې چې په دې هکله بیان وسو).

(۲)... که چیري یو څوک نشه لرونکي نبیذ وڅیښي او د هغه په وجه نشه سي، نو پر هغه به هم حدّ جاري کیږي؛ ځکه چي حضرت عمر رضي الله عنه پر یوه اعرابي په همدې وجه "حدّ الشرب" جاري کړی چي هغه نشه لرونکي نبیذ وڅیښل او د هغه په وجه نشه سو. دا د دې خبري دلیل دی چي په نبیذو سره د نشه کېدلو په صورت کي به پر څیښونکي حدّ جاري کیږي.

(۳)... که د یو چا له خولې څخه فقط د شرابو راتلي، یا یو چا شراب قی کړل، نو پر هغه به حدّ نه جاري کیږي ترڅو چي په یقیني توګه پر هغه د شرابو څیښل ثابت نه سي: ځکه چي په دې بوی کي ډېر احتمالات سته چي کېدای سي دا به د شرابو بوی نه وي بلکي د کشمشو یا داسي بل شی به بوی وي. همدارنګه دا هم کېدای سي چي هغه به په رضاء او رغبت سره شراب نه وي څیښلي. بلکي بل چا به په زوره په څیښلي وي. لهذا ترڅو چي د شرابو او د شرابو څیښلو په هکله پوره ثبوت ترلاسه نه کړی سي، تر هغه وخت به هغه حدّ نه جاري کیږي. ځکه کله چي انسان په یو داسي مباح (روا) شي سره نشه سي چي هغه د شرابو سره په هیڅ ډول هیڅ واسطه نه لري. نو د هغه په استعمالو سره به پر انسان حدّ نه جاري کیږي. مثلاً که یو څوک بنګي وخوري یا د آسپي (ماده آس) شیدې وڅیښي او د هغو په وجه نشه سي، نو څرنګه چي دا شیان مباح دي، نو ځکه به پر هغه حدّ نه جاري کیږي.

(۴)... ترڅو چي له شرابي او نشه یي کس څخه په پوره توګه نشه ختمه نه سي تر هغه وخت پوري به حدّ نه پر جاري کیږي؛ ځکه چي د نشې په حالت کي حدّ جاري کول هیڅ فایده نه کوي (ځکه نشه سړی په پوره توګه په درد، تکلیف او تنبیه نه پوهیږي). نو د حدّ جاري کولو چي کوم مقصد دی (یعني د آینده لپاره له دې کار څخه د شرابي منع کېدل) هغه به حاصل نه سي. نو ځکه به د نشې په حالت کي پر شرابي حدّ نه جاري کیږي.

## ﴿ د شرابو د حدّ اندازه ﴾

(۵)... وحدّ الخمر والسکر الخ: که آزاد سړی شراب وڅیښي، یا یوه بله نشه وکړي او د شرابي په څېر د هغه عقل بې ځایه او مختل سي، نو د هغه سزا اتیا (۸۰) دُرې ده؛ ځکه چي د "حدّ الشرب" په باره کي همدومره مقدار سزا د صحابه په إجماع سره ثابته ده. اوس پاته سوه دا خبره چي د جامو د پاسه به هغه په دُرو سره وهل کیږي او که جامې به ځني کښل کیږي؟ نو په دې سلسله کي دوه روایتونه دي: ① مشهور روایت دا دی چي جامې به ځني کښل کیږي او پر ټول بدن به سزا ورکول کیږي. ② دویم روایت کوم چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی، دا دی چي له هغه څخه به جامې نه کښل کیږي د دې لپاره چي د هغه په سزا کي څه تخفیف راسي او هغه ته کم درد او تکلیف ورسیږي.

لېکن د مشهور روایت دلیل دا دی چې د هغه په سزا کې د سلو (۱۰۰) دُرو پر ځای اتیا دُرې ټاکل سوې دي، نو دا په خپله تخیف دی، نو ځکه به د هغه په سزا کې نور تخفیف نه کیږي بلکې د وهلو په وخت کې به جامې ځنې کښل کیږي.

او د حدّ زنا په څیر به په دې حدّ کې هم شرابي د بدن پر مختلفه حصه او پر جلا جلا اندامونو وهل کیږي.

وإن كان عبدًا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که شرابي غلام وي، نو د هغه حدّ څلوېښت دُرې دی: ځکه چې رقیت د نعمت په څیر عقوبت هم نیمایي کوي او د غلام لپاره به د آزاد سړي نیمه سزا وي.

او که یو څوک پر خپل ځان د شراب چیښلو یا د نشې کولو اقرار وکړي. او بیا تر حدّ جاري کېدلو مخکې هغه له خپل اقرار څخه رجوع وکړي، نو پر هغه به حدّ نه جاري کیږي، ځکه چې حدّ خالص د الله تعالیٰ حق دی نو له هغه څخه د رجوع کولو په صورت کې د راجع هیڅ مُکذّب نسته (چې د هغه د تکذیب دعویٰ وکړي).

## د شرابو په حدّ کې د ګواهۍ د نصاب بیان

وَيَثْبُتُ الشُّرْبُ بِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ وَيَثْبُتُ بِالْإِقْرَارِ مَرَّةً وَاحِدَةً او [د شرابو] چیښل د دوو ګواهانو په ګواهۍ سره یا په یوه وار اقرار کولو سره ثابتیږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁: أَنَّهُ يُشْتَرَطُ الْإِقْرَارُ مَرَّتَيْنِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی: چې هغه دوه واره اقرار شرط کړی دی وَهُوَ نَظِيرُ الِاخْتِلَافِ فِي السَّرِقَةِ او دا اختلاف د غلا د اختلاف سره مشابه دی [یعني د غلام په ثبوت کې هم دغه اختلاف دی] وَسَنُبَيِّنُهَا هُنَاكَ إِنْ شَاءَ اللهُ او دا مسئله به مونږ انشاء الله هلته [په کتاب السرقه کې] بیان کړو وَلَا يُقْبَلُ فِيهِ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ او د شرابو په حدّ کې به د خلکو سره د ښځو ګواهي نه قبلیږي لِأَنَّ فِيهَا شُبْهَةَ الْبَدَلِيَّةِ ځکه چې د ښځو په ګواهۍ کې د بدلیّت شبهه سته وَتُهْمَةَ الضَّلَالِ وَالنِّسْيَانِ او [د ښځو په ګواهۍ کې] د خطاوتلو او هېرولو تهمت سته وَالسَّكْرَانُ الَّذِي يُحَدُّ هُوَ الَّذِي لَا يَعْقِلُ مَنْطِقًا لَا قَلِيلًا وَلَا كَثِيرًا او پر کوم نشه کس چې حدّ جاري کیږي هغه [دومره نشه] کس دی چې په خبرو نه پوهیږي نه لږ او نه زیات وَلَا يَعْقِلُ الرَّجُلَ مِنَ الْمَرْأَةِ او چې هغه د سړي او ښځې په مینځ کې توپیر نه سي کولای قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ناتوانه بنده (صاحب د هدایې) فرمایي: دا قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی وَقَالَا: هُوَ الَّذِي يَهْذِي وَيَخْتَلِطُ كَلَامُهُ او

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ‌الله: ولو أقر بشرب الخمر مرة واحدة حدّ في قول أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَاالله (خانية ج:۴، ص:۴۱۵)، وكذا في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۸۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۰]

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د حدّ مستحق سکران هغه کس دی کوم چي عبث اچتي اخبري کوي او د هغه کلام ګډوډ وي لِأَنَّهُ هُوَ السَّكْرَانُ فِي الْعُرْفِ ځکه چي په عرف کي همدغه کس ته سکران وايي وَإِلَيْهِ مَالَ أَكْثَرُ الْمَشَايِخِ او همدې ته زياتره مشائخو ميلان کړی دی وَلَهُ: أَنَّهُ يُؤْخَذُ فِي أَسْبَابِ الْحُدُودِ بِأَقْصَاهَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي اد حدّ جاري کولو په هکله ا د حدونو په اسبابو کي د آخري درجې سبب اختيـاربږي ااو په آخري درجه عمل کيږي ا دَرْءًا لِلْحَدِّ د دې لپاره چي حدّ دفع کړی سي وَنِهَايَةُ السُّكْرِ أَنْ يَغْلِبَ السُّرُورُ عَلَى الْعَقْلِ فَيَسْلُبُهُ التَّمْيِيزَ بَيْنَ شَيْءٍ وَشَيْءٍ او د نشې آخري درجه دا ده چي مستي [نشه] پر عقل دومره غالبه سي چي له نشه يي ځخه د دوو شيانو تر مينځ توپير کول سلب کړي وَمَا دُونَ ذَٰلِكَ لَا يَعْرَى عَنْ شُبْهَةِ الصَّحْوِ او کوم مقدار نشه چي له دې ځخه کمه وي هغه د هوښ له شبهې ځخه خالي نه وي وَالْمُعْتَبَرُ فِي الْقَدَحِ الْمُسْكِرِ فِي حَقِّ الْحُرْمَةِ مَا قَالَاهُ او په نشه کونکې پياله کي د حرمت په حواله سره د نشې دومره مقدار معتبر دی کوم چي صاحبينو ذکر کړي دی ايعني د حرامېدلو په حق کي هغه پياله معتبره ده چي په هغه سره [انسان] دومره نشه سي چي عبث او چټي خبري شروع کړي او کلام يې ګډوډ سي ا بِالْإِجْمَاعِ أَخْذًا بِالِاحْتِيَاطِ دا حکم [زموږ د امامانو ا په اتفاق سره دی، په احتياط باندي د عمل کول لپاره وَالشَّافِعِيُّ يَعْتَبِرُ ظُهُورَ أَثَرِهِ فِي مِشْيَتِهِ وَحَرَكَاتِهِ وَأَطْرَافِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د هغه په تګ [چال] او د هغه په حرکت او أطرافو [الاس او پښو] کي د نشې د أثر ښکاره کېدلو اعتبار کوي وَهَذَا مِمَّا يَتَفَاوَتُ [ليکن] دا له تفاوت کونکو شيانو ځخه دي ايعني په چال، حرکت او أطرافو کي د نشې په أثر ښکاره کېدلو کي د خلکو په اعتبار سره ډېر تفاوت وي...ا فَلَا مَعْنَى لِاعْتِبَارِهِ لهذا د هغه د معتبر ګرځولو لپاره هيڅ صورت نسته وَلَا يُحَدُّ السَّكْرَانُ بِإِقْرَارِهِ عَلَى نَفْسِهِ او د خپل ځان په خلاف د اقرار کولو په صورت کي به پر نشه سړي حدّ نه جاري کيږي لِزِيَادَةِ احْتِمَالِ الْكَذِبِ فِي إِقْرَارِهِ ځکه چي د نشه سړي په اقرار کي د درواغو احتمال زيات وي فَيُحْتَالُ لِدَرْئِهِ نو له هغه ځخه د "حدّ" دفع کولو لپاره به حيله کيږي لِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّ اللهِ تَعَالَى ځکه چي دا حدّ خالص د الله تعالیٰ حق دی بِخِلَافِ حَدِّ الْقَذْفِ په خلاف د حدّ قذف لِأَنَّ فِيهِ حَقَّ الْعَبْدِ ځکه چي په هغه کي د بنده حق سته وَالسَّكْرَانُ فِيهِ كَالصَّاحِي عُقُوبَةً عَلَيْهِ او د بنده په حق کي نشه سړی د سزا په حواله سره د هوښ مند سړي په شير دی ايعني په حق العبد کي د سزا په حواله سره دا دواړه کسان برابر دي ا كَمَا فِي سَائِرِ تَصَرُّفَاتِهِ لکه د هغه په ټولو تصرفاتو کي [چي هم دغه حکم دی ا وَلَوِ ارْتَدَّ السَّكْرَانُ او که نشه سړی مرتد سي لَا تَبِينُ مِنْهُ

امْرَأَتُهُ نو د هغه ښځه به له هغه شخصه نه بائنه کيږي لِأَنَّ الْكُفْرَ مِنْ بَابِ الْاِعْتِقَادِ ځکه چې کفر د اعتقاد له باب څخه دی [يعني کفر د عقيدې سره تعلق لري] فَلَا يَتَحَقَّقُ مَعَ السُّكْرِ نو ځکه به د نشې سره کفر نه ثابتيږي [ځکه چې د عقيدې معنیٰ ده باور او يقين لرل، او نشه سړی په ځان خبر نه وي، نو باور او يقين به څنګه وکړي!] وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَفِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ* تَكُونُ رِدَّةً او په ظاهر روايت کې هغه ارتداد شمارل کيږي [يعني په ظاهر روايت کې دا نشه سړی مرتد ګرځي].

**اللغات:** ﴿نَظِيرٌ﴾ مثال، مشابه، ﴿ضَلَالٌ﴾ ګمراه کېدل، لاره ورکول، تېروتل، خطاوتل (غلطېدل).

﴿سَكْرَانُ﴾ (د کاف په سکون سره): نشه سړی، بې هوښه، ﴿يَهْذِيْ﴾ د ضرب مضارع ده: پالتو ګډېدل، عبث او چټي خبري کول، ﴿يَخْتَلِطُ﴾ د افتعال مضارع: ګډول، ګډېدل، (مراد ځنې ګډې وډې خبري کول دي)، ﴿دَرْءٌ﴾ د فتح مصدر دی: ليري کول، دفع کول، ﴿سُرُوْرٌ﴾ مستي، نشه، خمار، خوشالي، ﴿صَحْوٌ﴾ هوښ مندي، پرسد تيا، هغه حالت چې د انسان هوښ او حواس پر ځای وي، ﴿قَدَحٌ﴾ پياله (د شراب او داسې نورو مشروباتو د چيښلو پېمانه).

**تشريح:** په دې عبارت کې شپږ مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که چيري دوه ګواهان ديو چا په خلاف د شراب چيښلو ګواهي ورکړي يا شرابي په خپله د نشې له ختمېدلو څخه وروسته (د هوښ په حالت) کې د شراب چيښلو اقرار وکړي او فقط يو وار اقرار وکړي، نو په دې سره به حدّ ثابتيږي (او پر هغه به حدّ جاري کيږي)، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دوه واره اقرار کول شرط دي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا شرط د ګواهانو پر دوه کېدلو باندې قياس کړی دی چې د هغه تفصيل به انشاء الله په بابُ السّرقه کې راسي.

(۲)... د شرابو په حدّ (او نورو حدّونو) کې فقط د خلګو ګواهي معتبره ده، د خلګو سره د ښځو ګواهي مقبوله او معتبره نه ده؛ ځکه چې د ښځو په ګواهي کې د بدليّت شبهه سته او په ښځو کې د خطاوتلو او د خبري هېرولو خطره سته، خلاصه دا چې په ښځه کې دري خاميانې سته: ① په عورت کې دا شبهه سته چې هغه د سړي بدل ده، ځکه چې الله تعالیٰ په دې آيت "فَإِنْ لَمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ" کې دوې ښځې ديوه سړي بدل ګرځولي دي، د دې مطلب دا رواځي چې

* القول الراجع: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۸۱)، وكذا في البحر الرائق (ج:۵، ص:۲۸). [القول الراجع ج:۱، ص:۴۵۱]

ښځه د سړي بدل ده (همدې ته بدليّت وايي)، (۲) ښځه د واقعې په بيانولو کې ګمراهۍ او غلطۍ کوي. (۳) او ښځه د واقعې او خبرې هېرونکې هم وي. ځکه چې الله تعالیٰ په پورتنې آيت کې فرمايلي دي "أَنْ تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ" يعني دوې ښځې ځکه د يوه سړي بدل ګرځول سوي دي چې که په دې دواړو کې يوه ښځه تېروتنه او غلطي وکړي او واقعه هېره کړي نو دويمه ښځه به هغې ته واقعه ورپه يادوي. نو په دې وجه د ښځو ګواهي په حدونو کې معتبره او کافي نه ده. د مصنف رَحِمَهُ الله دا عبارت د همدغه آيت وطرف ته اشاره کوي.

## ﴿د نشې د مقدار او اندازې بيان﴾

(۳)... والسكران الخ: فرمايي د نشې په کوم مقدار سره چې پر شرابي او نشه سړي حدّ جاري کيږي. هغه دا دی چې په شرابي او نشه سړي کې د پوهېدلو ماده ختمه سي يعني چې هغه نه په لږو خبرو پوهيږي او نه په زياتو. او د ښځې او سړي تر مينځ توپير تميز نه سي کولای. دا تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د سُکر او نشې مقدار دا دی چې شرابي فضول او چټې خبرې شروع کړي. يعني د هغه په خبرو کې اختلاط پيدا سي. يوه خبره د آسمانه کوي او بله د ځمکې کوي او داسې ګډې وډې او بې لاستي خبرې کوي چې هغه بالکل د عقل څخه ليرې خبرې وي. په عرف کې هم داسې سړي ته سکران وايي. او همدې طرف ته زياتره فقهاؤ ميلان کړی دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د حدّونو په باب کې د حدّ له اسبابو څخه تر ټولو آخري او د کاملې درجې سبب اختياريږي د دې لپاره چې په يو ټول څه غوندې لاره او حيله پيدا سي او حدّ ختم سي. او دلته د حدّ تر ټولو آخري درجه دا ده چې نشه د انسان پر عقل وغوړيږي او په انسان کې د پوهې او تميز ماده ختمه کړي. او که په دې اندازه نشه پيدا نه سي او شرابي د ښځې او سړي تر مينځ او د ښه او بد تر مينځ توپير کولای سي. نو پر هغه به کما حقهٗ د سکران إطلاق نه کيږي او د حدّ مستحق به نه ګرځي.

(۴)... والمعتبر في القدح المسكر الخ: د دې عبارت مطلب چې په شرابو کې د حدّ جاري کېدلو لپاره خو دومره مقدار نشه کېدل پکار دي چې سکران او شرابي د ښځې او سړي په مينځ کې تميز نه سي کولای. لېکن له شرابو څخه بغير په بل نشه لرونکي شي کې مثلاً په نبيذ او داسې نور کې د حرامېدلو لپاره دومره نشه کېدل پکار ده چې د هغه په وجه په خبرو کې اختلاط او ګډوډي پيدا سي لکه څرنګه چې دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د نشې مقدار دی. مطلب دا چې که د يوې پيالې په څښلو په خبرو

کې اختلاط پیدا سي نو د هغه پیالې څیښل حرام دي. زموږ درې سره امامانو پر همدې خبره اتفاق کړی دی، او په همدې کې احتیاط دی. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې له اختلاط او ګډوډي څخه بغیر د څیښونکي په چال او حرکاتو کې هم بدلون راتلل پکار دي یعني چې سړی او تره سي او تګ یې په واک او اختیار کې نه وي، نو دومره څیښل حرام دي. مګر صاحب د هدایې امام شافعي رَحِمَهُ الله ته دا جواب ورکوي چې د چال او حرکاتو بدلېدل د خلکو په بدلېدلو سره مختلف کېږي (مثلاً ځیني خلک قوي او مضبوط بدن والا وي، او د پوره نشې باوجود سم تګ کوي او خپل حرکات یې په اختیار کې وي، او ځیني خلک بیا کمزوري وي چې که د پیالې دریمه حصه وڅیښي نو هم زنګیږي او اختیار د لاسه ورکوي). لهذا د چال او حرکت د بدلېدلو اعتبار کول او پر هغه د حُرمت مدار ایښول صحیح نه دی، بلکې فقط د خبرو پر اختلاط او ګډوډي به اکتفاء کېږي.

(۵)... که چیري په نشه کې ډوب سړی پر خپل ځان د شراب څیښلو یا د غلا یا د زنا کولو اقرار وکړي، نو د هغه دې اقرار ته به اعتبار نه ورکول کېږي او د دې اقرار په وجه به پر هغه حدّ نه جاري کېږي؛ ځکه چې په اقرار کې خو هسې هم د کذب او درواغو احتمال سته. او کله چې په نشه کې غرق سړی اقرار وکړي نو د کذب احتمال نور زیات سي. او څرنګه چې دا حدود خالص د الله تعالیٰ حق دی، نو ځکه به د کذب دا احتمال د حدّ د ختمولو او دفع کولو لپاره حیله جوړېږي او له داسې ډوب سړي څخه به حدّ دفع کېږي. لېکن که هغه په دې حالت کې د حدّ قذف اقرار وکړي. نو د هغه دا اقرار به معتبر وي، او له نشې ختمېدلو څخه وروسته به پر هغه حدّ قذف جاري کېږي او په دُرو سره به وهل کېږي، ځکه چې حدّ قذف د بنده حق دی، او په حقوقُ العباد کې د سزا په حواله سره نشه او با هوښه (پرسد) سړی دواړه برابر دي، او لکه څرنګه چې د نشه او بې خوده سړي طلاق او إعتاق صحیح دی همداسې د حدّ قذف په هکله د هغه اقرار هم صحیح دی.

(۶)... که چیري نشه سړی (سکران) مرتد سي، نو د دې ارتداد په وجه به د هغه ښځه بائنه نه ګرځي؛ ځکه چې د کفر تعلق د عقیدې سره دی، او په نشه او بې خودۍ سره کفر نه ثابتیږي. او کله چې کفر نه ثابتیږي، نو ښکاره خبره ده چې د سکران ښځه به له هغه څخه نه بائنه کېږي. دا د طرفینو رَحِمَهُمَا الله قول دی او همدا محقق او مختار قول دی. که څه هم ظاهر روایت دا دی چې د هغه ارتداد معتبر دی او د هغه ښځه به بائنه ګرځي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ حَدِّ الْقَذْفِ

(دا) باب د تهمت لګولو د حدّ (په بیان کي) دی

**تشريح**: حدّ قذف ځکه تر حدّ شُرب وروسته بیان سوی دی چي د شراب چیښلو جرم په یقیني توګه ثابتیږي، لېکن د تهمت لګونکي کس په تهمت کي د صدق او کذب دواړو احتمال وي او دا په یقیني توګه نه ثابتیږي، او ښکاره خبره ده چي په یقیني توګه ثابتېدنکی شی له هغه شي څخه مقدم او مخکي وي کوم چي په یقیني توګه نه ثابتیږي. (بنایة ج:۴)

**د قذف لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د قذف د ضرب د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ یې ده: غورځول.

د قذف شرعي او اصطلاحي معنیٰ ده: پر ښځه یا سړي باندي د زنا تهمت لګول.

## د قذف وضاحت او د هغه د ثبوت دلیل

وَإِذَا قَذَفَ الرَّجُلُ رَجُلًا مُحْصَنًا أَوِ امْرَأَةً مُحْصَنَةً بِصَرِيحِ الزِّنَا او کله چي سړی پر یو واده الا سړي یا یا واده والا ښځي باندي په څرګنده توګه د زنا تهمت ولګوي وَطَالَبَ الْمَقْذُوفُ بِالْحَدِّ او مقذوف اله قاضي او حاکم څخه] د حدّ مطالبه وکړي حَدَّهُ الْحَاكِمُ ثَمَانِينَ سَوْطًا نو حاکم به هغه [تهمت لګونکي] اتیا [۸۰] دُرې وهي إِنْ كَانَ حُرًّا که چیري هغه آزاد وي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ.... إِلَىٰ أَنْ قَالَ: فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً [النور: ۴] ځکه چي الله تعالیٰ فرمایلي دي: او کوم کسان چي پر پاک لمنو ښځو د زنا تهمت لګوي... تر دې چي الله تعالیٰ فرمایلي: نو تاسي هغوی اتیا دُرې ووهئ! وَالْمُرَادُ الرَّمْيُ بِالزِّنَا بِالْإِجْمَاعِ او [له يَرْمُونَ] څخه بالاتفاق د زنا تهمت لګول مراد دي وَفِي النَّصِّ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ او په دې آیت کي همدې طرف ته اشاره سوې ده وَهُوَ اشْتِرَاطُ أَرْبَعَةٍ مِنَ الشُّهَدَاءِ او هغه [دا چي په دې آیت کي] د څلورو ګواهانو شرط [هم لګول سوی] دی إِذْ هُوَ مُخْتَصٌّ بِالزِّنَا ځکه چي څلور ګواهان د زنا سره خاص دي وَيُشْتَرَطُ مُطَالَبَةُ الْمَقْذُوفِ لِأَنَّ فِيهِ حَقَّهُ مِنْ حَيْثُ دَفْعُ الْعَارِ او د مقذوف مطالبه کول ځکه شرط دي چي د عیب [او پېغور] دفع کولو په

حیثیت سره په دې حدّ کي د مقذوف حق سته وَإِحْصَانُ الْمَقْذُوفِ لِمَا تَلَوْنَا او د مقذوف محصن کېدل د هغه آیت په وجه شرط دي کوم چي موږ تلاوت کړی.

**اللغات:** ﴿مَقْذُوف﴾ د ضرب له باب څخه د اسمِ مفعول صیغه ده: هغه کس چي د درواغو تهمت پر لګول سوی وی (پر چا چي تور وتړل سي)، ﴿سَوْط﴾ دُره (ځرمني غمچینه)، ﴿يَرْمُوْن﴾ د ضرب له باب څخه د جمع مذکر غائب صیغه ده: ویشتل، مراد ځني د زنا تهمت لګول دي.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو څوک پر واده والا سړي یا ښځه باندي د زنا تهمت ولګوي. او بیا دا مقذوف سړی یا ښځه پر قاذف د حدّ قذف جاري کولو مطالبه وکړي، نو که چیري قاذف آزاد وي. نو قاضي به هغه اتیا دُرې وهي؛ دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: ''وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوْا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءِ فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمَانِيْنَ جَلْدَةً''، په دې آیت کي د ټولو په نېز له ''رمی'' څخه ''د زنا تهمت لګول'' مراد دي، ځکه چي د أربعة شهداء ضرورت په زنا کي پیښیږي. او د مقذوف له طرفه د حدّ قذف مطالبه کول ځکه شرط دي چي حدّ قذف د مقذوف حق دی، ځکه چي په دې حدّ سره له مقذوف څخه عیب او پېغور ختمیږي، او د مقذوف محصن کېدل ځکه شرط دي چي په دې آیت ''وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ الْمُحْصَنَاتِ...'' کي الْمُحْصَنَات ذکر سوي دي.

د قذف د ثبوت بل دلیل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره اړوند د إفک واقعه هم ده. چي په هغه واقعه کي د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د برائت تر ښکاره کېدلو وروسته نبي ﷺ پر حضرت حسان بن ثابت، حضرت مسطح او حضرت حمنه بنت جحش باندي حدّ قذف جاري کړی وو.

## د حدّ قذف جاري کولو طریقه

قَالَ: وَيُفَرَّقُ عَلَى أَعْضَائِهِ فرمایي: او دا [د دُرو] وهل به د قاذف پر بدن متفرق کیږي [یعني قاذف به د بدن پر مختلفه حصو او پر جلا جلا اندامونو وهل کیږي] لِمَا مَرَّ فِي حَدِّ الزِّنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي په زنا کي تېر سو وَلَا يُجَرَّدُ مِنْ ثِيَابِهِ او له هغه څخه به جامې نه کښل کیږي لِأَنَّ سَبَبَهُ غَيْرُ مَقْطُوعٍ ځکه چي د حدّ قذف سبب یقیني نه وي فَلَا يُقَامُ عَلَى الشِّدَّةِ لهذا دا حدّ به په سختۍ سره نه جاري کیږي بِخِلَافِ حَدِّ الزِّنَا په خلاف د حدّ زنا غَيْرَ أَنَّهُ يُنْزَعُ عَنْهُ الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ خو له هغه څخه به پوستین او پنډې جامې کښل کیږي لِأَنَّ ذٰلِكَ يَمْنَعُ إِيصَالَ الْأَلَمِ بِهِ ځکه چي دا [دواړې جامې]

قاذف ته له درد رسولو ځخه مانع دي وَإِنْ كَانَ الْقَاذِفُ عَبْدًا او كه تهمت لګونكى غلام وي جُلِدَ أَرْبَعِينَ سَوْطًا لِمَكَانِ الرِّقِّ نو د غلامتوب په وجه به هغه څلوېښت دُرې وهل كيږي وَالْإِحْصَانُ: أَنْ يَكُونَ الْمَقْذُوفُ حُرًّا عَاقِلًا بَالِغًا مُسْلِمًا عَفِيفًا عَنْ فِعْلِ الزِّنَا او د إحصان مطلب دا دى: چي مقذوف آزاد وي، عاقل، بالغ، مسلمان او د زنا له فعل ځخه پاک وي أَمَّا الْحُرِّيَّةُ فَلِأَنَّهُ يُطْلَقُ عَلَيْهِ اسْمُ الْإِحْصَانِ كوم چي حُرِّيت دى نو ځكه چي پر همدې آزاد باندي د إحصان د لفظ إطلاق كيږي [او آزاد ته مُحصن ويل كيږي] قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ [النساء: ٢٥] أَيِ الْحَرَائِرِ الله تعالىٰ فرمايلي دي: چي پر مينځو باندي د پاک لمنو ښځو يعني د آزادو ښځو نيم عذاب دى [په دې آيت كي له مُحصنات ځخه آزادي ښځي مراد دي] وَالْعَقْلُ وَالْبُلُوغُ لِأَنَّ الْعَارَ لَا يَلْحَقُ بِالصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او عقل او بلوغ ځكه شرط دى چي په بچي او لېوني پسي عار نه لاحقيږي لِعَدَمِ تَحَقُّقِ فِعْلِ الزِّنَا مِنْهُمَا ځكه چي له كوچني او لېونې ځخه د زنا فعل نه ثابتيږي [بچى خو ځكه چي هغه مني نه لري، او مجنون كه څه هم زنا وكړي خو هغه ته هيڅ هوښ نه وي، نو ځكه د هغه فعل زنا نه شمارل كيږي. او بل دا چي دا دواړه د شريعت مخاطب نه دي] وَالْإِسْلَامُ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: مَنْ[1] أَشْرَكَ بِاللهِ فَلَيْسَ بِمُحْصَنٍ او مسلمان كېدل ځكه شرط دي چي نبي ﷺ فرمايلي دي: ځوک چي د الله سره شريک ونيسي هغه محصن نه دى وَالْعِفَّةُ لِأَنَّ غَيْرَ الْعَفِيفِ لَا يَلْحَقُهُ الْعَارُ او پاكوالى ځكه شرط دى چي ځوک پاک لمنى نه وي هغه ته عار [او شرم] نه محسوسيږي [د عفيف او پاک لمني سړي مطلب دا دى چي هغه هيڅكله زنا كړې نه وي. او چا چي يو وار هم زنا كړې وي. نو هغه د زنا په تهمت سره عار او شرم نه محسوسوي. ځكه چي هغه خو په دې كار كي مبتلا دى] وَكَذَا الْقَاذِفُ صَادِقٌ فِيهِ او همدارنګه پر غير عفيف باندي تهمت لګونكى كس په خپل تهمت كي رښتونى وي وَمَنْ نَفَى نَسَبَ غَيْرِهِ او ځوک چي د بل چا د نسب نفي وكړي فَقَالَ: لَسْتَ لِأَبِيكَ او داسي [ورته] ووايي: ته د خپل پلار [زوى] نه يې فَإِنَّهُ يُحَدُّ نو پر هغه [نفي كونكي] به حدّ جاري كيږي

---

[1] تخريج: رواه الدار قطني، كتاب الحدود والديات ج:٣، ص:١٠٧، رقم الحديث:٣٢٦٦. والسنن للبيهقـي، ج:٨، ص:٣٧٥، رقم الحديث:١٦٩٣٧.

وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ أُمُّهُ حُرَّةً مُسْلِمَةً او دا [حكم] په هغه صورت كي دى كله چي د دې بل كس مور آزاده او مسلمانه وي لِأَنَّهُ فِي الْحَقِيقَةِ قَذْفٌ لِأُمِّهِ ځكه چي دا په حقيقت كي د ده پر مور تهمت لګول دي لِأَنَّ النَّسَبَ إِنَّمَا يُنْفَى عَنِ الزَّانِي لَا عَنْ غَيْرِهِ ځكه چي نسب [فقط] له زاني څخه نفي كيږي. نه له بل چا څخه.

**اللغات**: ﴿يُفَرَّقُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: سره جلا كول. متفرق كول. مراد ځني پر جلا. جلا اندامونو وهل دي. ﴿لَا يُجَرَّدُ﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي مجهوله صيغه ده: لڅول. بربنډول (مراد ځني جامې كښل دي)، ﴿فَرْو﴾ له وړيني څرمني څخه جوړه سوې چپنه. پوستين. ﴿حَشْو﴾ له پمبه وو څخه ډكه جامه. مراد ځني كوټ او داسي نوري پنډي جامي دي. ﴿عَار﴾ پېغور. شرم. عيب. ﴿إِيْصَال﴾ د افعال مصدر دى: رسول. ﴿عِفَّة﴾ پاك لمنوالي (پاكوالى). ﴿عَفِيْف﴾ پاك او صفا سړى، پاك لمنى سړى چي له كونيتوب څخه پاك وي. ﴿غَيْرِ عَفِيْف﴾ ناپاكه. كوني (رنډى). بد لاري، بدلغامى (هغه كس چي د كونيتوب عادت پكښي وي).

**تشريح**: صورت د مسئلې واضح دى چي د حدّ زنا په څېر به په حدّ قذف كي هم قاذف د بدن پر مختلفه حصو او جلا اندامونو وهل كيږي. ليكن په دې حدّ به كي جامې نه ځني ليري كيږي. ځكه كېداى سي چي قاذف په خپل قذف كي رېښتونى وي خو ديو عذر او عجز په وجه به يې د ګواهانو پر پېښولو قدرت پيدا كړى نه وي. نو څرنګه چي د دې احتمال په وجه د حدّ قذف ثبوت قطعي او يقيني نه دى. نو ځكه به دا حدّ په سختي سره نه جاري كيږي. ها كه قاذف كوټ. پوستين او داسي نوري پنډي جامي اغوستي وي نو هغه به ځني ليري كيږي، د دې لپاره چي د هغه بدن ته د وهلو أثر (درد او تكليف) ورسيږي.

**والإحصان إلخ**: له دې ځاى څخه د مقذوف د إحصان شرائط او قيود بيانيږي چي هغه په عبارت كي په واضحه توګه ذكر سوي دي.

**ومن نفى نسب غيره إلخ**: فرمايي: كه يو څوك ديو چا د نسب نفي وكړي مثلاً داسي ورته وايي چي "ته له خپل پلار څخه نه يې!"، حال دا چي د هغه مور آزاده او مسلمانه وي. نو پر نفي كونكي به حدّ قذف جاري كيږي. ځكه چي د پلار د نفي كولو مطلب دا دى چي "ته ولدُ الزنا او حرامي يې"، او دا قذف په حقيقت كي د هغې پر مور تهمت دى، حال دا چي د هغه مور مسلمانه او آزاده ده او په ظاهري توګه له هغې څخه د زنا صادرېدل ناممكن دي، نو پر مور به د تهمت لګولو په وجه پر قاذف حدّ قذف جاري كيږي.

## د قذف د الفاظو بیان

وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ فِي غَضَبٍ: لَسْتَ بِابْنِ فُلَانٍ او څوک چې بل چا ته د غصې په حالت کې ووايي: ته د فلانکي زوی نه يې لِأَبِيهِ الَّذِي يُدْعَى لَهُ د هغه پلار لپاره چې په هغه سره دئ بلل کيږي [يعني د کوم پلار په نامه سره چې دئ يادېږي، له هغه شخصه د ده نفي وکړي چې "ته د هغه زوی نه يې"] يُحَدُّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي وَلَوْ قَالَ فِي غَيْرِ غَضَبٍ او که له غصې څخه بغير [په بل] حالت کې [داسي ورته] ووايي لَا يُحَدُّ نو حدّ به نه پر جاري کيږي لِأَنَّ عِنْدَ الْغَضَبِ يُرَادُ بِهِ حَقِيقَةً سَبًّا لَهُ ځکه چې د غصې په حالت کې په دې سره حقيقتاً ښکنځا [او تهمت] مرادېږي وَفِي غَيْرِهِ يُرَادُ بِهِ الْمُعَاتَبَةُ بِنَفْيِ مُشَابَهَتِهِ أَبَاهُ فِي أَسْبَابِ الْمُرُوءَةِ او له غصې څخه بغير [په بل حالت] کې په دې سره ملامتول [او تنبيه ورکول] مرادېږي چې د مروّت [او شرافت] په اسبابو کې ته د خپل پلار سره مشابه نه يې!

وَلَوْ قَالَ: لَسْتَ بِابْنِ فُلَانٍ يَعْنِي جَدَّهُ او که [ورته] ووايي: چې ته د فلانکي زوی يې [او] هغه په دې سره د ده نيکه مراد کړي [يعني د هغه مراد دا وي چې ته د خپل نيکه زوی نه يې] لَمْ يُحَدَّ نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّهُ صَادِقٌ فِي كَلَامِهِ ځکه چې هغه په خپله خبره کې رېښتونی دی وَلَوْ نَسَبَهُ إِلَى جَدِّهِ او که هغه د نيکه وطرف ته د ده نسبت وکړي لَا يُحَدُّ أَيْضًا نو هم به پر هغه حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّهُ قَدْ يُنْسَبُ إِلَيْهِ مَجَازًا ځکه چې مجازاً د نيکه وطرف ته [هم] نسبت کيږي. وَلَوْ قَالَ لَهُ: يَا ابْنَ الزَّانِيَةِ وَأُمُّهُ مَيِّتَةٌ مُحْصَنَةٌ او که هغه ده ته ووايي: اې د زناکارې بچيه! حال دا چې د ده مور مړه او پاک لمنې وي فَطَالَبَ الِابْنُ بِحَدِّهِ او بچی پر هغه [قاذف] د حدّ مطالبه وکړي حُدَّ الْقَاذِفُ نو پر قاذف به حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ قَذَفَ مُحْصَنَةً بَعْدَ مَوْتِهَا ځکه چې هغه پرېوې پاک لمنې ښځې د هغې تر مرګ وروسته تهمت لګولی دی وَلَا يُطَالِبُ بِحَدِّ الْقَذْفِ لِلْمَيِّتِ إِلَّا مَنْ يَقَعُ الْقَدْحُ فِي نَسَبِهِ بِقَذْفِهِ او د ميّت [مړي] لپاره [فقط] هغه کس د "حدّ قذف" مطالبه کولای سي چې د ميّت په تهمت سره د هغه په نسب کې عيب واقع کيږي وَهُوَ الْوَالِدُ وَالْوَلَدُ او هغه پلار يا بچی دی لِأَنَّ الْعَارَ يَلْتَحِقُ بِهِ لِمَكَانِ الْجُزْئِيَّةِ ځکه چې د جزئيت په وجه دوی ته د ميّت په تهمت سره عار [او پېغور]

لاحقیږي فَيَكُونُ الْقَذْفُ مُتَنَاوِلًا لَهُ مَعْنًى نو د میّت تهمت به د معنیٰ په اعتبار سره دوی ته هم شامل وي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يَثْبُتُ حَقُّ الْمُطَالَبَةِ لِكُلِّ وَارِثٍ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د هر وارث لپاره د مطالبه کولو حق ثابتیږي لِأَنَّ حَدَّ الْقَذْفِ يُورَثُ عِنْدَهُ عَلَى مَا نُبَيِّنُ ځکه چي د هغه په نیز په حدّ قذف کي میراث کي جاري کیږي چي [وروسته] به موږ د دې بیان وکړو [انشاء الله] وَعِنْدَنَا وِلَايَةُ الْمُطَالَبَةِ لَيْسَتْ بِطَرِيقِ الْإِرْثِ او زموږ په نیز د مطالبه کولو ولایت د وراثت په توګه نه دی بَلْ لِمَا ذَكَرْنَاهُ بلکي په هغه توګه [سره حاصلیږي] کوم چي موږ [اوس] ذکر کړه [یعني د جزئیت په وجه د عار لاحقیدلو په توګه] وَلِهَذَا يَثْبُتُ عِنْدَنَا لِلْمَحْرُومِ عَنِ الْمِيرَاثِ بِالْقَتْلِ همدا وجه ده چي د قتل په وجه له میراث شخه د محروم کس لپاره [هم] زمو په نیز دا حق ثابتیږي وَيَثْبُتُ لِوَلَدِ الْبِنْتِ كَمَا يَثْبُتُ لِوَلَدِ الِابْنِ او د لور د بچي لپاره [هم] دا حق ثابتیږي لکه څرنګه چي د زوی د بچي لپاره ثابتیږي خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ ❀ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله وَيَثْبُتُ لِوَلَدِ الْوَلَدِ حَالَ قِيَامِ الْوَلَدِ [همدارنګه] د بچي د موجودیدلو په حالت کي د بچي، د بچي [المسي] لپاره [هم] دا حق ثابتیږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله.

**اللغات:** ﴿يُدْعَى﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: بلل، راغوښتل، ﴿غَضَب﴾ غصه، خښم، قهر، ﴿مُعَاتَبَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: خښم ښکاره کول (خوشکه کول)، ملامتول، رټل، تنبیه ورکول. ﴿مُرُوَّة﴾ مېړانه، بهادري، انسانیت، شرافت، اخلاق مندي، ﴿قَدْح﴾ عیب.

**تشریح:** یو سړی د خالد زوی دی او د هغه په نسبت سره یادیږي، اوس که یو څوک د غصې په حالت کي هغه ته ووايي چي ته د خالد زوی نه يې! نو د غصې او غضب د حالت په وجه به له داسي خبري څخه حقیقتاً ښکنځل او تهمت مرادیږي او دا خبره به قذف شمارل کیږي. لهذا پر قاذف به حدّ جاري کیږي. لیکن که هغه د غصې په حالت کي دا خبره کړې نه وي، نو له دې څخه به تهمت نه مرادیږي، بلکي دا به ګڼل کیږي چي هغه په اخلاق، انسانیت او مروّت کي د مشابهت نفي کړې دي (چي ته د خپل پلار سره په اخلاق او مېړانه کي مشابه نه يې!).

❀ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:۵، ص:۹۴)، وكذا في رد المحتار (ج:۳، ص:۱۸۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۵۲]

که یو سړی یو کس ته داسي ووايي چي ته د فلانکي زوی نه يې! او د هغه مراد دا وي چي ته د خپل نيکه زوی نه يې!، نو پر هغه به حدّ نه جاري کيږي، ځکه چي قائل په خپله خبره کي رښتونی دی ځکه رښتیا هم دا کس د خپل نيکه زوی نه دی، او که د يو سړي د نيکه نوم (مثلاً) خالد وي او بل څوک هغه ته ووايي چي ته د خالد زوی يې، نو پر هغه به هم حدّ نه جاري کيږي، ځکه چي مجازاً و نيکه ته هم پلار وايي.

**ولوقال له يا ابن الزانية إلخ**: او که يو سړي بل سړي ته ووايي چي اې! د زناكاري بچيه، حال دا چي د هغه مور محصنه وي او وفات سوې وي، بيا هغه (بچی) پر قاذف باندي د حدّ قذف جاري کولو مطالبه وکړي، نو پر قاذف به حدّ قذف جاري کيږي؛ ځکه چي قاذف پر يوه محصنه ښځه باندي د هغې تر مرگ وروسته تهمت لگولی دی، حال دا چي په مرگ سره د هغې إحصان مضبوط سوی او مؤکد سوی دی، نو ځکه به پر هغې تهمت لگول د حدّ موجب وي.

**ولا يطالب إلخ**: فرمايي چي د مړه کس (ميّت) له طرفه فقط د هغه پلار او نيکه ته يا د هغه زوی او لمسي ته د حدّ قذف د مطالبې کولو حق سته؛ ځکه چي همدا کسان د ميّت سره د جزئيت واسطه لري او د ميّت په تهمت سره دوی ته پيغور او شرم (عار) محسوسيږي، او پر ميت باندي تهمت لگول د دوی په حق کي هم تهمت شمارل کيږي، نو له خپل ځان څخه د عار او عيب د ليري کولو لپاره به هغو ته د حدّ قذف د مطالبې کولو حق وي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په حدّ قذف کي وراثت چليږي، يعني د هغه په نيز د هر وارث لپاره د حدّ قذف د مطالبې کولو حق سته. او زموږ په نيز دا حق فقط د جزئيت او بعضيت په وجه ثابتيږي، نو ځکه به هر وارث ته دا حق حاصل نه وي. بلکي څوک چي د مقذوف يا مقذوفه سره د بعضيت او جزئيت واسطه لري، هغه ته به دا حق حاصل وي. او که چيري مقذوف وارث د خپل قتل او خون کولو په وجه له ميراث څخه محروم وي، نو هغه ته هم زموږ په نيز د جزئيت د واسطې په وجه دا حق حاصليږي. او د مقذوف د لور زوی (لورني لمسي) ته هم دا حق حاصليږي (يعني هغه ته دا حق سته چي د خپل مورني نيکه د حدّ قذف مطالبه وکړي)، ليکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز هغه ته دا حق نه حاصليږي، ځکه چي د لور زوی د خپل پلار وطرف ته منسوب کيږي، او د هغه پلار د مقذوف يعني د خسر سره د جزئيت واسطه نه لري (بلکي هغه د مقذوف زوم کيږي)، ليکن زموږ له طرفه امام محمد رَحِمَهُ الله ته دا جواب ورکول سوی دی چي د مورني نيکه وطرف ته هم د لمسي نسبت کيږي، ځکه چي خلک وايي فلانکی سړی "نجيبُ الطرفين" دی (يعني فلانکی سړی د مور او پلار دواړو له طرفه صحيح او شريف نسب والا

دی)، همدا وجه ده چې د مورنی نیکه په ښکنځلو سره هم انسان عار محسوسوي. نو ځکه به د لور زوی (لورني لمسي) ته هم د مطالبې کولو حق حاصل وي.

ويثبت لولد الولد إلخ: فرمايي که چيرې د مقذوف زوی موجود وي. نو د هغه په موجوديت کې د مقذوف لمسي ته هم د حدّ د مطالبې حق سته، ځکه چې د جزئيت واسطه موجوده ده. لیکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز د زوی په موجوديت کې لمسي ته دا حق نه حاصلیږي لکه څرنګه چې د أقرب په موجوديت کې أبعد ته د کفارې د مطالبې حق نه حاصلیږي.

## د مړه سوي مقذوف کافر زوی لره د مطالبې کولو حق سته، که نه؟

وَإِذَا كَانَ الْمَقْذُوفُ مُحْصَنًا او کله چې مقذوف محصن وي جَازَ لِابْنِهِ الْكَافِرِ وَالْعَبْدِ أَنْ يُطَالِبَ بِالْحَدِّ نو د هغه د کافر او غلام زوی لپاره جائز دي چې [د پلار لپاره] د "حدّ قذف" مطالبه وکړي خِلَافًا لِزُفَرَ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَقُولُ: اَلْقَذْفُ يَتَنَاوَلُهُ مَعْنًى هغه فرمايي: چې د معنیٰ په اعتبار سره زوی ته هم دا تهمت شاملیږي لِرُجُوعِ الْعَارِ إِلَيْهِ ځکه چې د زوی وطرف ته [هم] عار او پیغور] راجع کیږي [یعني دغه کافر یا غلام زوی هم د پلار په تهمت سره شرمنده ګرځي او د خلکو د پیغور نښه ګرځي] وَلَيْسَ طَرِيقُهُ الْإِرْثَ عِنْدَنَا او زموږ په نیز [اخو] د میراث په طریقه سره دا [حدّ قذف] نه ثابتیږي فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ مُتَنَاوِلًا لَهُ صُورَةً وَمَعْنًى نو داسي سو لکه د صورت او معنیٰ په اعتبار سره چې دا قذف بچی ته [هم] شامل وي [نو په دې وجه د بچي محصن کېدل هم ضروري دي] وَلَنَا: أَنَّهُ عَيَّرَهُ بِقَذْفِ مُحْصَنٍ زموږ دلیل دا دی: چې قاذف پر محصن پلار په تهمت لګولو سره د هغه زوی ته عار [او پیغور] ورکړی [او د پیغور او عیب وطرف ته یې د زوی نسبت وکړی] فَيَأْخُذُهُ بِالْحَدِّ نو ځکه به دا زوی هغه [قاذف] په حدّ سره نیسي [او د حدّ مطالبه به کولای سي] وَهَذَا لِأَنَّ الْإِحْصَانَ فِي الَّذِي يُنْسَبُ إِلَى الزِّنَا شَرْطٌ او دا ځکه چې څوک د زنا وطرف ته منسوب کړی سي د هغه محصن کېدل شرط دي لِيَقَعَ تَعْيِيرًا عَلَى الْكَمَالِ د دې لپاره چې په کامله توګه عار واقع سي ثُمَّ يَرْجِعُ هَذَا التَّعْيِيرُ الْكَامِلُ إِلَى وَلَدِهِ بيا دا کامل عار د هغه د زوی وطرف ته منسوب کیږي وَالْكُفْرُ لَا يُنَافِي أَهْلِيَّةَ الِاسْتِحْقَاقِ او کفر د استحقاق د اهلیت منافي نه دی [یعني کفر د حدّ د مطالبې کولو منافي نه دی] بِخِلَافِ إِذَا تَنَاوَلَ الْقَذْفُ نَفْسَهُ په خلاف د هغه صورت کله چې بذات خود

[کافر يا غلام] زوی ته تهمت شامل سي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ التَّعْيِيرُ عَلَى الْكَمَالِ ځکه چي [په دې صورت کي] کامل عار نه واقع کيږي لِفَقْدِ الْإِحْصَانِ فِي الْمَنْسُوبِ إِلَى الزِّنَا ځکه [دلته] چي د چا نسبت د زنا وطرف ته سوی دی [يعني کافر يا غلام زوی] په هغه کي إحصان نسته [ځکه چي د إحصان له شرائطو څخه اسلام او آزادي هم ده] وَلَيْسَ لِلْعَبْدِ أَنْ يُطَالِبَ مَوْلَاهُ بِقَذْفِ أُمِّهِ الْحُرَّةِ او غلام لره جائز نه دي چي د خپل آزادي مور د تهمت په وجه له مالک څخه د "حدّ قذف" مطالبه وکړي وَلَا لِلِابْنِ أَنْ يُطَالِبَ أَبَاهُ بِقَذْفِ أُمِّهِ الْحُرَّةِ الْمُسْلِمَةِ او نه زوی لره جائز دي چي د خپل آزادي مور د تهمت په وجه له خپل پلار څخه د "حدّ قذف" مطالبه وکړي لِأَنَّ الْمَوْلَى لَا يُعَاقَبُ بِسَبَبِ عَبْدِهِ ځکه چي مالک ته د خپل غلام په وجه سزا نه ورکول کيږي [يعني پر مالک باندي د غلام په وجه سزا نه لازميږي] وَكَذَا الْأَبُ بِسَبَبِ ابْنِهِ او همدارنګه پلار ته [هم] د زوی په وجه سزا نه ورکول کيږي وَلِهَذَا لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِوَلَدِهِ همدا وجه ده چي د خپل زوی د قتل کولو پر بناء پلار قصاصاً نه قتل کيږي وَلَا السَّيِّدُ بِعَبْدِهِ او نه د غلام په قتل کولو سره د هغه مالک قصاصاً قتل کيږي وَلَوْ كَانَ لَهَا ابْنٌ مِنْ غَيْرِهِ او که د دې ښځي لپاره له بل خاوند څخه يو زوی وي لَهُ أَنْ يُطَالِبَ نو هغه لره جائز دي چي د "حدّ قذف" مطالبه وکړي لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ وَانْعِدَامِ الْمَانِعِ ځکه چي سبب [يعني تهمت لګول] موجود دی او مانع [أبوّت] نسته.

**اللغات**: ﴿عَار﴾ پېغور، شرم، عيب، بې عزتي، ﴿عَيَّرَهُ﴾ د تفعيل ماضي ده: پېغور ورکول، بې عزتي کول، د عيب او شرمنده کونکي خبري وطرف ته د چا نسبت کول. ﴿فَقْد﴾ د ضرب مصدر دی: نيستي کېدل، ورکېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... که يو سړی پر يو محصن کس باندي تهمت ولګوي او بيا مړ سي، نو که څه هم د هغه زوی کافر يا غلام وي زموږ په نېز د هغه لپاره د حدّ د مطالبې کولو حق سته. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز کافر او غلام زوی لره دا حق نسته.

أصول: د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د مطالبه کونکي کس محصن کېدل هم ضروري دي. لېکن زموږ په نېز ضروري نه دي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي څرنګه دا تهمت (قذف) پلار ته شامل دی، همداسي د عار په وجه زوی ته هم د صورت او معنیٰ په اعتبار سره شامل دی، نو په دې وجه د زوی محصن کېدل هم ضروري دي او دلته زوی د کافر يا غلام کېدلو په وجه محصن نه دی، نو ځکه به کافر يا غلام زوی ته د حدّ د مطالبې کولو حق نه وي. همدا وجه ده که چيري هغه سړی بذات خود پر دغه کافر يا غلام زوی باندي تهمت ولګوي نو کافر يا غلام ته د مطالبې کولو حق نسته (ځکه چي د مطالبه کونکي کس لپاره محصن کېدل ضروري دي).

**زموږ دليل:** زموږ د دليل حاصل دا دی چي هغه سړي پر يو محصن کس باندي تهمت لګولی دی. نو د محصن کېدلو په وجه په دې محصن کس کي کامل عار او عيب واقع سو، او دا عار ذ کافر يا غلام زوی وطرف ته هم نقل کيږي، ځکه چي د کفر يا رقيت په وجه له مقذوف شخخه د زوی نسبت او قرابت نه قطع کيږي، نو ځکه به د زوی لپاره د حدّ د مطالبې کولو حق وي.

**بخلاف إذا تناول القذف إلخ:** د دې په خلاف که هغه بذات خود پر دغه کافر يا غلام زوی باندي تهمت ولګوي نو کافر يا غلام ته د مطالبې حق ځکه نسته چي د نه محصن کېدلو په وجه په هغه کي کامل عار او عيب نه واقع کيږي (او د هغه لپاره کامل پېغور نه ثابتيږي).

(۲)... که د يو غلام مور آزاده وي، او بيا مالک د هغه پر مور تهمت ولګوي، يا د يو چا پلار پر خپلي آزادي او مسلماني ښځي باندي تهمت ولګوي، نو د غلام او زوی لپاره دا حق نسته چي د مور د تهمت په وجه غلام پر خپل مالک يا زوی پر خپل پلار د حدّ مطالبه وکړي؛ ځکه چي د غلام په دعویٰ سره نه مالک ته مجازات او سزا ورکول کيږي او نه د زوی په دعویٰ سره پلار ته سزا ورکول کيږي حتیٰ که مالک خپل غلام قتل کړي يا پلار خپل زوی قتل کړي، نو هغوی به قصاصاً نه قتل کيږي. لهذا کله چي د قتل په شير درنه مسئله کي پر هغو هيڅ کاروايي نه کيږي، نو د قذف په مسئله کي به څرنګه د هغو په خلاف کاروايي وسي؟ ها! که چيري د دغه مقذوفه ښځي له بل خاوند شخخه يو زوی موجود وي، نو هغه پر دغه ناسکه پلار د حدّ مطالبه کولای سي، ځکه چي د هغه په حق کي له مطالبې کولو شخه مانع شی يعني اُبوّت (پلار والی) نسته، او د فقهي قاعده دا ده چي إِذَا زَالَ الْمَانِعُ عَادَ الْمَمْنُوْع.

## تر حدّ جاري کېدلو مخکي د مقذوف د مرګ حکم

وَمَنْ قَذَفَ غَيْرَهُ او کوم څوک چي پر يو بل کس تهمت ولګوي فَمَاتَ الْمَقْذُوْفُ او بيا هغه کس مړ سي چي تهمت پر لګول سوی وي بَطَلَ الْحَدُّ نو حدّ باطليږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَبْطُلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي حدّ نه باطليږي وَلَوْ مَاتَ بَعْدَمَا أُقِيمَ بَعْضُ الْحَدِّ او که چيري تر څه

حد جاري کېدلو وروسته مقذوف مړ سي بَطَلَ الْحَدُّ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز پاته حد باطليږي خلافًا

لَهٗ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله بِنَاءً عَلٰى أَنَّهٗ يُوْرَثُ عِنْدَهٗ وَعِنْدَنَا لَا يُوْرَثُ ازموږ او د امام شافعي په

مينځ کي ا دا اختلاف پر دې خبره مبني دی چي د هغه په نېز په "حد قذف" کي ميراث جاري

کيږي او زموږ په هغه کي ميراث نه جاري کيږي وَلَا خِلَافَ أَنَّ فِيهِ حَقَّ الشَّرْعِ وَحَقَّ الْعَبْدِ او په دې

خبره کي هيڅ اختلاف نسته چي په حدّ قذف کي حقّ الشرع او حقّ العبد دواړه سته فَإِنَّهٗ شُرِعَ

لِدَفْعِ الْعَارِ عَنِ الْمَقْذُوْفِ احقّ العبد خو په دې وجه پکښي سته ا ځکه چي دا له مقذوف څخه د

عار ااو عيب ا دفع کولو لپاره مشروع سوی دی وَهُوَ الَّذِي يَنْتَفِعُ بِهِ عَلَى الْخُصُوْصِ او دا نفع په

ځانګړې توګه افقط ا مقذوف ته حاصليږي فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ حَقُّ الْعَبْدِ نو په دې وجه سره دا حدّ

حقّ العبد دی ثُمَّ إِنَّهٗ شُرِعَ زَاجِرًا ااو حقّ الشروع په دې وجه پکښي سته ا چي دا حدّ د زاجر اسزا

ورکونکي ا په توګه مشروع سوی دی وَمِنْهُ سُمِّيَ حَدًّا او له همدې وجهي هغه ته حدّ اله فساد څخه

منع کونکی شی ا ويل کيږي وَالْمَقْصُوْدُ مِنْ شَرْعِ الزَّاجِرِ إِخْلَاءُ الْعَالَمِ عَنِ الْفَسَادِ او د زاجر ااو سزا ا د

مشروع کولو مقصد دنيا له فساد څخه خالي کول دي وَهٰذَا آيَةُ حَقِّ الشَّرْعِ او دا د حقّ الشرع کېدلو

علامت دی وَبِكُلِّ ذٰلِكَ تَشْهَدُ الْأَحْكَامُ او أحکام د دغه هر طرف احقّ العبد او حقّ الشرع ا په حق

کي ګواهي ورکوي وَإِذَا تَعَارَضَتِ الْجِهَتَانِ او کله چي دواړه طرفونه سره متعارض سول فَالشَّافِعِيُّ

مَالَ إِلٰى تَغْلِيْبِ حَقِّ الْعَبْدِ تَقْدِيْمًا لِحَقِّ الْعَبْدِ نو د بنده د حق مخکي کولو لپاره امام شافعي رَحِمَهُ الله

ا په حدّ قذف کي ا د حقّ العبد د غالب ګرځولو وطرف ته ميلان وکړی بِاعْتِبَارِ حَاجَتِهِ وَغِنَى الشَّرْعِ

ځکه چي بنده محتاج دی او شريعت مستغني دی ا يعني شريعت بنده ته هيڅ ضرورت نه لري ا

وَنَحْنُ صِرْنَا إِلٰى تَغْلِيْبِ حَقِّ الشَّرْعِ او موږ د حقّ الشرع د غالب ګرځولو وطرف ته ميلان وکړی لِأَنَّ مَا

لِلْعَبْدِ مِنَ الْحَقِّ يَتَوَلَّاهُ مَوْلَاهُ ځکه چي د بنده د حق متولي ااو سرپرست ا د هغه مالک ا يعني ربُ

العالمين ا دی فَيَصِيْرُ حَقُّ الْعَبْدِ مَرْعِيًّا بِهِ لهذا د شريعت په حق کي به د بنده د حق عايت کيږي وَلَا

كَذٰلِكَ عَكْسُهٗ لېکن د دې برعکس به نه کيږي ا يعني د بنده په حق کي به د شريعت د حق رعايت نه

کیږي) لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لِلْعَبْدِ فِي اسْتِيفَاءِ حُقُوقِ الشَّرْعِ إِلَّا نِيَابَةً عَنْهُ ځکه چي د حقوق الشرع په حاصلولو کي د بنده ولايت (او حق) فقط د نائب په توګه دی (يعني هغه فقط د نائب په توګه د شريعت حق حاصلوي، نه د أصل په توګه) وَهٰذَا هُوَ الْأَصْلُ الْمَشْهُورُ الَّذِي يَتَخَرَّجُ عَلَيْهِ الْفُرُوعُ الْمُخْتَلَفُ فِيهَا همدا هغه مشهور أصل دی چي پر هغه باندي د مختلف فيه فروعاتو (او مسائلو) تخريج کيږي مِنْهَا: الْإِرْثُ له هغو ځخه (يوه مسئله) : ميراث دی إِذِ الْإِرْثُ يَجْرِي فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ لَا فِي حُقُوقِ الشَّرْعِ ځکه چي ميراث په حقوقُ العباد کي جاري کيږي، نه په حقوقُ الشرع کي وَمِنْهَا: الْعَفْوُ او له هغو ځخه (يوه مسئله) : معافول دي فَإِنَّهُ لَا يَصِحُّ عَفْوُ الْمَقْذُوفِ عِنْدَنَا وَيَصِحُّ عِنْدَهُ نو زموږ زموږ په نيز د مقذوف لپاره (د حدّ قذف) معافول صحيح دي او د امام شافعي په نيز صحيح نه دی وَمِنْهَا: أَنَّهُ لَا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ وَيَجْرِي فِيهِ التَّدَاخُلُ او له هغو ځخه (يوه مسئله دا ده) : چي (زموږ په نيز) د حدّ قذف عوض اخيستل جائز نه دی او په هغه کي تداخل جاري کيږي وَعِنْدَهُ لَا يَجْرِي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز (په حدّ قذف کي) تداخل نه جاري کيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي الْعَفْوِ مِثْلُ قَوْلِ الشَّافِعِيِّ او د معافولو په باره کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځخه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول په څير روايت سوی دی وَمِنْ أَصْحَابِنَا مَنْ قَالَ: إِنَّ الْغَالِبَ حَقُّ الْعَبْدِ او زموږ له أصحابو ځخه ځينو (فقهاؤ) ويلي دي: چي (په حدّ قذف کي) غالب د بنده حق دی وَخَرَّجَ الْأَحْكَامَ او (هغه فقهاؤ د همدې مطابق) د أحکامو تخريج (هم) کړی دی وَالْأَوَّلُ أَظْهَرُ (لېکن) اول قول زيات ښکاره دی.

**اللغات**: ﴿عَار﴾ شرم، بې عزتي، پېغور. ﴿إِخْلَاء﴾ د افعال مصدر دی: خالي کول. ﴿تَغْلِيب﴾ د تفعيل مصدر دی: غالب ګرځول، غالبول. ﴿عَفْو﴾ د نصر مصدر دی: معافول (بخښل)، سزا پرېښوول. ﴿إِسْتِيفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: حق حاصلول، اخيستل، تر لاسه کول. ﴿إِعْتِيَاض﴾ د افتعال مصدر دی: عوض اخيستل، بدل او قيمت غوښتل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو څوک پر بل چا د زنا تهمت ولګوي، او پر قاذف د حدّ جاري کېدلو ځخه مخکي مقذوف مړ سي، يا د حدّ د ځيني حصې تر جاري کېدلو وروسته مقذوف مړ سي (مثلاً قاذف تر اوسه شل دُرې وهل سوی وي او شپېته دُرې لا پاته وي او په دې دوران کي مقذوف مړ سي). نو په اول صورت کي زموږ په نيز ټوله حدّ باطليږي او په دويم صورت کي پاته (ما بقي) حدّ باطليږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز نه په

اوّل صورت کي حدّ باطلیږي او نه په دویم صورت کي: زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا اختلاف پر دې خبره مبني دی چي زموږ په نېز په حدّ قذف کي میراث نه جاري کیږي (یعني وارثانو ته دا حق نسته چي د مقذوف تر مرګ وروسته د هغه د حدّ قذف مطالبه وکړي)، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په حدِ قذف کي میراث جاري کیږي، او کله چي د هغه په نېز په حدِ قذف کي میراث جاري کیږي، نو ښکاره خبره ده چي د مقذوف تر مرګ وروسته به د هغه وارثانو ته د حدّ د مطالبې کولو حق وي، او کله چي هغو ته دا حق سته نو حدّ به هم نه باطلیږي، لېکن زموږ په نېز د هغه وارثانو ته دا حق نسته؛ نو ځکه به حدّ هم باطلیږي.

**ولا خلاف إلخ:** فرمایي چي د حدّ قذف دوه طرفه دي: ① من وجه دا حقُ العبد دی. ② او من وجه حقُ الشرع (حقُ الله) دی. حقُ العبد خو ځکه دی چي له بنده څخه د عار دفع کولو لپاره دا حدّ مشروع سوی دی، او حقُ الشرع ځکه دی چي دا حدّ د زاجر (د تنبیه ورکونکي او سزا ورکونکي) په توګه مشروع سوی دی او د دې مقصود توله دنیا له فساد څخه خالي کول دي، نو د حدّ قذف د مقصود عام کېدل د هغه د حقُ الشرع کېدلو نښه او علامت دی، او أحکام د دې دواړو طرفونو په حق کي ګواه دي، مثلاً له ډېر وخت تېرېدلو (تقادمُ الزمان) څخه وروسته په ګواهي او بیّنه سره دا حدّ ثابتیږي، همدارنګه تر اقرار کولو وروسته د مُقر لپاره له دې حدّ څخه د رجوع کولو حق نسته، او دا شیان د حقُ العبد سره تعلق لري (نو معلومه سوه چي حدّ قذف من وجه حقُ العبد دی)، او د دې حدّ د حقُ الشرع کېدلو أحکام دا دي چي دا حق إمام فقط حاصلولای سي او إمام د شریعت نائب دی، همدارنګه په رقیت سره په دې حدّ کي تنصیف کیږي (معلومه سوه چي دا حدّ من وجه حقُ الشرع دی)، لنډه دا چي په دې حد کي دغه دواړه احتمالات سته، او له دې دواړو څخه امام شافعي رَحِمَهُ الله حقُ العبد ته ترجیح ورکړې ده، ځکه چي حقُ العبد پر حقُ الشرع مخکي وي او بنده محتاج وي، او موږ حقُ الشرع ته ترجیح ورکړې ده، ځکه چي د بنده او د هغه د تمامو حقوقو یعني د عار، عیب او داسي نورو مالک او متولّي د الله تعالیٰ ذات دی، لهٰذا په حقُ الشرع کي به د حقُ العبد رعایت خو کیږي لېکن په حقُ العبد کي به د حقُ الشرع رعایت نه کیږي، ځکه چي بنده د نائب جوړېدلو په توګه د شریعت حقوق حاصلوي نه د أصل جوړېدلو په توګه (یعني هغه د الله د نائب جوړېدلو په حیثیت سره د شریعت حقوق حاصلوي). نو په دې وجه موږ پر حقُ العبد باندي حقُ الشرع ته ترجیح ورکړې ده.

زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مینځ کي پر دغه نظریاتي اختلاف ډېري مسئلې متفرع دي، چي له هغوی څخه څلور مسئلې په دې عبارت کي ذکر سوي دي:

(١)... په حدّ قذف کي به د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز وراثت جاري کیږي، ځکه چي د هغه په نېز دا حقُ العبد دی، او په حقُ العبد کي وراثت جاري کیږي، لېکن زموږ په نېز حدّ قذف حقُ الشرع دی، او په حقُ الشرع کي وراثت نه جاري کیږي، نو ځکه به زموږ په نېز په حدِ قذف کي وراثت نه جاري کیږي.

(۲)... که چیرې مقذوف وغواړي چې حدّ قذف معاف کړي، نو د شوافعو په نېز یې معافولای سي، ځکه چې دا د هغه حق دی، لېکن زموږ په نېز یې نه سي معافولای، ځکه چې دا حقُ الشرع دي، او بنده د حقُ الشرع د معافولو هېڅ حق نه لري.

(۳)... د مقذوف لپاره زموږ په نېز د حدّ قذف عوض اخیستل صحیح نه دي، ځکه چې زموږ په نېز هغه حقُ الشرع او حقُ الله دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مقذوف د حدّ قذف عوض اخیستلای سي. ځکه چې د امام شافعي په نېز دا حدّ د بنده خپل حق دی.

(۴)... زموږ په نېز به په حدّ قذف کې تداخل کیږي، یعني که یو څوک پر ډېرو خلکو تهمت ولګوي. نو زموږ په نېز به پر هغه یو حدّ جاري کیږي (لکه څرنګه چې یو سړی په یوه مجلس کې څو ځله د سجدې آیت ولوستي، نو پر هغه یوه سجده واجبیږي)، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به په حدّ قذف کې تداخل نه جاري کیږي او د هر قذف په بدله کې به پر قاذف حدّ جاري کیږي.

د معافولو په سلسله کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله یو روایت د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک په څیر دی. او د احنافو له فقهاوو څخه علامه صدرُ الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په څیر حدّ قذف د بنده حق "حقُ العبد" شماري او د هغه مطابق یې د مسائلو تخریج هم کړې ده، لېکن دا د هغه ذاتي مسئله ده جماعتي نه ده. او اول قول یعني د دې حدّ "حقُ الشرع" کېدل ښکاره او څرګند دی او همدا قول زیاتره مشائخو اختیار کړی دی.

## له تهمت څخه رجوع کول

وَمَنْ أَقَرَّ بِالْقَذْفِ ثُمَّ رَجَعَ او څوک چې [یو وار] د تهمت اقرار وکړي بیا [له تهمت څخه] رجوع وکړي لَمْ يُقْبَلْ رُجُوعُهُ نو د هغه رجوع به نه قبلیږي لِأَنَّ لِلْمَقْذُوفِ فِيهِ حَقًّا ځکه چې په دې اقرار کې د مقذوف حق [هم] سته فَيُكَذِّبُهُ فِي الرُّجُوعِ نو به په رجوع کولو کې به مقذوف د هغه [رجوع کونکي] تکذیب کوي بِخِلَافِ مَا هُوَ خَالِصُ حَقِّ اللهِ په خلاف له هغه شي څخه په رجوع کولو کې کوم چې خالص د الله حق وي لِأَنَّهُ لَا مُكَذِّبَ لَهُ فِيهِ ځکه چې په هغه کې د راجع هېڅ تکذیب کونکی نسته وَمَنْ قَالَ لِعَرَبِيٍّ: يَا نَبَطِيُّ! او څوک چې یو عربي ته وایي: اې نبطي! لَمْ يُحَدَّ نو پر هغه به حدّ نه جاري کیږي لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّشْبِيهُ فِي الْأَخْلَاقِ أَوْ عَدَمِ الْفَصَاحَةِ ځکه چې په داسي [قول] سره په بد اخلاقۍ یا نا فصاحت کې تشبیه ورکول مرادیږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: لَسْتَ بِعَرَبِيٍّ او همدارنګه که [ورته] ووایي: ته عربي نه یې انو هم به پر هغه حدّ نه جاري کیږي] لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه

کوم چي مور ﺍوس ﺍ ذکر کړی وَمَنْ قَالَ لِرَجُلٍ: يَا ابْنَ مَاءِ السَّمَاءِ! او که يو څوک يو سړي ته ووايي: اې د آسماني اوبو بچيه! فَلَيْسَ بِقَاذِفٍ نو هغه تهمت لګونکی نه دی لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّشْبِيهُ فِي الْجُودِ وَالسَّمَاحَةِ وَالصَّفَاءِ ځکه چي په دې سره په سخاوت، ځوانمردي او صفا والي کي تشبيه ورکول مراديږي لِأَنَّ مَاءَ السَّمَاءِ لُقِّبَ بِهِ لِصَفَائِهِ وَسَخَائِهِ ځکه چي آسماني اوبه د خپل صفاوالي او سخاوت په وجه په دې صفاتو سره يادول کيږي ﺍاو د جود، سماحت او صفاء لقب ورکول کيږي ﺍ وَإِنْ نَسَبَهُ إِلَى عَمِّهِ أَوْ خَالِهِ أَوْ إِلَى زَوْجِ أُمِّهِ او که يو سړی د يو چا نسبت وکړي د هغه د اکا، يا د هغه د ماما، يا د هغه د مور د خاوند وطرف ته فَلَيْسَ بِقَاذِفٍ نو دا سړی ﺍهم ﺍ تهمت لګونکی نه دی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْ هَؤُلَاءِ يُسَمَّى أَبًا ځکه چي په دې کسانو کي هر يوه ته پلار ويل کيږي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى: نَعْبُدُ إِلَهَكَ وَإِلَهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ [البقرة: ۱۳۳] کوم چي اکا دی نو ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي ﺍچي يعقوب عليه السلام خپلو زامنو ته وويل چي زما تر مرګ وروسته به تاسي د چا عبادت کوئ، نو هغو وويل ﺍ: موږ به ستا د رب او ستا د پلرونو ﺍيعني ﺍ د ابراهيم، اسماعيل او اسحاق عليهم السلام د رب عبادت کوو وَإِسْمَاعِيلُ كَانَ عَمَّا لَهُ حال دا چي حضرت اسماعيل عليه السلام د حضرت يعقوب عليه السلام اکا وو وَالثَّانِي لِقَوْلِهِ [1] عليه السلام: اَلْخَالُ أَبٌ او دويم ﺍماما ته د پلار ويل کېدل په دې حديث سره ثابت دي ﺍ چي نبي ﷺ فرمايلي دي: ماما د پلار ﺍپه درجه کي ﺍ وي وَالثَّالِثُ لِلتَّرْبِيَةِ او دريم ﺍناسکه پلار ته د پلار ويل کېدل ﺍ د تربيت کولو په وجه دي.

**اللغات**: ﴿يُكَذِّبُهُ﴾ د تفعيل مضارع ده: دروغجن ثابتول، دروغجن ګڼل، د يو چا د دروغجن کېدلو دعویٰ کول. ﴿جُوْد﴾ سخا، سخاوت. ﴿سَمَاحَة﴾ ځوانمردي، فياضي، سخاوت.

**تشريح**: په دې عبارت کي څلور کوچنۍ مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی پر يو چا تهمت ولګوي، بيا هغه له دې تهمت څخه رجوع وکړي، نو د هغه رجوع کول به معتبر نه وي؛ ځکه چي د هغه د قذف او تهمت سره د مقذوف حق يعني دفعُ العار عن نفسه متعلق سو، او دا مقذوف د هغه په حق کي مکذّب دی (او د قذف په هکله د هغه تکذيب کوي)، لهذا دا رجوع

---

[1] تخريج: لم أجده.

به معتبره نه وي، ها! که چیري دا تهمت د حقُ الله مثلاً د غلا یا د زنا په باره کي وي. نو څرنګه چي هیڅوک د هغه مکذّب نه وي، نو ځکه په حقُ الله کي مُقر او قاذف له خپل اقرار او قذف څخه رجوع کولای سي.

## ﴿ یو څوک بل قوم ته منسوب کول ﴾

(۲).. که یو څوک یو عربي ته ووايي: "اې نبطي!" (نبط د عراق یو ټیټ او کمتره قوم دی). نو پر قائل (ویونکي) به حدّ نه جاري کیږي؛ ځکه چي په دې سره تهمت لګول مقصود نه وي. بلکي په بد اخلاقی یا په نا فصاحت یا جهالت کي تشبیه ورکول مقصود وي. همدارنګه د لَسْتَ بِعَرَبِيٍّ په ویلو سره هم له هغه څخه د عربو د اخلاق او سخاوت نفي کول مقصود وي. عار او تهمت لګول مقصود نه وي، لهذا په دې صورتونو کي به هم پر قائل حدّ نه جاري کیږي.

(۳)... که یو کس یو چا ته ووايي: "اې د آسماني اوبو بچیه!". نو دا هم تهمت نه دی. ځکه چي دا په سخاوت او صفا والي کي تشبیه ورکول دي چي څرنګه د آسمان اوبه بالکل صفا دي او هر کس نا کس اوبه کوي. همداسي ستا ذات هم دی.

(۴)... که یو سړی یو چا ته ووايي "ته خپل د اکا زوی یې! یا د ماما زوی یې! یا د ناسکه پلار زوی یې". نو دا به هم تهمت نه وي، ځکه چي پر اکا، ماما او ناسکه پلار باندي هم د پلار (أب) اطلاق کیږي. پر اکا باندي د أب د اطلاق کېدلو دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: "نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ". په دې آیت کي حضرت اسماعیل عليه السلام ته هم أب ویل سوي دي، حالانکي حضرت اسماعیل د حضرت یعقوب اکا وو. او پر ماما باندي د أب اطلاق په دې حدیث سره ثابت دی چي "الْخَالُ أَبٌ". او بچی د ناسکه پلار تر پالني او تربیت لاندي غټیږي، نو په دې وجه ناسکه پلار ته هم أب وايي.

## د قذف یو څو مبهم الفاظ

وَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ: زَنَأْتَ فِي الْجَبَلِ او کوم څوک چي بل چا ته ووايي: زَنَأْتَ فی الجبل [یعني د زَنَيْتَ پر زَنَأْتَ په همزه سره ووايي] وَقَالَ: عَنَيْتُ صُعُودَ الْجَبَلِ او [بیا] ووايي: چي په دې سره ما "غره ته ختل" مراد کړه حُدَّ نو پر هغه به حدّ جاري کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حکم] د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: لَا يُحَدُّ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغه به حدّ نه جاري کیږي لِأَنَّ الْمَهْمُوزَ مِنْهُ لِلصُّعُودِ حَقِيقَةً ځکه چي "زنأ" په همز سره د "ختلو" د معنی

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في ردّ المحتار (ج:۳، ص:۱۸۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۲]

لپاره حقیقت دی قَالَتْ امْرَأَةٌ مِنَ الْعَرَبِ: وَارْقِ إِلَى الْخَيْرَاتِ زِنَأً فِي الْجَبَلِ د عربو يوې ښځې ويلي دي: غره ته د ختلو په څير نېکيو [او ښېګڼو] ته وخېږه! وَذِكْرُ الْجَبَلِ يُقَرِّرُهُ مُرَادًا او [په دې شعر کې] د "جبل" ذکر کېدل د دغه معنیٰ [ختلو] مرادېدل ثابتوي وَلَهُمَا: أَنَّهُ يُسْتَعْمَلُ فِي الْفَاحِشَةِ مَهْمُوزًا أَيْضًا او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې "زنأت" په همز سره هم د بدکارۍ لپاره استعماليږي لِأَنَّ مِنَ الْعَرَبِ مَنْ يَهْمِزُ الْمُلَيَّنَ كَمَا يُلَيِّنُ الْمَهْمُوزَ ځکه چې ځيني عرب خفيف الف په همز سره بدلوي لکه څرنګه چې همزه په الف سره بدلوي وَحَالَةُ الْغَضَبِ وَالسِّبَابِ تُعَيِّنُ الْفَاحِشَةَ مُرَادًا او د غصې او ښکنځا حالت د بدکارۍ [زنا] مرادېدل متعين کوي بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا قَالَ يَا زَانِئُ أَوْ قَالَ زَنَأْتَ لکه څرنګه چې يو څوک يَا زَانِئُ يا زَنَأْتَ [مطلق] ووايي [او "جبل" ور سره ذکر نه کړي] وَذِكْرُ الْجَبَلِ إِنَّمَا يُعَيِّنُ الصُّعُودَ مُرَادًا إِذَا كَانَ مَقْرُونًا بِكَلِمَةِ عَلَى او د "الجبل" ذکر کېدل به هغه وخت د "ختلو" مراد متعينولای کله چې "الجبل" د "علیٰ" د کلمې سره متصل وای إِذْ هُوَ الْمُسْتَعْمَلُ فِيهِ ځکه چې همدا په دې معنیٰ کې مستعمل دی [يعني کله چې جبل د علیٰ سره متصل وي، نو په هغه وخت کې د ختلو په معنیٰ سره استعماليږي] وَلَوْ قَالَ: زَنَأْتَ عَلَى الْجَبَلِ او که [ورته] ووايي: زَنَأْتَ عَلَى الْجَبَل قِيلَ: لَا يُحَدُّ نو يو قول دا دی: چې پر هغه به حدّ نه جاري کيږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَقِيلَ: يُحَدُّ او [بل] قول دا دی: چې پر هغه به حدّ جاري کيږي لِلْمَعْنَى الَّذِي ذَكَرْنَاهُ د هغه معنیٰ په وجه کوم چې موږ ذکر کړه وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: يَا زَانِي! فَقَالَ: لَا بَلْ أَنْتَ او څوک چې بل چا ته ووايي: اې زنا کاره! نو هغه [په جواب کې ورته] ووايي: چې زه نه بلکې ته! فَإِنَّهُمَا يُحَدَّانِ نو پر دواړو به حدّ جاري کيږي لِأَنَّ مَعْنَاهُ: لَا بَلْ أَنْتَ زَانٍ ځکه چې د دې مطلب دی: چې زه نه بلکې ته زناکاره يې! إِذْ هِيَ كَلِمَةُ عَطْفٍ يُسْتَدْرَكُ بِهَا الْغَلَطُ ځکه چې "لَا بَلْ" د عطف کلمه ده چې په هغه سره اد ماقبل [ د غلطۍ اصلاح کيږي فَيَصِيرُ الْخَبَرُ الْمَذْكُورُ فِي الْأَوَّلِ مَذْكُورًا فِي الثَّانِي لهذا په اوله جمله کې چې کوم خبر ذکر سوی دی هغه به په دويمه جمله کې هم مذکور ګرځي [يعني هغه خبر به په دويمه جمله کې هم وي] وَمَنْ قَالَ

لِامْرَأَتِهِ: يَا زَانِيَةُ فَقَالَتْ لَا بَلْ أَنْتَ او څوک چي خپلي ښځي ته ووايي: اې زناکاري! نو ښځه ووايي: چي زه نه بلکي ته! حُدَّتِ الْمَرْأَةُ نو پر ښځي به حدّ جاري کيږي وَلَا لِعَانَ او لعان به [واجب] نه وي لِأَنَّهُمَا قَاذِفَانِ ځکه چي دوی دواړه تهمت لګونکي دي وَقَذْفُهُ يُوجِبُ اللِّعَانَ وَقَذْفُهَا الْحَدَّ او د خاوند تهمت لګول لعان واجبوي او د ښځي تهمت لګول حدّ واجبوي وَفِي الْبِدَايَةِ بِالْحَدِّ إِبْطَالُ اللِّعَانِ او په حدّ باندي په شروع کولو سره لعان باطليږي لِأَنَّ الْمَحْدُودَ فِي الْقَذْفِ لَيْسَ بِأَهْلٍ لَهُ ځکه چي محدود في القذوف دلعان أهل نه پاتيږي وَلَا إِبْطَالَ فِي عَكْسِهِ أَصْلًا او د دې په برعکس کي لعان باطلېداى نه سي فَيُحْتَالُ لِلدَّرْءِ نو د لعان ساقطولو لپاره به [همدا] حيله کيږي [چي اول به پر ښځي حدّ جاري کيږي] إِذْ اللِّعَانُ فِي مَعْنَى الْحَدِّ ځکه چي لعان [هم] د حدّ په معنیٰ سره دی.

**اللغات**: ﴿زَنَأْتَ﴾ د فتح ماضي ده: لوړ ځای ته ختل، يو ځای ته پنا وړل. او عرب ځيني وخت زَنَيْت هم د زَنَأْت په معنیٰ سره استعمالوي، او په دغه عبارت کي په همدې هکله تفصيلي بيان سوی دی. ﴿صُعُوْد﴾ د سمع مصدر دی: ختل، پورته کېدل، لوړېدل. ﴿إِرْقَ﴾ د سمع له باب څخه د واحد مذکر أمر حاضر صيغه ده. رَقِيَ يَرْقَىٰ رَقْيًا: ختل. ﴿مُلِيْن﴾ د لَيْن (نرموالي) څخه مشتق دی. الف ته "ملين" وايي. ﴿سَبَّاب﴾ ښکنځا، ښکنځل، سپکتيا، اهانت.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلي ذکر سوي دي:

(١)... که يو سړی بل چا ته ووايي: زَنَأْتَ فِي الْجَبَل. او بيا ووايي چي په دې جمله سره زما مراد دا وو چي ته پر غره ختلي وې، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به د هغه د نيت اعتبار نه کيږي او پر هغه به حدّ جاري کيږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به د هغه دا نيت معتبر وي او پر هغه به حدّ نه جاري کيږي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي د "زِنأ" لفظ چي کله په همزه سره استعمال سي، نو هغه د "ختلو" په معنیٰ کي حقيقت وي، لکه د يوې عربي ښځي په دې شعر کي چي مستعمل دی "وَارْقِ إِلَى الخيرات زنأ في الجبل" (يعني څرنګه چي انسان غره ته خيږي همداسي ته هم د نېکيو او ښېګڼو غره ته وخېږه!). دلته هم زنأ مهموز دی او تر هغه وروسته د الجبل لفظ ذکر سوی دی، دا د همدې خبري تائيد کوي چي له زنأ څخه "غره ته ختل" مراد دي. او څرنګه چي په پورتنۍ جمله کي هم د الجبل لفظ ذکر سوی دی. نو ځکه به هلته هم له زنأت څخه "غره ته ختل" مراد وي. نه زنا کول.

**د شیخینو دلیل**: دا دی چي مهموز "زنأ" چي څرنګه د "ختلو" په معنیٰ سره استعمالیږي همداسې د فحش او زنا کاري په معنیٰ سره هم استعمالیږي، ځکه د عربو دا عادت دی چي هغوی کله نا کله غیر مهموز لفظ ته همزه ورکوي او کله له مهموز لفظ څخه همزه لیري کوي، او د غضب او ښکنځا موقع د دې خبري تائید او تعیین کوي چي له زنأت څخه فحش او زنا کاري مراد ده، لکه څرنګه چي یو څوک د جبل له ذکر څخه بغیر یَا زَانِئ یا زَنَأْت ووایي نو له هغه څخه هم فحش او زنا کول مرادوي، او پاتې سوه د امام محمد رَحِمَهُ الله دا وینا چي د الجبل په ذکر کېدلو سره دلته زنأت د "ختلو" د معنیٰ لپاره متعین دی، نو د هغه جواب دا دی چي زنأت به دلته هغه وخت د "ختلو" لپاره متعین کېدلای کله چي پر الجبل د "عَلیٰ" کلمه داخله وای ځکه چي دا لفظ د "عَلیٰ" په کلمه سره د "ختلو" په معنیٰ کي استعمالیږي، لېکن دلته خو پر هغه د "فِيْ" کلمه داخله ده، نو ځکه به دا د "ختلو" د معنیٰ لپاره نه متعین کیږي.

**ولوقال إلخ**: فرمايي که یو څوک بل چا ته "زَنَأْتَ عَلَی الجَبَل" ووایي، نو یو قول دا دی چي پر الجبل باندي د عَلیٰ د داخلېدلو په وجه دا جمله د "ختلو" د معنیٰ لپاره متعینه ده، نو ځکه به پر قائل حدّ واجب نه وي، لېکن دویم قول دا دی چي که چیري د غضب حالت وي نو په دې سره هم فحش او زنا مرادیږي.

(۲)... که زید خالد ته ووايي: اې زاني، او خالد په جواب کي ورته ووايي لَا بَلْ أَنْتَ (چي زه نه بلکي ته!)، نو پر زید او خالد دواړو به حدّ جاري کیږي، ځکه چي د لَا بَلْ أَنْتَ مطلب دی لَا بَلْ أَنْتَ زَانٍ. ځکه چي لَا بَلْ د عطف کلمه ده کوم چي د ماقبل د غلطۍ د صحیح کولو لپاره وضع سوې ده او تر عطف وروسته که چیري خبر نه وي نو په معطوف علیه کي ذکر سوی خبر د هغه خبر ګرځول کیږي، او څرنګه چي په ماقبل کي "زاني" خبر دی، نو ځکه به دا عبارت لَا بَلْ أَنْتَ زَانِي وي او زید او خالد به دواړه قاذفین وي او پر دواړو به حدّ جاري کیږي.

(۳)... که یو سړي خپلې ښځي ته ووايي: اې زناکاري! او ښځه په جواب کي ورته ووايي: زه نه بلکي ته!، یعني بلکي ته زناکاره یې، نو پر ښځي به حدّ جاري کیږي لېکن پر سړي به لعان نه واجبیږي، ځکه دلته که څه هم خاوند او ښځه دواړه قاذفین دي، او د سړي قذف د لعان موجِب دی (یعني د سړي تهمت لګول پر هغه لعان واجبوي)، او د ښځي قذف د حدّ موجِب دی، لېکن کله چي پر ښځي حدّ جاري کړی سي نو هغه د لعان أهل نه پاتیږي (یعني تر حدّ جاري کېدلو وروسته ښځه د دې أهل نه پاتیږي چي د هغې په وجه پر خاوند لعان واجب کړی سي)، نو د لعان ختمولو لپاره به همدا حیله کیږي چي اول پر ښځي حدّ جاري کړی سي چي ښځه محدود فی القذف وګرځي، او لعان ساقط سي.

## د خاوند او ښځې یوه او بل ته د زنا کولو نسبت کول (د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت)

وَلَوْ قَالَتْ: زَنَيْتُ بِكَ او که ښځه [خاوند ته په جواب کې] ووايي: ما [خو فقط] ستا سره زنا کړې ده فَلَا حَدَّ وَلَا لِعَانَ نو نه حدّ سته او نه لعان سته مَعْنَاهُ: قَالَتْ بَعْدَ مَا قَالَ لَهَا يَا زَانِيَةُ د دې مطلب دا دی: چې د خاوند تر يَا زَانِيَةُ! ويلو وروسته ښځه هغه دا [جمله] ووايي لِوُقُوعِ الشَّكِّ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چې له دوی څخه په هر یوه کې شک واقع سو [یعني د دواړو په خبره کې شک پیدا سو] لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنَّهَا أَرَادَتِ الزِّنَا قَبْلَ النِّكَاحِ ځکه کېدای سي چې ښځې تر نکاح مخکې زنا مراد کړې وي فَيَجِبُ الْحَدُّ دُونَ اللِّعَانِ نو [فقط] حدّ به واجبېږي، نه لعان لِتَصْدِيقِهَا إِيَّاهُ وَانْعِدَامِهِ مِنْهُ ځکه ښځې [خو] د خاوند تصدیق وکړی [لیکن] د خاوند له طرفه [د هغې تصدیق] نه وسو وَيَحْتَمِلُ أَنَّهَا زَنَا یَ مَاكَانَ مَعَكَ بَعْدَ النِّكَاحِ او دا هم کېدا سي چې د ښځې مراد دا وي چې زما زنا [خو فقط] هغه [وطي] دي کوم چې تر نکاح وروسته ستا سره سوي دي لِأَنِّي مَا مَكَّنْتُ أَحَدًا غَيْرَكَ ځکه چې ما ستا څخه بغیر [بل] هیچا ته [پر خپل ځان] قدرت ور کړی نه دي وَهُوَ الْمُرَادُ فِي مِثْلِ هٰذِهِ الْحَالَةِ او په داسې حالت کې همدغه احتمال مرادېږي وَعَلٰى هٰذَا الِاعْتِبَارِ يَجِبُ اللِّعَانُ دُونَ الْحَدِّ عَلَى الْمَرْأَةِ او د دې احتمال په معتبر ګرځولو سره به [پر خاوند] لعان واجبېږي او پر ښځې به حدّ نه [واجبېږي] لِوُجُودِ الْقَذْفِ مِنْهُ وَعَدَمِهِ مِنْهَا ځکه چې قذف د خاوند له طرفه موجود دی او د ښځې له طرفه نسته فَجَاءَ مَا قُلْنَا نو هغه خبره سوه کوم چې موږ وویل وَمَنْ أَقَرَّ بِوَلَدٍ ثُمَّ نَفَاهُ او که خاوند دیو بچي اقرار وکړي [او] بیا د هغه نفي وکړي فَإِنَّهُ يُلَاعِنُ نو هغه به لعان کوي [یعني پر هغه به لعان واجبېږي] لِأَنَّ النَّسَبَ لَزِمَهُ بِإِقْرَارِهِ ځکه چې د هغه په اقرار سره نسب د هغه سره لازم سو وَبِالنَّفْيِ بَعْدَهُ صَارَ قَاذِفًا او تر اقرار وروسته په نفي کولو سره هغه تهمت لګونکی وګرځېدی فَيُلَاعِنُ نو ځکه به لعان کوي وَإِنْ نَفَاهُ ثُمَّ أَقَرَّ بِهِ او که د بچي نفي وکړي بیا د هغه اقرار وکړي حُدَّ نو حدّ به پر جاري کېږي لِأَنَّهُ لَمَّا أَكْذَبَ نَفْسَهُ ځکه کله چې هغه خپل ځان دروغجن کړی بَطَلَ اللِّعَانُ نو لعان باطل سو لِأَنَّهُ حَدٌّ ضَرُورِيٌّ صِيرَ إِلَيْهِ ضَرُورَةَ التَّكَاذُبِ ځکه چې لعان پر ضرورت مبني حدّ دی

چې د تکاذب د ضرورت په وجه د هغه وطرف ته رجوع کیږي [یعنې لعان خو په هغه وخت کې کیږي کله چې خاوند او ښځه یو د بل تکذیب وکړي او یوه او بل ته دروغجن ووایي] وَالْأَصْلُ فِيهِ حَدُّ الْقَذْفِ او أصل [خو] په دې کې حدِّ قذف دی فَإِذَا بَطَلَ التَّكَاذُبُ لهذا کله چې تکاذب باطل سو يُصَارُ إِلَى الْأَصْلِ نو دِ أصل وطرف ته به رجوع کیږي وَالْوَلَدُ وَلَدُهُ فِي الْوَجْهَيْنِ او بچی به په دواړو صورتونو کې د پلار [خاوند] بچی وي لِإِقْرَارِهِ بِهِ سَابِقًا أَوْ لَاحِقًا ځکه چې هغه د بچي اقرار کړی دی [په اول صورت کې] تر نفي مخکې یا [په دویم صورت کې] تر نفي وروسته وَاللِّعَانُ يَصِحُّ بِدُونِ قَطْعِ النَّسَبِ او لعان [خو] له نسب ختمولو څخه بغیر هم صحیح کیږي كَمَا يَصِحُّ بِدُونِ الْوَلَدِ لکه څرنګه چې له بچي څخه بغیر صحیح کیږي وَإِنْ قَالَ: لَيْسَ بِابْنِي وَلَا بِابْنِكِ او که [یو شوک خپلې ښځې ته] ووایي: چې دا نه زما زوی دی او نه ستا زوی دی فَلَا حَدَّ وَلَا لِعَانَ نو نه حدّ سته او نه لعان سته لِأَنَّهُ أَنْكَرَ الْوِلَادَةَ ځکه چې هغه [د بچي] د پیداکېدلو انکار وکړی وَبِهِ لَا يَصِيرُ قَاذِفًا او په دې انکار سره هغه تهمت لګونکی نه ګرځي وَمَنْ قَذَفَ امْرَأَةً وَمَعَهَا أَوْلَادٌ لَمْ يُعْرَفْ لَهُمْ أَبٌ او که شوک پر داسې ښځې تهمت ولګوي چې د هغې سره یو څو بچیان وي [لیکن] د هغو پلار نامعلوم وي أَوْ قَذَفَ الْمُلَاعَنَةَ بِوَلَدٍ یا یو شوک پر داسې ښځې تهمت ولګوي چې هغې د خپل خاوند سره د بچي هکله لعان کړی وی وَالْوَلَدُ حَيٌّ او بچی ژوندی وي أَوْ قَذَفَهَا بَعْدَ مَوْتِ الْوَلَدِ یا د بچي تر مرګ وروسته پر هغې تهمت ولګوي فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ نو پر هغه به حدّ [واجب] نه وي لِقِيَامِ أَمَارَةِ الزِّنَا مِنْهَا ځکه چې د ښځې له طرفه د زنا علامت موجود دی وَهِيَ وِلَادَةُ وَلَدٍ لَا أَبَ لَهُ او هغه د داسې بچي ولادت دی چې د هغه پلار نسته فَفَاتَتِ الْعِفَّةُ نَظَرًا إِلَيْهَا نو دغه علامت په کتلو سره [د ښځې] پاکوالی فوت سو وَهِيَ شَرْطُ الْإِحْصَانِ او همدا پاکوالی د إحصان شرط دی الهذا کله چې عفت پاته نه سو. نو هغه محصنه نه سوه. نو ځکه به پر هغه حدّ واجب نه وي] وَلَوْ قَذَفَ امْرَأَةً لَاعَنَتْ بِغَيْرِ وَلَدٍ او که یو شوک پر داسې ښځې تهمت ولګوي چې هغې بغیر له بچي څخه لعان کړی وی فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر قاذف به حدّ [واجب] وای لِانْعِدَامِ أَمَارَةِ الزِّنَا ځکه چې [د ښځې له طرفه] د زنا علامت نسته.

**اللغات**: ﴿نَفَاهُ﴾ د ضرب ماضي ده: نفي كول، يو بچى له خپل نسب څخه نفي كول (چي دا زما بچى نه دى)، ﴿أَمَارَةٌ﴾ علامت (علامه)، نښه، نښاني.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه چيري خاوند خپلي ښځي ته يَا زَانِيَة ووايي، او په جواب كي ښځه ورته ووايي: زَنَيْتُ بِكَ، نو په دې صورت كي نه حدّ واجبيږي او نه لعان، ځكه چي د ښځي په دې قول كي دوه احتماله سته: (١)... اول احتمال دا دى چي ښځي به په خپل قول سره قبل النكاح زنا مراد كړې وي، په دې صورت كي به هغه د خاوند تصديق كونكې وي، نو ځكه به له خاوند څخه لعان ساقطيږي او پر ښځي به حدّ واجبيږي، ځكه چي خاوند د هغې تصديق نه دي كړى. (٢)... دويم احتمال دا دى چي ښځي به په خپل قول سره له هغه وطي څخه زنا مراد كړې وي كوم چي هغې تر نكاح وروسته د خاوند سره كړې وي، او په داسي حالت كي چي خاوند ښځي ته ښكنځل كوي يا پر هغي تهمت لګوي نو همدغه معنىٰ مراديږي، نو د دې معنىٰ په اعتبار سره به پر خاوند لعان واجب وي، ځكه چي د خاوند له طرفه قذف او تهمت موجود سو او د ښځي له طرفه قذف نسته. او څرنګه چي دلته له دې دواړو احتمالونو څخه يو احتمال هم راجح نه دى، نو ځكه د لعان او حدّ په واجبېدلو كي شک او شبهه پيدا سوه، او د شبهي په وجه نه حدّ واجبيږي او نه لعان.

ومن أقرّ بولد إلخ: مسئله دا ده كه يو سړى د خپل بچي د نسب اقرار وكړي بيا د هغه نفي وكړي نو هغه به لعان كوي، ځكه چي د هغه په اقرار كولو سره د دغه بچي نسب د هغه سره ثابت سو. او تر اقرار وروسته په نفي كولو سره دا سړى د بچي پر مور د زنا تهمت لګونكى وګرځېدى. او خاوند كه چيري پر ښځه د زنا تهمت ولګوي نو پر هغه لعان واجبيږي، نو ځكه به دلته خاوند لعان كوي. او كه صورت داوي چي اول خاوند د بچي نفي وكړي بيا اقرار وكړي نو پر هغه به حدّ جاري كيږي. لعان به نه واجبيږي، ځكه چي تر نفي وروسته د خاوند په اقرار سره د خاوند تكذيب وسو او د همدغه تكذيب لپاره لعان واجبيږي. نو كله چي تر لعان مخكي د لعان مقصد حاصل سو نو لعان به باطليږي او د قذف أصل سزا يعني حدّ به بيرته راګرځي او حدّ به پر هغه واجبيږي.

او په دواړو صورتونو كي به بچي د خاوند وي (برابره ده هغه كه تر اقرار وروسته نفي كړي وي يا يې تر نفي وروسته اقرار كړى وي)، ځكه چي په هر صورت كي د هغه له طرفه اقرار موجود دى. او د بچي نفي كول د لعان له صحّت څخه مانع نه دي، ځكه چي د نسب له قطع كولو څخه بغير هم لعان صحيح كيږي لكه څرنګه چي له بچي څخه بغير (بدون الولد) هم لعان صحيح دى او كله چي له بچي څخه بغير لعان صحيح دى، نو د نفي په صورت كي به هم لعان صحيح كيږي.

که یو سړی د یو بچي په هکله خپلې ښځې ته ووایي چې دا نه زما بچی دی او نه ستا بچی دی. نو ځرنګه چې دا د ولادت نفي دي، قذف نه دی، نو ځکه به هیڅ شی هم نه واجبیږي (نه حدّ او نه لعان).
همدارنګه که د یوې ښځې سره یو څو بچیان وي لېکن د هغو د پلار نوم او نښان معلوم نه وي. او بیا پر هغوی یو څوک تهمت ولګوي، یا پر یوې داسې ښځې یو څوک تهمت ولګوي چې هغې مخکې د خپل بچي په هکله د خاوند سره لعان کړی وي او د هغې بچی ژوندی وي، یا د بچي تر مرګ وروسته یو څوک پر دغه مُلاعنه ښځه باندې تهمت ولګوي، نو په دې صورتونو کې به پر قاذف حدّ نه واجبیږي؛ ځکه چې د دې ښځې په حق کې د زنا علامه (نښه) موجود ده، یعنې د هغې سره د بې پلاره بچي پیدا کېدل او موجودېدل د هغې په حق کې د زنا سبب دی (مطلب دا چې هغې سره بچی موجود دی لېکن نسب یې د یو چا سره ثابت نه دی. نو دا د زنا علامه او سبب دی)، نو د همدې سبب په وجه د هغې عفت او پاک لمنې فوت سوه، حالانکې د إحصان لپاره عفت شرط دی. لهذا که چیرې بیا هم مورږ دا قذف ومنو، نو هم به د دې مقذوفه ښځې د غیرِ محصنوالي په وجه پر قاذف حدّ نه جاري کیږي. د دې په خلاف که یو څوک پر داسې ښځې تهمت ولګوي چې هغې له بچي څخه بغیر له خپل خاوند څخه لعان کړی وي، نو پر قاذف به حدّ جاري کیږي؛ ځکه چې د دې ښځې په حق کې د زنا علامه یعنې بې پلاره بچی موجود نه دی، نو دلته قاذف پر محصنه ښځه باندې تهمت لګونکی دی. نو ځکه به پر هغه حدّ جاري کیږي.

## حرام وطي کونکي ته "زاني" ویل

| قَالَ: وَمَنْ وَطِئَ وَطْئًا حَرَامًا فِي غَيْرِ مِلْكِهِ فرمايي: او څوک چې د بل چا په ملکیت کې نا روا وطي وکړي لَمْ يُحَدَّ قَاذِفُهُ نو د هغه پر تهمت لګونکي به حدّ نه جاري کیږي لِفَوَاتِ الْعِفَّةِ ځکه چې عفت [پاکوالی] فوت دی وَهِيَ شَرْطُ الْإِحْصَانِ حال دا چې عفت د إحصان شرط دی. وَلِأَنَّ الْقَاذِفَ صَادِقٌ او ځکه چې تهمت لګونکی رېښتونی دی وَالْأَصْلُ فِيهِ: أَنَّ مَنْ وَطِئَ وَطْئًا حَرَامًا لِعَيْنِهِ لَا يَجِبُ الْحَدُّ بِقَذْفِهِ او په دې سلسله کې أصل [قاعده] دا ده: چې څوک داسې وطي وکړي کوم چې حرام لعینه وي نو پر هغه د تهمت په لګولو سره به حدّ نه واجبیږي ایعنې څوک چې پر هغه تهمت ولګوي، پر هغه به حدّ نه جاري کیږي] لِأَنَّ الزِّنَا هُوَ الْوَطْءُ الْمُحَرَّمُ لِعَيْنِهِ ځکه چې زنا هغه وطي ته وایي کوم چې حرام لعینه وي وَإِنْ كَانَ مُحَرَّمًا لِغَيْرِهِ او که وطي حرام لغیره وي يُحَدُّ نو د هغه پر قاذف به حدّ جاري کیږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِزِنًا ځکه چې دا زنا نه ده فَالْوَطْءُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ أَوْ مِنْ وَجْهٍ |
| --- |

حَرَامٌ لِعَيْنِهِ نو هغه وطي کوم چې په هر اعتبار سره يا په يوه اعتبار سره د بل چا په ملکيت کې وي. هغه حرام لعينهٖ دي وَكَذَا الْوَطْءُ فِي الْمِلْكِ وَالْحُرْمَةُ مُؤَبَّدَةٌ همدارنګه هغه وطي اهم حرام لعينهٖ دي ا کوم چې په اخپل ا ملکيت کې وي ليکن حُرمت مؤبد وي ايعني د همېشه لپاره وطي حرام وي ا فَإِنْ كَانَتِ الْحُرْمَةُ مُؤَقَّتَةً ليکن که مؤقت حرمت وي فَالْحُرْمَةُ لِغَيْرِهِ نو ادا ا حرمت لغيرهٖ دی وَأَبُوحَنِيفَةَ يَشْتَرِطُ أَنْ تَكُونَ الْحُرْمَةُ الْمُؤَبَّدَةُ ثَابِتَةً بِالْإِجْمَاعِ أَوْ بِالْحَدِيثِ الْمَشْهُورِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی چې حرمت مؤبده به بالاتفاق ثابت وي يا به په حديث مشهور سره ثابت وي لِتَكُونَ ثَابِتَةً مِنْ غَيْرِ تَرَدُّدٍ د دې لپاره چې له څه شک څخه بغير حرمت ثابت سي بَيَانُهُ: أَنَّ مَنْ قَذَفَ رَجُلًا وَطِئَ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً بَيْنَهُ وَبَيْنَ آخَرَ د دې وضاحت دا دی: چې که يو څوک پر هغه سړي تهمت ولګوي چې هغه د داسي مينځې سره وطي کړې وي کوم چې د هغه او بل کس تر مينځ مشترکه وي فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ نو پر هغه به حدّ اواجب ا نه وي لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې مِن وجه ملکيت نسته وَكَذَا إِذَا قَذَفَ امْرَأَةً زَنَتْ فِي نَصْرَانِيَّتِهَا همدارنګه که ايو څوک ا پر داسي ښځې تهمت ولګوي چې هغې د خپل نصرانيت په زمانه کې زنا کړې وي انو پر هغه به هم حدّ نه جاري کيږي ا لِتَحَقُّقِ الزِّنَا مِنْهَا شَرْعًا ځکه چې له دغه ښځې څخه شرعاً زنا ثابته ده لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ ځکه چې ملکيت نسته ايعني ځکه چې دا ښځه د زاني په ملکيت کې نه وه ا وَلِهَذَا وَجَبَ عَلَيْهَا الْحَدُّ همدا وجه ده چې پر هغې ا د زنا ا حدّ واجبېدای سي.

**اللغات**: ﴿عِفَّةٌ﴾ پاک لمني، پاک لمنوالی (پاکوالی)، له زنا او ناروا وطي څخه ځان ساتل. ﴿مُؤَبَّدَةٌ﴾ أبدي، همېشنی، د همېشه لپاره ثابت شی. ﴿مُؤَقَّتَةٌ﴾ مؤقت شی، تر يو معلوم او ټاکلي وخت پوري ثابت شی. ﴿حَرَام لِعَيْنِهِ﴾ (هغه وطي کوم چې د خپل ذات په وجه ناروا او حرام وي)، کومه ښځه يا مينځه چې په ذاتي توګه د سړي لپاره حرامه وي (مثلاً خپله قريبه او داسي نور)، نو د هغې سره وطي کول حرام لعينهٖ دي، ځکه چې د هغې د عين او ذات په وجه وطي ور سره حرام دي، او داسي حُرمت ته حُرمت لعينهٖ وايي. ﴿حَرَام لِغَيْرِهِ﴾ (هغه وطي کوم چې د بل عارض په وجه حرام وي)، که په ذاتي توګه ښځه يا مينځه د سړي په ملکيت کې وي، ليکن د حيض په وجه، يا د مجوسيت په وجه، يا د مکاتبوالي په وجه يا په داسي بله وجه د هغې سره وطي کول ناروا او ممنوع وي، نو داسي وطي ته حرام لغيرهٖ وايي، ځکه چې د ذات په اعتبار سره خو دا وطي روا دي، ليکن د يو بل عارض په وجه ناروا دي، او داسي حُرمت ته حُرمت لغيرهٖ وايي.

**تشريح : مسئله** : دا ده که يو سړی د بل چا په ملکيت کي حرامه جماع او وطي وکړي. برابره ده دا حُرمت که من کُلّ وجهٍ وي لکه د پردۍ (أجنبيه) ښځي سره وطي کول يا فقط من وجه وي لکه د مشترکه مينځي سره وطي کول. نو که يو څوک پر داسي واطئ د زنا تهمت ولګوي. نو پر قاذف به حدّ نه جاري کيږي. ځکه چي په مقذوف کي عفّت (پاک لمني) نسته. حال دا چي د مقذوف د محصنوالي لپاره عفت شرط دی. او بل دا چي هغه نا روا (حرام) وطي کړي دي. نو ځکه قاذف په خپل قول کي رښتونی هم دی او په رښتوني قذف کي حدّ نه جاري کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې سلسله کي يوه قاعده کليه بيانوي فرمايي چي پر حرام وطي کونکي تهمت لګول د حدّ مُوجِب نه دي؛ ځکه چي حرام وطي صريحه زنا ده او حرام لعينهٖ ده. لېکن که وطي حرام لعينهٖ نه وي بلکي حرام لغيرهٖ وي لکه د خپلي حائضه ښځي يا نفاسه ښځي سره وطي کول يا د خپلي مجوسي يا مکاتبي مينځي سره وطي کول. نو پر داسي واطئ به تهمت لګول د حدّ موجِب وي. د حرمتِ مؤبده لپاره امام صاحب رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی چي هغه به په إجماع يا حديثِ مشهور سره ثابت وي لکه څرنګه چي د خپل پلار د موطوئه ښځي سره د ملکِ نکاح يا ملکِ يمين په ذريعه وطي کول بالإجماع حرام دي يا لکه د داسي منکوحه ښځي سره وطي کول چي له ګواهانو څخه بغير نکاح ور سره سوې وي د دې حديث لَا نِكَاحَ إِلَّا بِالشُّهُوْدِ په وجه حرام دي. اوس که چيري حُرمت په دغه دوو وجهو (إجماع او حديثِ مشهور) سره ثابت وي. نو هغه به په يقيني او قطعي توګه ثابت وي او د حدّ موجِب به وي.

**وكذا إذا إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که نصراني ښځي تر اسلام راوړلو مخکي زنا کړې وي. بيا تر اسلام راوړلو وروسته يو څوک پر هغې د زنا تهمت ولګوي. نو پر قاذف به حدّ نه جاري کيږي؛ ځکه له دې ښځي څخه شرعاً زنا ثابته ده. او هغې حقيقتاً زنا کړې ده. شرعاً ځکه ثابته ده چي که دا نصراني ښځه په دارُ الاسلام کي وای او پر هغې زنا ثابته سوې وای. نو پر هغې به حدّ واجبېدای. نو ځکه به د هغې پر تهمت لګونکي حدّ قذف نه جاري کيږي.

## له مخکنۍ مسئلې څخه يو څو مستثنیٰ سوي مسئلې

وَلَوْ قَذَفَ رَجُلًا أَتَى أَمَتَهُ وَهِيَ مَجُوسِيَّةٌ أَوْ امْرَأَتَهُ وَهِيَ حَائِضٌ أَوْ مُكَاتَبَةً لَهُ او که ا يو څوک ا پر داسي سړي تهمت ولګوي چي هغه د خپلي مجوسي مينځي سره وطي کړي وي يا يې د خپلي حائضه ښځي يا مکاتبه مينځي سره وطي کړې وي فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو پر هغه به حدّ اواجب ا وي لِأَنَّ الْحُرْمَةَ مَعَ قِيَامِ الْمِلْكِ وَهِيَ مُؤَقَّتَةٌ ځکه چي د ملکيت موجودېدلو باوجود چي کومي وطي حرام وي هغه په وقتي توګه حرام وي فَكَانَتِ الْحُرْمَةُ لِغَيْرِهِ نو ځکه به دا حرمت لغيرهٖ وي فَلَمْ يَكُنْ زِنًا لهذا دا به زنا

نه وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ﷺ: أَنَّ وَطْءَ الْمُكَاتَبَةِ يُسْقِطُ الْإِحْصَانَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي د مکاتبې مينځي سره وطي کول إحصان ساقطوي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْمِلْكَ زَائِلٌ فِي حَقِّ الْوَطْءِ ځکه چي [په مکاتبه مينځه کي] د وطي په حق کي [د مالک] ملکيت ختم سوی دی وَلِهَذَا يَلْزَمُهُ الْعُقْرُ بِالْوَطْءِ همدا وجه ده چي د وطي په وجه پر واطئ [مالک] باندي عُقر لازميږي وَنَحْنُ نَقُولُ: مِلْكُ الذَّاتِ بَاقٍ وَالْحُرْمَةُ لِغَيْرِهِ إِذْ هِيَ مُؤَقَّتَةٌ او موږ وايو: چي د ذات ملکيت باقي دی او [د هغه] حرمت لغيره دی، ځکه چي دا حرمت مؤقت دی وَلَوْ قَذَفَ رَجُلًا وَطِئَ أَمَتَهُ وَهِيَ أُخْتُهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ او که [يو څوک] پر داسي سړي تهمت ولګوي چي هغه د خپل داسي مينځي سره وطي وکړي چي هغه د ده رضاع خوري وي لَا يُحَدُّ نو پر قاذف به حدّ نه جاري کيږي لِأَنَّ الْحُرْمَةَ مُؤَبَّدَةٌ ځکه چي [د هغې] حرمت أبدي دی [يعني د رضاعي خور سره د همېشه لپاره نکاح حرامه ده] وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي وَلَوْ قَذَفَ مُكَاتَبًا مَاتَ وَتَرَكَ وَفَاءً او که [يو څوک] پر يو مکاتب غلام باندي تهمت ولګوي [او] هغه مړ سي او د بدل کتابت په اندازه مال پرېږدي [يعني مالک چي دا غلام د څومره مال په عوض کي مکاتب جوړ کړی وي. هغومره مال د ده سره موجود وي] لَا حَدَّ عَلَيْهِ نو پر قاذف به حدّ [واجب] نه وي لِتَمَكُّنِ الشُّبْهَةِ فِي الْحُرِّيَّةِ لِمَكَانِ اخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ ځکه چي د مکاتب په آزادوالي کي د صحابه وو د اختلاف په وجه شبهه سته وَلَوْ قَذَفَ مَجُوسِيًّا تَزَوَّجَ بِأُمِّهِ ثُمَّ أَسْلَمَ او که يو څوک پر داسي مجوسي باندي تهمت ولګوي چي هغه د خپلي مور سره واده کړي وي بيا هغه اسلام راوړي يُحَدُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغه حدّ جاري کيږي وَقَالَا: لَا حَدَّ عَلَيْهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه به حدّ [واجب] نه وي. وَهَذَا بِنَاءٌ عَلَى أَنَّ تَزَوُّجَ الْمَجُوسِيِّ بِالْمَحَارِمِ لَهُ حُكْمُ الصِّحَّةِ فِيمَا بَيْنَهُمْ عِنْدَهُ او دا اختلاف پر دې خبره مبني دی چي د خپلو محارمو سره د مجوسي نکاح کولو لره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د صحيح والي حکم حاصل دی خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله [يعني د صاحبينو

---

• القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:٣، ص:١٩٢). [القول الراجح ج:١، ص:٢٥٥]

په نېز د خپلو محارمو سره د مجوسي نکاح کول صحيح نه دي| وَقَدْ مَرَّ فِي النِّكَاحِ او په کتابُ النکاح کې [د دې بحث] تېر سو وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ او که يو حربي کافر په أمان زموږ دارُ الاسلام ته راسي فَقَذَفَ مُسْلِمًا او پر يو مسلمان تهمت ولګوي حُدَّ نو پر هغه به حدّ جاري کيږي لِأَنَّ فِيهِ حَقَّ الْعَبْدِ ځکه چي په "حدّ قذف" کي د بنده حق سته وَقَدْ الْتَزَمَ إِيفَاءَ حُقُوقِ الْعِبَادِ او [په أمان راتلونکي] حربي د حقوقُ العباد د پوره کولو التزام کړی دی وَلِأَنَّهُ طَمِعَ فِي أَنْ لَا يُؤْذَى او ځکه چي دغه حربي دا اُميد [او خواهش] کړی دی چي ده ته دي ضرر نه رسول کيږي فَيَكُونُ مُلْتَزَمًا أَنْ لَا يُؤْذِيَ نو هغه به د دې خبري التزام کونکی وي چي هغه به په خپله [هم] چا ته ضرر نه رسوي وَمُوْجَبُ أَذَاهُ الْحَدُّ [کنې] د هغه د ضرر رسولو سزا به "حدّ قذف" وي [يعني که د ضرر ارتکاب وکړي، نو د هغه سزا ته به هم ځان نيسي چي هغه حدّ قذف دی]

**اللغات**: ﴿عُقر﴾ د ناروا وطي جرمانه (د هغه ناروا وطي عوض او جرمانه چي په هغه سره حدّ نه واجبيږي)، ﴿لَا يُؤْذَى﴾ د افعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: ضرر او تکليف رسول. تکليف ورکول. ﴿مُوْجَب﴾ د افعال اسمِ مفعول دی: واجب کړی سوی شی: مراد ځني سزا او حدّ دی (ځکه چي هغه د جرم کولو په وجه واجبيږي).

**تشريح**: د قذف او حدّ قذف په هکله په دې عبارت کي پنځه مسئلې ذکر دي. او دا مسئلې په حقيقت کي د مخکني عبارت د حرام لعينهٖ او حرام لغيرهٖ د مثالونو سره تعلق لري.

(۱)... که يو سړی د خپلي مجوسي مينځي يا د مکاتبي مينځي سره وطي وکړي يا د خپلي حائضه ښځي سره وطي وکړي او بيا يو څوک پر هغه د زنا تهمت ولګوي، نو پر قاذف به حدّ واجبيږي: ځکه چي په دغه صورتونو کي که څه هم وطي حرام دي، لېکن په موطوئه کي د واطئ ملکيت موجود دی، نو دا به حرمت لغيرهٖ وي او د واطئ وطي به زنا نه وي، نو ځکه به قاذف په خپل تهمت کي کاذب او دروغجن وي او د هغه قذب به د حدّ موجِب وي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د مکاتبه مينځي سره د وطي کولو په وجه إحصان ختميږي. ځکه چي په مکاتبه مينځه کي د مالک ملکيت ختم سوی دی، همدا وجه ده چي د مکاتبه مينځي سره د وطي کولو په وجه پر مالک عُقر واجبيږي که چيري په هغې کي د مالک ملکيت پاته واې نو پر مالک به هيڅ عُقر نه واجبېدای. لهذا د مکاتبه مينځي سره وطي کول به د زنا په څير وي، او پر قاذف به حدّ قذف نه واجبيږي. لېکن زموږ له

طرفه هغه ته دا جواب ورکول سوی دی چي مالک لره د مکاتبي مینځي په ذات کي ملکیت حاصل دی، او د مالک په حق کي د وطي حرمت "مؤقته" دی "مؤبده" نه دی ځکه چي دا حرمت لغیره دی، او په مؤقته حرمت سره زنا نه ثابتیږي، نو ځکه به پر قاذف حدّ واجبیږي.

(۲)... که یو سړی د داسي مینځي سره وطي وکړي چي هغه د ده رضاعي خور وي، نو د ده پر قاذف به حدّ نه واجبیږي، ځکه چي د رضاعي خور حُرمت "حُرمتِ مؤبده" دی او د هغي سره وطي کول زنا ده، لهذا قاذف په خپل قذف کي رښتونی دی.

(۳)... که یو سړی پر مکاتب غلام د زنا تهمت ولګوي او بیا مکاتب مړ سي او د بدل کتابت د اداء کولو په اندازه مال پرېږدي، نو د هغه پر قاذف به حدّ نه واجبیږي؛ ځکه چي د صحابه وو په مینځ کي د مکاتب په حُرّیت کي اختلاف دي، حضرت علي او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایي چي دا مکاتب د آزاد والي په حالت کي مړ کیږي (یعني د ده مرګ به د آزاد والي په حالت کي شمارل کیږي). لیکن زید بن ثابت رضي الله عنه فرمایي چي هغه د غلاموالي په حالت کي مړ کیږي (او هغه به غلام شمارل کیږي)، نو دغه اختلاف د هغه د قاذف په حدّ کي شبهه کړه، او حدود په شبهي سره ساقطیږي.

(۴)... که یو سړی پر داسي مجوسي د زنا تهمت ولګوي چي هغه د مجوسیت په زمانه کي د خپلي مور سره نکاح کړې وي او د هغې سره یې وطي کړې وي، بیا اسلام راوړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به پر قاذف حدّ جاري کیږي، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز به پر هغه حدّ نه جاري کیږي، ځکه چي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د خپلو محارمو سره د مجوسیانو نکاح صحیح نه ده، نو د واطئ فعل به زنا وي او قاذف به په خپل قذف کي رښتونی وي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د محارمو سره د مجوسیانو نکاح صحیح ده، نو د واطئ وطي به زنا نه وي او قاذف به په خپل قذف کي درواغجن وي فَيُحَدّ.

(۵)... که یو حربي أمان واخلي او دارُ الاسلام ته راسي، او بیا په دارُ الاسلام کي پر یو مسلمان باندي تهمت ولګوي، نو پر هغه به حدّ جاري کیږي: ځکه چي حدّ قذف د بنده حق (حقُ العبد) دی، او حربي مستأمن د حقوقُ العباد د رعایت کولو عهد او پیمان کوي (لکه مخکي چي په دې هکله بیان سو)، لهذا د دې عهد په ماتولو سره به هغه ته سزا ورکول کیږي، دویم دلیل دا دی چي حربي په أمان اخیستلو سره دا طمع وکړه او دا خواهش یې ښکاره کړی چي ما ته دي څوک تکلیف نه رسوي، نو د هغه دا خواهش به هغه وخت پوره کیږي کله چي هغه نه بل چا ته تکلیف ورسوي او نه یو داسي حرکت وکړي چي په هغه حرکت سره بل چا ته تکلیف رسیږي.

## د محدود فی القذف ګواهي ساقطېدل

وَإِذَا حُدَّ الْمُسْلِمُ فِي قَذْفٍ او که د تهمت لګولو په وجه پر یو مسلمان باندي حدّ جاري کړی سي سَقَطَتْ شَهَادَتُهُ وَإِنْ تَابَ نو د هغه ګواهي ساقطېږي که څه هم هغه توبه وکړي [يعني د محدود فی القذف مسلمان ګواهي به نه قبلېږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُقْبَلُ إِذَا تَابَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه ګواهي به قبلېږي کله چي هغه توبه وکړي وَهِيَ تُعْرَفُ فِي الشَّهَادَاتِ او دا [مسئله] به په کتابُ الشهادات کي [تاسي ته] معلومه سي وَإِذَا حُدَّ الْكَافِرُ فِي قَذْفٍ او که د تهمت لګولو په وجه پر يو کافر باندي حدّ جاري کړی سي لَمْ تَجُزْ شَهَادَتُهُ عَلَى أَهْلِ الذِّمَّةِ نو د ذميانو په خلاف به د هغه ګواهي نه قبلېږي لِأَنَّ لَهُ الشَّهَادَةَ عَلَى جِنْسِهِ ځکه [که څه هم] هغه پر خپل همجنسه [کافرانو] باندي د ګواهۍ حق لري فَتُرَدُّ تَتِمَّةً لِحَدِّهِ [لېکن] د هغه د حدّ پوره کولو لپاره به د هغه ګواهي ردول کيږي فَإِنْ أَسْلَمَ او که هغه اسلام راوړي قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِمْ وَعَلَى الْمُسْلِمِينَ نو د هغه ګواهي به د ذميانو او د مسلمانانو [دواړو] په خلاف قبلېږي لِأَنَّ هَذِهِ شَهَادَةٌ اسْتَفَادَهَا بَعْدَ الْإِسْلَامِ ځکه چي دا شهادت هغه تر اسلام وروسته حاصل کړی دی فَلَمْ تَدْخُلْ تَحْتَ الرَّدِّ نو تر ردولو لاندي به نه داخلېږي [يعني نه به ردول کيږي. بلکي قبلېږي به] بِخِلَافِ الْعَبْدِ إِذَا حُدَّ حَدَّ الْقَذْفِ ثُمَّ أُعْتِقَ په خلاف د غلام کله چي پر هغه حدّ قذف جاري کړی سي بيا آزاد کړی سي حَيْثُ لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ نو د هغه شهادت به نه قبلېږي لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ لَهُ أَصْلًا فِي حَالِ الرِّقِّ ځکه چي د غلامتوب په حالت کي هغه لره بالکل هيڅ د ګواهۍ حق نسته فَكَانَ رَدُّ شَهَادَتِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ مِنْ تَمَامِ حَدِّهِ نو تر آزادېدلو وروسته د هغه د ګواهۍ ردول به د هغه د حدّ له بشپړتيا څخه وي [اچي د ګواهۍ پر ردولو سره د هغه حدّ قذف پوره کړی سي] وَإِنْ ضُرِبَ سَوْطًا فِي قَذْفٍ ثُمَّ أَسْلَمَ ثُمَّ ضُرِبَ مَا بَقِيَ او که [يو کافر] يو څو دُرې ووهل سي بيا هغه اسلام راوړي [او] بيا هغه باقي مانده دُرې ووهل سي جَازَتْ شَهَادَتُهُ نو د هغه ګواهي به جائز وي [يعني د هغه ګواهي به قبلېږي] لِأَنَّ رَدَّ الشَّهَادَةِ مُتَمِّمٌ لِلْحَدِّ ځکه چي د ګواهۍ [شهادت] ردول د حدّ پوره کونکي دي فَيَكُونُ صِفَةً لَهُ نو دا ردول به د هغه صفت جوړېږي

وَالْمُقَامُ بَعْدَ الْإِسْلَامِ بَعْضُ الْحَدِّ او ځرنګه چې تر اسلام وروسته د بعضي حدّ محل دی ایعني تر اسلام راوړلو وروسته چې کوم حدّ پر جاريَ سوي دی، هغه هم د حدّ یوه حصه ده ا فَلَا يَكُونُ رَدُّ الشَّهَادَةِ صِفَةً لَهُ نو ځکه به د ګواهۍ ردّول د هغه صفت نه جوړیږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ تُرَدُّ شَهَادَتُهُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی: چې د هغه ګواهۍ به ردّ کیږي إِذِ الْأَقَلُّ تَابِعٌ لِلْأَكْثَرِ ځکه چې کم د زیاتو تابع وي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ لېکن اول قول زیات صحیح دی.

**اللغات**: ﴿مُتَمِّم﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: پوره کونکی، بشپړونکی.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که د تهمت لګولو په جرم کي پر یو مسلمان حدّ جاري کړی سي (چي هغه ته محدود فی القذف وایي)، نو زموږ په نېز به د دغه محدود ګواهي نه قبليږي که څه هم هغه توبه وکړي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي تر توبې کولو وروسته به د هغه ګواهي قبليږي. د دې په خلاف که چیري د تهمت لګولو په وجه پر یو ذمي کافر حدّ جاري کړی سي نو د ذمیانو په خلاف به د هغه ګواهي نه قبليږي، ځکه چي د حدِ قذف دوې حصې او دوې سزاوي دي: ① په دُرو وهل. ② تر وهلو وروسته د هغه ګواهي نه قبلول (لنډه دا چي پر کوم سړي حدّ قذف جاري سي. نو تر حدّ جاري کېدلو وروسته به د هغه ګواهي هم نه قبليږي)، نو ځکه به دلته د دغه محدود فی القذف ذمي ګواهي د خپلو ذمیانو په خلاف نه قبليږي، د دې لپاره چي د حدّ دویمه حصه پوره کړی سي (او په بشپړه توګه حدّ قذف ثابت سي). ها! که چیري تر حدّ قذف وروسته ذمي مسلمان سي نو بیا به د مسلمان او ذمي دواړو په خلاف د هغه ګواهي قبليږي، ځکه چي اوس هغه ته د اسلام په وجه د ګواهۍ اداء کولو حق حاصل سو، او اسلام د هغه د مخکنی زمانې ټوله قصور معاف او ختم کړی. نو ګواکي له نوي سره (پاک صفا) پیدا سو. نو ځکه به د هغه ګواهي نه ردّ کيږي. بلکي د مسلمان او کافر دواړو په حق کي به قبليږي.

د دې په خلاف که پر غلام حدّ قذف جاري کړی سي بیا هغه آزاد کړی سي. نو تر آزادېدلو وروسته به هم د هغه ګواهي ردّ کيږي، ځکه چي د حدّ قذف دوې حصې او دوې سزاوي دي: ① په درو وهل. ② ګواهي نه قبلول (ګواهي ردّول)، دا دویمه سزا د غلامتوب په حالت کي نه ثابتيږي، ځکه چي د غلامتوب په حالت کي خو بالکل غلام د ګواهۍ أهل نه وي (که څه هم هغه محدود فی القذف نه وي)، نو ځکه به دغه دویمه سزا تر آزادېدلو وروسته هغه ته ورکول کيږي او د هغه ګواهي به

نه قبلیږي د دې لپاره چي حدّ پوره کړی سي. (خلاصه دا چي تر آزادېدلو وروسته به د حدّ قذف د بشپړتیا او پوره کولو لپاره د هغه ګواهي نه قبلیږي).

**فإن ضرب سوطاً إلخ**: دلته درې صورتونه په یاد لرئ! ① که پر یو کافر باندي د حدّ ټوله حصه (ټولي دُرې) د کفر په حالت کي جاري کړی سي. نو تر اسلام راوړلو وروسته به د هغه شهادت او ګواهي قبلیږي. ② که تر اسلام راوړلو وروسته پر هغه د حدّ ټوله حصه جاري کړی سي. نو د هغه ګواهي به ردّ کیږي او نه به قبلیږي. ③ دریم صورت دا دی چي که د حد لږ حصه د کفر په حالت کي پر هغه جاري کړی سي او زیاتره حصه یې د اسلام په حالت کي پر جاري کړی سي. مثلاً د کفر په حالت کي هغه شل دُرې ووهل سي. بیا هغه اسلام راوړي او شپېته د اسلام په حالت کي ووهل سي. نو په دې صورت کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه ګواهي قبلیږي (ځکه کله چي هغه شل دُرې د کفر په حالت کي ووهل سو. نو ګواکي د کفر په حالت کي د هغه ګواهي ردّ کړی سوه. نو ځکه به تر اسلام راوړلو وروسته بیا د هغه ګواهي نه ردّ کیږي. بلکي په پوره توګه به قبلیږي).

**لأن الشهادة متتم إلخ**: دا دلیل څه ستونزمن دی. حاصل یې دا دی چي کله پر هغه شل دُرې د کفر په حالت کي جاري کړی سوې. نو د حدّ قذف دویمه حصه یعني "ګواهي نه قبلول او ګواهي ردول" د دغه جاري سوي حدّ (شلو دُرو) صفت جوړ سو او په همدغه (شلو درو) سره ګواهي ردّ سوه. لهذا کله چي د هغه ګواهي ردّ سوه. نو تر اسلام راوړلو وروسته بیا د ګواهي د ردّولو هیڅ ضرورت نسته. نو ځکه به د هغه ګواهي قبلیږي (فیکون صفة له: یعني د ګواهي ردّول به د دغه جاري سوي حدّ اشلو درو) صفت جوړیږي. والمقام: یعني تر اسلام راوړلو وروسته حالت).

**وعن أبي یوسف إلخ**: له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي پر دې کافر چي تر اسلام راوړلو مخکي څومره حدّ جاري سوی دی هغه کم دی (مثلاً هغه شل درې دی). او تر اسلام راوړلو وروسته د حدّ حصه زیاته ده (او شپېته دُرې ده). او کم د زیاتو تابع وي. نو داسي به ګڼل کیږي چي پر هغه ټوله حدّ تر اسلام راوړلو وروسته جاري سوی دی. او اوس موږ دا خبره ذکر کړه چي که پر کافر تر اسلام وروسته ټوله حدّ جاري کړی سي نو د هغه ګواهي به ردّ کیږي. نو ځکه به دلته هم د دغه کافر ګواهي ردّ کیږي. صاحب د هدایې فرمایي چي اول قول (د امام صاحب رَحِمَهُ الله روایت) زیات صحیح او معتمد دی.

## څو واره د يوه جنايت کولو په صورت کي د يوه حدّ جاري کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ قَذَفَ أَوْ زَنٰى أَوْ شَرِبَ غَيْرَ مَرَّةٍ فرمايي: او کوم کس چي څو واره تهمت ولګوي يا [څو واره] زنا وکړي يا [څو واره] شراب وڅيښي فَحُدَّ او يو حدّ پر هغه جاري کړی سي فَهُوَ لِذٰلِكَ كُلِّهِ نو هغه حد د دې ټولو [اوارونو] لپاره کافي دی أَمَّا الْأَوَّلَانِ فَلِأَنَّ الْمَقْصَدَ مِنْ إِقَامَةِ الْحَدِّ حَقًّا لِلّٰهِ تَعَالٰى الْانْزِجَارُ کوم چي زناکاري او شراب خوري ده نو ځکه چي د حقُّ الله والا د حدّ جاري کولو مقصد انجار [او تنبيه ورکول] دي وَاحْتِمَالُ حُصُولِهِ بِالْأَوَّلِ قَائِمٌ او په اول حدّ جاري کولو سره د دې مقصد د حاصلېدلو احتمال سته فَتَتَمَكَّنُ شُبْهَةُ فَوَاتِ الْمَقْصُودِ فِي الثَّانِي نو په دويم وار حدّ جاري کولو کي به د مقصود د فوتېدلو شبهه وي [واحتمال حصوله: صاحب د أثمار الهدايې د دې جملې معنیٰ داسي کړې ده چي "په اول وار سره مقصد [زجر او تنبيه ورکول] حاصل سو. نو د دويم وار مقصد حاصلولو [زجر او تنبيه ورکولو] څه ضرورت سته] وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا زَنٰى وَقَذَفَ وَسَرَقَ وَشَرِبَ او دا د هغه صورت په خلاف دی چي کله هغه زنا وکړي او تهمت [هم] ولګوي او غلا [هم] وکړي او شراب [هم] وڅيښي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْ كُلِّ جِنْسٍ غَيْرُ الْمَقْصُودِ مِنَ الْآخَرِ ځکه چي په دوی کي د هر جنس مقصد د بل جنس له مقصد څخه جلا دی فَلَا يَتَدَاخَلُ نو ځکه به [دلته په حدّ کي] تداخل نه کيږي وَأَمَّا الْقَذْفُ فَالْمُغَلَّبُ فِيهِ عِنْدَنَا حَقُّ اللّٰهِ او کوم چي حدّ قذف دی نو په هغه کي زموږ په نېز د الله تعالیٰ حق غالب دی فَيَكُونُ مُلْحَقًا بِهِمَا لهذا هغه به هم د زنا او شرابو سره ملحق کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنِ اخْتَلَفَ الْمَقْذُوفُ أَوِ الْمَقْذُوفُ بِهِ وَهُوَ الزِّنَاءُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که مقذوف جلا جلا وي يا مقذوف بهٖ جلا جلا وي، مثلاً زنا لَا يَتَدَاخَلُ نو [په حدّ کي] به تداخل نه کيږي لِأَنَّ الْمُغَلَّبَ فِيهِ حَقُّ الْعَبْدِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په حدّ قذف کي د بنده حق غالب دی.

**اللغات:** ﴿اِنْزِجَار﴾ د انفعال مصدر دی: منع کېدل، بېرول، تنبيه ورکول. ﴿اَلْمَقْذُوْف﴾ هغه کس چي بل څوک تهمت پر ولګوي. ﴿اَلْمَقْذُوْف بِهٖ﴾ هغه کار چي د هغه په ذريعه پر يو چا تهمت ولګول سي (مثلاً زنا چي د دې په ذريعه پر يو چا تهمت لګول کيږي). همدارنګه هغه ښځه چي پر يو چا د هغې سره د زنا کولو تهمت ولګول سي (چي تا د فلانکۍ ښځي سره زنا وکړه). پر دې دواړو د مقذوف بهٖ إطلاق کيږي. (أثمار الهداية ج۶، ص۳۳۴)

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی څو واره تهمت ولګوي يا څو واره زنا وکړي يا څو وار شراب وڅيښي او بيا پر هغه فقط يو حدّ جاري کړی سي، نو هغه يو حدّ د ټولو جرمونو لپاره کافي دی (مطلب دا چي په ټولو وارونو کي به تداخل کيږي، او يو حدّ د ټولو جرائمو لپاره کافي دی): په زنا او شراب څيښلو کي د يوه حدّ کافي کېدلو وجه دا ده چي کوم حدود چي خالص د الله تعالیٰ حق وي د هغوی د جاري کولو مقصد إنزجار او تنبيه ورکول وي. او په يوه وار حدّ جاري کولو سره دا مقصد حاصل سو. نو دويم وار حدّ جاري کولو ته څه ضرورت سته؟ او بل دا چي کله په اول وار سره مقصد حاصل سو نو په دويم وار حدّ جاري کولو کي سره به مقصد حاصل سي او که نه په دې خبره کي شبهه پيدا سوه. نو ځکه به دويم وار حدّ نه جاري کيږي.

د دې په خلاف که يو څوک زنا هم وکړي، تهمت هم ولګوي، غلا هم وکړي او شراب هم وڅيښي، نو پر هغه به د هر، هر جرم په عوض کي جلا، جلا حدّ جاري کيږي. او يو حدّ به د ټولو لپاره کافي نه وي؛ ځکه چي په دې جرمونو کي هر جرم له بل جرم څخه بېل او عليحده دی. او د هر يوه مقصود هم عليحده دی.

پاته سوه د حدّ قذف مسئله نو په هغه کي زموږ په نيز حقُ الله غالب دی. لهذا هغه به په حکم کي د زنا او شراب څيښلو سره ملحق کيږي او تداخل به پکښي کيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي که مقذوف يا مقذوف به جلا، جلا وي، نو پر هغه به جلا، جلا حدّ جاري کيږي. د مقذوف مثال دا دی چي يو سړی پر خالد هم د زنا تهمت ولګوي او پر زيد هم د زنا تهمت ولګوي او پر سلمان هم د زنا تهمت ولګوي نو پر هغه به امام شافعي په نيز درې حدونه جاري کيږي. د مقذوف به مثال دا دی چي مثلاً يو سړی پر خالد باندي د زينب سره د زنا کولو تهمت ولګوي (چي خالد د زينب سره زنا وکړه)، او بيا يو څو ورځي وروسته پر هغه د ساجدې سره د زنا کولو تهمت ولګوي (چي خالد د ساجدې سره هم زنا وکړه)، لهذا دلته په دواړو صورتونو کي ښځه بدله سوه يعني د جلا، جلا ښځو سره زنا ثابته سوه، نو په داسي صورت کي به د امام شافعي په نيز پر تهمت لګونکي سړي دوه حدّه جاري کيږي او په حدّ کي به تداخل نه کيږي، ځکه چي په حدّ قذف کي د هغه په نيز حقُ العبد غالب دی.



# فَصْلٌ فِي التَّعْزِيْر

## (دا) فصل د سزا ورکول (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: مخکې تر دې هغه زواجر (حدود) بیان شول کوم چې د کتاب او سنت په څېر په قوي دلیلونو سره ثابت وو. او په دې فصل کې هغه زواجر بیانیږي کوم چې تر کتاب او سنت په لاندې او کوچنې دلیل سره ثابت دي.

**د تعزیر لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: د تعزیر لغوي معنیٰ ده: غندل، رټل، تنبیه ورکول (سزا ورکول)

د تعزیر اصطلاحي معنیٰ صاحب د "معجم لغة الفقهاء" داسې ذکر کړې ده: "ما يُقدِّره القاضي من العقوبة على جريمة لم يرد في الشرع عقوبة مقدرة عليها" (یعني هغه سزا کوم چې یې قاضي د یو داسې جرم په جزاء کې مقرر کړي چې په شریعت کې د هغه جرم هیڅ سزا مقرره سوې نه وي). (معجم لغة الفقهاء ج:۱، ص:۱۳۶)

### پر غیر محصن باندې د زنا تهمت لګول

وَمَنْ قَذَفَ عَبْدًا أَوْ أَمَةً أَوْ أُمَّ وَلَدٍ أَوْ كَافِرًا بِالزِّنَا او څوک چې پر یو غلام، یا مینځې، یا اُمِ ولد، یا کافر باندې د زنا تهمت ولګوي عُزِّرَ نو هغه ته به سزا ورکول کیږي لِأَنَّهُ جِنَايَةُ قَذْفٍ ځکه چې دا د تهمت لګولو جرم دی [یعني ځکه چې هغه د زنا تهمت پر لګولی دی] وَقَدْ امْتَنَعَ وُجُوبُ الْحَدِّ لِفَقْدِ الْإِحْصَانِ لېکن [د محصن نه کېدلو په وجه [پر هغه] د حدّ وجوب وجه منع کړې سو فَوَجَبَ التَّعْزِيرُ نو ځکه به تعزیر واجبیږي وَكَذَا إِذَا قَذَفَ مُسْلِمًا بِغَيْرِ الزِّنَا فَقَالَ: يَا فَاسِقُ! أَوْ يَا كَافِرُ! أَوْ يَا خَبِيثُ! أَوْ يَا سَارِقُ! او همدارنګه [به تعزیر واجبیږي] کله چې هغه پر یو مسلمان باندې له زنا څخه بغیر بل تهمت ولګوي [مثلاً] ورته ووایي: اې فاسقه! یا اې کافره یا اې خبیثه! یا اې غله! لِأَنَّهُ آذَاهُ ځکه چې قاذف هغه ته ضرر ورسوی وَأَلْحَقَ الشَّيْنَ بِهِ او پر هغه یې عیب ولګوی وَلَا مَدْخَلَ لِلْقِيَاسِ فِي الْحُدُودِ او په حدونو کې قیاس لره هیڅ دخل نسته فَوَجَبَ التَّعْزِيرُ نو ځکه به تعزیر واجبیږي إِلَّا أَنَّهُ يَبْلُغُ بِالتَّعْزِيرِ غَايَتَهُ فِي الْجِنَايَةِ الْأُولَى لېکن په اول جرم [یعني پر غیر محصن د زنا په قذف] کې به

[قاذف ته] سخته سزا ورکول کیږي لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ مَا يَجِبُ بِهِ الْحَدُّ ځکه چي دا له هغه جنس څخه دی چي د هغه په وجه حدّ واجبیږي وَفِي الثَّانِيَةِ: الرَّأْيُ إِلَى الْإِمَامِ او په دویم صورت [یعني د یا فاسق. یا کافر... په ویلو] کي به رایه إمام ته پرېښوول کیږي [چي هغه هر څومره سزا مناسب وګڼي. هغومره سزا به ورکوي] وَلَوْ قَالَ: يَا حِمَارُ! أَوْ يَا خِنْزِيرُ! او که [ورته] ووایي: اې خره! یا اې خنزیره! لَمْ يُعَزَّرْ نو سزا به نه ورکول کیږي لِأَنَّهُ مَا أَلْحَقَ الشَّيْنَ بِهِ ځکه چي ویونکي پر هغه [مخاطب] عیب نه ولګوی لِلتَّيَقُّنِ بِنَفْيِهِ ځکه چي [په مخاطب کي] په یقیني توګه دا شیان معدوم دي [یعني دا یقیني ده چي هغه خر یا خنزیر نه دی] وَقِيلَ: فِي عُرْفِنَا يُعَزَّرُ او ویل سوي دي: چي زموږ [د صاحب د هدایې] په عرف کي به هغه ته سزا ورکول کیږي لِأَنَّهُ يُعَدُّ شَيْنًا ځکه چي [زموږ په عرف کي] دا عیب [او بدي] شمارل کیږي وَقِيلَ: إِنْ كَانَ الْمَسْبُوبُ مِنَ الْأَشْرَافِ كَالْفُقَهَاءِ وَالْعَلَوِيَّةِ او ویل سوي دي: که چیري هغه کس چا ته چي ښکنځل سوي دي [مخاطب] له شریفو خلکو څخه وي لکه فقهاء یا د حضرت علي ﷺ خاندان والا [او سیدان] يُعَزَّرُ نو هغه ته به سزا ورکول کیږي لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُمُ الْوَحْشَةُ بِذٰلِكَ ځکه چي په دې جملو سره هغو ته وحشت [او تکلیف] رسیږي وَإِنْ كَانَ مِنَ الْعَامَّةِ او که [مخاطب] له عامو خلکو څخه وي لَا يُعَزَّرُ نو هغه ته به سزا نه ورکول کیږي وَهٰذَا أَحْسَنُ او دا غوره قول دی وَالتَّعْزِيرُ أَكْثَرُهُ تِسْعَةٌ وَثَلَاثُونَ سَوْطًا او د تعزیر زیات مقدار نه دېرش [۳۹] دُرې دي [د طرفینو په نېز] وَأَقَلُّهُ ثَلَاثُ جَلَدَاتٍ او کم از کم مقدار یې درې دُرې دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❶: يَبْلُغُ التَّعْزِيرُ خَمْسَةً وَسَبْعِينَ سَوْطًا او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چي د تعزیر زیات مقدار پنځه اویا [۷۵] دُرو ته رسیدای سي [یعني د هغه په نېز د تعزیر أکثر مقدار (۷۵) دُرې دی] وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ ❷: مَنْ بَلَغَ حَدًّا فِي غَيْرِ حَدٍّ فَهُوَ مِنَ الْمُعْتَدِينَ او أصل په دې سلسله کي د نبي ﷺ دا إرشاد دی: څوک چي په غیرِ حدّ کي د حدّ مقدار ته ورسیږي نو هغه له تجاوز کونکو څخه دی [یعني د کوم جرم ګناه چي حدّ نه وي. لېکن بیا هم په هغه کي د حدّ د دُرو په اندازه مجرم

---

❶ القول الراجح: قول لطرفين رحمهما الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:١٩٩). [القول الراجح ج:١، ص:٢٥٦]

❷ تخريج: رواه البيهقي في السنن الكبرىٰ، رقم الحديث: ١٧٥٨٤.

ووهل سي، نو دا تجاوز دی، او داسي کار کونکي متجاوزين دي. له دې حديث څخه معلومه سوه چي تعزير به د حدّ أدنیٰ مقدار ته نه رسول کيږي او د حدّ أدنیٰ مقدار (دغلام حدّ) څلوېښت (۴۰) درې دی. او يوه دُره به بله څني کمول کيږي چي ټوله (۳۹) دُرې سي او د حدّ تر ادنیٰ مقدار کمي سي! وَإِذَا تَعَذَّرَ تَبْلِيغُهُ حَدًّا او کله چي حدّ ته د تعزير رسول ناممکن سو فَأَبُوحَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٌ نَظَرَا إِلَى أَدْنَى الْحَدِّ نو طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د حدّ أدنیٰ [کم] مقدار ته وکتل وَهُوَحَدُّ الْعَبْدِ فِي الْقَذْفِ او هغه په قذف کي د غلام حدّ دي فَصَرَفَاهُ إِلَيْهِ نو طرفينو د تعزير د همدغه [أدنیٰ] مقدار وطرف ته وګرځوی وَذٰلِكَ أَرْبَعُونَ سَوْطًا او دا مقدار څلوېښت [۴۰] دُرې دي فَنَقَصَا مِنْهُ سَوْطًا نو طرفينو له هغه څخه يوه دره کمه کړه [او د تعزير لپاره يې (۳۹) دُرې متعين کړي] وَأَبُويُوسُفَ اِعْتَبَرَأَقَلَّ الْحَدِّ فِي الْأَحْرَارِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د آزادو کسانو د حدّ د أقل مقدار اعتبار کړی دی [او هغه اتيا دُرې دي] إِذِ الْأَصْلُ هُوَالْحُرِّيَّةُ ځکه چي أصل حُريت [آزاد والي] دی ثُمَّ نَقَصَ سَوْطًا فِي رِوَايَةٍ عَنْهُ بيا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي هغه [له دې څخه] يو دره کمه کړې ده [او (۷۹) دُرې يې ټاکلي دي] وَهُوَقَوْلُ زُفَرَ وَهُوَالْقِيَاسُ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی او همدا قياس [هم] دی وَفِي هٰذِهِ الرِّوَايَةِ نَقَصَ خَمْسَةً او دلته چي کوم روايت ذکر سوی دی [يعني يبلغ التعزير خمسا وسبعين سوطاً] په هغه کي يې پنځه درې کمي کړي دي [ځکه چي حضرت علي ﷺ همدا مقدار ټاکلی وو] وَهُوَمَأْثُورٌ عَنْ عَلِيٍّ او همدا له حضرت علي ﷺ څخه نقل سوي دي فَقَلَّدَهُ نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د هغه تقليد وکړی ثُمَّ قَدَّرَ الْأَدْنٰى فِي الْكِتَابِ بِثَلَاثِ جَلَدَاتٍ بيا په متن کي أدنیٰ مقدار درې دُرې بيان سوی دی لِأَنَّ مَا دُونَهَا لَا يَقَعُ بِهِ الزَّجْرُ ځکه له چي دريو څخه په کمو دُرو زجر [او تنبيه] نه حاصليږي وَذَكَرَ مَشَايِخُنَا أَنَّ أَدْنَاهُ عَلَى مَا يَرَاهُ الْإِمَامُ او زموږ علماؤ ذکر کړي دي چي د تعزير ادنیٰ مقدار د امام [او قاضي] پر رايه موقوف دی يُقَدِّرُ بِقَدْرِ مَا يَعْلَمُ أَنَّهُ يَنْزَجِرُ او په کوم مقدار سره چي إمام ته معلومه سي چي هغه [مجرم] به منع سي نو هغومره مقدار به ټاکي لِأَنَّهُ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ النَّاسِ ځکه چي د خلکو په بدلېدلو سره انزجار [هم] بدليږي ايعني ځيني کسان په لږو دُرو سر خلاصوي او د آينده لپاره له داسي کار څخه منع کيږي. او ځيني کسان بيا په کمه سزا نه منع کيږي. بلکي پوره ډبول غواړي. نو ځکه به رايه إمام

ته پرېښوول کيږي! وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ عَلَىٰ قَدْرِ عِظَمِ الْجُرْمِ وَصِغَرِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه ابل! روايت دا دی: چې دغه مقدار د جرم پر غټوالي او کوچنيوالي موقوف دی ايعني که غټ جرم وي، نو زياتي دُرې به يې وهي، او که کوچنی جرم وي، نو کمي دُرې به يې وهي! وَعَنْهُ: أَنْ يُقَرَّبَ كُلُّ نَوْعٍ مِنْ بَابِهِ او له هغه څخه ابل! روايت دا دی: چې هر ډول جرم به د هغه د "حدّ" د باب سره نژدې کيږي فَيُقَرَّبُ الْمَسُّ وَالْقُبْلَةُ مِنْ حَدِّ الزِّنَا نو مسه کول او مچول به د حدّ زنا سره نژدې کيږي وَالْقَذْفُ بِغَيْرِ الزِّنَا مِنْ حَدِّ الْقَذْفِ او له زنا څخه بغير [د بل شي] تهمت به د حدّ قذف سره نژدې کيږي.

**اللغات**: ﴿فَقْد﴾ د ضرب مصدر دی: نيستي کېدل، ورکېدل، نشتوالي. ﴿شَيْن﴾ عيب، بدي. ﴿مُعْتَدِيْن﴾ د افعال جمع اسم فاعل دی: تجاوز کونکي (له حدّ څخه تېرېدونکي)، سرکښه.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې پر غير محصن يعني پر غلام يا کافر او داسي نورو باندي د زنا تهمت لګول د حدّ مُوجِب نه دي، بلکي په دې صورت کي به قاذف ته بله سزا ورکول کيږي. همدارنګه که يو څوک پر محصن يعني پر مسلمان باندي له زنا څخه بغير د بل شي يعني د فسق، کفر يا د غلا تهمت ولګوي، نو هم به قاذف ته سزا ورکول کيږي؛ ځکه چې په تهمتونو کي شريعت هيڅ حدّ ټاکلی نه دی، لهذا موږ به هم په قياس سره هيڅ حدّ نه ټاکوو. لېکن قاذف ته به تنبيه او سزا ورکول کيږي، او پر غير محصن (يعني پر غلام کافر او داسي نورو) باندي د زنا د تهمت لګولو په وجه به قاذف ته سخته سزا ورکول کيږي، ځکه چې دا د حدّ مُوجِب ته يعني زنا ته نژدې دی. فقط د محصن نه کېدلو په وجه د هغه پر قاذف حدّ نه جاري کيږي، لېکن نور به هغه ته سخته ورکول کيږي، ځکه چې د زنا سزا سخته ده. نو کوم شی چې زنا ته نژدې وي. د هغه سزا به هم سخته وي. او په دويم صورت کي يعني چا ته د فاسق او غله ويلو په صورت کي چې امام کومه سزا مناسبه وګڼي. هغه به ورکول کيږي.

**ولوقال ياحمار إلخ**: فرمايي که يو څوک بل چا ته "خر" يا "خنزير" ووايي، نو هغه ته به سزا نه ورکول کيږي؛ ځکه چې دا عيب نه دی، ځکه دا معلومه او تر لمر سپينه خبره ده چې کوم کس ته "خر" يا "خنزير" ويل سوي دي، په هغه کي دا خبري نسته. په دې سلسله کي دوه نور قولونه هم سته: ①... يو قول دا دی چې زموږ (يعني د هدايې د مصنف) په عرف کي دا ښکنځا ده. نو ځکه به قائل (ويونکي) ته سزا ورکول کيږي. ②... دويم قول کوم چې د هدايې د مصنف دی. دا دی چې که مخاطب له شريفو خلکو څخه وي مثلاً عالم وي يا مفتي وي يا مثلاً د حضرت علي رضي الله عنه د خاندان

سره تعلق لري، نو قائل ته به سزا ورکول کيږي (کنځل نه به ورکول کيږي). په پاته عبارت کي د تعزير مقدار بيان سوی دی کوم چي واضح دی (تشريح ته ضرور نه لري). لېکن د تعزير په ادنیٰ مقدار کي د ماوراءُ النهر مشائخو رايه دا ده چي دا مقدار د امام پر رايه موقوف دی ځکه چي د خلکو حالات او عادات مختلف وي، څوک فقط په درپ او ځلورو دُرو سره برابرېږي او څوک بيا پنځلس دُرو ته ضرورت لري (مطلب دا چي څوک په لږ سزا سر خلاصوي او سميږي، لېکن څوک بيا په لږ سزا نه سميږي، بلکي پوره ډېول غواړي)، لهذا امام چي ديو چا د حال مطابق کوم مقدار مناسب وګڼي د هغه په حق کي به پر هغه مقدار فيصله کوي، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه درېيم روايت دا دی چي ګناه ته به کتل کيږي چي هغه د کوم باب سره تعلق لري نو د هغه باب د حدّ سره نژدې تعزير به ورکول کيږي، مثلاً که يو څوک پردۍ (أجنبيه) ښځه مچ کړي يا په شهوت سره لاس ور وړي نو حدّ زنا ته نژدې (يعني ۷۹) دُرې به هغه ته تعزير ورکول کيږي، او له زنا څخه بغير د بل شي په تهمت لګولو مثلاً د "اې کافر! يا اې خبيث" د ويلو په صورت کي به د حدّ قذف دُرو ته نژدې تعزير ورکول کيږي.

## د تعزير سره اړوند يو څو مسئلې

قَالَ: وَإِنْ رَأَى الْإِمَامُ أَنْ يَضُمَّ إِلَى الضَّرْبِ فِي التَّعْزِيرِ الْحَبْسَ فرمايي: که امام مناسب وګڼي چي په تعزير کي د ضرب سره حبس [هم] يوځای کړي فَعَلَ نو دا کار دي وکړي لِأَنَّهُ صَلُحَ تَعْزِيرًا ځکه چي حبس [هم] د تعزير جوړېدلو صلاحيت [ورتيا] لري وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ فِي الْجُمْلَةِ او شريعت [هم] هغه تر يو اندازې پوري بيان کړی دی حَتَّى جَازَ أَنْ يَكْتَفِيَ بِهِ همدا وجه ده چي پر حبس اکتفاء کول جائز دي فَجَازَ أَنْ يَضُمَّ إِلَيْهِ لهذا د ضرب سره به د هغه يوځای کول [هم] جائز وي وَلِهَذَا لَمْ يُشْرَعْ فِي التَّعْزِيرِ بِالتُّهْمَةِ قَبْلَ ثُبُوتِهِ او له همدې وجهي د تعزير بالتهمة په صورت کي له تهمت ثابتېدلو څخه مخکي حبس مشروع نه دی كَمَا شُرِعَ فِي الْحَدِّ لکه څرنګه چي په حدّ کي مشروع دی لِأَنَّهُ مِنَ التَّعْزِيرِ ځکه چي حبس له تعزير څخه دی قَالَ: وَأَشَدُّ الضَّرْبِ التَّعْزِيرُ فرمايي: چي سخت ترين وهل به په تعزير کي وي لِأَنَّهُ جَرَى التَّخْفِيفُ فِيهِ مِنْ حَيْثُ الْعَدَدُ ځکه چي د عدد په اعتبار سره په هغه کي تخفيف سوی دی فَلَا يُخَفَّفُ مِنْ حَيْثُ الْوَصْفُ لهذا د وصف په اعتبار سره به [نور] تخفيف نه [پکښي] کيږي كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى فَوَاتِ الْمَقْصُودِ د دې لپاره چي دغه تخفيف د مقصود

د فوتېدلو سبب جوړ نه سي وَلِهٰذَا لَمْ يُخَفَّفْ مِنْ حَيْثُ التَّفْرِيقُ عَلَى الْأَعْضَاءِ او له همدې وجهې د تفريق على الأعضاء په حواله سره تخفيف نه دي سوى قَالَ: ثُمَّ حَدُّ الزِّنَا فرمايي: بيا د زنا حد دى ايعني بيا به سخت وهل دزنا په حد کي وي. مطلب دا چي دويمه درجه د "حدزنا" ده ا لِأَنَّهُ ثَابِتٌ بِالْكِتَابِ ځکه چي هغه په قرآن مجيد سره ثابت دی وَحَدُّ الشُّرْبِ ثَبَتَ بِقَوْلِ الصَّحَابَةِ او د شرابو حدّ د صحابه وو په قول [اجماع] سره ثابت دی وَلِأَنَّهُ أَعْظَمُ جِنَايَةً او ځکه چي زنا يو ستر جرم دی حَتّٰى شُرِعَ فِيهِ الرَّجْمُ همدا وجه ده چي په زنا کي رجم مشروع دی ثُمَّ حَدُّ الشُّرْبِ بيا "حدّ شرب" دی لِأَنَّ سَبَبَهُ مُتَيَقَّنٌ بِهِ ځکه چي د هغه سبب يقيني وي ثُمَّ حَدُّ الْقَذْفِ بيا "حدّ قذف" دی لِأَنَّ سَبَبَهُ مُحْتَمَلٌ لِاحْتِمَالِ كَوْنِهِ صَادِقًا ځکه چي د قاذف د رښتياوالي د احتمال په وجه د هغه سبب احتمالي وي وَلِأَنَّهُ جَرَى فِيهِ التَّغْلِيظُ مِنْ حَيْثُ رَدِّ الشَّهَادَةِ او ځکه چي د شهادت ردولو په حواله سره په هغه کي سختي سوې ده فَلَا يُغَلَّظُ مِنْ حَيْثُ الْوَصْفُ لهذا د وصف په اعتبار سره به په هغه کي [نوره] سختي نه کيږي وَمَنْ حَدَّهُ الْإِمَامُ أَوْ عَزَّرَهُ فَمَاتَ او پر چا چي امام حدّ جاري کړي يا هغه ته سزا ورکړي او هغه مړ سي فَدَمُهُ هَدَرٌ نو د هغه وينه معاف ده لِأَنَّهُ فَعَلَ مَا فَعَلَ بِأَمْرِ الشَّرْعِ ځکه امام چي کوم څه وکړه هغه يې د شريعت په حکم سره وکړه وَفِعْلُ الْمَأْمُورِ لَا يَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ او د مأمور فعل د سلامتی په شرط سره نه مقيّد کيږي كَالْفَصَّادِ وَالْبَزَّاغِ لکه ښکر لګونکی او نشتر لګونکی بِخِلَافِ الزَّوْجِ إِذَا عَزَّرَ زَوْجَتَهُ په خلاف د خاوند کله چي هغه خپلي ښځي ته سزا ورکړي لِأَنَّهُ مُطْلَقٌ فِيهِ وَالْإِطْلَاقَاتُ تَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ ځکه [که څه هم] هغه ته د تعزير اجازت سته [ليکن] اجازتونه د سلامتی په شرط سره مقيد وي كَالْمُرُورِ فِي الطَّرِيقِ لکه په لاره کي تېرېدل اچي د سلامتی په شرط سره مقيد دي ا وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ الدِّيَةُ فِي بَيْتِ الْمَالِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ادمړه سوي سړي ا ديت به پر بيتُ المال واجب وي لِأَنَّ الْإِتْلَافَ خَطَأٌ فِيهِ ځکه چي په تعزير سره هلاکول خطاء ده إِذِ التَّعْزِيرُ لِلتَّأْدِيبِ ځکه چي تعزير د أدب [او تنبيه] ورکولو لپاره مشروع دی غَيْرَ أَنَّهُ تَجِبُ الدِّيَةُ فِي بَيْتِ الْمَالِ لِأَنَّ نَفْعَ عَمَلِهِ يَرْجِعُ عَلَى عَامَّةِ الْمُسْلِمِينَ خو د هغه ديت به [ځکه] په بيتُ المال کي واجب وي ځکه

چي د امام د کار منفعت عامو مسلمانانو ته راجع کيږي فَيَكُونُ الْغُرْمُ فِي مَالِهِمْ نو ځکه به د هغه تاوان [هم] د هغو په مالونو کي واجب وي [لأن الغرم بالغنم] قُلْنَا: لَمَّا اسْتَوْفَى حَقَّ اللهِ تَعَالَى بِأَمْرِهِ صَارَ كَأَنَّ اللهَ أَمَاتَهُ مِنْ غَيْرِ وَاسِطَةٍ موږ جواب ورکوو: چي کله امام د الله تعالیٰ په حکم سره د الله حق حاصل کړی نو ګواکي الله تعالیٰ هغه [سړی] مړ کړی [نه امام] فَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ نو ځکه به [پر امام] ضمان نه واجبيږي.

**اللغات**: ﴿يضمّ﴾ د نصر مضارع ده: ضمول، ورسره يوځای کول. ﴿حَبْس﴾ د ضرب مصدر دی: قيدول، بندي کول. ﴿تخفيف﴾ د تفعيل مصدر دی: سپکول، آساني کول. ﴿تغليظ﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: سختول، سختي کول. ﴿جناية﴾ جرم. ﴿شُرب﴾ شراب چيښل. ﴿هدر﴾ ضايع، معاف، بې ديته او بې قصاصه. ﴿فصّاد﴾ ښکر لګونکی. ﴿بزّاغ﴾ نشتر لګونکی، جرّاح. ("نشتر" په پښتو کي هغه آلې ته وايي کوم چي تېره څوکه لري او زخم يا دانه په څيرل کيږي). ﴿إتلاف﴾ د افعال مصدر دی: ضايع کول، هلاکول. ﴿غُرم﴾ تاوان، جرمانه. ﴿استوفیٰ﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، ترلاسه کول، اخيستل. ﴿أماته﴾ د افعال ماضي ده: مړ کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري امام مصلحت وويني نو د سزا ورکولو سره دي قاذف قيد هم کړي، ځکه چي حبس (قيدول) هم د تعذير جوړېدلو لائق او قابل دي لکه څرنګه چي له نبي کريم ﷺ څخه تعزيراً د يوه سړي قيدول ثابت دي، همدا وجه ده چي په تعزير کي فقط پر حبس هم اکتفاء کول جائز دي، او د دې خبري (چي حبس د تعزير جوړېدلو قابل دی) بل دليل دا هم دی چي که د تهمت لګولو په وجه يو څوک د تعزير مستحق وي نو تر تهمت ثابتېدلو مخکي د هغه (قاذف) قيدول جائز نه دي، ځکه چي په قذف کي حبس (قيدول) آخري او نهائي سزا ده، او که د تهمت له ثبوت څخه مخکي موږ قاذف قيد کړو نو د ادنیٰ ګناه په مقابله کي به اعلیٰ سزا جاري کړی سي کوم چي صحيح نه دي. د دې په خلاف په حدّ کي د حدّ له ثبوت څخه مخکي هم مشهود عليه قيدي کېدای سي، ځکه چي د حدّ يعني د زنا او غلا آخري سزا حبس نه ده، بلکي تر دې هم غټه سزا يعني "حدّ" سته، نو ځکه به په زنا او داسي نورو کي د حبس معامله سره مساوي وي او د سزا او ګناه تناسب به برابر پاته وي.

**وأشد الضرب إلخ**: د دې حاصل دا دی چي په کومو حدونو کي چي جَلد (د دُرې وهل) مشروع دي، په هغو کي به تر ټولو تُندي او تيزي دُرې په تعزير کي (پر مجرم) وهل کيږي، ځکه چي د تعزير دُرې د نورو حدونو له دُرو څخه لږ دي، نو د لږ او کمو دُرو په وجه د تعزير په دُرو کي تخفيف ثابت سو. لهذا

نور به د وهلو په حواله سره په هغوی کي تخفيف نه کيږي. له همدې وجهي په تعزير کي فقط پر يو ځای دُرې وهل کيږي او په هغوی کي تفريق نه کيږي. پر دويم نمبر د زنا حدّ دی. پر دريم نمبر "حدّ الشرب" دی. او پر څلورم نمبر "حدّ قذف" دی. يعني په حدّ قذف کي به د دې نورو حدّونو (يعني د تعزير، زنا او شُرب د حدّونو) په مقابله کي په کراره دُرې استعماليږي (يعني په کراره به مجرم په وهل کيږي)، ځکه چي د قاذف د شهادت په ردولو سره خو هسي هم هغه رسوا او ذليله سو او تنبيه ورکول سوه، لهذا نور به پر هغه تشدّد نه کيږي او د هغه په وهلو کي به سختي نه کيږي.

**ومن حدّه الإمام إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که إمام پر يوه قاذف باندي حدّ جاري کړي يا هغه ته سزا ورکړي او د حدّ يا سزا په وجه هغه مړ سي، نو پر امام به ضمان او ديّت نه واجبيږي: ځکه امام چي هغه ته کومه سزا ورکړې ده هغه يې د شريعت په حکم سره ورکړې ده. او إمام د شريعت له طرفه مأمور دی او د مأمور په فعل کي د سلامتی شرط ملحوظ او ضروري نه دی. مثلاً که فصّاد (ښکر لګونکی) مريض ته ښکر ولګوي يا مثلاً يو څوک حيوان ته نشتر ولګوي او هغه مريض يا حيوان مړ سي. نو پر فَصّاد او بزّاغ باندي هيڅ شی نه واجبيږي، ځکه چي هغه مأمور وي (د مالک له طرفه حکم ورته سوی وي). لېکن که يو سړی خپلي ښځي ته سزا ورکړي او ښځه مړه سي. نو پر خاوند به ضمان واجبيږي، ځکه که څه هم د خاوند لپاره تأديباً د ښځي د وهلو او سزا ورکولو اجازت سته. لېکن دا اجازت د سلامتی په شرط سره مقيد دی. مثلاً که په لاره کي تېرېدونکی سړی د بل چا سره وجنګيږي او هغه مړ کړي. نو وژونکی (تېرېدونکی) به ضامن وي، ځکه چي په لاره کي تلل او تېرېدل که څه هم مُباح دي لېکن مقيد بشرط السلامة دي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي که محدود مړ سي نو د هغه ديت به پر بيتُ المال واجب وي: ځکه چي د تعزير مقصد تأديب (أدب ورکول) دي. وژل او هلاکول نه دي. لهذا که هغه په حدّ او سزا سره مړ کړی سي نو دا غلطي ده. لېکن د دې غلطی ديت به له بيتُ المال څخه اداء کيږي. ځکه کله چي أمام د عامو مسلمانانو د نفع لپاره دا کارونه کوي، نو د هغه د کار تاوان او نقصان به هم د مسلمانانو په مال (بيتُ المال) کي واجب وي.

لېکن زموږ له طرفه امام شافعي رَحِمَهُ الله ته دا جواب ورکول سوی دی چي کله د الله (او شريعت) په حکم سره حدّ جاري کړی سو نو ګواکي الله تعالیٰ هغه سړی (محدود) مړ کړی دی. نو ځکه به پر إمام ضمان نه واجبيږي. والله أعلم بالصواب



# كِتَابُ السَّرِقَةِ

(دا) كتاب د غلا كولو (د احكامو په بيان كې) دی

**تشريح:** مخكې تر دې هغه زواجر بيان سول چې د هغوی تعلق د نفوسو د حفاظت سره وو. اوس له دې ځای څخه هغه زواجر بيانيږي کوم چې د أموالو د حفاظت سره تعلق لري. او دا معلومه خبره ده چې نفوس له أموالو څخه مخکې او مقدّم دي. لهذا په بيان او ذکر کې هم نفوس له أموالو څخه مخکې کړل سوه. (عنايه وبناية ج:۶، ص:۳۷۴)

د "سَرِقَة" لغوي او اصطلاحي معنیٰ به په عبارت کې ذکر سي.

## د "سرقه" لغوي او اصطلاحي معنی او قسمونه

قَالَ: السَّرِقَةُ فِي اللُّغَةِ :أَخْذُ الشَّيْءِ مِنَ الْغَيْرِ عَلَى سَبِيلِ الْخُفْيَةِ وَالِاسْتِسْرَارِ فرمايي: د "سرقة" لغوي معنیٰ ده: په خفيه او پټه توګه له بل چا څخه يو شی اخيستل وَمِنْهُ اسْتِرَاقُ السَّمْعِ او له همدې معنیٰ څخه استراقُ السمع [مأخوذ] دی قَالَ اللهُ تَعَالَى إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ [الحجر: ١٧] الله تعالی فرمايلي دي: ماسوا له هغه شيطان څخه کوم چې يې په پټه توګه واوري [يعني کوم چې آسماني خبرو ته په غلا غوږ ونيسي] وَقَدْ زِيدَتْ عَلَيْهِ أَوْصَافٌ فِي الشَّرِيعَةِ او د "سرقه" پر لغوي معنی په شريعت کې څه اوصاف اضافه کړل سوي دي عَلَى مَا يَأْتِيكَ بَيَانُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چې د هغه بيان به انشاء الله ستا [مخ] ته راسي وَالْمَعْنَى اللُّغَوِيُّ مُرَاعًى فِيهَا ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً او په شرعي معنیٰ کې د ابتداء او انتهاء دواړو په اعتبار سره د لغوي معنیٰ رعايت سوی دی أَوِ ابْتِدَاءً لَا غَيْرَ يا فقط ابتداءً د لغوي معنیٰ رعايت سوی دی كَمَا إِذَا نَقَبَ الْجِدَارَ عَلَى الِاسْتِسْرَارِ وَأَخَذَ الْمَالَ مِنَ الْمَالِكِ مُكَابَرَةً عَلَى الْجِهَارِ لکه يو څوک چې په پټه توګه په دېوال کې سوری جوړ کړي او له مالک څخه په جنګ په ښکاره توګه مال واخلي وَفِي الْكُبْرَى أَعْنِي قَطْعَ الطَّرِيقِ مُسَارَقَةُ عَيْنِ الْإِمَامِ او په غټه غلا يعني په ډاکه ماري کې د امام له نظر څخه [په پټه] غلا کول سته لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَصَدِّي لِحِفْظِ الطَّرِيقِ بِأَعْوَانِهِ حکه چې امام په خپلو

مرستيالانو [سپاهيانو] سره د لارو حفاظت ته متوجه وي وَفِي الصُّغْرٰی مُسَارَقَةُ عَيْنِ الْمَالِكِ أَوْ مَنْ يَقُومُ مَقَامَهٗ او په کوچنۍ غلا کې د مالک يا د هغه د قائم مقام له نظر څخه [په پټه] غلا کول سته.

**اللغات**: ﴿سَرَقَةٌ﴾ او سَرِقَةٌ: د ضرب مصدر دی: غلا کول. ﴿استسرار﴾ د استفعال مصدر دی: پټول، په پټه يو کار کول. ﴿اِسْتِرَاقُ السَّمْعِ﴾ په غلا ديو چا خبره اورېدل. په پټه اورېدل. په پټه چا ته غوږ نيول. ﴿مُراعیٰ﴾ د مفاعلې اسم مفعول دی: د کوم شي چې رعايت وسي او اعتبار ورکول سي هغه ته "مراعیٰ". ﴿نقب﴾ د نصر ماضي ده: (په دېوال کې) سوری جوړول. (دېوال سوری کول). ﴿مکابرة﴾ د مفاعلې مصدر دی: جنګ کول. زور او غلبه کول. ﴿جهار﴾ په اعلانيه توګه. په ښکاره، په ښکاره توګه. ﴿قطع الطريق﴾ لاره شکول. ډاکه اچول. ډاکه ماري. ﴿متصدّي﴾ د تفعّل اسم فاعل دی. تَصَدّٰی يَتَصَدّٰی تَصَدِّيًا: په يو شي پسې کېدل. متوجّه کېدل. ﴿أعوان﴾ جمع د "عَوْنٌ" ده: مددګار، مرستيال.

**تشريح**: په دې عبارت کې د "سرقه" لغوي او اصطلاحي معنیٰ بيان سوې ده. د "سرقه" لغوي معنیٰ ده "په پټه توګه ديو چا مال اخيستل"، او اِسْتِرَاقُ السَّمْعِ يعني په پټه (او په غلا) ديو چا خبره اورېدل هم له دې څخه مأخوذ او مشتق دي (او د آيت مطلب دا دی چې شيطان په پټه توګه د آسماني خبرو د اورېدلو کوښښ کوي، لېکن د الله له طرفه پر هغه خبيث يو کاري وارې وسي. او د هغه ټوله اُميدونه او کوښښونه د خاورو سره خاوري سي). او د "سرقه" اصطلاحي او شرعي معنیٰ هم د لغوي معنیٰ په څېر ده خو په هغه کې دا اضافه هم سوې ده "أَخْذُ مَالِ الْغَيْرِ عَلٰى سَبِيْلِ الْخُفْيَةِ نِصَابًا مُحْرَزًا مِنْ غَيْرِ تَأْوِيْلٍ وَلَا شُبْهَةٍ" يعني له څه تأويل او شبهې څخه بغير په پټه توګه د بل چا مال اخيستل چې هغه د "سرقه" د نصاب په اندازه وي او محفوظ هم وي (عنايه). د دې نوره تشريح به وروسته راسي. او په شرعي معنیٰ کې د ابتداء او انتهاء دواړو په اعتبار سره يا فقط په ابتداء کې د لغوي معنیٰ (يعني په پټه د مال اخيستلو) اعتبار او رعايت کيږي، د ابتداءً او انتهاءً دواړو مثال دا دی چې يو څوک په پټه ديو چا په دېوال کې سوری (نقب) جوړ کړي او په پټه د هغه مال يووسي چې په هغه سره بالکل مالک خبر نه سي (نو دلته په ابتداء کې هم مالک په خبر نه سو او په پټه هغه سوری جوړ کړی. او په انتهاء کې هم مالک په خبر نه سو او په پټه هغه مال يووړی). او ابتداءً د لغوي معنیٰ د اعتبار کولو مثال دا دی چې يو څوک په پټه په دېوال کې نقب جوړ کړي او تر دې وروسته مالک په

خبر سي او هغه د مالک سره مقابله وکړي او په ښکاره توګه (په زوره) مال ځني يووسي (نو دلته که څه هم په انتهاء کي د "سرقه" لغوي معنیٰ (په پټه مال اخيستل) نسته. لېکن په ابتداء کي (يعني کور ته د داخلېدلو په وخت کي) دا معنیٰ سته (يعني هغه په پټه کور ته داخل سو). لهذا په دې صورت کي هم د "سرقه" معنیٰ موجود سوه. نو ځکه به پر هغه مناسب حدّ جاري کېږي).

وفي الكبرىٰ إلخ: په دې سره د غلا دويم قسم (ډاکه ماري) بيانوي. حاصل يې دا دی چي که څه هم په غټه غلا يعني په ډاکه ماري کي په عامه او ښکاره توګه ډاکوګان مقابله کوي او له خلکو څخه مالونه اخلي، خو هغوی بيا د حکومت او إمام او د هغه د لښکرو او عسکرو څخه په پټه توګه دا کار کوي، ځکه چي د إمام له طرفه ګزمه ګرځي او هغه په خپلو عسکرو سره د لارو حفاظت کوي (مطلب دا چي که څه هم په ډاکه ماري کي په اعلانيه او ښکاره توګه له خلکو څخه مالونه اخيستل کيږي. خو بيا هم د إمام له نظر څخه په پټه ډاکه ماري کيږي). لهذا په دې کي هم "د پټېدلو" او د سرقه لغوي معنیٰ موجوده سوه (نو ځکه به په دې کي هم د ډاکه ماری سره مطابق حدّ جاري کيږي).

## په کومو صورتونو کي به د غله (سارق) لاس پرېکيږي؟

قَالَ: وَإِذَا سَرَقَ الْعَاقِلُ الْبَالِغُ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فرمايي: کله چي عاقل بالغ کس لس [١٠] درهمه غلا کړي أَوْ مَا يَبْلُغُ قِيمَتُهُ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ مَضْرُوبَةً يا داسي شی غلا کړي چي د هغه قيمت لسو تيار سوو [مُهر زده] درهمو ته رسيږي مِنْ حِرْزٍ لَا شُبْهَةَ فِيهِ [او] له محفوظه ځای څخه [يې غلا کړي] چي په هغه کي شبهه نه وي وَجَبَ الْقَطْعُ نو [د هغه د لاس] پرېکول واجبيږي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُه تَعَالىٰ: وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا [المائدة: ٣٧] او اصل په دې باره کي د الله تعالیٰ دا فرمان دی: "وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْ..." وَلَا بُدَّ مِنْ اِعْتِبَارِ الْعَقْلِ وَالْبُلُوغِ او د عقل او بلوغ اعتبار کول ضروري دي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ لَا تَتَحَقَّقُ دُونَهُمَا ځکه چي له هغوی څخه بغير جرم نه ثابتيږي. وَالْقَطْعُ جَزَاءُ الْجِنَايَةِ او قطعُ اليد د جرم سزا ده وَلَا بُدَّ مِنَ التَّقْدِيرِ بِالْمَالِ الْخَطِيرِ او ډېر مال [مال کثير] متعينول ضروري دي لِأَنَّ الرَّغَبَاتِ تَفْتُرُ فِي الْحَقِيرِ ځکه چي په لږ غوندي مال کي کم رغبت کيږي وَكَذَا أَخْذُهُ لَا يَخْفَى او همدارنګه لږ مال په پټه [هم] نه اخيستل کيږي فَلَا يَتَحَقَّقُ رُكْنُهُ وَلَا حِكْمَةُ الزَّجْرِ نو [په لږ غوندي مال کي] به د سرقې رکن نه ثابتيږي او نه به د زجر حکمت ثابتيږي لِأَنَّهَا فِيمَا

يَغْلِبُ ځكه چې د زجر حكمت په هغه مال كې ثابتيږي كوم چې غالب وي ايعني كوم چې غالباً غلا كيږي | وَالتَّقْدِيرُ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ مَذْهَبُنَا او په لسو درهمو سره اندازه كول زموږ مذهب دى وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ التَّقْدِيرُ بِرُبُعِ دِينَارٍ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا تقدير په څلورو دينارو سره دى وَعِنْدَ مَالِكٍ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِ بِثَلَاثَةِ دَرَاهِمَ او د امام مالك رَحِمَهُ الله په نېز دا تقدير په دريو درهمو سره دى لَهُمَا: أَنَّ الْقَطْعَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ [1] مَا كَانَ إِلَّا فِي ثَمَنِ الْمِجَنِّ د امام شافعي او امام مالك رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چې د نبي ﷺ په زمانه كې به د ډال د قيمت په په غلا كولو سره لاس پرېكول كېدى وَأَقَلُّ مَا نُقِلَ فِي تَقْدِيرِهِ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ او د ډال د قيمت كمه اندازه درې درهمه را نقل سوې ده ايعني د ډال كم قيمت درې درهمه دي | وَالْأَخْذُ بِالْأَقَلِّ وَهُوَ الْمُتَيَقَّنُ بِهِ أَوْلَى او پر كم مقدار عمل كول ډېره غوره دي ځكه چې كم [أقل] متيقن وي غَيْرَ أَنَّ الشَّافِعِيَّ يَقُولُ: كَانَتْ قِيمَةُ الدِّينَارِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ اثْنَيْ عَشَرَ دِرْهَمًا ليكن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د نبي كريم ﷺ په زمانه كې د يوه دينار قيمت دوولس [١٢] درهمه وو وَالثَّلَاثَةُ رُبُعُهَا او درې درهمه د هغه ربع ده وَلَنَا: أَنَّ الْأَخْذَ بِالْأَكْثَرِ فِي هٰذَا الْبَابِ أَوْلَى احْتِيَالًا لِدَرْءِ الْحَدِّ زموږ دليل دا دى: چې د حدّ دفع كولو لپاره د حيلې جوړولو په خاطر په دې باب كې په زيات مقدار عمل كول ډېر غوره دي وَهٰذَا لِأَنَّ فِي الْأَقَلِّ شُبْهَةَ عَدَمِ الْجِنَايَةِ او دا ځكه چې په أقل كې د "نه جرم" شبهه سته ايعني د ډېر لږ غوندي مال په غلا كولو كې دا شبهه سته چې هغه به جرم نه وي | وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْحَدِّ حال دا چې شبهه د حدّ لپاره دفع كونكې [ساقطونكې] ده وَقَدْ تَأَيَّدَ ذٰلِكَ بِقَوْلِهِ ﷺ [2]: لَا قَطْعَ إِلَّا فِي دِينَارٍ أَوْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ او د نبي كريم ﷺ په دغه فرمان سره د دې تائيد كيږي : چې لاس به نه پرېكول كيږي مګر په يوه دينار كې يا په لسو درهمو كې وَاسْمُ الدَّرَاهِمِ يُطْلَقُ عَلَى الْمَضْرُوبَةِ عُرْفًا او د "دراهم" د لفظ اطلاق په عرف كې پر تيار سوو [مُهر زده] دراهمو كيږي فَهٰذَا يُبَيِّنُ لَكَ اشْتِرَاطَ الْمَضْرُوبِ نو همدا [عرف] تا ته د مضروبه دراهمو د شرطوالي وضاحت كوي كَمَا قَالَ فِي الْكِتَابِ لكه څرنګه چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په كتاب [متن] كې ويلي دي وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا ظاهر روايت دى او همدا

---

[1] تخريج: رواه البخاري، رقم الحديث:٦٧٩٣.

[2] تخريج: رواه الترمذي، تحت الرقم:١٤٢٦.

ډیر صحیح دی رِعَايَةً لِكَمَالِ الْجِنَايَةِ د دې لپاره چې د کامل جنايت رعايت وسي حَتَّى لَوْ سَرَقَ عَشَرَةً تِبْرًا قِيمَتُهَا أَنْقَصُ مِنْ عَشَرَةٍ مَضْرُوبَةٍ همدا وجه ده که څوک د سپينو زرو لس داسي ټوټې غلا کړي چې د هغوی قيمت د لسو تيار سوو درهمو څخه کم وي لَا يَجِبُ الْقَطْعُ نو قطعُ اليد نه واجبيږي وَالْمُعْتَبَرُ وَزْنُ سَبْعَةِ مَثَاقِيلَ او په دراهمو کي د اُوو مثقالو والا وزن معتبر دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَعَارَفُ فِي عَامَّةِ الْبِلَادِ ځکه چې په زياتره ښارو کي همدغه وزن متعارف دی وَقَوْلُهُ: أَوْ مَا يَبْلُغُ قِيمَتُهُ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ غَيْرَ الدَّرَاهِمِ تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ بِهَا او [په متن کي] د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "ما يبلغ قيمته عشرة دراهم" و دې خبري ته اشاره ده چې له دراهمو څخه بغير [د بل غلا کړی سوي شي] د قيمت اعتبار به په دراهمو سره کيږي وَإِنْ كَانَ ذَهَبًا که څه هم هغه سره زر وي وَلَا بُدَّ مِنْ حِرْزٍ لَا شُبْهَةَ فِيهِ او له داسي محفوظ ځای څخه غلا کول ضروري دي چې په هغه کي شبهه نه وي لِأَنَّ الشُّبْهَةَ دَارِئَةٌ ځکه چې شبهه [د حدّ لپاره] دفع کونکې ده وَسَنُبَيِّنُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د دې بيان به موږ انشاء الله وروسته وکړو.

**اللغات**: ﴿مضروبة﴾ له سرو زرو او سپينو زرو څخه جوړه کړی سوې سکّه چې د حکومت له طرفه مُهر پر وهل سوی وي (يعني کله چې له سرو او سپينو زرو څخه دينار او درهم تيار کړی سي او د حکومت له طرفه مُهر [ټاپه] پر ووهل سي، نو داسي دينار او درهم ته مضروب دينار او درهم وايي). ﴿حِرْز﴾ (د حاء په کسره سره) اسم دی معنیٰ يې ده: محفوظه ځای، مظبوطه ځای. او حَرْز (د حاء په فتحه سره) د نصر د باب مصدر دی معنی يې ده: ساتل، حفاظت کول، محفوظه کول (دلته د خاء په کسره سره دی، مطلب يې دا دی چې مسروق (غلا کړی سوی شی) به په داسي ځای کي پروت وي چې هلته د حفاظت او خوندي کولو په غرض شيان ايښوول کيږي او د ايښوونکي کس اراده او مقصد په ايښولو سره خوندي کول او ساتل وي، نه ضايع کول). ﴿خطير﴾ غټ، ستر. ﴿تفتر﴾ د نصر مضارع ده: کمېدل (لږېده)، رغبت او شهوت سړېدل. ﴿مجنّ﴾ ډال، سپر. ﴿درء﴾ د فتح د باب مصدر دی: دفع کول، ليري کول. ﴿أقلّ﴾ ډېر کم، کمتر. ﴿تِبْر﴾ د سپينو زرو ټوټه (ټوکړه).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د غلا کولو په وجه به هغه وخت د غله لاس پرېکيږي کله چې غل عاقل او بالغ وي: ځکه چې له عقل او بلوغ څخه بغير خو بالکل جنايت نه ثابتيږي. او (هغه وخت به د غله

لاس پرېکيږي) چي هغه لس نغد درهمونه يا دلسو درهمو د قيمت په اندازه شی غلا کړي. او له داسي محفوظ ځای څخه يې غلا کړي چي د هغه په محفوظه کېدلو کي هيڅ شک او شبهه نه وي (مطلب دا چي په هغه ځای کي د حفاظت په غرض شيان ايښوول کيږي چي د ايښوونکي مقصد خوندي کول وي، نه ضايع کول)؛ د لاس پرېکولو په باره کي أصل او بنياد دا آيت دی "اَلسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِنَ الله" (يعني که يو سړی يا ښځه غلا وکړي. نو تاسي د هغوی لاسونه پرېکړئ! او دا قطع د الله له طرفه د دوی د عمل [غلا] جزاء او سزا ده). معلومه سوه چي د لاس پرېکول د غلا د جنايت سزا ده. او فقط د هغه مال په جزاء کي به لاس پرېکول کيږي کوم چي کثير (ډېر) وي يعني د لسو درهمو په اندازه وي، ځکه چي د لسو درهمو څخه کم مال لږ او معمولي غوندي وي او که څه هم هغه مال وي لېکن خلک پر هغه توجّه نه کوي. همدارنګه کم مال په پټه توګه غلا کول کيږي هم نه. لهذا کله چي کم مال په پټه توګه نه غلا کول کيږي. نو په هغه کي به د "سرقه" رکن يعني "په پټه اخيستل" او د زجر او تنبيه ورکولو حکمت هم نه ثابتيږي. نو ځکه موږ دا شرط لګولی دی چي د لاس پرېکولو لپاره د "سرقه" نصاب يعني کم از کم د لسو درهمو يا د هغه د قيمت په اندازه مال غلا کول ضروري دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د دينار د څلورمي حصې (رُبع) په غلا کولو سره لاس پرېکيږي. او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز د دريو (۳) درهمو په غلا کولو سره لاس پرېکيږي: د دوی دليل دا دی چي د نبي ﷺ په زمانه کي به د ډال (سپر) د قيمت په غلا کولو سره لاس پرېکول کېدی. او له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوی دی: "أن رسول الله ﷺ قطع سارقا في مجن قيمته ثلاثة دراهم" (يعني نبي کريم ﷺ د ډال غلا کولو په وجه ديوه غله لاس پرېکړی او د هغه ډال قيمت دري درهمه وو)، له دې څخه معلومه سوه چي د دريو درهمو غلا کول يا د دريو درهمو د قيمت په اندازه شی غلا کول د حدّ موجب دی. د دې عقلي دليل دا دی چي دري أقل متعين او متيقّن وي. نو ځکه پر دې عمل کول اولیٰ دي، او د نبي ﷺ په زمانه کي يو دينار دوولس (۱۲) درهمه کېدی نو په دې حساب سره د دينار يوه رُبع دري درهمه کيږي. ګواکي د معنیٰ او مقصد په لحاظ سره د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله دواړو قول يو دی. فقط په سکّه او پيسه کي يې فرق دی.

ولنا إلخ: په دې سلسله کي زموږ دليل دا دی چي "لا قطع إلّا في دينار أو عشرة دراهم" (يعني له يوه دينار يا لسو درهمو څخه په کم مال کي قطع نسته)، يعني لاس به په هغه وخت پرېکول کيږي کله چي يو دينار غلا کړی سي يا لس درهمه او له دې څخه د کم مال غلا کېدلو په صورت کي به لاس نه پرېکول

کيږي، او بنکاره خبره ده چي لس درهمه او يو دينار له دريو درهمو او ربع دينار څخه زيات او أکثر دي. او د حدّ ساقطولو لپاره د حيلې جوړولو په خاطر پر أكثر عمل كول زيات غوره دي (ځكه مخكې ضمناً ذكر سوه چي كوښښ به كيږي چي حدّ په يوه حيله سره ساقط كړى سي). لهذا په دې حواله سره به د لسو درهمو والا قول راجح وي. دويمه خبره دا ده چي په دې هكله اختلاف دى چي په أقل يعني ربع دينار يا درې درهمو سره حدّ واجبيږي، ځكه موږ أحناف هغه د حدّ مُوجِب نه منو. ليكن زموږ مقدار يعني لس درهمه يا يو دينار شوافع او مالكيان ټوله د حدّ مُوجِب مني. او دا خبره تر لمر سپينه ده چي متفق عليه مقدار اختيارول اولىٰ او افضل دي. لهذا په دې حواله سره به هم د لسو درهمو والا قول راجح وي. همدا خبره صاحب د كتاب په دې عبارت "لأن في الأقل شبهة عدم الجناية.. إلخ" سره بيان كړې ده.

واسم الدراهم إلخ: فرمايي چي په عرف كي له مطلق دراهمو څخه "تيار سوي" (مُهر زده) دراهم مراديږي (كوم چي په بازار كي چليږي، د سپينو زرو نا تياري سوي ټوټې نه ځني مراديږي). نو دلته به هم له دراهمو څخه تيار سوي (مُهر زده) درهم مراد وي. ام قدوري رَحِمَهُ الله هم دا شرط لګولى دى. او د جنايت د بشپړ تيا او د حدّ د واجبېدلو لپاره دا شرط ضروري دى. همدا وجه ده كه څوك د سپينو زرو لس ټوټې غلا كړي او د هغو قيمت له عشرة دراهم مضروبة څخه كم وي نو د غله لاس به نه پرېكيږي. پاته عبارت واضح دى (تشريح ته ضرورت نه لري).

## د لاس پرېكولو په حكم كي د آزاد او غلام د مساوات بيان

قَالَ: **وَالْعَبْدُ وَالْحُرُّ فِي الْقَطْعِ سَوَاءٌ** فرمايي: چي په قطعُ اليد كي غلام او آزاد دواړه سره برابر دي لِأَنَّ النَّصَّ لَمْ يُفَصِّلْ ځكه چي قرآني آيت (د غلام او آزاد په مينځ كي) هيڅ فرق كړى نه دى وَلِأَنَّ التَّنْصِيفَ مُتَعَذِّرٌ او ځكه چي (ادلته د غلام سزا) نيمول مشكل دي فَيَتَكَامَلُ صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ لهذا د خلكو د مالونو د حفاظت په خاطر به (د غلام) سزا پوره كول كيږي **وَيَجِبُ الْقَطْعُ بِإِقْرَارِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً** او د غله په يوه ځل اقرار كولو سره به قطعُ اليد واجبيږي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** دا حكم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دى **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا يُقْطَعُ إِلَّا بِالْإِقْرَارِ مَرَّتَيْنِ** او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له دوه واره اقرار كولو څخه بغير به د هغه لاس نه پرېكيږي وَرُوِيَ عَنْهُ: أَنَّهُمَا فِي مَجْلِسَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دى: چي دا دواړه اقرارونه به په دوو جلا مجلسونو كي وي لِأَنَّهُ إِحْدَى الْحُجَّتَيْنِ ځكه چي اقرار له دوو

حجتونو څخه يو حجت دى فَتُعْتَبَرُ بِالْأُخْرَى نو ځکه به هغه پر دويم حجت قياس کيږي وَهِيَ الْبَيِّنَةُ او هغه ادويم حُجت! ګواهي ده كَذٰلِكَ اعْتَبَرْنَا فِي الزِّنَا همدارنګه موږ په زنا کي قياس کړى دى وَلَهُمَا: أَنَّ السَّرِقَةَ قَدْ ظَهَرَتْ بِالْإِقْرَارِ مَرَّةً د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي په يوه وار اقرار کولو سره غلا ښکاره سوه فَيُكْتَفَى بِهِ لهذا پر "يوه ځل" به اکتفار کيږي كَمَا فِي الْقِصَاصِ وَحَدِّ الْقَذْفِ لکه په قصاص او حدّ قذف کي اچي پر يوه ځل اقرار کولو اکتفاء کيږي! وَلَا اعْتِبَارَ بِالشَّهَادَةِ او هغه به پر ګواهي نه قياس کيږي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ تُفِيدُ فِيهَا تَقْلِيلَ تُهْمَةِ الْكَذِبِ ځکه چي په ګواهي کي د درواغو د تهمت کمولو لپاره اد ګواهانو ازياتوب فايده کوي وَلَا تُفِيدُ فِي الْإِقْرَارِ شَيْئًا لېکن په اقرار کي زياتوب هيڅ فايده نه کوي لِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ ځکه چي اپه اقرار کي! تهمت نسته وَبَابُ الرُّجُوعِ فِي حَقِّ الْحَدِّ لَا يَنْسَدُّ بِالتَّكْرَارِ او د څو ځله اقرار کولو باوجود د رجوع کولو دروازه نه بنديږي وَالرُّجُوعُ فِي حَقِّ الْمَالِ لَا يَصِحُّ أَصْلًا او د مال په حق کي بالکل رجوع کول صحيح نه دي لِأَنَّ صَاحِبَ الْمَالِ يُكَذِّبُهُ ځکه چي د مال خاوند دِ راجع تکذيب کوي وَاشْتِرَاطُ الزِّيَادَةِ فِي الزِّنَا بِخِلَافِ الْقِيَاسِ او په زنا کي د زياتوب شرط کېدل د قياس خلاف دي فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِ الشَّرْعِ نو ځکه به هغه فقط د شريعت د واردېدو پر ځاى منحصر کيږي اچي هغه زنا ده. او پر هغه به غلا نه قياس کيږي! قَالَ: وَيَجِبُ بِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ فرمايي: چي د دوو ګواهانو په ګواهي سره به قطعُ اليد واجبيږي لِتَحَقُّقِ الظُّهُورِ د دې لپاره چي اد غلا! ښکاره والى ثابت سي كَمَا فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ لکه په نورو حقوقو کي اچي دوه ګواهان ضروري دي، لهذا دلته به هم دوه ګواهان ضروري وي! وَيَنْبَغِي أَنْ يَسْأَلَهُمَا الْإِمَامُ عَنْ كَيْفِيَّةِ السَّرِقَةِ وَمَاهِيَّتِهَا وَزَمَانِهَا وَمَكَانِهَا لِزِيَادَةِ الْاِحْتِيَاطِ او امام لره پکار دي چي د زيات احتياط لپاره له دې دوو ګواهانو څخه د غلا د کفييت، حقيقت اتعريف! ، او د غلا د وخت او مکان په هکله پوښتنه و کړي كَمَا مَرَّ فِي الْحُدُودِ لکه د حدّونو په بحث کي چي دا احکم! تير سو وَيَحْبِسُهُ إِلَى أَنْ يَسْأَلَ عَنِ الشُّهُودِ لِلتُّهْمَةِ او امام به تر دومره وخت پوري غل بندي کوي تر دې چي د ګواهانو په باره کي پوښتنه وکړي، د تهمت په وجه ايعني ځکه چي پر غله د غلا تهمت لګېدلى دى. نو په دې وجه به يې بندي ساتي! قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَكَ جَمَاعَةٌ فِي سَرِقَةٍ فَأَصَابَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ فرمايي: او کله چي په غلا کي څو خلک شرکت وکړي او په هغو کي هر يوه ته لس درهمه ورسيږي قُطِعَ نو د هر يوه لاس به پرېکول کيږي وَإِنْ أَصَابَهُ أَقَلُّ

او که اهر یوه ته ا تر لسو کم درهم ورسیږي لَا یُقْطَعُ نو نه به پرېکول کیږي لِأَنَّ الْمُوجِبَ سَرِقَةُ النِّصَابِ ځکه چې د پرېکولو مُوجب د نصاب غلا کول دي ایعني قطعُ الید د سرقې د نصاب په غلا کولو سره واجبیږي، چې هغه لس درهمه دي ا وَیَجِبُ عَلٰی کُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ بِجِنَایَتِهِ او اخرنګه چې قطعُ الید ا پر هر یوه د خپل جرم په وجه واجبیږي فَیُعْتَبَرُ کَمَالُ النِّصَابِ فِي حَقِّهِ نو ځکه به د هر یوه په حق کې د پوره نصاب السو درهمو ا اعتبار کیږي.

**اللغات**: ﴿تَنْصِيف﴾ د تفعیل مصدر دی: نیمول (نیمایي کول)، ﴿مُتَعَذِّر﴾ مشکل، ناممکن. ﴿تَقْلِيل﴾ د تفعیل مصدر دی: لږول، کمول، ﴿لَا یَنْسَدُّ﴾ د انفعال له باب څخه د نفي صیغه ده: بندېدل. ﴿مَوْرِد﴾ د ضرب له باب څخه د اسم ظرف صیغه ده: د "وارد بدلو" مقام، ﴿أَصَابَ﴾ د افعال ماضي ده: رسېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کې تو له څلور مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... د قطعُ الید په حکم کې غلام او آزاد دواړه برابر دي، یعني که غلام غلا وکړي، نو د آزاد په څیر به د هغه لاس هم پرېکیږي او په هغه کې به تنصیف نه کیږي، ځکه چې په پرېکولو کې تنصیف کول متعذر او مشکل دي، نو ځکه به د آزاد په څیر د هغه لاس پوره پرېکیږي، د دې لپاره چې غلام هم د غلا له کارونو څخه منع سي او د خلګ أموال محفوظ او خوندي پاته سي.

(۲)... که غل فقط یو وار د غلا اقرار وکړي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به په همدې یوه اقرار سره د هغه لاس پرېکیږي، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز به په دوو جلا، جلا مجلسونو کې په اقرار کولو سره د هغه لاس پرېکیږي؛ امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلته له قیاس څخه کار اخیستی دی چې څرنګه د دوو خلګو په ګواهي سره غلا ثابتیږي، همداسې به په دوه واره اقرار کولو سره غلا او قطعُ الید ثابتیږي، لکه څرنګه چې زنا د څلورو خلګو په ګواهي سره ثابتیږي یا په څلور واره اقرار کولو سره ثابتیږي (په یوه وار اقرار کولو سره زنا نه ثابتیږي).

د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې غلا په یوه وار اقرار کولو سره ثابتیږي، او څرنګه چې قصاص او حدِّ قذف په یوه وار اقرار کولو سره ثابتیږي، همداسې به غلا هم په یوه وار اقرار کولو سره ثابتیږي او دا یو وار اقرار کول به د قطع مُوجب وي، او د زیاتو وارونو شرط لګول به تحصیل د حاصل وي کوم چې صحیح نه دي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قیاس صحیح نه دی چې هغه اقرار پر بیّنه او ګواهي باندې قیاسوي. ځکه چې په بینه کې د ګواهانو په زیاتوالي (او دوه والي) سره د کذب تهمت نفي کیږي او په اقرار کې خو هیڅ تهمت هم نسته نو هغه به څرنګه نفي سي! (ځکه څوک چې په خپله د غلا اقرار کوي، او ځان سزا ته تیاروي، نو د هغه په اقرار کې د دروغو هیڅ احتمال راتلای نه سي)، همدا وجه ده چې تر څو واره اقرار کولو وروسته هم په حدّ کې رجوع کول صحیح وي (لکه مخکې چې د دې بیان وسو) لېکن څرنګه چې په سرقه کې د مال معامله ده او

په مال کي رجوع کېدای نه سي، ځکه مُقر چي کله هم رجوع کوي نو صاحبُ المال د هغه تکذيب کوي، لهذا په دې حوانه سره هم په دې اقرار کي تکرار مفيد نه دی، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله چي هغه پر زنا قياس کړی دی دا قياس هم صحيح نه دی، ځکه چي زنا ډېره نازکه معامله ده او په هغې کي د زيات‌توب شرط لګول (يعني څلور واره اقرار شرط کول) د قياس خلاف دي، او قاعده دا ده چي کوم شی خلافُ القياس ثابت وي پر هغه بل شی قياس کېدای نه سي، د قاعدې الفاظ دا دي "مَا ثَبَتَ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ فَغَيْرُهُ لَا يُقَاسُ عَلَيْهِ".

(٣)... غلا به د دوو ګواهانو په ګواهۍ سره ثابتيږي او د دوو ګواهانو په ګواهۍ سره به قطعُ اليد واجبيږي. او امام ته پکار دي چي هغه له ګواهانو څخه د غلا د کيفيّت په هکله پوښتنه وکړي چي هغه (سارق) څرنګه غلا وکړه، ځکه کېدای سي چي هغه به په دېوال کي سوری (نقب) جوړ کړی وي او لاس به يې ور دننه کړی وي او په دې توګه به يې مال غلا کړی وي حال دا چي داسي غلا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قطعُ اليد مُوجِب نه ده او په دې صورت کي حدّ ساقطيږي، نو په دې وجه د غلا د کيفيّت په هکله پوښتنه کول پکار دي، همدارنګه د غلا د ماهيت په هکله هم پوښتنه کول پکار دي (چي د غلا حقيقت څه دی او غلا څه ته وايي!)، ځکه کېدای سي چي غلا کړی سوی شی ډېر کم او معمولي وي، او د غلا د وقت او تاريخ په هکله هم پوښتنه کول پکار دي، ځکه که د غلا ډېر وخت وسي نو هم حدّ ساقطيږي، او د غلا د ځای او مکان په هکله هم پوښتنه کول پکار دي، ځکه کېدای سي چي هغه له خپل کور يا د خپل زوی له کور څخه مال غلا کړی وي، يا يې له غيرِ محرز (نامحفوظ) ځای څخه مال غلا کړی وي، نو په دې صورتونو کي هم حدّ ساقطيږي. نو ځکه إمام او قاضي ته پکار دي چي د دې شيانو په هکله پوښتنه وکړي. په همدې کي زيات احتياط دی، او امام چي تر څو د ګواهانو د حالت په باره کي پوښتنه نه وکړي (او خبره سپينه نه سي) تر هغه وخته پوري به غل د ځان سره ساتي، ځکه چي پر هغه د غلا تهمت لګېدلی دی او د هغه د تېښتېدلو خطره سته.

(۴)... که يو څو خلک په ګډه غلا وکړي، او ټولو ته لس، لس درهمه (يا تر دې زيات) ورسيږي، نو بيا به د ټولو لاسونه پرېکول کيږي، لېکن که په دوی کي هيچا ته د غلا د نصاب په اندازه يعني د لسو درهمو په اندازه مال نه ورسيږي، نو د يوه لاس به هم نه پرېکول کيږي؛ ځکه چي د قطعُ اليد مُوجِب د غلا د نصاب په اندازه مال غلا کول دي او هغه دلته نسته نو قطعُ اليد به هم نه واجبيږي، او څرنګه چي په دوی کي پر هر يوه باندي د خپل جنايت او جرم په وجه قطعُ اليد واجبيږي، لهذا د هر يوه په حق کي به د جنايت د پوره والي او کاملوالي اعتبار کيږي، او جنايت هغه وخت پوره کيږي کله چي هر يوه ته د غلا له مال څخه لس، لس درهمه رسېدلي وي. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ مَا يُقْطَعُ فِيْهِ وَمَا لَا يُقْطَعُ

(دا) باب (په بيان کې) د هغه غلا دی چې په هغه کې لاس پرېکول کيږي او هغه چې لاس نه (پکښې) پرېکول کيږي

## د معمولي شيانو غلا

وَلَا يُقْطَعُ فِيمَا يُوجَدُ تَافِهًا مُبَاحًا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ كَالْخَشَبِ وَالْحَشِيشِ وَالْقَصَبِ وَالسَّمَكِ وَالطَّيْرِ وَالصَّيْدِ وَالزِّرْنِيخِ وَالْمَغْرَةِ وَالنُّورَةِ او لاس به نه پرېکول کيږي په هر هغه معمولي او مباحُ الأصل شي کې کوم چې په دارُ الاسلام کې پيدا کيږي لکه لرګي [لرګيان]، واښه، بانس، ماهيان، مرغان، د ښکار ځاروبان، هړتال، سره خاوره او چينه وَالْأَصْلُ فِيهِ حَدِيثُ عَائِشَةَ [1] قَالَتْ: كَانَتِ الْيَدُ لَا تُقْطَعُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الشَّيْءِ التَّافِهِ أَيِ الْحَقِيرِ او أصل په دې سلسله کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی، هغه فرمايي: چې د نبي ﷺ په زمانه کې به پر معمولي يعني پر حقير [کم ارزښته] شي لاس نه پرېکول کېدی وَمَا يُوجَدُ جِنْسُهُ مُبَاحًا فِي الْأَصْلِ بِصُورَتِهِ غَيْرُ مَرْغُوبٍ فِيهِ حَقِيرٌ او هر هغه شی چې په أصل کې د هغه جنس روا پيدا کيږي [چې څوک يې واخلي هغه يې مالک جوړيږي] او هغه ته رغبت [لېوالتيا] نه کيږي [هغه] حقير دی تَقِلُّ الرَّغَبَاتُ فِيهِ وَالطِّبَاعُ لَا تَضَنُّ بِهِ [ځکه چې] وهغه ته [د خلکو] رغبات [او غوښتنې] لږ وي او طبيعتونه د هغه په ورکولو کې بخل نه کوي [او څه پروانه په کوي] فَقَلَّمَا يُوجَدُ أَخْذُهُ عَلَى كُرْهٍ مِنَ الْمَالِكِ او ډېر کم پيدا کيږي د مالک په ناخوښۍ سره د هغه اخيستل [د دې جملې مطلب همدا دی چې مالکان د هغه شي په اخيستلو سره ډېر بد نه وړي، يا دا چې مالکان د هغه شي پر اخيستلو کراهيت او ناخوښي نه ښکاره کوي او خاص پروا نه په کوي] فَلَا حَاجَةَ إِلَى شَرْعِ الزَّاجِرِ نو ځکه [په داسې شيانو کې] د زاجر [او سزا] مشروع کولو ته ضرورت نشته [يعني نو ځکه په داسې شيانو کې د شريعت له طرفه هغه ته د سزا او تنبيه ورکولو ضرورت نشته] وَلِهَذَا لَمْ يَجِبِ

[1] تخريج: رواه البيهقي في السنن الكبرى بمعناه، رقم الحديث: ۱۷۶۲۷.

الْقَطْعُ فِي سَرِقَةِ مَا دُونَ النِّصَابِ همدا وجه ده چې تر نصاب د کم مال په غلا کولو کې د لاس پرېکول نه واجبيږي وَلِأَنَّ الْحِرْزَ فِيهَا نَاقِصٌ او ځکه چې په دې شيانو کې حفاظت ناقص وي أَلَا يُرَى أَنَّ الْخَشَبَ يُلْقَى عَلَى الْأَبْوَابِ آيا هغه نه ګوري چې لرګي [الرګيان] د دروازو مخته غورځول کيږي وَإِنَّمَا يَدْخُلُ فِي الدَّارِ لِلْعِمَارَةِ لَا لِلْإِحْرَازِ او په کور کې [خو فقط] د تعميراتي کار لپاره داخليږي. نه د حفاظت لپاره ايعني عموماً خلک لرګي او ښاخونه د کور مخته غورځوي، خاص پروا نه په کوي (لکه د صحراء او اطرافو خلک)، او کوم لرګي چې خلک کور ته دننه کوي، نو هغه د دې لپاره دننه کوي چې بام يا داسې بل شی پر جوړ کړي. د حفاظت او ساتلو لپاره يې کور ته نه دننه کوي] وَالطَّيْرُ يَطِيرُ وَالصَّيْدُ يَفِرُّ او مرغان الوزي او ښکار ځاروبان تښتني وَكَذَا الشَّرِكَةُ الْعَامَّةُ الَّتِي كَانَتْ فِيهِ وَهُوَ عَلَى تِلْكَ الصِّفَةِ تُورِثُ الشُّبْهَةَ همدارنګه کوم شيان چې پر خپل أصلي هيئت پاته وي او په هغوی کې د ټولو عوامو شرکت وي نو دا شرکت [د إباحت] شبهه پيدا کوي [يعني هر هغه شی چې په هغه کې ټوله عوام شريک وي او چې څوک يې واخلي هغه يې مالک جوړيږي، نو څرنګه چې غل (سارق) هم له عوامو څخه دی، نو ځکه په داسې شي کې د غله د مالک جوړېدلو شبهه سته او د غله لپاره د دې شي د روايښت شبهه سته] وَالْحَدُّ يَنْدَرِئُ بِهَا او حدّ په شبهې سره ساقطيږي وَيَدْخُلُ فِي السَّمَكِ الْمَالِحُ وَالطَّرِيُّ وَفِي الطَّيْرِ الدَّجَاجُ وَالْبَطُّ وَالْحَمَامُ او د "سمک" په لفظ کې اوچ کړی سوی [ نمکين ماهی او تازه ماهی [دواړه] داخليږي او د "طير" په لفظ کې چرګه، هيلۍ او کوتره [ټوله] داخليږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَلِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ عليه السلام[2]: لَا قَطْعَ فِي الطَّيْرِ او د نبي ﷺ د دې فرمان د مطلقوالي په وجه: چې په مرغانو کې قطعُ اليد نشته [يعني د مرغانو په غلا کولو سره به د غله لاس نه پرېکول کيږي] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَجِبُ الْقَطْعُ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا الطِّينَ وَالتُّرَابَ وَالسِّرْقِينَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی: چې قطعُ اليد په هر شي کې واجبيږي ماسوا له خټو، خاورو او د څارويانو له فُضلې څخه [لکه خوشايي (ګوبر) خرشينه. پچي] وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول [هم] دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِمَا مَا ذَكَرْنَاهُ [ليکن] د امام شافعي په خلاف هغه دليل حجت کوم چې موږ ذکر کړی.

---

[2] تخريج: رواه البيهقي، رقم الحديث: ۱۷۲۰۶.

**اللغات**: ﴿تَافِه﴾ معمولي، حقير، بې ارزښته (كم قدره). ﴿حَقِيْر﴾ كم ارزښته چې څوک پروانه په كوي، كم قدره چې څوک يې پروا نه لري، سپک، بې ارزښته. صاحب د مصباح يې داسې تعريف کړی دی: حَقُرَ الشَّيْءُ بِالضَّمِ حَقَارَةً: هَانَ قَدْرُهُ فَلَا يُعْبَأُ بِهِ فَهُوَ حَقِيرٌ. ﴿خَشَب﴾ اسم جنس دی: لرګيان (لرګي). ﴿حَشِيْش﴾ واښه (په أصل کې وچو ونښو او بوټو ته وايي). ﴿قَصَب﴾ بانس. ﴿طَيْر﴾ الوتونکي مرغان. ﴿صَيْد﴾ د ښکار حيوان. هغه حيوان چې خلک يې ښکاروي. ﴿زِرْنِيْخ﴾ يو ډول زهرجن معدني مرکب دی چې د وربښتيانو د کښلو لپاره کارول کيږي او د پساريانو په اصطلاح هړتال ورته وايي. ﴿الْمُرْدَارْسَنْج﴾ له عجمي څخه عربي ژبې ته را اوښتی لفظ دی: يو قسم بړه ده چې په پښتو کې مردارسنګ ورته وايي. ﴿الْمَغَرَة﴾ او الْمَغْرَة: يو ډول سره خاوره ده چې په خښتو او داسې نورو شيانو کې کاريږي. د خښتو براده. ﴿نُوْرَة﴾ چونه (چينه. دا هغه مشهوره سپينه خاوره ده چې د خونو او دېوالونو د ښکلا او سپينوالي لپاره کارول کيږي). ﴿مُبَاحُ الْأَصْلِ﴾ هغه شی چې په أصل کې راوي. يعني چې څوک يې واخلي هغه يې مالک جوړيږي. لکه د صحرا بوټي (د سوځلو بوټي). د هوا مرغان. ماهيان او داسې نور. ﴿لَا تَضَنُّ﴾ د نفي صيغه ده. له سمع او ضرب دواړو څخه راځي، بخل کول (بخالت). ﴿مَالِح﴾ نمکين (مراد ځنې هغه ماهی دی چې مالګه پر واچول سي او وچ کړی سي). ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: ساتل. د حفاظت لپاره کور ته وړل. ذخيره کول. ﴿طَرِيّ﴾ تازه. ﴿السِّرْقِيْن﴾ او السَّرْقِيْن: د څارويانو فضله. خوشايي. خرشينه او داسې نور.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې کوم شيان په دارُالاسلام کې مباح (روا) او معمولي وي. يعني د هغو هيڅ ارزښت او اهميت نه وي. لکې د سوځلو بوټي او لرګي. همدارنګه ماهيان او مرغان او داسې. نو د هغوی په اخيستلو او غلا کولو سره به د غله لاس نه پرېکول کيږي: ځکه چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حديث کې له حقير او معمولي شيانو څخه د قطعُ اليد حکم ساقط سوی دی. صاحب د هدايې د تَافِه او حَقِيْر تعريف داسې کړی دی چې هر هغه شی کوم چې أصلاً مباح وي او هغه پر خپل اصلي حالت پاته وي او هغه ته د خلکو رغبت او لېوالتيا کمه وي. هغه شی حقير دی. پر خپل اصلي حالت د پاتېدلو مطلب دا دی چې مثلاً د لرګي څخه دروازه او کړکۍ جوړه سوې نه وي. ځکه چې د دروازې او کړکۍ غلا کول د حدّ مُوجب دي. لېکن! که لرګي (لرګيان) پر خپل اصلي حالت پاته وي او مُحرز (محفوظ کړی سوي) نه وي نو د هغو اخيستل د قطعُ اليد مُوجب نه دي. ځکه چې د هغوی پر حفاظت خاص توجه نه کيږي او په عامه توګه لرګي د

کورونو مخته هسي (ايله) پراته وي، همدارنګه مرغان په هوا کي الوزي (او د هيچا په ملکيت نه وي) او ښکاري ځاروبان په دښت او بيابان کي ګرځي او له انسانانو څخه تښتي او هر څوک چي هغوی ونيسي نو هغه يې مالک جوړيږي (لنډه دا چي مرغان او د ښکار ځاروبان په غير محرز او نا محفوظ مقام کي وي، او حدّ [قطعُ اليد] هغه وخت واجبيږي کله چي له محفوظ مکان څخه محفوظ شی غلا کړی سي)؛

همدارنګه د دې حديث "الصَّيدُ لِمَنْ أخَذَ" په وجه په دې شيانو کي دإباحت (روايښت) شبهه سته او په شبهي سره حدّ ساقطيږي، لهذا په دې حواله سره هم د دې شيانو اخيستل د حدّ (قطعُ اليد) مُوجب نه دي.

امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فقط وچه او لنده خاوره او د ځاروبانو فضله مباحُ الأصل ګرځولي دي، او لرګي، وابښه او داسي نور شيان يې د حدّ مُوجب ګرځولي دي، خو دا صحيح نه دي، ځکه چي د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث او زموږ بيان سوی عقلي دليل د دې حضراتو په خلاف حُجّت دی.

## د ژر خرابېدونکي شيانو غلا

قَالَ: وَلَا قَطْعَ فِيمَا يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْفَسَادُ كَاللَّبَنِ وَاللَّحْمِ وَالْفَوَاكِهِ الرَّطْبَةِ فرمايي: او لاس به نه پرېکول کيږي په هغو شيانو کي کوم چي ژر خرابيږي لکه شيدې، غوښې او تازه مېوې لِقَوْلِهِ[1] عَلَيْهِ السَّلَامُ: لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا فِي كَثَرٍ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: چي نه په ثَمَر کي قطعُ اليد سته او نه په کَثَر کي وَالْكَثَرُ الْجُمَّارُ او کَثَر د خُرما د درختي ګوند [کنډورو] ته وايي [مطلب دا چي د درختو د کنډورو په غلا به هم لاس نه پرېکول کيږي] وَقِيلَ: الْوَدِيُّ او يو قول دا دی: چي "جُمّار" د خُرما د درختي کوچني ګلانو ته وايي وَقَالَ[2] عَلَيْهِ السَّلَامُ: لَا قَطْعَ فِي الطَّعَامِ او نبي ﷺ فرمايلي دي: چي په طعام کي قطعُ اليد نسته وَالْمُرَادُ وَاللهُ أَعْلَمُ مَا يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْفَسَادُ او له دې څخه مراد والله أعلم هغه شی دی کوم چي ژر خرابيږي كَالْمُهَيَّإِ لِلْأَكْلِ مِنْهُ وَمَا فِي مَعْنَاهُ كَاللَّحْمِ وَالثَّمَرِ لکه د خوړلو لپاره تيار سوی شی او هغه شيی کوم چي د دې په معنیٰ سره وي لکه غوښې او [لنده] مېوه [مثلاً هندوانه، خټکی، انګور او داسي نور] لِأَنَّهُ يُقْطَعُ فِي الْحِنْطَةِ وَالسُّكَّرِ إِجْمَاعًا ځکه چي په غنم او بوره کي

---

[1] تخريج: رواه النسايي، رقم الحديث: ۴۵۹۵.

[2] تخريج: رواه ابن أبي شيبة، رقم الحديث: ۲۸۵۸۷.

بالاتفاق لاس پرېکول کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْطَعُ فِيهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې شيانو کي به اهم لاس پرېکول کيږي لِقَوْلِهِ[3] عَلَيْهِ السَّلَام: لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي چي په مېوه او کثر کي قطعُ اليد نسته فَإِذَا آوَاهُ الْجَرِينُ أَوْ الْجِرَانُ او په بل روايت کي ذکر سوي دي اليکن که هغه امېوه پر درمند ځای باندي ايښول سوې او ذخيره سوې اوي قَطَعَ نو ادهغه په غلا کولو ا به لاس پرېکول کيږي قُلْنَا: أَخْرَجَهُ عَنْ وِفَاقِ الْعَادَةِ موږ وايو: چي دا استثناء ادعربو د عادت مطابق ده وَالَّذِي يُؤْوِيهِ الْجَرِينُ فِي عَادَتِهِمْ هُوَ الْيَابِسُ مِنَ الثَّمَرِ ځکه اعرب وچه خُرما پر درمند ځای باندي اړدي وَفِيهِ الْقَطْعُ او په همدې اوچه خُرما کي ازموږ په نېز هم قطعُ اليد سته قَالَ: وَلَا قَطْعَ فِي الْفَاكِهَةِ عَلَى الشَّجَرِ وَالزَّرْعِ الَّذِي لَمْ يُحْصَدْ فرمايي: او لاس به نه پرېکول کيږي په درخته باندي د لګېدلي مېوې او د هغه فصل په غلا کولو کي کم چي رېبل سوی نه وي لِعَدَمِ الْإِحْرَازِ ځکه چي دا محفوظ او ذخيره سوي انه وي وَلَا قَطْعَ فِي الْأَشْرِبَةِ الْمُطْرِبَةِ او لاس به نه پرېکول کيږي په نشه لرونکو مشروباتو کي لِأَنَّ السَّارِقَ يَتَأَوَّلُ فِي تَنَاوُلِهَا الْإِرَاقَةَ ځکه چي غل به د هغه په اخيستلو کي د بيولو تأويل کوي انو په دې صورت کي خو بالکل د هغه لاس پرېکول کېدای نه سي ا وَلِأَنَّ بَعْضَهَا لَيْسَ بِمَالٍ او ځکه چي ځيني د دې مشروباتو مال نه دي وَفِي مَالِيَّةِ بَعْضِهَا اخْتِلَافٌ او د ځيني په مال کېدلو کي اختلاف دی فَتَتَحَقَّقُ شُبْهَةُ عَدَمِ الْمَالِيَّةِ نو د نه مال کېدلو شبهه پيدا سوه اچي دا شيان به په شريعت کي مال نه وي ا.

**اللغات:** ﴿يَتَسَارَعُ﴾ د تفاعل مضارع ده: تېزي کول. ژر والي کول. وراندېتوب کول. يتسارع إليه الفساد: داسي شی چي هغه ته خرابوالی تېزي او وراندېتوب کوي (مراد ځني ژر ورستېدونکی شی دی). ﴿جُمَّار﴾ د خُرما د درختي کنلوري (کونلري). ګوند. ﴿وَدِي﴾ د خُرما کوچني ګلان. ﴿مُهَيَّأ﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: تيار سوی (تيار شده). ﴿سُكَّر﴾ بوره (چيني). ﴿جَرِين﴾ هغه ډاګ چي خُرما او داسي نورې مېوې (لکه انګور) د وچولو لپاره پر ايښوول کيږي. هغه ځای چي فصل او غله پر جمع کيږي او ذخيره کيږي. چي غالباً هغه ته په پښتو کي "درمند ځای" يا "درمند ډاګ" وايي. او جمع کړی سوي فصل او غلې ته "درمند" او د "فصل دلی" وايي. ﴿جِرَان﴾ د اوښ د غاړي مخکنی حصه. بار. بوج. (په دې حديث کي جرين مراد دی. نه

[3] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ۴۳۹.

جران، ځکه چې په نورو رواياتو کي جرين ذکر سوی دی). ﴿لَمْ يُحْصَنْ﴾ د جحد مجهول صغيه ده. له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: رېبل، لو کول (لوول). پرېکول. ﴿الأَشْرِبَةَ﴾ مشروبات (د چښاک شيان)، شربتونه. ﴿المُطْرِبَةَ﴾ د افعال مؤنث اسم فاعل دی: خوشالي راوستونکی شی (خمار راوستونکی شی). مراد ځني نشه کونکي (مُسکر) مشروب دی. ﴿إِرَاقَة﴾ د افعال مصدر دی: بيول (بهول).

**تشريح: مسئله**: دا ده چي دژر خرابېدونکو او ورستېدونکو شيانو په غلا سره به لاس نه پرېکول کيږي که څه هم هغه د غلا د نصاب په اندازه وي، لکه شيدې، تازه مېوې او داسي نور: ځکه چي په حديث کي له دې شيانو څخه د قطعُ اليد حکم ساقط سوی دی. په يو بل حديث کي ذکر سوي دي "لا قطع في الطعام" چي په طعام کي قطعُ اليد نسته. په دې حديث کي له طعام څخه مراد فوراً خوړل کېدونکي شيان (لکه شيدې او داسي نور) دي، همدارنګه له دې څخه مراد غوښې او لندې مېوې دي. ځکه چي دا خبره تسليم سوې ده چي په دې حديث کي له طعام څخه غله مراد نه ده. ځکه چي د غنم او بورې په غلا کولو سره حدّ واجبيږي، لهذا تطبيق فقط په هغه صورت کي ممکن دی کله چي له غلې څخه بغير نور د خوراک شيان او مېوې له "الطعام" څخه مراد کړی سي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په مېوو، شيدو او غوښو کي به هم لاس پرېکول کيږي: ځکه چي د ابوداؤد او نسائي په روايت کي ذکر سوي "فَإِذَا آوَاهُ الجَرِيْنَ" چي که مېوې درمند ځای ته ورسول سي او هلته کښېښول سي (او ذخيره کړی سي). نو بيا د هغوی غلا کول د قطعُ اليد مُوجب دي، له دې حديث څخه همدا خبره ښکاره سوه چي د مېوو (همدارنګه د مهيأ او تيار شيانو مثلاً د شيدو او غوښو غلا کول) د قطعُ اليد موجب دي . لېکن زموږ له طرفه امام شافعي ته يو جواب دا ورکول سوی دی چي زموږ په حديث کي "لا قطع في الطعام" کي ذکر سوي دي چي د طعام په غلا کولو سره به لاس نه پرېکول کيږي. او په طعام کي په دلالةُ النص سره تازه مېوې. لبن او لحم ټول داخل دي، او ستاسي (د امام شافعي) په حديث کي چي کوم دا خبره ذکر سوې ده چي پر درمند ځای باندي د ايښول سوي مېوې غلا کول د قطعُ اليد مُوجب دي. نو د هغه وجه دا ده چي عربو به وچي خُرماوي پر درمند ځای باندي ايښوولی، او د وچو خُرماوو غلا کول خو زموږ په نېز هم د حدّ (قطع اليد) مُوجب دي، لهذا دا حديث زموږ د مسلک موافق دی مخالف نه دی. زموږ مسلک خو د تازه او لندو مېوو سره متعلق دی.

**ولا قطع إلخ**: مسئله دا ده که مېوه پر درختو لګېدلې وي. او پر درختو باندي نه چار دېواري راګرځېدلې وي او نه يو نګران او چوکيدار پر ولاړ وي. همدارنګه هغه فصل او غله کوم چي تر اوسه

رېبل سوې نه وي نو داسې مېوه او فصل غلا کول د قطعُ اليد مُوجِب نه دی: ځکه چې دا محفوظ مال نه دی حال دا چې د قطعُ اليد لپاره د محفوظ او محرز ځای څخه غلا کول شرط دي. همدارنګه د نشه لرونکي مشروباتو غلا کول هم د قطعُ اليد مُوجِب نه دي. ځکه چې غل به په دې تأويل سره ځان خلاص کړي چې ما هغه د توبولو او بيولو په نيت سره اخيستي وو. نه د چيښلو لپاره (يعني غل به د قاضي مخته دا تأويل وکړي چې ما هغه شراب (يا بل مشروب) د دې لپاره غلا کړی چې زه يې توی کړم او نيست ونابود يې کړم)، نو د دې ارادې په ښکارلو سره به قاضي هغه ته شاباش او آفرين ورکړي، نه حدّ او سزا. او بل دليل دا دی چې په دې مشروباتو کې ځينې شرعاً بالکل مال نه دي (لکه شراب)، او د ځينې په مال کېدلو کې اختلاف دی او په اختلاف سره په هغو کې د عدمِ ماليت شبهه پيدا سوه او په شبهې سره حدّ ساقطيږي.

## د ساز او موسيقۍ د آلاتو او د قرآن کريم غلا

قَالَ: وَلَا فِي الطُّنْبُورِ فرمايي: او لاس به نه پرېکول کيږي په ستار کې لِأَنَّهُ مِنَ الْمَعَازِفِ ځکه چې هغه د موسيقۍ [او سروز] آله ده وَلَا فِي سَرِقَةِ الْمُصْحَفِ او نه به لاس پرېکول کيږي د قرآن په غلا کولو کې وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ حِلْيَةٌ که څه هم پر هغه زېور [لګېدلی] وي [يعني که څه هم د سپينو يا سرو زرو کار پر سوی وي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْطَعُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [د قرآن په غلا کې به] لاس پرېکول کيږي لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوَّمٌ ځکه چې قرآن کريم قيمت لرونکی مال دی حَتَّى يَجُوزُ بَيْعُهُ همدا وجه ده چې د قرآن خرڅول جائز دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ مِثْلُهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [هم] د امام شافعي په څير روايت سوی دی وَعَنْهُ أَيْضًا: أَنَّهُ يُقْطَعُ إِذَا بَلَغَتِ الْحِلْيَةُ نِصَابًا او له هغه څخه بل روايت دا هم دی: چې که [پر قرآن لګېدلی] زېور د سرقې نصاب [يعني لسو درهمو] ته ورسيږي نو لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنَ الْمُصْحَفِ ځکه چې زېور له قرآن څخه نه دی [يعني له قرآن څخه جلا شی دی] فَيُعْتَبَرُ بِانْفِرَادِهَا نو ځکه به د هغه جلا اعتبار کيږي [يعني جلا به شمارل کيږي] وَوَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ الْآخِذَ يَتَأَوَّلُ فِي أَخْذِهِ الْقِرَاءَةَ وَالنَّظَرَ فِيهِ او د ظاهر روايت دليل دا دی: چې اخيستونکی به د قرآن په اخيستلو سره د لوستلو او په قرآن کې د غور [او تدبر] کولو تأويل وکړي وَلِأَنَّهُ لَا مَالِيَّةَ لَهُ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَكْتُوبِ او ځکه چې د مکتوب په اعتبار سره قرآن کريم لره هيڅ قيمت نسته [يعني په قرآن کې چې کوم څه ليکل سوي دي. د هغه هيڅ قيمت نسته]

وَإِحْرَازُهُ لِأَجْلِهِ لَا لِلْجِلْدِ وَالْأَوْرَاقِ وَالْحِلْيَةِ او د هغه حفاظت افقط ا د مکتوب په وجه کيږي نه د وقايو او پاڼو او زېور په وجه وَإِنَّمَا هِيَ تَوَابِعُ او دا شيان خو توابع دي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّبَعِ او تابع لره هيڅ اعتبار نه وي كَمَنْ سَرَقَ آنِيَةً فِيهَا خَمْرٌ وَقِيمَةُ الْآنِيَةِ تَرْبُو عَلَى النِّصَابِ لکه يو څوک چي داسي لوښی غلا کړي چي په هغه کي شراب وي او د لوښي قيمت د نصاب السو درهمو ا څخه زيات وي وَلَا قَطْعَ فِي أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ او لاس به نه پرېکول کيږي د مسجد حرام د دروازو په غلا کولو کي ا همدا حکم د هر مسجد دی ا لِعَدَمِ الْإِحْرَازِ ځکه چي د مسجد دروازه محفوظه نه وي ا يعني د مسجد دروازه په محفوظه او محرز ځای کي نه وي. همدا حکم د کور د دروازې دی ا فَصَارَ كَبَابِ الدَّارِ نو داسي سو لکه د کور دروازه غلا کول بَلْ أَوْلَى بلکي د مسجد دروازه د کور تر دروازې زياته نا محفوظه وي لِأَنَّهُ يُحْرَزُ بِبَابِ الدَّارِ مَا فِيهَا ځکه چي د کور په دروازې سره په کور کي د موجود سامان ا او داسي نورو ا حفاظت کيږي وَلَا يُحْرَزُ بِبَابِ الْمَسْجِدِ مَا فِيهِ لېکن د مسجد په دروازې سره د مسجد د شيانو حفاظت نه کيږي حَتَّى لَا يَجِبُ الْقَطْعُ بِسَرِقَةِ مَتَاعِهِ همدا وجه ده چي د مسجد د سامان په غلا کولو سره قطعُ اليد نه واجبيږي.

**اللغات:** ﴿طُنْبُور﴾ ستار، سه تار، د موسيقی يو آله ده. په دې آله کي به پخوا درې تارونه وه. نو په دې وجه په سه تار سره مسمیٰ سوه. او په پښتو کي تنبور هم ورته وايي. او په دې حکم کي ټوله د سروز آلات سره برابر دي لکه طبله، باجه، رباب او داسي نور چي وروسته به مصنف رَحِمَهُ الله د نورو آلاتو يادونه هم وکړي. ﴿مَعَازِف﴾ د ساز او موسيقی آلات، د سروز جوړولو آلات. ﴿الْمُصْحَف﴾ او مَصْحَف: وقايه لرونکی کتاب. مراد ځني قرآن کريم دی، جمع: مَصَاحِف. ﴿حِلْيَة﴾ (د حاء په کسره سره): زېور، د ښکلا او سينګار شی. لکه سره او سپين زر، طلا او قيمتي غميان، جمع حِلًى او حُلًى (مصباح اللغات). ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول، ساتل، ذخيره کول. ﴿مَتَاع﴾ سامان.

**تشريح: مسئله:** دا ده که څوک ستار (تنبور) غلا کړي نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي ستار د موسيقی او لهو ولعب آله ده او شرعاً د هغه هيڅ قيمت او ماليت نسته. نو ځکه به د هغه د غلاکونکي لاس نه پرېکول کيږي. همدارنګه که يو څوک قرآن شريف غلا کړي او پر هغه باندي زېور لګېدلی وي يعني د سرو يا سپينو زرو کار پر سوی وي نو زموږ په نېز به د هغه لاس نه پرېکول کيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د داسي قرآن غلا د حدّ موجب ده چي پر هغه باندي زېور لګېدلی وي.

د امام شافعي دليل دا دی چي قرآن کريم متقوم مال دی او د هغه بيع او شراء جائز ده. نو ځکه به د هغه پر سارق حدّ واجبيږي، همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو روايت دی. دويم روايت دا دی چي که د حلية او زېور قيمت د نصاب په اندازه وي. نو د هغه غلا کول به د حدّ موجِب وي کنې نه به وي: ځکه چي زېور له قرآن کريم څخه جلا شی دی نو ځکه به هغه جلا شمارل کيږي.

د ظاهر روايت دليل دا دی چي دلته اخيستونکی دا تأويل کولای سي چي ما د لوستلو او کتلو يا د پند او نصيحت حاصلولو لپاره دا قرآن اخيستی دی او د غلا په نيت مي نه دي اخيستی. او ښکاره خبره ده چي د لوستلو په نيت سره اخيستل د حدّ مُوجِب نه دي. دويم دليل دا دی چي په قرآن کي ليکل سوی آيتونه (مکتوب) قيمت او نرخ نه لري او د قرآن حفاظت د همدې مکتوب په وجه کيږي. د وقايو او پاڼو په وجه د قرآن حفاظت نه کيږي. ځکه چي دا توابع دي او توابعو لره هيڅ اعتبار نه وي. مثلاً که يو څوک له شرابو څخه ډک لوښی غلا کړي او د لوښي قيمت د سرقې له نصاب (لسو درهمو) څخه زيات وي نو هم به د غله لاس نه پرېکول کيږي. ځکه چي لوښی تابع دی او شراب أصل او مقصود دی. حال دا چي شراب (په شريعت کي) هيڅ ماليت او قيمت نه لري. نو ځکه به نه د دې سرې غلا د حدّ مُوجِب وي او نه به د لوښي غلا د حدّ مُوجِب وي. ځکه چي هغه تابع دی او د تابع سره حکم تعلق نه لري.

ولا يُقطع في أبواب المسجد إلخ: د دې حاصل دا دی چي د مسجد دروازه پر محفوظه ځای نه وي بلکي هغه د دېوال سره لګېدلې وي او دباندي وي لکه څرنګه چي د کور دروازه هم داسي وي. لېکن دا خبره ده چي د کور په دروازې سره د کورني سامان د محفوظه کولو نيت کيږي. او د مسجد په دروازه سره د مسجد د سامان محفوظه کولو نيت نه کيږي (ځکه چي د مسجد په سامان کي د ټولو حصه وي او د هغه ساتنه د هر مسلمان حق وي). همدا وجه ده چي په مسجد کي د دننه سامان په غلا کولو سره لاس نه پرېکول کيږي نو د مسجد د دروازې په غلا کولو سره په درجه اولیٰ لاس نه پرېکول کيږي.

## د سرو زرو صليب، شطرنج او د آزاد کوچني غلا

| قَالَ: وَلَا الصَّلِيْبِ مِنَ الذَّهَبِ وَلَا الشِّطْرَنْجِ وَلَا النَّرْدِ فرمايي: او نه به لاس پرېکول کيږي د سرو زرو په صليب کي او نه په شطرنج کي او نه په نرد کي لِأَنَّهُ يَتَأَوَّلُ مَنْ أَخَذَهَا الْكَسْرَ نَهْيًا عَنِ الْمُنْكَرِ ځکه چي اخيستونکی به د نهي عن المنکر په توګه د هغه د ماتولو تأويل وکړي بِخِلَافِ الدِّرْهَمِ الَّذِي عَلَيْهِ التِّمْثَالُ په خلاف د هغه درهم چي تصوير باندي انقش سوی اوي لِأَنَّهُ مَا أُعِدَّ لِلْعِبَادَةِ ځکه چي هغه د عبادت لپاره |
| --- |

نه وي جوړ سوی فَلَا تَثْبُتُ شُبْهَةُ إِبَاحَةِ الْكَنِيسِ نو د ماتولو د إباحت شبهه به ثابته نه سي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ﷺ: أَنَّهُ إِنْ كَانَ الصَّلِيبُ فِي الْمُصَلَّى او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي که صليب په کليسا کي وي لَا يُقْطَعُ لِعَدَمِ الْحِرْزِ نو د حفاظت د نشتوالي په وجه به د هغه لاس نه پرېکول کيږي وَإِنْ كَانَ فِي بَيْتٍ آخَرَ او که د بل چا په کور کي وي يُقْطَعُ نو لاس به پرېکول کيږي لِكَمَالِ الْمَالِيَّةِ وَالْحِرْزِ ځکه چي [په دې صورت کي د صليب] ماليت او حفاظت مُکمّل دی وَلَا قَطْعَ عَلَى سَارِقِ الصَّبِيِّ الْحُرِّ او د آزاد بچي د غلا کونکي لاس به نه پرېکول کيږي وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ حُلِيٌّ که څه هم پر هغه بچي زېور وي [او که څه هم د نصاب په اندازه وي. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز] لِأَنَّ الْحُرَّ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چي آزاد مال نه دی وَمَا عَلَيْهِ مِنَ الْحُلِيِّ تَبَعٌ لَهُ او پر بچي چي کوم زېور دي هغه د ده تابع دي وَلِأَنَّهُ يَتَأَوَّلُ فِي أَخْذِهِ الصَّبِيَّ إِسْكَاتَهُ أَوْ حَمْلَهُ إِلَى مُرْضِعَتِهِ او ځکه چي د بچي په اخيستلو کي به سارق د هغه د خاموشه کولو يا تر خپل مُرضعه پوري د هغه د رسولو تأويل وکړي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ﷺ: يُقْطَعُ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ حُلِيٌّ هُوَ نِصَابٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري پر بچي د نصاب په اندازه زېور [الګېدلی] وي نو [د غله] لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّهُ يَجِبُ الْقَطْعُ بِسَرِقَتِهِ وَحْدَهُ ځکه چي فقط د دومره زېور په غلا کولو سره قطعُ اليد واجبيږي فَكَذَا مَعَ غَيْرِهِ نو د يو چا سره [د لګېدلي] زېور په غلا کولو سره به هم قطعُ اليد واجبيږي وَعَلَى هَذَا إِذَا سَرَقَ إِنَاءَ فِضَّةٍ فِيهِ نَبِيذٌ أَوْ ثَرِيدٌ او پر همدغه اختلاف دي کله چي [يو څوک] د سپينو زرو داسي لوښی غلا کړي چي په هغه کي نبيذ يا ښوروا وي وَالْخِلَافُ فِي الصَّبِيِّ لَا يَمْشِي وَلَا يَتَكَلَّمُ او [مخکنی] اختلاف په هغه بچي کي دی کوم چي نه تللای سي او نه خبري کولای سي كَيْ لَا يَكُونَ فِي يَدِ نَفْسِهِ د دې لپاره چي هغه د خپل ځان په لاس کي نه وي.

**اللغات:** ﴿صَلِيْب﴾ د عيسوي دين مُقدس نښان (چي زموږ په اصطلاح د صليب نښان ورته وايي). عيسائيان دا نښان له تختي، اوسپني او داسي نورو فلزاتو څخه جوړوي، او ځيني يې له سرو او سپينو زرو څخه هم جوړوي. ﴿شَطْرَنْج﴾ او شِطْرَنج (دا لفظ په عربي کي عموماً د شين په کسره سره استعماليږي. همدا يې مختار لغت دی)، سترنج. د پخواني وخت يوه مشهوره لوبه ده. صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف

---

۞ القول الراجح: راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی چي په هيڅ صورت کي به د هغه لاس نه پرېکول کيږي. كما ذكر في فتح القدير (ج:٥، ص:١٣٣)، وكذا في الدر المختار (ج:٣، ص:٢١٧). [القول الراجح ج:١، ص:٤٥٧]

۞ القول الراجح: قول الطرفين، كما ذكر في العناية (ج:٥، ص:١٢٣)، وكذا في الهندية (ج:٣، ص:١٧٧)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:١، ص:٦٢٥). [القول الراجح ج:١، ص:٤٥٨]

کړې دی: لعبة تلعب على رقْعَة وتمثل دو لتين متحاربتين بِاثْنَتَيْنِ وَثَلَاثِينَ قِطْعَة... إلخ (يعني دا يو ډول لوبه ده چي پر داسي پارچه او تخته باندي کيږي چي هغه څلور شپېته (۶۴) خانې لري او د دوو جنګي ملکونو په شکل پر دوديرش (۳۲) دانو (ګټو) باندي لوبول کيږي، يعني په هغه کي له دوارو طرفونو څخه د هر طرف والا لوبغاړی خپل ځان يو جنګي ملک تصور کوي او دوی په خپل مينځ کي په (۳۲) ګټو او دانو سره مقابله کوي. او په دې (۳۲) ګټو کي دوه ګټي د باچا او دوه ګټي د وزير په توګه لوبول کيږي، او پاته ګټي د فوج او داسي نورو په توګه لوبول کيږي).

﴿نَرْد﴾ دا هم يو ډول لوبه ده چي د ايران پخواني باچا "أردشير بن بابک" ايجاد کړې وه (دا لوبه پر تخته باندي کيږي، او د ډبرو او دوو غميانو په ذريعه لوبول کيږي. په اوس وخت کي "الطَّاوِلَة" ورته وايي). ﴿التِّمْثَال﴾ له ډبري څخه تراشل سوی تصوير، مجسمه، پر يو شي باندي نقش سوی تصوير. جمع: تَمَاثِيْل. ﴿نَبِيْذ﴾ هغه اوبه چي خرما پکښي اچول سوې وي، او د خرما خوند او رنګ پکښي تللی وي. ﴿ثَرِيْد﴾ ښوروا (وړه سوې ښوروا).

**تشريح: مسئله**: دا ده چي د سرو زرو صليب، شطرنج او داسي نورو غلا کول د حدّ (قطعُ اليد) مُوجب نه دي: ځکه چي صليب او شطرنج په شريعت کي ممنوع دي او بل دا چي د دې شيانو اخيستونکي به د ماتولو تأويل وکړي او د ماتولو په پلمه به ځان خلاص کړي. ها! که چيري پر درهم باندي تصوير جوړ سوی وي نو د داسي درهم غلا کول د حدّ مُوجب دي. ځکه چي پر درهم او پيسه باندي د عبادت لپاره تصوير نه جوړيږي لهذا د هغه په اخيستلو کي (سارق) هيڅ تأويل کولای نه سي. او د داسي درهم د ماتولو د إباحت شبهه هم نسته چي د هغه په وجه حدّ ساقط کړی سي.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه چي کوم روايت نقل سوی دی هغه واضح دی (تشريح ته ضرورت نه لري).

**ولا قطع على سارق الصبي إلخ**: که يو سړي آزاد بچی غلا کړي نو د هغه (سارق) لاس به نه پرېکول کيږي که څه هم پر بچي باندي د نصاب په اندازه زېور موجود وي: ځکه أصل (بچی) آزاد دی او آزاد مال نه دی او پر بچي چي کوم زېور دی هغه تابع دی او تابع لره هيڅ اعتبار نه وي. لهذا مو ږ نه د أصل (بچي) پر غلا کولو د سارق لاس پرېکولای سو او نه د تابع پر غلا کولو د هغه لاس پرېکولای سو. او بل دا چي هغه به په دې تأويل سره ځان خلاص کړي چي ما ځکه دغه بچی را واخيستی چي زه هغه چپ کړم يا ځکه چي زه هغه خپلي دايي ته بوزم (يعني هغه ښځي ته يې بوزم کوم چي مور و پلار د بچي د ساتني او شيدو ور کولو لپاره په أجرت نيولې وي).

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که پر بچي باندي موجود زېور د غلا د نصاب يعني د لسو درهمو په اندازه وي نو هم به د سارق لاس پرېکول کيږي: ځکه که څوک د لسو درهمو په اندازه زېور تنها غلا کړي (چي

هغه د هيڅ شي سره لګېدلي نه وي) نو قطعُ اليد واجبيږي. همداسي به په هغه صورت کي هم قطعِ اليد واجبيږي کله چي هغه ديو شي سره لګېدلي او موجود وي (لکه دلته چي د کوچني سره موجود دي).

همدارنګه که يو څوک د سپينو زرو لوښی غلا کړي او په هغه کي نبيذ يا ښوروا وي. نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به قطعُ اليد نه واجبيږي که څه هم د نبيذ يا د ښوروا قيمت د نصاب سره برابر وي (يعني د لسو درهمو په اندازه وي). ليکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که د نبيذ يا ښوروا قيمت د نصاب سره برابر وي نو د هغه غلا کول د قطعُ اليد مُوجب دي.

او په بچي کي چي کوم اختلاف دی، دا اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي بچی دومره کوچنی چي پر تللو او ويلو قادر نه وي او پر خپل ذات هيڅ اختيار نه لري. ليکن که بچی پر تللو او خبرو باندي قدرت لري نو د هغه غلا کول بالإتفاق د قطعُ اليد مُوجب نه دي (يعني د هغه په غلا کولو سره د تلولو په نيز د غله لاس نه پرېکول کيږي). (بنايه ج:۶، ص:۳۹۸)

## غلام غلا کول، کتابچه (ريجسټر)، سپی، د موسيقی آلات او ګران بيه لرګي غلا کول

| |
|---|
| وَلَا قَطْعَ فِي سَرِقَةِ الْعَبْدِ الْكَبِيرِ او د غټ غلام په غلا کي به لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ غَصْبٌ أَوْ خِدَاعٌ ځکه چي دا غصب دی يا دوکه ده وَيُقْطَعُ فِي سَرِقَةِ الْعَبْدِ الصَّغِيرِ او د کوچني غلام په غلا کولو کي به لاس پرېکول کيږي ا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ا لِتَحَقُّقِهَا بِحَدِّهَا ځکه چي ا په هغه کي ا سرقه د خپل پوره تعريف سره ثابته ده إِلَّا إِذَا كَانَ يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ خو دا چي هغه د خپل ځان په هکله بيان کولای سي ا يعني إظهار ما فی الضمير کولای سي ا لِأَنَّهُ هُوَ وَالْبَالِغُ سَوَاءٌ فِي اعْتِبَارِ يَدِهِ ځکه چي د اختيار په اعتبار سره داسي غلام او بالغ غلام سره برابر دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ✿: لَا يُقْطَعُ وَإِنْ كَانَ صَغِيرًا لَا يَعْقِلُ وَلَا يَتَكَلَّمُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ا د سارق ا لاس به نه پرېکول کيږي که څه هم غلام دومره کوچنی وي چي نه په څه پوهيږي او نه خبري کولای سي اسْتِحْسَانًا دا حکم استحساني دی لِأَنَّهُ آدَمِيٌّ مِنْ وَجْهٍ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي هغه په يوه اعتبار سره انسان ا بنيادم ا دی او په يوه اعتبار سره مال دی وَلَهُمَا: أَنَّهُ مَالٌ مُطْلَقٌ او د طرفينو دليل دا دی: چي غلام مطلق مال دی لِكَوْنِهِ مُنْتَفَعًا بِهِ ځکه چي په هغه سره نفع حاصليږي أَوْ بِعَرَضِ أَنْ يَصِيرَ مُنْتَفَعًا بِهِ إِلَّا أَنَّهُ انْضَمَّ إِلَيْهِ |

✿ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فی رد المحتار (ج:۳، ص:۲۱۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۰]

مَعْنَى الْآدَمِيَّةِ يا دا چي ورورسته به له هغه څخه نفع حاصله کړی سي. که څه هم د هغه سره د انسانوالي معنیٰ لګېدلې ده وَلَا قَطْعَ فِي الدَّفَاتِرِ كُلِّهَا او لاس به نه پرېکول کيږي په ټولو کتابچو اوريجسټرانوا کي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مَا فِيهَا ځکه چي په کتابچو سره مقصود د کتابچو خطونه اتحريرات اوي وَذٰلِكَ لَيْسَ بِمَالٍ او هغه مال نه دي إِلَّا فِي دَفَاتِرِ الْحِسَابِ مګر په حسابي کتابچو کي ابه لاس پرېکول کيږي ا لِأَنَّ مَا فِيهَا لَا يُقْصَدُ بِالْأَخْذِ ځکه چي په حسابي کتابچو کي د تحريراتو غلا کول مقصود نه وي فَكَانَ الْمَقْصُودُ هُوَ الْكَوَاغِدَ ابلکي په هغه کي ا کاغذات مقصود وي قَالَ: وَلَا فِي سَرِقَةِ كَلْبٍ وَلَا فَهْدٍ فرمايي چي د سپي او پړانګ په غلا کي به اهم ا لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّ مِنْ جِنْسِهَا يُوجَدُ مُبَاحُ الْأَصْلِ غَيْرُ مَرْغُوبٍ فِيهِ ځکه چي د دوی له جنس څخه ځيني مباحُ الأصل پيدا کيږي چي په هغوی کي ادخلکو اهيڅ رغبت ااو لېوالتيا انه وي وَلِأَنَّ الِاخْتِلَافَ بَيْنَ الْعُلَمَاءِ ظَاهِرٌ فِي مَالِيَّةِ الْكَلْبِ او ځکه چي د سپي په مال کېدلو کي د علماؤ اختلاف ښکاره ااو معلوم ا دی فَأَوْرَثَ شُبْهَةً نو دې اختلاف شبهه پيدا کړه وَلَا قَطْعَ فِي دُفٍّ وَلَا طَبْلٍ وَلَا بَرْبَطٍ وَلَا مِزْمَارٍ او لاس به نه پرېکول کيږي د دريه، ډول، باجه او شپېلۍ په غلا کولو کي لِأَنَّ عِنْدَهُمَا لَا قِيمَةَ لَهَا ځکه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا شيان هيڅ قيمت نه لري وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ آخِذُهَا يَتَأَوَّلُ الْكَسْرَ فِيهَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغوی اخيستونکی د ماتولو تأويل کولای سي اچي ما خو د ماتولو لپاره دا شی (دريه يا ډول...) را واخيستی ا وَيُقْطَعُ فِي السَّاجِ وَالْقَنَاءِ وَالْآبَنُوسِ وَالصَّنْدَلِ او لاس به پرېکول کيږي د ساج په لرګي، د نېزې په لرګي او آبنوس او صندل اچندر ا کي لِأَنَّهَا أَمْوَالٌ مُحْرَزَةٌ ځکه دا محفوظ کړی سوي مالونه ده لِكَوْنِهَا عَزِيزَةً عِنْدَ النَّاسِ ځکه چي دا د خلکو په نېز ګران بيه ااو کميابه ا دي وَلَا تُوجَدُ بِصُورَتِهَا مُبَاحَةً فِي دَارِ الْإِسْلَامِ او په خپل اصلي صورت کي اهم ا په دار الاسلام کي مباح نه پيدا کيږي ا يعني په دار الإسلام کي هم دا تختې او لرګيان مباح او روا نه پيدا کيږي چي هر څوک يې کاټ کړي نو د هغه سي. داسي مباح نه دي ا

**اللغات:** ﴿يُعَبِّرُ﴾ د تفعيل مضارع معلومه ده: بيان کول. اظهار ما فی الضمير کول. ترجماني کول (ديو چا خبره نقل کول). دلته ځني مراد "د خپل ځان خبره نقل کول" او "إظهار ما فی الضمير" دی.

﴿الدَّفَاتِر﴾ جمع دَفْتَرٌ ده: دلته ځني مراد مطلق كتابچه ده. او په أصل كي هر هغه كتابچې ته وايي چې حساب و كتاب پكښي ليكل كيږي او د حساب سره اړوند نومونه پكښي ليكيږي. مثلاً د تجارت د حساب او د قرضدارانو... د نومونو لپاره چې كومه كتابچه استعماليږي هغه ته په عربي كي دَفْتَرُ التُّجَار وايي. او د مُلكي او دولتي حسابداري لپاره چي كومه كتابچه استعماليږي هغه ته په عربي كي الدَّفْتَرُ السُّلْطَانِي وايي وهكذا... (چي زموږ په عامه اصطلاح داسي كتابچې ته ريجسټر هم وايي). ﴿فَهْد﴾ پړانګ. ﴿دُن﴾ دريه. دريا ﴿طَبْل﴾ ډول. نغاره. ﴿بَرْبَط﴾ مُعرب لفظ دی: باجه (د موسيقى مشهوره آله ده). په أصل عربي كي مِزْهَر او عُوْد ورته وايي. ﴿مِزْمَار﴾ شپيلى. تولكه. ﴿سَاج﴾ يو ډول ګران بيه لرګى دى. ﴿القناء﴾ د نېزې لرګى (هغه لرګى چي نېزه ځني جوړيږي). ﴿آبْنُوْس﴾ د جنوبي مشرقي آسيا د يوې درختي نوم چي د هغې لرګي ډېر سخت. وزني او تور دي. ﴿صَنْدَل﴾ دا هم د درختي نوم دى چي خوشبويه لرګي لري.

**تشريح:** په دې عبارت كي ډيري مسئلي ذكر سوي دي چي هغه به انشاء الله په ترتيب ستاسي په مخ كي بيان سي:

د غټ او بالغ غلام غلا كول د حدّ مُوجِب نه دي، ځكه چي دا سرقه نه ده بلكي غصب دى يا دوكه ده چي هغه به يو چا خطا ايستلى وي چي زه ستا سره دا معامله كوم او په دوكه به يې بېولى وي. لېكن كه غلام كوچنى وي نو د هغه غلا كول د حدّ (قطعُ اليد) مُوجِب دي؛ ځكه چي په كوچني غلام كي سرقه د خپل بشپړ تعريف او توصيف سره موجوده او ثابته ده. دا د هغه غلام حكم دى كوم چي خپله ترجماني نه سي كول (يعني د خپل ځان په باره كي معلومات نه سي وركولاى). ځكه چي د خپل ځان ترجماني كونكى غلام د غټ او بالغ غلام په درجه كي دى او غټ غلام غلا كول د حدّ مُوجِب نه دي. نو ځكه به د دې غلام غلا كول هم د حدّ مُوجِب نه وي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي كه غلام دومره كوچنى وي چي خبري نه سي كولاى او نه په شي پوهيږي نو هم استحساناً د هغه غلا كول د حدّ مُوجِب نه دي. ځكه چي هغه من وجه مال او من وجه بنيادم دى او د هغه په مكمل والي كي شبهه ده. او شبهه حدّ دفع كوي. د طرفينو دليل دا دى چي صغير غلام مطلق مال دى. ځكه چي هغه د انتفاع قابل دى (يعني نفع ځني اخيستل كېداى سي) يا په آينده كي به د انتفاع قابل سي كه څه هم هغه ته د آدميت معنىٰ شامله ده لېكن د دې معنىٰ په وجه به د هغه په ماليّت (مال كېدلو) كي هيڅ فرق نه راځي او هغه به مال شمارل كيږي. نو ځكه به د هغه غلا كول د حدّ مُوجِب وي.

**ولا قطع في الدفاتر إلخ:** فرمايي چي له حسابي كتابچو (ريجسټرانو) څخه بغير نور ټوله كتابچې د قطعُ اليد مُوجب نه دي؛ ځكه چي د نورو كتابچو په غلا سره د هغوی تحريرات او خطونه مقصود وي، او تحريرات مال نه دي، لېكن په حسابي كتابچو (ريجسټرانو) كي كاغذات او پاڼي مقصود وي او هغه مال دي، نو ځكه به د حسابي كتابچو سرقه د حدّ مُوجب وي.

**ولا في سرقة كلب إلخ:** د سپي او پړانګ غلا هم د حدّ مُوجِب نه ده؛ ځكه چي هر ځای سپيان او داسي نور مباحُ الأصل وي او هيڅوک هغه ځان ته نژدې هم نه پرېږدي غلا كول خو هلته پرېږده!. او بل دا چي د سپي په ماليّت كي د علماؤ اختلاف هم دی، ځيني علماء فرمايي چي هغه د خنزير په څېر نجسُ العين دی او مال نه دی، او ځيني فرمايي چي هغه مال دی. او دا خبره تسليم سوې ده چي په اختلاف سره شبهه پيدا كېږي او په شبهي سره حدُود ساقطېږي. نو په دې حواله سره به هم د سپي او داسي نورو غلا كول د حدّ مُوجِب نه وي.

پاته عبارت له ترجمې څخه واضح دی. تشريح ته ضرورت نه لري.

## د قيمتي كاڼو (ډبرو) غلا

قَالَ: وَيُقْطَعُ فِي الْفُصُوصِ الْخُضْرِ وَالْيَاقُوتِ وَالزَّبَرْجَدِ فرمايي: چي د زرغونو غميانو، ياقوت او زمرد په غلا كي به لاس پرېكول كېږي لِأَنَّهَا مِنْ أَعَزِّ الْأَمْوَالِ وَأَنْفَسِهَا ځكه چي دا ډېر قيمتي [كميابه] او ډېر غوره مالونه دي وَلَا تُوجَدُ مُبَاحَةَ الْأَصْلِ بِصُورَتِهَا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ غَيْرَ مَرْغُوبٍ فِيهَا او دا مالونه پر خپل أصلي حالت په دارُ الاسلام كي مباح نه پيدا كېږي [او] نه [مفت] د دوی په اخيستلو كي رغبت كېدلای سي فَصَارَتْ كَالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ نو دا [هم] د سرو او سپينو زرو په څېر سول وَإِذَا اتُّخِذَ مِنَ الْخَشَبِ أَوَانٍ وَأَبْوَابًا او كه چيري د لرګي څخه لوښي او دروازې جوړي كړل سي قُطِعَ فِيهَا نو د هغوی په غلا كي به لاس پرېكول كېږي لِأَنَّهُ بِالصَّنْعَةِ الْتَحَقَ بِالْأَمْوَالِ النَّفِيسَةِ ځكه چي په جوړښت [او لاس وهني] سره لرګی د غوره مالونو سره لاحق سو أَلَا تَرَى أَنَّهَا تُحْرَزُ آيا ته نه ګورې! چي هغوی محفوظه كېږي [او د هغوی ساتنه او حفاظت كېږيٰ] بِخِلَافِ الْحَصِيرِ په خلاف د چټايي [مراد ځني له خاشو څخه جوړه سوې چټايي ده] لِأَنَّ الصَّنْعَةَ فِيهِ لَمْ تَغْلِبْ عَلَى الْجِنْسِ ځكه چي په هغې كي جوړښت پر جنس [او أصل] باندي غالب نه وي حَتَّى يُبْسَطُ فِي غَيْرِ الْحِرْزِ همدا وجه

ده چې هغه په نا محفوظه ځای کې هواريږي وَفِي الْحَصِيرِ الْبَغْدَادِيَّةِ قَالُوا يَجِبُ الْقَطْعُ فِي سَرِقَتِهَا او د بغدادي چټايي په هکله مشائخو فرمايلي دي چې د هغې په غلا کې به لاس پرې کول کيږي لِغَلَبَةِ الصَّنْعَةِ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چې (په هغې کې) جوړښت پر أصل باندې غالب وي وَإِنَّمَا يَجِبُ الْقَطْعُ فِي غَيْرِ الْمُرَكَّبِ او قطعُ اليد په هغه دروازه کې واجبيږي کوم چې په دېوال کې جوړه سوې (او لګېدلې) نه وي وَإِنَّمَا يَجِبُ إِذَا كَانَ خَفِيفًا لَا يَثْقُلُ عَلَى الْوَاحِدِ حَمْلُهُ او په هغه دروازه کې واجبيږي کوم چې سپکه وي چې پر يوه سړي باندې د هغه پورته کول بوج نه وي لِأَنَّ الثَّقِيلَ مِنْهُ لَا يُرْغَبُ فِي سَرِقَتِهِ ځکه چې د درنې دروازې په غلا کې (د سارق) رغبت نه کيږي وَلَا قَطْعَ عَلَى خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ او لاس به نه پرې کول کيږي د خيانت کونکي سړي او خيانت کونکي ښځې لِقُصُورٍ فِي الْحِرْزِ ځکه چې د دوی (په حفاظت کې کمي وي) وَلَا مُنْتَهِبٍ وَلَا مُخْتَلِسٍ او نه به لاس پرې کول کيږي د ډاکو او چورونکي (چې په نا ببره توګه مال چور کړي) لِأَنَّهُ يُجَاهِرُ بِفِعْلِهِ ځکه چې ډاکو په ډاګه خپل کار کوي (او په اعلانيه توګه خلک شکوي) كَيْفَ وَقَدْ قَالَ ﷺ: لَا قَطْعَ فِي مُخْتَلِسٍ وَلَا مُنْتَهِبٍ وَلَا خَائِنٍ او پر دوی به قطعُ اليد څرنګه واجب سي حال دا چې نبي ﷺ فرمايلي دي: چې په چورونکي، ډاکو او خائن کې به لاس نه پرې کول کيږي.

**اللغات:** ﴿فُصُوص﴾ جمع د فَصٌّ ده: غميان. ﴿خُضر﴾ جمع د أَخْضَرٌ ده: زرغون. ﴿اليَاقُوت﴾ ياقوت. يو قيمتي سور کاڼی دی. ﴿زَبَرْجَد﴾ زمرد. يو ډول قيمتي معدني شين کاڼی دی چې غميان ور څخه جوړيږي. ﴿أَنْفَس﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: ډېره غوره، ډېر ښه. ﴿مُبَاحُ الأَصل﴾ دا يوه محاوره ده: په دارُ الاسلام کې چې کوم شی هر څوک اخيستلای سي (او هر څوک يې په اخيستلو سره مالک جوړېدای سي) لکه مرغان چې هر کس يې ښکار کړي نو هغه يې مالک جوړيږي. داسي شي ته مباحُ الأصل وايي. ﴿أُتُّخِذَ﴾ د افتعال ماضي مجهوله ده: جوړول. ﴿حَصِير﴾ چټايي (سترنجي). ﴿مُنْتَهِب﴾ ډاکو. داړه مار (چې په ښکار توګه په لاره کې له خلکو څخه مالونه اخلي). ﴿مُخْتَلِس﴾ چورونکی (چې مال چور کړي او وتښتي).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د زرغونو او شنو غميانو. ياقوت او زمرد غلا د حدّ مُوجب ده: ځکه چې دا تولې قيمتي مالونه دي او په دارُ الإسلام کې مباح الأصل نه پيدا کيږي او د هغو په مُفت او مباح اخيستلو کې رغبت هم نه کيږي او نه څوک داسي رغبت کولای سي. نو په دې وجه به دوی د سرو او

سپينو زرو په څير وي. يعني څرنګه چي د سرو او سپينو زرو غلا د حدّ موجب ده همداسي به د دې شيانو غلا هم د حدّ موجب وي.

که چيري له تختې او لرګي څخه لوښي يا دروازه څني جوړه کړې سي. نو د هغه غلا به د حدّ موجب وي: ځکه چي د کاريګرۍ او جوړښت په ذريعه دا تخته او لرګي قيمتي او غوره مال وګرځيدی او د محفوظه کولو قابل او لائق سو. نو ځکه به د دې شيانو سرقه (غلا) د حدّ موجب وي. لېکن د چټايي سرقه د حدّ موجب نه ده: ځکه چي د چټايي جوړښت د هغې پر أصل او جنس غالب نه وي. همدا وجه ده چي غوره چټايي هم په نامحفوظه ځايو کي (مثلاً په مسجد) کي هوارول کيږي او د هغې د حفاظت هيڅ پروا نه کيږي. لېکن د بغدادي چټايي حکم له دې څخه مختلف دی او د هغې غلا د حدّ موجب ده. ځکه چي پر بغدادي چټايي باندي نقش و نګار سوی وي او د نقش و نګار په وجه هغه ډېره قيمتي وګرځي.

وإنما يجب إلخ: د دې حاصل دا دی چي حدّ (قطعُ اليد) د لرګي په هغه دروازه کي واجبيږي کوم چي په دېوال کي لګېدلې نه وي او سپکه وي: ځکه چي په لګېدل سوې دروازه کي رغبت نه کيږي او نه د درنې دروازې په غلا کولو کي کوښښ کيږي.

ولا قطع على خائن إلخ: که د يو سړي يا ښځي سره د يو چا امانت مال پروت وي. بيا سړی يا ښځه په هغه کي خيانت وکړي. نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي د دوی په حفاظت او ساتنه کي کمي او قصور وي. او د ډاکو او چورونکي لاس به هم نه پرېکول کيږي. ځکه چي په حديث کي له دوی څخه د قطعُ اليد حکم ساقط سوی دی.

## د کفن پر غلا کونکي (کفن چور) باندي د حدّ جاري کولو مسئله

وَلَا قَطْعَ عَلَى النَّبَّاشِ او د کفن چور لاس به نه پرېکول کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا احکام د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ [*]: عَلَيْهِ الْقَطْعُ امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لاس به پرېکول کيږي لِقَوْلِهِ [1] عليه السلام: مَنْ نَبَشَ قَطَعْنَاهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي کفنونه غلا کوي نو د هغه لاس موږ پرېکوو وَلِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوَّمٌ مُحْرَزٌ يُحْرَزُ

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۱۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۱]

[1] تخريج: رواه أبي شيبة بمعناه، رقم: ۲۸۶۰۵.

مِثْلُهُ او ځکه چي کفن متقوم [قيمت لرونکی] مال دی او د متقوم مال په څير محفوظه کيږي فَيُقْطَعُ فِيهِ نو ځکه به د کفن په غلا کولو کي لاس پرېکول کيږي وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: لَا قَطْعَ عَلَى الْمُخْتَفِي او د طرفينو دليل د نبي ﷺ دا إرشاد دی: چي د مختفي [پټېدونکي] لاس به نه پرېکول کيږي وَهُوَ النَّبَّاشُ بِلُغَةِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ او مختفي د مدينې د خلکو په لغت کي کفن چور ته وايي وَلِأَنَّ الشُّبْهَةَ تَمَكَّنَتْ فِي الْمِلْكِ او ځکه چي په ملکيت کي شبهه پيدا سوه لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ لِلْمَيِّتِ حَقِيقَةً ځکه چي په حقيقت کي مړي لره هيڅ ملکيت نه وي وَلَا لِلْوَارِثِ او نه [د مړي] وارث لره هيڅ ملکيت وي لِتَقَدُّمِ حَاجَةِ الْمَيِّتِ ځکه چي د مړي حاجت مقدّم وي وَقَدْ تَمَكَّنَ الْخَلَلُ فِي الْمَقْصُودِ وَهُوَ الِانْزِجَارُ او په مقصود يعني په انزجار [تنبيه ورکولو] کي هم خلل پيدا سو لِأَنَّ الْجِنَايَةَ فِي نَفْسِهَا نَادِرَةُ الْوُجُودِ ځکه چي دا جنايت [يعني کفن غلا کول] ډېر کم پيښيږي وَمَا رَوَاهُ غَيْرُ مَرْفُوعٍ أَوْ هُوَ مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ او کوم حديث چي امام ابو يوسف [او امام شافعي] روايت دی کړی هغه مرفوع نه دی يا به هغه پر سياست حمل کيږي وَإِنْ كَانَ الْقَبْرُ فِي بَيْتٍ مُقْفَلٍ او که قبر په قلف سوي خونه [حجره] کي وي فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ فِي الصَّحِيحِ نو دا مسئله هم د صحيح قول مختلف فيه ده لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَكَذَا إِذَا سَرَقَ مِنْ تَابُوتٍ فِي الْقَافِلَةِ وَفِيهِ الْمَيِّتُ همدارنګه که ايو شوک [له د داسي مړي څخه کفن غلا کړي چي هغه په يو تابوت کي په قافله کي وي انو دا مسئله هم مختلف فيه ده [لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿نَبَّاش﴾ کفن غلا کونکی (چي په عامه اصطلاح "کفن چور" ورته وايي). ﴿مُخْتَفِي﴾ د افتعال اسمِ فاعل دی: پټېدونکی (نيامېدونکی). ﴿جِنَايَة﴾ جرم. بد کار. ﴿الْقَافِلَة﴾ کاروان. قافله.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر کفن چور حدّ (قطعُ اليد) نسته. لېکن د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز پر کفن چور حدّ سته.

**دليل:** د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا حديث دی "مَنْ نَبَشَ قَطَعْنَاهُ". په دې حديث کي په صراحت سره د کفن چور د لاس پرېکولو حکم سوی دی. عقلي دليل دا دی چي کفن

[2] تخريج: رواه أبي شيبة بمعناه، رقم: ۲۸۶۲۳.

مقتوم مال دی او د متقوم مال په څير د هغه حفاظت هم کيږي. او تاسي ته معلومه ده چې د متقوم مال غلا کول د حدّ مُوجِب دي، لهذا د کفن غلا کول به هم د حدّ مُوجِب وي.

**د طرفينو دليل:** دا حديث دی "لَا قَطْعَ عَلَى الْمُخْتَفِيْ". د مديني خلګو به "مختفي" کفن چور ته ويل. نو معلومه سوه چې د کفن چور لاس به نه پرېکول کيږي. عقلي دليل دا دی چې په کفن کي خو نه ميّت ملکيت لري (ځکه چي هغه مړ دی). او نه د ميّت وارثان په کفن کي ملکيت لري. ځکه چي د ميّت حق تر وارثانو مخکي دی او هغه کفن ته زيات ضرورت لري. بل عقلي دليل دا دی چې د لاس پرېکولو مقصد انزجار او خلګو ته تنبيه ورکول دي (چي هغوی هم له داسي کار څخه منع سي) حال دا چي د کفن د غلا معامله ډېره کمه پېښيږي. او يو ډېر بدبخته رذيل سړی داسي کار کولای سي. لهذا د هغه د لاس په پرېکولو سره خلګو ته زجر او تنبيه ورکول کېدای نه سي (ځکه چي خلک په خپله له داسي کار څخه ځان منع کوي).

**وما رواه إلخ:** فرمايي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله حديث غير مرفوع دی. او غير مرفوع حديث د دې قابل نه دی چي دليل په ونيول سي، يا دا چي په دې حديث کي د قطعُ اليد حکم پر سياست مدنيه باندي محمول دی. ځکه چي په دې حديث کي نبي ﷺ د قطع نسبت خپل ځان ته کړی دی او فرمايلي يې دي "قَطَعْنَاه" (چي موږ د هغه لاس پرېکوو).

او که قبر په بنده حجره کي وي او يو شوک له هغه څخه کفن غلا کړي. نو په دې هکله هم دغه اختلاف دی يعني د طرفينو په نېز به د هغه لاس نه پرېکول کيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به پرېکول کيږي. همدا اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي د قافلې خلګو د مړي تابوت را اخيستی وي او يو شوک له هغه څخه کفن غلا کړي.

## له بيتُ المال يا له خپل شريک او مقروض څخه غلا کول

وَلَا يُقْطَعُ السَّارِقُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او له بيتُ المال څخه د غلا کونکي لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ مَالُ الْعَامَّةِ ځکه چي بيتُ المال د عوامو مال وي وَهُوَ مِنْهُمْ او غل هم له عوامو څخه دی قَالَ: وَلَا مِنْ مَالٍ لِلسَّارِقِ فِيهِ شَرِكَةٌ او نه به د داسي مال پر غلا کولو لاس پرېکول کيږي چي په هغه کي په خپله د غله شرکت وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ دَرَاهِمُ او که د يو چا پر بل چا يو څو دراهم باندي وي فَسَرَقَ مِنْهُ مِثْلَهَا او بيا هغه له مقروض څخه هغومره دراهم غلا کړي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ لِحَقِّهِ ځکه چي دا

د خپل حق حاصلول دي وَالْحَالُ وَالْمُؤَجَّلُ فِيهِ سَوَاءٌ اسْتِحْسَانًا او استحسانًا په دې مسئله کې فی الحاله قرض او د تأخير والا قرض دواړه برابري دي لِأَنَّ التَّأْجِيلَ لِتَأْخِيرِ الْمُطَالَبَةِ ځکه چې د مودت ټاکل د مطالبې د تأخير لپاره وي وَكَذَا إِذَا سَرَقَ زِيَادَةً عَلَى حَقِّهِ همدارنګه کله چې هغه تر خپل حق زيات ادراهم ا غلا کړي انو هم به د هغه لاس نه پرېکول کيږي ا لِأَنَّهُ بِمِقْدَارِ حَقِّهِ يَصِيرُ شَرِيكًا فِيهِ ځکه چې هغه د خپل حق په مقدار سره په مسروق مال کې شريک ګرځي وَإِنْ سَرَقَ مِنْهُ عُرُوضًا او که هغه ا قرض غوښتونکی ا له مقروض شخصه سامان غلا کړي قُطِعَ نو د هغه لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الِاسْتِيفَاءِ مِنْهُ إِلَّا بَيْعًا بِالتَّرَاضِي ځکه چې د هغه لپاره له مقروض شخصه فقط د بيع په توګه اد مقروض ا په رضاء سره د ا خپل حق ا حاصلولو اختيار سته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ●: أَنَّهُ لَا يُقْطَعُ له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شخه روايت سوی دی: چې ا په دې صورت کې به هم ا د غله لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ عِنْدَ بَعْضِ الْعُلَمَاءِ قَضَاءً مِنْ حَقِّهِ أَوْ رَهْنًا بِحَقِّهِ ځکه چې د ځينې علماؤ په نېز د قرض غوښتونکي لپاره دا جائز دي چې له مقروض ا پور وړي ا شخه خپل قرض واخلي ا برابره ده ا هغه که د خپل حق اخيستلو په توګه وي. يا د رهن په توګه وي قُلْنَا: هٰذَا قَوْلٌ لَا يَسْتَنِدُ إِلَى دَلِيلٍ ظَاهِرٍ موږ وايو: چې دا يو داسې قول دی کوم چې د ظاهري دليل وطرف ته نه منسوب کيږي فَلَا يُعْتَبَرُ بِدُونِ اتِّصَالِ الدَّعْوَى بِهِ لهذا تر څو چې د هغه سره دعویٰ متصله نه سي تر هغه وخته به دا قول معتبر نه وي حَتَّى لَوِ ادَّعَى ذٰلِكَ تر دې که غل دعویٰ وکړي اچې ما خپل حق واخيستی ا دُرِئَ عَنْهُ الْحَدُّ نو له هغه شخه به حدّ ساقطيږي لِأَنَّهُ ظَنَّ فِي مَوْضِعِ الْخِلَافِ ځکه چې دا د اختلاف په ځای کې يو ګومان دی وَلَوْ كَانَ حَقُّهُ دَرَاهِمَ او که د قرض غوښتونکي حق دراهم وي فَسَرَقَ مِنْهُ دَنَانِيرَ الېکن ا هغه له مقروض شخه دينارونه غلا کړي قِيلَ: يُقْطَعُ نو يو قول دا دی: چې د هغه لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ حَقُّ الْأَخْذِ ځکه چې هغه لره د اخيستلو حق نسته

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله : والفتوى اليوم على جواز الأخذ عند القدرة من أي مال كان، لا سيما في ديارنا..إلخ (رد المحتار ج:٣، ص:٢٢٠). [القول الراجح ج:١، ص:٢٦٣]

وَقِيلَ: لَايُقْطَعُ او بل قول دا دی: چې د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ النُّقُودَ جِنْسٌ وَاحِدٌ ځکه چې د ټولو نغدو جنس يو دی.

**اللغات:** ﴿إِسْتِيْفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: حاصلول، خپل حق اخيستل. ﴿الحَال﴾ مراد ځني هغه قرض دی کوم چې اوس (فی الحاله) غوښتل کيږي. ﴿مُؤَجَّل﴾ هغه قرض چې تريو ټاکلي مودت وروسته غوښتل کيږي. ﴿تَأْجِيْل﴾ مودت ټاکل. ﴿تَرَاضِي﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل سره راضي کېدل (يو د بل په رضا يو کار کول). ﴿دُرِئَ﴾ د فتح ماضي مجهوله ده: دفع کول، ليري کول، ساقطول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که څوک له بيتُ المال څخه غلا وکړي، نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چې بيتُ المال د عام اُولس مال دی او غل هم په عام اُولس کې داخل دی. او په يوه توګه هغه د خپل مال اخيستونکی او غلا کونکی دی، نو ځکه د هغه په غلا کې د ملکيت شبهه سته او په شبهې سره حدّ ساقطيږي. همدارنګه که څه مال د دوو خلکو په مينځ کې مشترک وي او له دوی څخه يو شريک په هغه مال کې غلا وکړي، نو د غله شريک لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چې په دې کې هم د خپل حق اخيستلو احتمال سته.

**ومن له على آخر دراهم إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که پر خالد د زيد لس درهمه باندې وي. او بيا زيد (قرض غوښتونکی) له خالد (مقروض) څخه لس درهمه غلا کړي، نو د زيد لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چې هغه خپل حق اخيستی دی، او په لاس نه پرېکولو کې استحساناً فی الحاله قرض يا د تأخير والا قرض دواړه برابر دي. يعني يو خو داسې قرض وي چې قرض غوښتونکي سمدستي د هغه مطالبه وکړي او دويم داسې قرض وي چې د هغه لپاره قرض غوښتونکي وخت متعين کړي چې مثلاً زه يوه مياشته وروسته خپل قرض ستا څخه غواړم. په داسې دواړو صورتونو کې که زيد له خالد څخه خپل دراهم غلا کړي، نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: د دې وجه دا بيانوي چې دراهم خو فقط د زيد دي. تأخير او تأجيل فقط د دې لپاره وي چې د قرض غوښتونکي (زيد) مطالبه مؤخره سي (نور خو دراهم په هر صورت کې د قرض غوښتونکي وي). لهذا د خپلو دراهمو په اخيستلو سره به د هغه لاس نه پرېکول کيږي. همدارنګه که قرض غوښتونکی له خپل حق څخه زيات مقدار غلا کړي. مثلاً زيد له خالد څخه پنځلس درهم غلا کړي، نو بيا به هم د زيد لاس نه پرېکول کيږي: د دې وجه دا ده چې لس درهمه خو د زيد وه. او تر غلا وروسته زيد په پنځلسو درهمو کې د خالد سره شريک سو. او شرکت شبهه پيدا کوي. او په شبهې سره حدّ (قطعُ اليد) ساقطيږي.

**وإن سرق منه عروضاً إلخ**: او كه زيد د لسو درهمو پر ځاى له خالد څخه سامان غلا كړي. نو په دې صورت كي به د زيد لاس پرېكول كيږي؛ ځكه چي د زيد لپاره د خالد له مال څخه بل شى (يعني د خپل قرض له جنس څخه بغير د بل جنس مال) د خالد په رضاء سره جائز دى. او په سرقه كي رضاء نسته. نو ځكه به دا سرقه د حدّ مُوجب وي او د هغه لاس به پرېكول كيږي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دى چي دلته به هم د زيد لاس نه پرېكول كيږي: د دې وجه دا ده چي ځيني علماء فرمايي چي زيد (قرض غوښتونكي) ته دا حق سته چي د خپلو درهمو په بدله كي د خالد (مقروض) سامان واخلي او دا حق هم لري چي د خپلو درهمو په بدله كي د خالد سامان د ځان سره په رهن كي كښېږدي. لهذا كله چي د ځيني علماؤ په نېز د زيد لپاره دا جائز دي. نو ځكه به د زيد لاس نه پرېكول كيږي. (د قضاءً من حقه مطلب دا دى چي زيد د خپل حق (يعني د خپلو درهمو) په بدله كي د خالد سامان د ځان سره كښېږدي، د رهناً من حقه مطلب دا دى چي زيد د خپل حق په بدله كي د خالد سامان د ځان سره د رهن په توګه كښېږدي).

**قلنا إلخ**: موږ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته جواب وركوو چي دا قول (چي زيد لره د خپل حق په بدله كي د سامان اخيستلو حق سته) دا بې دليله قول دى. لهذا د دې اعتبار به نه كيږي. ها! كه زيد (غل) دا دعوىٰ وكړي چي ما د خالد سامان د خپلو درهمو په وجه اخيستى دى. نو څرنګه چي د ځينو علماؤ په قول هغه خپل حق اخيستلاى سي. نو ځكه اختلاف ثابت سو. او اختلاف شبهه پيدا كوي. نو د دې شبهي په وجه به له زيد څخه حدّ ساقطيږي (لأنه ظن في موضع الخلاف: د دې عبارت مطلب همدا دى چي په دې باره كي د علماؤ اختلاف دى چي آيا څوك د خپل حق په بدله كي سامان غلا كولاى سي. نو دا هم د ګومان خبره ده . نو د دې ګومان او شبهي په وجه به حدّ ساقطيږي. ځكه چي په شبهي سره حدود ساقطيږي).

او كه زيد د خپلو لسو درهمو په بدله كي له خالد څخه يو څو ديناره واخلي. نو ځيني حضراتو فرمايلي دي چي د زيد لاس به پرېكول كيږي. ځكه چي د زيد حق په درهمو كي وو. نه په دينارو كي ځكه چي دينار خو بل جنس دى. او ځيني حضراتو فرمايلي دي چي د هغه لاس به نه پرېكول كيږي: ځكه چي درهم او دينار دواړه د نغد مال په اعتبار سره يو جنس دى يعني دواړو نقود (نغد مالونه) دي. نو ګواكي زيد درهم اخيستي دي. نو ځكه به د هغه لاس نه پرېكول كيږي.

## د مال تر واپس کولو وروسته دويم وار د هغه مال غلا کولو حکم

وَمَنْ سَرَقَ عَيْنًا او کوم سړي چي يو شی غلا کړی فَقُطِعَ فِيهَا او په دې غلا کي د هغه لاس پرېکړی سي فَرَدَّهَا او هغه شی مالک ته واپس کړي ثُمَّ عَادَ فَسَرَقَهَا بيا غل ( خاص ) هغه شی غلا کړي وَهِيَ بِحَالِهَا او هغه شی پر خپل حال پاته وي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي وَالْقِيَاسُ: أَنْ يُقْطَعَ او قياس دا دی چي ( دويم وار ) د هغه لاس پرېکول سي ( صورت د مسئلې دا دی چي که مثلاً زيد د خالد پُسه غلا کړي چي د هغه په وجه د زيد لاس پرېکړی سي او زيد هغه غلا سوی پُسه خالد ته واپس کړي او زيد بيا هغه پُسه غلا کړي په داسي حال کي چي پُسه پر خپل مخکني حالت پاته وي، نو په دې صورت کي به دويم وار د زيد لاس نه پرېکول کيږي، ځکه چي د لاس پرېکېدلو په وجه په پُسه کي د زيد څه حق او ملکيت ثابت سو ) وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی ( د امام ابو يوسف او امام شافعي رايه دا ده چي که هغه دويم وار بعينه هغه شی غلا کړي، نو دويم به د هغه لاس پرېکول کيږي ) لِقَوْلِهِ ﷺ [1] : فَإِنْ عَادَ فَاقْطَعُوهُ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: که چيري غل دويم وار غلا وکړي نو تاسي د هغه لاس پرېکړئ! مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ دا حديث له څه تفصيل ( او فرق ) څخه بغير دی ( يعني په دې حديث کي دا تفصيل ذکر سوی نه دی چي که د هغه شي حالت بدل سوی وي يا بدل سوی نه وي، بلکي په هر حالت کي د لاس پرېکولو حکم ښکنبي سوی دی ) وَلِأَنَّ الثَّانِيَةَ مُتَكَامِلَةٌ كَالْأُولَى او ځکه چي دويمه سزا د اولي په څير پوره ده بَلْ أَقْبَحُ بلکي زياته بده ( او کامله ) ده لِتَقَدُّمِ الزَّاجِرِ ځکه چي يو وار زجر ( او تنبيه ) ورکول سوې ده ( امام ابو يوسف او امام شافعي خپل عقلي دليل داسي بيانوي چي د سزا مقصد دا دی چي هغه ( سارق ) ته تنبيه ورکول سي او هغه منع سي. او تر دې مخکي د هغه لاس پرېکول سوی دی. نو په دويم لاس پرېکولو سره به هغه ته زياته تنبيه ورکول سي او هغه به له دويم وار غلا کولو څخه منع سي. نو په دې وجه دويم وار د هغه لاس پرېکول پکار دي، دويمه خبره دا ده چي دا سزا هم د اولي سزا په څير کامله ده ) وَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَهُ الْمَالِكُ مِنَ السَّارِقِ او دا داسي سو لکه مالک چي پر غله باندي هغه شی خرڅ کړي ثُمَّ اشْتَرَاهُ مِنْهُ بيا مالک له هغه څخه دا شی رانيسي ثُمَّ كَانَتِ السَّرِقَةُ بيا غلا پېښه سي ( يعني زيد چي کوم پُسه غلا کړی وو او د هغه په بدله کي يې لاس پرېکړی سوی وو، خالد هغه پُس پر زيد خرڅ کړی، بيا خالد دا پُسه له زيد څخه رانيوی او تر دې وروسته زيد هغه پُسه دويم وار غلا کړی، نو اوس به دويم وار د زيد لاس پرېکول کيږي. لهذا په هغه وخت کي به هم د زيد ( سارق ) لاس دويم وار پرېکول کيږي کله چي پُسه د خالد سره پاته وي او زيد

---

[1] تخريج: رواه الدار قطني في السنن، رقم الحديث: ۳۴۳۷.

هغه دويم وار غلا کړي) وَلَنَا: أَنَّ الْقَطْعَ أَوْجَبَ سُقُوطَ عِصْمَةِ الْمَحَلِّ زموږ دليل دا دی: چې قطعُ اليد د محل عصمت (محفوظ والی) ساقط کړی عَلَى مَا يُعْرَفُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَىٰ لکه وروسته چې به انشاء الله دا (تاسي ته) معلومه سي ازموږ دليل په منطقي توګه ذکر سوی دی او څه ستونزمن دي. مطلب يې همدا دی چې کله د پسه په وجه د زيد لاس پرېکړی سو نو پسه محفوظ پاته نه سو يعني په پسه کي د زيد ملکيت هم راغلی (تاسي په ښه غور سره دليل مطالعه کړئ!) وَبِالرَّدِّ إِلَى الْمَالِكِ إِنْ عَادَتْ حَقِيقَةُ الْعِصْمَةِ او د مالک وطرف ته د مال په واپس کولو سره که څه هم د عصمت حقيقت راګرځېدلی دی بَقِيَتْ شُبْهَةُ السُّقُوطِ نَظَرًا إِلَى اتِّحَادِ الْمِلْكِ وَالْمَحَلِّ وَقِيَامِ الْمُوجِبِ وَهُوَ الْقَطْعُ فِيهِ لېکن د ملکيت او محل د اتحاد او د مُوجب يعني د قطعُ اليد قائمېدلو د اتحاد وطرف ته په نظر کولو سره د عصمت د سقوط شبهه باقي ده (مطلب دا چې کله زيد هغه پسه خالد ته واپس کړی نو که څه هم عصمت را وګرځېدی لېکن بيا هم د عصمت ساقطېدلو شبهه پاته ده. ځکه چې مالک هم هغه اول مالک دی او ملکيت هم هغه ملکيت دی او د لاس پرېکېدلو سبب هم هغه (پسه) دی.. اصل خبره دا ده چې کله د پسه په وجه د زيد لاس پرېکړی سو نو ګواکي زيد د پسه مالک جوړ سو. نو ځکه دويم وار د پسه په غلا کولو سره د هغه لاس پرېکول پکار نه دي) بِخِلَافِ مَا ذَكَرَ په خلاف د هغه صورت کوم چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللّٰه ذکر کړی دی لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ اخْتَلَفَ بِاخْتِلَافِ سَبَبِهِ ځکه چې (هلته) د سبب په بدلېدلو سره ملکيت بدل سو (په دې جمله سره امام ابو يوسف ته جواب ورکوي. هغه فرمايلي وو چې که خالد پر زيد (سارق) پسه خرڅ کړي بيا زيد هغه پر خالد خرڅ کړي تر دې وروسته خالد دويم وار هغه پسه غلا کړي نو د هغه لاس به پرېکول کېږي... نو د هغه جواب ورکوي چې دلته ملکيت بدل سو نو ګواکي هغه شی (پسه) بدل سو. نو ځکه به دويم وار لاس پرېکول کېږي. لېکن زموږ په مسئله کي داسي نه دي پېښ سوي) وَلِأَنَّ تَكْرَارَ الْجِنَايَةِ مِنْهُ نَادِرٌ او ځکه چې دويم وار غلا کول د دې غله له طرفه نادر دي لِتَحَمُّلِهِ مَشَقَّةَ الزَّاجِرِ ځکه چې هغه (يو وار) د زجر (او سزا) تکليف زغملی دی فَيَعْرَى الْإِقَامَةُ عَنِ الْمَقْصُودِ لهذا د حدّ (يعني د قطعُ اليد) جاري کول به له مقصود څخه خالي وي وَهُوَ تَقْلِيلُ الْجِنَايَةِ او مقصود د جنايت کمول دي اولأن تکرار: زموږ دويم دليل دا دی چې دا ډېره نادره ده چې تر يوه وار لاس پرېکېدلو وروسته به غل بيرته خاص هغه شی غلا کوي (دا به يو ډېر پايلوچ غل داسي کوي)، او داسي ډېر کم پيښېږي. لهذا د لاس پرېکولو چې کوم مقصد دی يعني "تنبيه ورکول او د آينده لپاره له سرقې څخه د سارق منع کېدل" دا مقصد به کم وي. نو په دې وجه دويم وار د لاس پرېکولو هيڅ فايده نسته) وَصَارَ كَمَا إِذَا قَذَفَ الْمَحْدُودُ فِي قَذْفِ الْمَقْذُوفَ الْأَوَّلَ او دا داسي سو لکه محدود في القذف چې دويم وار پر اول مقذوف باندي تهمت ولګوي (يعني مثلاً يو وار زيد پر خالد د زنا تهمت ولګوي چې د هغه په وجه پر زيد حدّ قذف جاري کړی سي، بيا دويم وار زيد پر خالد د زنا تهمت ولګوي نو اوس به دويم وار پر زيد حدّ قذف نه جاري کېږي. نو ځکه به دلته هم که زيد دويم وار خاص هغه پسه غلا کړي نو بيا به د هغه لاس نه پرېکول

کيږي ا قَالَ: فَإِنْ تَغَيَّرَتْ عَنْ حَالِهَا فرمايي: که مسروق سامان له خپل امخکني ا حالت څخه بدل سي مِثْلُ أَنْ يَكُونَ غَزْلًا مثلاً هغه تارونه اسپنسيان اوي فَسَرَقَهُ او بيا ايو څوک ا هغه غلا کړي وَقُطِعَ او د غله لاس پرېکړې سي فَرَدَّهُ او غل هغه تارونه خپل مالک ته واپس کړي ثُمَّ نُسِجَ مالک له هغه څخه ټوکر اکپړه ا جوړه کړي فَعَادَ فَسَرَقَهُ او غل بيا ادويم وار ا هغه غلا کړي قُطِعَ نو ا په دې صورت کې ا به د هغه لاس پرېکول کيږي ادا مسئله پر دې أصول مبني ده چي که د مسروق شي حالت بدل سي، نو د هغه په غلا کولو سره به دويم وار لاس پرېکول کيږي ا لِأَنَّ الْعَيْنَ قَدْ تَبَدَّلَتْ ځکه چي عين بدل سو اصورت د مسئلې دا دی: که زيد د خالد تارونه غلا کړل چي د هغه په وجه د زيد لاس پرېکړی سو او تارونه يې خالد ته واپس کړل، بيا خالد له هغه څخه ټوکر جوړ کړی، او زيد هغه ټوکر غلا کړی، نو د زيد لاس به دويم وار پرېکول کيږي: ځکه چي د تارونو د حالت بدلېدلو په وجه اوس هغه اول شی (تارونه) پاته نه سو، بلکي دويم شی ګواکي جوړ سو، نو ځکه به دويم وار لاس پرېکول کيږي ا وَلِهَذَا يَمْلِكُهُ الْغَاصِبُ بِهِ همدا وجه ده چي د تارونو غصبونکی د نسج اټوکر جوړولو ا په وجه د هغه اتارونو ا مالک جوړيږي وَهَذَا هُوَ عَلَامَةُ التَّبَدُّلِ فِي كُلِّ مَحَلٍّ او په هر ځای کي د "بدلېدلو" همدغه نښه ده وَإِذَا تَبَدَّلَتْ او کله چي محل بدل سو اِنْتَفَتِ الشُّبْهَةُ النَّاشِئَةُ مِنْ اِتِّحَادِ الْمَحَلِّ وَالْقَطْعُ فِيهِ نو د محل د متحد کېدلو او په دې محل کي د قطعُ اليد موجودېدلو شبهه ختمه سوه فَوَجَبَ الْقَطْعُ ثَانِيًا نو ځکه به دويم وار قطعُ اليد الاس پرېکول ا واجب وي ا ولهذا يملکه الغاصب: د دې حاصل دا دی چي که مثلاً يو سړي دا تارونه غصب کړي او له هغه څخه ټوکر جوړ کړي، نو اوس غاصب د هغه مالک جوړيږي او پر غاصب به د تارونو قيمت واجب وي، نو د غاصب مالک جوړېدل د دې خبري دليل دا دی چي د شي حالت بدل سو، لهذا محل يو پاته نه سو، او کله چي محل يو نه سو (بلکي دوه محلونه سول) نو ځکه به دويم وار هم د غله لاس پرېکول کيږي ا.

**اللغات:** ﴿رَدَّهَا﴾ د نصر ماضي ده: واپس کول (بيرته ورکول)، ﴿عَادَ﴾ د نصر ماضي ده: راګرځېدل (بيرته هغه کار کول)، ﴿أَقْبَح﴾ دا اسمِ تفضيل صيغه ده: زيات بد، ﴿زَاجِر﴾ منع کونکی، رټونکی، تنبيه ورکونکی، مراد څني سزا ده، ﴿عِصْمَة﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي، دلته يې معنیٰ محفوظ والي (محفوظيت) دی، (يعني د زيد (سارق) له ملکيت څخه د خالد د پُسه محفوظ کېدل)، ﴿غَزْل﴾ په معنیٰ سره د مَغْزُول: يعني هغه تارونه او سپنسيان کوم چي له پمبې او وړی څخه جوړ سوي وي (لکه پخوا چي به د لاسي څرخې په ذريعه له پمبې څخه تارونه جوړېدل بيا به له هغه تارونو څخه ټوکر او کپړه جوړېده)، ﴿نُسِجَ﴾ د ماضي مجهولي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: له تارونو څخه ټوکر جوړول، اودل (اوبدل).

**تشريح:** عبارت په ترجمه کي تشريح سو.



# فَصْلٌ فِي الْحِرْزِ وَالْأَخْذِ مِنْهُ

(دا) فصل د محفوظه کولو او له هغه (محفوظ) ځای څخه داخیستلو (په بیان کی) دی

**تشریح**: حَرْز (د حاء په فتحه سره) د نصر د باب مصدر دی: ساتل، حفاظت کول (محفوظه کول).

حِرْز (د حاء په کسره سره) اسم دی: محفوظه ځای، مظبوطه ځای (د حَرز او حِرز په مینځ کي دغه فرق په یاد لرئ!).

## د مور وپلار او نژدې قریبانو د غلا بیان

وَمَنْ سَرَقَ مِنْ أَبَوَيْهِ أَوْ وَلَدِهِ أَوْ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ او څوک چي له خپل مور وپلار یا له خپل بچي یا له خپل ذی رحم محرم قریب څخه غلا وکړي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کیږي فَالْأَوَّلُ وَهُوَ الْوِلَادُ لِلْبُسُوطَةِ فِي الْمَالِ وَفِي الدُّخُولِ فِي الْحِرْزِ نو کوم چي اول قسم دی یعني اولادي قرابت والا [مور وپلار او بچیان] نو هغه ځکه چي [د دوی] په مال کي او محفوظه ځای ته په داخلېدلو کي [یوه او بل ته] خلاصوالي [آزادوالی] وي [مطلب دا چي مور وپلار او زامن په آزاده توګه یو د بل مال استعمالوي او له اجازې څخه بغیر کور ته رانوځي او یو د بل محفوظه ځایونو ته تګلای سي. نو د دوی په حق کي کور حِرز (او محفوظ ځای) نه سو، او لاس هغه وخت پرېکول کیږي. کله چي له محفوظ ځای څخه غلا وسي. نو ځکه به دلته لاس نه پرېکول کیږي] وَالثَّانِي لِلْمَعْنَى الثَّانِي او دویم قسم [یعني ذی رحم محرم] نو [په دوی کي] ویمه معنیٰ [یعني په داخلېدلو کي آزادوالی] موجود وي وَلِهَذَا أَبَاحَ الشَّرْعُ النَّظَرَ إِلَى مَوَاضِعِ الزِّينَةِ الظَّاهِرَةِ مِنْهَا همدا وجه ده چي شریعت د محارمو ښځو د ظاهري ښکلا ځایونو ته کتل روا کړي دي بِخِلَافِ الصَّدِيقَيْنِ په خلاف د دوو دوستانو لِأَنَّهُ عَادَاهُ بِالسَّرِقَةِ ځکه چي د غلا په وجه یو دوست د بل دوست دښمن جوړېږي وَفِي الثَّانِي خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دویم قسم [ذی رحم محرم] کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّهُ أَلْحَقَهَا بِالْقَرَابَةِ الْبَعِيدَةِ ځکه چي هغه د ذی رحم محرم قرابت د قرابت بعیده سره لاحق کړی دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْعَتَاقِ او په کتابُ العتاق کي مورږ دا [خبره]

بيان كړه وَلَوْ سَرَقَ مِنْ بَيْتِ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مَتَاعَ غَيْرِهِ او كه ايو شوك [ د ذي رحم محرم له خوني شخه د يو بل چا سامان غلا كړي يَنْبَغِي أَنْ لَا يُقْطَعَ نو د هغه لاس پرېكول پكار نه دي وَلَوْ سَرَقَ مَالَهُ مِنْ بَيْتِ غَيْرِهِ او كه د بل چا له كور شخه د ذي رحم محرم مال غلا كړي يُقْطَعُ نو د هغه لاس پرېكول پكار دي اعْتِبَارًا لِلْحِرْزِ وَعَدَمِهِ د حرز او عدم حرز په اعتبار كولو سره وَإِنْ سَرَقَ مِنْ أُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ او كه ايو شوك [ له خپلي رضاعي مور شخه غلا وكړي قُطِعَ نو د هغه لاس به پرېكول كيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَا يُقْطَعُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شخه روايت دى: چي د هغه لاس به نه پرېكول كيږي لِأَنَّهُ يَدْخُلُ عَلَيْهَا مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ وَحِشْمَةٍ ځكه چي انسان له اجازې او شرم شخه بغير خپلي رضاعي مور ته راځي بِخِلَافِ الْأُخْتِ مِنَ الرَّضَاعِ په خلاف د رضاعي خور لِانْعِدَامِ هٰذَا الْمَعْنَى فِيهَا عَادَةً ځكه چي عموماً په هغې كي دا معنىٰ نه وي وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّهُ لَا قَرَابَةَ د ظاهر روايت دليل دا دى: چي [ په رضاعي مور كي [ هيڅ قرابت نه وي وَالْمَحْرَمِيَّةُ بِدُونِهَا لَا تُحْتَرَمُ او د هغه محرميت احترام نه كيږي كوم چي له قرابت شخه بغير وي [يعني هغه ته هيڅ اهميت نه وركول كيږي. مطلب دا چي هغه محرميت لره هيڅ اعتبار او اهميت نسته كوم چي له قرابت شخه بغير وي] كَمَا إِذَا ثَبَتَتْ بِالزِّنَا وَالتَّقْبِيلِ عَنْ شَهْوَةٍ لكه كله چي په زنا يا د شهوت په مچولو سره محرميت ثابت سي وَأَقْرَبُ مِنْ ذٰلِكَ الْأُخْتُ مِنَ الرَّضَاعَةِ او د رضاعي خور محرميت له دې شخه [ هم ] زيات نژدې وي وَهٰذَا لِأَنَّ الرَّضَاعَ قَلَّمَا يَشْتَهِرُ او دا ځكه چي رضاعت [ شيدې وركول ] ډېر كم مشهوره كيږي فَلَا بُسُوطَةَ تَحَرُّزًا عَنْ مَوْقِفِ التُّهْمَةِ نو له تهمت شخه د ځان ساتلو لپاره خلاصوالى [ او اختلاط ] نه وي بِخِلَافِ النَّسَبِ په خلاف د نسب.

**اللغات**: ﴿وِلَاد﴾ ولادتي قرابت. اولادي قرابت (د مور او پلار او بچيانو قرابت). ﴿بُسُوطَة﴾ فراخي، ګنجائش، خلاصوالى. ﴿حِرْز﴾ محفوظه ځاى (د حفاظت والا ځاى). ﴿أَبَاحَ﴾ روا كول. حلالول. ﴿صديق﴾ ملګرى. دوست. ﴿عَادَاه﴾ د مفاعلې ماضي ده: دښمني كول. ﴿مَتَاع﴾ سامان. شيان. ﴿حِشْمَة﴾ (د حاء په كسره سره): شرم او حياء. انقباض. ﴿مَحرمِيَّة﴾ محرم كېدل. محرم والي (يو پر بل حرامېدل). ﴿تَحَرُّز﴾ د تفعّل مصدر دى: پرهېز كول. ځان ساتل (ځان ژغورل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو څوک له خپل مور و پلار څخه يا له خپل أولاد څخه يا له خپلو نژدې قريبانو څخه مال يا سامان غلا کړي. نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي په اولاد او مور او پلار کي دومره نژدېکت وي چي يو د بل مال هم استعمالوي او په يوه خونه او يوه ځای کي سره کښيني او يو د بل محفوظه مقاماتو ته هم ځي. همدارنګه ذی رحم محرم قريبان هم يو د بل کور ته ځي او پر هيڅا باندي هيڅ ډول تهمت او ممانعت نه وي. له همدې کبله شريعت د محارمو ښځو ظاهري اندامونو ته کتل روا کړي دي. لهذا دا ثابته سوه چي په دې کسانو کي حرز او محفوظيت معدوم دی (او د دوی کور د دوی په حق کي محفوظه ځای نه دی). او له حرز څخه بغير غلا نه ثابتيږي. نو ځکه به د خپل مينځوي غلا په وجه د دې کسانو لاس نه پرېکول کيږي. د دې په خلاف که يو دوست له بل دوست څخه مال غلا کړي نو د هغه لاس به پرېکول کيږي: ځکه که څه هم يو دوست د بل دوست محفوظه ځايو ته ځي (او که څه هم د دوستانو په مينځ کي آزادوالی او بسوطة سته) ليکن تر غلا وروسته د دوی په مينځ کي دښمني او عداوت پيدا کيږي. نو ځکه به د غلا په وجه د دوست لاس پرېکول کيږي. امام شافعي رَحِمَهُ الله د ذی رحم محرم قرابت د قرابت بعيد سره لاحق کړی دی او په قرابتِ بعيده کي غلا کول د حدّ (قطعُ اليد) مُوجِب دي. نو ځکه به د ذی رحم مال غلا کول هم د حدّ مُوجِب وي.

**ولوسرق إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که يو څوک د ذی رحم محرم له کور څخه د بل چا (أجنبي) مال غلا کړي نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي د ذی رحم کور حرز (محفوظ ځای) نه دی او په هغه کي محفوظيت نسته. او له حرز څخه بغير غلا نه ثابتيږي. نو ځکه مور وايو که څوک د ذی رحم محرم قريب له کور څخه د أجنبي سړي مال غلا کړي. نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي. او که يو څوک د بل چا له کور څخه د ذی رحم محرم مال غلا کړي. نو د هغه لاس به پرېکول کيږي: ځکه چي د بل چا (أجنبي) کور حرز او محفوظ ځای دی (ځکه چي انسان د بل چا کور ته په آزاده توګه او بېله اجازې ننوتلای نه سي). او له محفوظ ځای څخه غلا کول د قطعُ اليد موجب دي.

**وإن سرق من أمه إلخ**: د دې حاصل دا دی که څوک د خپلي رضاعي مور مال غلا کړي. نو د هغه لاس به پرېکول کيږي. ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي انسان له څه اجازې او شرم څخه بغير خپلي رضاعي مور ته ځي. او د هغې له محفوظه مقاماتو څخه شيان اخلي. د دې په خلاف د رضاعي ورور او خور په مينځ کي داسي نه کيږي. لهذا د هغې مال غلا کول به د قطعُ اليد مُوجِب وي. ليکن د رضاعي مور مال غلا کول به د قطعُ اليد مُوجِب نه وي.

د ظاهر روايت دليل دا دى چي د رضاعي ، ور سره د انسان هيڅ قرابت نسته. او له قرابت څخه بغير محرميت نه حاصليږي (يعني اعتبار او اهميت نه ورکول کيږي). د مثال په توګه که يو څوک د يوې ښځي سره زنا وکړي يا په شهوت سره هغه مچ کړي نو په دې سره حرمت مصاهرت ثابتيږي. يعني د دې ښځي مور پر هغه حراميږي (او خوابنې يې جوړيږي) خو د قرابت د نشتوالي په وجه دغه حرمت لره هيڅ اهميت نه وي (يعني که دا سړى له هغې (خوابنې) څخه غلا وکړي، نو هم به د هغه لاس پرېکول کيږي، ځکه چي قرابت نسته). همدارنګه د رضاعي خور محرميت له هغه محرميت څخه زيات نژدې وي کوم چي په زنا سره ثابت سوى وي لېکن د قرابت د نشتوالي په وجه د هغې حُرمت لره هم هيڅ اهميت او اعتبار نه وي. لهذا کله چي د رضاعي خور او داسي نورو مال غلا کول د قطعُ اليد مُوجِب دي نو د رضاعي مور مالْ غلا کول به هم د قطعُ اليد موجب وي. او په دې کي يو راز دا هم دى چي رضاعت ډېر کم مشهوره کيږي (يعني که څه هم د شيدو ورکولو په وجه ښځه د انسان رضاعي مور جوړيږي. خو په دې ډېر کم انسانان خبر وي چي فلانى ښځه د فلانکي رضاعي مور ده). نو له تهمت څخه د ځان ساتلو پر بناء هغه د رضاعي مور کور ته په آزاده توګه نه ځي. نو د هغې کور به د ده په حق کي محفوظه ځاى وي (او غلا په محفوظه ځاى کي ثابتيږي). نو ځکه به له رضاعي مور څخه غلا کول د قطعُ اليد مُوجِب وي. لېکن نسب او ولادتي قرابت مشهوره وي او د دوى په مينځ کي په آزاده توګه راشه درشه او تعلقات موجود وي.

## د ښځي او خاوند، او د غلام او مالک د غلا بيان

وَإِذَا سَرَقَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ مِنَ الْآخَرِ او که په خاوند او ښځه کي يو له بل څخه غلا وکړي أَوِ الْعَبْدُ مِنْ سَيِّدِهِ يا غلام له خپل مالک څخه [غلا وکړي] أَوْ مِنِ امْرَأَةِ سَيِّدِهِ يا غلام د خپل مالک له ښځي څخه [غلا وکړي] أَوْ مِنْ زَوْجِ سَيِّدَتِهِ يا د خپلي مالکي له خاوند څخه [غلا وکړي] لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِوُجُودِ الْإِذْنِ بِالدُّخُولِ عَادَةً ځکه چي [د دې کسانو په مينځ کي] عادتاً د داخلېدو اجازه موجوده وي وَإِنْ سَرَقَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ مِنْ حِرْزِ الْآخَرِ خَاصَّةً لَا يَسْكُنَانِ فِيهِ او که په خاوند او ښځه کي يو د بل له محفوظه ځاى څخه غلا وکړي چي هغه په کي دوى دواړه [يو ځاى] نه اوسيږي فَكَذٰلِكَ عِنْدَنَا نو هم زموږ په نېز دا حکم دى خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِبُسُوطَةٍ بَيْنَهُمَا فِي الْأَمْوَالِ عَادَةً وَدَلَالَةً ازموږ دليل] ځکه چي د عادت او دلالت [دواړو] په اعتبار سره د دوى په مينځ کي خلاصوالى [آزادوالى] وي وَهُوَ نَظِيرُ الْخِلَافِ فِي الشَّهَادَةِ او

دا په شهادت ورکولو کي د اختلاف په څير دی وَلَوْ سَرَقَ الْمَوْلَى مِنْ مُكَاتَبِهِ او که مالک له خپل مکاتب څخه مال غلا کړي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ لَهُ فِي أَكْسَابِهِ حَقًّا ځکه چي د مکاتب په ګټل سوي مال کي مالک حق لري وَكَذَلِكَ السَّارِقُ مِنَ الْمَغْنَمِ او د غنيمت له مال څخه د غلا کونکي (النبکري) هم دغه حکم دی لِأَنَّ لَهُ فِيهِ نَصِيبًا ځکه چي د غنيمت په مال کي هغه حصه لري وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه دَرْءًا وَتَعْلِيلًا [1] او دا د حد ساقطولو او علت بيانولو په توګه له حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوي دي ايعني له حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوي چي هغه په دې هکله له يو سړي څخه حد ساقط کړی او د هغه علت يې هم بيان کړی (چي د غنيمت په مال کي د دې سړي حصه سته. د حضرت علي رضي الله عنه قول په حاشيه کي مذکور دی))ا.

**اللغات**: ﴿سَيِّد﴾ مالک. مولیٰ. ﴿مَغْنَم﴾ د غنيمت مال. ﴿نَظِيْر﴾ مثال. مشابه. ﴿أَكْسَاب﴾ کټي (مراد ځني ګټل سوی مال دی). ﴿نَصِيْب﴾ حصه. برخه. ﴿دَرْء﴾ د فتح مصدر دی: دفع کول. ليري کول. ساقطول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که په خاوند او ښځه کي يو له بل څخه مال غلا کړي يا غلام له خپل مالک يا د مالک له ښځي څخه يا د خپلي مالکي له خاوند څخه مال غلا کړي. نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي د دغه کسانو په مينځ کي هريوه ته د تلو او راتلو اجازه حاصله وي (او هريو بېله څه خنډه د بل کور ته ځي). لهذا د دوی په حق کي حرز معدوم دی (يعني د دوی په حق کي کور محرز او محفوظ ځای نه سو). حالانکي د غلا لپاره حرز شرط دی (له حرز څخه بغير قطعُ اليد نه واجبيږي). که چيري په خاوند او ښځه کي د يوه لپاره جلا خصوصي خونه وي. مثلاً د خاوند لپاره جلا خونه وي. او بيا ښځه له هغه څخه غلا کړي نو په دې صورت کي هم زموږ په نېز قطعُ اليد نه واجبيږي: ځکه چي د ښځي او خاوند په مينځ کي عادتاً او دلالتاً دواړه قسمه آزاد والی وي او له اجازې څخه بغير يو د بل مال اخلي. مطلب دا چي په دوی کي هريوه ته د عادت او دلالت دواړو په اعتبار سره يو د بل د مال استعمالولو اجازه وي. او دا اجازه حرز او إحراز ختموي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم پر سارق (خاوند يا ښځي) قطعُ اليد واجبيږي او صاحب د بنايې فرمايي چي أصلاً په دې سلسله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله درې قولونه دي. او دا په ګواهي کي د اختلاف په څير دی يعني

---

[1] تخريج: رواه ابن أبي شيبة رقم: ۲۸۵٦۵، د أثر الفاظ داسي دي "أتى علي رضي الله عنه برجل سرق من الخمس، فقال له فيه نصيب وهو خائن، فلم يقطعه".

زموږ په نيز د أحدُ الزوجين ګواهي د بل په حق کي مقبوله نه ده لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په يوه قول کي مقبوله ده.

مالک که چيري له خپل مکاتب څخه غلا وکړي يا لښکري د غنيمت له مال څخه غلا وکړي. نو پر دوی هم قطعُ اليد نه واجبيږي، دليل په کتاب کي موجود او واضح دی.

## د حرز تعريف او د هغه قسمونه

قَالَ: وَالْحِرْزُ عَلٰى نَوْعَيْنِ فرمايي: چي حرز پر دوه قسمه دی حِرْزٌ لِمَعْنًى فِيهِ كَالْبُيُوتِ وَالدُّوْرِ ① يو هغه دی چي د خپلي معنیٰ په وجه محفوظ وي. لکه خوني (کمرې) او کورونه وَحِرْزٌ بِالْحَافِظِ ② او بل هغه حرز دی کوم چي د يو نګران [او پام کونکی] په وجه محفوظ وي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: الْحِرْزُ لَا بُدَّ مِنْهُ ناتوانه بنده فرمايي: چي حرز [او محفوظه ځای] ضروري دی لِأَنَّ الِاسْتِسْرَارَ لَا يَتَحَقَّقُ دُونَهُ ځکه چي له حرز څخه بغير "په پټه توګه اخيستل" ثابتېدای نه سي ثُمَّ هُوَ قَدْ يَكُونُ بِالْمَكَانِ بيا حرز [او حفاظت] کله د مکان په ذريعه سره وي وَهُوَ الْمَكَانُ الْمُعَدُّ لِإِحْرَازِ الْأَمْتِعَةِ كَالدُّوْرِ وَالْبُيُوتِ وَالصُّنْدُوقِ وَالْحَانُوتِ او دا هغه مکان دی کوم چي د سامانونو د حفاظت [ساتني] لپاره تيار سوي وي لکه کورونه، خوني، صندوخ او دوکان وَقَدْ يَكُونُ بِالْحَافِظِ كَمَنْ جَلَسَ فِي الطَّرِيقِ أَوْ فِي الْمَسْجِدِ وَعِنْدَهُ مَتَاعُهُ او کله بيا حِز د نګران [پام کونکي] په ذريعه سره وي لکه يو سړی چي په لاره کي يا په مسجد کي ناست وي او د هغه سره خپل سامان [هم] وي [او پر خپل سامان پام کوي] فَهُوَ مُحْرَزٌ بِهِ نو دا سامان به د دې سړي [مالک] په وجه محفوظ وي وَقَدْ قَطَعَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ سَرَقَ رِدَاءَ صَفْوَانَ مِنْ تَحْتِ رَأْسِهِ وَهُوَ نَائِمٌ فِي الْمَسْجِدِ[1] او نبي کريم ﷺ د هغه غله لاس پرېکړی چي هغه د حضرت صفوان تر سر لاندي څادر [پټو] غلا کړی او هغه په مسجد کي بيده وو وَفِي الْمُحْرَزِ بِالْمَكَانِ لَا يُعْتَبَرُ الْإِحْرَازُ بِالْحَافِظِ او کوم شی چي د مکان په ذريعه ساتل سوي وي په هغه کي د نګران حفاظت [او نګراني] معتبره نه ده [يعني دا ضروري نه ده چي هغه به خامخا د يو چا تر پام او نګراني لاندي وي. بس إحراز بالمكان کافي دی] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح [قول] دی لِأَنَّهُ مُحْرَزٌ بِدُونِهِ

---

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ۴۳۹۴.

ځکه هغه شی خو له نګران ځخه بغیر هم محفوظ دی وَهُوَ الْبَيْتُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ بَابٌ أَوْ كَانَ وَهُوَ مَفْتُوحٌ او هغه (مکان) خونه (او کور) دی که څه هم هغه دروازه نه لري یا دروازه لري خو خلاصه وي (او قلف نه وي) حَتَّى يُقْطَعَ السَّارِقُ مِنْهُ تر دې چې له هغه ځخه د غلا کونکي کس لاس به پرېکول کیږي لِأَنَّ الْبِنَاءَ لِقَصْدِ الْإِحْرَازِ ځکه چې خونه د حفاظت (او ساتلو) په مقصد جوړیږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْقَطْعُ إِلَّا بِالْإِخْرَاجِ مِنْهُ خو قطعُ الید نه واجبیږي مګر له خوني ځخه په ایستلو کي (یعني قطع الید به فقط هغه وخت واجبیږي، کله چې غل له خوني او کور ځخه شی وباسي) لِقِيَامِ يَدِهِ فِيهِ قَبْلَهُ ځکه چې تر إخراج (ایستلو) مخکې په هغه شي کي د مالک قبضه وي بِخِلَافِ الْمُحْرَزِ بِالْحَافِظِ په خلاف د هغه شي کوم چې په نګران سره محفوظ وي حَيْثُ يَجِبُ الْقَطْعُ فِيهِ كَمَا أَخَذَ ځکه په هغه صورت کي چې څرنګه غل (فقط) شی را واخلي نو (سمدستي) قطعُ الید واجبیږي لِزَوَالِ يَدِ الْمَالِكِ بِمُجَرَّدِ الْأَخْذِ ځکه چې فقط په اخیستلو سره د مالک قبضه ختمیږي فَتَتِمُّ السَّرِقَةُ نو غلا به پوره سي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَكُونَ الْحَافِظُ مُسْتَيْقِظًا أَوْ نَائِمًا وَالْمَتَاعُ تَحْتَهُ أَوْ عِنْدَهُ او په دې هکله هیڅ فرق نسته چې نګران ویښ وي یا بیده وي او سامان تر هغه لاندي وي یا د هغه سره وي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح (اوول) دی لِأَنَّهُ يُعَدُّ النَّائِمُ عِنْدَ مَتَاعِهِ حَافِظًا لَهُ فِي الْعَادَةِ ځکه چې د خپل سامان سره (نژدې) بیده سړی په عادت (او عرف) کي نګران (او ساتونکی) شمارل کیږي وَعَلَى هَذَا لَا يَضْمَنُ الْمُودَعُ وَالْمُسْتَعِيرُ بِمِثْلِهِ او پر همدغه بناء به په داسي حالت کي مودَع او مستعیر نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتَضْيِيعٍ ځکه چې دا ضایع کول نه دي بِخِلَافِ مَا اخْتَارَهُ فِي الْفَتَاوَى په خلاف د هغه قول کوم چې یې په فتاوی کي اختیار کړی دی.

**اللغات**: ﴿حِرز﴾ محفوظه ځای. ﴿بُیُوت﴾ جمع د بَیتٌ ده: خونه. کمره. کوټه (همدا یې عمومي معنی ده). ﴿دُوْر﴾ جمع د دَارٌ ده: کور. ﴿إِسْتِسْرَار﴾ د استفعال مصدر دی: په پټه توګه کاروایي کول (په خفیه توګه شی اخیستل). دا په غلا کي شرط دي چې سارق به په پټه توګه شی غلا کړی وي کنې لاس به یې نه پرېکول کیږي (همدا وجه ده چې د ډاکو لاس نه پرېکول کیږي). ﴿مُعَدّ﴾ د تفعیل اسم مفعول دی: تیار سوی. ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: حفاظت کول. ساتل. ذخیره کول.

﴿بِنَاء﴾ د ضرب اسم مصدر دی: جوړول، عمارت، (ودانې جوړول). ﴿مُوْدَع﴾ هغه کس چې امانت ورته ایښول سوی وي (هغه کس چې أمین جوړ سوی وي). ﴿مُسْتَعِيْر﴾ هغه کس چې په عاریت (او امانت) له بل چا څخه شی واخلي (چې زه یې بیرته درکوم). ﴿تَضْيِيْع﴾ د تفعیل مصدر دی: ضایع کول.

**تشریح:** په دې ټوله عبارت کې فقط دا ښوول سوي دي چې حرز او محفوظ پر دوه قسمه دي: ① ... یو هغه دی کوم چې بیله څه واسطې او بذاتِ خود په خپل ځان کې د حفاظت د معنیٰ په وجه حرز شمارل کیږي لکه خونې، کورونه، صندوخان او دوکانونه چې دا بذاتِ خود محرز او محفوظ وي او په دوی کې دإحراز معنیٰ پیدا موجوده وي، ځکه چې دا ټوله فقط د حفاظت په مقصد سره جوړیږي. ② ... د حرز دویم قسم دا دی چې په هغه کې د نگران او ساتونکي واسطه وي او بذاتِ خود هغه شی محرز نه وي لکه یو څوک چې په لاره کې ناست وي یا په مسجد کې ناست وي او د هغه سره خپل سامان موجود وي، نو دا سامان به په لاره یا مسجد سره محفوظ او محرز نه شمارل کیږي. بلکې د سړي په وجه به محفوظ او محرز شمارل کیږي: د دې واضح دلیل دا دی چې حضرت صفوان بن أمیه رضي الله عنه په مسجد کې بیده وو او خپل پټوېې ترسر لاندي کړی وو. په دې حالت کې یو سړي د ده پټو غلا کړی، نو نبي کریم ﷺ د هغه سړي لاس پرېکړی ځکه چې هغه پټو محرز بالحافظ وو.

وفي المحرز بالمكان إلخ: د دې حاصل دا دی چې هغه شیان کوم چې په مکان مثلاً په خونه، کور دوکان او داسې نورو کې موجود وي د هغه حفاظت به په هغه مکان سره معتبر وي او (د غلا د تحقق لپاره) به د هغه په إحراز کې د محافظ او نگران څه اعتبار او ضرورت نه وي: ځکه هغه شی له حافظ څخه بغیر په مکان سره محرز دی (ځکه چې په هغه مکان کې بذاتِ خود دإحراز او حفاظت معنیٰ سته) که څه هم هغه مکان دروازه لري یا دروازه خو لري مگر خلاصه وي، همدا صحیح قول دی (ځکه چې خونه، کور او داسې نور دإحراز په نیت سره جوړیږي). خو صاحب د کفایې له امام صاحب رحمه الله څخه یو روایت دا نقل کړی دی چې که په هغه مکان کې محافظ او ساتونکی وي نو په دې صورت کې به د غله لاس پرېکول کیږي او که هلته محافظ نه وي نو د غله لاس به نه پرېکول کیږي. لیکن دلته چې کوم روایت ذکر سوی دی د هغه مطابق به له محافظ او ساتونکي څخه بغیر هم د غله لاس پرېکول کیږي. د دې روایت وجه دا ده چې کور، خونه دوکان او داسې نور دإحراز په نیت او اراده سره جوړیږي. خو دا خبره په یاد لرئ! چې د کور، خونې او داسې نورو غلا به په هغه وخت کې د قطعُ الید موجِب گرځي کله چې غل له هغه ځای څخه سامان وباسي، ځکه ترڅو چې سامان په هغه ځای کې وي تر هغه

وخته به سامان محرز او محفوظ شمارل کیږي او پر هغه به د مالک قبضه باقي وي. لهذا قبل الإخراج به قطعُ الید نه ثابتیږي.

د دې په خلاف د حرز په دویم قسم یعني د محرز بالحافظ په صورت کې د مال په اخیستلو سره فوراً قطع الید واجبیږي؛ ځکه چې په دې صورت کې فقط په اخیستلو سره دمالک قبضه ختمیږي او سرقه پوره کیږي. او په حرز بالحافظ کې برابره ده که حافظ ویښ وي یا بیده وي او سامان تر هغه لاندې وي یا نه وي په هر صورت کې به دا سامان محرز بالحافظ شمارل کیږي. ځکه چې د خپل سامان سره بیدېدونکي کس هم عادتاً د سامان محافظ شمارل کیږي او د همدې تفصیل مطابق که مستعیر یا مودَع د عاریت او د امانت د سامان سره بیده وي او یو څوک هغه غلا کړي نو پر مستعیر او مودَع به ضمان نه واجبیږي. ځکه چې د سامان سره بیدونکي کس د سامان محافظ شمارل کیږي. لهذا د دې تفصیل پر بناء د دوی له طرفه هیڅ قصور او جنایت نه دې سوی. حالانکې په فتاویٰ ظهیریة کې دا حکم د فتویٰ لپاره خوښ سوی دی چې که مودَع په ولاړه بیده وي او سامان د هغه مخته وي نو د هغه په غلا کېدلو سره به پر مودَع ضمان نه واجبیږي او که مودَع په پروتې بیده وي نو پر هغه به ضمان واجبیږي. (بناية ج:٦، ص:٤٢٠)

## د حرز د دویم قسم مثال

قَالَ: وَمَنْ سَرَقَ شَيْئًا مِنْ حِرْزٍ أَوْ مِنْ غَيْرِ حِرْزٍ فرمایي: او کوم کس چې له محفوظ یا غیر محفوظ ځای څخه یو شی غلا کړي وَصَاحِبُهُ عِنْدَهُ يَحْفَظُهُ او د هغه شي مالک د شي سره وي او د هغه حفاظت کوي قُطِعَ نو د غله لاس به پرېکول کیږي لِأَنَّهُ سَرَقَ مَالًا مُحْرَزًا بِأَحَدِ الْحِرْزَيْنِ ځکه چې هغه داسې مال غلا کړی کوم چې په دوو حرزونو کې د یوه په ذریعه محفوظ دی وَلَا قَطْعَ عَلَى مَنْ سَرَقَ مَالًا مِنْ حَمَّامٍ أَوْ مِنْ بَيْتٍ أُذِنَ لِلنَّاسِ فِي دُخُولِهِ او د هغه کس لاس به نه پرېکول کیږي چې هغه له حمام څخه یا له داسې خوني [او کوراً] څخه مال غلا کړي چې په هغه کې عامو خلکو ته د داخلېدلو اجازه ورکول سوې وي لِوُجُودِ الْإِذْنِ عَادَةً أَوْ حَقِيقَةً فِي الدُّخُولِ ځکه چې [په داسې ځایونو کې] عادتاً یا حقیقتاً د دخول اجازه وي فَاخْتَلَّ الْحِرْزُ لهذا په حرز کې خلل راغلی وَيَدْخُلُ فِي ذَلِكَ حَوَانِيتُ التِّجَارَةِ وَالْخَانَاتُ او په دې حکم کې د کاروبار دوکانونه او کاروان سرایونه [هم] داخل دي إِلَّا إِذَا سَرَقَ مِنْهَا لَيْلًا مګر دا چې کله له دې ځایونو څخه [یو څوک] د شپې غلا وکړي لِأَنَّهَا بُنِيَتْ

لِإِحْرَازِ الْأَمْوَالِ ځکه چي دا د مالونو د حفاظت لپاره جوړ سوي دي وَإِنَّمَا الْإِذْنُ يَخْتَصُّ بِالنَّهَارِ او اد دخول اجازه فقط د ورځي سره خاص ده **وَمَنْ سَرَقَ مِنَ الْمَسْجِدِ مَتَاعًا وَصَاحِبُهُ عِنْدَهُ** او که ايو ځوک اله مسجد څخه سامان غلا کړي او د سامان مالک د سامان سره اموجودا وي **قُطِعَ** نو اد امام صاحب په نېزا د غله لاس پرېکول کيږي اپه هدايه کي فقط د امام صاحب مسلک او دليل ذکر سوي دی. د صاحبينو مسلک نه دي ذکر سوی. د صاحبينو قول دا دی چي د هغه لاس به نه پرېکول کيږي. د صاحبينو قول راجح او مفتىٰ به دی ا لِأَنَّهُ مُحْرَزٌ بِالْحَافِظِ اد اما صاحب دليل ا ځکه چي ادلته ا دا سامان د نګران په ذريعه محفوظ دی لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مَا بُنِيَ لِإِحْرَازِ الْأَمْوَالِ ځکه چي مسجد د مالونو د حفاظت لپاره نه جوړېږي فَلَمْ يَكُنِ الْمَالُ مُحْرَزًا بِالْمَكَانِ لهذا هغه مال به د مکان په ذريعه محفوظ نه وي بِخِلَافِ الْحَمَّامِ وَالْبَيْتِ الَّذِي أُذِنَ لِلنَّاسِ فِي دُخُولِهِ په خلاف د حمام او د هغه خوني او کور اچي په هغه کي خلکو ته د داخلېدلو اجازه ورکول سوې وي حَيْثُ لَا يُقْطَعُ نو اله هغه څخه د غلا کولو په وجه ا به د غله لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ بُنِيَ لِلْإِحْرَازِ ځکه چي دا ځايونه د إحراز لپاره جوړېږي فَكَانَ الْمَكَانُ حِرْزًا نو مکان به محرز وي فَلَا يُعْتَبَرُ الْإِحْرَازُ بِالْحَافِظِ نو په دې وجه به اهلته ا إحراز بالحافظ معتبر نه وي **وَلَا قَطْعَ عَلَى الضَّيْفِ إِذَا سَرَقَ مِمَّنْ أَضَافَهُ** او د مېلمه لاس به نه پرېکول کيږي کله چي مېلمه له هغه سړي څخه غلا وکړي چي دئ يې مېلمه کړی وي ايعني کله چي مېلمه له کوربه څخه غلا وکړي ا لِأَنَّ الْبَيْتَ لَمْ يَبْقَ حِرْزًا فِي حَقِّهِ ځکه د کوربه خونه ااو کور ا د مېلمه په حق کي محرز ځای نه دی لِكَوْنِهِ مَأْذُونًا فِي دُخُولِهِ ځکه چي مېلمه ته اجازه ورکول سوې ده هغه خوني ته په داخلېدلو کي وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أَهْلِ الدَّارِ او ځکه چي مېله د کورني خلکو په درجه کي دی فَيَكُونُ فِعْلُهُ خِيَانَةً لَا سَرِقَةً نو د هغه فعل به خيانت وي. نه غلا.

**اللغات**: ﴿حَمَّام﴾ د لمبېدلو ځای (چي ډېر خلک ورځي او غسلونه پکښي کوي). ﴿إِخْتَلَّ﴾ د افتعال ماضي ده: عيب پکښي راتلل. خلل او کمي پيدا کېدل. ﴿حَوَانِيت﴾ جمع د حَانُوتٌ: دوکان. ﴿خَانَات﴾ جمع د خَانٌ او خَانَةٌ ده: کاروانسرای (هغه غټ سرای کوم چي به په لويه لاره کي جوړ وو. او مسافرانو به پړاو پکښي کوی). ﴿ضَيْف﴾ مېلمه. جمع ضُيُوف.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړي خپل سامان يو ځای ايښی وي او يو څوک هغه غلا کړي حال دا چي دا سړی (مالک) هلته موجود وي. نو د غله لاس به پرېکول کيږي: ځکه چي دا مال د أحد الحرزين يعني د حافظ (مالک) په وجه محفوظ دی او د محرز مال غلا کول د قطعُ اليد مُوجب دي. د دې په خلاف که يو څوک له حمام څخه يو شی غلا کړي يا له داسي کور څخه يو شی غلا کړي چي په هغه کي خلکو ته د تلو راتلو اجازه وي. نو په دې صورت کي به د غله لاس نه پرېکول کيږي. ځکه چي په حمام کي خو عادتاً د داخلېدلو اجازه وي او په کوم کور چي کي د داخلېدلو اجازه وي په هغه کي حقيقتاً د داخلېدلو اجازه وي. او په اجازه سره حرز او إحراز ختميږي نو ځکه به په دې صورتونو کي قطعُ اليد نه واجبيږي. همدا حکم د تجارتي دوکان او د مسافرانو د سرای دی يعني د دې ځايونو غلا هم د قطعُ مُوجِب نه ده: ځکه چي په دې ځايونو کي هم په عامه توګه خلکو ته د داخلېدلو اجازه وي. لېکن د اجازې حکم په هغه صورت کي دی کله چي د ورځي غلا سوې وي: ځکه چي اجازه د ورځي سره خاصل ده. لېکن که يو څوک د شپې په وخت کي له دې ځايونو څخه غلا وکړي نو د هغه لاس به پرېکول کيږي: ځکه چي دا ځايونه د أموالو د حفاظت لپاره جوړيږي.

له مسجد څخه د غلا کولو مسئله واضحه ده (تشريح ته ضرورت نه لري). او که مېلمه د کوربه له کور څخه غلا وکړي نو د هغه لاس به هم نه پرېکول کيږي: ځکه چي د کوربه کور ته مېلمه مأذون في الدخول وي او مېلمه د کوربه د کور فرد شمارل کيږي. نو په دې وجه د مېلمه فعل (غلا) خيانت دی. سرقه نه ده. او خيانت د قطعُ اليد موجب نه دی.

## له قطعُ اليد څخه د خلاصېدلو ممکنه حيلي

**وَمَنْ سَرَقَ سَرِقَةً فَلَمْ يُخْرِجْهَا مِنَ الدَّارِ** او څوک چي يو سامان غلا کړي لېکن ا هغه له کور څخه نه وباسي **لَمْ يُقْطَعْ** نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي **لِأَنَّ الدَّارَ كُلَّهَا حِرْزٌ وَاحِدٌ** ځکه چي کور ټوله يو حرز دی ا يعني کور ټوله د يوه محفوظ ځای په درجه کي دی ا **فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِخْرَاجِ مِنْهَا** نو په دې وجه له کور څخه ا د سامان ا ايستل ضروري دي **وَلِأَنَّ الدَّارَ وَمَا فِيهَا فِي يَدِ صَاحِبِهَا مَعْنًى** او ځکه چي کور او د کور سامان د معنیٰ په اعتبار سره د صاحبُ الدار ا مالک ا په قبضه کي وي **فَيَتَمَكَّنُ شُبْهَةُ عَدَمِ الْأَخْذِ** نو د اخيستلو شبهه پيدا سوه **فَإِنْ كَانَتْ دَارٌ فِيهَا مَقَاصِيرُ** او که يو کور داسي وي چي په هغه کي څو جلا کوټې اخوني ا وي ا يعني هره خونه له بلې څخه جلا وي او هره خونه د جلا کس په ملکيت کي وي ا **فَأَخْرَجَهَا مِنَ الْمَقْصُورَةِ إِلَى صَحْنِ الدَّارِ** او غل هغه سامان له يوې خوني

شخه د کور حويلۍ اغولي ا ته را وباسي **قُطِعَ** نو د هغه لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّ كُلَّ مَقْصُورَةٍ بِاعْتِبَارِ سَاكِنِهَا حِرْزٌ عَلَى حِدَةٍ ځکه چي هره خونه د خپل اوسېدونکي په اعتبار سره جلا حرز دی **وَإِنْ أَغَارَ إِنْسَانٌ مِنْ أَهْلِ الْمَقَاصِيرِ عَلَى مَقْصُورَةٍ فَسَرَقَ مِنْهَا** او که د دې خونو له خلکو شخه يو سړی پر يوې خوني چاپه ووهي او سامان ځني غلا کړي ايعني له يوې خوني شخه سامان چور کړي ا **قُطِعَ** نو د هغه لاس به پرېکول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی **وَإِذَا نَقَبَ اللِّصُّ الْبَيْتَ فَدَخَلَ وَأَخَذَ الْمَالَ وَنَاوَلَهُ آخَرَ خَارِجَ الْبَيْتِ** او که چيري غل په خونه ايا کور ا کي سوری جوړ کړي او ور داخل سي او مال را واخلي او له خوني شخه دباندي بل چا ته دا سامان ورکړي **فَلَا قَطْعَ عَلَيْهِمَا** نو پر دوی دواړو قطعُ اليد نسته ايعني په دې صورت کي به د دواړو لاس نه پرېکول کيږي. د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ا لِأَنَّ الْأَوَّلَ لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ الْإِخْرَاجُ ځکه چي د اول غل له طرفه ادباندي ا را ايستل موجود نه سو لِاعْتِرَاضِ يَدٍ مُعْتَبَرَةٍ عَلَى الْمَالِ قَبْلَ خُرُوجِهِ ځکه چي د اول غله تر راوتلو مخکي پر دې مال معتبره قبضه راغله ايعني دويم سړي قبضه پر وکړه. او د اول له طرفه قبضه ثابته نه سوه ا وَالثَّانِي لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ هَتْكُ الْحِرْزِ او د دويم سړي له طرفه د حرز ااو حفاظت ا ماتول موجود نه سو فَلَمْ تَتِمَّ السَّرِقَةُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ لهذا د يوه له طرفه اهم ا غلا پوره نه سوه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞: إِنْ أَخْرَجَ الدَّاخِلُ يَدَهُ وَنَاوَلَهَا الْخَارِجَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شخه روايت دی چي که داخل سوی غل خپل لاس اله خوني شخه ا دباندي را وباسي او دباندي والا ته هغه سامان ورکړي فَالْقَطْعُ عَلَى الدَّاخِلِ نو د داخل لاس به پرېکول کيږي وَإِنْ أَدْخَلَ الْخَارِجُ يَدَهُ فَتَنَاوَلَهَا مِنْ يَدِ الدَّاخِلِ او که د دباندي والا خپل لاس اخوني ته ا دننه کړي او د داخل سوي غله د لاس شخه سامان واخلي فَعَلَيْهِمَا الْقَطْعُ نو پر دوی دواړو قطعُ اليد سته وَهِيَ بِنَاءً عَلَى مَسْأَلَةٍ تَأْتِي بَعْدَ هٰذَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ او دا مسئله پر بلي مسئلې مبني ده چي هغه به انشاء الله وروسته راسي **وَإِنْ أَلْقَاهُ فِي الطَّرِيقِ وَخَرَجَ فَأَخَذَهُ** او که داخل سوی غل سامان دباندي لاري ته را وغورځوي او بيا را ووځي او سامان راواخلي **قُطِعَ** نو د هغه لاس به پرېکول

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۲۳)، [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۵]

کيږي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يُقْطَعُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ الْإِلْقَاءَ غَيْرُ مُوجِبٍ لِلْقَطْعِ ځکه چي لاري ته غورځول د قطع اليد واجبونکي نه دي كَمَا لَوْ خَرَجَ وَلَمْ يَأْخُذْ لکه په هغه صورت کي اچي هم د هغه لاس نه پرېکول کيږي ا (١) کله چي هغه راووځي او ساماان نه را وخلي وَكَذَا الْأَخْذُ مِنَ السِّكَّةِ ② او همدارنګه له کوڅې څخه اخيستل دي ا يعني لکه په هغه صورت کي چي هم د غله لاس نه پرېکول کيږي کله چي په کوڅه کي يو سامان پروت وي او هغه يې را واخلي ا كَمَا لَوْ أَخَذَهُ غَيْرُهُ ③ او لکه يو بل څوک چي سامان واخلي وَلَنَا: أَنَّ الرَّمْيَ حِيلَةٌ يَعْتَادُهَا السُّرَّاقُ زموږ دليل دا دی: چي لاري ته غورځول يوه حيله ده کوم چي د غلو ده ايعني دا د غلو عادت دی چي د يو حيلې لپاره مال له خوني او کور څخه دباندي را غورځوي ا لِتَعَذُّرِ الْخُرُوجِ مَعَ الْمَتَاعِ ځکه چي [ځيني وخت] د سامان سره وتل مشکل وي أَوْ لِيَتَفَرَّغَ لِقِتَالِ صَاحِبِ الدَّارِ أَوْ لِلْفِرَارِ يا [په دې حيله داسي کوي] چي د کور د مالک سره د جنګ کولو لپاره يا د [ژر] تښتېدلو لپاره فارغ سي وَلَمْ تَعْتَرِضْ عَلَيْهِ يَدٌ مُعْتَبَرَةٌ او [بيا] پر هغه سامان باندي يوه معتبره قبضه را نه سي ابلکي د بل چا تر قبضې مخکي هغه (را غورځونکي غل) قبضه پر وکړي ا فَاعْتُبِرَ الْكُلُّ فِعْلًا وَاحِدًا نو دا به يو فعل شمارل کيږي اؤ دا ټوله به د يوه غله کار شمارل کيږي ا فَإِذَا خَرَجَ وَلَمْ يَأْخُذْهُ او که هغه له خوني څخه را ووځي او سامان نه را واخلي فَهُوَ مُضَيِّعٌ لَا سَارِقٌ نو هغه د سامان ضائع کونکی سو. نه غلا کونکی.

**اللغات**: ﴿مَقَاصِير﴾ جمع د مَقْصُورَةٌ ده: عليحده کوټه (خونه). له نورو خونو څخه جلا خونه. جلا حجره. صاحب د معجمُ الفقهاء يې داسي تعريف کړی دی: غُرْفَةٌ خَاصَّةٌ مفصولة عَنِ ... الدَّار وَأَعلَى مِنهَا (يعني هغه ځانګړې خونه کوم چي د کور له نورو خونو څخه جلا او لوړه وي). دلته له مقاصير څخه مراد جلا. جلا خوني او کوټې دي. ﴿أَغَار﴾ د افعال ماضي ده: ژر ... کول (ناڅاپه حمله کول. چاپه وهل). مراد ځني چوړول دي. ﴿نَقَبَ﴾ د نصر ماضي ده: په دېوال کي سوری جوړول (چي پخوا به سارقينو همداسي غلا کول). ﴿نَاوَلَهَا﴾ د مفاعله ماضي ده: ورکول (إعطاء). دا هغه "ورکولو" ته وايي چي لاس ور اوږد کړي او ورېې کړي (مصباح اللغات). ﴿هَتَكَ﴾ د

ضرب مصدر دی: بې حُرمتي کول، پرده څیرل، پایماله کول. (تر پښو لاندي کول). ﴿أَلْقَاهُ﴾ د افعال ماضي ده: غورځول. ﴿سِكَّة﴾ کوڅه (ګلی). ﴿سُرَّاق﴾ جمع د سَارِقٌ ده: غله.

**تشريح**: په دې عبارت کې څلور (۴) مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که یو سړی له یو کور څخه سامان غلا کړي خو له هغه کور څخه سامان نه راوباسي (او په همدې حالت کې ونیول سي). نو د هغه لاس به نه پرېکول کیږي؛ ځکه چې ټوله کور د حرز په حق کي یو دی (او ټوله کور دیوه حرز درجه لري). لهذا تر څو چې سامان په کور کې وي تر هغه وخته پوري به حِرز باقي وي او د غلا نه کولو شبهه به باقي وي. او په شبهې سره حدّ (قطعُ الید) ساقطیږي.

(۲)... او که په یو کور کې ډېري علیحده خوني او کوټې وي. او غل له یوې خوني څخه مال را وباسي او د کور حویلۍ ته یې را ورسوي (او په همدې حالت کې ونیول سي). نو د هغه لاس به پرېکول کیږي. ځکه چې هر خونه د خپلو اوسېدونکي په اعتبار سره مستقل حرز دی. لهذا له یوې خوني څخه مال را ایستونکی به غل او سارق وي که څه هم هغه دا مال له کور څخه نه وباسي.

(۳)... او که په دې خونو کې یوې خوني والا پر بلې خوني چاپه ووهي او مال ځني غلا کړي نو د هغه لاس به پرېکول کیږي؛ ځکه چې هره خونه جلا او مستقل حرز دی.

(۴)... که غل دیو چا په کور یا خونه کې سوری جوړ کړي او بیا کور ته ننوځي او مال را واخلي او له کور څخه دباندي یې د بل غله په قبضه کې ورکړي. نو په دې صورت کې به د یوه غل لاس هم نه پرېکول کیږي (نه د داخل او نه د خارج). ځکه چې د اول (داخل) غله له طرفه إخراج ثابت نه سو یعني داخل سوي غله دا مال له کور څخه نه دي را ایستلی. او د دوېم غله (کوم چې دباندي مال اخیستی دی د هغه) له طرفه د حرز او حفاظت ماتول ثابت نه سو. ځکه چې هغه دباندي مال اخیستی دی او له محرز او محفوظ ځای څخه یې نه دي اخیستی. لهذا دیوه له طرفه هم سرقه پوره او کامله نه سوه. نو ځکه به دیوه لاس هم نه پرېکول کیږي.

په دې سلسله کې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې که داخل سوی غل خپل لاس را وباسي او دباندي والا ته مال ورکړي. نو ورکونکی به حقیقتاً غل وي (ځکه چې هغه له حرز څخه سامان را ویستی) نو ځکه به د هغه لاس پرېکول کیږي. او که دباندي والا غل لاس ور دننه کړي او له داخل غله څخه سامان واخلي نو هغه به هم غل وي او داخل به هم غل وي او د دواړو لاس به پرېکول کیږي. د دې مسئلې نور تفصیل به إنشاء الله وروسته په بله مسئله کې ذکر سي.

او که یو څوک کور ته ننوځي او له کور څخه دباندي سامان را وغورځوي بیا خالي لاس راووځي او سامان را پورته کړي. نو زموږ په نېز به د هغه لاس پرېکول کیږي. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز به د

هغه لاس نه پرېکول کيږي: د امام زفر دليل دا دی چې سرقه د حدّ موجب ده. نه إلقاء او رمی: لهذا څرنګه چې په هغه صورت کې د غله لاس نه پرېکول کيږي ① کله چې له کور څخه سامان را وغورځوي او بيا يې نه را واخلي ② يا کله چې هغه په کوڅه کې اېښول سوی سامان را واخلي. ② يا دا چې کوڅې او لاري ته مال را وغورځوي او بيا يې بل څوک واخلي. نو څرنګه چې په دې ټولو صورتونو کې د غله لاس نه پرېکول کيږي. همداسې به په دې مسئله کې هم د هغه لاس نه پرېکول کيږي.

زموږ د دليل حاصل دا دی چې موږ هم فقط إلقاء د حدّ موجب نه منو بلکې أخذ بعد الإلقاء د حدّ موجب منو. او دا خو د غلو (سارقينو) عادت وي چې هغوی له کور څخه سامان دباندې را غورځوي د دې لپاره چې که د مالک سره د جنګ کولو نوبت راسي نو د هغه سره به په اطمينان او فراغت سره جنګ وکړي يا د دې لپاره چې ژر له کور څخه راووځي او بيا سامان را واخلي او په تېښته بريالی سي. لهذا کله چې هغه د کور څخه را ووځي او سامان راپورته کړي نو "د سامان را غورځول" او "بيا د سامان را پورته کول" به ټوله يو او متحدّ فعل شمارل کيږي (يعني ټوله به ديوه سړي کار شمارل کيږي. ځکه چې تر را غورځولو وروسته بل چا پر سامان قبضه نه وکړه). نو ځکه به د هغه لاس پرېکول کيږي.

فإذا خرج ولم يأخذه إلخ: په دې سره امام زفر ته جواب ورکوي. هغه وفرمايل "چې که غل سامان را وغورځوي او بيا يې نه را واخلي نو د هغه لاس نه پرېکول کيږي. همداسې به په دې مسئله کې هم نه پرېکول کيږي"، نو د هغه جواب ورکوي چې په دې صورت کې خو بالکل پر هغه د غله او سارق تعريف نه صادقيږي. بلکې دا خو د سامان ضائع کول دي نو په دې وجه د هغه نه پرېکول کيږي. لهذا د امام زفر قياس صحيح نه دی.

## له قطعُ اليد څخه د خلاصېدلو ممکنه حيلې

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ حَمَلَهُ عَلٰى حِمَارٍ فَسَاقَهُ وَأَخْرَجَهُ فرمايي: همدارنګه که هغه سامان پر خره باندې بار کړي او خر وشړي [يعني را روان يې کړي] او [له کور څخه] يې وباسي [نو هم به د هغه لاس پرېکول کيږي] لِأَنَّ سَيْرَهُ مُضَافٌ إِلَيْهِ لِسَوْقِهِ ځکه چې د شړلو [او راونولو] په وجه د خره تلل د هغه [سائق] وطرف ته منسوب دي وَإِذَا دَخَلَ الْحِرْزَ جَمَاعَةٌ او که يو څو خلک يو محفوظ ځای ته داخل سي فَتَوَلّٰى بَعْضُهُمُ الْأَخْذَ او په دوی کې يو سړی د مال اخيستلو ذمه واري واخلي [يعني په دوی کې يو سړی مال را واخلي] قُطِعُوا جَمِيعًا نو د ټولو لاسونه به پرېکول کيږي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: هٰذَا

اسْتِحْسَانٌ ناتوانه بنده وايي: چي دا حکم استحساناً دی وَالْقِيَاسُ: أَنْ يُقْطَعَ الْحَامِلُ وَحْدَهُ او قیاس دا دی: چي يوازي د را اخيستونکي لاس پرېکول سي وَهُوَقَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْإِخْرَاجَ وُجِدَ مِنْهُ ځکه چي د مال ارا اخيستل ا او را ايستل د هغه له طرفه ثابت سو فَتَتِمَّ السَّرِقَةُ بِهِ لهذا غلا هم په هغه سره پوره سوه وَلَنَا: أَنَّ الْإِخْرَاجَ مِنَ الْكُلِّ مَعْنًى زموږ دليل دا دی: چي د معنیٰ په اعتبار سره د هر يوه له طرفه را ايستل ثابت دي لِلْمُعَاوَنَةِ د تعاون کولو په وجه ايعني ځکه چي په داسي جماعتي سرقه کي ټوله تعاون سره کوي ا كَمَا فِي السَّرِقَةِ الْكُبْرَى لکه په ډاکه ماري کي اچي کيږي ا وَهَذَا لِأَنَّ الْمُعْتَادَ فِيمَا بَيْنَهُمْ أَنْ يَحْمِلَ الْبَعْضُ الْمَتَاعَ او دا ځکه چي د غلو عادت دا وي چي يو غل سامان پورته کوي وَيَتَشَمَّرَ الْبَاقُونَ لِلدَّفْعِ او پاته غله د مقابلې لپاره تيار اوسي فَلَوِامْتَنَعَ الْقَطْعُ لَأَدَّى إِلَى سَدِّ بَابِ الْحَدِّ نو که چيري اله دوی څخه ا قطعُ اليد منع سي نو دا به د "حدّ" د دروازې بندولو سبب جوړ سي ايعني که چيري پاته غله وبخښل سي او حدّ (قطع اليد) پر جاري نه کړی سي، نو په دې سره به د حدّ دروازه بنده سي ا قَالَ: **وَمَنْ نَقَبَ الْبَيْتَ وَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهِ وَأَخَذَ شَيْئًا** فرمايي: او څوک چي په خونه کي سوری جوړ کړي او خوني ته لاس ور دننه کړي او يو شی را واخلي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي الْإِمْلَاءِ: أَنَّهُ يُقْطَعُ او په إملاء [أمالي] کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي د هغه لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّهُ أَخْرَجَ الْمَالَ مِنَ الْحِرْزِ ځکه چي هغه له محفوظ ځای څخه مال را ويستی وَهُوَ الْمَقْصُودُ او همدا مقصود دي فَلَا يُشْتَرَطُ الدُّخُولُ فِيهِ لهذا خوني ته به د داخلېدلو شرط نه لګول کيږي كَمَا إِذَا أَدْخَلَ يَدَهُ فِي صُنْدُوقِ الصَّيْرَفِيِّ لکه يو څوک چي د صراف صندوخ ته لاس ور دننه کړي فَأَخْرَجَ الْغِطْرِيفِيَّ او غطريفي درهم را وباسي وَلَنَا: أَنَّ هَتْكَ الْحِرْزِ يُشْتَرَطُ فِيهِ الْكَمَالُ زموږ دليل دا دی: چي په پوره توګه د حرز ماتول اُو په حرز ننوتل ا شرط دی تَحَرُّزًا عَنْ شُبْهَةِ الْعَدَمِ وَالْكَمَالُ فِي الدُّخُولِ د دې لپاره چي "د حرز د نشتوالي" او "په کامله توګه د نه داخلوالي" له شبهي څخه ځان وساتل سي ايعني دا دوې شبهي پيدا نه سي. ځکه چي په شبهي سره حد ساقطيږي ا وَقَدْ أَمْكَنَ اعْتِبَارُهُ او د هغه معتبر ګرځول ممکن اهم ا دي وَالدُّخُولُ هُوَ الْمُعْتَادُ او همدا داخلوالی اداخلېدل ا معتاد دي

بِخِلَافِ الصُّنْدُوقِ لِأَنَّ الْمُمْكِنَ فِيهِ إِدْخَالُ الْيَدِ دُونَ الدُّخُولِ په خلاف د صندوخ. ځکه چي په هغه کي افقط ا لاس دننه کول ممکن دي او داخلېدل ممکن نه دي وَبِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ مِنْ حَمْلِ الْبَعْضِ الْمَتَاعَ او په خلاف د يوه سړي د سامان را اخيستلو کوم چي اڅه ا مخکي تېر سو لِأَنَّ ذٰلِكَ هُوَ الْمُعْتَادُ ځکه چي اد جماعت په غلا کي ا همدا طريقه معتاده وي.

**اللغات**: ﴿سَاقَه﴾ د نصر ماضي ده: هشه کول. شړل (په ښڼه سره د حيوان شړل او راونول). ﴿سَيْر﴾ د ضرب مصدر دی: تلل، تګ کول. مزل کول. ﴿تَوَلّٰی﴾ د تفعّل ماضي ده: ذمه واري اخيستل. ﴿حَامِل﴾ د ضرب اسم فاعل دی: پورته کونکی. اخيستونکی. ﴿يَتَشَمَّر﴾ د تفعّل مضارع ده: لستوڼي رانغښتل. مراد ځني تيار او چمتو اوسېدل دي. ﴿دَفْع﴾ د فتح مصدر دی: ليري کول (ايسته کول). مقابله کول. ﴿صَيْرَفِي﴾ صراف. د روپو بدلونکی (وټه کونکی). ﴿غطريفي﴾ د دراهمو يو غوره قسم دی. ﴿هَتْک﴾ د ضرب مصدر دی: بې حُرمتي کول. پايماله کول. (ختمول او ماتول). ﴿تَحَرُّز﴾ د تفعّل مصدر دی: ځان ساتل. پرهېز کول.

**تشريح**: دا مسئلې هم د مخکنۍ مسئلو سره تعلق لري. حاصل يې دا دی که غل يو کور ته داخل سي او له کور څخه سامان پر خره را بار کړي او خر را روان کړي او له کور څخه يې را وباسي. نو سائق او مُخرج به ضامن (يعني د هغه لاس به پرېکول کيږي). ځکه چي د خره تلل او روانېدل د سائق وطرف ته منسوب دي او عموماً ځيني خره اموخته وي او د خپل مالک کور پېژني او سامان هغه ته رسوي.

که يو جماعت (يعني يو څو خلک) د غلا کولو په نيت يو محفوظ ځای ته ولاړ سي. لېکن په دوی کي فقط يو سړی مال غلا کړي. نو هم به استحساناً د ټولو لاسونه پرېکول کيږي. همدا زموږ قول دی. لېکن قياساً به فقط د مال اخيستونکی لاس پرېکول کيږي. همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی: د دې دليل دا دی چي غلا فقط په حامل (اخيستونکي) سره کامله او ثابته سوه. لهذا فقط هغه ته به سزا ورکول کيږي. زموږ دليل دا دی چي د معنیٰ او مقصد په اعتبار سره دغه ټوله خلک په غلا کي شريکان دي او د ټولو له طرفه إخراج ثابت دی لکه څرنګه چي په ډاکه ماری کي همداسي کيږي. او دا ځکه چي د غلو دا عادت وي چي په دوی کي يو او دوه غله سامان باسي او پاته غله د دې لپاره ملا تړلي او چمتو اووسي چي که د کور يا د محلې خلک را خبر سي نو د هغه سره به مقابله کوو. اوس ښکاره

خبره ده چې که فقط پر حامل او اخیستونکي باندې حد جاري کړی سي او پاته غله وبخښل سي نو د حدّ دروازه به بنده سي او د کوچنی غلا پر ځای به غټې غلاوې شروع سي. لهذا د داسې پیښو د مخنیوي لپاره به استحساناً د ټولو لاسونه پرېکول کیږي.

**ومن نقب إلخ:** مسئله دا ده که غل په یو کور کي سوری جوړ کړی او کور ته داخل نه سي بلکي له دباندې ځخه لاس وردننه وکړي او سامان را غلا کړی، نو د هغه لاس به نه پرېکول کیږي. لیکن په أمالي کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله یو روایت دا دی چي د هغه لاس به پرېکول کیږي: ځکه چي هغه له محفوظ ځای یعني له "کور" ځخه مال غلا کړی دی. او همدا خبره د حدّ موجب ده. لهذا بېله وجهي به کور ته داخلېدل او ننوتل نه شرط کیږي. او دا مسئله داسې ده لکه یو سړی چي د صراف صندوخ ته لاس دننه کړي او درهم ځني غلا کړي. نو په هغه صورت کي له دخول ځخه بغیر هم حدّ واجبیږي. همداسې به دلته هم له دخول ځخه بغیر حدّ واجبیږي.

د ظاهر روایت دلیل دا دی چي د حدّ او قطعُ الید د واجبېدلو لپاره په پوره توګه د محفوظ ځای ختمول (هتکُ الحرز) او په کامله توګه په هغه کي غلا ثابتېدل شرط دي. د دې لپاره چي دا شبهه ختمه سي چي هغه له محفوظ ځای ځخه غلا کړې نه ده یا په پوره توګه هلته داخل سوی نه دی او په کور، خونه او داسې نورو کي د دخول اعتبار کول ممکن دي، ځکه چي عموماً غل کور ته داخلیږي او په کور کي دننه غلا کوي. لهذا دلته به هم د قطعُ الید لپاره دخول فی البیت شرط ګرځول کیږي. او څرنګه چي دلته دخول نسته نو ځکه به دا غلا د حدّ موجب نه وي.

او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قیاس صحیح نه دی (یعني دا مسئله د صندوخ پر مسئله باندې قیاسول صحیح نه دي)، ځکه چي په صندوخ کي عموماً او واقعتاً لاس دننه کیږي او په هغه کي ځوک داخلېدای نه سي. لهذا "غیر ممکن فیه الدخول" پر "ممکن فیه الدخول" باندې قیاسول څرنګه صحیح دي!!!. همدارنګه په صندوخ کي د هتکُ الحرز کاملوالی هم شرط نه دی. بلکي دلته د قطعُ الید د واجبېدلو لپاره فقط د هتک ثابتېدل کافي دي.

**وبخلاف ما تقدم من حمل البعض إلخ:** دا جمله د یو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي که یو جماعت (ډېر خلک) یو کور ته دننه سي نو هلته هم د هتکُ الحرز د کاملوالي شرط لګول پکار دي او هلته کاملوالي دا دی چي د جماعت هر سړی سامان را واخلي لهذا فقط د یوه سړي په را اخیستلو سره د جماعت د خلکو لاسونه پرېکول پکار نه دي. نو د دې جواب ورکوي چي د جماعت د غلو عادت همدا وي چي په دوی کي یو غل سامان را اخلي او پاته غله د مقابلې لپاره چمتو اووسي. نو په دې وجه هلته د کمال (کاملوالي) شرط نه لګول کیږي. بلکي د یوه سړي د سامان را اخیستلو په وجه به د ټولو لاسونه پرېکول کیږي.

## له همیانۍ (تېلۍ)، بټوه او جېب څخه د غلا کولو بیان

قَالَ: وَإِنْ طَرَّ صُرَّةً خَارِجَةً مِنَ الْكُمِّ فرمايي: او که غل داسي هميانۍ پرې کړي اغږي کړي اکوم چي د لوستوڼي څخه دباندي وي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرې کول کيږي وَإِنْ أَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْكُمِّ او که هغه لستوڼي ته لاس دننه کړي او هميانۍ پرې کړي يُقْطَعُ نو د هغه لاس به پرې کول کيږي لِأَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ الرِّبَاطَ مِنْ خَارِجٍ ځکه چي په اول صورت کي به اد هميانۍ رښکۍ دباندي وي فَبِالطَّرِّ يَتَحَقَّقُ الْأَخْذُ مِنَ الظَّاهِرِ نو په پرې کولو سره به له ظاهر ادباندي څخه اخيستل ثابت سي فَلَا يُوجَدُ هَتْكُ الْحِرْزِ لهذا د محفوظه ځای ختمول به موجود نه سي وَفِي الثَّانِي الرِّبَاطُ مِنْ دَاخِلٍ او په دويم صورت کي به اد هميانۍ رښکۍ دننه وي فَبِالطَّرِّ يَتَحَقَّقُ الْأَخْذُ مِنَ الْحِرْزِ وَهُوَ الْكُمُّ نو په پرې کولو سره به له حرز څخه يعني دلستوڼي څخه اخيستل ثابت سي وَلَوْ كَانَ مَكَانَ الطَّرِّ حَلُّ الرِّبَاطِ ثُمَّ الْأَخْذُ او که د پرې کولو پر ځای د رښکۍ خلاصول واقع سي. بيا واخيستل سي ايعني که غل د پرې کولو او غوڅي کولو پر ځای د هميانۍ رښکۍ خلاصه کړي بيا له هغې څخه مال را واخلي ا فِي الْوَجْهَيْنِ يَنْعَكِسُ الْجَوَابُ نو په دواړو صورتونو کي به حکم برعکس اچپه ا کيږي لِانْعِكَاسِ الْعِلَّةِ ځکه چي علت برعکس سو وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يُقْطَعُ عَلَى كُلِّ حَالٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي په هر حال کي به د هغه لاس پرې کول کيږي لِأَنَّهُ مُحْرَزٌ إِمَّا بِالْكُمِّ أَوْ بِصَاحِبِهِ ځکه چي هغه مال يا د لستوڼي په وجه يا د لوستوڼي د خاوند امالک ا په وجه محفوظ دی قُلْنَا: الْحِرْزُ هُوَ الْكُمُّ موږ وايو: چي حرز خو افقط ا لستوڼی دی لِأَنَّهُ يَعْتَمِدُهُ ځکه چي مالک پر هغه اعتماد کوي وَإِنَّمَا قَصْدُهُ قَطْعُ الْمَسَافَةِ أَوِ الِاسْتِرَاحَةِ او د هغه قصد خو افقط ا سفر کول دي يا آرام کول دي انه حفاظت کول ا فَأَشْبَهَ الْجَوَالِقَ نو دا د ګونۍ او جوال ا سره مشابه سو وَإِنْ سَرَقَ مِنَ الْقِطَارِ بَعِيرًا أَوْ حِمْلًا او که ايو څوک ا د اوښانو له قطار څخه يو اوښ يا د اوښ بار غلا کړي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرې کول کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُحْرَزٍ مَقْصُودًا ځکه چي دا محرز مقصود نه دی فَيَتَمَكَّنُ شُبْهَةُ الْعَدَمِ نو د إحراز د نشتوالي شبهه پيدا سوه وَهَذَا لِأَنَّ السَّائِقَ وَالْقَائِدَ وَالرَّاكِبَ

يَقْصِدُونَ قَطْعَ الْمَسَافَةِ وَنَقْلَ الْأَمْتِعَةِ دُوْنَ الْحِفْظِ او دا حکم ځکه دی چې اد اوښانوا شړونکی اروانونکی ا او مخته تلونکی ا کشونکی ا او سپرېدونکی د مسافې د پرېکولو او د سامان د نقل کولو اراده کوي. نه د حفاظت کولو حَتّٰى لَوْ كَانَ مَعَ الْأَحْمَالِ مَنْ يَتْبَعُهَا لِلْحِفْظِ تر دې که د بارونو ا او سامانونو اد حفاظت لپاره يو څوک تر شا په پسې وي قَالُوا: يُقْطَعُ نو مشائخ فرمايي: چې ا په دې صورت کې به ا د غله لاس پرېکول کيږي وَإِنْ شَقَّ الْحِمْلَ وَأَخَذَ مِنْهُ او که غل بار ا او غوټه ا څيري کړي او له هغه څخه سامان را واخلي قُطِعَ نو د غله لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّ الْجَوَالِقَ فِي مِثْلِ هٰذَا حِرْزٌ ځکه چې په دې صورت کې ګونۍ د محفوظ ځای حيثيت لري لِأَنَّهُ يُقْصَدُ بِوَضْعِ الْأَمْتِعَةِ فِيهِ صِيَانَتُهَا كَالْكُمِّ ځکه چې په جوال او ګونۍ ا کې د سامان په ايښولو سره د سامان د حفاظت نيت کيږي اچې زما سامان محفوظ سي ا، لکه په لستوڼي کې اچې د هميانۍ په ايښولو سره د هميانۍ د حفاظت نيت کيږي ا فَوُجِدَ الْأَخْذُ مِنَ الْحِرْزِ لهذا ا دلته ا له محفوظ ځای څخه اخيستل ثابت سو فَيُقْطَعُ نو ځکه به د غله لاس پرېکول کيږي.

**اللغات**: ﴿طَرَّ﴾ د نصر ماضي ده: پرېکول، کاټول (غچي کول). ﴿صُرَّة﴾ تېلۍ، خلته. مراد ځنې د پيسو تېلۍ ده چې هغه ته هميانۍ وايي (او په اوس وخت کې بټوه ورته وايي. خو بټوه په جوړ او طرز کې له هميانۍ څخه جلا ده. ځکه چې هميانۍ به د ختلې په څير جوړېده او د هغې خوله به په رښکۍ سره بندېده). ﴿رِبَاط﴾ هغه رښکۍ او رسۍ چې بل شی په تړل کيږي. ځينو د دې معنیٰ په "بخی" سره کړې ده. ځکه چې په بخۍ سره هم د ټوکر يوه حصه د بلې حصې سره تړل کيږي او ګنډل کيږي. ﴿حَلّ﴾ خلاصول (غوټه خلاصول). ﴿جَوَالِق﴾ او جُوَالِق: جوال. ګونۍ. بورۍ (بوجۍ). جمع: جَوَالِيْق. ﴿سَائِق﴾ له شا څخه د حيوان شړونکی. هشه کونکی. ﴿قَائِد﴾ د مخ له طرفه د حيوان کشونکی. ﴿أَمْتِعَة﴾ جمع د مَتَاعٌ ده: سامانونه.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو چا په خپل لستوڼي کې هميانۍ (د پيسو تېلۍ) تړلې وي او هميانۍ د لستوڼي څخه دباندې وي، نو له داسې هميانۍ څخه غلا کول د حد موجب نه دي: ځکه کله چې هميانۍ دباندې وي نو د هغې رښکۍ (او بخۍ) به هم دباندې وي. او د هغې پرېکونکی او اخيستونکی به له دباندې څخه اخيستونکی شمارل کيږي. او له دباندې خوا څخه (د مال) په اخيستلو کې إحراز نسته (ځکه چې د لستوڼي دباندې طرف محرز مکان نه دی). نو په دې وجه دا

صورت د حدّ مُوجب نه دی، ها! که چیري همیانۍ په لستوڼي کي دننه وي او غل لستوڼي ته لاس ور دننه کړي او پیسې ځني را واخلي نو څرنګه چي په دې صورت کي له محرز مکان یعني د لستوڼي څخه پیسې اخیستل سوي دي، نو ځکه به دا "اخیستل" د حدّ مُوجب وي.

**ولوکان مکان الطر إلخ**: دې عبارت په توجه سره ګورئ!، حاصل یې دا دی: ① که همیانۍ په لستوڼي کي دننه وي او د دباندي لخوا (پر لستوڼي) د هغې ربنکۍ غوټه سوی وي (یعني د دباندي لخوا د هغې ربنکۍ ته غوټه ورکول سوې وي او تړل سوې وي)، او غل هغه ربنکۍ خلاصه کړي نو همیانۍ خو په لستوڼي کي دننه ده. بیا غل لستوڼي ته لاس وردننه کړي او پیسې ځني را واخلي، نو څرنګه چي هغه دلته له محرز مقام څخه پیسې را اخیستي دي. نو ځکه به دا "اخیستل" د حدّ موجب وي او د هغه لاس به پرېکول کیږي، ② دویم صورت دا دی چي که همیانۍ د دباندي لخوا پر لستوڼي پرته وي او په لستوڼي کي دننه د هغې ربنکۍ ته غوټه ورکول سوې وي، او غل لستوڼي ته لاس وردننه کړي او ربنکۍ خلاصه کړي او پیسې ځني را واخلي، نو څرنګه چي په دې صورت کي همیانۍ دباندي ده او غله له دباندي همیانۍ څخه پیسې را اخیستي دي. نو هغه ګواکي له محرز مقام څخه پیسې نه دي اخیستي. نو ځکه به دا "اخیستل" د حدّ موجب نه وي او د هغه لاس به نه پرېکول کیږي. (ینعکس الجواب لإنعکاس العلة: د دې جملې مطلب هماغه دی کوم چي موږ اوس پورته بیان کړی).

**وعن أبي يوسف إلخ**: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي په هر حال کي به د هغه لاس پرېکول کیږي، برابره ده همیانۍ د لستوڼي څخه دباندي وي یا په لستوڼي کي دننه وي. ځکه چي لستوڼی هم محرز دی، او مالک هم محرز دی یعني که چیري مال او همیانۍ د لستوڼي څخه دباندي وي نو په دې صورت کي هغه په مالک سره محرز او محفوظ وي. نو ځکه به په هر حال کي د غله لاس پرېکول کیږي.

زموږ له طرفه جواب دا دی چي دلته حرز او أحراز فقط په لستوڼي سره حاصل دی: ځکه چي انسان په لستوڼي کي د همیانۍ په ایښولو سره مطمئن سي او پر لستوڼي اعتماد وکړي. او بذات خود د هغه (انسان) نیت د حفاظت کولو نه وي، بلکي د هغه مقصد خو یا سفر کول وي یا آرام کول وي (او د مال په حفاظت کي هغه پر لستوڼي اعتماد وکړي). لهذا په لستوڼي کي مال او همیانۍ ایښول په

ګونۍ کې د مال ايښودلو سره مشابه شو. يعني څرنګه چې د ګونۍ مال فقط په ګونۍ سره محرز شمارل کيږي همداسې به په لستوڼي کې ايښول سوی مال فقط په لستوڼي سره محرز شمارل کيږي.

وإن سرق من القطار إلخ: مسئله دا ده که د اوښانو قطار روان وي او يو سړی له هغه څخه يو اوښ غلا کړي يا له يوه اوښ څخه بار غلا کړي نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي؛ ځکه چې د قطار په توګه د اوښانو په بېولو سره مقصود د اوښانو حفاظت نه وي. بلکې له تيت پرک کېدلو او له ورکېدلو څخه د اوښانو ساتل مقصود وي. لهذا په دې غلا کې د إحراز د نشتوالي (عدمِ حفاظت) شبهه پيدا سوه. او په شبهې سره حدّ ساقطيږي. ها! که د دې اوښانو تر شا يو محافظ او نګران هم روان وي. نو د هغه په وجه به إحراز ثابتيږي او بيا به د اوښ يا بار غلا کول د حدّ موجب وي.

او که يو څوک پر اوښ تړل سوې غوټه يا ګونۍ څيري کړي او له هغه څخه سامان غلا کړي نو د هغه لاس به پرېکول کيږي؛ ځکه چې په داسې غوټې او ګونۍ سره إحراز ثابتيږي او په هغې کې د حفاظت په نيت سره سامان ايښول کيږي.

## له نا محفوظه ځای څخه د يو چا سامان غلا کول

وَإِنْ سَرَقَ جُوَالِقًا فِيهِ مَتَاعٌ وَصَاحِبُهُ يَحْفَظُهُ أَوْ نَائِمٌ عَلَيْهِ او که [يو څوک] داسې ګونۍ غلا کړي چې په هغې کې سامان موجود وي او د ګونۍ مالک د هغې حفاظت کوي يا پر هغې بيده وي قُطِعَ نو د غله لاس به پرېکول کيږي وَمَعْنَاهُ: إِنْ كَانَ الْجَوَالِقُ فِي مَوْضِعٍ هُوَ لَيْسَ بِحِرْزٍ كَالطَّرِيقِ وَنَحْوِهِ د دې مطلب دا دی: چې ګونۍ په داسې ځای کې وي چې هغه محرز [محفوظ] ځای نه وي. لکه لاره او داسې نور حَتَّى يَكُونَ مُحْرَزًا بِصَاحِبِهِ تر دې چې هغه سامان [ګونۍ] د مالک په ذريعه محرز وګرځي لِكَوْنِهِ مُتَرَصِّدًا لِحِفْظِهِ ځکه چې مالک د هغې د حفاظت لپاره تيار [او چمتو] وي وَهَذَا لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْحِفْظُ الْمُعْتَادُ او دا [حکم] ځکه دی چې معتاد حفاظت کول [او معتاد ساتل] معتبر دي وَالْجُلُوسُ عِنْدَهُ وَالنَّوْمُ عَلَيْهِ يُعَدُّ حِفْظًا عَادَةً او د سامان سره انږدې [کښېنستل يا پر هغه بيدېدل د عرف په اعتبار سره حفاظت [او ساتل] شمارل کيږي وَكَذَا النَّوْمُ بِقُرْبٍ مِنْهُ همدارنګه د سامان سره نږدې بيدېدل [هم] حفاظت دی عَلَى مَا اخْتَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ دا [قول] اختيار کړی وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَصَاحِبُهُ نَائِمٌ عَلَيْهِ أَوْ حَيْثُ يَكُونُ حَافِظًا لَهُ او د جامع صغير په ځيني نسخو کې

اداسي ذکر سوي دي: وصاحبه نائمٌ عليه أو حيث يكون حافظًا له وَهٰذَا يُؤَكِّدُ مَا قَدَّمْنَاهُ مِنَ الْقَوْلِ الْمُخْتَارِ او دا قول زموږ د مخکني مختار کړی سوي قول تائيد کوي.

**اللغات**: ﴿جَوَالِق﴾ او جُوَالِق: جوال، ګونۍ، بوری، جمع: جَوَالِيْق. ﴿مُتَرَصِّد﴾ د تفعّل اسم فاعل دی. تَرَصَّدَ يَتَرَصَّدُ تَرَصُّدًا: په کمين کي کښېنستل، تيار اوسېدل. ﴿يُعَدّ﴾ د نصر مضارع مجهول ده: شمارل، ګڼل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو څوک داسي جوال او ګونۍ غلا کړي چي په هغې کي سامان وي حال دا چي مالک د ګونۍ حفاظت کوي يا پر هغې بيده وي او هغه ګونۍ بذات خود محرز نه وي بلکي په سړک او لاره کي پرته وي لېکن د ګونۍ مالک د هغې حفاظت ته تيار او ملا تړلی وي، نو په دې صورت کي به د غله لاس پرېکول کيږي؛ ځکه چي دا ګونۍ محرز بصاحبه ده. ځکه چي د سامان سره کښېنستل يا پر سامان بيدېدل عرفاً په حفاظت کي داخل دي. لهذا دلته سارق محرز مال غلا کړی دی او دا د حدّ (قطعُ اليد) مُوجب دي.

وذکر في بعض النسخ: فرمايي چي د جامع صغير په ځيني نسخو کي لَه وَصَاحِبُهُ يَحْفُظُهُ أَوْ نَائِمٌ عَلَيْهِ څخه وروسته أَوْ حَيْثُ يَكُوْنُ حَافِظًا لَهُ هم اضافه سوي دي، او دا اضافه موږ ته دا ښيي چي د خوب په حالت کي هم مالک محافظ او ساتونکی (نګران) شمارل کيږي او په دې اضافه سره د هغه قول تائيد هم کيږي کوم چي تر دې مخکي د "وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَكُوْنَ الحَافِظُ مُسْتَيْقِظًا أَوْ نَائِمًا...إلخ" په عبارت سره بيان سو. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْقَطْعِ وَإِثْبَاتِهِ

(دا) فصل د لاس پرېکولو د کيفيت او د هغه د إثبات (په بيان کې) دی

## د لاس پرېکولو اندازه او طريقه

قَالَ: وَيُقْطَعُ يَمِينُ السَّارِقِ مِنَ الزَّنْدِ فرمايي: چي د غله لاس به له مړوند څخه پرېکول کيږي وَيُحْسَمُ او بيا به داغل کيږي ايعني بيا به په اُوريا گرمو تېلو سره د هغه لاس داغل کيږي چي د لاس وينه بنده سي او غل مړ نه سي ا فَالْقَطْعُ لِمَا تَلَوْنَاهُ مِنْ قَبْلُ نو پرېکول د هغه آيت په وجه دي کوم چي موږ مخکي تلاوت کړي ايعني د سارق لاس به د دې آيت په وجه پرېکول کيږي: وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا...(سورة المائدة:۳۸)ا وَالْيَمِينُ بِقِرَاءَةِ* عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ او د راسته لاس پرېکول د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په قرائت سره ثابت دي ا د هغه په قرائت کي د فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا پر ځای فَاقْطَعُوْا أَيْمَانَهُمَا ذکر سوي دي، له دې څخه معلومه سوه چي د غله راسته لاس به پرېکول کيږي ا وَمِنَ الزَّنْدِ لِأَنَّ الِاسْمَ يَتَنَاوَلُ الْيَدَ إِلَى الْإِبِطِ او له مړوند څخه به ځکه پرېکول کيږي چي إسم تر بغل پوري اتوله ا لاس ته شامليږي ايعني د يَد إطلاق تر بغل پوري کيږي ا وَهٰذَا الْمَفْصَلُ أَعْنِي الرُّسْغَ مُتَيَقَّنٌ بِهِ او دا بند يعني مړوند په دې کي يقيني دی ايعني د يَد إطلاق خو د بغل تر اندازې پوري کيږي او مړوند په دې اندازه کي په يقيني توګه داخل او شامل دی ا كَيْفَ وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام: أَمَرَ❶ بِقَطْعِ يَدِ السَّارِقِ مِنَ الزَّنْدِ او څرنګه به ثابت نه وي حال دا چي په صحيح روايت کي اذکر سوي ا دي چي نبي صلى الله عليه وسلم له مړوند څخه د غله د لاس پرېکولو حکم وکړی وَالْحَسْمُ لِقَوْلِهِ عليه السلام❷: فَاقْطَعُوْهُ وَاحْسِمُوْهُ او داغل د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په دې

---

* تخريج: رواه البيهقي، باب السارق يسرق إلا يقطع يده اليمنى من مفصل الكف ثم يحسم بالنار، رقم الحديث:۱۷۲۴۷.

❶ تخريج: رواه دار قطني، رقم الحديث:۳۵۱۳.

❷ تخريج: رواه البيهقي، رقم الحديث:۳۵۱۳.

فرمان سره ثابت دي: چي د هغه لاس پرېکړئ! او هغه وداغئ! وَلِأَنَّهُ لَوْلَمْ يُحْسَمْ يُفْضِي إِلَى التَّلَفِ او ځکه که هغه نه وداغل سي نو دا به د هلاکت ته رسول وکړي ايعني غل به مړ سي ا وَالْحَدُّ زَاجِرٌ لَا مُتْلِفٌ او حدّ منع کونکی او تنبيه ورکونکی ا دی، نه هلاکونکی. ايعني د لاس پرېکولو مقصد دا دی چي غله ته سزا او تنبيه ورکول سي چي هغه د آينده لپاره له داسي کار څخه منع سي. او دا يې مقصد نه دی چي د هغه په ذريعه غل هلاک کړی سي ا.

**اللغات**: ﴿الزَّنْـد﴾ (د نون په سکون سره): مړوند. جمع: زُنُود. ﴿يُحْسَـمُ﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: داغل. داغول. په ګرمه او سپنه سره داغ پر لګول (مطلب دا چي تر پرېکولو وروسته به د سارق لاس په اُور يا ګرمو تېلو سره داغل کيږي چي زياته وينه نه وبهيږي، او غل مړ نه سي. او که له داغلو څخه بغير د ويني د بندوالي لپاره بله نوې طريقه وي، نو د هغه طريقې اختيارول هم صحيح دي. ځکه چي مقصد د ويني بندول دي .أثمار الهدايه). ﴿أَعْنِيْ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد متکلم ماضي صيغه ده. معنی يې ده: زما مطلب دا دی. زما مراد دا دی. ﴿تَلَف﴾ د سمع مصدر دی: هلاکېدل. بربادېدل (مړ کېدل).

**تشريح**: عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د دويم او دريم وار غلا کولو سزا

فَإِنْ سَرَقَ ثَانِيًا که غل دويم وار غلا وکړي قُطِعَتْ رِجْلُهُ الْيُسْرٰى نو د هغه چپه پښه به پرېکول کيږي فَإِنْ سَرَقَ ثَالِثًا او که دريم وار غلا وکړي لَمْ يُقْطَعْ نو ا د هغه چپه لاس ا به نه پرېکول کيږي وَخُلِّدَ فِي السِّجْنِ ابلکي ا د همېشه لپاره به جېل ا بنديخانې ا ته اچول کيږي حَتّٰى يَتُوبَ تر دې چي هغه توبه وکړي وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَيُعَزَّرُ أَيْضًا او هغه ته به سزا هم ورکول کيږي ذَكَرَهُ الْمَشَايِخُ دا مشائخو رَحِمَهُمُ الله ذکر کړي دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِي الثَّالِثَةِ تُقْطَعُ يَدُهُ الْيُسْرٰى او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دريم وار غلا کي به د هغه چپه لاس پرېکول کيږي وَفِي الرَّابِعَةِ تُقْطَعُ رِجْلُهُ الْيُمْنٰى او په څلورم وار غلا کي به د هغه چپه پښه پرېکول کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام [1]: مَنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوهُ فَإِنْ عَادَ فَاقْطَعُوهُ فَإِنْ عَادَ فَاقْطَعُوهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم څوک چي غلا وکړي نو تاسي د هغه لاس پرېکړئ! که بل وار غلا کړي نو بيا يې پرېکړئ! او که بل وار غلا

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، رقم الحديث: ٤٢١.

وکړي نو بيا يې پرېکړئ! وَيُرْوٰى مُفَسَّرًا كَمَا هُوَ مَذْهَبُهٗ او دا حديث په هماغه تفسير سره روايت سوی دی کوم چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دی وَلِأَنَّ الثَّالِثَةَ مِثْلُ الْأُولٰى فِيْ كَوْنِهَا جِنَايَةً بَلْ فَوْقَهَا او ځکه چي دريم وار غلا په جرم کېدلو کي د اولي غلا په څېر ده. بلکي تر هغې لوړه او خطرناکه ده فَتَكُوْنُ أَدْعٰى إِلٰى شَرْعِ الْحَدِّ نو دا به د حدّ مشروع کېدلو لره زيات بلونکي وي وَلَنَا قَوْلُ عَلِيٍّ رضي الله عنه فِيْهِ * إِنِّيْ لَأَسْتَحْيِيْ مِنَ اللهِ تَعَالٰى أَنْ لَا أَدَعَ لَهٗ يَدًا يَأْكُلُ بِهَا وَيَسْتَنْجِيْ بِهَا وَرِجْلًا يَمْشِيْ عَلَيْهَا زموږ دليل په دې سلسله کي د حضرت علي رضي الله عنه دا قول دی: ما ته له الله تعالیٰ څخه حياء او شرم راځي چي زه د غله يو لاس اهم نه پرېږدم چي په هغه سره دئ خوراک وکړي او استنجاء په وکړي او يوه پښه اهم نه پرېږدم چي په هغه سره دئ تګ وکړي وَبِهٰذَا حَاجَّ بَقِيَّةَ الصَّحَابَةِ فَحَجَّهُمْ او پر همدغه قول حضرت علي رضي الله عنه د نورو صحابه وو سره مباحثه او مناظره وکړه او هغه پر دوی غالب سو فَانْعَقَدَ إِجْمَاعًا نو پر همدې قول اجماع منعقده سوه وَلِأَنَّهٗ إِهْلَاكٌ مَعْنًى او ځکه چي دا د معنیٰ په اعتبار سره هلاکول وژل دي لِمَا فِيْهِ مِنْ تَفْوِيْتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي په دې کي د منفعت د جنس فوتول دي وَالْحَدُّ زَاجِرٌ او حدّ زاجر دی وَلِأَنَّهٗ نَادِرُ الْوُجُوْدِ ځکه چي د دې واقع کېدل نادر دي وَالزَّجْرُ فِيْمَا يَغْلِبُ وُقُوْعُهٗ او زجر په هغه شي کي ثابت دی چي د هغه واقع کېدل زيات وي بِخِلَافِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص لِأَنَّهٗ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چي قصاص د بنده حق دی فَيُسْتَوْفٰى مَا أَمْكَنَ جَبْرًا لِحَقِّهٖ لهذا د هغه د حق پوره کولو لپاره به حتی الإمکان قصاص اخيستل کېږي وَالْحَدِيْثُ طَعَنَ فِيْهِ الطَّحَاوِيُّ او د امام شافعي په حديث کي امام طحاوي رَحِمَهُ الله طعن کړی دی أَوْ نَحْمِلُهٗ عَلَى السِّيَاسَةِ يا موږ به هغه پر سياست مدنيه حمل کوو.

**اللغات**: ﴿يُسرىٰ﴾ چپه. ﴿خُلِّدَ﴾ د تفعيل ماضي ده: د همېشه لپاره اوسېدل. د همېشه لپاره اېښوول (تل تر تله په جېل کي اچول). ﴿سِجْن﴾ جېل، بنديخانه. قيدخانه. محبس. ﴿حَاجَّ﴾ د مفاعلې ماضي ده: مباحثه کول. ﴿جَبْرًا﴾ د نقصان تلافي کول. جبران. (حق ور پوره کول).

**تشريح**: صورت د مسئلې واضح دی. فقط دلائلو ته ګورئ!

* تخريج: رواه دار قطني، رقم: ۳۲۱۲.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي نبي ﷺ وفرمايل: که غوک غلا وکړي، نو تاسي پر هغه قطع (حد) جاري کړئ!. او که هغه دويم وار غلا وکړي، نو تاسي بيا پر هغه قطع جاري کړئ!. او که هغه دريم وار بيا غلا وکړي، نو تاسي بيا پر هغه قطع جاري کړي. د دې حديث وضاحت او تفسير د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک او د هغه د قول مطابق دی.

**عقلي دليل**: د امام شافعي عقلي دليل دا دی چي په جنايت او جرم کېدلو کي دريمه غلا د اولي غلا په څير ده، بلکي تر اولي غلا هم زياته خطرناکه ده، ځکه چي تر دې مخکي دوه واره سارق ته سزا ورکول سوې ده، او دريم وار پر غلا إقدام کول د هغه د ډيري بې شرمۍ او د ډېر جهالت (او پايلوچۍ) علامت دی او دا د هغه ضد دی، لهذا د دې وار به هم د هغه لاس پرېکول کيږي.

**زموږ دليل**: د حضرت علي رضي الله عنه دا فرمان دی چي ما ته له الله څخه حياء راځي چي د غله يو لاس هم نه پرېږدم چي په هغه سره غل د خوراک او استنجاء ضرورت پوره کړي او د هغه يوه پښه هم نه پرېږدم چي د هغه په مرسته دئ تګ وکړي، او د حضرت علي او نورو صحابه وو په مينځ کي په دې هکله بحث او مباحثه هم وسوه، او بيا د صحابه وو په مشوره سره دا پرېکړه وسوه چي په دريم وار غلا کولو سره به غل بنديخانې ته اچول کيږي او قطع به نه پر جاري کيږي او پر همدې د صحابه وو اجماع منعقده سوه، او اجماع له شرعي حجتونو څخه يو حجت دی.

**زموږ عقلي دليل**: دا دی چي په دريم او څلورم وار قطع کولو سره به بالکل د سارق د منفعت جنس فوت سي (يعني هغه به د کار او تګ له جنس څخه بې برخي سي)، ځکه چي هغه به بالکل شل وشوې او محتاج وګرځي، او د معنیٰ او مقصد په اعتبار سره به هغه مړ او هلاک وګرځي. حال دا چي د غلا حدّ زاجر دی، مُهلک او مُتلف نه دی. دويمه خبره دا ده چي زجر او حدّ په غالبُ الوجود او کثيرُ الوقوع غلا کي ثابت دی او کثيرُ الوقوع غلا فقط اوله غلا ده. لېکن تر لاس پرېکېدلو وروسته دويم او دريم وار غلا کول شاذ ونادر وي، او د شاذ ونادر سره حکم نه متعلق کيږي. لهذا په دې حواله سره به هم دريمه او څلورمه غلا د حدّ موجب نه وي.

د دې په خلاف د قصاص معامله ده نو قصاص خو حقُّ العبد دی نو ځکه به حتی الإمکان دا حق اخيستل کيږي او که ظلماً يو غوک د بل څلور لاسونه او پښې پرېکړي نو د قاطع دواړه لاسونه او پښې به هم قصاصاً پرېکول کيږي او په دې سلسله کي به هيڅ کوتاهي او درغلي نه کيږي.

**والحديث إلخ**: فرمايي امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم حديث په دليل کي وړاندي کړی دی په هغه کي امام طحاوي، امام نسائي او داسي نورو علماؤ طعن کړی دی، او مطعون حديث د استدلال قابل نه وي، يا د دې حديث جواب دا دی چي د دې حديث حکم (أمر بالقطع) پر سياست مدنيه باندي محمول

دی. ځکه چي په دې حديث کي وروسته ذکر سوي دي چي په پنځم وار غلا کي به غل قتل کيږي او أمر بالقتل يقيناً پر سياستِ مدنيه باندي محمول دی. لهذا د دريم او څلورم وار قطع کولو حکم به هم پر سياست محمول وي.

## د هغه غله حدّ چي لاس يې شل او فلج وي

وَإِذَا كَانَ السَّارِقُ أَشَلَّ الْيَدِ الْيُسْرٰى أَوْ أَقْطَعَ او که چيري د غله چپه لاس شل (فلج) وي يا پرېکړی سوی وي أَوْ مَقْطُوعَ الرِّجْلِ الْيُمْنٰى يا يې راسته پښه پرېکړی سوې وي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ فِيهِ تَفْوِيتَ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ بَطْشًا أَوْ مَشْيًا ځکه چي په دې کي د نيولو يا تللو په اعتبار سره د منفعتِ د جنس فوتېدل دي وَكَذَا إِذَا كَانَتْ رِجْلُهُ الْيُمْنٰى شَلَّاءَ او همدارنګه که د هغه راسته پښه شله وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَكَذَا إِذَا كَانَتْ إِبْهَامُهُ الْيُسْرٰى مَقْطُوعَةً أَوْ شَلَّاءَ او همدارنګه که د هغه چپه بټه ګوته پرېکړی سوې وي يا شله (فلج) وي أَوْ الْإِصْبَعَانِ مِنْهَا سِوَى الْإِبْهَامِ يا له بټي ګوتي څخه بغير د چپه لاس دوې ګوتي پرېکړی سوي يا شلي وي لِأَنَّ قِوَامَ الْبَطْشِ بِالْإِبْهَامِ ځکه چي د نيولو قوت پر بټه ګوته ولاړ (او موقوف) دی فَإِنْ كَانَتْ إِصْبَعٌ وَاحِدَةٌ سِوَى الْإِبْهَامِ مَقْطُوعَةً أَوْ شَلَّاءَ او که له بټي ګوتي څخه بغير يوه ګوته پرېکړی سوې يا شله وي قُطِعَ نو د هغه لاس به پرېکول کيږي لِأَنَّ فَوَاتَ الْوَاحِدَةِ لَا يُوجِبُ خَلَلًا ظَاهِرًا فِي الْبَطْشِ ځکه چي د يوې ګوتي ختمېدل د نيولو په قوت کي ظاهري خلل نه ثابتوي بِخِلَافِ فَوَاتِ الْإِصْبَعَيْنِ په خلاف د دوو ګوتو د ختمېدلو لِأَنَّهُمَا يَتَنَزَّلَانِ مَنْزِلَةَ الْإِبْهَامِ فِي نُقْصَانِ الْبَطْشِ ځکه چي د نيولو د قوت په کمېدلو کي دوې ګوتي د بټي ګوتي قائم مقام کيږي.

**اللغات**: ﴿أَشَلّ﴾ شل. فلج. چي لاس يا پښه بېکاره او بې حسه سي او هيڅ کار نه کوي. ﴿بَطْش﴾ مصدر دی. له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: نيول (په لاس سره يو شی نيول او را اخيستل).
﴿مَشْي﴾ د ضرب مصدر دی: تګ کول (په پښو تلل). ﴿إِصْبَع﴾ او أُصْبُع: ګوته.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی غلا وکړي او بيا هغه ونيول سي. لېکن د هغه چپه لاس پرېکړی سوی وي يا بالکل شل او بېکاره وي. يا د هغه چپه پښه پرېکړی سوې وي يا شله او بېکاره وي. نو په داسي صورت کي به پر هغه د غلا حدّ نه جاري کيږي: ځکه که چيري موږ پر هغه

حدّ جاري کړو نو د هغه د منفعت جنس به بالکل ختم سي او هغه به د مړه په څير وګرځي. او دا د حدّ مقصود او منشاء نه ده.

همدارنګه که د سارق د چپه لاس بټه ګوته پرېکړې سوې يا شله وي يا له بټې ګوتې څخه بغير د سارق د چپه لاس دوې ګوتې مقطوعه يا شلې وي، نو په دې صورت کي به هم پر هغه حدّ نه جاري کيږي. بلکي هغه ته به د قيد او بند سزا ورکول کيږي. ځکه چي د نيولو قوت او منفعت د بټې ګوتي سره متعلق دی او په قطعُ اليد کي د دې منفعت تفويت دی او د منفعت تفويت مقصود نه دی. نو ځکه به په دې صورت کي هم د هغه لاس نه پرېکول کيږي.

ها که چيري د سارق يوه ګوته شله يا مقطوعه وي نو د هغه لاس به پرېکول کيږي. ځکه چي د يوې ګوتي په نشتوالي سره د نيولو په قوت او منفعت کي هيڅ خلل نه راځي او په دې صورت کي د لاس په پرېکولو سره د سارق د منفعت جنس نه فوتيږي.

## په غلطۍ سره د چپه لاس پرېکولو حکم

قَالَ: وَإِذَا قَالَ الْحَاكِمُ لِلْحَدَّادِ: اِقْطَعْ يَمِينَ هٰذَا فِي سَرِقَةٍ سَرَقَهَا فرمايي: که چيري حاکم حدّاد احد جاري کونکي] ته ووايي: چي د دې سړي راسته لاس پرېکړه!. د هغه غلا په بدله کي چي ده کړې ده فَقَطَعَ يَسَارَهُ عَمْدًا أَوْ خَطَأً ليکن حدّاد په قصد يا خطاء سره د هغه چپه لاس پرېکړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر حدّاد هيڅ ضمان واجب نه دی وَقَالَا[*]: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي الْخَطَأِ وَيَضْمَنُ فِي الْعَمْدِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د خطاء په صورت کي پر هغه ضمان نسته [ليکن] د عمد په صورت کي هغه ضامن کيږي وَقَالَ زُفَرُ: يَضْمَنُ فِي الْخَطَأِ أَيْضًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په خطاء کي به هم هغه ضامن کيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی وَالْمُرَادُ بِالْخَطَأِ هُوَ الْخَطَأُ فِي الِاجْتِهَادِ او په خطاء سره اجتهادي غلطي مراد ده وَأَمَّا الْخَطَأُ فِي مَعْرِفَةِ الْيَمِينِ وَالْيَسَارِ لَا يُجْعَلُ عَفْوًا پاته سو د راسته او چپه لاس په پېژندني کي خطاء کول نو هغه به عفو [او عذر] نه ګرځول کيږي وَقِيلَ: يُجْعَلُ عُذْرًا أَيْضًا او ويل سوي دي: چي هغه به هم عذر ګرځول کيږي لَهُ: أَنَّهُ قَطَعَ يَدًا مَعْصُومَةً د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هغه يو معصوم لاس پرېکړی وَالْخَطَأُ فِي حَقِّ الْعِبَادِ غَيْرُ مَوْضُوعٍ او بندګانو په حق کي خطاء ساقطه [او معاف] نه ده فَيَضْمَنُهَا نو

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۲۷). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۹]

ځکه به حدّاد د هغه لاس ضامن وي قُلْنَا: إِنَّهُ أَخْطَأَ فِي اِجْتِهَادِهِ موږ وايو: چي هغه په خپل اجتهاد کي غلطي کړې ده إِذْ لَيْسَ فِي النَّصِّ تَعْيِينُ الْيَمِينِ ځکه چي په نص [آيت] کي د راسته [او چپه لاس] هيڅ تعيين نسته وَالْخَطَأُ فِي الْاِجْتِهَادِ مَوْضُوعٌ او خطاء في الإجتهاد ساقطه [او معاف] ده وَلَهُمَا: أَنَّهُ قَطَعَ طَرَفًا مَعْصُومًا بِغَيْرِ حَقٍّ وَلَا تَأْوِيلٍ او د صاحبينو دليل دا دی: چي هغه په ناحقه او له څه تأويل څخه بغير يو معصوم اندام پرېکړی ايعني هغه په ناحقه يو بې ګناه اندام پرېکړی او دلته هيڅ تأويل هم نه سي کېدای] لِأَنَّهُ تَعَمَّدَ الظُّلْمَ ځکه چي هغه قصداً ظلم وکړی فَلَا يُعْفَى وَإِنْ كَانَ فِي الْمُجْتَهَدَاتِ نو ځکه به هغه نه معافول کيږي. که څه هم دا په اجتهادي معاملاتو کي داخل دي وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او پکار خو دا وه چي پر هغه قصاص واجب سوي وای إِلَّا أَنَّهُ امْتَنَعَ لِلشُّبْهَةِ خو د شبهي په وجه قصاص ممتنع سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ أَتْلَفَ وَأَخْلَفَ مِنْ جِنْسِهِ مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ د امام صاحب دليل دا دی: چي [که څه هم] هغه يو لاس هلاک کړی [ليکن] د هغه د جنس دويم لاس يې پرېښووی. کوم چي له هلاک سوي لاس څخه غوره دی فَلَا يُعَدُّ إِتْلَافًا نو دا به هلاکول [او ضايع کول] نه شمارل کيږي كَمَنْ شَهِدَ عَلَى غَيْرِهِ بِبَيْعِ مَالِهِ بِمِثْلِ قِيمَتِهِ لکه يو څوک چي د بل چا په خلاف د مثلي قيمت په عوض کي د خرڅولو ګواهي ورکړي ثُمَّ رَجَعَ بيا له ګواهي څخه رجوع وکړي وَعَلَى هٰذَا لَوْ قَطَعَهُ غَيْرُ الْحَدَّادِ او پر همدې بناء که له حدّاد څخه بغير بل څوک د غله چپه لاس پرېکړي لَا يَضْمَنُ أَيْضًا نو هغه به هم نه ضامن کيږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَلَوْ أَخْرَجَ السَّارِقُ يَسَارَهُ وَقَالَ: هٰذِهِ يَمِينِي او که غل خپل چپه لاس را وباسي او ووايي: چي دا زما راسته لاس دی لَا يَضْمَنُ بِالْاِتِّفَاقِ نو حدّاد به بالاتفاق نه ضامن کيږي لِأَنَّ قَطَعَهُ بِأَمْرِهِ ځکه چي هغه د غله په حکم سره دا پرېکړی دی ثُمَّ فِي الْعَمْدِ عِنْدَهُ عَلَيْهِ ضَمَانُ الْمَالِ بيا په عمد کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر غله د مال ضمان واجب وي لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ حَدًّا ځکه چي [په قطع اليسار سره] حدّ پوره نه سو وَفِي الْخَطَإِ كَذٰلِكَ عَلَى هٰذِهِ الطَّرِيقَةِ او په خطاء کي به هم پر همدې طريقه [پر هغه ضمان] واجب وي وَعَلَى طَرِيقَةِ الْاِجْتِهَادِ لَا يَضْمَنُ او د اجتهاد پر طريقه به هغه نه ضامن کيږي.

**اللغات**: ﴿حَدَّاد﴾ حدّ جاري كونكى، حدّ لګونكى، جلاد. ﴿أُتْلِفَ﴾ د افعال ماضي ده: هلاكول، بربادول، تلفول، ضايع كول. ﴿أُخْلِفَ﴾ د افعال ماضي ده: شاته پرېښوول، شاته پاته كېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه ديو غله په باره كي حاكم (او قاضي) حداد ته وايي چي ددې غله راسته لاس پرېكړه!. لېكن حدّاد دهغه چپه لاس پرېكړي، برابره ده قصداً يې پرېكړي يا خطاءً، په هر صورت كي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه ضمان نه واجبيږي. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په عمد او خطاء كي فرق سته. هغه دا دى چي خطاءً د چپه لاس په پرېكولو سره به پر حدّاد ضمان نه واجبيږي او د قصداً پرېكولو په صورت كي به پر هغه ضمان واجبيږي. لېكن دامام زفر رَحِمَهُ الله په نېز به د عمد او خطاء په دواړو صورتونو كي پر هغه ضمان واجبيږي. همدا د قياس تقاضا ده. او دلته له خطاء څخه خطاء فى الإجتهاد مراد ده يعني حدّاد به دا فكر كړى وي چي په دې آيت "وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا" كي أَيْدِى مطلق دى نو د راسته يا چپه لاس دواړو پرېكول به جائز وي. او له دې څخه ديمين او يسار په معرفت كي خطاء مراد نه ده. ځكه چي هر سړى يمين او يسار پېژني او هر سړى په دې خبر وي چي دا راسته لاس دى يا چپه لاس دى. لهذا په دې هكله خطاء كونكى به معذور نه شمارل كيږي او نه به معاف كيږي.

**د امام زفر دليل**: دا دى چي د غلا په سزا كي راسته لاس پرېكول كيږي. نو دا د حدّاد غلطي ده چي هغه چپه لاس پرېكړى، او په حقوقُ العباد كي په غلطي كولو سره انسان مأخوذ ګرځي. نو ځكه به پر حدّاد ضمان واجبيږي. لېكن زموږ له طرفه ددې جواب دا دى چي دا د هغه اجتهادي غلطي ده، ځكه چي په قرآني آيت "فَاقْطَعُوْا أَيْدِيَهُمَا" كي ديمين تعيين او تصريح نسته. او اجتهادي غلطي په حقوقُ العباد كي هم معاف ده. لهذا د خطاء په صورت كي به هغه نه ضامن كيږي.

**د صاحبينو دليل**: څه مخكي ذكر سوه چي د صاحبينو په نېز د عمد په صورت كي حدّاد ضامن كيږي: د دوى دليل دا دى چي حدّاد په ناحقه يو معصوم (او بې ګناه) اندام پرېكړى دى (ځكه چي د راسته لاس تر پرېكېدلو مخكي په چپه لاس كي د ګناه جزاء او سزاء نه ثابتيږي). او څرنګه چي دا د عمد معامله ده نو په دې وجه د خطاء تأويل هم كېداى نه سي، او عمداً په ناحقه تو ګه تلفول (إتلاف) د حدّ مُوجب دى كه څه هم عمد په اجتهادي معامله كي وي. نو ځكه به د عمد په صبورت كي خو حدّاد ضامن وي لېكن د خطاء په صورت كي به پر هغه ضمان نه واجبيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دى چي كه څه هم دلته حداد د سارق چپه لاس پرېكړى. لېكن د هغه په عوض كي يې راسته لاس پرېښوى كوم چي د يَسَار له جنس څخه غوره دى. لهذا د حدّاد دغه فعل

به إتلاف نه وي، او كله چي إتلاف نه دی. نو ښکاره خبره ده چي پر حدّاد به ضمان هم نه واجبيږي هغه که يې قصداً دا کار کړی وي يا خطاءً. د دې مثال دا دی چي که مثلاً زيد دا گواهي ورکړي چي عمر پر خالد باندي خپل پُسه په سل درهمه خرڅ کړی او د پُسه قيمت هم سل درهمه وو. او وروسته زيد له خپل گواهۍ څخه رجوع وکړه نو پر زيد ضمان نه واجبيږي. ځکه که څه هم د عمر پُسه ولاړی او فوت سو خو هغه ته د پُسه مثلي قيمت سل درهمه هم حاصل سو. همدارنګه دلته که څه هم د غله چپه لاس فوت سو، خو هغه ته د دې په بدله کي ډېر غوره راسته لاس حاصل سو. نو ځکه به پر حدّاد هيڅ ضمان نه واجبيږي. پاته عبارت واضح دی.

ثم في العمد عنده إلخ: فرمايي چي د خطاء او عمد په دواړو صور تونو کي د غله د فعل سزا پوره نه سوه. نو ځکه به پر غله د مسروق (غلا کړی سوي) شي ضمان واجب وي د دې لپاره چي د هغه سزا پوره سي. لېکن که له حدّاد څخه په قطع کي اجتهادي غلطي سوې وي نو بيا به پر غله هيڅ شی نه واجبيږي، ځکه چي په دې صورت کي د حدّاد قطع "حدّ" واقع سو او د غله سزا پوره سوه.

## د قطعُ اليد لپاره د سامان د مالک دعویٰ کول شرط دي

وَلَا يُقْطَعُ السَّارِقُ إِلَّا أَنْ يَحْضُرَ الْمَسْرُوقُ مِنْهُ فَيُطَالِبُ بِالسَّرِقَةِ او [تر هغه وخت پوري به] د غله لاس نه پرېکول کيږي تر دې چي مسروق منه [مالک] حاضر سي او د غلا کېدلو مطالبه [دعویٰ] وکړي اچي سارق زما شی غلا کړی دی، لهذا زما شي دي واپس راکول سي او د هغه لاس دي پرېکول سي] لِأَنَّ الْخُصُومَةَ شَرْطٌ لِظُهُورِهَا ځکه چي د غلا د ښکاره کېدلو لپاره خصومت [دعویٰ کول] شرط دي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الشَّهَادَةِ وَالْإِقْرَارِ عِنْدَنَا او زموږ په نېز د گواهۍ او اقرار په مينځ کي هيڅ فرق نسته خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِي الْإِقْرَارِ [ليکن] په اقرار کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ عَلَى مَالِ الْغَيْرِ لَا تَظْهَرُ إِلَّا بِخُصُومَةٍ ځکه چي د بل چا پر مال [د هغه] له دعویٰ څخه بغير جنايت نه ښکاره کيږي وَكَذَا إِذَا غَابَ عِنْدَ الْقَطْعِ عِنْدَنَا او همدارنګه به زموږ په نېز [د هغه لاس نه پرېکول کيږي] کله چي مسروق منه د قطع په وخت کي غائب سي لِأَنَّ الِاسْتِيفَاءَ مِنَ الْقَضَاءِ فِي بَابِ الْحُدُودِ ځکه چي د حدّونو په باب کي حدّ په پوره توګه حاصلول [هم] د قضاء يوه حصه ده.

**اللغات**: ﴿مَسْرُوْق مِنْه﴾ هغه سړی چې يو شی ځنې غلا سوی وي، مراد ځني د شي او سامان مالک دی.
﴿خُصُوْمَة﴾ تنازعه، دعوی، د حاکم مخته د يو شي مطالبه کول. ﴿إِسْتِيْفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: په پوره توګه حاصلول، اخيستل، تر لاسه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: د ادې چې تر څو د غلا سوي شي مالک د قاضي دربار ته حاضر نه سي او د سرقې دعوی نه وکړي تر هغه وخت پورې به قاضي پر غله هيڅ کاروايي نه کوي او نه به د قطعُ اليد فيصله کوي؛ ځکه چې د سرقې د ثبوت او ځرګندېدلو لپاره دعوی کول شرط دي، د دې لپاره چې په هغه کي د إباحت او جواز فی الدخول شبهه پاتې نه سي، نو په دې وجه دعوی کول د قطعُ اليد لپاره شرط دي. برابره ده که سرقه په شهادت سره ثابته سوې وي يا د غله په اقرار سره، په هر صورت کي د قطعُ اليد لپاره خصومت او دعوی کول شرط دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په هغه صورت کي دعوی کول شرط نه دي کله چې سرقه په شهادت او ګواهۍ سره ثابته سوې وي، د هغه په نېز فقط د اقرار په صورت کي دعوی کول شرط دي. ځکه چي د بل چا (يعني د مسروق منه) په مال کي د هغه له دعوی څخه بغير جنايت نه ښکاره کيږي.

**وكذا إلخ**: که چيري د مالک (مسروق منه) په خصومت او دعوی سره پر غله باندې د قطعُ اليد فيصله صادره سي او بيا د قطع (لاس پرېکېدلو) په وخت کي مالک غائب سي نو د هغه تر حاضرېدلو پورې به زموږ په نېز د غله لاس نه پرېکول کيږي؛ ځکه چې په حدّ کي د قاضي فيصله (قضاء) هغه وخت پوره کيږي کله چې په پوره توګه حدّ جاري کړی سي، لنډه دا چې حدّ جاري کول هم د قاضي د فيصلې يوه حصه ده. لهذا څرنګه چې د فيصلې په وخت کي د مالک حاضرېدل ضروري دي همداسې د حدّ جاري کېدلو په وخت کي هم د هغه حاضرېدل ضروري دي.

## له مالک څخه بغير د بل چا څخه د مال غلا کېدلو په صورت کي خصومت (دعوی کول) د چا حق دی؟

وَلِلْمُسْتَوْدَعِ وَالْغَاصِبِ وَصَاحِبِ الرِّبٰوا أَنْ يَقْطَعُوا السَّارِقَ مِنْهُمْ او د امانت ساتونکي او د غصب کونکي او د سود والا لپاره دا حق سته چې [په خصومت سره] د هغه سړي لاس پرېکړي چې له دوی څخه يې غلا کړې وي وَلِرَبِّ الْوَدِيعَةِ أَنْ يَقْطَعَهُ أَيْضًا او د امانت مالک لره هم دا حق سته چې د هغه لاس پرېکړي وَكَذَا الْمَغْصُوبُ مِنْهُ او همدارنګه مغصوب منه ته [هم] دا حق سته وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يُقْطَعُ بِخُصُومَةِ الْغَاصِبِ وَالْمُسْتَوْدَعِ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د غاصب او مستودع په خصومت [دعوی] سره به د غله لاس نه پرېکول کيږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْمُسْتَعِيرُ

وَالْمُسْتَأْجِرُ وَالْمُضَارِبُ وَالْمُسْتَبْضِعُ وَالْقَابِضُ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ وَالْمُرْتَهِنُ وَكُلُّ مَنْ لَهُ يَدٌ حَافِظَةٌ سِوَى الْمَالِكِ او پر همدغه اختلاف دی په عاريت [خواست] سره اخيستونكی او په كرايه اخيستونكی او په مضاربت اخيستونكی او د احسان په توګه اخيستونكی او د قيمت ټاكلو په توګه قبضه كونكی او رهن ايښونكی او له مالک څخه بغير هر هغه كس كوم چي د حفاظت په غرض پر يو شي قبضه كړې وي [د دې ټولو كسانو حكم پر همدغه اختلاف مبني دی چي دوی ټولو لره زموږ په نيز د خصومت او دعوىٰ حق سته او د دوی په خصومت او دعوىٰ سره به زموږ په نيز د غله لاس پرېكول كيږي لېكن د امام زفر او امام شافعي په نيز به نه پرېكول كيږي] وَيُقْطَعُ بِخُصُومَةِ الْمَالِكِ فِي السَّرِقَةِ مِنْ هَؤُلَاءِ او له دې كسانو څخه په غلا كېدلو كي به د مالک په خصومت سره [هم] د غله لاس پرېكول كيږي [يعني په دې ټولو صورتونو كي زموږ په نيز مالک لره هم د خصومت او دعوىٰ كولو حق سته او د هغه په خصومت سره به د غله لاس پرېكول كيږي] إِلَّا أَنَّ الرَّاهِنَ إِنَّمَا يُقْطَعُ بِخُصُومَتِهِ حَالَ قِيَامِ الرَّهْنِ بَعْدَ قَضَاءِ الدَّيْنِ لېكن د راهن په خصومت سره به هغه وخت د غله لاس پرېكول كيږي كله چي تر قرض اداء كولو وروسته رهن باقي وي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ فِي الْمُطَالَبَةِ بِالْعَيْنِ بِدُونِهِ ځكه چي د قرض له اداء كولو څخه بغير راهن لره د عين [مرهون] د مطالبې كولو حق نسته وَالشَّافِعِيُّ بَنَاهُ عَلَى أَصْلِهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول د هغه پر [خپل] أصل مبني دی إِذْ لَا خُصُومَةَ لِهَؤُلَاءِ فِي الِاسْتِرْدَادِ عِنْدَهُ ځكه چي د امام شافعي په نيز دغه كسانو لپاره [د غلا سوي] مال په واپس اخيستلو كي د خصومت كولو حق نسته وَزُفَرُ يَقُولُ: وِلَايَةُ الْخُصُومَةِ فِي حَقِّ الِاسْتِرْدَادِ ضَرُورَةُ الْحِفْظِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د واپس اخيستلو په حق كي د خصومت ولايت د حفاظت د ضرورت په وجه دی فَلَا تَظْهَرُ فِي حَقِّ الْقَطْعِ لهذا دا ولايت به د قطعُ اليد په حق كي نه ښكاره كيږي لِأَنَّ فِيهِ تَفْوِيتَ الصِّيَانَةِ ځكه چي په دې كي [د مال] د حفاظت تفويت دی وَلَنَا: أَنَّ السَّرِقَةَ مُوجِبَةٌ لِلْقَطْعِ فِي نَفْسِهَا او زموږ دليل دا دی: چي غلا بذات خود د قطعُ اليد موجب ده وَقَدْ ظَهَرَتْ عِنْدَ الْقَاضِي بِحُجَّةٍ شَرْعِيَّةٍ وَهِيَ شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ عَقِيبَ خُصُومَةٍ مُعْتَبَرَةٍ مُطْلَقًا او د قاضي مخته په شرعي حجت سره دا غلا ثابته سوې ده يعني تر مطلقاً معتبر خصومت وروسته دوو ګواهانو د غلا ګواهي وركړې ده إِذْ لَا اعْتِبَارَ لِحَاجَتِهِمْ إِلَى الِاسْتِرْدَادِ ځكه چي

د دې کسانو د واپس اخيستلو ضرورت لره هيڅ اعتبار نسته ﴿فَيُسْتَوْفَى الْقَطْعُ﴾ نو ځکه به قطع اليد په پوره توګه حاصليږي ﴿وَالْمَقْصُودُ مِنَ الْخُصُومَةِ إِحْيَاءُ حَقِّهِ﴾ او د خصومت مقصد د مالک د حق ژوندي کول دی ﴿وَسُقُوطُ الْعِصْمَةِ ضَرُورَةُ الِاسْتِيفَاءِ﴾ او د مال حفاظت ساقطيدل دا د مال حاصلولو د ضرورت په وجه دی ﴿فَلَمْ يُعْتَبَرْ﴾ نو ځکه به د دې سقوط اعتبار نه کيږي ﴿وَلَا مُعْتَبَرَ بِشُبْهَةٍ مَوْهُومَةِ الِاعْتِرَاضِ﴾ او د هغه [وهمي] شبهې اعتبار به هم نه کيږي چې د هغه د پيښيدلو [پيدا کيدلو] وهم وي ﴿كَمَا إِذَا حَضَرَ الْمَالِكُ وَغَابَ الْمُؤْتَمَنُ﴾ لکه مالک چې حاضر سي او امانت ساتونکی [مستودع] غائب سي ﴿فَإِنَّهُ يُقْطَعُ بِخُصُومَتِهِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ﴾ نو په ظاهر روايت کې به د مالک په خصومت سره د غله لاس پرېکول کيږي ﴿وَإِنْ كَانَتْ شُبْهَةُ الْإِذْنِ فِي دُخُولِ الْحِرْزِ ثَابِتَةً﴾ که څه هم په محفوظه ځای کې د داخليدلو د اجازت ورکولو شبهه ثابته ده ايعني که څه هم دا وهمي شبهه دلته سته چې امانت ساتونکي به په خپله محفوظ ځای ته د داخليدلو اجازه غله ته ورکړې وي!

**اللغات:** ﴿مستودَع﴾ چا ته چې امانت ايښول سوی وي (امانت ساتونکی، پر امانت پام کونکی)، ﴿مغصوب منه﴾ له چا څخه چې شی غصب کړې سي (مالک)، ﴿صاحب الربوٰ﴾ که يو څوک مثلاً لس درهمه د شلو درهمو په عوض کې خرڅ کړې، نو هغه ته صاحبُ الربا وايي، اوس که يو غل له هغه څخه دا شل درهمه غلا کړې، نو زموږ په نيز هغه ته دا حق سته چې د قاضي په دبار کې خصومت او دعویٰ وکړې او په خپل خصومت سره د غله لاس پرېکړې او خپل شل درهمه له غله څخه واپس واخلي. همدارنګه مستودع، مستبضع، مرتهن او داسې نورو ټولو ته زموږ په نيز دا حق سته (تفصيل به يې په تشريح کې ذکر سي)، ﴿مُسْتَعِيْر﴾ هغه کس چې له يو چا څخه په خواست او امانت يو شی وغواړي. ﴿مُسْتَأْجِر﴾ په کرايه اخيستونکی، هغه کس چې له يو چا څخه په کرايه يو شی واخلي. ﴿مُضَارِب﴾ که مال د يوه سړي وي، کار د بل سړي وي او ګټه د دوی په مينځ کې مشترکه وي، نو داسې کاروبار ته مضاربت وايي او کوم سړی چې کار کوي هغه ته مُضارب وايي، نو که له مضارب څخه يو څوک د مضاربت مال غلا کړې. نو زموږ په نيز مضارب خصومت او دعویٰ کولای سي، ﴿مستبضِع﴾ له بضاعة څخه مشتق دی: هغه سړی چې له يو چا څخه د احسان په توګه مال واخلي او پر کاروبار يې ولګوي (يعني د يو چا سره احسان وکړي او د هغه مال پر ګټه واچوي او ګټه يې هغه ته ورکوي)، داسې سړي ته مُسْتَبْضِع وايي. ﴿قابض على سوم الشراء﴾ هغه سړی چې له يو دوکاندار څخه يو شی د قيمت ټاکلو لپاره واخلي (چې زه يې ګورم او بيا يې قيمت درښيم چې په دومره قيمت زه دا شی غواړم)، ﴿مُرْتَهِن﴾ هغه سړی چې د هغه سره د بل چا يو شی په ګروي کې پروت وي، مثلاً

زيد له خالد څخه سل درهمه واخلي او د هغه په بدله كي خالد ته پُسه په ګرو وركړي، نو خالد ته مرتهن وايي، او زيد ته راهن وايي، او پُسه ته رهن وايي، ﴿يَـد﴾ قبضه. ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل، ﴿إسْتِيْفَاء﴾ په پوره توګه حاصلول (حق يا داسي بل شی). ﴿حِرْز﴾ محفوظه ځای.

**تشريح: د عبارت خلاصــه**: په عبارت كي نهه قسمه خلک بيان سوي دي: ① مستودع. ② غاصب. ③ صاحبُ الربا. ④ مستعير. ⑤ مستأجر. ⑥ مضارب. ⑦ مستبضع. ⑧ قابض على سوم الشراء. ⑨ مرتهن.

كه يو څوک له دغه نهو كسانو څخه د دوی شی غلا كړي (مثلاً له مستودع څخه د امانت مال غلا كړي، يا له غاصب څخه مغصوب مال غلا كړي، يا له صاحبُ الربا څخه د سود مال غلا كړي، يا له مستعير څخه د عاريت مال او شی غلا كړي او داسي نور)، نو زموږ په نېز دغه ټولو كسانو ته دا حق سته چي د قاضي په دربار كي د غلا دعوی او خصومت وكړي او قاضي د دوی په خصومت سره د غله لاس پرېكړي، او زموږ په نېز د دې شيانو مالک ته هم د خصومت كولو او په خپل خصومت سره د سارق د لاس پرېكولو حق سته، لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فقط مالک ته د خصومت كولو او په خپل خصومت سره د سارق لاس پرېكولو حق سته، د هغه په نېز دغه نهو كسانو د دې حق نسته.
امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دغه نهو كسانو ته فقط د مال د واپس اخيستلو د خصومت حق سته، په خپل خصومت سره د لاس پرېكولو حق هغو ته نسته (چي قاضي د دوی په خصومت سره د سارق لاس پرېكړي).

لېكن كه له مرتهن څخه يو څوک مرهون شی غلا كړي، نو راهن (مالک) هغه وخت خصومت كولای سي كله چي مرتهن د راهن قرض اداء كړی وي او تر اوسه د رهن معامله باقي وي، ځكه چي تر قرض اداء كولو مخكي راهن د مرهون شي مطالبه نه سي كولای، نو ځكه به د قاضي مخته د هغه شي د واپس اخيستلو مطالبه هم نه سي كولای.

**والشافعي بناه إلخ**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله أصل او قاعده دا ده چي دغه نهه خلک كوم چي د مال مالكان نه دي، دوی ته دا حق نسته چي د قاضي په دربار كي د غلا سوي مال د واپس غوښتلو او اخيستلو خصومت وكړي، ځكه چي دوی د مال مالكان نه دي.

**وزفر يقول إلخ**: امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي دغه نهه خلک خو د مال حفاظت كوي. نو په دې وجه دوی ته د مال واپس اخيستلو لپاره د خصومت كولو حق سته، لېكن دوی ته دا حق نسته چي په خصومت سره د غله لاس پرېكړي، يعني د امام زفر په نېز به قاضي د دوی په خصومت سره د غله لاس

نه پرېکوي. ځکه کېدای سي چي هغه مال د غله د لاس څخه وتلی وي نو که چيري د غله لاس پرېکړی سي. نو هغه مال به د غه کسانو ته واپس حاصل نه سي. نو ځکه به د دوی په خصومت سره د غله لاس نه پرېکول کيږي. او نه به دوی ته د داسي خصومت کولو حق ورکول کيږي. (تفويت الصيانة: يعني په محفوظه توګه د مال واپس کول به فوت سي)

**ولنا إلخ:** زموږ د دليل حاصل دا دی چي غلا کول په خپله د لاس پرېکېدلو مُوجب دي او څرنګه چي د قاضي مخته په شرعي حجت سره غلا ثابته سوې ده او د دې کسانو له طرفه د حدّ جاري کولو دعویٰ هم سوې ده. نو ځکه به د دې کسانو پر دعویٰ او خصومت باندي د غله لاس پرېکول کيږي. او بل دا چي د دوو ګواهانو په ذريعه د غلا ثابتېدل په خپله د لاس پرېکولو موجب او سبب دی (که څه هم د غه خلک د لاس پرېکولو خصومت نه وکړي)، نو ځکه به د هغه لاس پرېکول کيږي

**والمقصود من الخصومة إلخ:** په دې سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي چي د دغه نهو کسانو له خصومت څخه مقصود د لاس پرېکول نه دي. بلکي د مالک مال واپس اخيستل دي او د مالک حق ژوندی کول دي. نو اوس د مال واپس اخيستلو په ضمن کي خامخا غلا ثابتيږي. له دې څخه چاره نسته، او غلا ثابتېدل په خپله د لاس پرېکولو موجب دي.

**وسقوط العصمة إلخ:** په دې سره امام زفر ته جواب ورکوي هغه وفرمايل چي که د دې نهو خلکو په خصومت سره د غله لاس پرېکول سي نو د مال حفاظت به ختم سي او دوی ته به هغه مال واپس حاصل نه سي. د جواب حاصل دا دی چي د دې نهو خلکو مقصد د حفاظت او صيانت ختمول نه دي، بلکي مال واپس واخيستل دي، اوس که د دې په ضمن کي حفاظت ختم او ساقط سي نو هغه لره به هيڅ اعتبار نه وي.

**ولا معتبر بشبهة إلخ:** همدارنګه داسي شبهې لره به هم هيڅ اعتبار نه وي چي هغه موهومُ الوجود وي (يعني وهمي شبهې ته به هم اعتبار نه ورکول کيږي)، مثلاً امانت ساتونکي په يو محفوظ ځای کي امانت پټ کړی وي او له هغه ځای څخه يو شوک امانت غلا کړي او بيا امانت ساتونکی غائب سي. او أصل مالک راسي، او د قاضي په دربار کي خصومت او دعویٰ وکړي. نو د هغه په خصومت سره به هم د غله لاس پرېکول کيږي، حالانکي دلته دا شبهه سته چي امانت ساتونکي به په خپله غله ته د داخلېدلو اجازه کړې وي چي هغه محفوظ ځای (د امانت ايښولو ځای) ته داخل سي. لېکن د دې وهم به هيڅ اعتبار نه کيږي او د مالک په خصومت سره به د غله لاس پرېکول کيږي.

## له غله څخه د مال غلا کېدلو حکم

وَإِنْ قُطِعَ سَارِقٌ بِسَرِقَةٍ که چيري د غلا په وجه ديو غله لاس پرېکړی سي فَسُرِقَتْ مِنْهُ بيا له هغه
څخه مسروق مال غلا سي [يعني دويم غل يې څني غلا کړي] لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَا لِرَبِّ السَّرِقَةِ أَنْ يَقْطَعَ السَّارِقَ
الثَّانِيَ نو اول غل او أصل مالک ته دا حق نسته چي د دويم غله لاس [د خصومت کولو په ذريعه په قاضي
سره] پرېکړي لِأَنَّ الْمَالَ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ فِي حَقِّ السَّارِقِ ځکه چي د اول غله په حق کي مال متقوم نه دی
حَتَّى لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الضَّمَانُ بِالْهَلَاكِ تر دې چي د هلاکت په وجه پر هغه ضمان نه واجبيږي فَلَمْ
تَنْعَقِدْ مُوجِبَةً فِي نَفْسِهَا لهذا دا سرقه [غلا] په بذاتِ خود د قطعُ اليد مُوجب نه وي وَلِلْأَوَّلِ وِلَايَةُ
الْخُصُومَةِ فِي الِاسْتِرْدَادِ فِي رِوَايَةٍ او په اول روايت کي د اول غله لپاره د واپس اخيستلو په هکله د
خصومت کولو ولايت حاصل دی لِحَاجَتِهِ ځکه چي هغه استرداد [واپس اخيستلو] ته محتاج
دی إِذِ الرَّدُّ وَاجِبٌ عَلَيْهِ ځکه چي پر هغه [د مال] واپس کول واجب دي وَلَوْ سَرَقَ الثَّانِي قَبْلَ أَنْ يُقْطَعَ
الْأَوَّلُ أَوْ بَعْدَ مَا دُرِئَ الْحَدُّ بِشُبْهَةٍ او که چيري د اول غله تر لاس پرېکېدلو مخکي يا په يو شبهه
سره د حدّ تر ختمېدلو وروسته دويم غل غلا وکړي يُقْطَعُ بِخُصُومَةِ الْأَوَّلِ نو د اول غله په خصومت
کولو سره به د دويم غله لاس پرېکول کيږي لِأَنَّ سُقُوطَ التَّقَوُّمِ ضَرُورَةُ الْقَطْعِ ځکه چي د مسروق مال
د تقوّم ساقطېدل د قطع د ضرورت په وجه وو وَلَمْ يُوجَدْ حالانکي [دلته] قطع موجوده نه سوه فَصَارَ
كَالْغَاصِبِ نو هغه د غصب کونکي په شير سو وَمَنْ سَرَقَ سَرِقَةً او څوک چي يو غلا وکړي فَرَدَّهَا
عَلَى الْمَالِكِ قَبْلَ الِارْتِفَاعِ إِلَى الْحَاكِمِ خو حاکم [او قاضي] ته د معاملې تر پېش کېدلو مخکي هغه
مالک ته مسروق مال واپس کړی لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ
يُقْطَعُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي د هغه لاس به پرېکول کيږي
اِعْتِبَارًا بِمَا إِذَا رَدَّهُ بَعْدَ الْمُرَافَعَةِ په هغه صورت باندي په قياس کولو سره کله چي [قاضي ته] د
معاملې تر پېش کېدلو وروسته هغه مسروق مال واپس کړي وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ الْخُصُومَةَ شَرْطٌ لِظُهُورِ
السَّرِقَةِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چي د غلا د ښکاره کېدلو [او څرګندېدلو] لپاره خصومت

ادعوىٰ كول ا شرط دي لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ إِنَّمَا جُعِلَتْ حُجَّةً ضَرُورَةَ قَطْعِ الْمُنَازَعَةِ ځکه چې د تنازع ختمولو د ضرورت په وجه ګواهي حجّت ګرځول سوې ده وَقَدِ انْقَطَعَتِ الْخُصُومَةُ او خصومت منقطع سو بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْمُرَافَعَةِ په خلاف تر مرافعه وروسته اد واپس كولو لِانْتِهَاءِ الْخُصُومَةِ لِحُصُولِ مَقْصُودِهَا ځکه چې اتر مرافعه وروسته اد خصومت د مقصود د حاصلېدلو په وجه خصومت خپل انتهاء ته ورسېدی فَتَبْقَى تَقْدِيرًا لهذا تقديراً به هغه به باقي پاته وي.

**اللغات**: ﴿مُوْجِبَة﴾ د افعال مؤنث اسم فاعل دی: واجبونکی، ثابتونکی. ﴿اِرْتِفَاع﴾ د افتعال مصدر دی: د حاکم مختـه مسئله وړل (مسئله پېشول)، معامله پېشول، مقدمه درجول، د فیصلې لپاره حاضرول، د مُرَافعَةٌ هم دغه معناوي دي، ﴿مُنَازَعَة﴾ جګړه، جنجال، کړکېچ، دعوىٰ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زید غلا وکړي او د هغه لاس پرېکړی سي، بیا له زید څخه خالد هغه غلا کړی سوی مال (مسروق مال) غلا کړي، نو نه اول سارق (زید) ته دا حق سته چې د دویم سارق (خالد) د لاس پرېکولو لپاره د قاضي په دربار کې خصومت وکړي او نه صاحبُ المال (مالک) ته دا حق سته، ځکه چې د قطعُ الید په وجه مسروق مال د اول سارق په حق کې متقوم پاته نه سو. همدا وجه ده که د اول سارق سره هغه مال هلاک سي نو پر هغه ضمان نه واجبېږي. لهذا کله چې هغه مال متقوّم پاته نه سو نو د هغه مال غلا کول به د حدّ مُوجِب هم نه وي، ځکه چې فقط د متقوّم مال غلا کول د حدّ مُوجب دي. خو یو روایت دا دی چې له دویم سارق څخه د هغه مال د واپس اخیستلو لپارهٔ اول سارق ته د خصومت حق حاصل دی. ځکه چې اول سارق دې ته محتاج او مجبوره دی چې هغه مال صاحبُ المال (مالک) ته واپس کړي.

ولوسرق الثاني إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د اول سارق (زید) لاس قطع نه کړی سو یا د یو شبهې په وجه له هغه څخه حدّ ساقط سو، او په دې دوران کې دویم غل هغه مال له ده څخه غلا کړی. نو اوس به د ده (اول سارق) په خصومت سره د دویم سارق لاس پرېکول کیږي: ځکه چې دا مال د اول سارق د لاس د پرېکېدلو (قطعُ الید) په وجه غیر متقوم وو. لېکن څرنګه چې دلته د اول سارق لاس پرېکړی سوی نه دی نو په دې وجه اوس اول سارق غاصب سو او هغه مال متقوم پاته سو. او د متقوم مال غلا کول د حدّ مُوجب دي. نو ځکه به دلته د مال په غلا کولو سره د دویم سارق لاس پرېکول کیږي.

ومن سرق سرقة إلخ: كه زيد مثلاً د خالد پَيسه غلا كړي. بيا مخكې تر دې "چې خالد دا معامله د قاضي مخته پيش كړي او مقدمه درج كړي" زيد هغه پَيسه خالد ته واپس كړي. نو په ظاهر روايت كي به د زيد لاس نه پرېكول كيږي، لېكن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په يوه روايت كي به د هغه لاس پرېكول كيږي، لكه په هغه صورت كي چې پرېكول كيږي كله چې خالد د قاضي مخته د غلا معامله او قصه پيش كړي (يعني مرافعه وكړي) او تر دې وروسته زيد هغه ته پَيسه واپس كړي (نو څرنګه چې په دې صورت كي د هغه لاس پرېكول كيږي)، همداسي به د قاضي مخته د معاملې تر پېشولو مخكې هم د هغه لاس پرېكول كيږي، ځكه چې قطعُ اليد د الله تعالىٰ حق دى او په دې كي د قبل المرافعة او بعد المرافعه حكم مساوي دى.

د ظاهر روايت دليل دا دى چې د سرقې د ظهور او څرګندېدلو لپاره د مسروق منهٗ خصومت (او دعوىٰ) كول شرط دي: ځكه چې ګواهي فقط د جګړې او خصومت د ليري كولو لپاره حجت ګرځول سوې ده. لېكن دلته مسروق منهٗ ته د مال په واپس كېدلو سره خصومت ختم سو. او د خصومت د ختمېدلو په وجه د سرقې ظهور هم ختم سو، لهذا د قطعُ اليد د جواز لاره بنده سوه.

او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قياس صحيح نه دى (يعني دا مسئله پر مابعد المرافعه باندي قياسول صحيح نه دي). ځكه چې تر مرافعة وروسته د خصومت مقصود يعني "مال مالک ته واپس كېدل" په خپله حاصليږي او شى خپل انتهاء ته تر رسېدلو وروسته مضبوطيږي. نو ګواكي په بعد المرافعة والا صورت كي تقديراً خصومت باقي پاتيږي. او كله چې خصومت باقي پاتيږي نو د سرقې ظهور به كيږي او د هغه په وجه به قطعُ اليد هم لازميږي.

## تر غلا كولو وروسته او تر حدّ جاري كېدلو مخكې د سارق په ملكيت كي د مسروق مال راتللو حكم

وَإِذَا قُضِيَ عَلَى رَجُلٍ بِالْقَطْعِ فِي سَرِقَةٍ او كله چې د يو غلا په وجه پر يو سړي باندي د قطعُ اليد فيصله وسي فَوُهِبَتْ لَهُ بيا مسروق اغلا كړى سوى ا مال غله ته هبه كړى سي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېكول كيږي مَعْنَاهُ: إِذَا سُلِّمَتْ إِلَيْهِ د هبه كېدلو مطلب دا دى: چې هغه مال غله ته وسپارل سي وَكَذٰلِكَ إِذَا بَاعَهَا الْمَالِكُ إِيَّاهُ او همدارنګه كله چې مالک مسروق مال پر هغه غله خرڅ كړي انو هم به د هغه لاس نه پرېكول كيږي ا وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يُقْطَعُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د

هغه لاس به پرېكول كيږي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ يُوسُفَ همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دي لِأَنَّ السَّرِقَةَ قَدْ تَمَّتْ انْعِقَادًا وَظُهُوْرًا ځكه چي د منعقد كېدلو او ښكاره كېدلو په اعتبار سره غلا پوره سوه وَبِهٰذَا الْعَارِضِ لَمْ يَتَبَيَّنْ قِيَامُ الْمِلْكِ وَقْتَ السَّرِقَةِ او د بيع او هبې په عارض سره د غلا په وخت كي د ملكيت موجودېدل ښكاره نه سو فَلَا شُبْهَةَ نو ځكه هيڅ شبهه نسته وَلَنَا: أَنَّ الْإِمْضَاءَ مِنَ الْقَضَاءِ فِيْ هٰذَا الْبَابِ زموږ دليل دا دی: چي د حدّ په باب كي د حدّ جاري كول هم د قضاء يوه حصه ده لِوُقُوعِ الْاسْتِغْنَاءِ عَنْهُ بِالْاسْتِيفَاءِ ځكه چي له قضاء څخه استغناء [فقط] د حدّ تر حاصلولو [جاري كولو] وروسته حاصليږي إِذِ الْقَضَاءُ لِلْإِظْهَارِ ځكه چي قضاء [فقط د غلا] د ښكاره كولو لپاره وي وَالْقَطْعُ حَقُّ اللهِ تَعَالىٰ او قطع [د لاس پرېكول] د الله تعالیٰ حق دی وَهُوَ ظَاهِرٌ عِنْدَهُ او دا قطع د الله په نېز ښكاره ده وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ يُشْتَرَطُ قِيَامُ الْخُصُومَةِ عِنْدَ الْاسْتِيفَاءِ او كله چي قصه داسي ده نو د حدّ حاصلولو [قطعُ اليد] په وخت كي د خصومت [او د دعویٰ] موجودېدل شرط دي وَصَارَ كَمَا إِذَا مَلَكَهَا مِنْهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ او دا داسي سو لكه تر قضاء [فيصلې] مخكي چي غل د مالك له طرفه د مال مالك جوړ سي قَالَ: وَكَذَا إِذَا نَقَصَتْ قِيمَتُهَا مِنَ النِّصَابِ يَعْنِي قَبْلَ الْاسْتِيفَاءِ بَعْدَ الْقَضَاءِ فرمايي: همدارنګه كه [د قاضي] تر قضاء وروسته او تر استيفاء [قطعُ اليد] مخكي د مسروق مال قيمت د سرقې له نصاب څخه كم سي انو هم به د غله لاس نه پرېكول كيږي] وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ يُقْطَعُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي د هغه لاس به پرېكول كيږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی اِعْتِبَارًا بِالنُّقْصَانِ فِي الْعَيْنِ په أصل مال كي پر كمي راتلو باندي په قياس كولو سره وَلَنَا: أَنَّ كَمَالَ النِّصَابِ لَمَّا كَانَ شَرْطًا زموږ دليل دا دی: چي كله د قطع لپاره د نصاب پوره والی شرط دي يُشْتَرَطُ قِيَامُهُ عِنْدَ الْإِمْضَاءِ نو د حدّ جاري كولو په وخت كي به هم د نصاب پوره والی شرط وي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړی بِخِلَافِ النُّقْصَانِ فِي الْعَيْنِ په خلاف په اصل مال كي د كمي راتللو لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځكه چي هغه پر غله باندي مضمون دی ايعني ځكه چي د هغه ضمان پر واجب دی او هغه د غله پر ذمه

دَين دی ا فَكَمُلَ النِّصَابُ عَيْنًا وَدَيْنًا لهذا د عَين اأصل مال ا او دَين په اعتبار كولو سره به نصاب پوره كيږي كَمَا إِذَا اسْتُهْلِكَ كُلُّهُ لكه په هغه صورت كي كله چي ټوله مال هلاک كړی سي أَمَّا نُقْصَانُ السِّعْرِ فَغَيْرُ مَضْمُونٍ او كوم چي د نرخ اقيمت ا كمېدل نو هغه نه مضمون كيږي فَافْتَرَقَا لهذا دواړه سره جلا سول ايعني په أصل مال كمېدلو او په نرخ كمېدلو كي فرق راغلی ا.

**اللغات:** ﴿قَضٰى﴾ د ضرب ماضي ده: فيصله كول. ﴿سَرِقَةٌ﴾ غلا. غلا كول. ﴿إِمْضَاءٌ﴾ د افعال مصدر دی: جاري كول. نافذول. ﴿إِسْتِيْفَاءٌ﴾ د استفعال مصدر دی: حاصلول. اخيستل. (مراد ځني د حدّ حاصلول دي يعني د حدّ اقطعُ اليد ا جاري كول). ﴿خُصُوْمَةٌ﴾ دعوىٰ. تنازع. ﴿إِسْتَهْلَكَ﴾ د استفعال ماضي ده: هلاكول. ختمول. ﴿سِعْرٌ﴾ نرخ. ربټ. قيمت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو سړی غلا وكړي او قاضي د هغه په خلاف د قطعُ اليد فيصله وكړي لېكن تر قطعُ اليد مخكي مالک هغه مسروق مال غله ته هبه كړي او غله ته يې وسپاري. يا مالک هغه مال پر غله باندي خرڅ كړي. نو په دې صورت كي به زموږ په نېز د غله لاس نه پرېكول كيږي. لېكن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز به د هغه لاس پرېكول كيږي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو روايت دی.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چي دلته غله په پټه توګه له محرز مقام څخه محرز مال غلا كړی دی نو په دې وجه سرقه پوره سوه او منعقده سوه. او څرنګه چي په دې سرقه كي قاضي د قطعُ اليد فيصله هم كړې ده نو په دې وجه دا سرقه هم ښكاره هم سو. او د هبې او بيع معامله د قاضي تر قضاء (فيصلې) وروسته پېښه سوه نو په دې وجه د سرقې په وخت كي دا شبهه هم نښته چي غل به د دې مالک وي. لهذا په هر اعتبار سره سرقه پوره او كامله ده او د حدّ مُوجِب ده.

**زموږ دليل:** دا دی چي د حدّ په باب كي د حدّ جاري كول هم د قاضي د قضاء يوه حصه ده. ځكه چي فقط تر حدّ جاري كېدلو وروسته د قاضي له قضاء څخه استغناء حاصليږي (په بله وينا دا چي فقط تر استيفاء او قطعُ اليد جاري كولو وروسته د قاضي فيصله پوره كيږي). لهذا څرنګه چي د قطع اليد لپاره د قضاء په وخت كي د خصومت موجودېدل شرط دي همداسي به د قطع او استيفاء په وخت كي هم د خصومت باقي پاتېدل او موجودېدل شرط وي. حالانكي د مالک د هبه كولو يا خرڅولو په وجه د قطع او استيفاء په وخت كي خصومت معدوم سو. نو دا داسي سو لكه د قاضي تر قضاء وروسته چي مالک مسروق مال غله ته هبه كړی وي يا پر هغه يې خرڅ كړی وي. او تر قضاء

مخکي د بيع يا هبې په وجه قطعُ اليد نه واجبيږي لهذا تر قضاء وروسته به هم د بيع يا هبې په وجه قطعُ اليد نه واجبيږي (يعني د غله لاس به نه پرېکول کيږي).

**وقال وكذالك إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که د قاضي تر قضاء وروسته او تر قطعُ اليد مخکي د مسروق مال نرخ (ربټ) ولوېږي او د هغه قيمت د سرقې تر نصاب يعني تر لسو درهمو کم سي. نو هم به زموږ په نيز د غله لاس نه پرېکول کيږي. لېکن امام محمد، امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي څرنګه د لسو درهمو په غلا کي د يوه درهم د ورکېدلو په صورت کي هم قطعُ اليد واجبيږي همداسي به له نصاب څخه د مسروق مال د قيمت کمېدلو په صورت کي هم قطعُ اليد واجبيږي، ګواکي دغه حضراتو د نرخ کمېدل د عين (أصل مال) پر کمېدلو قياس کړي دي.

زموږ دليل دا دی چي کله د قضاء په وخت کي د قطعُ اليد لپاره د مسروق مال د نصاب په اندازه کېدل شرط دی نو دا شرط به له اول څخه تر آخره پوري موجود وي يعني د قضاء له وخت څخه به د قطعُ اليد تر وخت پوري د دې شرط باقي پاتېدل ضروري وي: ځکه چي دحدّ په باب کي إمضاء يعني حدّ (قطعُ اليد) جار کول هم د قضاء يوه حصه ده. لهذا د إمضاء په وخت کي مسروق مال د سرقې د نصاب په اندازه کېدل ضروري دي. حال دا چي دلته مسروق مال د سرقې نصاب په اندازه نه دی. نو ځکه به دلته پر غله قطعُ اليد نه جاري کيږي.

د دې په خلاف که په عَين (أصل مال) کي کمي راسي نو هغه کمي به د غله پر ذمه دَين او قرض وي، او د عَين او دَين په يو ځای کولو سره به د سرقې نصاب پوره وګرځي. لکه له يو غله څخه چي ټوله مال هلاک سي نو هغه ټوله مال به د هغه پر ذمه دَين وي او د سرقې نصاب به باقي شمارل کيږي. لهذا د عين کمي د نرخ او قيمت پر کمي باندي قياسول صحيح نه دي. ځکه چي د نرخ کمي د غله پر ذمه نه مضمون کيږي او د هغه پر ذمه دَين نه ګرځي.

## که غل د مسروق مال د مالک کېدلو دعویٰ وکړي (حکم او اختلاف)

وَإِذَا ادَّعَى السَّارِقُ أَنَّ الْعَيْنَ الْمَسْرُوقَةَ مِلْكُهُ او که غل دا دعویٰ وکړي چي مسروق مال د هغه مملوک دی ايعني دا دعویٰ وکړي چي دا زما په ملکيت کي دی| سَقَطَ الْقَطْعُ عَنْهُ نو له هغه څخه قطعُ اليد ساقطيږي وَإِنْ لَمْ يُقِمْ بَيِّنَةً که څه هم هغه بيّنه |او ګواهان| پېش نه کړي مَعْنَاهُ: بَعْدَمَا شَهِدَ الشَّاهِدَانِ بِالسَّرِقَةِ د دې مطلب دا دی: چي کله دوه ګواهان |د هغه په خلاف| د غلا کولو ګواهي وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَسْقُطُ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوَى امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي محض په دعویٰ

سره قطعُ اليد نه ساقطيږي لِأَنَّهُ لَا يَعْجِزُعَنْهُ سَارِقٌ ځکه چي غل له داسي دعوىٰ کولو څخه عاجز نه دی ايعني هر غل داسي دعوىٰ کولای سي ا فَيُؤَدِّىْ إِلَى سَدِّ بَابِ الْحَدِّ لهذا دا امحض په دعوىٰ سره د قطعُ اليد ساقطېدل ا به د "حدّ" د دروازې بندېدلو سبب جوړ سي وَلَنَا: أَنَّ الشُّبْهَةَ دَارِئَةٌ زموږ دليل دا دی: چي شبهه د حدّ دفع کونکې [او ساقطونکې] ده وَتَتَحَقَّقُ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوٰى لِلْاِحْتِمَالِ او [د صدق] د احتمال پر بناء محض په دعوىٰ سره شبهه ثابتيږي وَلَا مُعْتَبَرَ بِمَا قَالَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم څه وويل هغه لره اعتبار نسته بِدَلِيلِ صِحَّةِ الرُّجُوعِ بَعْدَ الْإِقْرَارِ ځکه چي تر اقرار وروسته رجوع کول صحيح دي وَإِذَا أَقَرَّ رَجُلَانِ بِسَرِقَةٍ ثُمَّ قَالَ أَحَدُهُمَا: هُوَمَالِيْ او که دوه خلک د غلا اقرار وکړي بيا په دوی کي يو ووايي: چي مسروق مال [فقط] زما مال وو لَمْ يُقْطَعَا نو د دواړو لاسونه به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ الرُّجُوعَ عَامِلٌ فِيْ حَقِّ الرَّاجِعِ ځکه چي د رجوع کونکي په حق کي رجوع عامل ده وَمُوْرِثٌ لِلشُّبْهَةِ فِيْ حَقِّ الْآخَرِ او [دا رجوع] د دويم په حق کي شبهه پيدا کونکې ده لِأَنَّ السَّرِقَةَ تَثْبُتُ بِإِقْرَارِهِمَا عَلَى الشَّرِكَةِ ځکه چي د دوی په مشترک اقرار سره غلا ثابته سوې ده فَإِنْ سَرَقَا ثُمَّ غَابَ أَحَدُهُمَا او که دوه غله [په ګډه] غلا وکړي بيا په دوی کي يو غل غائب سي وَشَهِدَ الشَّاهِدَانِ عَلَى سَرِقَتِهِمَا او دوه ګواهان د دوی پر غلا ګواهي [هم] ورکړي قُطِعَ الْآخَرُ فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيفَةَ الْآخِرِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په آخري قول کي به د دويم [حاضر] غله لاس پرېکول کيږي وَهُوَقَوْلُهُمَا او همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَكَانَ يَقُوْلُ أَوَّلًا: لَا يُقْطَعُ او امام صاحب رَحِمَهُ الله به مخکي ويل: چي د حاضر [موجود] غل لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ لَوْحَضَرَ رُبَّمَا يَدَّعِى الشُّبْهَةَ ځکه که چيري غائب غل حاضر وای نو کېدای سي چي هغه به د يو شبهي دعوىٰ کړي وای وَجْهُ قَوْلِهِ الْآخِرِ: أَنَّ الْغَيْبَةَ تَمْنَعُ ثُبُوْتَ السَّرِقَةِ عَلَى الْغَائِبِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله د آخري قول دليل دا دی: چي غائب والي پر غائب غله باندي د غلا ثابتېدل مانع کوي ايعني غيبوبت پر غائب غله باندي د سرقې له ثبوت څخه مانع دی ا فَيَبْقَى مَعْدُومًا لهذا هغه غائب غل به معدوم [او کالعدم] وي وَالْمَعْدُوْمُ لَا يُوْرِثُ الشُّبْهَةَ او معدوم شبهه نه سي پيدا کولای وَلَا مُعْتَبَرَ بِتَوَهُّمِ حُدُوْثِ الشُّبْهَةِ او د شبهي د پيدا کېدلو وهم لره هيڅ

اعتبار نسته عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سو وَإِذَا أَقَرَّ الْعَبْدُ الْمَحْجُورُ عَلَيْهِ بِسَرِقَةِ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ بِعَيْنِهَا او که محجور غلام د لسو درهمو د غلا کولو اقرار وکړي فَإِنَّهُ يُقْطَعُ نو د هغه لاس به پرېکول کيږي وَتُرَدُّ السَّرِقَةُ إِلَى الْمَسْرُوقِ مِنْهُ او سرقه [يعني غلا سوي دراهم] به مالک ته واپس کول کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: يُقْطَعُ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لاس به پرېکول کيږي وَالْعَشَرَةُ لِلْمَوْلٰى او لس درهمه به [د هغه] د مالک وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يُقْطَعُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه لاس به نه پرېکول کيږي وَالْعَشَرَةُ لِلْمَوْلٰى او لس درهمه به د مالک وي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَمَعْنَاهُ: إِذَا كَذَّبَهُ الْمَوْلٰى او د دې قول مطلب دا دی: چي کله مالک د خپل غلام تکذيب وکړي.

**اللغات**: ﴿سَدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: بندول، تړل. ﴿دَارِئَة﴾ د فتح مؤنث اسمِ فاعل دی: ليري کونکی، دفع کونکی، ساقطونکی. ﴿يَتَحَقَّق﴾ د تفعّل مضارع ده: ثابتېدل. ﴿مُجَرَّد﴾ محض، خالي، فقط. ﴿غَيْبَة﴾ غائبوالی، ناموجودوالی. ﴿حُدُوث﴾ د نصر مصدر دی: پېښېدل، پيدا کېدل. ﴿الْمَحْجُوْر عَلَيْه﴾ هغه غلام چي د مالک له طرفه پر هغه د تجارت کولو پابندي لګېدلې وي، يعني خپل مالک له تجارت او کاروبار کولو څخه منع کړی وي. ﴿كَذَّبَه﴾ د تفعيل ماضي ده: تکذيب کول، درواغجن ګڼل (درواغجن شمارل).

**تشريح**: په دې عبارت کي څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... که يو سړی يو پُسه غلا کړي او بيا ووايي چي دا پُسه خو زما دی او ما له خپل مال څخه غلا کړی دی او دوه ګواهان د هغه په خلاف د غلا ګواهي هم ورکړي، نو زموږ په نېز د دې دعوىٰ په وجه له هغه څخه قطعُ اليد ساقطيږي که څه هم هغه پر خپله دعوىٰ باندي ګواهان پېش نه کړي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به فقط د دعوىٰ په وجه د هغه جرم نه معاف کيږي او له هغه څخه به حدّ نه ساقطيږي، ځکه که داسي وسي نو هر غل به داسي دعوىٰ کوي او له حدّ او سزا څخه به ځان خلاصوي او په دې توګه به بالکل د حدّ (قطعُ اليد) دروازه بنده سي.

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في فتح القدير (ج: ٥، ص:١٦٨)، وكذا في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٣٠). [القول الراجح ج:١، ص:٤٦٩]

زموږ دليل دا دی چې دا خبر خو تسليم او منل سوې ده چې د ملکيت په شبهې سره حدّ ساقطيږي او څرنګه چې د دې غله په دعوىٰ کې د رښتيا والي احتمال هم سته. نو په دې دعوىٰ سره د ملکيت شبهه پيدا کيږي او د دغه شبهې په وجه به له دې مدعي غله څخه حدّ ساقطيږي. د امام شافعي د دليل جواب دا دی چې کله د غلا تر اقرار وروسته د انکار کولو په وجه حدّ ساقطيږي نو د سارق د ملکيت په دعوىٰ سره به هم حدّ ساقطيږي (يعني چې غل ووايي "دا مال زما په ملکيت کې دی"، نو په دې سره به هم حدّ ساقطيږي)، ځکه څرنګه چې هر مُقِر انکار کولای سي همداسي به هر يو دعوىٰ هم کولای سي.

(۲)... **وإذا أقرّ رجلان إلخ**: دا دويمه مسئله ده کوم چې تر اقرار وروسته د رجوع پر صحيح کېدلو مبني ده، حاصل يې دا دی چې که دوه خلک د غلا اقرار وکړي، بيا په دوی کې يو ووايي چې "دا مسروق مال خو زما مال وو" نو د هغه دعوىٰ به صحيح وي او د دې دعوې په وجه به د يوه لاس هم نه پرېکول کيږي، يعني نه به د دې راجع سړي لاس پرېکول کيږي (چې هغه د غلا انکار کړی دی او مسروق مال يې خپل ملکيت ګڼلی دی) او نه به د هغه د ملګري لاس پرېکول کيږي. ځکه چې د راجع په حق کې د قطعُ اليد په سقوط کې رجوع عامل ده او دا رجوع د هغه د ملګري په حق کې د غلا د نشتوالي شبهه پيدا کوي، ځکه چې غلا د دواړو په مشترک اقرار سره ثابته سوې وه. لهذا د يوه د انکار او رجوع په وجه به په غلا کې ضعف او شبهه پيدا سي او دا انکار او رجوع به د دواړو په حق کې د قطعُ اليد په سقوط کې مؤثر وي.

(۳)... که دوه خلک په ګډه غلا وکړي بيا په دوی کې يو غائب سي. او دوه ګواهان د دوی پر غلا ګواهي هم ورکړي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز او د امام صاحب په آخري قول کې به د دغه (حاضر) غله لاس پرېکول کيږي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول دا دی چې د حاضر غله لاس به نه پرېکول کيږي. د دې قول دليل دا دی چې که غائب غل حاضر وای نو دا احتمال وو چې هغه به يو داسي دعوىٰ کړي وای چې په هغه سره به په سرقه کې شک او شبهه پيدا سوې وای. او د شبهې په وجه به له غائب او حاضر دواړو څخه حدّ ساقطېدای، لهذا د دې احتمال په وجه به د حاضر غله لاس نه پرېکول کيږي. او د آخري قول دليل دا دی چې قضاء على الغائب جائز نه ده (يعني د غائب په خلاف فيصله کول جائز نه دي)، نو ځکه به د غائب غيبوبت د هغه په حق کې د سرقې له ثبوت څخه مانع وي، لهذا په دې حواله سره به هغه د حاضر او موجود غله په حق کې معدوم شمارل کيږي، او د موجود په حق کې معلوم کس شبهه نه سي پيدا کولای، او بيا دا يو وهمي شبهه ده چې "که غائب

حاضر واى نو کېداسي چي په غلا کي به يې د شبهي دعوىٰ کړي واى". او مخکي دا خبره تېره سوه چي موهومُ الوجود (وهمي) شبهي لره هيڅ اعتبار نسته. لهذا په دې حواله سره به هم د غائب غيبوبت فقط د هغه په حق کي مؤثر وي او د حاضر په حق کي به د هغه غيبوبت لره هيڅ أثر او اغېز نه وي. نو ځکه به د حاضر لاس پرېکول کيږي.

(۴)... که يو محجور غلام دا اقرار وکړي چي ما له فلانکي شخه لس دراهم غلا کړه. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د هغه لاس پرېکول کيږي او مسروقه دراهم به مالک ته ورکول کيږي. د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله رايه دا ده چي که چيري مالک د غلام تکذيب وکړي او دا ووايي چي "دا خو زما دراهم دي" نو د غلام لاس به نه پرېکول کيږي او هغه دراهم به مالک ته ورکول کيږي. لېکن که دا غلام مأذون وي (يعني مالک د کاروبار اجازه ورکړې وي). يا دا چي دا غلام د غير متعينو دراهمو اقرار وکړي (يعني دراهم معلوم نه کړي چي ما دومره دراهم غلا کړه). نو په دې صورتونو کي به بالاتفاق د هغه لاس پرېکول کيږي. (بناية ج:۶، ص:۴۵۴)

## که غلام د غلا اقرار وکړي (تفصيلي بياب)

وَلَوْ أَقَرَّ بِسَرِقَةِ مَالٍ مُسْتَهْلَكٍ او که محجور غلام د هلاک سوي مال د غلا کولو اقرار وکړي قُطِعَتْ يَدُهُ نو د هغه لاس به پرېکول کيږي وَلَوْ كَانَ الْعَبْدُ مَأْذُونًا لَهُ او که غلام مأذون وي ايعني د تجارت او کاروبار اجازه ورکول سوې وي ا يُقْطَعُ فِي الْوَجْهَيْنِ نو په دواړو صورتونو کي به د هغه لاس پرېکول کيږي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يُقْطَعُ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په ټولو صورتونو کي به د هغه لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّ الْأَصْلَ عِنْدَهُ: أَنَّ إِقْرَارَ الْعَبْدِ عَلَى نَفْسِهِ بِالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ لَا يَصِحُّ ځکه چي د امام زفر په نېز قاعده دا ده: چي پر خپل ځان په حدّ يا قصاص سره د غلام اقرار کول صحيح نه دي لِأَنَّهُ يَرِدُ عَلَى نَفْسِهِ وَطَرَفِهِ ځکه چي دا اقرار د غلام پر نفس يا د هغه پر اندام وارديږي وَكُلُّ ذَلِكَ مَالُ الْمَوْلَى او دا ټوله د مالک مال دي او د هغه په ملکيت کي دي ا وَالْإِقْرَارُ عَلَى الْغَيْرِ غَيْرُ مَقْبُولٍ او د بل چا ا د ملکيت ا په خلاف اقرار کول مقبول نه دی إِلَّا أَنَّ الْمَأْذُونَ لَهُ يُؤَاخَذُ بِالضَّمَانِ وَالْمَالِ لېکن مأذون غلام به په ضمان او مال سره نيول کيږي لِصِحَّةِ إِقْرَارِهِ بِهِ ځکه چي د مال په هکله د هغه اقرار صحيح دی لِكَوْنِهِ مُسَلَّطًا عَلَيْهِ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چي هغه د مالک له طرفه پر مال ايعني پر تجارت او

کاروبارا ګومارل سوی دی وَالْمَحْجُورُ عَلَيْهِ لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِالْمَالِ أَيْضًا او د محجور غلام اقرار بالمال هم صحيح نه دی وَنَحْنُ نَقُولُ: يَصِحُّ إِقْرَارُهُ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ آدَمِيٌّ او موږ وايو: چي د انسان كېدلو په حيثيت سره د هغه اقرار صحيح دی ثُمَّ يَتَعَدَّى إِلَى الْمَالِيَّةِ بيا به دا اقرار د ماليت ا مال كېدلو ا وطرف ته متعدي كيږي فَيَصِحُّ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ مَالٌ نو د مال كېدلو په حيثيت سره به دا اقرار صحيح كيږي وَلِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ فِي هٰذَا الْإِقْرَارِ او ځكه چي په دې اقرار كي هيڅ تهمت نسته لِمَا يَشْتَمِلُ عَلَيْهِ مِنَ الْأَضْرَارِ ځكه چي دا قرار پر نقصانونو مشتمل دی وَمِثْلُهُ مَقْبُولٌ عَلَى الْغَيْرِ او داسي اقرار كول د بل چا ا د ملكيت ا په حق كي [هم] مقبول دی لِمُحَمَّدٍ فِي الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ: أَنَّ إِقْرَارَهُ بِالْمَالِ بَاطِلٌ په محجور غلام كي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د هغه د مال اقرار كول باطل دي وَلِهٰذَا لَا يَصِحُّ مِنْهُ الْإِقْرَارُ بِالْغَصْبِ همدا وجه ده چي د هغه له طرفه د غصب اقرار كول صحيح نه دي فَيَبْقَى مَالُ الْمَوْلٰى نو ځكه به هغه ا مسروق مال ا د مالك مال پاته سي وَلَا قَطْعَ عَلَى الْعَبْدِ فِي سَرِقَةِ مَالِ الْمَوْلٰى او د مالك د مال په غلا كولو سره پر غلام قطع اليد نه واجبيږي يُؤَيِّدُهُ أَنَّ الْمَالَ أَصْلٌ فِيهَا وَالْقَطْعُ تَابِعٌ دا د دې تائيد كوي چي په سرقه كي مال أصل دی او قطع تابع ده حَتّٰى تُسْمَعَ الْخُصُومَةُ فِيهِ بِدُونِ الْقَطْعِ تر دې چي په مال كي له قطع څخه بغير [هم] خصومت اورېدل كيږي وَيَثْبُتُ الْمَالُ دُونَهُ او له قطع څخه بغير [هم] مال ثابتيږي وَفِي عَكْسِهِ لَا تُسْمَعُ وَلَا يَثْبُتُ او د دې په برعكس كي خصومت نه اورېدل كيږي او [قطع] نه ثابتيږي ايعني له مال څخه بغير محض په قطعُ اليد كي نه خصومت اورېدل كيږي او نه له مال څخه بغير قطعُ اليد ثابتيږي ا وَإِذَا بَطَلَ فِيمَا هُوَ الْأَصْلُ بَطَلَ فِي التَّبَعِ او كله چي په اصل كي اقرار باطل سو نو په تابع كي به [هم] اقرار باطليږي بِخِلَافِ الْمَأْذُونِ په خلاف د مأذون غلام لِأَنَّ إِقْرَارَهُ بِالْمَالِ الَّذِي فِي يَدِهِ صَحِيحٌ ځكه كوم مال چي د ده په قبضه كي دی د هغه په هكله د ده اقرار صحيح دی فَيَصِحُّ فِي حَقِّ الْقَطْعِ تَبَعًا لهذا د قطع په حق كي به تبعاً د ده اقرار صحيح كيږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ أَقَرَّ بِشَيْئَيْنِ: بِالْقَطْعِ وَهُوَ عَلٰى نَفْسِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي محجور غلام د دوو شيانو اقرار كړی دی: (١) يو د قطع اليد. او دا د خپل ځان په خلاف د هغه اقرار دی فَيَصِحُّ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ نو

لهذا دا اقرار به صحيح كيږي لكه اوس اچي مونږ بيان كړي وَبِالْمَالِ وَهُوَعَلَى الْمَوْلَى ② او بل هغه د مال اقرار كړى دى، او دا د اخپل ا مالك په خلاف د هغه اقرار دى فَلَا يَصِحُّ فِي حَقِّهِ فِيهِ لهذا د مالك په حق كي به دا اقرار نه صحيح كيږي وَالْقَطْعُ يُسْتَحَقُّ بِدُونِهِ او له مال څخه بغير اهم ا قطعُ اليد ثابتيږي كَمَا إِذَا قَالَ الْحُرُّ: اَلثَّوْبُ الَّذِي فِي يَدِ زَيْدٍ سَرَقْتُهُ مِنْ عَمْرٍو لكه يو آزاد سړى چي ووايي: چي هغه جامه كوم چي د زيد په لاس كي ده ما هغه له عمرو څخه غلا كړې ده وَزَيْدٌ يَقُولُ: هُوَثَوْبِي او زيد ووايي: چي دا جامه زما ده اهغه له عمرو څخه نه ده غلا كړي ا يُقْطَعُ يَدُ الْمُقِرِّ نو د اقرار كونكي آزاد سړي ا لاس به پرېكول كيږي وَإِنْ كَانَ لَا يُصَدَّقُ فِي تَعْيِينِ الثَّوْبِ كه څه هم د جامې په تعيين كي به د هغه تصديق نه كيږي حَتَّى لَا يُؤْخَذَ مِنْ زَيْدٍ تر دې چي هغه جامه به له زيد څخه نه اخيستل كيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْقَطْعِ قَدْ صَحَّ مِنْهُ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي په قطع سره د غلام اقرار كول صحيح دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي مونږ بيان كړى فَيَصِحُّ بِالْمَالِ بِنَاءً عَلَيْهِ نو پر هغه په بناء كولو سره به په مال سره د غلام اقرار كول اهم ا صحيح وي لِأَنَّ الْإِقْرَارَ يُلَاقِي حَالَةَ الْبَقَاءِ ځكه چي اقرار د بقاء د حالت سره متصل كيږي وَالْمَالُ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ تَابِعٌ لِلْقَطْعِ او د بقاء په حالت كي مال د قطع تابع كيږي حَتَّى تَسْقُطَ عِصْمَةُ الْمَالِ بِاعْتِبَارِهِ تر دې چي د قطع په اعتبار سره د مال عصمت احفاظت ا ساقطيږي وَيُسْتَوْفَى الْقَطْعُ بَعْدَ اسْتِهْلَاكِهِ او تر استهلاك وروسته اهم ا قطع حاصليداى سي بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْحُرِّ په خلاف د آزاد سړي د مسئلې لِأَنَّ الْقَطْعَ إِنَّمَا يَجِبُ بِالسَّرِقَةِ مِنَ الْمُودَعِ ځكه چي قطعُ اليد له مودَع څخه د غلا كولو په وجه واجبيږي أَمَّا لَا يَجِبُ بِسَرِقَةِ الْعَبْدِ مَالَ الْمَوْلَى لېكن د مالك د مال په غلا كولو سره ا پر غلام ا قطعُ اليد نه واجبيږي فَافْتَرَقَا لهذا دا دواړه ايو له بل څخه ا جلا سول وَلَوْصَدَّقَهُ الْمَوْلَى او كه مالك د غلام تصديق وكړي يُقْطَعُ فِي الْفُصُولِ كُلِّهَا نو په دې ټولو صورتونو كي به د هغه لاس پرېكول كيږي لِزَوَالِ الْمَانِعِ ځكه چي مانع ختم سو.

**اللغات**: ﴿مُسْتَهْلَكٌ﴾ د استفعال اسمِ مفعول دی: په خپله هلاک کړی سوی، ضایع کړی سوی، ﴿خُصُوْمَةٌ﴾ دعویٰ، تنازع، ﴿مُوْدَعٌ﴾ هغه کس چي بل چا امانت ورته ایښی وي (امانت ساتونکی)، ﴿فُصُوْل﴾ جمع د فَصْلٌ ده: د دې لفظ ډیري معناوي دي، دلته یې معنیٰ ده: حالت، صورت.

**تشریح**: تر دې مخکي د محجور غلام د اقرار په هکله یوه مسئله بیان سوه، دا ټوله عبارت هم د هغه سره متعلق او مربوط دی، حاصل یې دا دی که محجور غلام د هلاک سوي مال د غلا کولو اقرار وکړي، نو د هغه لاس به پرېکول کیږي، او که چیري غلام مأذون فی التجاره وي، نو برابره ده مال موجود وي یا مستهلک او معدوم وي، په دې دواړو صورتونو کي به د هغه لاس پرېکول کیږي، دا ټوله تفصیل زموږ د امامانو په نیز دی. د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په دې ټولو صورتونو کي به د مُقر غلام لاس نه پرېکول کیږي، برابره ده هغه محجور وي یا مأذون وي او برابره ده مال موجود وي یا معدوم وي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز قاعده او ضابطه دا ده چي د حد او قصاص په هکله پر خپل ځان د غلام اقرار معتبر نه دی، ځکه چي د قصاص اقرار د هغه پر ذات واردیږي او د حدّ اقرار د هغه پر اندام یعني پر لاس واقع کیږي، او د غلام نفس (ذات) او د هغه اندام دواړه د هغه د مالک په ملکیت کي دي، او د بل چا د مال (او ملکیت) په خلاف اقرار کول نه قبلیږي. لیکن که مُقر غلام مأذون وي او مسروق مال هلاک سوی وي نو هغه به د دې مال ضامن وي او که مسروق مال موجود وي نو د هغه په واپسي سره به دا مأذون غلام نیول کیږي (یعني هغه به له مأذون غلام څخه واپس اخیستل کیږي)، ځکه چي د مأذون غلام له طرفه د مال اقرار کول صحیح دي، ځکه چي مأذون غلام د مالک له طرفه پر تجارت او کاروبار کولو ګومارل کیږي، نو ځکه به د هغه اقرار صحیح وي، لیکن د محجور غلام له طرفه د مال اقرار کول (اقرار بالمال) هم صحیح نه دی، نو ځکه به د هغه لاس هم نه پرېکول کیږي (ځکه کله چي د هغه اقرار صحیح نه دی، نو لاس به یې په کوم دلیل سره پرېکول سي!)

زموږ له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي د محجور غلام اقرار د هغه د انسان کېدلو په وجه صحیح دی او کله چي مِن حیث الإنسان د هغه اقرار صحیح دی نو مِن حیث المال به هم د هغه اقرار صحیح وي، ځکه چي انسانیت (انسان کېدل) له مالیت (مال کېدلو) څخه جلا او علیحده نه وي او ځکه چي په داسي اقرار کي هیڅ تهمت نه وي، ځکه چي په دې کي د مُقر یعني د غلام نقصان دی. ځکه چي په قطعُ الید سره هغه ته رسېدونکی نقصان د مالک د مال له نقصان څخه ډېر سخت او اعلیٰ دی. او په کوم اقرار کي چي د مُقر نفع نه وي هغه قبلیږي.

**لمحمد إلخ**: د محجور غلام د لاس نه پرېکولو په هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د محجور غلام له طرفه اقرار بالمال باطل دی. همدا وجه ده چې د هغه له طرفه د غصب اقرار صحيح نه دی. او کله چې د محجور غلام اقرار بالمال باطل او غير صحيح دی. نو مسروق مال به فقط د مالک مال وګرځي (او هغه به فقط د مالک مال وي) او غلام که چيرې له مالک څخه غلا وکړي نو پر هغه قطعُ اليد نه واجبيږي. ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مال أصل دی او قطعُ اليد تابع ده. همدا وجه ده چې له قطعُ اليد څخه بغير هم د مال په هکله خصومت اوربدل کيږي او له قطعُ اليد څخه بغير هم مال ثابتيږي حالانکي له مال څخه بغير نه په قطعُ اليد کې خصومت او ربدل کيږي او نه قطعُ اليد ثابتيږي. لنډه دا چې دا خبره ثابته سوه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مال أصل دی او قطع تابع ده. او کله چې په أصل يعني په مال کي د محجور غلام اقرار معتبر نه دی نو په قطع کي به په طريقه اولیٰ سره د هغه اعتبار نه کيږي. د دې په خلاف که مُقر غلام "مأذون" وي (يعني د کاروبار اجازه ورکول سوې وي)، نو د هغه په قبضه کي به د موجود مسروق مال په هکله د هغه اقرار صحيح وي. او کله چې د مال په حق کي د هغه اقرار صحيح دی کوم چې اصل دی، نو د تابع يعني د قطعُ اليد په حق کي به هم د هغه اقرار صحيح وي.

**ولأبي يوسف إلخ**: د امام ابو يوسف دليل دا دی چې محجور غلام د لسو درهمو د غلا په اقرار سره په حقيقت کي د دوو خبرو اقرار وکړی: ① د قطعُ اليد. ② د مال. او د قطعُ اليد اقرار د هغه د ذات سره متعلق دی. لهذا دا اقرار به صحيح وي. او د مال اقرار د هغه د مالک سره متعلق دی. کوم چې اقرار علی الغير دی، او اقرار علی الغير معتبر نه دی. لهذا د مال په حواله سره به د دې غلام اقرار معتبر نه وي. او د قطعُ اليد والا اقرار به معتبر وي. ځکه چې له مال څخه بغير هم قطعُ اليد ثابتيږي. د دې مثال دا دی لکه يو آزاد سړی چې داسي ووايي "د زيد سره چې کومه جامه ده. هغه ما له عمرو څخه غلا کړې ده". لېکن زيد ووايي چې "دا زما خپله جامه ده". نو دلته که څه هم د جامې په هکله د زيد مؤاخذه نه کيږي او له زيد څخه به جامه نه اخيستل کيږي، لېکن د غلا د اقرار په وجه به د آزاد مُقر سړي لاس پرېکول کيږي. همداسي به په دې مسئله کي هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د غلام لاس پرېکول کيږي او د کوم مال د غلا کولو اقرار چې غلام کړی دی هغه به د مالک وي. نه د مسروق منهٗ.

**ولأبي حنيفة إلخ**: د امام صاحب دليل دا دی چې من حيث الإنسان د غلام د قطعُ اليد اقرار صحيح دی، او څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قطعُ اليد أصل دی او مال تابع دی. لهذا کله چې د أصل يعني د قطعُ اليد په هکله د غلام اقرار صحيح دی نو د تابع يعني د مال په حق کي به هم د هغه اقرار

صحيح وي، ځکه چي اقرار د سرقې (غلا) د بقاء د حالت سره متصل کيږي او د بقاء په حالت کي مسروق مال د قطعُ اليد تابع کيږي او د قطعُ اليد په وجه د مسروق مال عصمت هم ختميږي، ځکه چي ضمان او قطع دواړه جمع کېداى نه سي، لنډه دا چي دا خبره ثابته سوه چي قطع أصل دى او مال تابع دى، او څرنګه چي په قطع کي د محجور غلام اقرار معتبر دى، لهذا د مال په هکله به هم د ده اقرار معتبر وي او هغه مال به مسروق منهٗ ته واپس کول کيږي.

د دې په خلاف د آزادي سړي د اقرار مسئله ده، نو په دې مسئله سره د غلام په مسئله کي دليل نيول صحيح نه دى (لکه څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دلیل په نيولى دى)، ځکه چي د قطع اليد لپاره له مالک شخخه د سارق غلا کول ضروري نه دي (يعني دا ضروري نه دي چي غله به له مالک شخخه مال غلا کړى وي)، بلکي که آزاد سړي له مُودَع شخخه مال غلا کړي نو بيا به هم پر هغه قطعُ اليد واجبيږي حالانکي مُودَع فقط د امانت مال أمين (او ساتونکى) وي مالک يې نه وي، او که چيري غلام له خپل مالک شخخه مال غلا کړي نو پر هغه قطعُ اليد نه واجبيږي، نو په دې وجه د آزاد سړي او غلام په سرقه کي فرق دى، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

او که مالک د غلام تصديق وکړي او ووايي چي "مسروق مال زما مال نه دى، بلکي غلام د بل چا مال غلا کړى دى"، نو په پورتني ټولو صورتونو کي به د هغه لاس پرېکول کيږي، ځکه چي په قطعُ اليد کي محض د مالک د حق او د مالک د مال په وجه تردّد او شک وو، او د مالک په تصديق سره دا تردّد ختم سو، لهذا اوس د قطعُ لاره بالکل صفا او خلاصه سوه، نو په دې وجه به اوس په ټولو صورتونو کي د غلام لاس پرېکول کيږي.

## د مسروق مال احکام

قَالَ: وَإِذَا قُطِعَ السَّارِقُ وَالْعَيْنُ قَائِمَةٌ فِي يَدِهِ فرمايي: که چيري ـ غله لاس پرېکول سي او (مسروق) مال د هغه سره موجود وي رُدَّتْ إِلَى صَاحِبِهَا نو هغه مال به د خپل مالک ته واپس کيږي لِبَقَائِهَا عَلَى مِلْكِهِ ځکه چي هغه (تر اوسه) د ده پر ملکيت پاته دى وَإِنْ كَانَتْ مُسْتَهْلَكَةً او که هغه مال هلاک سوى وي لَمْ يَضْمَنْ نو غل به د هغه نه ضامن کيږي وَهٰذَا الْإِطْلَاقُ يَشْمَلُ الْهَلَاكَ وَالْاِسْتِهْلَاكَ او دا إطلاق (په خپله) هلاکېدلو او (قصداً) هلاکولو دواړو ته شامل دى وَهُوَ رِوَايَةُ أَبِي يُوسُفَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ همدا له امام صاحب شخخه د امام ابو يوسف روايت دى وَهُوَ الْمَشْهُورُ او همدا مشهور دى وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْهُ: أَنَّهُ يَضْمَنُ بِالْاِسْتِهْلَاكِ او حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله شخخه دا روايت کړى

دی: چي په هلاکولو سره به غل ضامن کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُ فِيهِمَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي به غل ضامن کيږي لِأَنَّهُمَا حَقَّانِ قَدْ اخْتَلَفَ سَبَبَاهُمَا ځکه چي قطع او ضمان دواړه [داسي] حقونه دي چي د دوی اسباب سره جلا دي فَلَا يَمْتَنِعَانِ لهذا دوی به دواړه نه ممتنع کيږي فَالْقَطْعُ حَقُّ الشَّرْعِ نو قطع د شريعت حق دی وَسَبَبُهُ تَرْكُ الِانْتِهَاءِ عَمَّا نُهِيَ عَنْهُ او د هغه سبب له منع کړی سوي شي څخه د منع پرېښوول دي وَالضَّمَانُ حَقُّ الْعَبْدِ او ضمان د بنده حق دی وَسَبَبُهُ أَخْذُ الْمَالِ او د هغه سبب مال اخيستل [غلا کول] دي فَصَارَ كَاسْتِهْلَاكِ صَيْدٍ مَمْلُوكٍ فِي الْحَرَمِ نو داسي سو لکه په حرم کي [د يو چا] مملوک ښکار هلاکول أَوْ شُرْبِ خَمْرٍ مَمْلُوكَةٍ لِذِمِّيٍّ يا لکه د ذمي مملوکه شراب چيښل وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: لَا غُرْمَ عَلَى السَّارِقِ بَعْدَمَا قُطِعَتْ يَمِينُهُ زموږ دليل د نبي ﷺ دا إرشاد دی: چي کله د غله راسته لاس پرېکول سي نو [بيا] پر هغه تاوان [ضمان] نسته وَلِأَنَّ وُجُوبَ الضَّمَانِ يُنَافِي الْقَطْعَ او ځکه چي د ضمان وجوب د قطعُ اليد منافي دی لِأَنَّهُ يَتَمَلَّكُهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْأَخْذِ ځکه چي د ضمان په اداء کولو سره د اخيستلو [غلا کولو] د وخت وطرف ته په منسوب کېدلو سره غل د هغه [مسروق] مال جوړيږي فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مِلْكِهِ نو ښکاره به سي چي غلا د هغه په ملکيت کي واقع سوه فَيَنْتَفِي الْقَطْعُ لِلشُّبْهَةِ لهذا د دې شبهي په وجه به قطع منتفي کيږي وَمَا يُؤَدِّي إِلَى انْتِفَائِهِ فَهُوَ الْمُنْتَفِي او کوم شی چي د قطع د منتفي کېدلو سبب جوړيږي نو هغه به [هم] منتفي وي وَلِأَنَّ الْمَحَلَّ لَا يَبْقَى مَعْصُومًا حَقًّا لِلْعَبْدِ او ځکه چي محل د بنده د حق جوړېدلو په توګه معصوم نه پاتيږي إِذْ لَوْ بَقِيَ لَكَانَ مُبَاحًا فِي نَفْسِهِ ځکه که هغه معصوم پاته سي نو په خپل ذات کي به هغه مباح [روا] وي فَيَنْتَفِي الْقَطْعُ لِلشُّبْهَةِ نو د دې شبهي په وجه به [هم] قطع منتفي کيږي فَيَصِيرُ مُحَرَّمًا حَقًّا لِلشَّرْعِ كَالْمَيْتَةِ لهذا د مړه سوي ځاروی په څير به د شريعت د حق جوړېدلو په توګه هغه حرام وګرځي وَلَا ضَمَانَ فِيهِ او په هغه کي به هيڅ ضمان نه وي إِلَّا أَنَّ الْعِصْمَةَ لَا يَظْهَرُ سُقُوطُهَا فِي حَقِّ الِاسْتِهْلَاكِ خو د استهلاک [هلاکولو] په حق کي به د

---

[1] تخريج: رواه النسائي، رقم الحديث: ۴۹۸۴.

عصمت ساقطېدل نه ښکاره کېږي لِأَنَّهُ فِعْلٌ آخَرُ غَيْرُ السَّرِقَةِ ځکه چي استهلاک له سرقې څخه بغير بل [عليحده] فعل دی وَلَا ضَرُورَةَ فِي حَقِّهِ او د هغه په حق کي [د عصمت د سقوط] هيڅ ضرورت نسته وَكَذَا الشُّبْهَةُ تُعْتَبَرُ فِيمَا هُوَ السَّبَبُ دُونَ غَيْرِهِ همدارنګه شبهه به هم [فقط] په سبب کي معتبره کېږي، نه په غيرِ سبب کي وَوَجْهُ الْمَشْهُورِ: أَنَّ الِاسْتِهْلَاكَ إِتْمَامُ الْمَقْصُودِ د مشهور روايت دليل دا دی: چي هلاکول [په حقيقت کي] د غلا پوره کول دي ايعني په استهلاک سره د سرقې پوره کول مطلوب وي] فَتُعْتَبَرُ الشُّبْهَةُ فِيهِ لهذا په هغه کي به د شبهې اعتبار کېږي وَكَذَا يَظْهَرُ سُقُوطُ الْعِصْمَةِ فِي حَقِّ الضَّمَانِ همدارنګه به د ضمان په حق کي هم د عصمت سقوط ښکاره کېږي لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ سُقُوطِهَا فِي حَقِّ الْهَلَاكِ ځکه چي هغه د هلاک په حق کي د سقوط له ضروریاتو څخه دی لِانْتِفَاءِ الْمُمَاثَلَةِ د مماثلت [او مشابهت] د نشتوالي په وجه.

**اللغات**: ﴿غُرْم﴾ جرمانه، تاوان، ﴿يَتَمَلَّكُه﴾ د تفعّل مضارع ده: د يو شي مالک کېدل، مالک جوړېدل، ﴿مَيْتَة﴾ مردار سوی حيوان او څاروی (مړ سوی څاروی)، ﴿إِتْمَام﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، ﴿سُقُوط﴾ ساقطېدل، لوېدل، ﴿مُمَاثَلَة﴾ يو شی د بل شي مثل کېدل، مشابهت، ورته والی.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د غله تر لاس پرېکولو وروسته به دا پوښتنه او پلټنه کېږي چي مسروق مال د ده سره موجود دی، که نه؟ که چيري موجود وي نو هغه مال به خپل مالک يعني مسروق منهٗ ته واپس کېږي، او که چيري موجود نه وي، بلکي غله هغه هلاک کړی او ضايع کړی وي يا هغه په خپله هلاک سوی وي نو پر غله به د هغه ضمان نه واجبېږي، دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت دی او همدا مشهور روايت دی، له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دا دی چي که سارق هغه هلاک کړی وي نو پر هغه به ضمان واجبېږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به په دواړو صورتونو کي پر هغه ضمان واجبېږي برابره ده مال په خپله هلاک سوی وي او که غله هلاک کړی وي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي قطعُ اليد او ضمان دواړه جلا، جلا حقونه دي او په دوو جلا، جلا سببونو سره ثابت دي، لهذا د يوه په وجه به بل حق نه ممتنع کېږي. د دې نور تفصيل دا دی چي قطعُ اليد د شريعت حق دی، ځکه چي شريعت د غلا نه کولو حکم کړی دی، لېکن د دې حکم پر مخالفت

کولو شریعت سارق ته دا سزا (قطعُ الید) ورکړه. د دې په خلاف ضمان د بنده حق دی او د ضمان د وجوب سبب دا دی چې انسان د بل چا له رضاء څخه بغیر د هغه مال واخلي (غلا کړي). او ښکاره خبره ده چې دا دواړه شیان په دوو جلا، جلا سببونو سره ثابت دي. نو ځکه به دواړه مستقل بالذات وي او یو به د بل په وجه نه ممتنع کیږي. د دې مثال داسې دی لکه په حرم کې د بل چا ښکار وژل. دا دوه جلا، جلا جرمه دي. ځکه چې په حرم کې ښکار کول هم ممنوع (حرام) دی او د بل چا ښکار وژل هم ممنوع (حرام) دی. همدارنګه د ذمي مملوکه شراب چیښل هم دوه جلا، جلا جرمه دي. لنډه دا چې په دې دواړو صورتونو کې به د جرم د جلا کېدلو په وجه دوې جلا، جلا سزاوې واجبیږي. همدغسې به په دې مذکوره مسئله کې هم د جرم د جلا کېدلو په وجه سزاء جلا او مختلفه کیږي.

**زموږ دليل**: دا حديث دی "لا غرمَ علی السارق بعد ما قطعت یمینه". په دې حدیث کې په ښکاره الفاظو سره دا خبره ذکر سوې ده چې قطعُ الید د غله کامله سزا ده او تر قطع وروسته به پر هغه ضمان او تاوان نه واجبیږي.

زموږ عقلي دلیل دا دی چې د ضمان د اداء کولو صورت کې به د فقهي قاعدې مطابق سارق د غلا له وخت څخه د مسروق مال مالک وګرځي. لهذا تر قطع وروسته به پر هغه ضمان واجبېدل داسې وي لکه د خپل مال اخیستلو په وجه پر هغه ضمان واجبېدل حالانکې دا صحیح نه دي. نو په دغه حواله سره قطعُ الید پر سارق باندې د ضمان په واجبېدلو کې شک او شبهه پیدا کړه. او د شبهې په وجه حدّ یعني قطعُ الید منتفي کیږي. او دغه انتفاء د ضمان د وجوب په سبب لازمیږي. نو ځکه موږ وایو چې ضمان به منتفي کیږي او پر غله به نه واجبیږي (مطلب دا چې که ضمان واجب کړی سي نو په ناحقه توګه به قطعُ الید واقع سي او منتفي به سي. نو ځکه به ضمان نه واجبیږي). د دې سلسلې یو دلیل دا هم دی چې مسروق مال د بنده حق جوړ سو او معصوم پاته نه سو. ځکه که موږ هغه معصوم ومنو. نو هغه مال به فی نفسهٖ مباح وګرځي او د إباحت د شبهې په وجه به د قطعُ الید حکم منتفي سي. لهذا دا مال به فی نفسهٖ مباح نه ګرځي او د بنده د حق په وجه به معصوم نه وي. ها! د شریعت د حق په وجه به حرام وي لکه مړ سوی څاروی چې د شریعت د حق په وجه حرام دی. او کوم شی چې د شریعت د حق په وجه حرام وي په هغه کې ضمان نه واجبیږي. لهذا په دې کې به هم ضمان نه واجبیږي.

**إلّا أن العصمة إلخ**: په دې عبارت سره د یو مقدّر سوال جواب ورکوي. سوال دا دی چې کله ستاسو په قول د مسروق مال عصمت د الله وطرف ته منتقل سو نو د هلاکولو (او قصداً ضایع کولو) په صورت کې د هغه ضمان واجبېدل پکار نه دي حالانکې د حسن بن زیاد په روایت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د استهلاک په صورت کې د هغه ضمان واجب سوی دی؟ د دې په جواب کې فرمایي چې د استهلاک په حق کې به د

عصمت د سقوط ظهور نه کيږي، ځکه چي استهلاک له سرقې ځخه عليحده او جلا فعل دی او ځرنګه چي د قطع په حق کي د ضرورت پر بناء عصمت ساقط سوی دی لهذا دا سقوط به د قطعُ اليد په وجه د استهلاک په حق کي سرايت نه کوي او استهلاک په صورت کي به سارق ضامن کيږي. او د استهلاک په صورت کي به د مباح فی نفسهٖ شبهه هم نه وي، ځکه چي دا شبهه فقط د قطع په سبب کي يعني په سرقه کي معتبره کيږي نه په غيرِ سبب کي (مطلب دا چي له سبب ځخه بغير په بل شي کي به د دغه شبهې لره اعتبار نه ورکول کيږي) او ځرنګه چي استهلاک د قطعُ اليد سبب نه دی، نو ځکه به په دې کي شبهه نه ثابتيږي. لهذا په دې حواله سره به هم د استهلاک په صورت کي پر سارق ضمان واجبيږي.

**ووجه المشهور إلخ:** د مشهور قول دليل دا دی چي مسروق مال هلاکول په حقيقت کي د مقصود يعني د غلا پوره کول دي، نو ځکه به په هغه کي د مباح فی نفسهٖ کېدلو شبهه باقي پاته وي همدارنګه به د ضمان په حق کي هم د عصمت سقوط ښکاره کيږي؛ ځکه چي د مال د هلاکېدلو په صورت کي خو به يقيناً عصمت ساقطيږي، ځکه چي د مسروق مال او د ضمان په مينځ کي مماثلت او مشابهت معدوم دی. لنډه دا چي کله د استهلاک په صورت کي عصمت ساقط دی نو ښکاره خبره ده چي دا استهلاک به د ضمان مُوجِب نه وي. نو په دغه وجه د امام صاحب په مشهور روايت کي به هلاک او استهلاک دواړو کي ضمان واجب سوی نه دی.

## د ډيرو غلاوو په جزاء کي د يوه حدّ جاري کولو بيان

وَمَنْ سَرَقَ سَرِقَاتٍ او ځوک چي څو غلاوي وکړي فَقُطِعَ فِي إِحْدَاهَا او د يوې غلا په جزاء کي د هغه لاس پرېکول سي فَهُوَ لِجَمِيعِهَا نو دا به د ټولو غلاوو له طرفه کافي وي وَلَا يَضْمَنُ شَيْئًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به هغه د هيڅ شي نه ضامن کيږي وَقَالَا *: يَضْمَنُ كُلَّهَا إِلَّا الَّتِي قُطِعَ لَهَا صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه به د ټولو غلاوو ضامن کيږي ما سوا له هغه غلا ځخه چي د هغې په عوض کي يې لاس پرېکول سوی وي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ: إِذَا حَضَرَ أَحَدُهُمْ د دې مسئلې معنیٰ دا ده: چي کله له مسروق منهم [مالکانو] ځخه يو سړی حاضر سي فَإِنْ حَضَرُوا جَمِيعًا وَقُطِعَتْ يَدُهُ لِخُصُومَتِهِمْ [ليکن] که ټوله مسروق منهم حاضر سي او د دوی د خصومت [دعوی] کولو په وجه د غله لاس پرېکړی سي لَا يَضْمَنُ شَيْئًا بِالِاتِّفَاقِ فِي السَّرِقَاتِ كُلِّهَا نو بالاتفاق به په ټولو غلاوو کي غل نه ضامن کيږي لَهُمَا: أَنَّ الْحَاضِرَ لَيْسَ بِنَائِبٍ عَنِ الْغَائِبِ د صاحبينو دليل دا دی: چي حاضر

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۳۱)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۱۸۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۷۱]

د غائب نائب نه دی وَلَابُدَّ مِنَ الْخُصُومَةِ لِتَظْهَرَ السَّرِقَةُ او د غلا د ښکاره کېدلو او ثرګندېدلو لپاره خصومت کول ضروري دي فَلَمْ تَظْهَرِ السَّرِقَةُ مِنَ الْغَائِبَيْنِ لهذا د غائبو مسروق منهم په حق کي غلا ښکاره نه سوه فَلَمْ يَقَعُ الْقَطْعُ لَهَا لهذا قطع د هغه غلاوو له طرفه واقع نه سوه فَبَقِيَتْ أَمْوَالُهُمْ مَعْصُومَةً نو د غائبينو أموال معصوم [او محترم] پاته سول وَلَهُ: أَنَّ الْوَاجِبَ بِالْكُلِّ قَطْعٌ وَاحِدٌ حَقًّا لِلّٰهِ تَعَالَى د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د ټولو غلاوو له طرفه د الله د حق په توګه يوه قطع واجب ده لِأَنَّ مَبْنَى الْحُدُودِ عَلَى التَّدَاخُلِ ځکه چي د حدونو مدار پر تداخل دی وَالْخُصُومَةُ شَرْطٌ لِلظُّهُورِ عِنْدَ الْقَاضِيْ او د قاضي مخته د غلا د ښکاره کېدلو لپاره خصومت کول شرط دي فَإِذَا اسْتَوْفَى فَالْمُسْتَوْفَى كُلُّ الْوَاجِبِ لهذا کله چي يو وار قطعُ اليد حاصله سوه [يعني کله چي يو وار د غله لاس پرېکړی سو] نو ټوله واجب حاصل سو أَلَا يَرَى أَنَّهُ يُرْجِعُ نَفْعُهُ إِلَى الْكُلِّ آيا هغه نه ګوري چي د دې قطع نفع د ټولو وطرف ته راجع کيږي فَيَقَعُ عَنِ الْكُلِّ نو ځکه به د ټولو له طرفه واقع کيږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا كَانَتِ النُّصُبُ كُلُّهَا لِوَاحِدٍ او پر همدغه اختلاف دي کله چي ټوله نصابونه د يوه سړي وي او هغه سړی [فقط] د يوه نصاب په هکله مخاصمه [او دعوىٰ] وکړي.

**اللغات:** ﴿خُصُوْمَةٌ﴾ دعوىٰ، تنازع. ﴿إِسْتَوْفٰى﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، اخيستل، ترلاسه کول. ﴿الْمُسْتَوْفٰى﴾ د استفعال اسم مفعول دی: حاصل کړی سوی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی څو غلاوي وکړي او بيا د يوې غلا په جزاء کي د هغه لاس پرېکول سي، نو دا قطع به د ټولو غلاوو له طرفه کافي وي او دويم وار به د هغه لاس نه پرېکول کيږي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر هغه د يوې غلا ضمان هم نه واجبيږي. لېکن د صاحبينو په نېز چي په کومه غلا کي د هغه لاس پرېکول سوی دی له هغې څخه بغير به نور د ټولو سرقاتو ضمان پر هغه واجبيږي، دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي هر يو مسروق منه حاضر نه سي بلکي فقط يو مسروق منه حاضر سوی وی او په خپل خصومت او دعوىٰ سره يې د غله لاس پرېکړی وي. او که چيري ټوله مسروق منهم حاضر شوي وي او د دوی په خصومت سره د هغه لاس پرېکړی سوی وي نو بيا به بالإتفاق هغه غل د يوې سرقې هم نه ضامن کيږي او همدغه يو وار قطعُ اليد به د ټولو غلاوو له طرفه کافي وي: په مختلف فيه مسئله کي د صاحبينو دليل دا دی چي هغه د ډېرو خلکو مال غلا کړی

دی نو ځکه هر. هر مسروق منهٔ بذات خود خصم (مدعي) دی او څرنګه چې حاضر د غائبينو له طرفه نائب او خصم نه سي جوړېدای، نو ځکه به د حاضر مخاصمه فقط د هغه د غلا سره متعلق وي او د حاضر د مخاصمه په وجه چې کومه قطع واجب سي هغه به فقط د حاضر د سرقې له طرفه کافي کيږي او له هري سرقې څخه به نه کافي کيږي، نو ځکه به له يوې سرقې څخه بغير نور د ټولو سرقاتو ضمان پر هغه واجبيږي.

ولہ أن الواجب إلخ د امام صاحب دليل دا دی چې په حُدودو کي تداخل کيږي. نو په دې وجه د ټولو سرقاتو سزا فقط يو وار قطعُ اليد ده کوم چې حقُ الله دی، او فقط يو وار قطع د هري سرقې له طرفه کافي ده لکه څرنګه چې پر يوه ځای د ټولو مسروق منهم په خصومت کولو سره فقط يو وار قطع کافي کيږي، پاته سوه د هر مسروق منهٔ د خصومت کولو مسئله. نو داشی (يعني د هر يوه خصومت کول) شرط نه دي بلکي دا فقط د قاضي مخته د سرقې د ښکاره کېدلو لپاره شرط دي. او پاته سوه د قطعُ اليد د وجوب مسئله، نو هغه په نفس سرقه سره ثابتيږي. له همدې وجهي يو وار قطعُ اليد د ټولو سرقاتو له طرفه قطع شمارل کيږي او فقط په يوه وار قطعُ اليد سره د قطع نفع يعني انزجار حاصليږي (يعني فقط په يوه وار قطع سره غله ته زجر او تنبيه ورکول کيږي او هغه د آينده لپاره له داسي کار څخه منع کيږي)، لهذا په دې حواله سره به هم فقط يوه قطع د ټولو له طرفه کافي کيږي.

وعلىٰ هٰذا الخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی که غل ديوه سړي ډېر سامانونه غلا کړې وي او هر. هر سامان د نصاب په اندازه وي (يعني د هر سامان قيمت د لسو درهمو په اندازه وي يا تر دې زيات وي)، او بيا ديوه سامان په عوض کي د هغه لاس پرېکول سي، نو دلته هم د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کي دغه اختلاف دی، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر دغه غله ديوه سامان (نصاب) ضمان هم واجب نه وي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې په کوم سامان کي د هغه لاس پرېکول سوی دی له هغه څخه بغير به نور د ټولو نصابونو ضمان پر هغه واجب وي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ مَا يُحْدِثُ السَّارِقُ فِي السَّرِقَةِ

(دا) باب د هغه مسئلو (په بيان کې) دی چې کله غل په غلا کې ترميم (او تبديلي) وکړي

## له غلا کولو څخه وروسته په شي کې تبديلي کول

وَمَنْ سَرَقَ ثَوْبًا او څوک چې ديو جامه غلا کړي فَشَقَّهُ فِي الدَّارِ بِنِصْفَيْنِ ثُمَّ أَخْرَجَهُ وَهُوَ يُسَاوِي عَشَرَةَ دَرَاهِمَ بيا په هغه کور کې اجامه دوه ټوټې کړي [او] بيا يې دباندې را وباسي او هغه د لسو درهمو سره برابره وي قُطِعَ نو دغله لاس به پرېکول کيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ●: أَنَّهُ لَا يُقْطَعُ له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چې د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ لَهُ فِيهِ سَبَبَ الْمِلْكِ وَهُوَ الْخَرْقُ الْفَاحِشُ ځکه چې په دې جامه کې د ملکيت سبب حاصل دی او هغه ډېر زيات څيرل دي ايعني جامه دوه ټوټې کول دي! فَإِنَّهُ يُوجِبُ الْقِيمَةَ وَتَمَلُّكَ الْمَضْمُونِ نو دا قيمت واجبوي او د مضمونه جامې مالک جوړېدل [واجبوي] وَصَارَ كَالْمُشْتَرِي إِذَا سَرَقَ مَبِيعًا فِيهِ خِيَارٌ لِلْبَائِعِ او دا داسي سو لکه مشتري چې يو داسې مبيع غلا کړي چې په هغه کې بائع لره خيار وي وَلَهُمَا: أَنَّ الْأَخْذَ وُضِعَ سَبَبًا لِلضَّمَانِ لَا لِلْمِلْكِ د طرفينو دليل دا دی: چې مال اخيستل د ضمان سبب دی نه د ملکيت وَإِنَّمَا الْمِلْكُ يَثْبُتُ ضَرُورَةَ أَدَاءِ الضَّمَانِ كَيْ لَا يَجْتَمِعَ الْبَدَلَانِ فِي مِلْكٍ وَاحِدٍ او ملکيت خو د ضمان اداء کولو د ضرورت په وجه ثابتيږي د دې لپاره چې دوه عوضه ديوه سړي په ملکيت کې جمع نه سي وَمِثْلُهُ لَا يُورِثُ الشُّبْهَةَ او داسې اخيستل" شبهه نه پيدا کوي كَنَفْسِ الْأَخْذِ لکه نفس "اخيستل" اچې مورث للشبهه نه دي! وَكَمَا إِذَا سَرَقَ الْبَائِعُ مَعِيبًا بَاعَهُ او لکه څرنګه چې بائع يو معيوب شی پر يو چا خرڅ کړي او [بيا] هغه غلا کړي بِخِلَافِ مَا ذُكِرَ په خلاف د هغه صورت کله

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٣١). [القول الراجح ج:١، ص:٢٧٢]

چي دبائع لپاره خيار وي لِأَنَّ الْبَيْعَ مَوْضُوعٌ لِإِفَادَةِ الْمِلْكِ ځکه چي بيع د ملکيت د فايده کولو او ثابتولو لپاره وضع سوې ده وَهٰذَا الْخِلَافُ فِيمَا إِذَا اخْتَارَ تَضْمِينَ النُّقْصَانِ وَأَخْذَ الثَّوْبِ او دا اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي د جامې مالک د نقصان ضمان اخيستل او جامه اخيستل (دواړه) اختيار کړي فَإِنِ اخْتَارَ تَضْمِينَ الْقِيمَةِ وَتَرْكَ الثَّوْبِ عَلَيْهِ لېکن که هغه د قيمت ضمان اخيستل او جامه غله ته پرېښوول اختيار کړي لَا يُقْطَعُ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق به د غله لاس نه پرېکول کيږي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْأَخْذِ ځکه چي د "اخيستلو" د وخت وطرف ته په منسوب کېدلو سره غل د هغې (جامې) مالک سو فَصَارَ كَمَا إِذَا مَلَكَهُ بِالْهِبَةِ نو دا داسي سو لکه د هبه په ذريعه چي غل د هغې مالک سوی وي فَأَوْرَثَ شُبْهَةً لهذا دې شبهه پيدا کړه وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا كَانَ النُّقْصَانُ فَاحِشًا او دا ټوله تفصيل په هغه صورت کي دی کله چي نقصان زيات وي فَإِنْ كَانَ يَسِيرًا لېکن که نقصان کم وي يُقْطَعُ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق به د غله لاس پرېکول کيږي لِانْعِدَامِ سَبَبِ الْمِلْكِ ځکه چي (په دې صورت کي) د ملکيت سبب نسته إِذْ لَيْسَ لَهُ اخْتِيَارُ تَضْمِينِ كُلِّ الْقِيمَةِ ځکه چي د مالک لپاره د ټوله قيمت د ضمان اخيستلو حق نسته وَإِنْ سَرَقَ شَاةً فَذَبَحَهَا ثُمَّ أَخْرَجَهَا او که ايو شوک (پسه غلا کړي او هغه ذبح کړي بيا يې را وباسي لَمْ يُقْطَعْ نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي لِأَنَّ السَّرِقَةَ تَمَّتْ عَلَى اللَّحْمِ ځکه چي (د هغه) غلا پر غوښو پوره سوه وَلَا قَطْعَ فِيهِ او د غوښو په غلا سره د غله لاس نه پرېکول کيږي.

**اللغات**: ﴿شَقَّ﴾ د ماضي صيغه ده: شيرل. ﴿مَضْمُوْن﴾ د کوم شي ضمان چي اداء کړی سي. د کوم شي تاوان چي ورکول سي، هغه شي ته "مضمون" وايي. ﴿خَرْق فَاحِش﴾ بد شيرل. زيات شيرل.

﴿شَاة﴾ اسم جنس دی: پسه، بزه او داسي نور ټولو ته وايي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو شوک د يو چا کور ته ورسي او د هغه يو جامه غلا کړي بيا په هغه کور کي جامه شيري کړي او دوې حصې يې کړي، تر دې وروسته يې دباندي را وباسي او هغه تر شيرلو وروسته د لسو درهمو سره مساوي وي، نو د غله لاس به پرېکول کيږي. او که غله له کور څخه دباندي هغه جامه شيرلې وي نو بالاتفاق به د هغه لاس پرېکول کيږي. ها! که چيري په کور کي تر شيرلو وروسته هغه جامه د لسو درهمو د قيمت سره مساوي نه وي. نو د غله لاس به نه پرېکول کيږي. (بناية ج:۶، ص:۴۶۵)

په دې مسئله کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د هغه لاس به نه پرېکول کيږي، ځکه کله چې سارق دا جامه څيرې کړه نو د څيرلو په وجه هغه د دې جامې د قيمت ضامن سو او کله چې سارق ضمان اداء کړي نو هغه به د دې جامې مالک جوړ سي (او جامه به د هغه مال وګرځي) او د خپل مال په غلا کولو سره د انسان لاس نه پرېکول کيږي، د دې مثال دا دی لکه زيد چې له خالد څخه يو شی رانيسي او خالد په هغه شي کې د ځان لپاره خيار شرط ولګوي او بيا د خيار په ورځو کې زيد (مشتري) هغه شی غلا کړي نو د زيد (سارق) لاس به نه پرېکول کيږي، ځکه چې د شراء په وجه زيد لره په دې مبيع شي کې د ملکيت سبب حاصل سو. همدغسې په دې مسئله کې هم چې کله پر سارق ضمان واجب سو، نو هغه لره په مسروق شي (جامه) کې د ملکيت سبب حاصل سو، نو ځکه به د هغه لاس نه پرېکول کيږي.

ولهما إلخ: د طرفينو دليل دا دی چې د غلا په توګه د مال په اخيستلو سره ضمان خو واجبيږي لېکن ملکيت نه ثابتيږي، او ملکيت خو د ضمان اداء کولو د ضرورت پر بناء ثابتيږي، ځکه که تر ضمان اداء کولو وروسته د سارق ملکيت ثابت نه سي نو بدل او مبدل منهٔ دواړه به د مسروق منهٔ (مالک) په ملکيت کې جمع سي او په داسې "اخيستلو" سره په قطعُ اليد کې هيڅ شبهه نه راځي او لکه څرنګه چې فقط د يو ځل د مال په غلا کولو سره په قطعُ اليد کې شبهه نه راځي او لکه څرنګه چې د معيوب شي تر خرڅولو وروسته که بائع هغه غلا کړي نو د هغه په قطعُ اليد کې شبهه او تردّد نه راځي. همداسې به په دې مذکوره مسئله کې هم د سارقُ الثوب په قطعُ اليد کې هيڅ شبهه نه وي او د هغه لاس به پرېکول کيږي.

د دې په خلاف کوم صورت چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی يعني کله چې مشتري يو داسې شی غلا کړی چې په هغه شي کې د بائع لپاره خيارِ شرط وي نو دا صورت شبهه پيدا کوي، ځکه چې بيع د ملکيت د إفادې لپاره وضع سوې ده يعني د بيع په ذريعه په رانيول سوي شي کې د مشتري ملکيت ثابتيږي که څه هم د بائع د خيار په وجه د هغه ملکيت په پوره توګه نه ثابتيږي، لېکن څه غوندې خامخا ثابتيږي، او دا څه غوندې ثبوت د شبهې د پيدا کېدلو لپاره کافي دی. لهذا مورث للشبهه د غيرِ مورث للشبهه په تائيد کې وړاندې کول صحيح نه دي.

وهذا الخلاف إلخ: فرمايي چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دغه اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې د جامې مالک پر دې خبره راضي سي چې زه د نقصان ضمان اخلم او څيرل سوې جامه هم قبلوم، لېکن که هغه د څيرل سوې جامې په اخيستلو راضي نه سي بلکې فقط د هغې

قيمت اخيستل وغواړي نو د هيڅ چا په نيز به هم د سارق لاس نه پرېکول کيږي. او پر سارق به د دې جامي پوره قيمت واجب وي: ځکه چي په دې صورت کي به د "اخيستلو او غلا کولو" له وخت څخه سارق د دغه جامې مالک شمارل کيږي. او دا ملکيت شبهه پيدا کوي او په شبهي سره حدّ ساقطيږي. نو ځکه به په دې صورت کي له سارق څخه حدّ (قطعُ اليد) ساقطيږي. او دا داسي سو لکه تر غلا وروسته چي مالک هغه مسروق مال سارق ته هبه کړي نو په هغه صورت کي له سارق څخه حدّ ساقطيږي. همداسي به په دې کي مسئله هم له سارق څخه حدّ ساقطيږي.

**وهذا کلّه إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي مخکني ټوله تفصيلات د هغه صورت سره متعلق دي کله چي نقصان فاحش او کثير وي. يعني د عين (جامې) يا د عين د منفعت يوه حصه فوت سوې وي. لېکن که نقصان معمولي او کم وي مثلاً ډېر لږ منفعت فوت سوى وي. نو بيا به بالاتفاق د سارق لاس پرېکول کيږي: ځکه چي اوس د سارق په حق کي د ملکيت سبب معدوم دی. ځکه چي په دې صورت کي مالک لره دا اختيار نسته چي له سارق څخه د پوره جامې قيمت واخلي. حالانکي سارق لره د پوره قيمت د ضمان ورکولو په وجه د ملکيت سبب حاصليږي او همداسي ملکيت شبهه پيدا کوي. لهذا کله چي دلته ملکيت معدوم سو نو شبهه هم معدومه سوه. او کله چي شبهه معدومه سوه نو د حدّ د وقوع او نفاذ لاره صفا سوه.

**وإن سرق إلخ:** مسئله دا ده که غل يو کور ته ورسي او پسه غلا کړي او په هغه کور کي پسه ذبح کړي بيا يې دباندي را وباسي. نو د هغه لاس به نه پرېکول کيږي: ځکه چي دلته سرقه پر غوښو واقع او پوره سوه. او د غوښو سرقه د حدّ مُوجب نه ده.

## سره او سپين زر غلا کول او بيا دينار او درهم ځني جوړول (حکم او اختلاف)

**وَمَنْ سَرَقَ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً يَجِبُ فِيهِ الْقَطْعُ** او که څوک دومره سره زر يا سپين زر غلا کړي چي په هغه کي قطعُ اليد واجبيږي **فَصَنَعَهُ دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيرَ** بيا سارق له هغه څخه دراهم يا دنانير جوړ کړي **قُطِعَ فِيهِ** نو په دې کي به د هغه لاس پرېکول کيږي **وَيُرَدُّ الدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِيرُ إِلَى الْمَسْرُوقِ مِنْهُ** او هغه دراهم او دنانير به مسروق منهٗ ته واپس کيږي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** دا احکم [د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی **وَقَالَا**[*] **: لَا سَبِيلَ لِلْمَسْرُوقِ مِنْهُ عَلَيْهِمَا** او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر دواړو د مسروق

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما في ذكر في الكنز (ج:٣، ص:١٨٢)، وكذا في شرح الوقاية (ج:٢، ص:١٩٢)، وكذا في فتح القدير (ج:٥، ص:١٧٥). [القول الراجح ج:١، ص:٤٧٣]

منه هيڅ حق نسته وَأَصْلُهُ فِي الْغَصْبِ د دې اصل په كتابُ الغصب كي دې فَهٰذِهِ صَنْعَةٌ مُتَقَوِّمَةٌ عِنْدَهُمَا خِلَافًا لَهُ نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا جوړښت (او تبديلي) متقومه ده. په خلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله ثُمَّ وُجُوبُ الْحَدِّ لَا يُشْكِلُ عَلٰى قَوْلِهٖ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول د حدّ وجوب څه مشكل نه دى لِأَنَّهٗ لَمْ يَمْلِكْهُ ځكه چي سارق د مسروق مال مالک نه سو. وَقِيلَ: عَلٰى قَوْلِهِمَا لَا يَجِبُ او ويل سوي دي: چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر قول قطعُ اليد نه واجبيږي لِأَنَّهٗ مَلَكَهٗ قَبْلَ الْقَطْعِ ځكه چي تر قطع مخكي سارق د هغه مالک سو. وَقِيلَ: يَجِبُ او ويل سوي دي: چي قطعُ اليد واجبيږي لِأَنَّهٗ صَارَ بِالصَّنْعَةِ شَيْئًا آخَرَ ځكه چي د جوړښت (او تبديلئ) په وجه هغه مال په بل شي سره بدل سو فَلَمْ يَمْلِكْ عَيْنَهٗ نو مالک د هغه د عين مالک نه سو.

**اللغات**: ﴿مَسْرُوْق مِنْهُ﴾ هغه كس چي مال ځني غلا سوى وي، مراد ځني د غلا سوي شي مالک دى. ﴿صَنْعَة﴾ د فتح اسمِ مصدر دى: جوړښت، كاريگري (په يو شي كي لاس وهل او تبديلي پكښي راوستل). ﴿متقوّمة﴾ قيمت لرونكى، د قيمت قابل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو څوک د لسو درهمو په اندازه سره زر يا سپين زر غلا كړي او له هغه څخه دنانير يا دراهم جوړ كړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د هغه لاس پرېكول كيږي او هغه دراهم يا دنانير به مسروق منهٗ (مالک) ته واپس كيږي. او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه د قطعُ اليد په هكله دوه قوله نقل سوي دي او د دوى په نيز به دراهم او دنانير مسروق منهٗ ته نه واپس كيږي. صاحب د هدايې فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا اختلاف په كتابُ الغصب كي د دوى پر خپل اختلاف مبني دى: نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز سره يا سپين زر په دينار يا درهم سره بدلول متقوّم دي او داسي تبديلي له عينِ مسروق څخه د مالک حق ختموي. لېكن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تر داسي تبديلئ وروسته هم د مالک حق په هغه عين كي باقي پاتيږي. نو په همدې وجه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دنانير او دراهم مالک ته واپس كيږي. لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به مالک ته نه واپس كيږي.

او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر سارق حدّ جاري کيږي، ځکه چي هغه د مسروق مال مالک نه سو چي د ملکيت شک او شبهه پيدا سي او حدّ ساقط سي. له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه دوه قوله نقل سوي دي:

①... پر سارق به حدّ نه جاري کيږي، ځکه چي تر قطعُ اليد مخکي په مسروق کي د تبديلۍ او کاريګرۍ په وجه سارق د هغه مال (عين) مالک سو او په دې حواله سره په هغه مال کي د سارق د ملکيت شبهه او سبب پيدا سو.

②... دويم قول دا دی چي پر هغه به حدّ جاري کيږي، ځکه چي د صنعت او کاريګرۍ په وجه په مسروق مال کي زياته تبديلي راغله. نو په دې وجه سارق د عينِ مسروق مالک نه سو. بلکي د مصنوع (جوړ کړل سوو دراهمو يا دنانيرو) مالک سو. نو په عين کي د ملکيت د شبهي د نشتوالي په وجه به پر هغه حدّ جاري کيږي.

## جامه غلا کول او رنګ ورکول (حکم او اختلاف)

| |
|---|
| فَإِنْ سَرَقَ ثَوْبًا فَصَبَغَهُ أَحْمَرَ او که [يو څوک] جامه غلا کړي او سور رنګ ورکړي قُطِعَ نو د غله لاس به پرېکول کيږي لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ الثَّوْبُ وَلَمْ يَضْمَنْ قِيمَةَ الثَّوْبِ او له غله څخه به هغه جامه نه اخيستل کيږي او نه به غل د جامې د قيمت ضامن کيږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❀: يُؤْخَذُ مِنْهُ الثَّوْبُ وَيُعْطَى مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له غله څخه به جامه اخيستل کيږي او په رنګولو سره چي د جامې څومره قمیت اضافه سوی دی هغه به غله ورته ورکول کيږي اعْتِبَارًا بِالْغَصْبِ پر غصب باندي په قياس کولو سره وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا كَوْنُ الثَّوْبِ أَصْلًا قَائِمًا وَكَوْنُ الصَّبْغِ تَابِعًا او د دوی په مينځ کي جامع دا دی چي ثوب أصل دی او موجود دی او رنګ تابع دی وَلَهُمَا: أَنَّ الصَّبْغَ قَائِمٌ صُورَةً وَمَعْنًى او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي رنګ د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره موجود دی حَتَّى لَوْ أَرَادَ أَخْذَهُ مَصْبُوغًا تر دې که د ثوب مالک د دې رنګول سوو جامو اخيستل وغواړي يَضْمَنُ مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ نو د رنګ په وجه چي د دې جامې په قيمت کي څومره اضافه راغلې ده هغه به د دې ضمان ورکوي |

❀ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۳۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷۲]

وَحَقُّ الْمَالِكِ فِي الثَّوْبِ قَائِمٌ صُورَةً لَا مَعْنًى او د مالک حق په جامه کي [فقط] د صورت په اعتبار سره موجود دی. نه د معنیٰ په اعتبار سره أَلَا تَرَى أَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى السَّارِقِ بِالْهَلَاكِ آيا ته نه ګوري! چي د هلاکت په وجه دا جامه پر غله باندي مضمونه نه ده [يعني که چيري د غله سره دا جامه هلاکه سي. نو پر هغه ضمان نه واجبيږي] فَرَجَّحْنَا جَانِبَ السَّارِقِ نو ځکه موږ د غله جهت ته ترجيح ورکړه بِخِلَافِ الْغَصْبِ په خلاف د غصب لِأَنَّ حَقَّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا قَائِمٌ صُورَةً وَمَعْنًى ځکه چي په دوی کي د هريوه حق د صورت او معنیٰ دواړوه په اعتبار سره موجود دی فَاسْتَوَيَا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ نو په دې اعتبار مالک او غاصب دواړه سره برابر سول فَرَجَّحْنَا جَانِبَ الْمَالِكِ نو ځکه موږ د مالک جهت ته ترجيح ورکړه لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَإِنْ صَبَغَهُ أَسْوَدَ او که غل جامې ته تور رنګ ورکړې أُخِذَ مِنْهُ فِي الْمَذْهَبَيْنِ يَعْنِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو په دواړو مذهبونو کي يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله او امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به له هغه شخصه جامه اخيستل کيږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ ۞ هٰذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا او اول صورت دواړه برابر دي لِأَنَّ السَّوَادَ زِيَادَةٌ عِنْدَهُ كَالْحُمْرَةِ ځکه چي تور والی هم د سُور والي په شيز زياتوب [او اضافه] ده د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ زِيَادَةٌ أَيْضًا كَالْحُمْرَةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز که څه هم تور والی د سور والي په شير زياتوب دی وَلٰكِنَّهُ لَا يَقْطَعُ حَقَّ الْمَالِكِ ليکن [بيا هم] له جامې څخه د مالک حق نه ختميږي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ السَّوَادُ نُقْصَانٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تور والی کمي [او عيب] دی فَلَا يُوجِبُ انْقِطَاعَ حَقِّ الْمَالِكِ لهذا دا به د مالک د حق ختمول نه ثابتوي.

**اللغات**: ﴿صَبَغَهُ﴾ د فتح ماضي ده: رنګول، رنګ ورکول. ﴿أَحْمَر﴾ سور رنګ. ﴿أَسْوَد﴾ تور رنګ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غل د يو چا جامه غلا کړي او هغې ته سور رنګ ورکړي نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به د غله لاس پرېکول کيږي ليکن هغه جامه به له غله څخه واپس نه اخيستل کيږي او نه به پر غله د هغه ضمان واجبيږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به هغه جامه له

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٣٢)، ولكن قال المفتي غلام قادر النعماني: قول أبي يوسف أوفق بهذا الزمان، لأن الناس يلبسون السواد، فالسواد والحمرة سواء يعني لا يُرد إلى المالك. [القول الراجح ج:١، ص:٤٧٥]

غله څخه واپس اخيستل کيږي، او د غله د رنګولو په وجه چي د جامې په قيمت کي څومره اضافه راغلې ده. د هغه اضافې په اندازه قيمت به غله ته واپس ورکول کيږي. لکه څرنګه چي يو څوک د يو چا جامه غصب کړي او هغې ته رنګ ورکړي نو هلته به هم دغه صورت اختياريږي. او دلته څکه سرقه او غصب يو پر بل قياس سوي دي چي په دواړو صورتونو کي ثوب أصل دی او قائم دی او رنګ تابع دی. او د تابع په وجه أصل نه فوتيږي.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي رنګ ظاهراً هم موجود دی او معناً هم موجود دی په دې معنیٰ چي که مالک هغه رنګول سوې جامه اخيستل وغواړي نو مالک به د رنګ په وجه د اضافه سوي قيمت ضمان ورکوي. د دې په خلاف د مالک يعني د مسروق منهٗ حق په دې جامه کي صورتاً خو موجود دی لېکن معناً موجود نه دی، همدا وجه ده چي که دا جامه د غله سره هلاکه سي نو پر هغه ضمان نه واجبيږي، معلومه سوه چي په سرقه کي د غله وزن او ترازو له مالک څخه درونددی. نو په دې وجه موږ د غله جهت ته ترجيح ورکړه او له هغه څخه مو جامه اخيستل ممنوع وګرځول. او د غصب په مسئله کي د غاصب او مالک (مغصوب منهٗ) دواړو حق سره برابر دی، او رنګ او ثوب دواړه صورتاً او معناً موجود دي، خو څرنګه چي ثوب أصل او رنګ تابع دی، نو څکه موږ په غصب کي د أصل والا ته يعني مالک ته ترجيح ورکړه.

**وإن صبغه أسو إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که سارق هغه جامې ته تور رنګ ورکړی وي. نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به جامله له سارق څخه اخيستل کيږي. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به نه څني اخيستل کيږي، څکه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د سُور والي په څېر تور والی هم زياتوب دی او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که څه هم تور والی زياتوب دی لېکن هغه له جامې څخه د مالک حق نه منقطع کوي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تور رنګ فقط کمي او عيب دی لهذا د امام صاحب په نېز به په درجه اولیٰ هغه له جامې څخه د مالک حق نه منطقع کوي. نو څکه به په دغه صورت کي د دې حضراتو په نېز رنګول سوې (توره) جامه خپل مالک ته واپس کيږي. فقط والله وعلمهٔ أتم



# بَابُ قَطْعِ الطَّرِيْق

(دا) باب د ډاکه مارۍ (د احکامو په بیان کي) دی.

**تشريح**: غلا ته "سرقه صغریٰ" وايي او ډاکه مارۍ ته "سرقه کبریٰ" وايي. او عموماً سرقه صغریٰ زياته واقع کيږي. او د کثيرُ الوقوع شي احکام مخکي بيانيږي: نو په دې وجه صاحب د کتاب مخکي د سرقه صغریٰ احکام بيان کړل. اوس د سرقه کبریٰ احکام بيانوي.

## د "قطعُ الطريق" تعريف او سزا

قَالَ: وَإِذَا خَرَجَ جَمَاعَةٌ مُمْتَنِعِيْنَ أَوْ وَاحِدٌ يَقْدِرُ عَلَى الِامْتِنَاعِ فرمايي: که يو جماعت [د لاري] منع کونکي [بندونکي] راووځي يا يو داسي سړی را ووځي کوم چي پر منع کولو او د لاري پر بندولو قدرت لري فَقَصَدُوا قَطْعَ الطَّرِيْقِ او دوی د لاري د شکولو [ډاکه مارۍ] اراده وکړي فَأُخِذُوا قَبْلَ أَنْ يَأْخُذُوا مَالًا وَيَقْتُلُوا نَفْسًا خو تر مال اخيستلو او د يو چا تر قتل کولو مخکي دوی ونيول سي حَبَسَهُمُ الْإِمَامُ حَتّٰى يُحْدِثُوا تَوْبَةً نو امام دي دوی قيد کړي تر دې چي دوی توبه وکړي وَإِنْ أَخَذُوا مَالَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ او که دوی د يو مسلمان يا ذمي مال اخيستی وي وَالْمَأْخُوْذُ إِذَا قُسِمَ عَلٰى جَمَاعَتِهِمْ أَصَابَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فَصَاعِدًا أَوْ مَا تَبْلُغُ قِيْمَتُهُ ذٰلِكَ او اخيستل سوی مال دومره وي چي که د دې ډاکوګانو پر جماعت تقسيم کړی سي نو په دوی کي به هر يوه ته لس درهمه يا تر دې زيات ورسيږي يا دومره چي د هغه قيمت لسمو درهمو ته رسيږي قَطَعَ الْإِمَامُ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ مِنْ خِلَافٍ نو امام دي د دوی راسته لاسونه او چپه پښې پرېکړي وَإِنْ قَتَلُوا وَلَمْ يَأْخُذُوا مَالًا او که دوی قتل کړی وي او مال يې اخيستی نه وي قَتَلَهُمُ الْإِمَامُ حَدًّا نو امام دي د حدّ په توګه دوی قتل کړي وَالْأَصْلُ فِيْهِ قَوْلُهُ تَعَالٰى: إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ [المائدة: ۳۳] او اصل په دې سلسله کي د الله تعالیٰ دا فرمان دی: "إنما جزاء الذين... إلخ" وَالْمُرَادُ مِنْهُ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ التَّوْزِيْعُ عَلَى الْأَحْوَالِ او مراد له دې څخه (والله أعلم) د أحوالو مطابق د سزا تقسيم دی وَهِيَ أَرْبَعَةٌ: هٰذِهِ الثَّلَاثَةُ الْمَذْكُوْرَةُ او

هغه څلور سزاوي دي چي له هغوی څخه دري دغه [په متن کي] ذکر سوي سزاوي دي وَالرَّابِعَةُ نَذْكُرُهَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ او څلورمه به موږ انشاء الله ذکر کړو وَلِأَنَّ الْجِنَايَاتِ تَتَفَاوَتُ عَلَى الْأَحْوَالِ او ځکه چي دأحوالو د بدلېدلو په وجه جرمونه هم بدلیږي فَاللَّائِقُ تَغَلُّظُ الْحُكْمِ بِتَغَلُّظِهَا نو د سخت [او سنګين] جرم سزا به [هم] سخته [او درنه] وي أَمَّا الْحَبْسُ فِي الْأُولَىٰ فَلِأَنَّهُ الْمُرَادُ بِالنَّفْيِ الْمَذْكُورِ کوم چي په اول جنايت کي قيدول دي نو هغه ځکه دي چي [په پورتني آيت کي] له مذکوره نفي څخه "قيدول مراد دي لِأَنَّهُ نَفْيٌ عَنْ وَجْهِ الْأَرْضِ بِدَفْعِ شَرِّهِمْ عَنْ أَهْلِهَا ځکه چي له رويې زمين څخه نفي کول [شړل] د ځمکي والا څخه د دوی شر ليري کول دي وَيُعَزَّرُونَ أَيْضًا او دوی ته به سزا هم ورکول کيږي لِمُبَاشَرَتِهِمْ مُنْكَرَ الْإِخَافَةِ ځکه چي دوی د ېېرولو [او دمکی ورکولو] ممنوع عمل کړی دی وَشَرَطَ الْقُدْرَةَ عَلَى الِامْتِنَاعِ لِأَنَّ الْمُحَارَبَةَ لَا تَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالْمَنَعَةِ او پر امتناع باندي د قدرت لرلو شرط ځکه امام قدوري لګولی دی چي له دې څخه بغير جنګ [او ډاکه ماري] نه ثابتيږي وَالْحَالَةُ الثَّانِيَةُ كَمَا بَيَّنَّاهَا او د دويم حالت حکم هغه دی کوم چي موږ بيان کړی لِمَا تَلَوْنَاهُ د هغه آيت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی وَشَرَطَ أَنْ يَكُونَ الْمَأْخُوذُ مَالَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ لِتَكُونَ الْعِصْمَةُ مُؤَبَّدَةً او امام قدوري دا شرط چي "اخيستل سوی مال به د مسلمان يا ذمي مال وي" ځکه لګولی دی چي [په هغه کي] په دائمي توګه عصمت ثابت سي وَلِهَذَا لَوْ قُطِعَ الطَّرِيقُ عَلَى الْمُسْتَأْمَنِ لَا يَجِبُ الْقَطْعُ همدا وجه ده که چيري پر يو حرمي مستأمن باندي ډاکه ووهل سي نو قطعُ اليد نه واجبيږي وَشَرَطَ كَمَالَ النِّصَابِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ كَيْ لَا يُسْتَبَاحَ طَرَفُهُ إِلَّا بِتَنَاوُلِهِ مَالَهُ خَطَرٌ او د هر هر ډاکو په حق کي يې د نصاب د پوره والي شرط د دې لپاره لګولی دی چي د قيمت او وزن والا شي په اخيستلو سره د هر ډاکو اندام [پرېکول] روا سي وَالْمُرَادُ قَطْعُ الْيَدِ الْيُمْنَىٰ وَالرِّجْلِ الْيُسْرَىٰ كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَىٰ تَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ او اله مِنْ خِلَافٍ څخه مرادراسته لاس او چپه پښه پرېکول دي د دې لپاره چي قطع د منفعت دجنس د فوتولو سبب جوړه نه سي وَالْحَالَةُ الثَّالِثَةُ كَمَا بَيَّنَّاهَا او د دريم حالت حکم هغه دی کوم چي موږ بيان کړی لِمَا تَلَوْنَاهُ د هغه آيت کريمه په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی وَيُقْتَلُونَ حَدًّا او

دا ټوله ډاکوګان به د حدّ په توګه قتل کيږي حَتّٰى لَوْعَفَا الْاَوْلِيَاءُ عَنْهُمْ تر دې که ادمقتول کس اولياء دوی معاف کړي لَايُلْتَفَتْ اِلٰى عَفْوِهِمْ نو د هغو معافي ته به نه کتل کيږي لِاَنَّهٗ حَقُّ الشَّرْعِ ځکه چې دا سزا ايعني دحدّ په توګه قتل کول اد شريعت حق دی.

**اللغات**: ﴿مُمْتَنِعِيْنَ﴾ د افتعال جمع اسم فاعل دی: منع کونکي مراد ځني د لارې بندونکي او مقابله کونکي دي. ﴿قَطْعِ الطَّرِيْقِ﴾ د لارې شکول، ډاکه ماري، ډاکه وهل (ډاکه اچول). ﴿يُحْدِثُوْا﴾ د افعال مضارع ده: له نوي سره يو کار کول. ﴿تَغَلُّظ﴾ د تفعّل مصدر دی: سختېدل (درنېدل، سنګين کېدل). ﴿إِخَافَةً﴾ د افعال مصدر دی: بېرول. ﴿لَا يُسْتَبَاح﴾ د استفعال مضارع مجهوله ده: مباح کېدل، روا کېدل، حلال کېدل. ﴿يُمْنٰى﴾ راسته. ﴿يُسْرٰى﴾ چپه. ﴿لَا يُلْتَفَت﴾ د افتعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: توجه کول، پاملرنه کول (کتل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړی يا يو څو خلک د ډاکه ماری په نيت ځان مسلح کړي او له کور څخه راووځي او دوی پر مقابله کولو او د لارې پر بندولو قدرت لري، لېکن مخکې تر دې چې "دوی مال لوټ کړي يا يو څوک قتل کړي" امامُ المسلمين دوی ونيسي، نو امام ته پکار دي چې دوی بنديخانې ته واچوي تر دې چې دوی خپله اراده بدله کړي او د همېشه لپاره له ډاکه مارۍ څخه توبه وباسي. او که دې خلکو د يو مسلمان يا ذمي مال لوټ کړی وي او هغه مال چې پر دوی تقسيم کړی سي نو ټولو ته د نصاب په اندازه (يعني لس درهمه) رسيږي، نو اوس د دوی سزا دا ده چې امام دې د دوی راسته لاسونه او چپه پښې پرېکړي، او که د دې ډاکوګانو جرم دا وي چې فقط وژنه او قتل يې کړی وي، نو امام دې د حدّ په توګه دوی قتل کړي. او د سزاء دغه تبديلي په حقيقت کې د دوی د جرم او جنايت د بدلېدلو په وجه ده. او په دې سلسله کې د قرآن کريم دا آيت أصل او بنياد دی: "إِنَّمَا جَـزَاءُ الَّـذِينَ يُحَـارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُـولَهُ وَيَسْـعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَـادًا أَنْ يُقَتَّلُـوا أَوْ يُصَـلَّبُوا أَوْ تُقَطَّـعَ أَيْـدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الـدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِـرَةِ عَـذَابٌ عَظِيمٌ". په دې آيت کريمه کې چې کوم "أَوْ" دی هغه د تقسيم لپاره دی او په دې آيت کې څلور سزاوې ذکر سوې دي: ① قتل. ② پانسی (په دار ځړول). ③ قطعُ اليد والرجل. ④ نفي (له ځمکې څخه شړل).
او له دې څلورو څخه به د جنايت مطابق سزا جاري کيږي او څومره چې جرم غټ او سنګين وي هغومره به يې سزا هم سنګينه وي. نو په اول حالت کې يعني کله چې ډاکوګانو مال لوټ کړی وي او څوک يې قتل کړی نه وي نو د دوی سزا به حبس (قيدول) وي، ځکه چې په دې آيت کې له "أَوْ يُنْفَوْا

من الأرض" څخه حبس مراد دی، ځکه چې په قیدولو سره به د ټوله روییې زمین خلک د دوی له شر او فساد څخه په أمن سي (او که دوی قید نه کړل سي بلکې له وطن څخه وشړل سي نو کېدای سي چې د ځمکې په بله گوښه کې به دوی بیا دغه لاره اختیار کړي). د حبس او قید سره به دوی ته مناسبه سزا هم ورکول کیږي. یعني د دوی سره په قید او بند کې سختي کیږي چې په هغه کې به دوی ته سزا هم ورکول کیږي، ځکه چې دوی بېله څه وجهې د الله بندګان ېېرولي دي او په وحشت کې یې د هغو د مبتلا کولو ناوړه حرکت کړی دی. لهذا د دې په وجه به یو څو ښځې او چلاخې خامخا وهل کیږي.

وشرط القدرة إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله چې کوم د امتناع شرط لګولی دی، د هغه فایده دا ده چې د امتناع له قدرت څخه بغیر دې خلګو ته ډاکوګان نه ویل کیږي، ځکه چې ډاکوګان په ډاګه او په عامه توګه لاره شکوي، او ښکاره خبره ده چې په چا کې د امتناع قدرت او طاقت نه وي هغه به دومره سر زوري نه کوي.

والحالة الثانية إلخ: فرمايي که چیرې ډاکوګانو مال لوټ کړی وي او قتل یې نه وي کړی، نو د دې حکم هغه دی کوم چې مورږ بیان کړی، یعني د دوی راسته لاسونه او چپه پښې به پرېکول کیږي: دلیل د مخکني آیت دا جزء دی " أو تقطع أيديهم وأرجلهم من خلاف ". او امام قدوري رَحِمَهُ الله د قطع لپاره د مسلمان یا د ذمي د مال اخیستلو شرط ځکه لګولی دی چې په هغه مال کې به په أبدي توګه عصمت (حفاظت او معصوم والی) ثابت وي، ځکه چې د کافر مال معصوم نه وي او د هغه غلا کول او لوټول د قطع مُوجِب هم نه وي لکه څرنګه چې د مستأمن حربي مثال په کتاب کې ذکر سو.

وشرط كمال النصاب إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی چې لوټ کړی سوی مال به دومره وي چې کله هغه په ډاکوګانو کې تقسیم کړی سي نو هر، هر ډاکو ته به د سرقې د نصاب په اندازه مال رسیږي، نو په داسې صورت کې به پر دوی حدّ (قطع من خلاف) جاري کیږي: ځکه که دا شرط نه ولګول سي نو د معمولي مال اخیستلو په عوض کې به د دوی اندام مباحُ القطع وګرځول سي او دا د سرقې د حدّ خلاف عمل دي (ځکه چې د سرقې حدّ فقط د دومره مال د اخیستلو په صورت کې واجبیږي چې هغه د سرقې د نصاب په اندازه وي). او له " مِنْ خِلَافٍ " څخه مراد دا دي چې د هر ډاکو راسته لاس او چپه پښه به پرېکول کیږي، ځکه که د یوه طرف لاس او پښه پرېکول سي نو په دې سره به بالکل د منفعت جنس فوت سي او هغه به بالکل شل وشوټ وګرځي کوم چې یو ډول هلاکول دي، حالانکې په دې حدّ سره "هلاکول" مقصود نه دي.

دريم حالت دا دی چې ډاکوګانو يو کس وژلی وي او مال يې لوټ کړی نه وي. نو په دې صورت کې به امام د حدّ په توګه دوی قتل کوي. د "حَدًّا" مطلب دا دی چې دا سزا د شريعت له طرفه ټاکل سوې ده او د شريعت د حق په توګه واجب سوې ده. دليل د پورتني آيت دا جزء دی " ويسعون فی الأرض فساداً أن يُقَتَّلُوا ". نو په دې وجه د مقتول اولياؤ ته دا حق نسته چې دا ډاکوګان معاف کړي.

## د قطعُ الطريق د سزا څلورم قسم

وَ الرَّابِعَةُ إِذَا قَتَلُوا وَأَخَذُوا الْمَالَ او څلورم صورت دا دی: چې ډاکوګانو قتل [هم] کړی وي او مال يې [هم] اخيستی وي فَالْإِمَامُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ مِنْ خِلَافٍ وَقَتَلَهُمْ أَوْصَلَبَهُمْ وَإِنْ شَاءَ قَتَلَهُمْ وَإِنْ شَاءَ صَلَبَهُمْ نو د شيخينو په نيز امام ته اختيار دی ① که وغواړي نو د دوی راسته لاسونه او راسته پښې دې پرېکړي او [بيا] دې دوی قتل يا پانسی کړي ② او که وغواړي نو [فقط] قتل دې يې کړي ③ او که وغواړي نو [فقط] پانسی دې يې کړي وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ وَلَا يُقْطَعُ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې امام به يا دوی قتل کوي يا به يې پانسي کوي او قطع به نه کوي لِأَنَّهُ جِنَايَةٌ وَاحِدَةٌ ځکه چې دا [فقط] يو جرم دی فَلَا تُوجِبُ حَدَّيْنِ لهذا هغه به دوه حدونه نه واجبوي وَلِأَنَّ مَا دُونَ النَّفْسِ يَدْخُلُ فِي النَّفْسِ فِي بَابِ الْحَدِّ او ځکه چې د حدّ په باب کې مادون النفس په نفس کې داخليږي كَحَدِّ السَّرِقَةِ وَالرَّجْمِ لکه د سرقې او رجم په حدّ کې [چې تداخل کيږي] وَلَهُمَا: أَنَّ هَذِهِ عُقُوبَةٌ وَاحِدَةٌ تَغَلَّظَتْ لِتَغَلُّظِ سَبَبِهَا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې دا [قطع او قتل] يوه سزا ده کوم چې د خپل سبب [يعني د جرم] د سختېدلو په سخته سوې ده وَهُوَ تَفْوِيتُ الْأَمْنِ عَلَى التَّنَاهِي بِالْقَتْلِ وَأَخْذِ الْمَالِ او هغه سبب دا دی چې ډاکوګانو د قتل کولو او مال لوټولو په ذريعه په متناهي توګه أمن فوت کړی دی وَلِهَذَا كَانَ قَطْعُ الْيَدِ وَالرِّجْلِ مَعًا فِي الْكُبْرَى حَدًّا وَاحِدًا او له همدې وجهې په ډاکه مارۍ کې پر يوه ځای د لاس او پښې پرېکول [فقط] يو حد شمارل سوی دی وَإِنْ كَانَا فِي الصُّغْرَى حَدَّيْنِ که څه هم په غلا کې دا دوه جلا حدونه [او سزاوي] دي

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:۵، ص:۶۶)، وكذا في الهندية (ج:۲، ص:۱۸۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۷۱]

وَالتَّدَاخُلُ فِي الْحُدُودِ لَا فِي حَدٍّ وَاحِدٍ او تداخل په څو حدّونو کي کيږي، نه په يوه حدّ کي ثُمَّ ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ التَّخْيِيرُ بَيْنَ الصَّلْبِ وَتَرْكِهِ بيا په قدوري امتن ا کي د پانسي کولو او د پانسي پرېښوولو په هکله "اختيار ورکول" ذکر سوي دي وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او همدا ظاهر روايت دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَا يَتْرُكُهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي امام به پانسي کول نه پرېږدي لِأَنَّهُ مَنْصُوصٌ عَلَيْهِ ځکه چي د هغه په باره کي نص آآيت ا وارد سوی دی ايعني هغه په پورتني آيت کي موجود دي ا وَالْمَقْصُودُ التَّشْهِيرُ لِيَعْتَبِرَ بِهِ غَيْرُهُ او د دې مقصد مشهوره کول دي چي نور خلک په دې سره عبرت واخلي وَنَحْنُ نَقُولُ: أَصْلُ التَّشْهِيرِ بِالْقَتْلِ وَالْمُبَالَغَةِ بِالصَّلْبِ او موږ وايو چي اصل تشهير خو په قتل سره حاصليږي او پانسي کول په تشهير کي د مبالغې لپاره وي فَيُخَيَّرُ فِيهِ نو ځکه به امام ته په دې کي اختيار ورکول کيږي ثُمَّ قَالَ: وَيُصْلَبُ حَيًّا وَيُبْعَجُ بَطْنُهُ بِرُمْحٍ إِلَى أَنْ يَمُوتَ بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله [دا] فرمايلي دي: چي داسي ډاکو به ژوندی پانسي کيږي او په نېزه سره به د هغه نس څيرل کيږي تر دې چي هغه مړ سي وَمِثْلُهُ عَنِ الْكَرْخِيِّ او له امام کرخي رَحِمَهُ الله څخه هم داسي روايت سوی دی وَعَنِ الطَّحَاوِيِّ: أَنَّهُ يُقْتَلُ ثُمَّ يُصْلَبُ تَوَقِّيًا عَنِ الْمُثْلَةِ او له امام طحاوي رَحِمَهُ الله څخه دا روايت سوی دی: چي هغه به تر قتل کولو وروسته پانسي کيږي، د دې لپاره چي له مُثله څخه وساتل سي وَجْهُ الْأَوَّلِ وَهُوَ الْأَصَحُّ: أَنَّ الصَّلْبَ عَلَى هٰذَا الْوَجْهِ أَبْلَغُ فِي الرَّدْعِ د اول قول (کوم چي صحيح دی) دليل دا دی: چي په دې طريقه سره پانسي کول په زجر [او عبرت کي ا زيات مؤثر دي وَهُوَ الْمَقْصُودُ بِهِ او همدغه مقصود دي قَالَ: وَلَا يُصْلَبُ أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فرمايي: چي تر دريو ورځو زيات به هغه نه پانسي کيږي ايعني تر ۳ ورځو به زيات د پانسي پر تخته نه پرېښوول کيږي ا لِأَنَّهُ يَتَغَيَّرُ بَعْدَهَا ځکه چي تر دريو وروسته په هغه کي تغيير راځي فَيَتَأَذَّى النَّاسُ بِهِ نو په هغه سره به خلکو ته تکليف ورسيږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يُتْرَكُ عَلَى خَشَبَةٍ حَتَّى يَتَقَطَّعَ فَيَسْقُطَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي هغه به د پانسي پر تخته پرېښوول کيږي تر دې چي هغه ټوکره ټوکره سي او را ولويږي لِيَعْتَبِرَ بِهِ غَيْرُهُ د دې لپاره چي نور خلک له هغه څخه عبرت

واخلي قُلْنَا: حَصَلَ الِاعْتِبَارُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ موږ وايو: چې زموږ په ذكر سوي طريقه سره عبرت حاصل سو وَالنِّهَايَةُ غَيْرُ مَطْلُوبَةٍ او بالكل دآخري درجې عبرت مطلوب نه دی.

**اللغات**: ﴿صَلَّبَهُمْ﴾ د تفعيل ماضي ده: په دار ځړول. پانسي كول. ﴿تغلّظت﴾ د تفعل ماضي ده: سختېدل (جرم درنېدل. سنګين كېدل). ﴿يبعج﴾ په نېزه سره څيرل (په نېزه سره په نس كې وهل). ﴿رمح﴾ نېزه. ﴿ردع﴾ زجر وركول. تنبيه وركول. منع كول (مراد ځني خلكو ته عبرت او تنبيه وركول دي چې له داسي كار څخه دوی منع سي). ﴿خشبة﴾ تخته. ﴿يتقطّع﴾ د تفعل مضارع ده: ټوكړه ټوكړه كېدل (پارچه پارچه كېدل). حصه حصه كېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د قطعُ الطريق څلورم قسم دا دی چې ډاكوګانو مال هم لوټ كړی وي او خلک يې هم قتل كړي وي. نو په دې صورت كې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دوی سزا تر قطع وروسته قتل كول يا پانسي كول دي. لېكن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به قطع نه وي. بلكې د دوی سزا به فقط قتل يا تصليب (پانسي كول) وي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چې دلته د ډاكوګانو فعل يو جرم (جنايت واحده) دی. او په يوه جرم سره فقط يو حدّ واجبيږي، دويم دليل دا دی چې قطع د ما دون النفس سزا ده او قتل د نفس سزا ده. او د حدّ په باب كې مادون النفس په نفس كې داخليږي. د مثال په توګه كه پر يو سړي باندي د غلا حدّ (قطع اليد) لازم سي او بيا هغه د رجم مستحق هم وګرځي. نو په رجم كې به د غلا حدّ هم داخليږي. همداسي به دلته هم قطع په قتل يا تصليب كې داخليږي او عليحده به قطع نه نافذول كيږي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چې د قطع سره. سره قتل كول يا پانسي كول په مجموعي توګه فقط يوه سزا ده. ځكه چې د جنايت او جرم د سختېدلو په وجه سزا هم سختيږي. او دلته د ډاكو جرم دا دی چې خلک يې قتل كړي دي او مال يې لوټ كړی دی او په دې سره يې بدأمني او بېره غوړلې ده. نو په دې وجه شريعت هم د هغه سزا عبرتناكه وګرځوله او د قطع سره يې قتل يا تصليب د هغه سزا وټاكله. او دا دوې سزاوي ګڼل صحيح نه دي، ځكه چې په ډاكه ماري كي مـن خلاف لاس او پښه يو ځای پرېكول كيږي او دا فقط يوه سزا ده لېكن په غلا كي دا دوې سزاوي دي. او تداخل په دوو حدونو كي كيږي نه په يوه حدّ كي. لهذا دلته تداخل كول او قطع له سزا څخه ختمول صحيح نه دي.

**ثم ذكر في الخ**: فرمايي چې په متن كي امام ته د پانسي كولو يا قتل كول اختيار وركول سوی دی. همدا ظاهر روايت دی. لېكن له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې امام به پانسي نه

پربېږدي، ځکه چې دا سزا په آيت کې ذکر سوې ده (أَوْ يُصَلَّبُوْا). او د دې سزا مقصد دا دی چې د دې ډاکو سزا ښه مشهوره کړی سي چې نور خلګ له دې څخه عبرت واخلي. او څرنګه چې په پانسی کولو سره دا مقصد په ښه توګه حاصلیږي نو ځکه به هغه نه پرېښوول کیږي. لېکن زموږ له طرفه جواب دا دی چې أصل تشهير په قتل سره حاصليږي لېکن په پانسی کولو سره په تشهير کې فقط مبالغه راځي، نو ځکه به امام ته اختيار وي چې هغه پر أصل عمل کوي او که مبالغه کوي.

امام قدوري رَحِمَهُ الله د پانسی ترتيب داسې ښوولی دی چې دا ډاکو به ژوندی د پانسی په دار ځړول کيږي او په نېزه سره به د هغه نس څيرل کيږي تر دې چې هغه مړ سي. همدا له امام کرخي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوې طريقه ده. او د امام طحاوي رَحِمَهُ الله په نېز د پانسی طريقه دا ده چې اول به ډاکو وژل کيږي بيا به هغه پانسي کيږي د دې لپاره چې مُثله لازمه نه سي. ځکه چې مُثله کول ممنوع دي. د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله په نېز د امام قدوري او امام کرخي رَحِمَهُمَا الله طريقه زياته غوره ده. او د هغې د غوره والي دليل دا دی چې په داسې پانسی کولو سره کما حقهٗ زجر او عبرت حاصليږي او همدا د پانسی مقصد دی.

**ولا يصلب إلخ**: د دې حاصل دا دی چې ډاکو به تر دريو ورځو زيات د دار او پانسی پر تخته نه ځړول کيږي. ځکه چې تر دريو ورځو وروسته په هغه کې تغير او تبدّل راځي او د هغه د بدبويي په وجه به د خلګو ګزاره مشکله سي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت سوی دی چې ډاکو به تر هغه وخته پوري ځړول کيږي چې هغه ټوکړې ټوکړې سي او په خپله را ايله سي د دې لپاره چې خلګ عبرت ځني واخلي. لېکن زموږ له طرفه هغه ته دا جواب ورکول سوی دی چې د دريو ورځو په ځړولو سره هم دا مقصد حاصليږي. او د عبرت لپاره همدومره کافي دي. لهذا د زيات عبرت ورکولو ضرورت نسته.

## د لوټ کړی سوي مال حکم

قَالَ: **وَإِذَا قُتِلَ الْقَاطِعُ فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِي مَالٍ أَخَذَهُ** فرمايي: کله چې ډاکو قتل کړی سي نو پر ده به هيڅ ضمان [او تاوان] نه وي په هغه مال کې کوم چې ده لوټ کړی وي اعْتِبَارًا بِالسَّرِقَةِ الصُّغْرٰى په سرقه صغرىٰ باندي په قياس کولو سره وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او موږ [مخکې] د دې بيان وکړی فَإِنْ بَاشَرَ الْقَتْلَ أَحَدُهُمْ بيا که په ډاکوګانو کې [فقط] يوه ډاکو کې د قتل کار کړی وي أُجْرِيَ الْحَدُّ عَلَيْهِمْ بِأَجْمَعِهِمْ نو پر دوی ټولو به حدّ جاري کيږي لِأَنَّهُ جَزَاءُ الْمُحَارَبَةِ ځکه چې قتل د ډاکه مارۍ [او

لو ټماري[ ا ] سزا ده وَهِيَ تَتَحَقَّقُ بِأَنْ يَكُونَ الْبَعْضُ رِدْءًا لِلْبَعْضِ او ډاکه ماري په دې توګه ثابتيږي چې ځيني د ځينو لپاره مدافعت کونکي[ ا ] مدد کونکي[ ا ] وي حَتَّى إِذَا زَلَّتْ أَقْدَامُهُمْ تر دې که د دې ا ځينو[ ا ] قدمونه ښوي سي[ ا ] يعني شکست او ماته وخوري[ ا ] انْحَازُوا إِلَيْهِمْ نو دوی د مدافعت کونکو سره جمع کيږي وَإِنَّمَا الشَّرْطُ الْقَتْلُ مِنْ وَاحِدٍ مِنْهُمْ او [ ا ] دلته[ ا ] شرط دا دی چې په دوی کې د يوه له طرفه قتل موجود سي وَقَدْ تَحَقَّقَ او هغه موجود سو قَالَ: وَالْقَتْلُ وَإِنْ كَانَ بِعَصًا أَوْ بِحَجَرٍ أَوْ بِسَيْفٍ فَهُوَ سَوَاءٌ فرمايي: او قتل که څه هم په لکړه يا ډبره يا توره سره واقع سوی وي نو دا ټوله[ ا ] په حکم کې[ ا ] برابر دي لِأَنَّهُ يَقَعُ قَطْعًا لِلطَّرِيقِ بِقَطْعِ الْمَارَّةِ ځکه چې[ ا ] محض[ ا ] د مسافرانو په شکولو سره[ ا ] هم[ ا ] ډاکه ماري واقع کيږي وَإِنْ لَمْ يَقْتُلِ الْقَاطِعُ وَلَمْ يَأْخُذْ مَالًا وَقَدْ جَرَحَ او که ډاکو قتل نه وي کړی او نه يې مال اخيستی وي بلکې [ ا ] يو څوک يې[ ا ] زخمي کړی وي اُقْتُصَّ مِنْهُ فِيمَا فِيهِ الْقِصَاصُ نو د کومو زخمونو قصاص [ ا ] او بدله[ ا ] چې اخيستل کيږي د هغوی قصاص به اخيستل کيږي وَأُخِذَ الْأَرْشُ مِنْهُ فِيمَا فِيهِ الْأَرْشُ او په کومو زخمونو کې چې تاوان اخيستل کيږي په هغوی کې به تاوان اخيستل کيږي وَذَلِكَ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ او دا کار به اولياؤ ته پرېښوول کيږي لِأَنَّهُ لَا حَدَّ فِي هَذِهِ الْجِنَايَةِ ځکه چې په دغه جنايت کې خو حدّ سته نه فَظَهَرَ حَقُّ الْعَبْدِ نو[ ا ] په دې کې[ ا ] د بنده حق ښکاره سو[ ا ] يعني کله چې په دغه جنايت کې حدّ نسته، نو په دې کې به د بنده حق وي[ ا ] وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او د بنده حق هغه دی کوم چې مونږ ذکر کړی[ ا ] يعني قصاص يا تاوان اخيستل[ ا ] فَيَسْتَوْفِيهِ الْوَلِيُّ نو ځکه به هغه حق ولي اخلي وَإِنْ أَخَذَ مَالًا ثُمَّ جَرَحَ او که ډاکو اله يو چا څخه[ ا ] مال واخلي [ ا ] او[ ا ] بيا يې زخمي کړي قُطِعَتْ يَدُهُ وَرِجْلُهُ نو د هغه لاس او پښه به پرېکول کيږي وَبَطَلَتِ الْجِرَاحَاتُ او د زخمونو عوض به باطليږي لِأَنَّهُ لَمَّا وَجَبَ الْحَدُّ حَقًّا لِلَّهِ ځکه کله چې حدّ د الله د حق په توګه واجب سو سَقَطَتْ عِصْمَةُ النَّفْسِ حَقًّا لِلْعَبْدِ نو د بنده د حق په توګه د نفس عصمت ساقط سو[ ا ] يعني کله چې حدّ د الله تعالیٰ حق دی. نو د الله د حق مخته د بنده حق يعني د نفس عصمت ساقط سو[ ا ] كَمَا تَسْقُطُ عِصْمَةُ الْمَالِ لکه څرنګه چې په مال کې عصمت ساقطيږي وَإِنْ أُخِذَ بَعْدَ مَا تَابَ وَقَدْ قَتَلَ عَمْدًا او که ډاکو تر توبې کولو وروسته ونيول سي حال دا چې هغه قصداً

قتل کړی وي فَإِنْ شَاءَ الْأَوْلِيَاءُ قَتَلُوهُ وَإِنْ شَاءُوا عَفَوْا عَنْهُ نو که [د مقتول] اولياء وغواړي نو هغه دي قتل کړي او که وغواړي نو معاف دي يې کړي لِأَنَّ الْحَدَّ فِي هَذِهِ الْجِنَايَةِ لَا يُقَامُ بَعْدَ التَّوْبَةِ ځکه چي په دې جنايت کي تر توبې وروسته حدّ نه جاري کيږي لِلِاسْتِثْنَاءِ الْمَذْكُورِ فِي النَّصِّ د هغه استثناء په وجه کوم چي په آيت کي ذکر سوې ده وَلِأَنَّ التَّوْبَةَ تَتَوَقَّفُ عَلَى رَدِّ الْمَالِ او ځکه چي توبه دمال پر واپس کولو موقوفه کيږي وَلَا قَطْعَ فِي مِثْلِهِ او تر مال واپس کولو وروسته قطع نسته فَظَهَرَ حَقُّ الْعَبْدِ فِي النَّفْسِ وَالْمَالِ لهذا په نفس او مال دواړو کي د بنده حق ښکاره سو حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْوَلِيُّ الْقِصَاصَ أَوْ يَعْفُوَ نو ځکه دي ولي قصاص واخلي يا دي معافي وکړي وَيَجِبُ الضَّمَانُ إِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ أَوْ اِسْتَهْلَكَ او که چيري مال د ډاکو په لاس کي هلاک سي يا يې هغه [قصداً] هلاک کړي نو [پر هغه] به ضمان واجبيږي.

**اللغات:** ﴿مُحَارَبَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: جنګ، مقابله، مراد ځني ډاکه ماري او لوټماري ده. ﴿رَدْء﴾ د فتح مصدر دی: دفع کول، مدافعت کول، مراد ځني مرسته او مدد کول دي. ﴿اِنْحَاز﴾ د انفعال ماضي ده: جمع کېدل، غونډېدل. ﴿الْقَاطِع﴾ ډاکو (ډاکه وهونکی) هغه کس چي په عامه توګه لاره بندوي او خلک شکوي، جمع: قُطَّاع.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري تر مال لوټولو او قتل کولو وروسته ډاکو قتل کړی سي، نو کوم مال چي هغه لوټ کړی وي د هغه مال ضمان او تاوان به پر هغه نه وي؛ ځکه چي تر حدّ جاري کولو وروسته د مال احترام او عصمت ساقطيږي، او څرنګه چي په غلا (سرقه صغرىٰ) کي تر قطعُ اليد وروسته سارق د مسروق مال نه ضامن کيږي، همداسي به په ډاکه ماري کي هم هغه د دې نه ضامن کيږي.

**فإن باشر إلخ:** فرمايي که په ډاکوګانو کي فقط يوه ډاکو قتل کړی وي نو هم به ټوله ډاکوګان د هغه په جزاء کي قتل کيږي؛ ځکه چي دا قتل د ډاکه ماري سزا ده. او په ډاکه ماري کي داسي کيږي چي يو ډاکو لوټماري او وژنه کوي او پاته ډاکوګان د هغه مرسته يا مدافعت کوي. او څرنګه چي د حدّ د وجوب شرط دا دی چي په ډاکوګانو کي د يوه له طرفه قتل موجود سي او دلته د يوه له طرفه قتل موجود سو نو ځکه به دا د هر يوه له طرفه قتل شمارل کيږي او د دې په جزاء کي به ټوله قتل کيږي.

فرمايي برابره ده قتل که په توره سره واقع سي يا په لرګي. لکړه او ډبره سره واقع سي د ټولو حکم يو

دى. يعني فقط د قتل واقع کېدلو په صورت کي بيا د هيڅ ډاکو خير نسته (هغه که په هره طريقه سره واقع سي) بيا به هر ډاکو ته د قتل سزا ورکول کيږي، ځکه چي د مسافرانو په شکولو سره او د لاري په بندولو سره هم ډاکه ماري او لوټماري ثابتيږي. لهذا په کوم شي سره چي هم قتل واقع سي هغه به د حدّ مُوجب وي.

وإن لم يقتل إلخ: مسئله دا ده که ډاکو هيڅوک قتل نه کړي او نه له چا څخه مال واخلي ليکن يو سړی زخمي کړي، نو د دې سزا دا ده چي په کومو زخمونو کي چي قصاص او بدله اخيستل کيږي په هغوی کي به له ډاکو څخه بدله اخيستل کيږي او د کومو زخمونو په عوض کي چي تاوان اخيستل کيږي د هغوی تاوان به ځني اخيستل کيږي (يعني ولي به يې ځني اخلي). مثلاً که ډاکو د هغه سړي غوږ پرېکړی وي، نو د دې په بدله کي به د ډاکو غوږ پرېکول کيږي. او که ډاکو د هغه ينه زخمي کړې وي نو له ډاکو څخه به د زخم تاوان او ضمان اخيستل کيږي: ځکه چي د زخمي کولو په هکله په شريعت کي هيڅ حدّ ټاکل سوی نه دی. بلکي د هغه په هکله د "وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ" [المائدة:۴۵] حکم وارد سوی دی، او څرنګه چي دا حقُ العبد دی، نو ځکه به د دې داخيستلو او حاصلو حق د ولي لپاره وي.

وإن أخذ مالا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که ډاکو اول مال ځني واخلي او بيا يې زخمي کړي. نو اوس د هغه سزا دا ده چي د هغه راسته لاس او چپه پښه به پرېکول کيږي او د زخمونو قصاص او بدله به نه ځني اخيستل کيږي: ځکه چي حدّ او ضمان دواړه په مجرم کي نه سي جمع کېدای. او بل دا چي کله حدّ د الله د حق په توګه ثابت دی نو د دې حق مختته به د بنده حق يعني د نفس عصمت او د هغه احترام ساقطيږي لکه څرنګه چي د حقُ الله مختته د مال احترام ساقطيږي او هغه لره هيڅ ارزښت او هميت نه وي.

وإن أخذ إلخ: مسئله دا ده که ډاکو عمداً يو څوک قتل کړي او بيا توبه وکړي، تر دې وروسته هغه ونيول سي، نو د مقتول اولياؤ لره دا اختيار سته چي که د دوی خوښه وي نو هغه دې قتل کړي او که خوښه يې وي نو هغه دې معاف کړي؛ ځکه چي د لوټماري او ډاکه ماري په جرم کي تر توبې وروسته حدّ نه جاري کيږي، ځکه چي له دې آيت "إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللهَ... إلخ" څخه وروسته سملستي په بل آيت کي د توبه کونکو استثناء سوې ده او هغوی معاف کړی سوي دي. آيت دا دی "إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ بَعْدُ أَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ فَاعْلَمُوْا أَنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ" [المائدة:۳۴]. او په دې وجه هم چي رښتونې توبه هغه وخت ثابتيږي کله چي ډاکو لوټ کړی سوی وی مال واپس کړي، او له

مال واپس کولو څخه وروسته پر هغه حدّ جاري کېدای نه سي. لهذا په دې حواله سره به هم په دې صورت کي حدّ ساقطيږي او د دې جرم سره به د بنده (ولي) حق متعلق کيږي او د مقتول اوليأو لره به د قصاص اخيستلو يا د معافولو اختيار حاصليږي. او که چيري لوټ کړی سوی مال په خپله هلاک سي يا يې ډاکو قصداً هلاک کړي، په دې دواړو صورتونو کي به پر هغه د دې مال ضمان واجب وي.

## له ډاکو څخه د حدّ ساقطېدلو صورت

وَإِنْ كَانَ مِنَ الْقُطَّاعِ صَبِيٌّ أَوْ مَجْنُونٌ أَوْ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنَ الْمَقْطُوعِ عَلَيْهِ او که له ډاکوګانو څخه يو [نابالغه] بچی وي يا لېونی وي يا د مقطوع عليه ذی رحم محرم قريب وي سَقَطَ الْحَدُّ عَنِ الْبَاقِينَ نو له پاته ډاکوګانو څخه به حدّ ساقطيږي فَالْمَذْكُورُ فِي الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَزُفَرَ د بچي او لېوني په هکله چي کوم حکم بيان سو هغه د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله قول دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ*: أَنَّهُ لَوْ بَاشَرَ الْعُقَلَاءُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت سوی دی: چي که عاقلانو [په خپله] ډاکه ماري کړې وي يُحَدُّ الْبَاقُونَ نو پاته ډاکوګانو [عاقلانو] ته به سزا ورکول کيږي وَعَلَى هٰذَا السَّرَقَةُ الصُّغْرَى او د غلا هم دغه حکم دی لَهُ: أَنَّ الْمُبَاشَرَ أَصْلٌ وَالرِّدْءُ تَابِعٌ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مباشر [په خپله ډاکه وهونکی] أصل وي او مدافع [مددګار] تابع وي وَلَا خَلَلَ فِي مُبَاشَرَةِ الْعَاقِلِ او د عاقل په مباشرة [ډاکه وهلو] کي هيڅ خلل نسته وَلَا اعْتِبَارَ بِالْخَلَلِ فِي التَّبَعِ او د تابع خلل لره هيڅ اعتبار نسته وَفِي عَكْسِهِ يَنْعَكِسُ الْمَعْنَى وَالْحُكْمُ او د دې په برعکس کي به حکم او معنیٰ بدليږي وَلَهُمَا: أَنَّهُ جِنَايَةٌ وَاحِدَةٌ قَامَتْ بِالْكُلِّ د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي دا [فقط] يو جنايت دی کوم چي د ټولو [په مرسته] ترسره [او واقع سوی] دی فَإِذَا لَمْ يَقَعْ فِعْلُ بَعْضِهِمْ مُوجِبًا [لېکن] کله چي په دوی کي د ځيني ډاکوګانو فعل د حدّ موجب نه سو كَانَ فِعْلُ الْبَاقِينَ بَعْضَ الْعِلَّةِ نو د پاته ډاکوګانو فعل ناقص علت وګرځېدی وَبِهِ لَا يَثْبُتُ الْحُكْمُ او په ناقص علت سره حکم نه ثابتيږي فَصَارَ كَالْخَاطِئِ مَعَ الْعَامِدِ نو داسي سو لکه د عامد سره د خاطئ

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة وزفر رَحِمَهُمَاالله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۳۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷۸]

يو ځای کېدل وَأَمَّا ذُو الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ فَقَدْ قِيلَ: تَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ الْمَالُ مُشْتَرَكًا بَيْنَ الْمَقْطُوعِ عَلَيْهِمْ او کوم چې ذی رحم محرم قريب دی نو ويل سوي دي چې: د هغه تأويل دا دی چې کله مال د مقطوع عليهم په مينځ کي مشترک وي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مُطْلَقٌ [لېکن] صحيح دا ده چې دا حکم مطلق دی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ وَاحِدَةٌ ځکه چې جنايت يو دی عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه [مخکي] چې مو ذکر کړه فَالِامْتِنَاعُ فِي حَقِّ الْبَعْضِ يُوجِبُ الِامْتِنَاعَ فِي حَقِّ الْبَاقِينَ لهذا د يوه په حق کي به د حدّ منع کېدل [ساقطېدل] د پاته ډاکوګانو په حق کي د حدّ منع کېدل ثابتوي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِيهِمْ مُسْتَأْمَنٌ په خلاف د هغه صورت کله چې په دوی کي يو مستأمن حربي وي لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ فِي حَقِّهِ لِخَلَلٍ فِي الْعِصْمَةِ ځکه چې د مستأمن په حق کي د حدّ امتناع د هغه په عصمت کي د خلل په وجه ده وَهُوَ يَخُصُّهُ او دا د مستأمن سره خاص دي أَمَّا هُنَا الِامْتِنَاعُ لِخَلَلٍ فِي الْحِرْزِ او کوم چې هلته ا د ذی رحم محرم په صورت کي ا امتناع ده نو هغه په حفاظت کي د خلل په وجه سره ده وَالْقَافِلَةُ حِرْزٌ وَاحِدٌ او قافله ټوله د حرز واحد [يوه محفوظه ځای] په درجه کي ده.

**اللغات**: ﴿قُطَّاع﴾ جمع د قَاطِع: ډاکو ګان، ډاکه وهونکي، هغه غله چې په اعلانيه توګه لاره بندوي او خلک شکوي. ﴿مَقْطُوْع عَلَيْه﴾ هغه کس چې ډاکه پر ووهل سي، هغه کس چې ډاکوګان يې لوټ کړي، جمع: مَقْطُوْع عَلَيْهِم. ﴿خاطِئ﴾ په خطاء او غلطۍ سره کونکی، په هېره کونکی. ﴿عَامِد﴾ قصداً کونکی (په قصده کونکی). ﴿مُسْتَأْمِن﴾ هغه حربي کافر کوم چې أمان واخلي او دارُ الاسلام ته راسي. ﴿حَرْز﴾ د حاء په فتحه سره: حفاظت، حِرْز: د حاء په کسره سره: محفوظه ځای.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چېري د ډاکوګانو په جماعت کي نابالغه بچی وي يا مجنون او لېونی وي يا پر چا چې ډاکه وهل سوې وي هغه د يو ډاکو نږدې قريب (ذو رحمِ محرم) وي، نو په دې ټولو صورتونو کي چې څرنګه له دې بچي يا مجنون يا ذو رحمِ محرم څخه حدّ ساقطيږي همداسي به له ټولو ډاکوګانو څخه هم حدّ ساقطيږي يعني فقط د يوه په حق کي به د حدّ سقوط د پاته ډاکوګانو په حق کي د حدّ سقوط لره مستلزم وي. دا د امام صاحب او امام زفر رَحِمَهُمَا الله قول دی. د دې په خلاف له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې که په دوی کي عاقله او بالغه ډاکوګانو هم

ډاکه وهلې وي نو د امام ابو يوسف په نيز به فقط له بچي يا مجنون يا ذي رحم محرم څخه حدّ ساقطيږي او له پاته عاقلو او بالغو ډاکوګانو څخه به حدّ نه ساقطيږي، همدا حکم د غلا (سرقه صغرئ) هم دی.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي مباشر (په خپله ډاکه وهونکی) أصل دی او مدافعين او معاونين ټوله د هغه تابع دي او کله چي عاقل او بالغ سړی ډاکه ووهي نو ښکاره خبره ده چي د هغه په فعل (ډاکه ماري) کي هيڅ خلل او شبهه نسته نو ځکه به د عاقلو او بالغو ډاکوګانو فعل د حدّ مُوجب وي. پاته سو نابالغ بچی او داسي نور، نو ځرنګه چي هغو فعل (ډاکه ماري) نه ده کړې، بلکي هغوی تابعين دي. او که په تابع کي خلل راسي نو هغه د أصل (عاقلو او بالغو) پر حکم او د دوی پر واجب سوي حدّ باندي هيڅ أثر او اغېز نه کوي، نو په دې وجه به د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر أصل (عاقلو او بالغو ډاکوګانو) حدّ جاري کيږي او له تابع (صبيّ او مجنون) څخه به حدّ ساقطيږي.

**دليل**: د امام صاحب او امام زفر دليل دا دی چي دا ډاکه ماري يو جنايت دی او دا د مباشر او معاون دواړو په ګډه او مرسته سره ثابته سوې ده، لهذا د بالغينو سره په ډاکه وهلو کي صبي او مجنون او ذي رحم محرم هم شريکان دي، لېکن ځرنګه چي د صبي او داسي نورو فعل په شريعت کي د حدّ مُوجِب نه دی، نو د صبي او داسي نورو په جلا کېدلو سره د پاته ډاکوګانو په فعل (ډاکه وهلو) کي نقص راغلی او د دوی فعل ناقص علت وګرځېدی، او حدّ په مکمل فعل او کامل علت سره ثابتيږي، نه په ناقص علت سره، نو ځکه موږ په دې مسئله کي له هر يوه څخه حدّ ساقط کړی دی. د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي قصداً بل سړی په غشي ووېلي او په همدې وخت کي بل څوک خطاءً هغه سړی په غشي ووېلي او هغه د دواړو په غشو سره مړ سي، نو ځرنګه چي دلته پر خاطئ قصاص نه واجبيږي همداسي پر عامد هم قصاص نه واجبيږي، ځکه چي مر مئ إليه د دواړو په غشو سره مړ سوی دی او له يوه رامي څخه د قصاص ساقطېدلو په وجه د دويم رامي فعل کمزوری او ناقص سو. همدغسي به په پورتنۍ مسئله کي هم کله چي له يوه ډاکو څخه حدّ ساقط سو نو له پاته ډاکوګانو څخه به هم حدّ ساقطيږي.

**وأما ذو الرحم إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که ډاکوګان پر يوه قافله باندي چاپه ووهي او يو ډاکو د قافلې په خلکو کي د يوه سړي ذو رحمِ محرم هم وي، نو د قرابت د حق په وجه به له هغه ذو رحمِ محرم ډاکو څخه حدّ ساقطيږي او دا سقوط به د پاته ډاکوګانو په حق کي د حدّ سقوط لره هم مستلزم وي (يعني له دغه يوه ډاکو څخه د حدّ د سقوط په وجه به له نورو ډاکوګانو څخه هم حدّ ساقطيږي)، امام ابو بکر جصاص رازي رَحِمَهُ الله د دې تأويل داسي کړی دی چي د ذي رحم محرم په وجه به حدّ په هغه صورت کي ساقطيږي کله چي د قافلې د خلکو مالونه سره مشترک وي، ځکه چي په دې صورت کي به د ټولو مالونه ديوه

مال په درجه کي وي او د مأخوذ (لوټ کړی سوي مال) د يو والي په وجه به حدّ ساقطيږي. ليکن صاحب د هدايې فرمايي چي صحيح دا ده چي که د قافلې د خلکو مالونه مشترک وي او که نه وي په هر صورت کي به د ذو رحمِ محرم ډاکو په وجه له ټولو ډاکوګانو څخه حدّ ساقطيږي، ځکه چي د ټولو جنايت يو دی او د يوه په حق کي د حدّ سقوط د نورو په حق کي د حدّ سقوط لره مستلزم دی.

د دې په خلاف که د قافلې په خلکو کي يعني په مقطوع عليهم کي يو مستأمن حربي وي نو د هغه د مال په لوټولو او اخيستلو سره به ځکه له ډاکوګانو څخه حدّ ساقطيږي چي د مستأمن حربي مال محترم او محفوظ نه دی او دا خبره فقط د دې مستأمن حربي سره خاص ده او د قافلې په نورو خلکو کي دا خبره نسته. لهذا د مستأمن حربي د مال له اخيستلو څخه د حدّ سقوط به د قافلې د نورو خلکو له أموالو څخه د حدّ سقوط لره مستلزم نه وي، بلکي که په دې صورت کي ډاکوګان له مستأمن څخه بغير د نورو خلکو مال لوټ کړي نو پر دوی به حدّ جاري کيږي.

**أما هنا الامتناع إلخ:** او پاته سو په پورتنۍ مسئله کي د حدّ امتناع او سقوط (يعني کله چي يو ډاکو د قافلې په خلکو کي د يو سړي ذو رحمِ محرم وي)، نو هلته به ځکه له ټولو ډاکوګانو څخه حدّ ساقطيږي چي دا سقوط په حفاظت کي د خلل په وجه دی او دغه خلل فقط د ذو رحمِ محرم ډاکو د قريب سره خاص نه دی بلکي د قافلې ټولو خلکو لره عام دی، لهذا کله چي د يوه په وجه پر يوه باندي حدّ نه جاري کيږي نو د هغه يوه (ذی رحم محرم) په وجه به پر ټولو باندي حدّ نه جاري کيږي.

## د حدّ ساقطېدلو په صورت کي د قصاص حکم

وَإِذَا سَقَطَ الْحَدُّ او کله چي حدّ ساقط سي صَارَ الْقَتْلُ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ نو د قتل کولو حق به أولياؤ لره وګرځي لِظُهُورِ حَقِّ الْعَبْدِ د بنده د حق ښکاره کېدلو په وجه عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ د هغه تفصيل مطابق کم چي مونږ [مخکي] ذکر کړی فَإِنْ شَاءُوا قَتَلُوا وَإِنْ شَاءُوا عَفَوْا نو که اولياء وغواړي نو [ډاکوګان] دي قتل کړي او که وغواړي نو معاف دي يې کړي وَإِذَا قَطَعَ بَعْضُ الْقَافِلَةِ الطَّرِيقَ عَلَى الْبَعْضِ او کله چي د قافلې خلک ځيني پر ځينو ډاکه ووهي لَمْ يَجِبِ الْحَدُّ نو پر ډاکه وهونکو [مباشرينو] به حدّ نه واجبيږي لِأَنَّ الْحِرْزَ وَاحِدٌ ځکه چي حرز يو دی فَصَارَتِ الْقَافِلَةُ كَدَارٍ وَاحِدَةٍ نو قافله د يوه کور په څير سوه وَمَنْ قَطَعَ الطَّرِيقَ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فِي الْمِصْرِ أَوْ بَيْنَ الْكُوفَةِ وَالْحِيرَةِ او کوم سړی چي په ښار کي د شپې يا د ورځي ډاکه ووهي يا د "کوفه" او "حيره" په مينځ کي ډاکه ووهي فَلَيْسَ بِقَاطِعِ الطَّرِيقِ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً به هغه ډاکو نه شمارل کيږي وَفِي الْقِيَاسِ يَكُونُ قَاطِعَ الطَّرِيقِ ليکن په قياس

کي هغه ډاکو شمارل کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی لِوُجُودِهِ حَقِيقَةً ځکه چي حقيقتاً ډاکه ماري موجوده سو وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يَجِبُ الْحَدُّ إِذَا كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ وَإِنْ كَانَ بِقُرْبِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي که ډاکه ماري له ښار څخه دباندي واقع سوې وي نو حدّ به واجبيږي که څه هم ښار ته نژدې وي لِأَنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ ځکه چي هلته مقطوع عليه ته هيڅ مرسته [او کومک] را رسېدلی نه سي وَعَنْهُ❁: إِنْ قَاتَلُوا نَهَارًا بِالسِّلَاحِ أَوْ لَيْلًا بِهِ أَوْ بِالْخَشَبِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی: چي که ډاکوګان د ورځي په اسلحه سره جنګ وکړي يا د شپې په اسلحه يا لکړو سره جنګ وکړي فَهُمْ قُطَّاعُ الطَّرِيقِ نو هغوی به ډاکوګان شمارل کيږي لِأَنَّ السِّلَاحَ لَا يَلْبَثُ ځکه چي اسلحه ځنډ [او درنګ] نه کوي [ابلکي په هغه ګړي خپل کار کوي] وَالْغَوْثُ يُبْطِئُ بِاللَّيَالِي او مرسته د شپې په ځنډ سره رسيږي وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّ قَطْعَ الطَّرِيقِ بِقَطْعِ الْمَارَّةِ او موږ وايو: چي ډاکه ماري د تېرېدونکو [مسافرانو] په لوټولو سره ثابتيږي وَلَا يَتَحَقَّقُ ذَلِكَ فِي الْمِصْرِ وَبِقُرْبٍ مِنْهُ او دا شی په ښار کي او ښار ته په نژدې [حد] کي نه ثابتيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ لُحُوقُ الْغَوْثِ ځکه چي [دغه ځايونو ته] د مرستي [ژر] رسېدل ښکاره دي إِلَّا أَنَّهُمْ يُؤْخَذُونَ بِرَدِّ الْمَالِ لېکن دا ډاکوګان به د مال واپس کولو لپاره نيول کيږي إِيصَالًا لِلْحَقِّ إِلَى الْمُسْتَحِقِّ د دې لپاره چي حق خپل مستحق ته ورسول سي وَيُؤَدَّبُونَ وَيُحْبَسُونَ او دوی ته به سزا ورکول کيږي او بنديخانې ته به اچول کيږي لِارْتِكَابِهِمُ الْجِنَايَةَ ځکه چي دوی جرم کړی دی وَلَوْ قَتَلُوا او که دغه ډاکوګانو قتل کړی وي فَالْأَمْرُ فِيهِ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ نو د دې معامله به اولياؤ ته پرېښوول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَمَنْ خَنَقَ رَجُلًا حَتَّى قَتَلَهُ او څوک چي يو سړی خپه کړي تر دې چي هغه قتل کړي فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د قاتل پر عاقله وو باندي ديّت [واجب] وي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْقَتْلِ بِالْمُثْقَلِ او دا په درانه [وزن لرونکي] شي سره د قتل کولو مسئله ده

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: وفي شرح الطحاوي: الفتوىٰ على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:۵، ص:۱۸۵)، وكذا في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۳۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۷۹]

وَسَنُبَيِّنُ فِي بَابِ الدِّيَاتِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ او په بابُ الديّات كې به موږ انشاء الله هغه بيان كړو وَإِنْ خَنَقَ فِي الْمِصْرِ غَيْرَ مَرَّةٍ او كه [يو ځل] په ښار كې څو ځله [خلك] خپه كړي وي [او قتل كړي يې وي] قُتِلَ بِهِ نو هغه به قتل كول كيږي لِأَنَّهُ صَارَ سَاعِيًا فِي الْأَرْضِ بِالْفَسَادِ ځكه چې هغه په ځمكه كې د فساد كوښښ كونكى [او د فساد خپرونكى] وګرځېدى فَيُدْفَعُ شَرُّهُ بِالْقَتْلِ نو د هغه شرارت به د قتل په ذريعه دفع كول كيږي.

**اللغات:** ﴿حِرْز﴾ محفوظ ځاى، ﴿غَوْث﴾ مرسته، كومك، غاورسي، فرياد، ﴿مَارَّة﴾ جمع د مَارٌّ ده: پرلاره تېرېدونكى، ﴿لَا يَلْحَقُه﴾ د سمع له باب څخه د نفي صيغه ده: يو ځاى كېدل، را رسېدل. ﴿يُؤَدَّبُون﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع مذكر غائب مضارع مجهول صيغه ده: د دې باب خپله معنىٰ د "أدب ور زده كولو" ده: لېكن كله چې يې په صله كې مجرم ذكر سي نو بيا د "سزا وركولو" په معنىٰ سره راځي (مصباح اللغات). ﴿جِنَايَة﴾ جرم، بدكار، ﴿خَنَقَ﴾ د نصر ماضي ده: غاړه خپه كول، تر ستوني نيول. ﴿مُثَقَّل﴾ درونډ (درون) وزني (وزن داره)، ﴿سَاعِي﴾ د فتح اسم فاعل دى: كوښښ كونكى، زيار ايستونكى.

**تشريح: مسئله**: دا ده چې كله د ډاكوګانو په جماعت كې د صبي يا د مقطوع عليه د ذو رحم محرم د موجود والي پر بناء له ټولو ډاكوګانو څخه حدّ ساقط سي نو اوس به د مقتولينو اولياؤ ته له دوى څخه د قصاص اخيستلو حق وي؛ ځكه د حدّ د سقوط په وجه چې كله په دې معامله كي الهي حق ساقط سو نو په هغه كې د بنده حق (حقُ العبد) ښكاره سو. او د حقُ العبد د اخيستلو حق د مقتول اولياؤ ته حاصل دى. لهذا كه هغوى وغواړي نو ډاكوګان دې قتل كړي او كه وغواړي نو معاف دې يې كړي.

**وإذا قطع إلخ**: د دې حاصل دا دى چې كه د قافلې ځيني خلك پر ځينو حمله وكړي او د هغوى مال لوټ كړي، نو پر مجرمانو به حدّ نه جاري كيږي، ځكه چې دلته قاطع او مقطوع عليهم ټوله يو حرز دى او ټوله قافله د يوه كور په څير ده، نو ګواكې هغوى خپل مال غلا كړى دى او د خپل مال په غلا كولو سره قطع نه واجبيږي، نو ځكه به دلته هم حدّ نه جاري كيږي.

**ومن قطع إلخ**: فرمايي كه يو څوك په ښار كې ډاكه ووهي، برابره د ورځي دا كار وكړي يا د شپې، يا د كوفې او "حيره" په مينځ كې ډاكه ووهي (د كوفې او "حيره" په مينځ كې د يوه ميل فاصله ده)، نو استحساناً به هغه ډاكو نه شمارل كيږي، لېكن قياساً هغه ډاكو شمارل كيږي او پر هغه به حدّ جاري كيږي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى؛ د دې قول دليل دا دى چې د هغه له طرفه حقيقتاً ډاكه ماري موجوده سوه نو ځكه به هغه ډاكو شمارل كيږي. له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په دې سلسله كي يو روايت دا دى چې كه هغه له ښار څخه د باندې ډاكه وهلې وي نو پر هغه به حدّ واجبيږي كه څه هم هغه ښار ته نژدې دا كار كړى وي، ځكه چې له ښار

ځخه دباندي ډاکو ته ښه موقع په لاس ورځي او هلته مظلوم او مقطوع علیه کس ته کومک او مرسته نه را رسیږي.

له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روایت دا دی چي که ډاکوګانو د ورځي په وسله سره جنګ کړی وي یا يې د شپې په وسله یا لکړو سره جنګ کړی وي، نو هغوی به ډاکوګان وي او د هغو دا فعل به ډاکه شمارل کیږي او د حدّ موجب به وي؛ ځکه چي يو ځو د وسلې په وجه مظلوم او مقطوع علیه کس هیڅ نه سي کولای. او بل دا چي د شپې مرسته او کومک په ځنډ سره را راسیږي، لهذا په دې صورت کي به کما حقهٔ ډاکه ماري ثابته سي او ډاکوګان به د حدّ مستحقین وګرځي.

زموږ له طرفه هغه ته دا جواب ورکول سوی دی چي ډاکه ماري خو عموماً د مسافرانو او لاروپانو په لوټولو سره ثابتیږي، او په ښار کي یا ښار ته نژدې په یو ځای کي د مسافرانو لوټول ممکن نه دي، ځکه چي په داسي ځایو کي د خلکو تګ راتګ زیات وي او مقطوع علیه ته ژر مرسته او تعاون رسیږي. لهذا په ښار کي او ښار ته په نژدې علاقه کي د مال لوټول به ډاکه ماري نه شمارل کیږي او پر داسي لوټونکو به حدّ نه جاري کیږي، لېکن دوی به نیول کیږي د دې لپاره چي د کومو خلکو مال يې اخیستی وي د هغو حق واپس ځني واخیستل سي، او دغه بدبختانو ته به سزا هم ورکول کیږي او جېل ته به هم اچول کیږي د دې لپاري چي آینده داسي شرمنده حرکت نه وکړي او د همېشه لپاره د لوټماری څخه منع سي.

**ولو قتلوا إلخ:** فرمايي که دغه ډاکوګانو یو څوک قتل کړی وي نو د قصاص معامله به اولیاؤ ته سپارل کیږي: ځکه چي د حدّ ساقطېدلو په وجه په دې کي حقُ العبد ښکاره سو. او د حقُ العبد د اخیستلو حق د بنده اولیاؤ ته یعني د مقتول اولیاؤ ته حاصل وي، په لِمَا بَيَّنَّا سره صاحب د هدایې همدې طرف ته اشاره کړې ده او همدا مفتیٰ به دي. (بناية ج:۶. ص:۴۸۸)

**ومن خنق رجلا إلخ:** مسئله دا ده که یو سړی بل څوک خپه کړي او مړ يې کړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د خانق او قاتل پر عاقله وو د مقتول دیت واجبیږي، دا په حقیقت کي په ثقیل او درانه شي سره د وژلو مسئله ده چي د هغه پوره تفصیل به انشاء الله په کتابُ الدیات کي ذکر سي، او د هغه خلاصه دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز داسي قتل "قتلِ خطاء" دی، له همدې کبله د دې دیت عاقله اداء کوي لأن العواقل لا تعقل العمد. او که یو سړي په ښار کي څو خلک خپه کړي وي او د ده د خپه کولو په وجه هغه خلک مړه سوي وي، نو دغه وحشي درنده به نیول کیږي او د مرګ سزا به ورکول کیږي، ځکه چي هغه په ځمکه کي د فساد غوروونکی دی لهذا د هغه ختمول ډېر ضروري دي، د دې لپاره چي خلک د هغه له شر او فساد څخه وساتل سي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# كِتَابُ السِّيَرِ

(دا) كتاب د "سِيَر" (د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح**: تر كتابُ الحدود وروسته فوراً د كتابُ السِّيَر د بيانولو وجه دا ده چې د حدونو او د سِيَر دواړو مقصد "تطهير" دى يعني دنيا له فتنه او فساد څخه پاكول، لېكن څرنګه چې په "حدود" كې دادنیٰ درجې تطهير دى او په سِيَر يعنې په جهاد كې د اعلىٰ درجې تطهير دى او قاعده دا ده چې ترقي له ادنیٰ څخه د اعلىٰ وطرف ته وي، نو په دې وجه صاحب د هدايې له ادنیٰ تطهير څخه وروسته اوس د اعلىٰ تطهير بيان كوي. د هدايې محشي علامه لكنوي رَحِمَهُ الله د دې وجه دا بيان كړې ده چې د حدونو مقصد دنيا له فسق او فجور څخه پاكول دي او د سِيَر او مغازي يعنې د جهاد مقصد دنيا له كفر او شرك څخه پاكول دي، همدارنګه ځينې حدود فقط حقُّ العبد هم وي لېكن جهاد فقط حقُّ الله دى. او حقوقُ العبد له حقوقُ الله څخه مخكې وي. لهذا په دې حوالو سره هم حدود له سِيَر څخه مخكې سوي دي. د سِيَر لغوي او اصطلاحي معنیٰ په كتاب كې ذكر سوې ده. (بنايه ج:۶، ص:۴۸۹)

## د "سِيَر" لغوي او اصطلاحي معنیٰ

| اَلسِّيَرُ جَمْعُ سِيْرَةٍ سِيَر جمع د سِيْرَةٌ ده وَهِيَ الطَّرِيْقَةُ فِي الْأُمُورِ او د هغه الغوي معنیٰ ده اد كارونو طريقه وَفِي الشَّرْعِ تَخْتَصُّ بِسِيَرِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي مَغَازِيْهِ او په شريعت كې دا لفظ [سِيْرَة] په غزاګانو كې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د طريقو سره خاص دى. |
|---|

**اللغات**: ﴿مَغَازِي﴾ غزاګاني (غزوات)، جنګونه.

**تشريح**: د "سيرة" لغوي معنیٰ ده: طريقه، لاره، خوى او عادت. او د شريعت په اصطلاح كې "سيرة" هغه طريقې ته وايي كوم چې نبي كريم ﷺ په خپلو غزاګانو كې اختيار كړې وه. او څرنګه چې په دې كتاب (كتابُ السير) كې د نبي كريم ﷺ او د صحابه كرامو او د غازي مسلمانانو أحوال او واقعات بيان سوي دي. نو په همدې مناسبت سره د دې كتاب نوم "كتابُ السير" اېښوول سوى دى. (بناية ج:۶، ص:۴۸۹)

## د جهاد شرعي حيثيت او د هغه دلائل

قَالَ: اَلْجِهَادُ فَرْضٌ عَلَى الْكِفَايَةِ فرمايي: چي جهادِ فرضِ كفايي دى إِذَا قَامَ بِهِ فَرِيقٌ مِنَ النَّاسِ سَقَطَ عَنِ الْبَاقِينَ كله چي د خلكو يو جماعت [دله] هغه اداء كړي نو له پاته خلكو څخه فرضيت ساقطيږي أَمَّا الْفَرْضِيَّةُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً [التوبة: ۵] كوم چي فرضيت دى نو ځكه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: تاسي ټوله [تمام] د مشركينو سره وجنګېږئ! لكه څرنګه چي هغوى ټوله ستاسي سره جنګيږي وَلِقَوْلِهِ الطَّيْكِلا [1]: اَلْجِهَادُ مَاضٍ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ او ځكه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: جهاد دَ قيامت تر ورځي پوري جاري دى وَأَرَادَ بِهِ فَرْضًا بَاقِيًا او په دې فرمان سره د نبي ﷺ مراد دا دى چي جهاد [تر قيامته پوري] باقي پاتېدونكى فرض دى وَهُوَ فَرْضٌ عَلَى الْكِفَايَةِ لِأَنَّهُ مَا فُرِضَ لِعَيْنِهِ او جهاد فرضِ كفايي ځكه دى چي هغه د خپل ذات په اعتبار سره فرض نه دى إِذْ هُوَ إِفْسَادٌ فِي نَفْسِهِ ځكه چي هغه په حقيقت كي خرابول [ويجاړول] دي وَإِنَّمَا فُرِضَ لِإِعْزَازِ دِينِ اللهِ وَدَفْعِ الشَّرِّ عَنِ الْعِبَادِ [بلكي] جهاد دالهي دين دلوړولو [او غالب ګرځولو] لپاره او له بندګانو څخه د شر دفع كولو لپاره فرض سوى دى فَإِذَا حَصَلَ الْمَقْصُودُ بِالْبَعْضِ لهذا كله چي په ځيني خلكو سره دا مقصود حاصل سي سَقَطَ عَنِ الْبَاقِينَ نو له پاته خلكو څخه به فرضيت ساقطيږي كَصَلَاةِ الْجِنَازَةِ وَرَدِّ السَّلَامِ لكه د جنازې لمونځ او د سلام جواب وركول فَإِنْ لَمْ يَقُمْ بِهِ أَحَدٌ ليكن كه هيڅوک هم جهاد اداء نه كړي أَثِمَ جَمِيعُ النَّاسِ بِتَرْكِهِ نو د جهاد پرېښولو په وجه به ټوله خلک ګنهګاره وي لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَى الْكُلِّ ځكه چي وجوب پر ټولو دى وَلِأَنَّ فِي اشْتِغَالِ الْكُلِّ بِهِ قَطْعَ مَادَّةِ الْجِهَادِ مِنَ الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ او ځكه چي په جهاد كي د ټولو خلكو په مشغولېدلو سره د جهاد سامان يعني آسونه او اسلحه ختمول لازميږي فَيَجِبُ عَلَى الْكِفَايَةِ نو [په دې وجه] به جهاد د فرضِ كفايي په توګه واجب وي إِلَّا أَنْ يَكُونَ النَّفِيرُ عَامًّا ليكن كه عام جنګ [او نبنته] وي فَحِينَئِذٍ يَصِيرُ مِنْ فُرُوضِ الْأَعْيَانِ نو په دې صورت كي جهاد فرض عين ګرځي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: انْفِرُوا خِفَافًا

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب في الغزو مع المة الجور، رقم الحديث: ۲۵۳۲

| |
|---|
| وَثِقَالًا [التوبة: ٤١] ځکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي: إِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّ ثِقَالًا. |

**اللغات**: ﴿فرِيْق﴾ ډله، جماعت، ګروپ. ﴿کافّة﴾ ټوله. ﴿إفساد﴾ خرابول، وېجاړول. ﴿إعزاز﴾ د افعال مصدر دی: عزيز ګرځول، غالب ګرځول. ﴿کُراع﴾ مراد ځنې جهادي آسونه دي. ﴿سلاح﴾ اسلحه، وسله. ﴿نفير﴾ وتل، نفيرِ عام، عام جنګ، صاحب د معجم الوسيط يې داسې تعريف کړی دی: "النفير الْعَام: قيام عَامَّة النَّاس لِقِتَال الْعَدو" (يعني د دښمن سره د جنګ کولو لپاره د عام اُولس تيارېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې جهاد پر عامو مسلمانانو "فرضِ کفايي" دی، او که چېرې د مسلمانانو يو جماعت جهاد وکړي او د جهاد حق اداء کړي نو له ټولو خلکو څخه د جهاد فرضيت ساقطيږي، لېکن په کوم ښار يا په کوم ملک (هيواد) کې چې کفارو پر مسلمانانو حمله کړې وي د هغه ښار او ملک پر ټولو خلک جهاد فرض دی؛ هسې خو د جهاد فرضيت په بې شمېره آيتونو سره ثابت دی خو صاحب د هدايې چې د جهاد د نفسِ فرضيت په هکله کوم دليل وړاندې کړی دی هغه د قرآن کريم دا آيت دی: "فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ كَافَّةً". همدارنګه په دې حديث سره هم د جهاد فرضيت ثابت دی "الجِهَادُ مَاضٍ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ". او د دې مراد او مقصد دا دی چې جهاد تر قيامته پورې پاتېدونکې او دوام کونکې فريضه ده.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چې د جهاد أصل او حقيقت إفساد دی، ځکه چې د جهاد سره خلکو ته تکليف ورکول او ملکونه او ښارونه وېجاړول لازم دي. نو په دې وجه به دا فرض لعينه نه وي (يعني د خپل ذات په وجه به فرض نه وي)، بلکې فرض لغيره به وي، ځکه چې د جهاد په ذريعه الهي دين ته استحکام او إعزاز ورنصيب کيږي او له بندګانو څخه شرور او آفات لېرې کيږي. او کله چې د ځينې خلکو په جهاد کولو سره دا مقصد حاصليږي نو ښکاره خبره ده چې پر هر کس باندې (فرداً فرداً) د جهاد فرض کولو څه ضرورت نسته. د دې مثال داسې دی لکه د جنازې لمونځ کول يا لکه پر يوه ځای په ناستو خلکو کې پر يوه سړي باندې د سلام جواب ورکول فرضِ کفايي دي. او پر هر کس باندې د جنازې لمونځ يا د سلام جواب ورکول فرض نه دي. همداسې جهاد کول او په جهاد کې مشغول اوسېدل هم پر هر يوه فرض نه دي. لېکن که هيڅ قوم او هيڅ يو جماعت دا فريضه اداء نه کړي نو ټوله به ګنهګاره او د سزا مستحق وي، ځکه چې د جهاد "نفسِ وجوب" خو پر هر يوه سته لېکن

"وجوبِ اداء" پر ټولو نسته، او د هیڅچا په جهاد نه کولو سره د "نفسِ وجوب" پرېښوول لازمیږي، نو د ترکِ وجوب په وجه سره به ټوله خلک ګنهګاره وي.

**ولأن في اشتغال الكل إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که ټوله خلک په جهاد کي مشغوله سي نو د جهاد سامان یعني اسلحې او آسونه به ټوله معدوم او نیستي سي او مجاهدین به په مشقت او تکلیف کي مبتلا سي، نو په همدې وجه شریعت جهاد "فرضِ کفایي" ګرځولی دی. ها! که چیري عام جنګ او نښته ومښلي او کفار پر مسلمانانو باندي راجمع سي او د إمامُ المسلمین له طرفه د هر مسلمان وتل لازمي وګرځول سي، نو په دې صورت کي پر هر مسلمان جهاد فرضِ عین ګرځي (ځکه چي پر هر مسلمان د خپل ځان او مال حفاظت کول فرض کیږي) او په دې صورت کي پر ځوانانو او سپین بږیرو ټولو جهاد فرض کیږي د دې لپاره چي د مسلمانانو د کثرت او قوت په لیدلو سره کافران په خوف او بېره کي ولوېږي او پر دوی باندي د مسلمانانو رعب او هیبت پرېوځي. د دې حکم دلیل د قرآن کریم دا آیت دی "اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا" یعني په تاسي کي دي سپک هم ووځي او درانه هم! یعني د نفیرِ عام په صورت کي به تاسي ټوله وځئ! او له وتلو څخه بغیر خلاصون نسته. ځیني مفسرینو د "خِفَافًا وَّثِقَالًا" تفسیر داسي کړی چي تاسي پیاده او سپاره ټوله ووځئ!.

## په مختلفه حالاتو کي د جهاد مختلفه احکام

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: اَلْجِهَادُ وَاجِبٌ إِلَّا أَنَّ الْمُسْلِمِينَ فِي سَعَةٍ امام محمد رَحِمَهُ الله په جامعِ صغیر کي فرمایلي دي: چي جهاد واجب دی خو مسلمانانو لره [په دې کي] ګنجائش سته حَتَّى يُحْتَاجَ إِلَيْهِمْ تر دې چي هغو ته حاجت پېښ سي فَأَوَّلُ هٰذَا الْكَلَامِ إِشَارَةٌ إِلَى الْوُجُوبِ عَلَى الْكِفَايَةِ وَآخِرُهُ إِلَى النَّفِيرِ الْعَامِّ د دې کلام په اوله حصه کي ودې ته اشاره ده چي جهاد فرضِ کفایي دی او په آخري حصه کي یې د نفیرِ عام وطرف ته اشاره ده وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَقْصُودَ عِنْدَ ذٰلِكَ لَا يَتَحَصَّلُ إِلَّا بِإِقَامَةِ الْكُلِّ او دا ځکه چي د نفیرِ عام په وخت کي د ټولو خلکو له جهاد څخه بغیر مقصود حاصلېدای نه سي فَيَفْتَرِضُ عَلَى الْكُلِّ نو ځکه به پر ټولو جهاد فرض وي وَقِتَالُ الْكُفَّارِ وَاجِبٌ وَإِنْ لَمْ يَبْدَءُوا او د کفارو سره جنګ کول واجب دي که څه هم هغوی شروع [پېش قدمي] نه وکړي لِلْعُمُومَاتِ ځکه چي په آیتونو او حدیثونو کي عموم دی وَلَا يَجِبُ الْجِهَادُ عَلَى صَبِيٍّ او پر بچي باندي جهاد واجب نه دی لِأَنَّ الصَّبِيَّ مَظِنَّةُ الْمَرْحَمَةِ ځکه چي بچی د رحم ځای دی ایعني د شفقت محل دی] وَلَا عَبْدٍ وَلَا امْرَأَةٍ او نه پر غلام او نه پر ښځي [جهاد واجب دی] لِتَقَدُّمِ حَقِّ الْمَوْلَى وَالزَّوْجِ ځکه چي د

مالک او خاوند حق مخکې دی وَلَا أَعْمٰى وَلَا مُقْعَدٍ وَلَا أَقْطَعَ او نه پر نابینا او نه پر شوټ او نه پر هغه کس [جهاد واجب دی] چې لاس یې پرېکړی سوی وي لِعَجْزِهِمْ ځکه چې دغه ټوله کسان اله جهاد کولو څخه] عاجز دي فَإِنْ هَجَمَ الْعَدُوُّ عَلٰى بَلَدٍ او که دښمن پر یو ښار باندي حمله وکړي وَجَبَ عَلٰى جَمِيعِ النَّاسِ الدَّفْعُ نو پر ټولو خلکو به دفاع کول [او جنګ ته را وتل] واجب وي تَخْرُجُ الْمَرْأَةُ بِغَيْرِ إِذْنِ زَوْجِهَا ښځه به د خپل خاوند له اجازې څخه بغیر وځي وَالْعَبْدُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلٰى او غلام به د خپل مالک له اجازې څخه بغیر [وځي] لِأَنَّهُ صَارَ فَرْضَ عَيْنٍ ځکه چې [اوس] جهاد فرضِ عین وګرځېدی وَمِلْكُ الْيَمِينِ وَرِقُّ النِّكَاحِ لَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ فُرُوضِ الْأَعْيَانِ او په فرضِ عین کې د ملکِ یمین او ملکِ نکاح اثر نه ښکاره کیږي كَمَا فِي الصَّلَاةِ وَالصَّوْمِ لکه په لمانځه او روژه کې بِخِلَافِ مَا قَبْلَ النَّفِيرِ په خلاف تر نفیرِ عام د مخکني حالت لِأَنَّ بِغَيْرِهِمَا مُقْنَعًا ځکه چې [په هغه حالت کې] له دې دواړو څخه بغیر هم کفایت سته [یعني تر نفیرِ عام مخکې له دوی څخه بغیر نور مسلمانان د جهاد لپاره کافي وي او مقابله کولای سي] فَلَا ضَرُورَةَ إِلٰى إِبْطَالِ حَقِّ الْمَوْلٰى وَالزَّوْجِ لهذا د مالک او خاوند د حق باطلولو هیڅ ضرورت نسته وَيُكْرَهُ الْجُعْلُ مَا دَامَ لِلْمُسْلِمِينَ فَيْءٌ او تر څو چې د مسلمانانو سره [په بیتُ المال کې] مال وي تر هغه وخته پورې د جهاد لپاره څه اخیستل [چنده ټولول] مکروه دي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الْأَجْرَ ځکه چې دا [د جهاد لپاره چنده ټولول] د اُجرت سره مشابه دي وَلَا ضَرُورَةَ إِلَيْهِ او د دې [چندې] ضرورت [هم] نسته لِأَنَّ مَالَ بَيْتِ الْمَالِ مُعَدٌّ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِينَ ځکه چې د بیتُ المال مال د مسلمانانو د پېښو [او آفاتو] د لیرې کولو لپاره تیار سوی دی فَإِذَا لَمْ يَكُنْ [لیکن] که چیري په بیتُ المال کې مال نه وي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُقَوِّيَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا نو بیا په دې کې هیڅ پروا نسته چې اد چندې کولو په ذریعه] ځیني و ځینو ته تقویه ورکړي لِأَنَّ فِيهِ دَفْعَ الضَّرَرِ الْأَعْلٰى بِإِلْحَاقِ الْأَدْنٰى ځکه چې په دې کې د ادنیٰ ضرر په زغملو [برداشت کولو] سره د أعلیٰ ضرر لیرې کول دي يُؤَيِّدُهُ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَخَذَ[1] دُرُوعًا مِنْ صَفْوَانَ د دې تأئید په دې سره کیږي چې نبي ﷺ له صفوان بن اُمیه څخه یو څو زغري واخیستې وَعُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ يُغْزِي الْأَعْزَبَ عَنْ ذِي الْحَلِيلَةِ او حضرت عمر ﷺ به بې واده [مُجرّد] سړی د واده لرونکي سړي له طرفه غزا ته استوی وَيُعْطِي الشَّاخِصَ فَرَسَ الْقَاعِدِ او [په غزا کې] تلونکي سړي ته به یې د ناست [نه تلونکي] سړي آس ورکوی.

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب البيوع، باب في تضمين العارية، رقم الحديث:۳۵۶۲.

**اللغات:** ﴿سعة﴾ گنجائش، پراخي، ﴿مظنة﴾ د گومان ځای، مقام، محل، ﴿مُقعد﴾ شل، شوټ (پر کونه ناست)، معذور، ﴿دَفْع﴾ دفاع او مدافعت کول، ﴿مَقْنَع﴾ کفایت، ﴿نوائب﴾ جمع د نَائِبَةٌ ده: پېښه، واقعه، مصیبت، ﴿دروع﴾ جمع د دِرْعٌ ده: زغره، ﴿يُغزي﴾ د افعال مضارع ده: جهاد او غزا ته استول، ﴿أعزب﴾ بې واده، هغه کس چي تر اوسه يې واده کړی نه وي، ﴿حليلة﴾ ښځه، ماینه، ﴿شاخص﴾ جنګېدونکی، جنګ او غزا ته تلونکی.

**تشریح:** د قدوري په حواله سره د جهاد د فرضیت او نوعیت تر بیانولو وروسته اوس صاحب د کتاب د جامع صغیر په حواله سره د جهاد فرضیت بیانوي فرمایي چي جهاد خو واجب دی لېکن پر هر يوه باندي د دې وجوب نسته، بلکي په دې کي گنجائش سته يعني پر ټولو خلکو جهاد کول واجب نه دي، ها! که چیري نفیرِ عام او عام جنګ ومښلي او د امامُ المسلمین له طرفه د ټولو خلکو لپاره وتل لازمي وگرځول سي، نو په داسي صورت کي به دا گنجائش او رعایت ختمیږي.

**إلا أن المسلمين في سعة:** په دې سره د جهاد د "فرضِ کفايي" کېدلو ثبوت بیان سوی دی او په "حتى يحتاج إليهم" سره د جهاد د "فرضِ عين" کېدلو ثبوت بیان سوی دی.

**وقتال الكفار واجب إلخ:** فرمایي چي د کفارو او مشرکینو سره جهاد کول فرض او واجب دي که څه هم د دوی له طرفه پر جنګ او قتال باندي پېش قدمي نه وسي، ځکه چي په قرآني آیتونو مثلاً په "اُقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ وَقَاتِلُوْهُمْ... إلخ" کي عموم دی، همدارنګه په نبوي احادیثو کي هم عموم دی، مثلاً "الجهاد ماضٍ إلى يوم القيامة" او "أُمرتُ أن أُقاتل حتى يقولوا لا إله إلّا الله"، او دا عموم د دې خبري دلیل دی چي د کفارو سره دي جنګ او قتال وکړی سي برابره ده د هغو له طرفه وړاندیتوب او پېش قدمي وسي او که نه.

**ولا يجب إلخ:** د دې حاصل دا دی چي پر بچیانو، غلامانو او ښځو باندي جهاد فرض نه دی، ځکه چي اول خو بچی د شریعت په أحکامو مکلّف نه دی، او دویم دا چي هغه د شفقت محل دی او جنګ او جهاد ته د هغه ایستل د شفقت او اُلفت خلاف دي، او ښځه او غلام د خپل خاوند او مالک د خدمت لپاره وقف وي او په جهاد کي د دوی په وتلو سره د خاوندانو او مالکانو حقوق ضایع کیږي، او څرنګه چي دا حقوقُ العباد دي نو ځکه به هغه پر حقُ الله مخکي وي.

**فإن هجم العدو إلخ:** فرمایي که چیري دښمن د مسلمانانو پر ملک حمله وکړي او نفیرِ عام واقع سي، نو په دې صورت کي پر هر يوه جهاد فرضِ عين گرځي تر دې چي ښځه به د خپل خاوند له رضا او اجازې څخه بغیر وځي او غلام به د خپل مالک له رضا څخه بغیر وځي، ځکه چي د فرضِ عین په اداء کولو کي د خاوند او مالک حق مانع نه گرځي لکه څرنګه چي لمونځ او روژه فرضِ عین دي او د دوی په اداء کولو کي د هیڅا حق مانع نه دی همداسي به د نفیرِ عام واقع کېدلو په صورت کي هم په جهاد کي له وتلو څخه د هیڅا حق مانع نه وي.

ها! كه چيري نفيرِ عام نه وي نو په دې صورت كي به پر ښځي او غلام جهاد فرضِ عين نه وي. ځكه چي په دې صورت كي به له ښځي او غلام څخه بغير هم موجوده مسلمانان د مقابلې كولو لپاره كافي وي او د دوى په شركت نه كولو سره به د مسلمانانو په قوت كي كمي نه راځي، لهذا بېله څه وجهي به د خاوند او مالک حق نه باطلول كيږي.

**ويكره الجعل إلخ:** د دې حاصل دا دى چي كه په بيتُ المال كي مال موجود وي نو په هغه مال سره به جهاد كيږي او د جهاد لپاره به مخصوصه چنده نه كيږي؛ ځكه چي د جهاد لپاره چنده ټولول د اُجرت اخيستلو سره مشابه دي، حالانكي جهاد خالص د الله تعالىٰ حق دى او په دې كي د اُجرت گنجائش نسته، او په بيتُ المال كي د مال د موجود والي په صورت كي د چندې ضرورت هم نسته. ځكه چي بيتُ المال د همدې لپاره جوړيږي چي د هغه مال په پېښېدونكو واقعاتو او آفاتو كي مسلمانانو ته په كار راسي، نو په دې وجه تر څو چي په بيتُ المال كي مال وي تر هغه وخت پوري د جهاد لپاره چنده ټولول صحيح او مناسب نه دي. بلكي د فقهاؤ په نظر كي مكروه كار دى، ها! كه چيري په بيتُ المال كي مال نه وي نو په دې صورت كي د چندې او داسي نورو په ذريعه يو د بل مرسته كول كېداى سي، ځكه چي چنده كول د ادنىٰ درجې ضرر دى او د كفارو سره جنگ او مقابله پرېښوول د اعلىٰ درجې ضرر دى، او قاعده دا ده چي "إِذَا اجْتَمَعَ مَفْسَدَتَانِ رُوْعِيَ أَعْظَمُهُمَا ضَرَرًا بِارْتِكَابِ أَخَفِّهِمَا" (يعني كله چي په يوه مسئله كي دوه ضررونه جمع سي نو هلته به سپک او أدنىٰ ضرر اختياروِل كيږي)، لهذا دلته به هم ادنىٰ شى يعني "چنده ټولول" زغمل كيږي د دې لپاره چي د كفارو سره مقابله وسي او د هغو د شر او فساد مخ ونيول سي.

د دې تائيد د نبي كريم ﷺ په دې واقعه سره هم كيږي چي نبي ﷺ د حُنين په غزا كي له صفوان بن اُميه څخه يو څو زغري په عاريت اخيستي وې. او د حضرت عمر رضي الله عنه عادت دا وو چي بې واده (مجرّد) ځوانان به يې د واده لرونكو خلكو له طرفه په جهاد كي استول او كوم كس چي به جهاد ته تلى او د هغه سره به سپارلى نه وو نو نبي كريم ﷺ د نه تلونكي كس آس هغه ته وركوى، همدغه ته "جُعل" وايي. له دې څخه معلومه سوه چي د حاجت په اندازه د "جُعل" گنجائش سته، ها! بېله ضرورته مكروه دى. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ كَيْفِيَّةِ الْقِتَالِ

(دا) باب د جنګ کولو د کیفیت (په بیان کي) دی

**تشریح**: څرنګه چي د جهاد اوله مرحله قتل او قتال دی. نو ځکه صاحب د هدایې له کتابُ السِیَر څخه متصلاً وروسته باب کیفیة القِتال بیان کړی دی.

**قِتَال**: یو د بل سره جنګ کول. په اسلحه (وسله) سره د ځانو دفاع کول.

## د جنګ ابتدائي احکام

وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُونَ دَارَ الْحَرْبِ او کله چي مسلمانان دارُ الحرب ته داخل سي فَحَاصَرُوا مَدِينَةً أَوْ حِصْنًا او [هلته] یو ښار یا یوه کلا محاصره کړي دَعَوْهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ نو کافرانو ته دي د اسلام دعوت ورکړي لِمَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ[1] : أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام مَا قَاتَلَ قَوْمًا حَتَّى دَعَاهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ ځکه چي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روایت کړی دی چي نبي کریم د اسلام له دعوت ورکولو څخه بغیر د هیڅ قوم سره هم جنګ نه دي کړی فَإِنْ أَجَابُوا نو که کفار [اسلام] قبول کړي كَفُّوا عَنْ قِتَالِهِمْ نو مجاهدین دي د هغو له جنګ څخه منع سي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چي مقصود حاصل سو وَقَدْ قَالَ: عليه السلام[2] : أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ او نبي ﷺ فرمایلي دي: ما ته د خلکو سره د جنګ کولو حکم سوی دی تر دې چي هغوی لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ووایي وَإِنِ امْتَنَعُوا دَعَوْهُمْ إِلَى أَدَاءِ الْجِزْيَةِ او که کفار له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي نو هغوی ته دي د جزیې اداء کولو دعوت ورکړي بِهِ أَمَرَ[3] رَسُولُ اللهِ عليه السلام أُمَرَاءَ الْجُيُوشِ په همدې سره نبي کریم ﷺ د لښکرونو أمیرانو ته حکم کړی وو وَلِأَنَّهُ أَحَدُ مَا يَنْتَهِي بِهِ الْقِتَالُ او ځکه چي دا [جزیه] له هغو شیانو څخه ده چي په هغه سره جنګ ختمیږي

---

[1] تخریج: أخرجه حاكم في المستدرك، كتاب الأيمان ج:۱ ص:۱۵.
[2] تخریج: أخرجه مسلم في كتاب الأيمان، باب الأمر بقتال الناس، رقم الحديث:۳۳.
[3] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب في دعاء المشركين، رقم الحديث:۲۶۱۲.

ايعني د جزيې په اداء كولو سره د جنګ او قتال حكم ساقطيږي او كفار خلاصيږي! عَلَىٰ مَا نَطَقَ بِهِ النَّصُّ لكه آيت چي د دې بيان كړى دى وَهٰذَا فِي حَقِّ مَنْ تُقْبَلُ مِنْهُ الْجِزْيَةُ او دا حكم د هغه كافرانو سره متعلق دى چي له هغو څخه جزيه قبلول كيږي وَمَنْ لَا تُقْبَلُ مِنْهُ كَالْمُرْتَدِّينَ وَعَبَدَةِ الْأَوْثَانِ مِنَ الْعَرَبِ لَا فَائِدَةَ فِي دُعَائِهِمْ إِلَىٰ قَبُولِ الْجِزْيَةِ او له چا څخه چي جزيه نه قبلول كيږي لكه مرتدين او بت پرسته كافران نو هغوى ته د جزيې دعوت وركول بې فايدې دي لِأَنَّهُ لَا يُقْبَلُ مِنْهُمْ إِلَّا الْإِسْلَامُ ځكه چي له اسلام څخه بغير بل هيڅ شى له هغو څخه نه قبلول كيږي قَالَ: اللهُ تَعَالَىٰ تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ [الفتح: ۱۶] الله تعالىٰ فرمايلي دي: تاسي به د هغوى سره جنګ كوئ! يا هغوى به اسلام راوړي اله دې څخه بغير د دوى لپاره بله هيڅ لاره نسته! فَإِنْ بَذَلُوهَا فَلَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ او كه چيري كفار جزيه قبوله كړي نو د دوى لپاره به هغه [حفاظت او ساتنه] وي كوم چي د مسلمانانو لپاره وي او پر دوى به هغه [قوانين لازم] وي كوم چي پر مسلمانانو لازم وي لِقَوْلِ عَلِيٍّ*: إِنَّمَا بَذَلُوا الْجِزْيَةَ لِيَكُونَ دِمَاؤُهُمْ كَدِمَائِنَا وَأَمْوَالُهُمْ كَأَمْوَالِنَا ځكه چي حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي دي: چي دغه كافرانو د همدې لپاره جزيه قبوله كړې ده چي د دوىويني زموږ د وينو په څير او د دوى مالونه زموږ د مالو په څير محفوظ سي وَالْمُرَادُ بِالْبَذْلِ الْقَبُولُ او له "بذل" څخه مراد "قبلول" دي وَكَذَا الْمُرَادُ بِالْإِعْطَاءِ الْمَذْكُورِ فِيهِ فِي الْقُرْآنِ او په دې هكله چي په قرآن كريم كي "إعطاء" ذكر سوى دى له هغه څخه هم "قبلول" مراد دي.

**اللغات**: ﴿حاصروا﴾ د مفاعلې ماضي ده: محاصره كول. ﴿حِصْن﴾ قلعه. كلا. ﴿أَجَابُوا﴾ د افعال ماضي ده: جواب وركول. قبلول. ﴿جِزْيَة﴾ ماليه. ټكس. هغه ماليه چي يهود او نصارا يې اسلامي حكومت ته وركوي او اسلامي حكومت د هغه په مقابله كي د دوى د ځانو او مالونو د حفاظت ذمه واري اخلي. ﴿كفوا﴾ د نصر له باب څخه د جمع مذكر غائب ماضي معلوم صيغه ده: منع كېدل. درېدل. ﴿بذلوها﴾ د نصر ماضي ده: خرڅول. مصرفول. مراد ځني قبلول دي لكه څرنګه چي صاحب د هدايې فرمايلي دي.

* تخريج: رواه دار القطنى فى كتاب الحدود والديات ج:۳، ص:۱۰۶، رقم حديث: ۳۲۵۸.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله مسلمانان د کفارو سره د مقابلې او جنګ کولو لپاره ووځي او دارُ الحرب ته ننوځي او يو ښار يا يوه قلعه (کلا) محاصر کړي. نو هغو ته پکار دي چې فوراً پر کافرانو حمله نه وکړي، بلکي مخکي دي هغو ته د اسلام دعوت ورکړي. که هغوی اسلام راوړي نو بيا دي قتل او قتال نه کوي، ځکه چې همدا د نبي کريم ﷺ طريقه وه. لکه څرنګه چې د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کي د دې وضاحت سوی دی. او په دې حديث "اُمِرتُ أن اُقاتِل النَّاس... إلخ" کي د "لا إله إلّا الله" تر ويلو پوري د قتال او جنګ کولو جواز ثابت دی. له دې څخه دا ثابتيږي چې د توحيد او رسالت تر اقرار کولو وروسته به د کفارو سره قتال نه کيږي. ځکه کله چې هغوی اسلام راوړي نو د جهاد مقصد يعني "إعلاء کلمة الله" او د "حق إظهار" حاصل سو. او أصل د مقصد حاصلېدل دي. لهذا کله چې دا مقصد له جهاد او قتال څخه بغير حاصل سي نو بيله څه وجهي د وينې بيولو او خون وخرابه کولو څه ضرورت سته!؟

ها! که چيري کفار له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي نو بيا به له کفارو څخه د "جزيه" غوښتنه کيږي. که چيري کفار د جزيه په ورکولو راضي سي، نو هم به د هغوی سره قتال نه کيږي. ځکه چې په جزيه سره هم قتال ساقطيږي، لکه څرنګه چې د قرآن کريم په دې آيت کي ذکر سوي دي "قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ... حَتّٰى يُعْطُوا الجِزْيَةَ". همدارنګه نبي کريم ﷺ به هم د لښکر أمير ته د جزيې د دعوت ورکولو حکم کوی، لېکن دا خبره مو بايد په ياد وي چې د جزيې د دعوت حکم د هغو کافرانو سره خاص دی کوم چې مرتد او بُت پرسته نه وي او چې له هغو څخه د جزيې اخيستل صحيح وي. همدا وجه ده چې مرتدينو او بت پرسته کافرانو ته به د جزيې وړانديينه او دعوت نه کيږي، بلکي که هغوی د اسلام دعوت قبول نه کړي نو سمدستي به جنګ او قتال ور سره شروع کيږي ځکه چې له هغوی څخه جزيه اخيستل صحيح نه دي. د هغوی په هکله خو قرآن کريم دا اعلان کړی دی "تُقَاتِلُوْنَهُمْ أَوْ يُسْلِمُوْنَ" چې يا به مجاهدين د دوی سره قتال کوي يا به دوی په اسلام سره پناه اخلي او اسلام به راوړي.

**فإن بذلوها إلخ:** فرمايي که چيري له بُت پرسته کُفارو او مرتدينو څخه بغير نور کفار د جزيې په ورکولو راضي سي او دا غوښتنه قبوله کړي، نو د مسلمانانو د ځانو او مالونو په څير به د دوی ځانونه او مالونه هم محفوظ او محترم ګرځي او کوم قوانين او ضوابط چې پر مسلمانانو لازم وي هغه به پر دوی هم لازم او جاري کيږي، لکه څرنګه چې د حضرت علي رضي الله عنه په فرمان کي د دې صراحت سوی دی.

**والمراد إلخ:** فرمايي چې له "بذل" څخه هم "قبلول" مردا دي، او په دې آيت "حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ" کي له "إعطاء" څخه هم "قبلول" مراد دي.

## د قتال د جواز لپاره د تبليغ مسئله

وَلَا يَجُوزُ أَنْ يُقَاتِلَ مَنْ لَمْ تَبْلُغْهُ الدَّعْوَةُ إِلَى الْإِسْلَامِ إِلَّا أَنْ يَدْعُوَهُ او د هغه كفارو سره جنګ كول جائز نه دي چې هغو ته د اسلام دعوت رسېدلې نه وي تر دې چې مجاهدين هغو ته د اسلام دعوت وركړي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1] فِي وَصِيَّةِ أُمَرَاءِ الْأَجْنَادِ: فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ځكه چې د لښكرونو د أميرانو په وصيت كې نبي ﷺ فرمايلي دي: چې [تر ټولو مخكې] تاسې هغوى ته د دې خبرې د ګواهۍ وركولو دعوت وركړئ! چې له الله څخه بغير بل هيڅوك د عبادت وړ نه دى وَلِأَنَّهُمْ بِالدَّعْوَةِ يَعْلَمُونَ أَنَّا نُقَاتِلُهُمْ عَلَى الدِّينِ لَا عَلَى سَلْبِ الْأَمْوَالِ وَسَبْيِ الذَّرَارِيِّ او ځكه چې د دعوت وركولو په صورت كې به كفار په دې پوه سي چې موږ د هغوى سره پر دين جنګيږو، نه د مالونو پر سلبولو او د ښځو پر قيدولو فَلَعَلَّهُمْ يُجِيبُونَ نو كېداى سي چې هغوى [اسلام] قبول كړي فَتُكْفَى مُؤْنَةُ الْقِتَالِ نو موږ به [هم] د جنګ له مشقت څخه خلاص سو وَلَوْ قَاتَلَهُمْ قَبْلَ الدَّعْوَةِ او كه لښكر تر دعوت وركولو مخكې د هغوى سره جنګ وكړي أَثِمَ نو [ټوله لښكر] ګناهګاره ګرځي لِلنَّهْيِ ځكه چې [داسې كول] ممنوع دي وَلَا غَرَامَةَ او [پر مسلمانانو] به ضمان نه وي لِعَدَمِ الْعَاصِمِ وَهُوَ الدِّينُ أَوِ الْإِحْرَازُ بِالدَّارِ ځكه چې [د كفارو په حق كې] ساتونكې شى يعني دين يا په دارُ الإسلام سره محفوظه كېدل معنوم دي فَصَارَ كَقَتْلِ النِّسْوَانِ وَالصِّبْيَانِ نو دا داسې سو لكه [د كفارو] ښځې او بچيان قتل كول وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَدْعُوَ مَنْ بَلَغَتْهُ الدَّعْوَةُ او چا ته چې دعوت رسېدلى وي هغو ته [دويم ځل] دعوت وركول مستحب دي مُبَالَغَةً فِي الْإِنْذَارِ د دې لپاره چې په إنذار كې مبالغه راسې وَلَا يَجِبُ ذَلِكَ لېكن [دا دويم ځل دعوت وركول] واجب نه دي لِأَنَّهُ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام أَغَارَ [2] عَلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ وَهُمْ غَارُّونَ ځكه چې په صحيح روايت كې [ذكر سوي] دي چې نبي كريم ﷺ په داسې حال كې پر بنو مصطلق ناځاپه حمله [چاپه] ووهله چې هغوى غافله وو وَعَهِدَ إِلَى أُسَامَةَ أَنْ يُغِيرَ عَلَى أُبْنَى صَبَاحًا او نبي كريم ﷺ حضرت أسامه رضي الله عنه ته دا وړانديينه [پېشګويي] وكړه چې هغه پر "أُبنى" نومي ځاى د سهار په وخت كې چاپه ووهي ثُمَّ يُحَرِّقَ او [بيا يې] وسوځي وَالْغَارَةُ لَا تَكُونُ بِدَعْوَةٍ او چاپه وهل اغلچكي بريد كول] تر دعوت وركولو وروسته كېداى نه سي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الأيمان، باب الأمر بقتال الناس، رقم الحديث:٣٣.

[2] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الجهاد، باب التحريق بأرض العدو، رقم الحديث:٢٨٤٣.

**اللغات**: ﴿مُؤنة﴾ مشقت، تكليف. ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه كول، خوندي كول. ﴿أَغَارَ﴾ چاپه وهل (پټه او ناڅاپه حمله كول چې هغه ته زموږ په اصطلاح غلچكي بريد وايي). ﴿عَاصِم﴾ له عِصْمَة څخه مشتق دی: حافظ، ساتونكی، د حفاظت شی. ﴿عَهِدَ﴾ د سمع ماضي ده: وعده كول. ژمنه كول. د دې باب په صله كې چې كله "إِلىٰ" راسي نو معنیٰ يې راځي: وصيت كول. وړاندوينه (وړاندیينه). وړاندیز. پېشګويي. عرضه (يو چا ته مخكې د يو شي څرګندونه كول) (المعجم الوسيط). ﴿أُبنَىٰ﴾ د حُبلَىٰ پر وزن: په فلسطين كې د يو ځای نوم دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې كومو كافرانو ته د اسلام دعوت رسېدلی نه وي. له دعوت وركولو څخه مخكې د هغو سره جنګ او قتال كول صحيح نه دي؛ ځكه چې نبي كريم ﷺ به د هر لښكر أمير او ذمه وار ته دا وصيت او نصيحت كوی چې تاسې اول كافرانو ته د اسلام دعوت وركوئ! بيا د هغو سره قتال كوئ!. له دعوت وركولو څخه وروسته به د قتال فايده دا وي چې كفار به په دې پوه سي چې مسلمانان فقط د دين د سر لوړی او د اسلام د سرفرازی لپاره زموږ سره جنګيږي او مسلمانان زموږ د مال او د اهل او عيال هيڅ حرص نه لري. نو كېدای سي چې هغوی د اسلام دعوت قبول كړي او مسلمانان هم د جنګ او قتال له تكليف او مشقت څخه خلاص سي. نو په دې وجه تر دعوت وركولو وروسته د كفارو سره قتال او جهاد شروع كول پكار دي. او كه چيري له دعوت وركولو څخه بغير اسلامي لښكر د كفارو سره قتال وكړي نو ټوله به ګنهګاره وي، ځكه چې هغوی يو ممنوع كار وكړی او ممنوع او منهي عنهٔ كار كول جرم دی. خو بيا هم د دې جرم په وجه به پر اسلامي لښكر او مجاهدينو هيڅ ضمان او تاوان لازم نه وي. ځكه چې كفار مباحُ الدم دي او د هغوی وينه معصومه نه ده، ځكه چې د هغو سره خو نه د إيمان او يقين سرمايه سته او نه هغو ته د دارُ الاسلام إحراز او حفاظت حاصل دی.

**ويستحب أن يدعوا من بلغته إلخ**: فرمايي چې كومو كافرانو ته دعوت رسېدلی وي د هغو سره تر قتال كولو مخكې دويم ځل هم د اسلام دعوت وركول مستحب دي، د دې لپاره چې كما حقهٔ د تبليغ فريضه اداء كړی سي او په بشپړه توګه د إنذار مستحق وګرځي، لېكن داسې كول مستحب دي واجب او لازم نه دي؛ ځكه چې په صحيح روايت كې ذكر سوي دي چې نبي كريم ﷺ د بنو مصطلق د قبيلې پر يو ښاخ باندې چاپه ووهل او هغوی غافله وو يعني هغوی ته دعوت نه وو وركول سوی. همدارنګه نبي كريم ﷺ حضرت أسامه ته دا وصيت وكړی چې هغه په فلسطين كې پر "أبنیٰ" نومې ځای باندې چاپه ووهي او بيا يې وسوځي. نو په دې وصيت كې هم د دعوت يادونه سوې نه ده. له دې څخه معلومه سوه چې تر قتال مخكې چې كوم د دعوت وركولو حكم دی هغه د اسلام په ابتدائي دور او زمانه كې وو، او وروسته دا حكم منسوخ سو. او بيا د چاپې وهلو عمل په پټه توګه سر ته رسول كيږي او ښكاره خبره ده چې له دعوت وركولو څخه وروسته په پټه توګه حمله كول ناممكن دي.

## له "جزيه" څخه تر انکار کولو وروسته عملي کړنلاره

قَالَ: فَإِنْ أَبَوْا ذٰلِكَ فرمايي: که چيري کفار له هغه اجزيه ورکولوا څخه انکار وکړي اسْتَعَانُوا بِاللهِ عَلَيْهِمْ وَحَارَبُوهُمْ نو مجاهدين دي د هغوی په خلاف اپر جنګ کولوا له الله تعالیٰ څخه مدد طلب کړي او جنګ دي ور سره وکړي لِقَوْلِهِ عليه السلام[1] فِي حَدِيثِ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ ځکه چي نبي کريم ﷺ د سليمان بن بُريده رضي الله عنه په حديث کي فرمايلي دي فَإِنْ أَبَوْا ذٰلِكَ فَادْعُهُمْ إِلَى إِعْطَاءِ الْجِزْيَةِ.. إِلَى أَنْ قَالَ: فَإِنْ أَبَوْهَا فَاسْتَعِنْ بِاللهِ عَلَيْهِمْ وَقَاتِلْهُمْ نو که کفار له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي نو تاسي هغوی ته د جزيه ورکولو دعوت ورکړئ!... تر دي چي فرمايلي يې دي: که چير هغوی له جزيه ورکولو څخه انکار وکړي نو تاسي د هغوی په خلاف له الله تعالیٰ څخه مدد طلب کړئ! او جنګ ور سره وکړئ! وَلِأَنَّهُ تَعَالَى هُوَ النَّاصِرُ لِأَوْلِيَائِهِ وَالْمُدَمِّرُ عَلَى أَعْدَائِهِ او ځکه چي الله تعالیٰ د خپلو بندګانو مددګار دی او د خپلو دښمنانو هلاکونکی دی فَيُسْتَعَانُ بِهِ فِي كُلِّ الْأُمُورِ لهذا په ټولو اُمورو کي به له هغه څخه د مدد طلب کيږي وَنَصَبُوا عَلَيْهِمُ الْمَجَانِيقَ او مجاهدين کفارو ته منجنيقونه ودروي كَمَا نَصَبَ[2] رَسُولُ اللهِ عليه السلام عَلَى الطَّائِفِ لکه څرنګه چي نبي ﷺ د طائف خلګو ته منجنيق درولی وو وَحَرَّقُوهُمْ او هغوی دي وسوځي ايعني د هغوی کورو ته دي اُور واچوي الِأَنَّهُ عليه السلام[3] أَحْرَقَ الْبُوَيْرَةَ ځکه نبي کريم ﷺ "بويره" نومي ځای سوځلی وو قَالَ: وَأَرْسَلُوا عَلَيْهِمُ الْمَاءَ وَقَطَعُوا أَشْجَارَهُمْ وَأَفْسَدُوا زُرُوعَهُمْ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مجاهدين دي پر کافرانو اوبه ور ايله کړي او د هغوی درختي دي پرېکړي او د هغوی کښتونه دي وېجاړ کړي لِأَنَّ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ إِلْحَاقَ الْكَبْتِ وَالْغَيْظِ بِهِمْ وَكَسْرَةَ شَوْكَتِهِمْ وَتَفْرِيقَ جَمْعِهِمْ ځکه چي په دې ټولو کارونو سره به کفارو ته ذلالت او سخت غم ورسيږي او د هغوی شان وشوکت به مات سي او د هغوی جماعت به تيت پرک سي فَيَكُونُ مَشْرُوعًا نو ځکه به دا أفعال مشروع وي وَلَا بَأْسَ بِرَمْيِهِمْ وَإِنْ كَانَ فِيهِمْ مُسْلِمٌ أَسِيرٌ أَوْ تَاجِرٌ او په ډبرو (او غشو) سره د کفارو په ويشتلو کي هيڅ پروا نسته که څه هم په کفارو کي مسلمان قيدي يا مسلمان تاجر وي لِأَنَّ فِي الرَّمْيِ دَفْعَ الضَّرَرِ الْعَامِّ بِالذَّبِّ عَنْ بَيْضَةِ الْإِسْلَامِ ځکه چي په ويشتلو کي د اسلام له حوزې څخه د عام ضرر ليري

---

[1] تخريج: قد مرّ تخريجه.

[2] تخريج: أخرجه ترمذى فى كتاب الأدب، باب ما جاء فى الأخذ من اللحية، رقم الحديث: ٢٨٦٢.

[3] تخريج: أخرجه مسلم فى كتاب الجهاد، رقم الحديث: ٢٩.

کول دي وَقَتْلُ الْأَسِيرِ وَالتَّاجِرِ ضَرَرٌ خَاصٌّ او د مسلمان قيدي يا تاجر قتلول يو خاص ضرر دی وَلِأَنَّهُ قَلَّمَا يَخْلُو حِصْنٌ عَنْ مُسْلِمٍ او ځکه چي ډېر کم داسي کېږي چي اد کفّارو ا يو کلا دي له مسلمان څخه خالي وي فَلَوْ اِمْتَنَعَ بِاعْتِبَارِهِ لَانْسَدَّ بَابُهُ لهذا که د مسلمان په وجه اد ډبرو او غشو ويشتل ا منع کړی سي نو د جهاد دروازه به بنده سي.

**اللغات**: ﴿أَبَوْا﴾ د فتح له باب څخه د جمع مذکر غائب ماضي صيغه ده: انکار کول. ﴿إستعانوا﴾ د استفعال له باب څخه مخکني صيغه ده: د مد طلب کول، مرسته غوښتل. ﴿مُدمِّر﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: هلاکونکی، بربادونکی. ﴿منجنيق﴾ د لويو ډبرو د غورځولو يوه آله ده چي پخوا به د هغې په ذريعه کلا نړول کېده او د هغې په ذريعه به کلا ته ډبري او اور غورځول کېدی، مجوغنه، غټه مچلوغزه. لکه اوس چي د دې مقصد لپاره توپ او نوري درنې اسلحې استعماليږي. ﴿أرسلوا﴾ د افعال ماضي ده: استول. ايله کول (پرېښوول). ﴿كَبْت﴾ ذلت (ذلالت). ﴿غيظ﴾ زړه کباوونکی غضب (مراد ځني سخت غم او تکليف دی). ﴿رَمْي﴾ د ضرب مصدر دی: ويشتل، غورځول. ﴿ذَبّ﴾ د نصر مصدر دی: ليري کول، منع کول. ﴿بَيْضَة﴾ حوزه، سيمه، علاقه، ديو ښار د سرحدونو مينځوی حصه. ﴿قَلَّمَا﴾ ډېر لږ واره (ډېر لږ کرته)، ډېر کم کېدل. ﴿لَانْسَدّ﴾ په شروع کي يې د جزاء "لام" دی، په اصل کي اِنْسَدَّ دی: بندېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي څو مسئلې ذکر سوي دي چي هغه به انشاء الله د مصنف د ترتيب مطابق ستاسي په مخ کي بيان سي: (۱)... اوله مسئله دا ده چي که کفار له جزيې څخه انکار وکړي نو مجاهدينو ته پکار دي چي له الله تعالیٰ څخه د کافرانو پر جنګ مرسته او تعاون طلب کړي او بيا دي د هغوی سره جنګ او قتال شروع کړي، ځکه چي د حضرت سليمان بن بريده رضي الله عنه په حديث کي نبي ﷺ داسي فرمايلي دي "فَإِنْ أَبَوْهَا فَاسْتَعِنْ بِاللهِ عَلَيْهِ وَقَاتِلْهُمْ". د دې عقلي دليل دا دی چي الله تعالیٰ د مسلمانانو ناصر او مددګار دی او د کافرانو لپاره قهّار او جبّار دی او پر هر څه قادر دی، نو ځکه په ټولو کارونو کي له الله تعالیٰ څخه مرسته او مدد غوښتل پکار دي.

امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي مسلمانانو ته پکار دي چي پر کفارو د حملې کولو لپاره منجنيق ودروي او د هغوی کورو ته دي اُور واچوي، ځکه چي له نبي کريم ﷺ څخه د طائف خلکو ته منجنيق درول او د "بويره" نومي ځای د خُرما درختو ته اُور اچول ثابت دي.

(۲)... د مجاهدينو لپاره يو تعليم دا هم دی چي پر کفارو اُوبه ور ايله کړي او د هغوی درختي او کښتونه له بېخه وکاږي، ځکه چي د کفارو د أموالو په بربادولو سره به د هغو شان وشوکت د خاورو سره خاوري سي او په هر اعتبار سره به هغوی کښته او ټيټ سي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده چي كه زميني جنګ فايده نه وكړي نو بيا دي له غشو او ډبرو غورځولو او كاڼو اورولو څخه هم دريغ او منع نه كيږي، كه څه هم په كفارو كي يو مسلمان قيدي يا يو مسلمان تاجر موجود وي، ځكه چي د ډبرو په باران سره د كفارو وژل او هغوى د ځمكي له سره ختمول د ضرر عام ليري كول دي او ټوله اُمت مسلمه د كفارو له شر څخه ساتل دي، او د يوه مسلمان وژل ضرر خاص دى او مخكي تاسو دا قاعده وويل چي د ضرر عام د ليري كولو لپاره به ضرر خاص زغمل كيږي، لهذا د ډبرو او غشو په ويشتلو او غورځولو كي به د فرد واحد رعايت نه كيږي.

او بيا خو د كفارو په كلاوو كي يو او دوه مسلمانان خامخا وي، اوس كه د يوه او دوو په خاطر پر كفارو حمله نه وسي نو د جهاد دروازه به بنده سي او د كفارو همت به را پورته سي، لهذا د كفارو د همت او حوصلې ټيټولو لپاره پر هغو حمله كول ضروري دي.

## كه كفار د مسلمانانو بچيان يا قيديان د ځان لپاره ډال وګرځوي (حكم)

وَإِنْ تَتَرَّسُوا بِصِبْيَانِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ بِالْأُسَارَىٰ او كه چيري كفار د مسلمانانو بچيان يا قيديان د ځان لپاره ډال [سپر] وګرځوي لَمْ يَكُفُّوا عَنْ رَمْيِهِمْ نو هم دي مسلمانان د كفارو له ويشتلو څخه نه منع كيږي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَيَقْصِدُونَ بِالرَّمْيِ الْكُفَّارَ او مجاهدين به په ويشتلو سره د كفارو نيت كوي لِأَنَّهُ إِنْ تَعَذَّرَ التَّمْيِيزُ فِعْلًا ځكه كه څه هم د فعل په اعتبار سره توپير كول مشكل دي فَلَقَدْ أَمْكَنَ قَصْدًا [پكن] د قصد [او نيت] په اعتبار سره توپير كول ممكن دي وَالطَّاعَةُ بِحَسَبِ الطَّاقَةِ او طاعت د وس [او طاقت] مطابق واجب دى وَمَا أَصَابُوهُ مِنْهُمْ لَا دِيَةَ عَلَيْهِمْ او په مسلمانو بچيانو يا قيديانو كي چي څوک زخمي سي پر مجاهدينو به د هغو ديت [واجب] نه وي وَلَا كَفَّارَةَ او نه به [د هغو] كفاره [پر مجاهدينو واجب وي] لِأَنَّ الْجِهَادَ فَرْضٌ ځكه چي جهاد فرض دى وَالْغَرَامَاتُ لَا تُقْرَنُ بِالْفُرُوضِ او تاوانونه [ضمانونه] د فرائضو سره نه متعلق كيږي بِخِلَافِ حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ په خلاف د سختي لوږي د حالت لِأَنَّهُ لَا يَمْتَنِعُ مَخَافَةَ الضَّمَانِ ځكه چي [سخت وږى انسان] د ضمان له بيري اله خوراک كولو څخه [نه منع كيږي لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْيَاءِ نَفْسِهِ ځكه چي په دې كي خپل نفس ته ژوند وركول [ژوندي ساتل] دي أَمَّا الْجِهَادُ فَمَبْنِيٌّ عَلَى إِتْلَافِ النَّفْسِ او كوم چي جهاد دى نو د هغه دارومدار د نفس پر هلاكولو دى فَيَمْتَنِعُ حَذَرَ الضَّمَانِ نو [مجاهد] به له ضمان څخه د ځان ساتلو په وجه اله جنګ كولو څخه [منع سي.

**اللغات**: ﴿تَتَرَّسُوا﴾ د تفعّل له باب څخه د جمع مذكر غائب ماضي معلوم صيغه ده: د ځان لپاره يو شى ډال ګرځول، سپر جوړول. ﴿غَرَامَات﴾ جرماني، تاوانونه. ﴿مَخْمَصَة﴾ سخته لوږه. صاحب د معجم الوسيط يې

دامي تعريف كړى دى: "الْمَخْمَصَة: إِسْمٌ بِمَعْنى الْمَجَاعَة...إلخ"(المعجم الوسيط: ۲۵۶). ﴿حذر﴾ ځان ساتل (ځان كتل)، پرهېز كول.

**تشريح: مسئله**: دا ده كه چيري كفار د مسلمانانو بچيان يا د مسلمانانو قيديان او بنديان د ځان لپاره ډال او د حفاظت ذريعه وګرځوي او خپل مخته يې ودروي، نو هم دي مجاهدين د كاڼو او ډبرو له ويشتلو څخه نه منع كيږي او د بچيانو او قيديانو رعايت دي نه كوي، ځكه چي د دوى زخمي كېدل يا وژل كېدل ضررِ خاص دى او د كفارو ختمول ضررِ عام دى، او د ضررِ عام د ختمولو لپاره ضررِ خاص زغمل كيږي (لكه مخكي چي قاعده ذكر سوه) په لِمَا بَيَّنَّا سره همدې طرف ته اشاره سوې ده. لېكن مجاهدينو ته پكار دي چي د كاڼو غورځولو په وخت كي دي د دغه ظالمانو او جابرانو د وژلو نيت كوي او د مسلمانانو بچيان او قيديان دي بالقصد نه وژني او نه دي د دوى د وژلو نيت كوي، ځكه چي د كفارو سره د دوى د اختلاط او يو ځاى كېدلو په وجه كه څه هم په ويشتلو كي د كفارو او د دوى تر مينځ توپير كول مشكل دي خو د نيت او ارادې په اعتبار په دوى كي توپير او امتياز كول ممكن دي، او څرنګه چي بنده د خپل وس مطابق په اطاعت او فرمانبرداى سره مخاطب او مكلف دى، لهذا د هغه په وس او طاقت كي چي څه وي، هغه به پوره كوي.

**وما أصابوا منهم إلخ**: د دې حاصل دا دى چي كه د كاڼو او غشو د ويشتلو په وجه د مسلمانانو بچيان يا قيديان زخمي كړل سي نو پر مجاهدينو به د هغه ديت نه وي، يا كه يو قتل سي نو پر مجاهدينو به د هغه كفاره نه وي: ځكه چي جهاد كول فرض دي او د فرائضو په اداء كولو كي تاوان او ضمان نه واجبيږي، ځكه چي فرائض اداء كول مأمور بهٖ دي. لېكن ضمان فقط عُدوان دى او منهي عنهٗ دى، او په مأمور بهٖ او منهي عنهٗ كي ښكاره فرق او تضاد سته، نو ځكه به دواړه نه سره جمع كيږي.

**بخلاف حالة المخمصة إلخ**: د دې حاصل دا دى چي د مسلمانو قيديانو يا بچيانو د زخمي كېدلو يا وژل كېدلو په صورت كي خو ضمان او كفاره نسته، لېكن كه يو سړى د مخمصې او د سختي لوږې په حالت كي د بل چا مال د هغه له اجازې څخه بغير وخوري، نو پر هغه (خوړونكي) به د دې مال ضمان واجب وي، ځكه چي داسي سړى د خپل ژوند د ساتلو په وجه د ضمان له بيري څخه خوراک نه پرېږدي بلكي هر څومره ضمان ته تياريږي، د دې په خلاف كه د جهاد په صورت كي مورږ پر مجاهدينو باندي د قيديانو يا بچيانو ضمان يا كفاره واجب كړو، نو د ضمان وركولو له بيري څخه به يو مجاهد هم د جهاد لپاره تيار نه سي، ځكه چي د جهاد دار ومدار د نفس پر هلاكولو دى. دا عبارت په أصل كي د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله د هغه قياس جواب دى كوم چي هغه په دغه مسئله كي د مخمصې پر حالت باندي په قياس كولو سره ضمان واجب ګرځولى دى.

## د مسلمانانو د لښكر لپاره د ځان سره ښځي بېـول يا قرآن اخيستل

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِإِخْرَاجِ النِّسَاءِ وَالْمَصَاحِفِ مَعَ الْمُسْلِمِيْنَ إِذَا كَانُوْا عَسْكَرًا عَظِيْمًا يُؤْمَنُ عَلَيْهِ فرمايي: چي د مجاهدينو سره د قرآن كريم په ايستلو كي هيڅ پروا نسته | په دې شرط | كله چي هغوى داسي غټ لښكر وي چي د شكست خوړلو خطره يې نه وي لِأَنَّ الْغَالِبَ هُوَ السَّلَامَةُ ځكه | د هغوى | سلامتي غالبه ده وَالْغَالِبُ كَالْمُتَحَقِّقِ او غالب شى د ثابت

سوي او متقين [اشي په څير وي **وَيُكْرَهُ إِخْرَاجُ ذٰلِكَ فِي سَرِيَّةٍ لَا يُؤْمَنُ عَلَيْهَا** او په يو داسې سريه کي د دې ايستل مکروه دي چي د شکست خوړلو خطره يې وي **لِأَنَّ فِيهِ تَعْرِيضَهُنَّ عَلَى الضَّيَاعِ وَالْفَضِيحَةِ وَتَعْرِيضَ الْمَصَاحِفِ عَلَى الِاسْتِخْفَافِ** ځکه چي په دې کي ښځي پر ضياع او رسوايۍ باندي پېښول دي او قرآن کريم پر سپکاوي او بې حرمتۍ] باندي پېښول دي **فَإِنَّهُمْ يَسْتَخِفُّونَ بِهَا مُغَايَظَةً لِلْمُسْلِمِينَ** ځکه چي کفار به د مسلمانانو د قهرولو او ځورولو لپاره [خامخا] د دې سپکاوی کوي **وَهُوَ التَّأْوِيلُ الصَّحِيحُ لِقَوْلِهِ عليه السلام** [1]: **لَا تُسَافِرُوا بِالْقُرْآنِ فِي أَرْضِ الْعَدُوِّ** او د نبي ﷺ د دې فرمان همدا صحيح تأويل دی: چي تاسي د دښمن ځمکي ته قرآن مه وړئ! **وَلَوْ دَخَلَ مُسْلِمٌ إِلَيْهِمْ بِأَمَانٍ** او که يو مسلمان په أمان اخيستلو سره کفارو ته راسي **لَا بَأْسَ بِأَنْ يَحْمِلَ مَعَهُ الْمُصْحَفَ إِذَا كَانُوا قَوْمًا يُوفُونَ بِالْعَهْدِ** نو په دې کي هيڅ پروا نسته چي هغه د ځان سره قرآن واخلي [په دې شرط] کله چي هغوی داسي خلک وي چي [خپله] وعده پوره کوي **لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ التَّعَرُّضِ** ځکه چي ښکاره همدا ده چي کفار به پر هغه تعرض او تجاوز] نه کوي **وَالْعَجَائِزُ يَخْرُجْنَ فِي الْعَسْكَرِ الْعَظِيمِ لِإِقَامَةِ عَمَلٍ يَلِيقُ بِهِنَّ كَالطَّبْخِ وَالسَّقْيِ وَالْمُدَاوَاةِ** او سپين سري ښځي په غټ لښکر کي وتلای سي د خپل شان سره د مناسب کار کولو لپاره لکه پخول، اوبه ورکول او درملنه کول **فَأَمَّا الشَّوَابُّ فَمَقَامُهُنَّ فِي الْبُيُوتِ أَدْفَعُ لِلْفِتْنَةِ** او کوم چي ځواني ښځي دي نو په کورو کي د هغوی پاتېدل ډېر د فتني ختمونکي دي **وَلَا يُبَاشِرْنَ الْقِتَالَ** او دا اسپين سري او ځواني] ښځي به جنګ هم نه کوي **لِأَنَّهُ يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى ضَعْفِ الْمُسْلِمِينَ** ځکه چي په دې سره د مسلمانانو پر کمزوری باندي دليل نيول کيږي **إِلَّا عِنْدَ ضَرُورَةٍ** مګر د ضرورت په وخت کي [جنګ کولای سي] **وَلَا يُسْتَحَبُّ إِخْرَاجُهُنَّ لِلْمُبَاضَعَةِ وَالْخِدْمَةِ** او د جماع او خدمت لپاره هم د ښځو ايستل غوره نه دي **فَإِنْ كَانُوا لَا بُدَّ مُخْرِجِينَ فَبِالْإِمَاءِ دُونَ الْحَرَائِرِ** او که [بيا هم] هغوی خامخا د ښځو ايستونکي وي ايعني د ښځو بېول ضروري وي] نو مينځي دي بوځي، نه ښځي.

**اللغات**: ﴿عسكر﴾ غټ لښکر. ﴿سريّة﴾ د مجاهدينو کوچنۍ ډله. ﴿تعريض﴾ د تفعيل مصدر دی: پېښول وړاندي کول. ﴿تعرّض﴾ د تفعّل مصدر دی: تعرض کول، تجاوز او تېری کول. ﴿عجائز﴾ جمع د عجوزةٌ ده: سپين سري ښځي. ﴿يليق﴾ د ضرب مضارع ده: لائق کېدل، مناسب کېدل. ﴿مباضعة﴾ کوروالی، جماع. ﴿إماء﴾ جمع د أمةٌ ده: مينځي (مينځياني).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري د مسلمانانو لښکر غټ وي او د شکست خوړلو خطره يې نه وي، نو مجاهدين د خپلو ځانو سره ښځي او قرآنونه اخيستلای سي؛ ځکه چي د لښکر د غټوالي او ډېر والي په وجه د دوی د فتح طرف غالب دی، او غالب د متحقق او متيقن په څير وي، لهذا په دې صورت کي به د ښځو او قرآنونو ...

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجهاد، باب:١٢٩، رقم الحديث: ٢٩٩٠

حرمتي نه کيږي، لېکن که د مسلمانانو يوه سريه او کوچنۍ ډله جنګ ته ځي. نو په دې صورت کې ښځې او قرآنونه اخيستل مکروه دي؛ ځکه په داسې صورت کې د دوی د شکست خوړلو او د کفارو له طرفه د ښځو او قرآن د بې حرمتۍ کولو خطره سته. ځکه چې کفار به د مسلمانانو د قهرولو او ځورولو لپاره خامخا د مسلمانانو په ښځو کار لري او د قرآن بې حُرمتي به کوي. لهذا غوره همدا ده چې په سريه او کوچنۍ ډله کې د ځان سره ښځې او قرآنونه نه واخلي. او د دې حديث " لَا تُسافروا بـالقرآن فی أرض العدوّ " صحيح تأويل همدا دی چې په کوم ځای کې د قرآن د توهين او بې حرمتۍ خطره وي، هلته دې قرآن نه وړل کيږي.

**ولو دخل مسلم إلخ:** فرمايي که چيرې يو مسلمان له کفارو څخه أمان وغواړي او دارُالحرب ته ولاړ سي او کُفار د خپل عهد او وعدې پابند وي نو د دې مسلمان لپاره د ځان سره دارُالحرب ته قرآن وړل صحيح دي. ځکه چې د أمان ورکولو په وجه غالب ګومان همدا دی چې کفار به په هغه هيڅ کار نه لري او د قرآن بې حرمتي به نه کوي.

**والعجائز إلخ:** مسئله دا ده چې د خوراک تيارلو، او مجاهدينو ته د اُوبو او دواء ورکولو په غرض سپينې سرې ښځې جهاد ته تللای سي، لېکن ځواني ښځې به له سخت ضرورت څخه نه د جنګ ميدان ته ور نژدې کيږي او نه به قتال کوي، بلکې په کورو کې به پاتيږي؛ ځکه چې د دوی لپاره په کور کې پاتېدل او دباندې نه وتل زيات غوره دي او له فتنې څخه زيات لېرې دي، همدا وجه ده چې فقهاؤ د جماع او خدمت لپاره هم د ځوانو ښځو د ايستلو اجازه نه ده ورکړې. ها! که چيرې د ښځو زيات ضرورت محسوس سي نو د ځان سره دې مينځې بوځي، لېکن آزادې ښځې به هيڅکله نه بيايي.

## د ښځې او غلام لپاره د إذن (اجازت اخيستلو) مسئله

وَلَا تُقَاتِلُ الْمَرْأَةُ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا وَلَا الْعَبْدُ إِلَّا بِإِذْنِ سَيِّدِهِ ښځه به د خپل خاوند او غلام به د خپل مال له اجازې څخه بغير جنګ نه کوي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی إِلَّا أَنْ يَهْجُمَ الْعَدُوُّ عَلَى بَلَدٍ لِلضَّرُورَةِ مګر دا چې د ښمن پر يو ښار [او ملک] باندې حمله وکړي انو ښځه او غلام بېله اجازې هم قتال کولای سي ا د ضرورت په وجه وَيَنْبَغِي لِلْمُسْلِمِينَ أَنْ لَا يَغْدِرُوا وَلَا يَغُلُّوا وَلَا يُمَثِّلُوا او مسلمانانو ته پکار دي ايعني ضروري دي ا چې غدر اوعده خلافي ا، غلا او مُثله نه وکړي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: لَا تَغُلُّوْا وَلَا تَغْدِرُوا وَلَا تُمَثِّلُوا ځکه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: تاسې مه غلا کوئ! او مه غدر کوئ! او مه مثله کوئ! وَالْغُلُولُ: السَّرِقَةُ مِنَ الْمَغْنَمِ د غلول معنیٰ ده: د غنيمت له مال څخه غلا کول وَالْغَدْرُ: الْخِيَانَةُ وَنَقْضُ الْعَهْدِ او د غدر معنیٰ ده: خيانت او وعده اژبه ا ماتول اوعده خلافي کول ا وَالْمُثْلَةُ الْمَرْوِيَّةُ فِي قِصَّةِ الْعُرَنِيِّينَ مَنْسُوخَةٌ بِالنَّهْيِ

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الحدود، باب رقم: ۱۵.

تُقَاتِلُ فَلِمَ تُقْتَلُ؟ او کله چيرې نبي کريم ﷺ يوه قتل کړې سوې ښځه وليدله نو وې فرمايل: افسوس! دا ښځه خو د جنګ کولو اقابله انه وه نو بيا ولې قتل کړی سوه؟ قَالَ: إِلَّا أَنْ يَكُونَ أَحَدُ هٰؤُلَاءِ مِمَّنْ لَهُ رَأْيٌ فِي الْحَرْبِ أَوْ تَكُونَ الْمَرْأَةُ مَلِكَةً فرمايي: مګر دا چې له دغه کسانو څخه يو د جنګ په هکله رايه او تدبير الري يا ښځه مَلکه او مشره اوي لِتَعَدِّيْ ضَرَرِهَا إِلَى الْعِبَادِ ځکه چې د هغې ضرر به بندګانو ته متعدي امتجاوز ا وي وَكَذَا يُقْتَلُ مَنْ قَاتَلَ مِنْ هٰؤُلَاءِ همدارنګه له دوی څخه چې کوم يو جنګ وکړي نو هغه به هم قتل کيږي دَفْعًا لِشَرِّهِ د دې لپاره چې د هغه شر دفع سي وَلِأَنَّ الْقِتَالَ مُبِيحٌ حَقِيقَةً او ځکه چې جنګ کول حقيقتاً د قتل روا کونکي دي وَلَا يُقْتَلُ مَجْنُونًا او لېونی به اهم ا نه قتل کيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُخَاطَبٍ ځکه چې هغه ا د شريعت د احکامو ا مخاطب نه دی إِلَّا أَنْ يُقَاتِلَ مګر دا چې هغه جنګ وکړي فَيُقْتَلَ دَفْعًا لِشَرِّهِ نو د هغه د شر دفع کولو لپاره به هغه قتل کيږي غَيْرَ أَنَّ الصَّبِيَّ وَالْمَجْنُونَ يُقْتَلَانِ مَا دَامَا يُقَاتِلَانِ خو بچی او لېونی چې تر څو ک جنګ کوي [فقط] تر هغه وخته پورې به دوی قتل کيږي وَغَيْرُهُمَا لَا بَأْسَ بِقَتْلِهِ بَعْدَ الْأَسْرِ او له دوی څخه بغير د بل چا ايعني د ښځې، بچي او داسي نورو ا په قتل کولو کې تر قيدي کولو وروسته اهم ا هيڅ حرج نسته لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْعُقُوبَةِ ځکه چې هغه ايعني ښځه او داسي نور ا د سزا له أهل څخه دي لِتَوَجُّهِ الْخِطَابِ نَحْوَهُ ځکه چې د هغه وطرف ته ا د شريعت ا خطاب متوجّه دی وَإِنْ كَانَ يُجَنُّ وَيُفِيقُ او که ا يو څوک ا داسي وي چې کله لېونی کيږي او کله پرسد کيږي فَهُوَ فِي حَالِ إِفَاقَتِهِ كَالصَّحِيحِ نو د پرسدتيا په حالت کې به هغه د صحيح کس په څير وي.

**اللغات:** ﴿شيخ فاني﴾ ډېر بوډا، ډېر ضعيفه سپين ږيری. ﴿مقعد﴾ شل. شوټ. فلج. هغه کس چې پښې يې کار نه کوي. ﴿رأى﴾ د مشورې ورکولو وړتيا، تدبير. ﴿تعدّى﴾ د تفعّل مصدر دی: متجاوز کېدل. له حد څخه تېرېدل. ﴿عقاب﴾ سزا. ﴿يُفيق﴾ د افعال مضارع ده. أَفَاقَ يُفِيْقُ إِفَاقَةً: خپل اصلي حالت ته واپس کېدل. روغېدل (جوړېدل)، پرسد کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې مجاهدينو ته پکار دي چې ښځه، بچی، شيخ فاني. شل (کوډ) او نابينا کس قتل نه کړي؛ ځکه چې زموږ په نېز قتلول د جنګ او نبنتې په وجه مباح دي، او په دې کسانو کې د يوه له طرفه هم جنګ او نبنته ثابتېدای نه سي، نو په دې وجه د دوی قتلول مباح نه دي. او د جنګ نه ثابتېدلو په علت سره د داسي سړي قتلول هم صحيح نه دي چې د هغه يو طرف (اړخ) وچ سوی وي يا د هغه يو لاس او پښه مِنْ خِلَافٍ پرېکړل سوي وي، د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دغه مسلک دی. او د ښځو او بچيانو

په هكله د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هم دغه حكم دى (بنايه). ليكن امام شافعي رَحِمَهُ الله د شيخ فاني. شل او نابينا قتل مباح ګرځوي، ځکه چي د هغه په نيز "علت مُبيحه" كفر دى او په دغه ټولو كسانو كي كفر موجود دى. خو د امام شافعي په خلاف زموږ بيان سوى دليل حجت دى چي مُبيح للقتل جنګ او حرب يا رايه في الحرب ده. او دا خبره په دې كسانو كي معدومه ده نو ځکه د دوى قتلول مباح نه دي. د ښځو او بچيانو د قتل د ناروايښت او نه مباح كېدلو نقلي دليل دا دوه حديثونه دي: (١) "أن النبي ﷺ نهى عن قتل الصبيان والذراري". له ذراري څخه ښځي مراد دي، ځکه چي ښځه د ذريت او نسل سبب ده. او دغه حديث ته نژدې يو دا حديث هم دى كوم چي له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روايت سوى دى: "أن امرأة وُجدت في بعض مغازي رسول الله ﷺ فنهى رسول الله ﷺ عن قتل النساء والصبيان. وفي لفظ الشيخين: فأنكر رسول الله ﷺ قتل النساء والصبيان". (بناية ج:٦، ص: ٥١٠)

(٢) دويم حديث دا دى: "حين رأى النبي ﷺ امرأة مقتولة. قال: هاه!. ما كانت لتقاتل. فلم قُتلت". په دې حديثونو سره دا خبره ثابته سوه چي د ښځو او بچيانو قتلول مباح نه دى. ليكن كه ښځه يا بچى صاحبُ الرأى وي او په جنګ كي له هغه څخه رايه او مشوره اخيستل كيږي. يا ښځه د خپل ښار او علاقې مشره او ملكه وي او دا خطره وي چي د هغې په حكم سره به د ښار او علاقې خلګ د كفارو په صف كي ودريږي او تعاون به ور سره وكړي، نو په دې صورت كي به د صاحبُ الرأى او د ښځي دواړو قتل كول مباح وي كه څه هم دوى بوډاتوب ته رسېدلي وي، ځکه چي صاحبُ الرأى كېدلو په وجه "دُريد بن صمه" هم قتل كړى سو حالانكي هغه د (١٢٠) كالو بوډا وو (بنايه ج:٦). همدارنګه كه له دغه مذكوره كسانو څخه يو چالاكي او بيداري ښكاره كړي او د مسلمانانو په خلاف قتال شروع كړي نو د هغه غاړه به هم پرېكول كيږي چي د هغه شر او فساد ختم سي.

**ولا يقتلو مجنونا إلخ**: فرمايي چي مجاهدين به لېونى او مجنون هم نه قتل كوي ځکه چي هغه خو بالكل په شرعي أحكامو مكلف نه دى. ليكن كه بچى يا مجنون په جنګ او قتال مصروف وي نو تر څو چي دوى قتال كوي تر هغه وخته پوري به د دوى وژل او قتلول مباح وي او كله چي دوى قيد كړل سي نو دا إباحت به ختميږي. د دې په خلاف له بچي او مجنون څخه بغير نور كافران به تر قيد كولو وروسته هم قتل كيږي. ځکه چي هغوى په شرعي أحكامو مخاطب او مكلّف دي او د عذاب او قتل مستحق ګرځېدلي دي، لهذا په هر حالت كي به هغوى قتلول كيږي. او كه يو مجنون په دې توګه وي چي كله د جنون او لېونتوب په حالت كي وي او كله بيا روغ او صحيح (پر سد) وي، نو د صحت په حالت كي به هغه د صحيح كافر په حكم كي وي او په دې حالت كي به د هغه قتلول مباح وي كه څه هم هغه په جنګ او قتال مصروف نه وي.

## د جنګ په ميدان کي د خپل کافر قريب لټون کول او هغه قتل کول

وَيُكْرَهُ أَنْ يَبْتَدِئَ الرَّجُلُ أَبَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَيَقْتُلَهُ او مکروه دا چي سړی له خپل مشرک پلار ځخه شروع وکړي او هغه قتل کړي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا [لقمان: ۱۵] ځکه الله تعالى فرمايلي دي: او د مور وپلار سره په دنيا کي ښه سلوک [چلند] کوه! وَلِأَنَّهُ يَجِبُ عَلَيْهِ إِحْيَاؤُهُ بِالْإِنْفَاقِ او ځکه چي پر زوی واجب دي په نفقه ورکولو سره د پلار ژوندي ساتل فَيُنَاقِضُهُ الْإِطْلَاقُ فِي إِفْنَائِهِ نو د پلار د ختمولو [قتل کولو] إطلاق به د هغه د احياء منافي وي فَإِنْ أَدْرَكَهُ امْتَنَعَ عَلَيْهِ حَتَّى يَقْتُلَهُ غَيْرُهُ بيا که زوی خپل پلار پيدا کړي اورسره مخامخ سي | نو د هغه له قتل ځخه دي منع سي تر دې چي بل ځوک يې قتل کړي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ يَحْصُلُ بِغَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ اقْتِحَامِهِ الْمَأْثَمَ ځکه چي مقصود په بل چا سره [هم] حاصليږي بغير له دې ځخه چي زوی د ګناه ارتکاب وکړي وَإِنْ قَصَدَ الْأَبُ قَتْلَهُ بِحَيْثُ لَا يُمْكِنُهُ دَفْعُهُ إِلَّا بِقَتْلِهِ او که پلار د زوی د قتل اراده وکړي په دې توګه چي له قتل کولو ځخه بغير د زوی لپاره د هغه دفع کول ممکن نه وي لَا بَأْسَ بِهِ نو د پلار په قتل کولو کي هيڅ حرج نسته لِأَنَّ مَقْصُودَهُ الدَّفْعُ ځکه چي د زوی مقصود اله ځان ځخه | د ضرر دفع کول دي [مطلب دا چي د هر جنګ کونکي (مجاهد) مقصد د ځان دفاع کول وي] أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ شَهَرَ الْأَبُ الْمُسْلِمُ سَيْفَهُ عَلَى ابْنِهِ وَلَا يُمْكِنُهُ دَفْعُهُ إِلَّا بِقَتْلِهِ آيا ته نه ګورې! که چيري مسلمان پلار پر خپل زوی توره را وکاږي او له قتل کولو ځخه بغير د زوی لپاره د هغه دفع کولو ممکن نه وي يَقْتُلُهُ نو زوی هغه قتل کولای سي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ اوس | بيان کړی فَهٰذَا أَوْلَىٰ لهذا په دې صورت کي خو به په طريقه اولیٰ د هغه قتل کول جائز وي. والله أعلم

**اللغات:** ﴿صَاحِبْهُمَا﴾ د مفاعلې له باب ځخه د واحد مذکر أمر حاضر صيغه ده: ملګرتيا کول. سلوک او چلند کول. ﴿معروفًا﴾ په غوره طريقه سره. په ښه توګه. په نېکه طريقه سره. ﴿إفناء﴾ د افعال مصدر دی: فنا کول. ختمول. هلاکول. ﴿اقتحام﴾ د افتعال مصدر دی: ارتکاب (يو عمل کول). ﴿شهر﴾ د فتح ماضي ده. د دې باب په صله کي چي "سَيْف" ذکر سي نو معنی يې راځي: (پر يو چا) توره راپورته کول. توره پر راکښل.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی چې د مجاهد لپاره دا پکار نه دي چې د جنګ په ډګر کې تر ټولو مخکې د خپل کافر يا مشرک پلار تلاش وکړي او هغه قتل کړي: ځکه چې په قرآن کريم کې د مشرک مور و پلار سره د ښه سلوک او غوره چلند کولو حکم سوی دی. الله تعالیٰ فرمايي: "وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا". او ښکاره خبره ده چې قتلول خو انتهائي او د آخري درجې بدي ده. نو ځکه به د زوی دا فعل مکروه وي. د دې عقلي دليل دا دی چې پر زوی باندي پلار ته نفقه ور کول او هغه ته ژوند ور کول لازم دي حالانکي قتلول د إنفاق او إحياء خلاف دي. حواله سره به د هغه قتلول مکروه وي. او که زوی خپل پلار پيدا کړي يعني د ده او پلار تر مينځ ... د ره صفا سي نو هم دې د هغه له قتل څخه منع سي تر دې چې يو بل مجاهد يې قتل کړي، ځکه کله چې له زوی څخه بغير د بل مجاهد په ذريعه دا مقصود حاصلېدای سي نو زوی ته پکار دي چې تلوار نه وکړي او له دې ګناه څخه ځان وساتي. لېکن که قصه داسي وي چې پلار د خپل مسلمان او مجاهد زوی قتل کولو ته نژدې وي او د پلار له قتل کولو څخه بغير زوی د خپل ځان د خلاصولو لپاره بله لار نهويني. نو په دې صورت کي به د زوی لپاره د پلار قتل کول مباح وي، ځکه چې هر کس د خپل ځان د ساتلو په فکر کي وي او له خپل ځان څخه دفاع کول (مدافعت) د ټولو مقصود وي. او د دغه مقصود د حاصلولو يوازينی لاره اوس قتل ده. لهذا د قتل په ذريعه به مدافعت کيږي. همدا وجه ده که يو مسلمان پلار پر خپل کافر زوی توره را وکاږي او د زوی لپاره دا ممکنه نه وي چې د پلار له قتل کولو څخه ځان وژغوري، نو په دې صورت کي دغه کافر زوی خپل مسلمان پلار قتل کولای سي. او ګورئ! کله چې کافر زوی مسلمان پلار قتل کولای سي نو مسلمان زوی لره به په طريقه اولیٰ دا حق او اجازه وي چې په داسي حالت او صورت کي خپل کافر پلار قتل کړي. والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْمُوَادَعَةِ وَمَنْ يَّجُوْزُ أَمَانُهُ

(دا) باب د صلح کولو او د هغه کس (په بيان کې دی)
چې د هغه أمان جائز وی

**تشريح:** موادعة له ودع څخه مشتق دی چې د هغه معنیٰ ده: تَرْك، پرېښوول. څرنګه چې په صلح (روغه) کې مسلمانان او کفار دواړه په خپل مينځ کې جنګ او قتال پرېږدي، نو په دې وجه صلح او مصالحت ته "موادعة" ويل سوي دي، او څرنګه چې "تَرْك" تر "وجود" وروسته وي، نو په دې وجه صاحب د کتاب د قتال له بيان څخه وروسته اوس د تَرْكُ الْقِتَال بيان کوي. (د أمان بيان به په راروان فصل کې ذکر سي)

## د صلح (مصالحت) جواز او د جواز شرائط

وَإِذَا رَأَى الْإِمَامُ أَنْ يُصَالِحَ أَهْلَ الْحَرْبِ أَوْ فَرِيقًا مِنْهُمْ او که امام د حربيانو سره يا د هغوی د يو جماعت سره صلح کول مناسب وګڼي وَكَانَ فِيْ ذٰلِكَ مَصْلَحَةٌ لِلْمُسْلِمِيْنَ او په دې صلح کې د مسلمانانو لپاره مصلحت [خير او ښېګڼه] وي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په صلح کولو کې هيڅ پروا نسته لِقَوْلِهٖ تَعَالىٰ: وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ [الأنفال: ٦١] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: که چيري کفار صلح [روغې] ته ميلان وکړي نو [اې نبي!] ته هم صلح ته ميلان وکړه! وَوَادَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] أَهْلَ مَكَّةَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلٰى أَنْ يَضَعَ الْحَرْبَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ عَشْرَ سِنِيْنَ او نبي کريم ﷺ د حديبيې په کال د مکې د کفارو سره په دې خبره صلح وکړه چې د نبي ﷺ او د هغوی په مينځ کې به تر لسو کالو پوري جنګ بند [او ممنوع] وي وَلِأَنَّ الْمُوَادَعَةَ جِهَادٌ مَعْنًى او ځکه چې صلح کول د معنیٰ په اعتبار سره جهاد دی إِذَا كَانَ خَيْرًا لِلْمُسْلِمِيْنَ [په دې شرط] کله چې صلح کول د مسلمانانو لپاره خير وي ايعني کله چې په صلح کې د مسلمانانو خير او نفع وي] لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ وَهُوَ دَفْعُ

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب في صلح العدو، رقم الحديث: ٢٧٦٦.

الشَّرِّ حَاصِلٌ بِهِ ځکه چې په صلح سره هم مقصود يعني د "شر دفع کېدل" حاصلیږي وَلَا يُقْتَصَرُ الْحُكْمُ عَلَى الْمُدَّةِ الْمَرْوِيَّةِ او کوم مودت چې [په حدیث کې] روایت سوی دی پر هغه حکم موقوف نه دی لِتَعَدِّي الْمَعْنَى إِلَى مَا زَادَ عَلَيْهَا ځکه چې له هغه څخه د زائد مودت وطرف ته هم معنیٰ متعدي ده بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ خَيْرًا په خلاف د هغه صورت کله چې په صلح کې خير نه وي لِأَنَّهُ تَرْكُ الْجِهَادِ صُورَةً وَمَعْنًى ځکه چې [اوس] هغه د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره "د جهاد پرېښوول" دي وَإِنْ صَالَحَهُمْ مُدَّةً ثُمَّ رَأَى نَقْضَ الصُّلْحِ أَنْفَعَ او که امام تر يو څو وخت پورې د کفارو سره صلح وکړي بيا امام د صلح ماتوله زيات نفع مند وګڼي نَبَذَ إِلَيْهِمْ وَقَاتَلَهُمْ نو امام دې صلح ور ماته کړي [او په صلح ماتولو دې هغوی خبر کړي] بيا دې د هغوی سره جنګ وکړي اد "نبذ" معنیٰ ده "غورځول"، دلته يې معنیٰ دا ده "د ماتولو سره اطلاع ورکول" يعني د صلح ماتولو اطلاع دې کفارو ته ورکړي] لِأَنَّهُ [2] الطَّيْلا نَبَذَ الْمُوَادَعَةَ الَّتِي كَانَتْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَهْلِ مَكَّةَ ځکه نبي ﷺ هغه صلح ماته کړه کوم چې د نبي ﷺ او د کفارو په مينځ کې سوې وه وَلِأَنَّ الْمَصْلَحَةَ لَمَّا تَبَدَّلَتْ كَانَ النَّبْذُ جِهَادًا او ځکه چې کله مصلحت بدل سي نو [د عهد او صلح] ماتول به جهاد وي وَإِيفَاءُ الْعَهْدِ تَرْكُ الْجِهَادِ صُورَةً وَمَعْنًى او د عهد پوره کول به د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره د جهاد پرېښوول وي فَلَا بُدَّ مِنَ النَّبْذِ تَحَرُّزًا عَنِ الْغَدْرِ لهذا د غدارۍ [وعده خلافۍ] څخه د ځان ساتلو لپاره [د صلح] ماتولو خبر ورکول ضروري دي وَقَدْ قَالَ: الطَّيْلا [3]: فِي الْعُهُودِ وَفَاءٌ لَا غَدْرٌ او د عهدونو [وعدو] په هکله نبي ﷺ فرمايلي دي: چې هغوی دی پوره کيږي او وعده خلافي دي نه کيږي وَلَا بُدَّ مِنْ اعْتِبَارِ مُدَّةٍ يَبْلُغُ فِيهَا خَبَرُ النَّبْذِ إِلَى جَمِيعِهِمْ او د دومره مودت اعتبار کول ضروري دي چې په هغه کې [د صلح] ماتولو خبر ټولو کافرانو ته ورسيږي وَيَكْتَفِي فِي ذَلِكَ بِمُضِيِّ مُدَّةٍ يَتَمَكَّنُ مَلِكُهُمْ بَعْدَ عِلْمِهِ بِالنَّبْذِ مِنْ إِنْفَاذِ الْخَبَرِ إِلَى أَطْرَافِ مَمْلَكَتِهِ او په دې سلسله کې به د دومره مودت پر تېرېدلو اکتفاء کيږي چې د کفارو مشر [د

---

[2] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب دلائل النبوة, باب غزوة ومؤتة.

[3] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب في الإمام يكون بينه وبين العدو.

صلح ا په ماتېدلو سره تر خبرېدلو وروسته د خپل مملکت په اطرفو کي د هغه خبر پر نافذولو ا او نشر کولو ا قادر وي لِأَنَّ بِذٰلِكَ يَنْتَهِي الْغَدْرُ ځکه چي په همدې سره غدر ختمېږي.

**اللغات**: **مصلحة** ښېګڼه، منفعت (نفع)، عهد. **﴿جنحوا﴾** د فتح ماضي ده: ميل کول (ميلان کول)، يو طرف ته کږېدل. **﴿يَضَعَ﴾** د فتح مضارع ده: ايښوول. مراد ځني له جنګ څخه منع کېدل دي. **﴿نَبَذَ﴾** د ضرب ماضي ده: غورځول. کله چي يې په صله کي "عهد" راسي. نو د "ماتولو" په معنیٰ سره راځي. عرب وايي: نبذ العهد إلى العدو (مصباح اللغات). او دلته يې معنیٰ دا ده "عهد ماتول او د هغه اطلاع ورکول" (أثمار الهداية). **﴿عهد﴾** ژمنه، قول، وعده، تړون. **﴿يتمكّن﴾** د تفعل مضارع ده: قدرت پيدا کول، قدرت لرل (قادر کېدل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري امامُ المسلمين د کفارو سره يا د کفارو د يو جماعت سره په صلح کولو کي خير او عافيت ووينې، نو هغه ته پکار دي چي صلح ور سره وکړي؛ ځکه چي په قرآن کريم کي هم نبي کريم ﷺ ته دا حکم سوی دی چي هغه د صلح او مصالحت وطرف ته ميلان وکړي. همدارنګه د "حُديبيه" په کال کي د مکې د کفارو سره د نبي کريم ﷺ صلح کول ثابت دي (چي هغه ته "صلح حديبيه" وايي). لهذا صلح او مصالحت که چيري أنفع او فايدمند وي نو هغه اختيارول پکار دي. ځکه چي د أنفع کېدلو په صورت کي صلح د معنیٰ او باطن په اعتبار سره جهاد کول دي. ځکه چي د جهاد په څير په دې سره هم د "دفعُ الشر" والا مقصد حاصلېږي. او له نبي کريم ﷺ څخه تر لسو کالو پوري صلح کول نقل سوي دي خو دا (لس کاله) يو حتمي او آخري حدّ نه دی. بلکي د صلح مودت د امام د حال او د هغه د رايي مطابق کمېدلای او زياتېدلای هم سي. او د موقع او حالاتو په اعتبار سره په هغه کي تغيّر او تبدّل هم کېدلای سي. لېکن که په صلح او مصالحت کي د مسلمانانو خېر او ښېګڼه نه وي نو بيا د امام لپاره صلح کول صحيح نه دي. ځکه چي دا صورتاً هم ترکُ الجهاد دی او معناً هم. ځکه کله چي په هغه کي هيڅ خير نه وي نو ښکاره خبره ده چي د "دفعُ الشر" مقصد به هم حاصل نه سي.

**وإن صالحهم إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که امام د کفارو سره د يو مودت لپاره صلح وکړي. بيا يو څو ورځي وروسته د صلح او عهد په ماتولو کي د مسلمانانو خير ووينې نو هغه ته پکار دي چي مخکي کفارو ته د عهد ماتولو اطلاع ورکړي تر دې وروسته دي صلح ختم کړي او جنګ دي شروع کړي. لکه څرنګه چي نبي کريم ﷺ د مکې د کفارو سره تړل سوی عهد او تړون د کفارو تر مخالفت کولو وروسته مات کړی يعني تر "صلح حديبيه دوه کاله وروسته چي کله کفارو د خپل معاون او ملګري

قوم "بَنُوْ بَكْر" مدد وکړی او د مسلمانانو پر معاون قوم "بَنُوْ خُزَاعَه" یې حمله وکړه. نو تر دې وروسته نبي ﷺ هغه صلا او تړون مات کړی او پر کفارو یې حمله وکړه او مکه یې فتح کړه. له دې څخه معلومه سوه چي مصلحتاً د عهد او تړون ماتول جائز دي.

**ولأن المصلحة إلخ:** فرمايي چي کله مصلحت بدل سي نو په دې صورت کي به د عهد ماتول "جهاد" وي او د عهد پوره کول به د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره "ترکُ الجهاد" (د جهاد پرېښوول) وي، لهذا د مصلحت د بدلېدلو په صورت کي د صلح او عهد په ماتولو کي خير او عافيت دی. او په دې هکله مخکي اطلاع ورکول ضروري دي، د دې لپاره چي مسلمانانو ته د وعده خلافۍ او غدارۍ تهمت راجع نه سي، او موږ نبي کريم ﷺ له وعده خلافۍ څخه منع کړي يو او دا حکم يې راته کړی دی چي "وَفَاءٌ لَا غَدْرٌ" (يعني حتی الإمکان عهد او وعده پوره کوئ! او وعده خلافي مه کوئ!).

**ولا بد من اعتبار مدة إلخ:** د دې حاصل دا دی چي د عهد او صلح د ختمولو او پر کفارو د حملې کولو په مينځ کي دومره مودت ورکول ضروري دی چي په هغه مودت کي ټولو کافرانو ته د عهد ماتولو خبر ورسيږي او هر يو د صلح په ختمېدلو خبر سي، او که چيري دومره مودت ورکول سي چي فقط د کفارو مشرانو ته خبر ورسيږي او د هغو لپاره دا ممکن وي چي د خپل حکومت په أطرافو کي دا خبر نشر او خپور کړي، نو دا هم صحيح دي، ځکه چي په دې صورت کي به هم مسلمانانو ته د وعده خلافۍ تهمت او إلزام نه راجع کيږي او دا صورت به هم له فرېب او غدارۍ څخه خالي وي.

## که کفار د عهد او تړون مخالفت وکړي

قال: وَإِنْ بَدَءُوا بِخِيَانَةٍ قَاتَلَهُمْ فرمايي: او که چيري کفار په خيانت کولو شروع وکړي نو امام دي د هغوی سره جنګ وکړي وَلَمْ يَنْبِذْ إِلَيْهِمْ او هغوی ته دي [د صلح] ماتولو خبر نه ورکوي إِذَا كَانَ ذَلِكَ بِاتِّفَاقِهِمْ [په دې شرط] چي کله دا کار د کفارو په اتفاق سوی وي لِأَنَّهُمْ صَارُوا نَاقِضِينَ لِلْعَهْدِ ځکه چي هغوی د عهد ماتونکي وګرځېدل فَلَا حَاجَةَ إِلَى نَقْضِهِ لهذا [اوس دويم ځل] د عهد ماتولو هيڅ ضرورت نسته بِخِلَافِ مَا إِذَا دَخَلَ جَمَاعَةٌ مِنْهُمْ په خلاف د هغه صورت کله چي د کافرانو يو جماعت دارُ اسلام ته ننوځي فَقَطَعُوا الطَّرِيقَ او [هلته] ډاکه ماري [لوټ ماري] وکړي وَلَا مَنَعَةَ لَهُمْ حال دا چي هغوی لره دفاعي طاقت [مضبوط قوت] حاصل نه وي حَيْثُ لَا يَكُونُ هَذَا نَقْضًا لِلْعَهْدِ نو دا به د عهد ماتول نه وي وَلَوْ كَانَتْ لَهُمْ مَنَعَةٌ وَقَاتَلُوا الْمُسْلِمِينَ عَلَانِيَةً [ليکن] که د دوی سره دفاعي

طاقت وي او په ډاګه د مسلمانانو سره جنګ وکړي يَكُونُ نَقْضًا لِلْعَهْدِ فِي حَقِّهِمْ دُونَ غَيْرِهِمْ نو دا به د جنګ کونکو [مقاتلينو] په حق کي د عهد ماتول وي، نه د نورو [کافرانو] په حق کي لِأَنَّهُ بِغَيْرِ إِذْنِ مَلِكِهِمْ ځکه چي دا فعل د دوی د باچا [مشر] له اجازې څخه بغير سوی دی فَفِعْلُهُمْ لَا يَلْزَمُ غَيْرَهُمْ لهذا د دوی فعل به د نورو [کافرانو] سره نه لازميږي حَتَّى لَوْ كَانَ بِإِذْنِ مَلِكِهِمْ صَارُوا نَاقِضِينَ لِلْعَهْدِ تر دې که چيري دا فعل د هغوی د مشر په اجازه سره وي نو هغوی به د عهد ماتونکي وګرځي لِأَنَّهُ بِاتِّفَاقِهِمْ مَعْنًى ځکه چي د معنیٰ په اعتبار سره [ټوله] کفار پر دې [عهد ماتولو] متفق دي.

**اللغات**: ﴿بدءوا﴾ د فتح ماضي ده: شروع کول، وړانديتوب کول، ﴿ناقضين﴾ د نصر اسمِ فاعل دی، نَقَضَ يَنْقُضُ نَقْضًا: پخه وعده ماتول (عهد ماتول)، ﴿منعة﴾ د مدافعت قوت، دفاعي طاقت، تر قوت او شوکت.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که کفار په خپله وعده خلافي وکړي او دا کار د دوی ټولو په رايه سره وسي، نو امام المسلمين ته پکار دي چي د عهد ماتولو له اطلاع ورکولو څخه بغير د هغو سره جنګ شروع کړي؛ ځکه کله چي هغوی په خپله د عهد په ماتولو کي وړانديتوب وکړي نو عهد او صلح به ماته سي او بيا به د هغه د ماتولو او کفارو ته د اطلاع ورکولو هيڅ ضرورت نه وي. د دې په خلاف که د کافرانو يو جماعت په دارُ الاسلام کي داخل سي او ډاګه ماري شروع کړي خو دغه جماعت ته هيڅ أهم قوت او شوکت حاصل نه وي، نو د هغو دا فعل به "د عهد ماتول" نه شمارل کيږي؛ ځکه چي د مسلمانانو عهد او تړون د دې جماعت سره نه دی، بلکي د جماعت د مشرانو او حاکمانو سره دی، او د دوی په ډاګه ماري سره مشران خبر هم نه دي، نو ځکه به دا "د عهد ماتول" نه وي.

ها! که چيري دا جماعت ستر قوت او شوکت لري او د مسلمانانو سره په ډاګه او علانيه توګه جنګ او قتال شروع کړي، نو د مقاتلينو په حق کي به دا "د عهد ماتول" وي او د غير مقاتلينو په حق کي به "د عهد ماتول" نه وي، ځکه چي د دې جماعت خلکو (مقاتلينو) د مشرانو له اجازې څخه بغير دا کار کړی دی خو څرنګه چي يې په علانيه توګه کړی دی نو ځکه به فقط د مقاتلينو سره دا فعل لازم وي او د نورو خلکو سره به نه لازميږي. ليکن که په دې فعل کي د مشرانو او حاکمانو اجازه هم شامله وي، نو دا فعل به "د عهد ماتول" وي ځکه اوس د معنیٰ په اعتبار سره په دې فعل کي ټول کفار متفق سول او د ټولو رايه پکښې شامله سوه، لهذا اوس به له اطلاع ورکولو څخه بغير پر دوی حمله کول جائز او مباح وي.

# د مال په عوض کي صلح کول

وَإِذَا رَأَى الْإِمَامُ مُوَادَعَةَ أَهْلِ الْحَرْبِ وَأَنْ يَأْخُذَ عَلَى ذٰلِكَ مَالًا او که امام دا مناسب وګڼي چي د حربيانو سره صلح وکړي او له هغوی څخه مال واخلي ايعني د کفارو سره د مال په عوض کي صلح کول مناسب وګڼي ا فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کي هيڅ حرج نسته لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَتِ الْمُوَادَعَةُ بِغَيْرِ الْمَالِ فَكَذَا بِالْمَالِ ځکه کله چي له مال څخه بغير صلح کول جائز دي نو د مال په عوض کي به هم جائز وي لٰكِنْ هٰذَا إِذَا كَانَ بِالْمُسْلِمِينَ حَاجَةٌ ليکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مسلمانانو ته د مال په عوض کي د صلح کولو ضرورت وي أَمَّا إِذَا لَمْ تَكُنْ ليکن که دا ضرورت نه وي لَا يَجُوزُ نو ا د مال په عوض کي صلح کول ا جائز نه دي لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه ليل په وجه کوم چي موږ مخکي بيان کړی وَالْمَأْخُوذُ مِنَ الْمَالِ يُصْرَفُ مَصَارِفَ الْجِزْيَةِ او اله کفارو څخه ا اخيستل سوی مال به د جزيې په مصارفو کي خرڅول کيږي هٰذَا إِذَا لَمْ يَنْزِلُوا بِسَاحَتِهِمْ بَلْ أَرْسَلُوا رَسُولًا دا حکم په هغه صورت کي دی چي کله مسلمانانو د هغوی [د حرب ا ساحې ته راغلي نه وي بلکي قاصد [استازی ا يې استولی وي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْجِزْيَةِ ځکه چي دا د جزيې په معنیٰ سره دي أَمَّا إِذَا أَحَاطَ الْجَيْشُ بِهِمْ ثُمَّ أَخَذُوا الْمَالَ ليکن که اسلامي لښکر پر کفارو احاطه کړې وي او له هغوی څخه يې [جبراً] مال اخيستی وي فَهُوَ غَنِيمَةٌ يُخَمِّسُهَا وَيُقَسِّمُ الْبَاقِيَ بَيْنَهُمْ نو [په دې صورت کي] به هغه اخيستل سوی مال غنيمت وي چي له هغه څخه به پنځمه حصه ايستل کيږي او پاته مال به په دوی [مجاهدينو] کي تقسيمول کيږي لِأَنَّهُ مَأْخُوذٌ بِالْقَهْرِ مَعْنًى ځکه چي هغه د معنیٰ په اعتبار سره جبراً [په زوره] اخيستل سوی مال دی.

**اللغات:** ﴿موادعة﴾ مصالحت. د جنګ پر پرېښوولو صلح کول. ﴿يُصرف﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: خرڅول. مصرفول. ﴿ساحة﴾ پراخه ځای (ميدان). ساحه. ﴿أحاط﴾ د افعال ماضي ده: احاطه کول. چار طرفه پر راګرځېدل. ګېره اچول. ﴿يُخمّس﴾ د تفعيل مضارع ده: يو شی پنځه رکنه جوړول. پنځه حصې ګرځول. له مال څخه خُمس ايستل. ﴿بالقهر﴾ په غلبه سره. په زوره. په جبر (جبراً).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې څرنګه بدون المال د کُفارو سره صلح کول جائز دي. همداسې د مال په عوض کې د هغو سره صلح کول جائز دي. په دې شرط چې مسلمانانو ته د مال ضرورت وي. لیکن که مسلمانانو ته د مال ضرورت نه وي نو بیا د مال په عوض کې صلح ورسره کول جائز نه دي: ځکه چې د جهاد مقصد د "الله نوم لوړول" دي نه "مال اخیستل". لهذا بېله ضرورته د مال په عوض کې صلح کول جائز نه دي. او د جواز په صورت کې چې له کفارو څخه کوم مال اخیستل کیږي هغه به د "جزیه" په مصارفو کې خرچول کیږي (یعني کوم حکم چې د جزیې دی. هغه د صلح د مال هم دی).

**هذا إذا إلخ**: فرمایي چې دغه د صلح مال به هغه وخت د جزیې په مصارفو کې خرچول کیږي کله چې مسلمانان د جنګ ډګر ته راغلي نه وي او د قاصد او استازي په ذریعه یې دا معامله کړې وي. نو په هغه صورت کې به دا مال د جزیې په حکم کې وي. لیکن که مجاهدین د جنګ میدان ته راغلي وي او کفار یې محاصره کړي وي او بیا کفارو مجبوراً د مال په عوض کې صلح کړې وي نو په دې صورت کې به هغه مال د غنیمت مال وي او له هغه څخه به یوه حصه ایستل کیږي او پاته څلور حصې به په مجاهدینو کې تقسیمول کیږي، ځکه چې دا مال له کفارو څخه جبراً او قهراً اخیستل سوی دی. نو دا د هغه مال سره مشابه سو کوم چې له کفارو څخه تر قتل او قتال وروسته اخیستل سوی وي چې هغه ته مال غنیمت وایي. او د مال غنیمت حکم همدا دی چې د هغه یوه حصه به د الله او رسول لپاره وي، او پاته څلور حصې به مجاهدینو ته ورکول کیږي، نو همداسې به دغه مال هم تقسیمول کیږي.

## د مرتدینو سره صلح کول

وَأَمَّا الْمُرْتَدُّونَ فَيُوَادِعُهُمُ الْإِمَامُ حَتَّىٰ يَنْظُرَ فِي أَمْرِهِمْ او کوم چې مرتد سوي خلک دي نو امام د هغو سره صلح کولای سي، تر دې چې مسلمانان د هغوی د معاملې [او حال] په هکله غور وکړي لِأَنَّ الْإِسْلَامَ مَرْجُوٌّ مِنْهُمْ ځکه چې له هغو څخه د اسلام راوړلو اُمید سته فَجَازَ تَأْخِيرُ قِتَالِهِمْ طَمَعًا فِي إِسْلَامِهِمْ لهذا د هغوی د اسلام راوړلو په طمع د هغوی قتال ځنډول جائز دي وَلَا يَأْخُذُ عَلَيْهِ مَالًا او مسلمانان به [د هغو سره] د صلح پر کولو مال نه اخلي لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ أَخْذُ الْجِزْيَةِ مِنْهُمْ ځکه چې له هغو څخه جزیه اخیستل جائز نه دي لِمَا نُبَيِّنُ د هغه دلیل په وجه چې [وروسته] به یې موږ بیان کړو وَلَوْ أَخَذَهُ لَمْ يَرُدَّهُ او که چیري امام [د صلح] مال واخلي نو هغه دي نه واپس کوي لِأَنَّهُ مَالٌ غَيْرُ مَعْصُومٍ ځکه چې دا غیر محفوظ مال دی وَلَوْ حَاصَرَ الْعَدُوُّ الْمُسْلِمِينَ او که چیري دښمن مسلمانان

محاصره کړي وَطَلَبُوا الْمُوَادَعَةَ عَلَىٰ مَالٍ يَدْفَعُهُ الْمُسْلِمُونَ إِلَيْهِمْ او هغوی د مال په عوض کې د صلح کولو مطالبه وکړي چې مسلمانان به يې هغوی ته ورکوي لَا يَفْعَلُهُ الْإِمَامُ نو امام دې دا صلح نه کوي لِمَا فِيهِ مِنْ إِعْطَاءِ الدَّنِيئَةِ وَإِلْحَاقِ الْمَذَلَّةِ بِأَهْلِ الْإِسْلَامِ ځکه چې په دې کې مسلمانانو ته رذالت [او عيب] ور په برخه کول دي او مسلمانان په ذلّت کې مبتلا کول دي ايعني دا د مسلمانانو لپاره د پزې پرېکېدل دي، ځينو شارحينو د "دنيئة" پر ځای "دية" ليکلي دي، يعني مسلمانان به ديت هم ورکوي. خو دا معنیٰ نامناسبه ښکاري] إِلَّا إِذَا خَافَ الْهَلَاكَ خو دا چې کله د هلاکت ېېره وي لِأَنَّ دَفْعَ الْهَلَاكِ وَاجِبٌ بِأَيِّ طَرِيقٍ يُمْكِنُ ځکه چې د هلاکت دفع کول واجب دي هغه که په هره طريقه سره ممکن وي وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُبَاعَ السِّلَاحُ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ او مناسب نه دي چې پر حربيانو وسله خرڅه کړل سي وَلَا يُجَهَّزَ إِلَيْهِمْ او نه به د دوی وطرف ته [د تجارانو له طرفه] وسله وړل کيږي [د تجهيز أصل معنیٰ د "تيارولو" ده، خو دلته يې شارحينو د "وړلو" او "نقل کولو" معنیٰ کړې ده] لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعِ السِّلَاحِ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ وَحَمْلِهِ إِلَيْهِمْ ځکه چې نبي کريم ﷺ پر حربيانو د وسلې له خرڅولو او د هغوی وطرف ته د وسلې له وړلو څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ فِيهِ تَقْوِيَتَهُمْ عَلَىٰ قِتَالِ الْمُسْلِمِينَ او ځکه چې په دې کې د مسلمانانو د جنګ په خلاف هغوی ته طاقت ورکول دي فَيُمْنَعُ مِنْ ذٰلِكَ نو په دې وجه به دا ممنوع وي وَكَذَا الْكُرَاعُ او همدا حکم د [جنګي] آسونو هم دی ايعني پر حربيانو د جنګي آسونو او سپارليو خرڅول هم ممنوع دي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَكَذٰلِكَ الْحَدِيدُ او همدا حکم د اوسپني هم دی لِأَنَّهُ أَصْلُ السِّلَاحِ ځکه چې اوسپنه د وسلې أصل [او بنياد] دی وَكَذَا بَعْدَ الْمُوَادَعَةِ او تر صلح [روغي] وروسته هم دغه حکم دی لِأَنَّهَا عَلَىٰ شَرَفِ النَّقْضِ أَوِ الِانْقِضَاءِ ځکه صلح ماتېدلو ته نژدې وي يا د مودت پر ختمېدلو به صلح ماته سي فَكَانُوا حَرْبًا عَلَيْنَا نو دوی [کفار] به زموږ په خلاف جنګ کونکي وګرځي ايعني تر صلح ماتېدلو وروسته به دوی هغه وسلې، آسونه او داسي نور زموږ په خلاف استعمالوي، نو د نفع پر ځای به موږ ته نقصان را ورسيږي] وَهٰذَا هُوَ الْقِيَاسُ فِي الطَّعَامِ

وَالثَّوْبِ او همدا د غلې او جامې په هکله د قياس تقاضا ده اچي پر كفارو به نه خرڅول کيږي ا إِلَّا أَنَّا عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ لېکن موږ په حديث سره د دې اشيانو اجازه ا معلومه کړې ده فَإِنَّهُ الطَّيْلا أَمَرَ ثُمَامَةَ[1] أَنْ يَمِيرَ أَهْلَ مَكَّةَ ځکه چې نبي کريم ﷺ حضرت ثمامه ته حکم وکړی چې هغه د مکې کفارو ته غله ورکړي وَهُمْ حَرْبٌ عَلَيْهِ حالانکې هغوی ا په دې وخت کې ا د نبي ﷺ سره د جنګ په حالت کې وو.

**اللغات**: ﴿تقوية﴾ د تفعيل مصدر دی: طاقت ورکول، قوت وربخښل. ﴿كراع﴾ مراد ځنې جنګي سپارلۍ دي لکه آسونه او داسې نور. ﴿شرف﴾، کناره، غاړه، ژی (څنډه). ﴿انقضاء﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل، پوره کېدل. ﴿يَمِيرُ﴾ د ضرب مضارع ده: (بچيانو ته) غله او نفقه ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که دېر خلک له اسلام څخه مرتد سي (العياذ بالله) او بيا پر يو علاقه باندې غلبه وکړي او هغه ته د دارُ الحرب شکل ورکړي، وروسته له مسلمانانو څخه د صلح غوښتنه وکړي نو امامُ المسلمين د دوی په حال کې تر غور او فکر کولو وروسته د دوی سره صلح کولای سي، ځکه چې له هغو څخه د اسلام راوړلو اُميد سته، لهذا په دې اُميد او حرص د هغو سره په قتال او جنګ کولو کې تأخير کېدای سي، لېکن د دې صلح په عوض کې مسلمانان له هغو څخه مال نه سي اخيستلای، ځکه چې د دې مال مصرِف (د خرچولو ځای) هغه دی کوم چې د جزيې مصرِف دی، حالانکې له مرتدينو څخه جزيه اخيستل کېدلای نه سي، د دې نور تفصيل به انشاء الله په بابُ الجزيه کې راسي. بيا هم که امام له مرتدينو څخه مال واخلي نو دا مال به بيا مرتدينو ته نه واپس کيږي، ځکه چې د ارتداد په وجه د دوی مال غيرِ محفوظ او غيرِ محترم وګرځېدی، لهذا د هغه په اخيستلو کې به هيڅ حرج نه وي.

**ولوحاصر العدو إلخ**: فرمايي که چيري کفار مسلمانان محاصره کړي او بيا له مسلمانانو څخه د مال په عوض کې د صلح کولو مطالبه وکړي، نو امام ته پکار دي چې د هغو سره د مال په عوض کې صلح نه وکړي، ځکه چې د مال په عوض کې په صلح کولو سره به د مسلمانانو کمزوري ثابته سي او هغوی به ټيټ معلوم سي او مسلمان قوم ته به ذلت او شرمندګي محسوسه سي، نو ځکه به د مال په عوض کې

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في دلائل النبوة، باب سرية نجد (ج:٤، ص:٨٠).

د هغو سره صلح نه کيږي. هـا! کـه چيرې محاصره زورورره وي يا د مال نه ورکولو پـه صورت کـې د مسلمانانو د هلاکت خطره وي. نو په دې صورت کې به د مال په عوض کې مجبوراً د صلح کولو اجازه وي. ځکه چې په هر حالت کې لـه مسلمانانو څخه هلاکـت ليرې کـول واجب دي هغه کـه د قتـال پـه ذريعه ليري کړی سي يا د مال په ذريعه.

ولا ينبغي إلخ: د دې حاصل دا دی چې پر کافرانو وسله او د جنګ سامان خرڅول يا د هغو ملک او ښار ته وسله وړول او خرڅول صحيح نه دي؛ ځکه چې نبي کريم ﷺ له دې څخه منع کړې ده. او بل دا چې په دې سره حربيانو ته د وسلې او جنګي سامان په اعتبار سره تقويت ورکول کيږي کوم چې د "وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ" په وجه ممنوع دي. همدا حکم د آس او اوسپني د خرڅلاو هم دی، ځکه چې آس هم د جنګ سامان دی او اوسپنه خو د وسلې أصلي ماده ده نو د دې شيانو خرڅول به هم د کفارو په حق کې د تقويت باعث وي. نو ځکه دا شيان هم پر کفارو خرڅول صحيح نه دي. او دا خرڅلاو چې څرنګه تر صلح او مصالحت مخکې صحيح نه دی همداسې تر صلح وروسته هم صحيح نه دی. ځکه چې د صلح هيڅ باور نسته او د صلح د ماتېدلو خطره هم سته. بلکې غالب دا دي چې د وسلې او سامان په ورکولو سره کفارو ته د "صلح او عهد ماتولو" لاره هواريږي. او تر صلح ماتېدلو وروسته به کفار په هغه وسلو زموږ سره جنګيږي، لنډه دا چې په دې سره به مسلمانانو ته د نفع پر ځای نقصان ورسيږي.

وهذا هو القياس إلخ: فرمايي چې همدا د غلې او جامې په هکله د قياس تقاضا ده چې هغه پر حربيانو خرڅه نه کړل سي؛ ځکه چې په دې سره هغو ته تقويت حاصليږي. لېکن د حضرت ثمامه په هغه واقعه سره موږ دلته قياس پريږدو چې کله حضرت ثمامه تر اسلام راوړلو وروسته د مکې کفارو ته د غلې نه ورکولو عهد وکړی نو نبي ﷺ هغه ته حکم وکړی چې "غله مه راګرځوه. هغه ور پرېږده". حالانکې د مکې ټوله کفار د نبي کريم ﷺ ښکاره او سخت ترين دښمنان ول. لېکن بيا هم نبي کريم ﷺ هغو ته د غلې ورکولو حکم او فرمان صادر کړی. له دې څخه معلومه سوه چې پر حربي کافرانو باندې د دې شيانو د خرڅولو اجازه سته.



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ أُحْكَامِ الْأَمَانِ)

## (دا) فصل (د أمان ورکولو د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** په شروع کي صاحب د کِتاب رَحِمَهُ الله وفرمایل: باب الموادعة "ومن یجوز أمانه". نو ځکه یې اول د موادعة (صلح) أحکام بیان کړل. اوس په دې فصل کي د أمان احکام بیانوي.

**أمان:** صاحب د معجمُ الفقهاء د أمان اصطلاحي تعریف داسي ذکر کړی دی: "العهد للمحارب بعدم الاعتداء علی نفسه وماله وعرضه ودینه". (یعني د حربي کافر سره د هغه د ځان. مال او د هغه د آبرو او د دین د حفاظت عهد او تړون کول). مطلب دا چي کله حربي کافر دارُ الاسلام ته راسي او دا غوښتنه وکړي چي دلته دي زما ځان. مال. آبر او دین په أمن وي او څوک دي پر ما تجاوز او تېری نه کوي. او یو مسلمان د دې ذمه واري واخلي. نو همدې ته "أمان ورکول" وایي.

### أمان او د هغه شرائط

إِذَا أَمَّنَ رَجُلٌ حُرٌّ أَوِ امْرَأَةٌ حُرَّةٌ كَافِرًا أَوْ جَمَاعَةً أَوْ أَهْلَ حِصْنٍ أَوْ مَدِينَةٍ او کله چي یو آزاد سړی یا آزاده ښځه یو کافر یا یو جماعت [ډلي] یا د یو قلعې یا د ښار خلګو [کفارو] ته أمان ورکړي صَحَّ أَمَانُهُمْ نو اد سړي او ښځي له طرفه [به هغوی ته اورکول سوی] أمان صحیح وي وَلَمْ يَكُنْ لِأَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ قِتَالُهُمْ او په مسلمانانو کي به د هیڅا لپاره هم د هغوی سره جنګ کول جائز نه وي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] او أصل په دې سلسله کي د نبي ﷺ دا فرمان دی اَلْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ وَيَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ د [ټولو] مسلمانانو وینه برابره [کفو] ده او په دوی کي به [هر مسلمان] د ادنیٰ [یوه مسلمان] د ذمه واري د پوره کولو کوښښ کوي [یعني که په مسلمانانو کي یو مسلمان هم د یو چا ذمه واري واخلي او یو چا ته أمان ورکړي نو پر هر مسلمان لازم دي چي د هغه خیال وساتي او هغه پوره کړي] أَيْ أَقَلُّهُمْ وَهُوَ الْوَاحِدُ [په دې سره صاحب د هدایې د "ادنیٰ" تعریف کوي [یعني [له ادنیٰ څخه مراد] أقلّ دی او هغه یو سړی [یو مسلمان] دی

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب الدیات، رقم الحدیث: ۴۵۳۰.

وَلِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْقِتَالِ او ځکه چي هر مسلمان د جنګ کولو أهل دی فَيَخَافُونَهُ نو کفار به له هغه شخه بيرېږي إِذْ هُوَ مِنْ أَهْلِ الْمَنَعَةِ ځکه چي هغه [هر مسلمان] د مدافعت أهل دی [يعني د دفع کولو طاقت لري] فَيَتَحَقَّقُ الْأَمَانُ مِنْهُ نو ځکه له هغه شخه أمان ورکول ثابتېدای سي لِمُلَاقَاتِهِ مَحَلَّهُ ځکه چي أمان د خپل محل سره متصل دی [يعني له چا شخه چي کفار بيرېږي نو هغه د أمان ورکولو محل دی، او د هغه له طرفه أمان ورکول "له خپل محل شخه د أمان صادرېدل" دي نو ځکه به هر مسلمان ته د أمان ورکولو حق او اختيار وي او د هر مسلمان أمان ورکول به صحيح وي] ثُمَّ يَتَعَدَّى إِلَى غَيْرِهِ بيا هغه [د أمان ذمه واري] به د نورو [مسلمانانو] وطرفه ته متعدي کيږي وَلِأَنَّ سَبَبَهُ لَا يَتَجَزَّأُ وَهُوَ الْإِيمَانُ او ځکه چي د أمان سبب يعني إيمان نه متجزي کيږي وَكَذَا الْأَمَانُ لَا يَتَجَزَّأُ [نو] همداسي به أمان هم نه متجزي کيږي فَيَتَكَامَلُ كَوِلَايَةِ الْإِنْكَاحِ لهذا دا به [هم] د نکاح ورکولو د ولايت په شير کامل وي قال: إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي ذَٰلِكَ مَفْسَدَةٌ فرمايي: مګر دا چي په دې أمان کي يو خرابي وي فَيَنْبِذُ إِلَيْهِمْ نو [په دې صورت کي] به امام د دوی أمان ماتوي كَمَا إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ بِنَفْسِهِ ثُمَّ رَأَى الْمَصْلَحَةَ فِي النَّبْذِ لکه [په هغه صورت کي چي يې ماتولای سي] کله چي امام په خپله أمان ورکړی وي [او] بيا د هغه په ماتولو کي مصلحت ويني وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او [مخکي] موږ د دې بيان وکړی وَلَوْ حَاصَرَ الْإِمَامُ حِصْنًا وَأَمَّنَ وَاحِدٌ مِنَ الْجَيْشِ وَفِيهِ مَفْسَدَةٌ او که چيري امام [د کفارو] يوه قلعه محاصره کړي او بيا د لښکر شخه يو کس [هغو ته] أمان ورکړي حال دا چي په دې أمان کي خرابي وي يَنْبِذُ الْإِمَامُ نو [هم] به إمام دا أمان ختموي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَيُؤَدِّبُهُ الْإِمَامُ او إمام به هغه [أمان ورکونکي کس] ته سزا ورکوي لِافْتِيَاتِهِ عَلَى رَأْيِهِ ځکه چي هغه د امام پر رايه خپلي رايي ته ترجيح ورکړه بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِيهِ نَظَرٌ په خلاف د هغه صورت کله چي په دې أمان کي يو مصلحت وي لِأَنَّهُ رُبَّمَا تَفُوتُ الْمَصْلَحَةُ بِالتَّأْخِيرِ ځکه چي کله نا کله د تأخير په وجه مصلحت فوتيږي فَكَانَ مَعْذُورًا نو ځکه به أمان ورکونکی معذور وي.

**اللغات:** ﴿حصن﴾ قلعه، کلا. ﴿تتكافأ﴾ د تفاعل مضارع ده، له کفو شخه مشتق دی: برابرېدل، ﴿منعة﴾ د مدافعت قوت، دفاعي طاقت. ﴿لا يتجزأ﴾ او لا يتجزّى: جزء جزء کېدل، حصه حصه

کېدل، ټوکړه ټوکړه کېدل. ﴿يُؤَدِّبه﴾ د تفعيل مضارع ده: أدب ورکول. کله چې دا باب د جرم او جنايت په بحث کې ذکر سي نو د "سزا ورکولو" په معنیٰ سره راځي (مصباح اللغات). ﴿إِفْتِيَات﴾ د افتعال مصدر دی: ترجيح ورکول، غوره ګڼل. ﴿نظر﴾ مصلحت، ښېګڼه (خير او نفع).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که په مسلمانانو کې يو آزاد سړی يا آزاده ښځه يو کافر ته يا د کفارو يو جماعت ته أمان ورکړي، يا د يو ښار او قلعې والا (کفارو) ته أمان ورکړي، نو دا أمان صحيح او جائز دی، او که چيري په دې کې د مسلمانانو نفع وي نو د هيچا لپاره هم د دې أمان د ماتولو اجازه نسته او نه د أمان ورکړل سوو کافرانو سره جنګ او قتال کول صحيح دي، ځکه چې په حديث کې ذکر سوي دي "چې د ټولو مسلمانانو وينه برابره ده او که يو ادنیٰ سړی هم د يو چا ذمه واري واخلي نو پر هر مسلمان لازم دي چې هغه پوره کړي"، مطلب دا چې که يو ادنیٰ مسلمان هم يو چا ته أمان ورکړي او په هغه کې د مسلمانانو ضرر نه وي، نو د ټولو مسلمانانو لپاره د هغه أمان پوره کول ضروري دي.

**ولأنه من أهل القتال إلخ**: دا عقلي دليل دی او څه مشکل دی، حاصل يې دا دی چې هر مسلمان د قتال (جنګ کولو) طاقت او أهليت لري، نو ځکه به کفار له هغه څخه بيريږي، نو له يو چا څخه چې خوف او بيره محسوسيږي، له هغه څخه أمان هم ثابتېدای سي، نو ځکه هر مسلمان ته د أمان ورکولو حق سته، او کله چې کفارو ته د يوه مسلمان له طرفه أمان ورکول سي، نو هغه سرايت کوي او نشر کيږي او د نورو مسلمانانو ذمه واري هم ګرځي.

**ولأن سببه إلخ**: يو دليل دا هم دی چې د أمان ورکولو سبب ايمان دی (او ايمان په ټولو مسلمانانو کې سته)، او په ايمان کې تجزي نه سي کېدای لهذا په أمان کې به هم تجزي نه کيږي. او لکه څرنګه چې د نکاح او واده ورکولو په ولايت کې يو څو وليان منفرد او کامل شريک وي، همداسې به په أمان ورکولو کې هم هر مسلمان کامل او مکمل شريک وي او په دې کې به تقسيم او تجزي نه کيږي. لېکن که په أمان ورکولو کې د مسلمانانو ضرر وي نو إمام دې هغه ختم کړي او کفارو ته دې د هغه اطلاع ورکړي، ځکه چې امام د مسلمانانو په حق کې د خير او مصلحت قائمولو لپاره ټاکل کيږي. د ضرر او شر رسولو يا نشر کولو لپاره هغه نه مقرر کيږي، نو ځکه دې امام په أمان کې د ضرر ليدلو په صورت کې هغه ختم کړي. لکه کله چې امام په خپله أمان ورکړی وي نو د شر او ضرر ښکاره کېدلو په صورت کې هغه خپل ورکول سوی أمان هم ختمولای سي.

ولوحاصر الإمام إلخ: د دې حاصل دا دی چي که امام د کفارو يوه قلعه (کلا) محاصره کړي لېکن له مجاهدينو څخه يو مجاهد هغو ته أمان ورکړي او په دې أمان کي د مسلمانانو ضرر وي نو امام به دغه أمان هم ختموي او أمان ورکونکي ته به تأديبي سزا هم ورکوي. ځکه چي هغه خپلي رايي ته د امام پر رايه ترجيح ورکړې ده. لېکن که چيري په دغه أمان کي د مسلمانانو فايده وي نو په دې صورت کي به هغه ته سزا نه ورکول کيږي، ځکه که په دې صورت کي هغه د امام د رايي انتظار وکړي نو کېدای سي چي د أمان په ځنډولو سره هغه فايده او مصلحت فوت سي. نو ځکه به په داسي صورت کي د هغه أمان معتبر وي او د امام پر رايه باندي خپلي رايي ته په ترجيح ورکولو کي به هغه معذوره ګڼل کيږي (او هيڅ سزا به نه ورکول کيږي).

## د ذمي له طرفه د ورکول سوي أمان حکم

وَلَايَجُوزُ أَمَانُ ذِمِّيٍّ او د ذمي أمان صحيح نه دی لِأَنَّهُ مُتَّهَمٌ بِهِمْ ځکه چي ذمي په کفارو سره متهم (تورن) دی وَكَذَا لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ همدارنګه پر مسلمانانو هغه ته ولايت هم حاصل نه دی قال: وَلَا أَسِيرٍ وَلَا تَاجِرٍ يَدْخُلُ عَلَيْهِمْ فرمايي: او نه د قيدي أمان صحيح دی او نه د هغه تاجر أمان صحيح دی کوم چي کفارو ته (د تجارت په غرض) ځي لِأَنَّهُمَا مَقْهُورَانِ تَحْتَ أَيْدِيهِمْ ځکه چي دا دواړه د کافرانو تر لاس لاندي دي (يعني د هغوی په قبضه کي دي) فَلَا يَخَافُونَهُمَا لهذا کفار به له دوی څخه نه بيريږي وَالْأَمَانُ يَخْتَصُّ بِمَحَلِّ الْخَوْفِ حال دا چي أمان د خوف د محل سره خاص دی وَلِأَنَّهُمَا يُجْبَرَانِ عَلَيْهِ فِيهِ او ځکه چي دوی په أمان ورکولو کي مجبورول کېدای هم سي فَيَعْرَى الْأَمَانُ عَنِ الْمَصْلَحَةِ نو (د دوی) أمان به له مصلحت څخه خالي وي وَلِأَنَّهُمْ كُلَّمَا اشْتَدَّ الْأَمْرُ عَلَيْهِمْ يَجِدُونَ أَسِيرًا أَوْ تَاجِرًا فَيَتَخَلَّصُونَ بِأَمَانِهِ او بل دا چي هر کله پر کافرانو معامله سخته سي نو هغوی به يو قيدي يا تاجر پيدا کوي او د هغه په أمان سره به ځانونه خلاصوي فَلَا يَنْفَتِحُ لَنَا بَابُ الْفَتْحِ نو زموږ لپاره به د فتح دروازه نه خلاصيږي وَمَنْ أَسْلَمَ فِي دَارِ الْحَرْبِ وَلَمْ يُهَاجِرْ إِلَيْنَا او کوم کس چي په دارُ الحرب کي اسلام راوړي او زموږ وطرف ته هجرت نه وکړي لَا يَصِحُّ أَمَانُهُ نو د هغه أمان به صحيح کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿أسير﴾ قيدي، بندي، ﴿مقهور﴾ مغلوب، مجبور، ﴿يتخلّصون﴾ د تفعّل مضارع ده: خلاصون ترلاسه كول (نجات موندل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه چيرې ذمي يو كافر ته أمان وركړي نو د هغه أمان صحيح او معتبر نه دی؛ ځكه چې ذمي د كفارو سره په طرفدارۍ او غمخوارۍ كولو كې متهم دی او هغه ته پر مسلمانانو ولايت هم حاصل نه دی، نو په دې وجه د هغه وركول سوی أمان صحيح او معتبر نه دی.

همدارنګه كه يو مسلمان قيدي د كفارو په قبضه كې وي يا يو مسلمان تاجر د كفارو علاقې ته ځي راځي، نو د دوی وركول سوی أمان هم معتبر نه دی؛ ځكه چې دا دواړه د كافرانو په لاس او قبضه كې دي، لهذا كفار به له دوی څخه رعب او بيره نه محسوسوي، حال دا چې أمان د خوف او بيرې د محل سره خاص دی، لهذا كله چې خوف معدوم دی نو أمان به هم نه صحيح كيږي.

دويمه خبره دا ده چې كېدای سي دغه قيدي او تاجر به كفارو جبراً پر أمان مجبوره كړی وي نو د جبر په وجه به أمان له مصلحت څخه خالي وګرځي، او بل دا چې هر كله هم پر كفارو څه سختي راسي نو هغوی به پر قيديانو او تاجرانو فشار او دباؤ اچوي او مسلمانانو ته به د كفارو په خلاف د فتح او برې حاصلولو هيڅ موقع نه ترلاسه كيږي او په دې توګه به د جهاد سلسله ودريږي.

ومن أسلم إلخ: مسئله دا ده كه يو كافر په دارُ الحرب كې اسلام راوړي . ليكن دارُ الاسلام ته هجرت نه وكړي، نو د هغه له طرفه وركول سوی أمان هم صحيح نه دی. ځكه چې د كفارو په زړه كې له هغه څخه بيره نسته. حالانكې أمان د خوف او بيرې د محل سره خاص دی.

## د غلام له طرفه د وركول سوی أمان حكم

وَلَايَجُوزُ أَمَانُ الْعَبْدِ الْمَحْجُورِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د محجور غلام أمان جائز نه دی إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ مَوْلَاهُ فِي الْقِتَالِ مګر دا چې مالک هغه ته د قتال (جهاد كولو) اجازه وركړې وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَصِحُّ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صحيح دی وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَأَبُويُوسُفَ مَعَهُ فِي رِوَايَةٍ وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي رِوَايَةٍ او امام ابو يوسف په يوه روايت كې د امام محمد سره دی او په بل روايت كې د امام صاحب سره دی لِمُحَمَّدٍ قَوْلُهُ عليه السلام: أَمَانُ[1] الْعَبْدِ أَمَانٌ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل د نبي كريم ﷺ دا إرشاد دی: چې د غلام أمان هم أمان

* القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر فی رد المحتار (ج:۳، ص:۲۵۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۰]

[1] تخريج: أخرجه البيهقي فی السنن الكبرىٰ (ج:۹ ص:۱۴۰).

دی رَوَاهُ أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ دا [حديث] ابو موسیٰ أشعري رضي الله عنه روايت کړی دی وَلِأَنَّهُ مُؤْمِنٌ مُمْتَنِعٌ او ځکه چي غلام مؤمن دی او د قوت خاوند دی فَيَصِحُّ أَمَانُهُ لهذا د هغه أمان به صحيح وي اعْتِبَارًا بِالْمَأْذُونِ لَهُ فِي الْقِتَالِ پر هغه غلام باندي په قياس کولو سره چي هغه ته د جنګ [جهاد] کولو اجازه ورکول سوې وي وَبِالْمُؤَبَّدِ مِنَ الْأَمَانِ او پر همېشني أمان باندي په قياس کولو سره فَالْإِيمَانُ لِكَوْنِهِ شَرْطًا لِلْعِبَادَةِ نو ايمان [په دې وجه شرط دی] ځکه چي ايمان د عبادت لپاره شرط دی وَالْجِهَادُ عِبَادَةٌ او جهاد هم يو عبادت دی وَالِامْتِنَاعُ لِتَحَقُّقِ إِزَالَةِ الْخَوْفِ بِهِ او امتناع ايعني د قوت خاوند کېدل په دې وجه شرط دی] ځکه چي د هغه په ذريعه د بيري ختمېدل ثابتيږي وَالتَّأْثِيرُ إِعْزَازُ الدِّينِ وَإِقَامَةُ الْمَصْلَحَةِ فِي حَقِّ جَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ او د قياس علت جامعه د دين إعزاز او د مسلمانانو د جماعت په حق کي د مصلحت قائمول دي إِذِ الْكَلَامُ فِي مِثْلِ هَذِهِ الْحَالَةِ ځکه چي دا کلام د همداسي حالت سره متعلق دی وَإِنَّمَا لَا يَمْلِكُ الْمُسَايَفَةَ لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْطِيلِ مَنَافِعِ الْمَوْلَى او محجور غلام [په دې وجه] د جنګ کولو اختيار نه لري [او جهاد ته نه سي تللای] ځکه چي په دې کي د مالک منافع معطله کول [ضايع کول] دي وَلَا تَعْطِيلَ فِي مُجَرَّدِ الْقَوْلِ او فقط په خبره کولو [زباني وينا] سره منافع نه معطله کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ مَحْجُورٌ عَنِ الْقِتَالِ د امام صاحب دليل دا دی: چي غلام له قتال څخه منع سوی دی فَلَا يَصِحُّ أَمَانُهُ نو ځکه به د هغه أمان نه صحيح کيږي لِأَنَّهُمْ لَا يَخَافُونَهُ ځکه چي کفار له هغه څخه نه بيريږي فَلَمْ يُلَاقِ الْأَمَانُ مَحَلَّهُ لهذا أمان د خپل محل سره متصل نه سو بِخِلَافِ الْمَأْذُونِ لَهُ فِي الْقِتَالِ په خلاف د هغه غلام چي د قتل اجازه ورکول سوې دي لِأَنَّ الْخَوْفَ مِنْهُ مُتَحَقِّقٌ ځکه چي له هغه څخه [د کفارو] بيره ثابته ده وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا لَا يَمْلِكُ الْمُسَايَفَةَ لِمَا أَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي حَقِّ الْمَوْلَى عَلَى وَجْهٍ لَا يَعْرَى عَنِ احْتِمَالِ الضَّرَرِ فِي حَقِّهِ او ځکه چي هغه په دې وجه د جنګ کولو اختيار نه لري چي دا د مالک په حق کي تصرف کول دي په دې توګه چي دا تصرف د مالک په حق کي د ضرر له احتمال څخه خالي نه دی وَالْأَمَانُ نَوْعُ قِتَالٍ او [د هغه] أمان ورکول [هم] يو ډول جنګ کول دي وَفِيهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او په دې کي هغه خرابي ده کوم چي موږ ذکر کړه لِأَنَّهُ قَدْ يُخْطِئُ

ځکه چي هغه امحجور غلام ا کله غلطي کوي بَلْ هُوَ الظَّاهِرُ بلکي د هغه غلطي کول واضح دي وَفِيهِ سَدُّ بَابِ الاِسْتِغْنَامِ او په دې کي د غنيمت حاصلولو دروازه بندول دي بِخِلَافِ الْمَأْذُونِ په خلاف د هغه غلام چي د قتال اجازه ورکول سوې وي لِأَنَّهُ رَضِيَ بِهِ ځکه چي مالک د هغه په أمان سره راضي سوی دی وَالْخَطَأُ نَادِرٌ او له هغه شخصه غلطي صادرېدل نادر دي لِمُبَاشَرَتِهِ الْقِتَالَ د قتال کولو په وجه ايعني ځکه چي هغه جنګ او جهاد کونکی دی او د جنګ سره مخامخ سوی دیا وَبِخِلَافِ الْمُؤَبَّدِ او په خلاف د همېشني أمان ورکولو ايعني په خلاف د ذمي جوړولوا لِأَنَّهُ خَلَفٌ عَنِ الْإِسْلَامِ ځکه چي هغه د اسلام قائم مقام دي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الدَّعْوَةِ إِلَيْهِ لهذا هغه به اسلام ته د دعوت ورکولو په درجه کي وي وَلِأَنَّهُ مُقَابَلٌ بِالْجِزْيَةِ او ځکه چي هغه اذمي جوړولا د جزيې په مقابل کي دي وَلِأَنَّهُ مَفْرُوضٌ عِنْدَ مَسْأَلَتِهِمْ ذٰلِكَ او ځکه چي هغه د کفارو د غوښتني په وخت کي فرض دي وَإِسْقَاطُ الْفَرْضِ نَفْعٌ او اله خپلي غاړي څخه ا فرض ساقطول د نفع خبره ده فَافْتَرَقَا نو په دې دواړو کي فرق راغلی ايعني د محجور غلام په أمان ورکولو او د هغه په ذمي جوړولو کي فرق راغلیا وَلَوْ أَمَّنَ الصَّبِيُّ وَهُوَ لَا يَعْقِلُ او که بچی أمان ورکړي حال دا چي هغه نه پوهيږي ايعني غير عاقل وي ا لَا يَصِحُّ نو هغه صحيح نه دی كَالْمَجْنُونِ لکه د لېوني أمان چي صحيح نه دی وَإِنْ كَانَ يَعْقِلُ وَهُوَ مَحْجُورٌ عَنِ الْقِتَالِ او که چيري هغه پوهيږي خو له قتال څخه منع کړی سوی وي فَعَلَى الْخِلَافِ نو د هغه أمان پر اختلاف دی ايعني په دې صورت کي د هغه د أمان په صحيح کېدلو کي د امام صاحب او امام محمد اختلاف دیا وَإِنْ كَانَ مَأْذُونًا لَهُ فِي الْقِتَالِ او که هغه ته د قتال اجازه ورکول سوې وي فَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَصِحُّ بِالِاتِّفَاقِ نو صحيح روايت دا دی چي بالاتفاق د هغه أمان صحيح دی.

**اللغات**: ﴿**محجور**﴾ د نصر اسمِ مفعول دی: هغه کس چي له يو شي څخه منع کړی سوی (هغه کس چي پابندي پر لګېدلې وي). ﴿**ممتنع**﴾ د افتعال اسمِ فاعل دی: منع کونکی، هغه کس چي د مدافعت او دفاع کولو قوت لري. ﴿**إعزاز**﴾ د افعال مصدر دی: عزيز ګرځول، غالب ګرځول، مراد ځني د دين لوړول او سرفرازه کول دي. ﴿**تعطيل**﴾ د تفعيل مصدر دی: بېکاره کول (ناکاره کول)، ضايع کول (بربادول). ﴿**مُسايفة**﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو د بل سره په توره جنګ کول، مراد ځني جنګ او قتال کول دي. ﴿**استغنام**﴾ د استفعال مصدر دی: غنيمت حاصلول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د محجور غلام أمان صحيح نه دی. ها! که چيري مالک (مولیٰ) هغه ته د جنګ او جهاد کولو اجاز ورکړې وي (يعني مأذون في القتال وي)، نو بيا د هغه أمان صحيح کيږي. امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د غلام أمان مطلقا صحيح دی هغه که مأذون وي يا محجور وي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی. د امام کرخي د روايت مطابق امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی، او د امام طحاوي د روايت مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی.

**د امام محمد دليل**: دا حديث دی "أمانُ العبدِ أمانٌ" يعني د غلام أمان هم معتبر او صحيح دي. عقلي دليل دا دی چې غلام هم مؤمن او د قوت خاوند دی لهذا د مأذون في القتال غلام په څير به د ده أمان هم صحيح وي. او لکه څرنګه چې غلام يو کافر ته د ذمي جوړېدلو يعني د همېشه لپاره په دارُ الاسلام کي د پاتېدلو عهدنامه (تړون ليک) او أمان ورکړي نو د هغه أمان صحيح دی. همدغسي به د محجور غلام هم صحيح وي.

**فالإيمان إلخ**: فرمايي موږ چې په عقلي دليل کي د غلام د مؤمن والي کوم شرط لګولی دی. د هغه وجه دا ده چې جهاد يو عبادت دی او د عبادت لپاره ايمان شرط دی، او دا شرط مو ځکه لګولی دی چې هغه به د قوت خاوند وي ځکه چې په دې (قوت) سره د خوف إزاله ثابتيږي يعني که أمان ورکونکی د قوت خاوند وي نو د هغه په أمان ورکولو سره به خوف او بېره ختمه سي. او پر مأذون غلام باندي د محجور غلام د قياسولو علت دا دی چې د دواړو په أمان کي د دين إعزاز او استحکام سته او د دواړو په فعل سره د مسلمانانو په حق کي مصلحت ثابتېدا سي، نو ځکه به د دواړو أمان صحيح وي.

**وإنما لايملك إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د غلام أمان خو صحيح دی، لېکن غلام په خپله په جهاد کي پيش قدمي نه سي کولای، ځکه چې په جهاد کي د هغه په مشغولېدلو سره به د مالک منافع معطله وګرځي، حالانکي غلام فقط د مالک د خدمت لپاره وقف وي، او پاته سوه د أمان ورکولو مسئله نو أمان خو محض په ژبه او زبان سره ورکول کيږي، او په زباني وينا سره د مالک منافع نه معطله کيږي، لهذا په دې هکله اعتراض کول صحيح نه دي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې د أمان محل خوف دی او له محجور غلام څخه خوف او بېره ثابتېدای نه سي، يعني کفار له هغه څخه نه بيريږي، لهذا د هغه أمان به بې فايدې او غير معتبر وي. د دې په خلاف له مأذون غلام څخه خوف ثابتېدای سي، نو ځکه به د هغه أمان معتبر وي. د محجور غلام د

أمان نه صحيح کېدلو يو دليل دا هم دی چي دا غلام د مالک د حق په وجه د جهاد ميدان ته تللای نه سي. ځکه چي هغه ټوله وخت د مالک په خدمت کي مشغول اووسي. او په جهاد کي د هغه په مشغولېدلو سره به سراسر د مالک نقصان وي يا به د نقصان احتمال وي. ځکه چي هغه به يو غلطي وکړي او د محجور کېدلو په وجه د هغه په حق کي د غلطۍ کولو إمکان زيات دی ځکه چي ټوله عمر په خدمت کي د مشغولتيا په وجه به هغه ته هيڅ د تعليم او تربيې موقع پيدا سوې نه وي. او که چيري د هغه أمان صحيح سي نو بيا به قتال ممنوع وي او د مالک لپاره به په خپل غلام سره د جهاد کولو او د مال غنيمت حاصلولو لاره بنده وګرځي، او ښکاره خبره ده چي په دې کي هم د مالک سراسر نقصان دی. نو په دې وجه هم د هغه أمان ورکول صحيح نه دي. لهذا کله چي د مالک د ذاتي نقصان په وجه د محجور غلام أمان صحيح نه دی نو بيا به د مسلمانانو د جماعتي نقصان په وجه په درجه اولیٰ د هغه أمان صحيح نه وي.

د دې په خلاف د مأذون غلام مسئله ده. نو د هغه أمان ځکه صحيح دی چي مالک هغه ته د قتال په اجازه ورکولو سره د هغه په أمان ورکولو هم راضي سوی دی. او څرنګه چي دغه غلام قتال کړی دی (او په دې هکله تربيه سوی دی) أو د مأذون کېدلو په وجه د أمان ورکولو په راز او طرز واقف سوی دی. نو په دې وجه له هغه څخه خطاء او غلطي صادرېدل هم شاذ ونادر دي. لهذا د مأذون غلام د أمان پر صحت (صحيح کېدلو) باندي د محجور غلام أمان قياسول او هغه هم جائز ګرځول صحيح نه دي.

همدارنګه که محجور غلام يو کافر ته د ذمي جوړېدلو او په دارُ الاسلام کي د پاتېدلو اجازه او عهدنامه ورکړي نو دا صحيح دي. لېکن د دې پر صحت باندي د هغه د أمان صحت قياسول صحيح نه دي. ځکه چي دا عهدنامه د اسلام قائم مقام ده او دا اجازه په حقيقت کي د اسلام د دعوت ورکولو په څېر ده. او څرنګه چي له دې ذمي څخه جزيه هم اخيستل کيږي نو ځکه په دې کي سراسر نفع سته. نقصان نسته. او بل دا چي کله يو کافر د ذمي جوړېدلو خواست او غوښتنه وکړي نو د هغه غوښتنه قبلول فرض او ضروري دي. او ضروري کار اداء کول او خپله غاړه خلاصول هم د نفع کار دی. نو په دې وجه د محجور غلام د أمان ورکولو او د محجور غلام له طرفه ذمي ته د عهدنامې ورکولو په مينځ کي فرق راغلی يعني د هغه أمان ورکول صحيح نه دي او د هغه لپاره ذمي ته عهدنامه ورکول صحيح دي. لهذا دا يو پر بل قياسول پکار نه دي.

**ولوأمن الصبي إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که يو غلام بې شعوره بچی وي او هغه يو کافر ته أمان ورکړي. نو د مجنون په څير د هغه أمان هم صحيح نه دی. او که هغه باشعوره وي لېکن محجور عن القتال وي. نو د هغه أمان مختلف فيه دی. يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز صحيح دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز صحيح نه دی. لېکن که هغه بچی مأذون في القتال وي، نو صحيح روايت دا دی چي د ټولو په نېز د هغه أمان صحيح او جائز دی. فقط والله أعلم وعلمهُ أتم



# بَابُ الْغَنَائِمِ وَقِسْمَتِهَا

(دا) باب د غنيمتونو او د هغوی د تقسيمولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: غنائم جمع د غنيمةٌ ده، او د دې معنیٰ ده: هغه مال کوم چي له کفارو څخه د جنګ کولو په ذريعه قهراً او غلبةً واخيستل سي، او "فئ" هغه مال ته وايي کوم چي له جنګ څخه بغير ځني واخيستل سي. په غنيمت او فئ کي بل فرق دا هم دی چي د غنيمت يوه حصه د الله او د رسول لپاره وي لېکن فئ ټوله د مسلمانانو لپاره وي.

## د فتح کړل سوو (مفتوحه) ځمکو احکام

وَإِذَا فَتَحَ الْإِمَامُ بَلْدَةً عَنْوَةً أَيْ قَهْرًا او کله چي امام يو ښار په غلبه يعني په زوره فتح کړي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَسَمَهُ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ نو هغه ته اختيار دی که وغواړي نو هغه ښار دي د مسلمانانو په مينځ کي تقسيم کړي كَمَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ بِخَيْبَرَ لکه څرنګه چي نبي کريم ﷺ په خيبر کي همداسي وکړه (او خيبرې د صحابه وو په مينځ کي تقسيم کړی) وَإِنْ شَاءَ أَقَرَّ أَهْلَهُ عَلَيْهِ وَوَضَعَ عَلَيْهِمُ الْجِزْيَةَ وَعَلَى أَرَاضِيهِمُ الْخَرَاجَ او که امام وغواړي نو د ښار خلک دي پر خپل ځای پرېږدي او پر هغو دي جزيه او د هغو پر ځمکو دي خراج مقرر کړي كَذٰلِكَ فَعَلَ عُمَرُ رضي الله عنه بِسَوَادِ الْعِرَاقِ بِمُوَافَقَةِ مِنَ الصَّحَابَةِ الکه څرنګه چي (حضرت عمر رضي الله عنه د صحابه وو په موافقه د عراق د خلکو سره همداسي وکړه وَلَمْ يُحْمَدْ مَنْ خَالَفَهُ او چا چي د هغه مخالفت وکړی هغه ښه نه وګڼل سو (يعني هغه ته اعتبار نه ورکړی سو) وَفِي كُلٍّ مِنْ ذٰلِكَ قُدْوَةٌ او په دغه هر يوه کي اقتداء کېدای سي فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به امام ته اختيار وي وَقِيلَ: الْأَوْلَى هُوَ الْأَوَّلُ عِنْدَ حَاجَةِ الْغَانِمِينَ او ويل سوي دي: چي د غنيمت حاصلونکو (مجاهدينو) د ضروروت په وخت کي اول صورت غوره دی وَالثَّانِي عِنْدَ عَدَمِ الْحَاجَةِ او د ضرورت د نشتوالي په صورت کي دويم صورت غوره دی لِيَكُونَ عِدَّةً فِي الزَّمَانِ الثَّانِي د دې لپاره چي په بله زمانه کي په کار راسي وَهٰذَا فِي الْعَقَارِ او دا حکم په جايداد کي دی (يعني دا حکم د غير منقوله شيانو سره

متعلق دی؛ أَمَّا فِي الْمَنْقُولِ الْمُجَرَّدِ لَا يَجُوزُ الْمَنُّ بِالرَّدِّ عَلَيْهِمْ کوم چې د منقوله سامان حکم دی نو پر کفارو باندې د هغه په واپس کولو سره احسان کول جائز نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يَرِدْ بِهِ الشَّرْعُ فِيهِ ځکه چې په دې هکله شریعت وارد سوی نه دی ایعني په شریعت کې په دې هکله هیڅ حکم بیان سوی نه دی؛ وَفِي الْعَقَارِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په جایداد کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ فِي الْمَنِّ إِبْطَالَ حَقِّ الْغَانِمِينَ أَوْ مِلْكِهِمْ ځکه چې په احسان کولو کې د غانمینو [مجاهدینو] د حق یا د هغوی د ملکیت باطلول سته فَلَا يَجُوزُ مِنْ غَيْرِ بَدَلٍ يُعَادِلُهُ لهذا د یو مساوي [او مقابل] عوض څخه بغیر دا احسان جائز نه دی وَالْخَرَاجُ غَيْرُ مُعَادِلٍ لِقِلَّتِهِ او خراج د هغه د قلت سره مساوي نه دی بِخِلَافِ الرِّقَابِ په خلاف د کفارو د غاړو لِأَنَّ لِلْإِمَامِ أَنْ يُبْطِلَ حَقَّهُمْ رَأْسًا بِالْقَتْلِ ځکه چې امام لره دا حق سته چې د هغوی په قتل کولو سره د غانمینو حق باطل کړي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف د حضرت عمر رضي الله عنه هغه عمل حجت دی کوم چې موږ بیان کړی وَلِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا او ځکه چې په داسې کولو کې مصلحت [او فایده] سته لِأَنَّهُمْ كَالْأَكَرَةِ الْعَامِلَةِ لِلْمُسْلِمِينَ الْعَالِمَةِ بِوُجُوهِ الزِّرَاعَةِ ځکه چې دغه کفار اکوم چې د ځمکو مالکان دي؛ د مسلمانانو لپاره د کار کوونکو بزګرانو [کښتګرانو] په څېر دي [او] د کښتګرۍ په طریقو سره واقف ودي [مطلب دا چې په دې کې د مسلمانانو مصلحت او فایده سته، ځکه چې دغه کفار د بزګرۍ په کار ښه پوهیږي نو دوی به زموږ لپاره بزګري او کښتګري کوي] وَالْمُؤَنُ مُرْتَفِعَةٌ او له مسلمانانو څخه به [د کښتګرۍ] خرچې [هم] پورته سي مَعَ مَا أَنَّهُ يَحْظَى بِهِ الَّذِينَ يَأْتُونَ مِنْ بَعْدُ سره د دې چې له دې څخه به وروسته راتلونکو مسلمانانو [نسلونو] ته برخه [او حصه] هم حاصله سي وَالْخَرَاجُ وَإِنْ قَلَّ حَالًا او اله کفارو څخه اخیستل سوی؛ خراج که څه هم فی الحاله کم دی فَقَدْ جَلَّ مَآلًا لِدَوَامِهِ لیکن د مستقبل په اعتبار سره د همېشه حاصلېدلو په وجه ډېر زیات دی وَإِنْ مَنَّ عَلَيْهِمْ بِالرِّقَابِ وَالْأَرَاضِي او که امام پر غاړو او ځمکو احسان وکړي ایعني کفار هم پرېږدي او ځمکې هم هغوی ته حواله کړي؛ يَدْفَعُ إِلَيْهِمْ مِنَ الْمَنْقُولَاتِ بِقَدْرِ مَا يَتَهَيَّأُ لَهُمُ الْعَمَلُ نو له منقوله سامان څخه دې کفارو ته دومره حصه ورکړې چې په هغه سره د دوی لپاره کښتګري کول آسانه سي لِيَخْرُجَ عَنْ حَدِّ الْكَرَاهَةِ د دې لپاره چې دا فعل د کراهت له حد څخه ووځي.

**اللغات**: ﴿عنوة﴾ په زور او غلبه سره، دمت په زور. ﴿قُدْوَة﴾ د دې لفظ دوې معناوې دي: ① اقتداء. لاربښوونه (رهنمايي)، ② مقتدا، لاروښونکی (رهنما)، پېشوا. دلته يې اوله معنیٰ مراد ده. ﴿غَانِم﴾ غنيمت حاصلونکی، مراد ځني مجاهد او غازي دی. ﴿عَقَار﴾ جايداد. هغه شيان چي له يوه ځای ځخه بل ځای ته نقل کېدای نه سي، لکه ځمکه او داسي نور. ﴿يعادله﴾ د مفاعلې مضارع ده: برابرېدل، مساوي کېدل. ﴿اَكَرَة﴾ جمع د آكِرٌ ده لکه طَلَبَه چي جمع د طَالِبٌ ده: کښتګر. بزګر.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که امامُ المسلمين په خپل لښکر سره قهراً او غلبةً د کافرانو يو ښار فتح کړي نو اوس هغه ته دوه اختياره دي: ① که وغواړي نو هغه ښار دي د غازيانو او مسلمانانو په مينځ کي تقسيم کړي ② او که وغواړي نو د هغه ښار استوګن (اوسېدونکي) دي پر خپل ځای پرېږدي او د هغو د ځانو په عوض کي دي پر هغو جزيه واجب کړي او د هغو په کښتونو کي دي خراج او ټکس متعين کړي: د اول اختيار دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ د خيبر تر فتح کولو وروسته هغه په مسلمانانو کي تقسيم کړی. او د دويم اختيار دليل دا دی چي حضرت عمر رضي الله عنه د عراق تر فتح کولو وروسته د هغه ځای اوسيدونکي پر خپلو ځمکو پرېښوول. او پر هغو يې جزيه او خراج متعين کړی. او له يو څو صحابه وو ځخه بغير ټولو صحابه وو د حضرت عمر رضي الله عنه دا عمل تسليم کړی او کومو خلګو چي دا تسليم نه کړی نو د هغوی نه تسليمول معتبر نه وګڼل سوه. لنډه دا چي دلته دامام لپاره دا دوهٔ اختياره سته. او هر اختيار په دليل سره ثابت دی. لهذا امام چي کوم اختيار هم خپل کړي، هغه به صحيح وي.

**وقيل: الأولى إلخ**: فرمايي چي ځيني حضراتو په دواړو اختيارونو کي د موافقت پيدا کولو په توګه ويلي دي چي که غازيانو ته د مال ضرورت وي نو اول صورت يعني په مجاهدينو کي د غنائمو تقسيمول غوره دي ځکه چي ضرورت خو په ممنوعاتو کي هم إباحت ثابتوي. او که غازيانو ته د مال ضرورت نه وي نو بيا دويم صورت يعني د مفتوحه علاقې خلک پر خپل ځای پرېښوول او له هغوی ځخه خراج او جزيه اخيستل غوره دي. د دې لپاره چي د مسلمانانو د آبادۍ زياتېدلو په صورت کي دا علاقه دوی ته په کار راسي، لېکن دا دويم اختيار به فقط په غير منقوله جايدا مثلاً په ځمکه او مکان کي جاري کيږي او د منقوله جايداد مثلاً د سامان، آسونو او داسي نورو حکم دا دی چي هغوی به په مجاهدينو کي تقسيمول کيږي او دا شيان به د مفتوحه علاقې خلګو ته نه ورکول کيږي، ځکه چي د دوی په هکله د شريعت هيڅ حکم نه دي وارد سوی، نو ځکه به دا شيان فقط د محنت او جهاد کونکو لپاره وي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا صحيح نه دي چې د مفتوحه علاقې ځمکې يعني غير منقوله جايداد د کفارو په قبضه کې پرېښوول سي؛ ځکه کله هغه علاقه فتح کړل سوه نو د هغې هر. هر شی د غانمينو حق جوړ سو. لهذا اوس د غانمينو په مينځ کې د هغه تقسيمول ضروري دي. او هغه نه تقسيمول او کافرانو ته پرېښوول د غانمينو د حق او ملکيت باطلول (إبطال) دي. او څرنګه دا إبطال له څه بدل او عوض څخه بغير دی نو ځکه صحيح نه دي. پاته سو دا اعتراض چې له دغه کفارو څخه چې کوم خراج اخيستل کيږي نو هغه د غانمينو د حق بدل جوړېدای سي. نو دا إبطال بالبدل دی. لهذا دا جائز کېدل پکار دي؟ لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه د دې جواب دا دی چې خراج د غانمينو د پوره حق او پوره محنت بدل نه دی او دلته خو د دوی ټوله محنت برباد ول کيږي لهذا دغه منّ او احسان جائز نه دی.

او که څوک دا اعتراض وکړي چې د مجاهدينو حق خو د کفارو د ذات سره هم متعلق دی حالانکې کفار په مجاهدينو کې نه تقسيمول کيږي او غلامان نه ګرځول کيږي. لهذا دا خبره کول چې "د مجاهدينو حق باطليږي" صحيح نه ده؟ لېکن د امام شافعي له طرفه د دې جواب دا دی چې د مجاهدينو حق فقط د أموالو سره متعلق دی او د کفارو د ذات او رقاب (غاړو) سره متعلق نه دی. همدا وجه ده چې امام ته دا حق او اختيار سته چې هغه دغه کفار قتل کړي. لهذ کله چې امام ته د دوی د قتل حق سته نو هغه ته به د نه قتل کولو پر ځای د جزيې اخيستلو حق هم وي. لهذا په دې سره دليل نيول او پر موږ (شوافعو) اعتراض کول صحيح نه دي.

صاحب د هدايې فرمايي چې اوږدې او لنډې خبرې به نه کوو. صفا خبره دا ده چې حضرت عمر رضي الله عنه داسې إحسان کړی دی نو ځکه به زموږ لپاره هم د دې إحسان او عمل اختيارول صحيح وي. او په دې سلسله کې له قياس څخه کار نه اخلو. او همدا د حضرت عمر رضي الله عنه عمل او إحسان د شوافعو په خلاف حجت او زموږ لپاره مضبوط طاقت دی.

او د دې إحسان (يعني کفارو ته د ځمکو پرېښوولو) عقلي دليل دا دی چې په دې کې د مسلمانانو لپاره مصلحت او فايده ده. ځکه چې د ځمکې مالکان (کفار) د کښت او کرنې په کار ښه پوهيږي. او موږ ته به د کښت خراج هم راکوي او غله به هم راته حاصليږي او زموږ له طرفه به څه مصرف نه کيږي. او بل دا چې دا ځمکې به وروسته راتلونکو نسلونو ته پکار راسي. دا غټه فايده ده. او کوم خراج چې له دغه کفارو څخه اخيستل هغه که څه هم اوس کم دی. لېکن څرنګه چې هغه همېشه څني اخيستل کيږي نو د همېشه په اعتبار سره هغه ډېر دی. نو دا هم يوه فايده ده.

وإنْ مَنّ عليهم: د دې حاصل دا دی چې که امامُ المسلمين د ځمکو او نفوسو دواړو په اعتبار سره پر کفارو احسان وکړي يعني هغوی قيد نه کړي او په مسلمانانو کې يې تقسيم نه کړي او ځمکې هم هغو ته د کښت او کرنې په غرض حواله کړي، نو امام ته پکار دي چې په منقوله أموالو او سامانو کې د ضرورت مطابق هغو ته د زراعت او کښتګرۍ آلات او داسې نور ضروري شيان پرېږدي چې د کښت او کرنې کار د هغو لپاره آسانه سي او په دې هکله هغوی د يو ستونزې سره مخامخ نه سي.

## د دښمن د نارينه قيديانو أحكام

قال: وَهُوَ فِي الْأُسَارَىٰ بِالْخِيَارِ فرمايي: چې په [کافرو] قيديانو کې امام ته اختيار دی إِنْ شَاءَ قَتَلَهُمْ که وغواړي نو هغوی دې قتل کړي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَدْ قَتَلَ ځکه چې نبي کريم ﷺ [د مکې د فتح په ورځ] قتل کړي وو وَلِأَنَّ فِيهِ حَسْمَ مَادَّةِ الْفَسَادِ او ځکه چې په قتل کولو کې د فساد ماده [او جرړه] ختمول دي وَإِنْ شَاءَ اسْتَرَقَّهُمْ او که امام وغواړي نو هغوی دې غلامان جوړ کړي لِأَنَّ فِيهَا دَفْعَ شَرِّهِمْ ځکه چې په دې کې د دوی د شرّ دفع کول [هم] دي مَعَ وُفُورِ الْمَنْفَعَةِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ او [په دې کې] د مسلمانانو لپاره زياته نفع [هم] ده وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُمْ أَحْرَارًا ذِمَّةً لِلْمُسْلِمِينَ او که وغواړي نو هغوی دې آزادې پرېږدي. د مسلمانانو لپاره د ذمي جوړولو په توګه [يعني هغوی دې آزاد پرېږدي او د مسلمانان ذميان دې يې وګرځوي، يعني جزيه دې پر مقرره کړي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی إِلَّا فِي مُشْرِكِي الْعَرَبِ وَالْمُرْتَدِّينَ ليکن د عربو مشرکينو کې او په مرتدينو کې [امام لره دغه درې اختياره نسته] عَلَىٰ مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ لکه څرنګه چې [وروسته] به موږ د هغه بيان وکړو وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَرُدَّهُمْ إِلَىٰ دَارِ الْحَرْبِ او دا قيديان دارُ الحرب ته واپس استول جائز نه دي لِأَنَّ فِيهِ تَقْوِيَتَهُمْ عَلَى الْمُسْلِمِينَ ځکه چې په دې کې د مسلمانانو په خلاف کفارو ته قوت ورکول دي فَإِنْ أَسْلَمُوا لَا يَقْتُلُهُمْ او که هغوی اسلام راوړي نو امام به هغوی نه قتل کوي لِانْدِفَاعِ الشَّرِّ بِدُونِهِ ځکه چې له قتل څخه بغير [د هغوی] شرّ دفع سو وَلَهُ أَنْ يَسْتَرِقَّهُمْ او امام ته دا اختيار سته چې دغه مسلمان قيديان غلامان جوړ کړي تَوْفِيرًا لِلْمَنْفَعَةِ بَعْدَ انْعِقَادِ سَبَبِ الْمِلْكِ د دې لپاره چې د ملکيت د سبب تر منعقد کېدلو وروسته پوره فايده حاصله کړی سي بِخِلَافِ إِسْلَامِهِمْ قَبْلَ الْأَخْذِ په خلاف

ترنیول کېدلو او قیدي کېدلو مخکې د هغو د اسلام راوړلو لِأَنَّهُ لَمْ يَنْعَقِدِ السَّبَبُ بَعْدُ ځکه چي په دې صورت کي [تر اوسه د ملکیت سبب منعقد سوی نه دی وَلَا يُفَادَى بِالْأُسَارَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د فدیې په عوض کي قیدیان نه پرېښوول کیږي وَقَالَا: يُفَادَى بِهِمْ أُسَارَى الْمُسْلِمِينَ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د مسلمانانو قیدیانو په عوض کي هغوی پرېښوول کېدای سي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ فِيهِ تَخْلِيصَ الْمُسْلِمِ ځکه چي په دې [صورت] کي د مسلمان خلاصول او نه قید شخه آزادول دي وَهُوَ أَوْلَى مِنْ قَتْلِ الْكَافِرِ وَالِانْتِفَاعِ بِهِ او دا د کافر تر قتل کولو او له هغه شخه تر نفع اخیستلو زیات غوره دي وَلَهُ: أَنَّ فِيهِ مَعُونَةً لِلْكَفَرَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي په دې کي د کفارو سره امداد [او مرسته] کول دي لِأَنَّهُ يَعُودُ حَرْبًا عَلَيْنَا ځکه چي دغه قیدي به دوباره زموږ سره جنګ کونکی وګرځي [یعني هغه به له قید شخه تر آزادېدلو وروسته بیا (دویم ځل) زموږ سره جنګ کولو ته تیار سي] وَدَفْعُ شَرِّ حَرْبِهِ خَيْرٌ مِنْ اسْتِنْقَاذِ الْأَسِيرِ الْمُسْلِمِ او د هغه د جنګ شر لیري کول د مسلمان قیدي له خلاصولو شخه غوره دي لِأَنَّهُ إِذَا بَقِيَ فِي أَيْدِيهِمْ كَانَ ابْتِلَاءً فِي حَقِّهِ غَيْرَ مُضَافٍ إِلَيْنَا ځکه کله چي مسلمان قیدي د کفارو په لاس کي پاته سي نو دا به [فقط] د هغه په حق کي نقصان وي او زموږ [د مسلمانانو] وطرف ته به هغه نقصان منسوب نه وي وَالْإِعَانَةُ بِدَفْعِ أَسِيرِهِمْ إِلَيْهِمْ مُضَافٌ إِلَيْنَا الیکن [د قیدي په ورکولو سره د کفارو د مرسته کولو [نقصان] به زموږ وطرف ته منسوب وي ایعني په دې صورت کي به د ټولو مسلمانانو نقصان وي] أَمَّا الْمُفَادَاةُ بِمَالٍ يَأْخُذُهُ مِنْهُمْ لَا يَجُوزُ فِي الْمَشْهُورِ مِنَ الْمَذْهَبِ کوم چي له کفارو شخه د مال اخیستلو په عوض کي [د قیدیانو] پرېښوول دي نو د مشهور مطابق هغه جائز نه دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَفِي السِّيَرِ الْكَبِيرِ: أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِهِ إِذَا كَانَ بِالْمُسْلِمِينَ حَاجَةٌ او په سیر کبیر کي [ذکر سوي] دي: چي که مسلمانانو ته د مال ضرورت وي نو [بیا] په دې کي هیڅ حرج نسته اِسْتِدْلَالًا بِأُسَارَى بَدْرٍ د بدر پر قیدیانو باندي په قیاس

---

القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٥٢). [القول الراجح ج:١، ص:٤٨١]

کولو سره وَلَوْكَانَ أَسْلَمَ الْأَسِيرُفِي أَيْدِينَا او که کافر قيدي زموږ په قبضه کي اسلام راوړي لَايُفَادٰى بِمُسْلِمٍ أَسِيرٍفِي أَيْدِيهِمْ نو دا اسلام راوړونکی قيدي به د هغه مسلمان قيدي په بدله کي نه پرېښوول کيږي کوم چي د کفارو په قبضه کي وي لِأَنَّهُ لَايُفِيدُ ځکه چي دا فايده نه کوي ايعني په داسي کولو کي هيڅ فايده نسته ا إِلَّا إِذَا طَابَتْ نَفْسُهُ بِهِ وَهُوَ مَأْمُونٌ عَلٰى إِسْلَامِهِ مګر دا چي هغه ااسلام راوړونکی قيدي ا په دې سره خوشحاله وي او هغه پر خپل أسلام مطمئن اخاطر جمع ا وي انو بيا په تبادله کولو کي هيڅ حرج نسته ا

**اللغات**: ﴿أُسارٰی﴾ جمع د أَسِيرٌ ده: قيدي. بندي. ﴿حسم﴾ غوځول. پرېکول. ﴿استرقهم﴾ د استفعال ماضي ده: غلام جوړول. ﴿وفور﴾ زياتېدل. بشپړ کېدل (پوره کېدل). ﴿لا يُفادٰی﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: پرېښوول او فديه ځني اخيستل يعني د فديې په عوض کي پرېښوول او آزادول. مطلق پرېښوولو او آزادولو (خوشي کولو) ته هم وايي (مصباح اللغات).

﴿تخليص﴾ د تفعيل مصدر دی: خلاصول. خوشي کول (ايله کول). آزادول. ﴿معونة﴾ امداد. مرسته. ﴿اعانة﴾ مدد کول. کومک او مرسته کول. ﴿طاب نفسه به﴾ په يو شي سره زړه خوشاله کېدل (خوشحاله کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي د کفارو کوم نارينه قيديان چي د مسلمانانو په قبضه کي راسي. نو د هغو په هکله امام ته درې اختياره دي: ① يا دي امام هغوی ټوله قتل کړي.او له شر او فساد څخه دي يې ځان خلاص کړي. لکه څرنګه چي د مکې د فتح په ورځ نبي کريم ﷺ يو څو مشرکان قتل کړل. او لکه د بدر په قيديانو کي چي يې يو څو خلک قتل کړل. ② دويم اختيار دا دی چي امام دي دا قيديان غلامان جوړ کړي. ځکه چي په غلام جوړولو سره به يوه فايده دا چي د دوی له شر څخه به حفاظت حاصل سي او دويمه فايده به دا وي چي هغوی به د اسلام او مسلمانانو په کار راسي. ③ او که امام وغواړي نو هغوی دي آزاد پرېږدي او ذميان دي يې وګرځوي يعني جزيه دي پر مقرره کړي، لکه څرنګه چي حضرت عمر رضي الله عنه د عراق د خلکو سره دا طريقه او عمل اختيار کړی. په لِمَا بَيَّنَّا سره د حضرت عمر رضي الله عنه د دغه عمل ته اشاره سوې ده.

لېکن د عربو مشرکانو او مرتدينو مسئله له دې اختياراتو څخه مستثنیٰ ده: ځکه چي د هغو په هکله فقط دوې خبري دي: ① يا به هغوی اسلام راوړي. ② که اسلام نه راوړي. نو هغوی به قتلول کيږي. د دې نور تفصيل به وروسته راسي.

**ولا يجوز إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د امام لپاره کافر قيديان دارُ الحرب ته واپس استول جائز نه دي: ځکه په داسې کولو سره به د مسلمانانو په مقابله کې کافران مضبوط وګرځي او دا به تعاون على الإثم والعدوان وي کوم چې روايښت او جواز نه لري. او که تر قيدي کېدلو وروسته دغه کافر قيديان اسلام راوړي نو اوس "د قتل والا اختيار" ساقطيږي: ځکه چې د قتل اختيار د فساد او شر د بنياد ختمولو لپاره دی او دلته دا مقصد قبل القتل حاصل سو نو ځکه به اوس قتل کول صحيح نه وي. ها! "د غلام جوړولو اختيار" به باقي پاته وي، ځکه چې دغه کفار مخکې نيول سوي او قيد کړل سوي دي او پر دوی د مجاهدينو ملکيت ثابت سوی دی. همدا وجه ده چې که له قيدي کېدلو څخه مخکې دوی اسلام راوړي نو بيا به دوی غلامان جوړول صحيح نه وي: ځکه چې په دوی کې د ملکيت سبب معدوم سو.

**ولا يفادى إلخ**: فرمايي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مسلمانانو قيديانو په تبادله کې کافر قيديان آزادول (ايله کول) صحيح نه دي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا صحيح دي. همدا د امام شافعي، امام احمد او امام مالک رَحِمَهُمُ الله قول دی.

**دليل**: د دې حضراتو دليل دا دی چې د کافر د قتل کولو يا د غلام جوړولو او له هغه څخه د خدمت اخيستلو په مقابله کې يو مسلمان قيدي خلاصول او هغه د آزادۍ په نعمت سره نازول ډېر غوره دي نو ځکه دا تبادله صحيح او جائز ده.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې په دې تبادله سره يا د مال په عوض کې د کافر قيدي په آزادولو سره کفارو ته تقويت رسيږي، ځکه چې دا بدبخته به تر آزادېدلو وروسته بيا شرارت او فساد شروع کړي او زموږ په خلاف به بيا جنګ کولو ته تيار سي، لهذا د هغه د شر او د هغه د جنګ د ضرر ليري کول د مسلمان قيدي له آزادولو څخه غوره دي، او بل دا چې که موږ مسلمان قيدي آزاد نه کړو نو د هغه نقصان به فقط د هغه تر ذات پوري محدود وي لېکن د کافر قيدي په آزادولو سره چې کوم تقويت کفارو ته حاصليږي هغه به د ټول مسلمان قوم لپاره نقصان وي، او دا خبره تسليم سوې ده چې د جماعتي نقصان د ختمولو لپاره ذاتي نقصان زغمل کيږي، نو ځکه به دلته هم د مسلمان قيدي ذاتي نقصان ته نه کتل کيږي، بلکې د جماعتي نقصان په خاطر به د هغه په بدله کې هيڅ کافر قيدي نه آزادول کيږي. لکه څرنګه چې د مال په عوض کې د يو کافري قيدي آزادول جائز نه دي. همدا مشهور مذهب دی.

وفي السير الكبير إلخ: امام محمد رَحِمَهُ الله په سير كبير كي ليکلي دي چي که مسلمانانو ته د مال ضرورت وي نو د مال په عوض کي د کافر قيدي په آزادولو کي هيڅ حرج نسته لکه د بدر د يو شو قيديانو سره چي همدا معامله وسوه. لېکن راجح قول دا دی چي دا صحيح نه دي. ځکه چي د بدر پر معامله الله ناراضه سو او فوراً دا د عذاب او عتاب آيت نازل سو "لَوْ لَا كِتَابٌ مِّنَ اللهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ" او نبي کريم ﷺ په هغه وخت کي وفرمايل چي "که د الله عذاب نازل سوي وای نو له هغه څخه به فقط حضرت عمر ﷺ ژغورل سوي وای" ځکه چي هغه د قيديانو پر وژلو او ختمولو ټينګار کوی (بناية ج:۶، ص:۵۴۰). لهذا په دې واقعه سره دليل نيول صحيح نه دي.

ولو كان إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د مسلمانانو په قبضه کي موجوده کافر قيديان اسلام راوړي نو په دې صورت کي دغه نوي مسلمانان د هغو مسلمانانو قيديانو په عوض کي کفارو ته ورکول صحيح نه دي کوم چي د هغو په قبضه کي دي، ځکه چي په دې کي هيڅ فايده نسته چي يو مسلمان د بل مسلمان په بدله کي آزاد کړی سي. لېکن که نوی مسلمان قيدي په خپله دغه بدلون او تبادلې ته تيار وي او هغه ته دا باور او اطمينان چي دويم ځل به د کفر وطرف ته نه ځي. نو بيا په دې تبادله کي هيڅ حرج او پروا نسته.

## کافر قيديان د احسان په توګه آزادول (حکم او اختلاف)

قال: وَلَا يَجُوزُ الْمَنُّ عَلَيْهِمْ أَيْ عَلَى الْأُسَارَى فرمايي: او پر هغوی يعني پر قيديانو احسان کول جائز نه دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله فَإِنَّهُ يَقُولُ[1]: مَنَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَلَى بَعْضِ الْأُسَارَى يَوْمَ بَدْرٍ هغه فرمايي: چي نبي کريم ﷺ د بدر په ورځ پر يو شو قيديانو احسان وکړی وَلَنَا: قَوْلُهُ تَعَالَى: فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ [التوبة: ۵] او زموږ دليل د الله تعالیٰ دا فرمان: ای مؤمنانو! [ مشرکان قتل کړئ! چيري چي هم تاسي هغوی پيدا کړئ! وَلِأَنَّهُ بِالْأَسْرِ وَالْقَسْرِ يَثْبُتُ حَقُّ الِاسْتِرْقَاقِ فِيهِ او ځکه چي د قيد او جبر په ذريعه په هغه کي د غلام جوړولو حق ثابتيږي فَلَا يَجُوزُ إِسْقَاطُهُ بِغَيْرِ مَنْفَعَةٍ وَعِوَضٍ لهذا له څه منفعت او عوض څخه بغير به د هغه ساقطول جائز نه وي وَمَا رَوَاهُ مَنْسُوخٌ بِمَا تَلَوْنَا او د امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی سوی حديث په هغه آيت سره

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب فرض الخمس، باب:۱۹، رقم الحديث:۳۱۴۲.

منسوخ دی کوم چې موږ تلاوت کړی وَإِذَا أَرَادَ الْإِمَامُ الْعَوْدَ وَمَعَهُ مَوَاشٍ فَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى نَقْلِهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او کله چې امام اد دارُ الاسلام ته ا د واپس راتللو اراده وکړي او د هغه سره څارويان اهم ا وي لېکن امام دارُ الاسلام ته د هغوی پر نقلولو قدرت پیدا نه کړي ذَبَحَهَا وَحَرَّقَهَا نو امام دي هغوی ذبح کړي او ابیا ا دي هغوی وسوځوي وَلَا يَعْقِرُهَا وَلَا يَتْرُكُهَا او د هغوی پښې دي نه پرېکوي ايعني نه دي يې زخمي کوي ا او نه دي يې ژوندي پرېږدي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَتْرُكُهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغوی دي ژوندي پرېږدي لِأَنَّهُ الطَّيْلاً: نَهَى[1] عَنْ ذَبْحِ الشَّاةِ إِلَّا لِمَأْكَلَةٍ ځکه چې نبي کريم ﷺ له خوړلو څخه بغير د بل مقصد لپاره د پسه له ذبح کولو څخه منع کړې ده وَلَنَا أَنَّ ذَبْحَ الْحَيَوَانِ يَجُوزُ لِغَرَضٍ صَحِيحٍ زموږ دليل دا دی: چې د صحيح مقصد لپاره د حيوان ذبح کول جائز دي وَلَا غَرَضَ أَصَحُّ مِنْ كَسْرِ شَوْكَةِ الْأَعْدَاءِ او د دښمن د شان وشوکت له ختمولو څخه ابل ا زيات صحيح مقصد نسته ثُمَّ يُحَرَّقُ بِالنَّارِ بيا دي هغه په اُور سره وسوځول سي لِيَنْقَطِعَ مَنْفَعَتُهُ عَنِ الْكُفَّارِ د دې لپاره چې د هغه منفعت له کفارو څخه قطع ا او ختم ا سي فَصَارَ كَتَخْرِيبِ الْبُنْيَانِ نو داسي سو لکه د عمارتونو ا ودانيو ا ويجاړول بِخِلَافِ التَّحْرِيقِ قَبْلَ الذَّبْحِ په خلاف تر ذبح مخکي د سوځولو لِأَنَّهُ مَنْهِيٌّ عَنْهُ ځکه چې له هغه څخه منع سوې ده وَبِخِلَافِ الْعَقْرِ او په خلاف د پښې پرېکولو ا او زخمي کولو ا لِأَنَّهُ مُثْلَةٌ ځکه چې دا مثله کول دي وَتُحَرَّقُ الْأَسْلِحَةُ أَيْضًا او اد دښمن ا وسلې به هم سوځول کيږي وَمَا لَا يَحْتَرِقُ مِنْهَا يُدْفَنُ فِي مَوْضِعٍ لَا يَقِفُ عَلَيْهِ الْكُفَّارُ او کومه وسله چې نه سوځل کيږي نو هغه دي په داسي ځای کې ښخه کړی سي چې کفار په هغه خبرېدای نه سي إِبْطَالًا لِلْمَنْفَعَةِ عَلَيْهِمْ د دې لپاره چې پر دوی باندي اد هغه وسلې ا منفعت باطل کړی سي ا او د کفارو له نفع او فايدې څخه ووځي ا.

**اللغات**: ﴿مَنَّ﴾ د نصر ماضي ده: احسان کول، ښه کول. ﴿قسر﴾ جبر، غلبه، سختي کول.

﴿مَوَاش﴾ جمع د مَاشِيَةٌ ده: څارويان لکه اوښ، غويي، غوا او داسي نور. ﴿لا يعقرها﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صيغه ده: د اوښ يوه پښه پرېکول. دلته يې مطلب دا دی چې د څاروي پښه پرېکول سي يا زخمي کړی سي او همدغسي زخمي پرېښوول سي. صاحب د معجم الوسيط د عقر تعريف داسي کړی دی: "عَقَرَ

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه.

البَعِيْر: قَطَعَ إِحْدٰى قَوَائِمَهُ لِيَسْقُطَ وَيَتَمَكَّنُ مِنْ ذَبْحِهِ" او صاحب د مصباح وايي: "عَقَرَ الْبَعِيرَ بِالسَّيْفِ عَقْرًا ضَرَبَ قَوَائِمَهُ بِهِ. لَا يُطْلَقُ الْعَقْرُ فِي غَيْرِ الْقَوَائِمِ". ﴿شاة﴾ پسه. بزه او داسي نورو ټولو ته وايي.

﴿تخريب﴾ د تفعيل مصدر دی: خرابول. ويجاړول. بربادول. ﴿بنيان﴾ عمارت. وداني.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د أسارىٰ او قيديانو په هکله چي مخکي امام ته کوم درې اختيارات ورکول سوه په هغوی کي پر يوه اختيار عمل کول ضروري دي او ژموږ په نېز په هغوی کي يو اختيار نه نافذول بلکي مفت او بېله عوضه د دغه قيديانو په آزادولو سره پر دوی احسان کول جائز نه دي. لېکن د شوافعو په نېز د دوی مُفت آزادول جائز دي.

**دليل:** د شوافعو دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ د جنګ بدر پر موقع ځيني قيديان مفت آزاد کړل چي په هغوی کي د "ابو عزه جحمي" په نامه شاعر هم وو. لهذا د نبي ﷺ دا عمل د دې خبري دليل دی چي أسارىٰ مفت پرېښوول کېدای سي.

**زموږ دليل:** دا دی چي په دې آيت "اُقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ" کي على الإطلاق د کفارو او مشرکينو د قتل کولو حکم سوی دی. او بل دا چي په قيد او غلبه سره په دغه قيديانو کي د استرقاق او غلام جوړولو حق ثابت سو. لهذا مُفت او بېله عوضه د دې حق ساقطول صحيح نه دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی سوی حديث د "اُقْتُلُوا الْمُشْرِكِيْنَ... إلخ" په وجه منسوخ دي. ځکه چي دا د "سورةُ البراءة" آيت دی او "سورةُ البراءة" وروسته نازل سوی دی. لهذا دغه آيت د مذکوره حديث لپاره ناسخ دی.

**وإذا أراد الإمام إلخ:** مسئله دا ده چي کله امام او مجاهدين د يو ښار يا قلعې تر فتح کولو وروسته واپس دارُ الاسلام ته تلل وغواړي او د هغو سره د دارُ الحرب څاروپان او حيوانان هم وي لېکن د هغوی بېول مشکل وي نو زموږ په نېز امام ته پکار دي چي هغه څاروپان دَ کفارو د منفعت لپاره نه پرېږدي. بلکي هغه دي ذبح کړي او تر ذبح کولو وروسته دي يې وسوځي. لېکن د هغوی پښې دي نه پرېکوي او نه دي هغوی ژوندي پرېږدي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به دغه څاروپان ژوندي پرېښوول کېږي.

**دليل:** د امام شافعي دليل دا دی چي په حديث کي له خوړلو څخه بغير د بل مقصد لپاره د پسه له ذبح کولو څخه منع سوې دي. لهذا د سوځولو په نيت سره د څاروپانو ذبح کول صحيح نه دي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د صحيح مقصد لپاره د څاروپانو ذبح کول جائز دي. او دا معلومه خبره ده چي د دښمن د شان وشوکت د ختمولو او په غضب او غم کي د هغوی له مبتلا کولو څخه زيات صحيح

بل هيڅ مقصد كېداى نه سي. او څرنګه چي د سوځولو په ذريعه به له دغه څارويانو څخه د كفارو منفعت ختم سي او هغه به د دوى په هيڅ كار نه راځي، نو ځكه به دا عمل مفيد وي. لكه څرنګه چي د عمارتونو او ودانيو د وېجاړولو په صورت كي هر شى وېجاړول كيږي او هيڅ د كار او نفع شى نه پرېښوول كيږي. لېكن تر ذبح مخكي د څارويانو سوځول جائزنه دي او نه يې پرېښې پرېكول جائز دي، ځكه چي له تعذيب بالنار او مُثله كولو څخه منع سوې ده.

وتحرق إلخ: فرمايي چي اسلحه (وسله) په اُور سوځل او د كافرانو د اسلحې ډېرو ته اُور اچول هم جائز دي. او د كومي اسلحې سوځول چي ممكن نه وي، نو هغه دي په يو پټ ځاى كي پټه كړل سي چي هيڅوک په خبر نه سي او په هره توګه د كفارو له منفعت څخه ووځي.

## غنيمت به كله په مجاهدينو كي تقسيمول كيږي؟

وَلَا يُقَسِّمُ غَنِيمَةً فِي دَارِ الْحَرْبِ حَتَّى يُخْرِجَهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او امام دي په دارُ الحرب كي د غنيمت مال نه تقسيموي تر دې چي هغه دارُ الاسلام ته راوړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ بِذٰلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې كي څه حرج نسته وَأَصْلُهُ: أَنَّ الْمِلْكَ لِلْغَانِمِينَ لَا يَثْبُتُ قَبْلَ الْإِحْرَازِ بِدَارِ الْإِسْلَامِ عِنْدَنَا او د دې أصل [قاعده] دا ده: چي زموږ په نېز په دارُ الاسلام كي تر إحراز مخكي د غانمينو [مجاهدينو] لپاره ملكيت نه ثابتيږي وَعِنْدَهُ يَثْبُتُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز ثابتيږي وَيَبْتَنِي عَلَى هٰذَا الْأَصْلِ عِدَّةٌ مِنَ الْمَسَائِلِ ذَكَرْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او پر دې أصل ډېري مسئلې مبني دي كوم چي موږ په كفاية المنتهي كي ذكر كړي دي لَهُ: أَنَّ سَبَبَ الْمِلْكِ الِاسْتِيلَاءُ إِذَا وَرَدَ عَلَى مَالٍ مُبَاحٍ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي د ملكيت سبب قبضه ده كله چي هغه پر مباح [روا] مال باندي واقع سي [يعني كله چي پر مباح مال قبضه واقع سي نو هغه قبضه د ملكيت سبب ګرځي] كَمَا فِي الصُّيُودِ لكه د ښكار په څارويو كي [چي په قبضه كولو سره ملكيت ثابتيږي] وَلَا مَعْنَى لِلِاسْتِيلَاءِ سِوَى إِثْبَاتِ الْيَدِ او د يد [قبضې] له ثابتېدلو څخه بغير استيلاء لره هيڅ معنىٰ نسته وَقَدْ تَحَقَّقَ او دا استيلاء ثابته سوه وَلَنَا أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَام: نَهَى[1] عَنْ بَيْعِ الْغَنِيمَةِ فِي دَارِ الْحَرْبِ زموږ دليل دا دى: چي نبي

---

[1] تخريج: قال الزيلعي: هذا اللفظ غريب جدًا.

ﷺ په دارُ الحرب کي د غنيمت له بيع اخرڅولو] څخه منع کړې ده وَالْخِلَافُ ثَابِتٌ فِيهِ او په دې کي اختلاف ثابت دی وَالْقِسْمَةُ بَيْعٌ مَعْنًى او تقسيمول هم د معنیٰ په اعتبار سره بيع ده فَتَدْخُلُ تَحْتَهُ لهذا تقسيم به تر بيع لاندې داخليږي امطلب دا چي تقسيم به هم په حکم کي د بيع په څير وي] وَلِأَنَّ الِاسْتِيلَاءَ إِثْبَاتُ الْيَدِ الْحَافِظَةِ وَالنَّاقِلَةِ او ځکه چي استيلاء د حفاظت کونکي قبضې او د منتقل کونکي قبضې ثابتول دي وَالثَّانِي مُنْعَدِمٌ او [دلته] دويم شی ايعني د يدِ ناقله اثبات] نشته لِقُدْرَتِهِمْ عَلَى الِاسْتِنْقَاذِ ځکه چي کفار [په دارُالحرب کي له مسلمانانو څخه د مال] پر خلاصولو [او واپس اخيستلو] قدرت لري وَوُجُودُهُ ظَاهِرًا او د دې وجود [او ثبوت] ښکاره دی ثُمَّ قِيلَ: مَوْضِعُ الْخِلَافِ تَرَتُّبُ الْأَحْكَامِ عَلَى الْقِسْمَةِ إِذَا قَسَّمَ الْإِمَامُ لَا عَنْ اجْتِهَادٍ بيا ويل سوي دي: چي اختلاف [د غنيمت] پر تقسيم باندې د احکامو په مبني کېدلو کي دی. کله چي امام له اجتهاد څخه بغير مال تقسيم کړی وي لِأَنَّ حُكْمَ الْمِلْكِ لَا يَثْبُتُ بِدُونِهِ ځکه چي د ملکيت حکم له ملکيت څخه بغير نه ثابتيږي وَقِيلَ: الْكَرَاهَةُ وَهِيَ كَرَاهَةُ تَنْزِيهٍ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او ويل سوي دي: چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز کراهت "کراهتِ تنزيهي" دی فَإِنَّهُ قَالَ: "عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ لَا تَجُوزُ الْقِسْمَةُ فِي دَارِ الْحَرْبِ ځکه چي هغه [په سيرِ کبير کي] ويلي دي چي: "د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په قول په دارُ الحرب کي [مالِ غنيمت] تقسيمول جائز نه دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ الْأَفْضَلُ أَنْ يُقَسِّمَ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ" او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز افضل دا دي چي امام په دارُ الاسلام کي [مالِ غنيمت] تقسيم کړي" وَوَجْهُ الْكَرَاهَةِ أَنَّ دَلِيلَ الْبُطْلَانِ رَاجِحٌ او د کراهت وجه دا ده چي د باطلېدلو دليل راجح دی إِلَّا أَنَّهُ تَقَاعَدَ عَنْ سَلْبِ الْجَوَازِ ليکن دا دليل د جواز [او روايښت] په سلبولو کي مؤثر [اغېزمن] نه دی فَلَا يَتَقَاعَدُ عَنْ إِيرَاثِ الْكَرَاهَةِ خو بيا هم په کراهت پيدا کولو مؤثر دی.

**اللغات**: ﴿غانمين﴾ د سمع له باب څخه جمع اسمِ فاعل دی، غَنِمَ يَغْنَمُ غُنْمًا: غنيمت حاصلول، غنيمت تر لاسه کول. له غَانِم څخه مراد مجاهد او غازي دی. ﴿إحراز﴾ محفوظه کول، خوندي کول، ذخيره کول. ﴿استيلاء﴾ د استفعال مصدر دی: غلبه کول، قبضه کول، قدرت پيدا کول،

﴿يَد﴾ لاس. مراد ځني قبضه ده. ﴿اسْتِنقَاذ﴾ د استفعال مصدر دی: خلاصول. مراد ځني واپس اخيستل دي. ﴿تَرَتُّب﴾ د تفعل مصدر دی: استقرار کول. ثابتېدل. مرتب کېدل. مبني کېدل. ﴿تَقَاعَد﴾ د تفاعل ماضي ده. لغتپوهانو د دې لفظ څو معناوي کړي دي: اهتمام نه کول (پوره پابندي او کوښښ نه کول)، همت د لاسه ورکول. حق نه اداء کول. اغېز نه کول (نه مؤثر کېدل). که دلته د "کښېنستلو" معنیٰ ځني واخيستل سي نو هم ورسره لګېدای سي. ﴿إِيرَاث﴾ د افعال مصدر دی: شاته پرېښوول. ايراث الكراهة: مراد ځني د کراهت پيدا کول دي.

**تشريح**: د دې عبارت مسئله پر يو أصل او قاعدې باندي متفرع ده. قاعده دا ده چي زموږ په نېز دارُ الاسلام ته د "مالِ غنيمت" تر نقل کولو او محفوظه کولو مخکي په هغه کي د مجاهدينو ملکيت نه ثابتيږي لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز قبل الإحراز هم ملکيت ثابتيږي. نو په دې وجه زموږ په نېز قبل الإحراز والإخراج إلیٰ دار الإسلام (يعني په دارُ الحرب کي دننه) د مالِ غنيمت تقسيمول صحيح نه دي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز صحيح دي. پر همدغه قاعدې ډېري مسئلې متفرع دي کوم چي په كفاية المنتهي کي ذکر سوي دي او د اولي هدايې د "۵۶۸" صفحې په اوله حاشيه کي د دې مثالونه موجود دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي کله پر يو مباح مال د يو مسلمان قبضه راسي نو قابض د هغه مال مالک جوړيږي او دا قبضه د هغه په حق کي د ملکيت سبب ګرځي. او د استيلاء مطلب دا دی چي پر هغه مال قبضه ثابته سي. او څرنګه چي د غنيمت پر مال هم د مجاهدينو قبضه راځي لهذا مجاهدين به هم د هغه مالکان جوړيږي او په دارُ الحرب کي به دننه د دوی په مينځ کي مالِ غنيمت تقسيمېږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي نبي کريم ﷺ په دارُ الحرب کي د مالِ غنيمت له بيع څخه منع کړې ده او په بيع کي هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی. او څرنګه چي تقسيم هم د معنیٰ په اعتبار سره د بيع په څير دی ځکه چي په تقسيم کي د بيع په څير مُبادله کيږي. لهذا تقسيم به په بيع کي داخل وي او د بيع په څير به وي. او څرنګه چي بيع ممنوع نه ده. نو تقسيم به هم ممنوع وي.

عقلي دليل دا دی چي د استيلاء مطلب دی "د حفاظت قبضه" او "له يوه سړي څخه د بل سړي وطرف ته د منتقل کولو د قبضې اثبات". لېکن دلته د انتقال والا قبضه معدومه ده. ځکه چي په دارُ الحراب کي دننه کفارو ته د دې قدرت سته چي هغوی د مسلمانانو سره مقابله وکړي او مال واپس ځني واخلي. لهذا ظاهراً به هلته کفارو ته قوت حاصل وي نو ځکه به دا صورت (يعني د انتقال والا

قبضه) معدومه وي او په استيلاء سره به فقط "يدحافظه" ثابتيږي او "يد حافظه" د ملکيت سبب نه دی. او تر ملکيت ثابتېدلو مخکي د غنيمت مال تقسيمول صحيح نه دي.

**ثم قيل إلخ**: فرمايي چي د ځيني فقهاؤ رايه دا ده چي زموږ او د شوافعو اختلاف تر تقسيم وروسته د انتفاع د جواز او عدمِ جواز په هکله دی يعني که چيري امام له اجتهاد څخه بغير په مجاهدينو کي د غنيمت مال تقسيم کړي نو زموږ په نيز له هغه څخه د مجاهدينو انتفاع (نفع اخيستل) جائز نه دي. او د شوافعو په نيز جائز دي. ځکه چي د امام شافعي په نيز په دې مال کي د مجاهدينو ملکيت ثابت دی. ليکن زموږ په نيز د هغو ملکيت ثابت نه دی نو ځکه دا تقسيم او انتفاع هم جائز نه ده.

د ځيني حضراتو رايه دا ده چي دا تقسيم مکروه دی او د دې کراهت "کراهتِ تنزيهي" دی. همدا د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ رايه ده، ځکه چي هغه دِ شيخينو قول په "لَا يَجُوْزُ" سره بيان کړی دی او په خپل نيزيې په دارُ الاسلام کي تقسيمول أفضل ګرځولي دي او خلافُ الأفضل کار کول مکروه دي. او د کراهت دليل دا دی چي د استيلاء او قبضې د نه پوره کېدلو په وجه د تقسيم د باطلېدلو دليل راجح دی. ليکن څرنګه چي دا دليل د جواز په ثابتولو او ختمولو کي مؤثر نه دی. ځکه چي د شوافعو په نيز تقسيم جائز دی او زموږ په نيز که څه هم په عامو حالاتو کي تقسيم جائز نه دي خو که چيري غازيانو ته د سپارلۍ يا د جامو (کاليو) يا د غلې ضرورت وي نو قبل الإحراز زمونږ په نيز هم تقسيم جائز دی لهذا د عدمِ جواز د تقسيم دليل ډېر مظبوط او مؤکد نه دی. ليکن بيا هم د کراهت پيدا کولو لپاره کافي دی.

## په "مالِ غنيمت" کي د مقاتلينو او معاونينو مساوات

قَالَ: وَالرِّدْءُ وَالْمُقَاتِلُ فِي الْعَسْكَرِ سَوَاءٌ فرمايي: چي په لښکر کي مدد کونکی او جنګ کونکی دواړه برابر دي لِاسْتِوَائِهِمْ فِي السَّبَبِ ځکه چي دوی ټوله په سبب کي سره برابر دي وَهُوَ الْمُجَاوَزَةُ أَوْ شُهُودُ الْوَقْعَةِ او هغه د جنګ [جهاد] په نيت سره تلل يا جنګ ته حاضرېدل دي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي معلوم سوي دي وَكَذٰلِكَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ لِمَرَضٍ أَوْ غَيْرِهِ او همدارنګه که د مرض يا بل عارض په وجه يو مجاهد جنګ نه وکړی سي انو د هغه هم دغه حکم دی! لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَإِذَا لَحِقَهُمُ الْمَدَدُ فِي دَارِ الْحَرْبِ قَبْلَ أَنْ يُخْرِجُوا الْغَنِيمَةَ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او کله چي د مجاهدينو سره په دارُ الحرب کي يو څو معاونين يو ځای سي مخکي تر دې چي مجاهدين د غنيمت مال له دارُ الاسلام څخه وباسي شَارَكُوهُمْ فِيهَا نو دا معاونين به د هغوی سره د غنيمت په

مال کي شریک کیږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْقِتَالِ لیکن [د جنګ تر ختمېدلو وروسته [د یو ځای کېدلو په صورت] د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَهُوَ بِنَاءٌ عَلَى مَا مَهَّدْنَاهُ مِنَ الْأَصْلِ او دا اختلاف پر هغه أصل [قاعدې] مبني دی کوم چي موږ مخکي بیان کړی وَإِنَّمَا يَنْقَطِعُ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ عِنْدَنَا بِالْإِحْرَازِ أَوْ بِقِسْمَةِ الْإِمَامِ فِي دَارِ الْحَرْبِ أَوْ بِبَيْعِهِ الْمَغَانِمَ فِيهَا او زموږ په نېز به ① په دارُ الاسلام کي په إحراز سره مشارکت [شراکت] ختمیږي ② یا په دارُ الحرب کي د امام په تقسیمولو سره ③ یا په دارُ الحراب کي د "مالِ غنیمت" په خرڅولو سره لِأَنَّ بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهَا يَتِمُّ الْمِلْكُ ځکه چي په دوی کي په هر یوه سره ملکیت پوره کیږي فَيَنْقَطِعُ حَقُّ شَرِكَةِ الْمَدَدِ نو [په دوی سره] به د معاونینو د شرکت حق ختمیږي.

**اللغات**: ﴿ردء﴾ معاون. مرستیال. مددګار. ﴿مجاوزة﴾ د مفاعلې مصدر دی: تلل. سفر کول. ﴿شهود﴾ د سمع مصدر دی. شَهِدَ يَشْهَدُ شُهُوْدًا: حاضرېدل. موجودېدل. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول. خوندي کول. ذخیره کول (جمع کول). ﴿مهدنا﴾ د تفعیل ماضي ده: بستره هوارول (غوړول). سمول او برابرول. مراد ځني په "ترتیب سره بیانول" دي.

**تشریح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي: (١)... دامامُ المسلمین سره چي څومره خلک له دارُ الاسلام څخه د دارُ الحرب وطرف ته د قتال او جهاد لپاره وځي هغوی ټولو ته مجاهدین ویل کیږي. او د فتح په صورت کي چي د مال غنیمت څومره حاصل مقاتلینو ته ورکول کیږي هغومره به د دوی معاونینو ته هم ورکول کیږي؛ ځکه چي ټوله د فتح په سبب او د غنیمت د حصول په سبب کي برابر دي. او هغه سبب زموږ په نېز جنګ او قتال ته د امام سره تلل دي او د شوافعو په نېز جنګ او قتال کول دي. لهذا د ټولو په نېز د مقاتل او معاون کار برابر دی لهذا د دوی انعام به هم برابر وي. همدارنګه که په وتونکو خلکو (مجاهدینو) کي یو کس مریض سي یا امام هغه په یو بل کار مصروف کړي چي د هغه په سبب دا کس په جنګ کي شریک نه سي نو د هغه حصه به هم د مقاتلینو سره برابره وي. ځکه چي مریض معذوره (عذر لرونکی) دی او په بل کار مصروفه کس د خپل کار په اعتبار سره مقاتل او مجاهد دی او په خپل محنت او کار کي د مقاتل سره مساوي دي لهذا د منفعت په حصول کي به هم هغه ته برابر حق ورکول کیږي.

(٢)... دویمه مسئله دا ده که مجاهدین جنګ وګټي او مال غنیمت را واخلي دارُ الاسلام ته روان سي لیکن دارُ الاسلام ته له رسېدلو څخه مخکي په دارُ الحرب کي دننه د مرستي او کومک په غرض نور

مجاهدين هغوی ته راسي نو دغه مجاهدين به هم په مالِ غنيمت کي د هغوی سره شريک وي. دا حکم زموږ په نيز دی. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي که معاونين د جنګ تر ختمېدلو او د مال غنيمت تر جمع کېدلو وروسته راسي نو په مالِ غنيمت کي به د دوی حصه نه وي. دا اختلاف په اصل کي پر دې قاعده متفرع دی چي: زموږ په نيز په درېو شيانو سره په مالِ غنيمت کي شراکت او مشارکت ختميږي: ① يو دا چي مالِ غنيمت دارُ الاسلام ته راوړل سي او هلته جمع کړی سي. ② دويم دا چي امام په دارُ الحرب کي دننه مالِ غنيمت تقسيم کړي. ③ دريم دا چي مالِ غنيمت خرڅ کړی سي. نو په دې درېو کي په هر فعل سره په مالِ غنيمت کي د مجاهدينو ملکيت پوره کيږي او د معاونينو او لاحقينو د شرکت او حصې امکان ختميږي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز تر فتح کولو او د کفارو تر ماتېدلو وروسته په مالِ غنيمت کي د مجاهدينو حق ثابتيږي او د معاونينو د شرکت امکان ختميږي. د همدغه قاعدې پر اختلاف د مسائلو اختلاف مبني دی.

## په "مالِ غنيمت" کي د لښکر د دوکاندارانو حصه

قَالَ: وَلَا حَقَّ لِأَهْلِ سُوقِ الْعَسْكَرِ فِي الْغَنِيمَةِ إِلَّا أَنْ يُقَاتِلُوا فرمايي: چي په غنيمت کي د لښکر د بازار والا [سوداګرانو] هيڅ حق نسته مګر دا چي هغوی جنګ وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ: يُسْهَمُ لَهُمْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل يوه قول کي فرمايلي دي: چي دوی ته به هم حصه ورکول کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: اَلْغَنِيمَةُ[1] لِمَنْ شَهِدَ الْوَقْعَةَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي غنيمت د هغه کس حق دی کوم چي جنګ ته حاضر سي ايعني په جنګ کي موجود وي[ وَلِأَنَّهُ وَجَدَ الْجِهَادَ مَعْنًى بِتَكْثِيرِ السَّوَادِ او ځکه چي [د لښکر] د جماعت د ډېرولو په حواله سره [د أهلُ السوق له طرفه] هم معناً جهاد کول موجود سو وَلَنَا: أَنَّهُ لَمْ تُوجَدِ الْمُجَاوَزَةُ عَلَى قَصْدِ الْقِتَالِ زموږ دليل دا دی: چي [د دوی له طرفه] د جنګ په نيت سره وتل موجود نه سو فَانْعَدَمَ السَّبَبُ الظَّاهِرُ نو [د دوی په حق کي] ظاهري سبب معدوم سو فَيُعْتَبَرُ السَّبَبُ الْحَقِيقِيُّ لهذا د حقيقي سبب اعتبار به کيږي وَهُوَ الْقِتَالُ او هغه جنګ کول دي فَيُفِيدُ الِاسْتِحْقَاقَ عَلَى حَسَبِ حَالِهِ فَارِسًا أَوْ رَاجِلًا عِنْدَ الْقِتَالِ نو د جنګ کولو په صورت کي به هغه [سوداګر] د خپل حالت مطابق د شهسوار کېدلو يا پياده کېدلو په اعتبار سره د غنيمت

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، رقم الحديث: ۱۷۹۵۳.

مستحق وي وَمَا رَوَاهُ مَوْقُوفٌ عَلَى عُمَرَ رضي الله عنه او د امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی سوی حديث پر حضرت عمر موقوف دی أَوْ تَأْوِيلُهُ: أَنْ يَشْهَدَهَا عَلَى قَصْدِ الْقِتَالِ يا د هغه تأويل دا دی: چي کوم کس د جنګ کولو په اراده جنګ ته حاضر سي انو هغه ته به غنيمت ورکول کيږي!

**اللغات**: ﴿سوق﴾ بازار. ﴿يُسهَم﴾ د افعال مضارع ده: مجهوله ده: حصه مقرر کول (په مال کي د يو چا لپاره حصه ټاکل)، حصه ورکول. ﴿سَوَاد﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي. دلته يې دغه دوې معناوي مراد کېدای سي: ① جماعت، ډله. ويل کيږي: سوادُ المسلمين: د مسلمانانو جماعت. ② شمېر، تعداد. ﴿فارس﴾ شهسور، شاهسوار (پر آس سپور).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي کوم خلک د لښکر سره د سوداګرۍ او دوکانداري په نيت ولاړ سي (او د ضرورت شيان د ځان سره واخلي او د جنګ په ډګر کي يې پر مجاهدينو خرڅوي) او د دوی مقصد جنګ او قتال نه وي، نو داسي سوداګرانو ته به د غنيمت په مال کي حصه نه ورکول کيږي، ها! که چيري دوی په عملي توګه په قتال کي شرکت وکړي نو بيا به په غنيمت کي حصه ورکول کيږي، دا حکم زموږ په نيز دی، همدا د امام احمد او امام مالک رَحِمَهُمَا الله قول دی. او دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول هم دی (بنايه). د امام شافعي رَحِمَهُ الله دويم قول دا دی چي دوکاندارنو او سوداګرانو ته به هم په مال غنيمت کي حصه ورکول کيږي. د دې قول دليل دا حديث دی: "کوم کس چي هم د قتال او جنګ په وخت کي حاضر وي، هغه ته دي په مال غنيمت کي حصه ورکول سي".

او سوداګر هم په دغه وخت کي حاضر وي، لهذا هغه ته به هم حصه ورکول کيږي. عقلي دليل دا دی چي که څه هم سوداګر په عملي توګه جنګ او قتال کړی نه دي لېکن هلته حاضر وو او د هغه په حاضر والي سره د مسلمانانو په جماعت کي اضافه راغله او په هغه سره د أفرادو ډېربښت ثابت سو. او د أفرادو په ډېربښت سره پر کافرانو رعب لوېږي، نو د معنیٰ په اعتبار سره هغه هم جهاد کونکی دی. لهذا هغه به هم د غنيمت مستحق وي.

زموږ دليل دا دی چي سوادګر د لښکر سره د خرڅلاو او سوداګرۍ په نيت ځي. او د هغه نيت د قتال نه وي، حالانکي د غنيمت ظاهري سبب د قتال په نيت سره وتل دي، لهذا کله چي ظاهري سبب د هغه په حق کي معدوم سو نو اوس د غنيمت د مستحق کېدلو لپاره د هغه په حق کي د حقيقي سبب موجودېدل يعني په عملي توګه قتال کول ضروري دي. او څرنګه دا سبب هم معدوم دی. نو ځکه به هغه د غنيمت مستحق نه وي. ها! کله چي دا سبب موجود سي نو د خپل حالت مطابق به هغه د غنيمت مستحق وي. مثلاً که د هغه سره آس (سپارلي) وي او پر آس د کفارو سره قتال وکړي نو هغه

به د دوو حصو مستحق وي او دوې حصې به ورکول کيږي او که چيرې پياده قتال وکړي نو ديوې حصې مستحق به وي.

پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله حديث نو هغه مرفوع نه دی، بلکې د حضرت عمر رضي الله عنه قول دی او پر هغه موقوف دی، يا د هغه تأويل دا دی چې د "الغنيمة لمن شهد الواقعة" مطلب دا دی چې "لمن شهد الواقعة على قصد القتال". والله أعلم بحقيقة الحال

## د غنيمت مال دارُ الاسلام ته د رسولو لپاره غازيانو ته سپارل

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لِلْإِمَامِ حَمُولَةٌ تُحْمَلُ عَلَيْهَا الْغَنَائِمُ او که د امام سره بار وړونکې سپارلي نه وي چې پر هغې د غنيمت مالونه بار کړل سي قَسَّمَهَا بَيْنَ الْغَانِمِينَ قِسْمَةَ إِيدَاعٍ نو امام دې هغه غنائم د امانت په توګه په مجاهدينو کې تقسيم کړي لِيَحْمِلُوهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ چې مجاهدين هغه دارُ الاسلام ته يووسي ثُمَّ يَرْتَجِعُهَا مِنْهُمْ فَيَقْسِمُهَا بيا دې هغه غنائم له مجاهدينو څخه واپس واخلي او دوی په مينځ کې دې يې تقسيم کړي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: هَكَذَا ذُكِرَ فِي الْمُخْتَصَرِ ناتوانه بنده وايي: چې په مختصرُ القدوري کې همداسې ذکر سوي دي وَلَمْ يَشْتَرِطْ رِضَاهُمْ او امام قدوري د مجاهدينو رضامندي شرط کړې نه ده وَهُوَ رِوَايَةُ السِّيَرِ الْكَبِيرِ او همدا د سير کبير روايت دی وَالْجُمْلَةُ فِي هَذَا: أَنَّ الْإِمَامَ إِذَا وَجَدَ فِي الْمَغْنَمِ حَمُولَةً د دې مسئلې حاصل دا دی: چې که امام په غنيمت کې د بار وړولو سپارلي پيدا کړي يَحْمِلُ الْغَنَائِمَ عَلَيْهَا نو غنائم دې پر هغې بار کړي لِأَنَّ الْحَمُولَةَ وَالْمَحْمُولَ مَالُهُمْ ځکه چې سپارلي او پر هغې بار کړی سوی مال ټوله د مجاهدينو دی وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي بَيْتِ الْمَالِ فَضْلُ حَمُولَةٍ او همدارنګه که په بيتُ المال کې اضافي سپارلياني وي نو هغه دې را وغواړي لِأَنَّهُ مَالُ الْمُسْلِمِينَ ځکه چې بيتُ المال د مسلمانانو مال دی وَلَوْ كَانَ لِلْغَانِمِينَ أَوْ لِبَعْضِهِمْ او که چيرې د مجاهدينو سره يا په دوی کې د يوه سره سپارلي وي لَا يُجْبِرُهُمْ فِي رِوَايَةِ السِّيَرِ الصَّغِيرِ نو د سير صغير د روايت مطابق امام هغوی نه سي مجبوره کولای لِأَنَّهُ ابْتِدَاءُ إِجَارَةٍ ځکه چې دا ابتداءً اجاره ده وَصَارَ كَمَا إِذَا نَفَقَتْ دَابَّتُهُ فِي مَفَازَةٍ نو داسې سو لکه په بيابان (دښت) کې چې د يو چا سپارلي هلاکه سي وَمَعَ رَفِيقِهِ فَضْلُ حَمُولَةٍ او د هغه د ملګري سره اضافي سپارلي وي نو هغه خپل ملګری پر دې نه سي مجبوره کولای

چي هغه د ده سامان پر خپله اضافي سپارلي باندي بار کړي! وَيُجْبِرُهُمْ فِي رِوَايَةِ السِّيَرِ الْكَبِيرِ او د سير کبير د روايت مطابق امام هغوی اسپارلي لرونکي مجاهدين ا مجبوره کولای سي لِأَنَّهُ دَفْعُ الضَّرَرِ الْعَامِّ بِتَحْمِيلِ ضَرَرٍ خَاصٍّ ځکه چي دا د خاص ضرر په پورته کولو ا زغملو ا سره د عام ضرر ليري کول دي.

**اللغات**: ﴿حمولة﴾ بار وړونکی څاروی، بار وړونکې سپارلي (سورلي). ﴿مفازة﴾ بيابان، دښت، نا آباده علاقه. ﴿تحميل﴾ د تفعيل مصدر دی، متعدي باب دی: پورته کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د امام سره د غنيمت په مالونو کي داسي څارويان (سپارلياني) نه وي چي پر هغوی له دارُ الحراب څخه دارُ الاسلام ته د غنيمت مالونه يووسي، نو امام ته پکار دي چي د امانت او وديعت په توګه د غنيمت مالونه په مجاهدينو کي تقسيم کړي چي مجاهدين هغه دارُ الاسلام ته ورسوي او بيا دي يې هلته واپس ځني واخلي او د خپل حالت مطابق دي هر مجاهد ته خپله حصه ورکړي. صاحب د هدايې فرمايي چي مجاهدينو ته دأمانت په توګه د مال ورکولو په هکله په قدوري کي د مجاهدينو د رضامندۍ شرط نه دي لګول سوی، او په سير کبير کي هم دغه شرط نه دي ذکر سوی.

صاحب د کتاب فرمايي چي د دې خلاصه دا ده چي که په غنيمت کي د بار وړلو سپارلۍ (سپارلياني) موجوده وي نو امام دي د غنيمت مالونه هم پر هغوی بار کړي. يا که چيري په بيتُ المال کي اضافي سپارلۍ وي نو هغه دي را واغوړي او پر هغوی دي غنائم بار کړي، ځکه چي بيتُ المال هم د مسلمانانو مال دی. لهذا د مسلمانانو په کار کي د هغه استعمالول صحيح او جائز دي. او که چيري د مجاهدينو سره سپارلۍ وي يا د يو مجاهد سره سپارلي وي، نو د امام لپاره دا جائز نه دي چي هغه د بار پر وړلو مجبوره کړي. دا د سير صغير روايت دی، د جبر د نه جائز کېدلو وجه دا ده چي دا صورت ابتداءً د اجارې په څير دی او په اجاره کي رضا او اجازه شرط ده، د دې مثال داسي دی لکه په دښت کي چي د يو چا سپارلي هلاکه سي او د هغه د ملګري سره سپارلي وي نو هغه خپل ملګری پر دې نه سي مجبوره کولای چي سپارلي ځني واخلي او خپل سامان پر بار کړي، ها! که چيري د هغه ملګری راضي سي نو بيا يې ځني اخيستلای سي. لېکن د سير کبير په روايت کي ذکر سوي دي چي امام د سپارلۍ له خاوند څخه د بار وړلو لپاره سپارلي اخيستلای سي او په دې هکله هغه مجبوره کولای سي، ځکه چي په دې صورت کي د ضررِ خاص په زغملو سره د ضررِ عام ليري کول دي (يعني د سپارلۍ په اخيستلو او د هغه مجاهد په مجبوره کولو سره له عامو مجاهدينو څخه ضرر ليري کيږي). او د ضررِ عام د ليري کولو لپاره ضررِ خاص زغمل کېدای سي.

## تر تقسیم مخکې د غنیمت مال خرڅول

وَلَايَجُوزُ بَيْعُ الْغَنَائِمِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ فِي دَارِ الْحَرْبِ او تر قسیم مخکې په دارُ الحرب کې غنائم ا د غنیمت مالونه ا خرڅول جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ قَبْلَهَا ځکه چې تر تقسیم مخکې ملکیت نه ثابتیږي وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَقَدْ بَيَّنَّا الْأَصْلَ او موږ امخکې ا قاعده بیان کړه وَمَنْ مَاتَ مِنَ الْغَانِمِينَ فِي دَارِ الْحَرْبِ او له مجاهدینو څخه چې کوم کس په دارُ الحرب کې مړ سي فَلَاحَقَّ لَهُ فِي الْغَنِيمَةِ نو په غنیمت کې به د هغه لپاره حق نه وي وَمَنْ مَاتَ مِنْهُمْ بَعْدَ إِخْرَاجِهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او له مجاهدینو څخه چې کوم کس دارُ الاسلام ته د غنائمو تر نقل کېدلو وروسته مړ سي فَنَصِيبُهُ لِوَرَثَتِهِ نو د هغه حصه به د هغه د وارثانو لپاره وي لِأَنَّ الْإِرْثَ يَجْرِي فِي الْمِلْكِ ځکه چې وراثت په ملکیت کې جاري کیږي وَلَا مِلْكَ قَبْلَ الْإِحْرَازِ او تر إحراز مخکې ملکیت نه ثابتیږي وَإِنَّمَا الْمِلْكُ بَعْدَهُ [بلکې] ملکیت تر إحراز وروسته ثابتیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَنْ مَاتَ مِنْهُمْ بَعْدَ اسْتِقْرَارِ الْهَزِيمَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کوم مجاهد د شکست تر ثابتېدلو ااو یقیني کېدلوا وروسته مړ سي يُورَثُ نَصِيبُهُ نو د هغه حصه به میراث جوړیږي ااو وارثانو ته به ورکول کیږيا لِقِيَامِ الْمِلْكِ فِيهِ عِنْدَهُ ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز په هغه کې ادمړه سوي مجاهدا ملکیت ثابتیږي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او [مخکې] موږ د دې بیان وکړ.

**اللغات**: ﴿إخراج﴾ د افعال مصدر دی: ایستل، باسل. ﴿نصیب﴾ حصه، برخه. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول، ذخیره کول (دلته ځني مراد دارُ الاسلام ته د غنائمو وړل او هلته جمع کول دي). ﴿استقرار﴾ د استفعال مصدر دی: ثابتیدل. ﴿هزیمة﴾ شکست، ماته (ماتې).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې تر څو امامُ المسلمین په دارُ الحرب کې غنائم (د غنیمت مالونه) تقسیم نه کړي تر هغه وخته پورې غنائم خرڅول صحیح نه دي، ځکه چې زموږ په نیز تر تقسیم مخکې په هغه کې ملکیت نه ثابتیږي او له ملکیت څخه بغیر بیع صحیح نه ده.

لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز تر تقسیم مخکې د غنائمو خرڅول جائز دي، ځکه چې د هغه په نیز په استیلاء سره ملکیت پوره کیږي.

که چیري په دارُ الحرب کي تر تقسیم مخکې یو مجاهد مړ سي نو له غنیمت څخه د هغه حق ختمیږي، لېکن که دارُ الاسلام ته د غنائمو تر نقل کېدلو وروسته یو مجاهد مړ سي نو هغه د غنیمت حقداره ګرځي او د هغه حصه به د هغه وارثانو ته ورکول کیږي. ځکه چي دإحراز په وجه په غنیمت کي د مړه سوي مجاهد حق او حصه ثابته سوه او د هغه ملکیت مؤکّد او مضبوط سو. او ملکیت د استحقاق (حقداره کېدلو) سبب دی. لېکن په اول صورت کي یعني د قبل الإحراز په صورت کي ملکیت نه ثابتیږي، نو ځکه موږ په هغه صورت کي مړ سوی مجاهد د غنیمت مستحق شمارلی نه دی. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز که په داسي وخت کي یو مجاهد مړ سي چي د کافرانو شکست او ماته خوړل یقیني سي، نو هغه ته به حصه ورکول کیږي. ځکه چي د هغه په نېز د شکست تر ثابتېدلو او مؤکّد کېدلو وروسته ملکیت ثابتیږي. او مخکي د هغه أصل بیان سو.

## په دارُ الحرب کي (د کفارو) واښه او د خوراک شیان استعمالول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَعْلِفَ الْعَسْكَرُ فِي دَارِ الْحَرْبِ وَيَأْكُلُوا مَا وَجَدُوهُ مِنَ الطَّعَامِ فرمایي: او په دې کي هیڅ حرج نسته چي د لښکر والا [مجاهدین] څارویو ته واښه ورکړي او کوم خوراک چي پیدا کړي هغه وخوري قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: أَرْسَلَ وَلَمْ يُقَيِّدْهُ بِالْحَاجَةِ ناتوانه بنده وایي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا [حکم] مطلق بیان کړی دی او په حاجت سره یې مقید کړی نه دی وَقَدْ شَرَطَهَا فِي رِوَايَةٍ وَلَمْ يَشْتَرِطْهَا فِي أُخْرَى [حال دا چي] امام محمد رَحِمَهُ الله د سیرِ صغیر] په روایت کي حاجت شرط کړی دی لېکن د سیرِ کبیر] په روایت کي یې حاجت نه دي شرط کړی وَجْهُ الْأُولَى: أَنَّهُ مُشْتَرَكٌ بَيْنَ الْغَانِمِينَ د اول روایت دلیل دا دی: چي هغه مال د مجاهدینو په مینځ کي مشترک دی فَلَا يُبَاحُ الِانْتِفَاعُ بِهِ إِلَّا لِحَاجَةٍ لهذا بیله ضرورته به له هغه څخه نفع اخیستل روا نه وي كَمَا فِي الثِّيَابِ وَالدَّوَابِّ لکه په جامو او سپرلیو کي [چي هم دغه حکم دی] وَجْهُ الْأُخْرَى: قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] فِي طَعَامِ خَيْبَرَ: كُلُوهَا وَاعْلِفُوهَا وَلَا تَحْمِلُوهَا د دویم روایت دلیل د خیبر د خوراک په باره کي د نبي کریم ﷺ دا فرمان دی: تاسي هغه وخورئ! او څارویو ته یې هم ورکړي [لېکن] هغه مه باروئ! [یعني د ځان سره یې مه وړئ!] وَلِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى دَلِيلِ الْحَاجَةِ او ځکه چي د حکم مدار د حاجت پر دلیل دی وَهُوَ كَوْنُهُ فِي دَارِ

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في معرفة السنن، رقم الحديث: ٥٣٥٨.

الْحَرْبِ او هغه په دارُ الحرب کي د غازي کېدل امو جودېدل ا دي لِأَنَّ الْغَازِيَ لَا يَسْتَصْحِبُ قُوْتَ نَفْسِهِ وَعَلَفَ ظَهْرِهِ مُدَّةَ مُقَامِهِ فِيهَا ځکه چي غازي په دارُ الحرب کي د پاتېدلو د مودت په اندازه د ځان سره خپله خوراکه او د حيوان خوراکه وړلای نه سي وَالْمِيْرَةُ مُنْقَطِعَةٌ او اهلته ا غله اترلاسه کول ا ناشوني دي امطلب دا چي له دارُ الاسلام څخه هلته د غلې رسېدل ناممکن دي ا فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْإِبَاحَةِ لِلْحَاجَةِ لهذا د حاجت پر بناء دا حکم پر أباحت پاته سو بِخِلَافِ السِّلَاحِ په خلاف د وسلې لِأَنَّهُ يَسْتَصْحِبُهُ ځکه چي غازي هغه د خپل ځان سره وړي فَانْعَدَمَ دَلِيلُ الْحَاجَةِ لهذا د حاجت دليل معدوم سو وَقَدْ تَمَسُّ إِلَيْهِ الْحَاجَةُ او کله وسلې ته هم ضرورت پيښيږي فَتُعْتَبَرُ حَقِيقَتُهَا نو اهلته ا به د حقيقي حاجت اعتبار کيږي فَيَسْتَعْمِلُهُ ثُمَّ يَرُدُّهُ فِي الْمَغْنَمِ إِذَا اسْتَغْنَى عَنْهُ نو غازي به اد غنيمت وسله ا استعمالوي او کله چي له هغه څخه مستغني سي نو په غنيمت کي به يې ږدي وَالدَّابَّةُ مِثْلُ السِّلَاحِ او څاروی د وسلې په څير دی ايعني د سپارلۍ حکم د وسلې د حکم په څير دی ا وَالطَّعَامُ كَالْخُبْزِ وَاللَّحْمِ وَمَا يُسْتَعْمَلُ فِيهِ كَالسَّمْنِ وَالزَّيْتِ او طعام ايعني له طعام څخه مراد ا ډوډۍ، غوښې او هغه څه دي کوم چي په غوښو اوکتغ ا کي استعماليږي لکه غوړي او تېل.

**اللغات**: ﴿يعلف﴾ د ضرب مضارع ده: څارويانو ته خوراکه ورکول، واښه ورکول. ﴿دوابّ﴾ جمع د دَابَّةٌ ده: څاروی، سپارلۍ. ﴿يُدار﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: مدار کېدل. ﴿لا يستصحب﴾ د استفعال له باب څخه د نفي صيغه ده: د ځان ملګری کول، د ځان سره وړل. ﴿ميرة﴾ غله. ﴿سمن﴾ غوړي. ﴿زَيْت﴾ د زيتون تېل. مراد ځني مطلق تېل او روغن دي (کوم چي له تخمونو او مغزياتو څخه را وځي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که مجاهدين په دارُ الحرب کي يو ښار فتح کړي نو هلته د اوسېدلو په وخت کي خپلو څارويانو ته (د کفارو) واښه ورکولای سي او په خپله هم (د کفارو) مطعومات (د خوراک شيان) او داسي نور څه استعمالولای سي. او دا حکم په قدوري کي مطلق دی يعني په حاجت او ضرورت سره مقيّد نه دی. لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په سيرِ صغير کي د ضرورت پر بناء د دې اجازه ورکړې ده لېکن په سيرِ کبير کي يې بلا ضرورته د دې شيانو د استعمالولو اجازه نه ده ورکړې بلکي د ضرورت شرط يې لګولی دی. د سيرِ صغير د روايت دليل دا دی چي تر فتح

وروسته د مفتوحه علاقې مال د مجاهدينو په مينځ کې مشترک ګرځي. لهذا بلا ضرورته به له هغه څخه فايده اخيستل جائز نه وي لکه څرنګه چې د جامو (کاليو) او سپارليو هم دغه حکم دی چې بلا ضرورته د هغوی استعمالول جائز نه دي همداسي به د وښو او مطعوماتو هم دغه حکم وي.

د سير کبير د روايت دليل د خيبر د مطعوماتو په هکله د نبي ﷺ دا فرمان دی "تاسي هغه وخورئ! او خپلو څارويو ته يې ورکړئ! لېکن د ځان سره يې مه وړئ!". په دې حديث کې په ښکاره توګه د پورتني شيانو د استعمالولو اجازه ورکول سوې ده. فقط د هغوی له وړلو و بارولو څخه منع سوې ده.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چې د حکم يعني د إباحت او جواز دار ومدار د حاجت پر دليل دی او په دارُ الحرب کې د مجاهدينو اوسېدل د حاجت او ضرورت واضح دليل دی. ځکه چې د مجاهدينو لپاره دا ممکنه نه ده چې د ځان سره دومره خوراکه او غلّه راوړي چې په دارُ الحرب کې د اوسېدلو او پاتېدلو تر وخته پوري د هغو او د څارويو لپاره کافي سي. لهذا په دارُ الحرب کې د هغو اوسېدل حاجت دی (او هلته د هغو او د څارويو لپاره خوراکې او غلّې ته ضرورت سته). او بل دا چې دارُ الحرب ته د خوراکې او غلّې راوړلو لاري هم بندي وي. نو ځکه به د دې شيانو استعمالول مباح وي.

د دې په خلاف د وسلې (اسلحې) مسئله ده نو د مجاهدينو لپاره د هغه استعمالول مباح نه دي. ځکه چې مجاهد د خپل ځان سره وسله وړلای سي او د ځان سره د وسلې وړل ممکن هم دي. لهذا په دې کې د حاجت دليل معدوم دی او کله چې د حاجت دليل معدوم دی نو ښکاره خبره ده چې د هغې استعمالول به هم ممنوع وي. او که چيري د يو مجاهد توره ماته سي يا ځني ورکه سي او هغه دې ته مجبوره سي چې له غنيمت څخه توره واخلي، نو دا د حاجت دليل نه. بلکي حقيقي حاجت او ضرورت دی، نو د دې حقيقي ضرورت پر بناء به مجاهد هغه استعمالوي او بيرته به يې په غنيمت کې ږدي.

**والدابة مثل السلاح إلخ:** فرمايي چې په پورتنی مسئله کې چې دوسلې کوم حکم ذکر سو هغه حکم د سپارلۍ (سورلۍ) هم دی. يعني په هغه کې به هم د حقيقي ضرورت اعتبار کيږي. او مخکې چې کوم د "طَعَام" لفظ ذکر سو. له هغه څخه ہوږي. غوښې او هغه شيان مراد دي چې د غوښو او د کتغ (سالن) په تيارولو کې استعماليږي. لکه غوړي، مساله، تېل او داسي نور.

## د دارُ الحرب د مباح (روا) شيانو بيان

قَالَ: وَيَسْتَعْمِلُوا الْحَطَبَ فرمايي: او مجاهدين لرګي اد سوځولو بوټي ا استعمالولای سي وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ الطِّيبَ او په ځيني نسخو کې اذکر سوي ا دي: چې خوشبويي ا استعمالولای سي ا وَيُدْهِنُوا بِالدُّهْنِ وَيُوقِحُوْا بِهِ الدَّابَّةَ او تېل اروغن پر خپلو ځانو ا لګولای سي ايعني ځان په مالش کولای

سي او د څاروي [اسپارلی] پر پښو يې مړلای سي لِمَسَاسِ الْحَاجَةِ إِلَى جَمِيعِ ذٰلِكَ ځکه چي دغه ټولو شيانو ته ضرورت پېښيږي وَيُقَاتِلُوا بِمَا يَجِدُونَهُ مِنَ السِّلَاحِ او [د کفارو] کومه وسله چي مجاهدين پيدا کړي په هغه سره جنګ هم کولای سي كُلُّ ذٰلِكَ بِلَا قِسْمَةٍ [او] دا ټوله شيان له تقسيم څخه بغير روا دي وَتَأْوِيلُهُ: إِذَا احْتَاجَ إِلَيْهِ او د دې تأويل دا دی: چي کله مجاهد د دې استعمالولو ته محتاج سي بِأَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ سِلَاحٌ په دې توګه چي د هغه سره وسله نه وي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او [مخکي] موږ د دې بيان وکړی وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَبِيعُوا مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا وَلَا يَتَمَوَّلُونَهُ او جائز نه دي چي مجاهدين له دې [مالِ غنيمت] څخه يو شی خرڅ کړي او نه دي يې ذخيره کوي لِأَنَّ الْبَيْعَ يَتَرَتَّبُ عَلَى الْمِلْكِ ځکه چي بيع پر ملکيت مرتب کيږي وَلَا مِلْكَ او دلته ملکيت نسته عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ لکه مخکي چي موږ دا [خبره] ذکر کړه وَإِنَّمَا هُوَ إِبَاحَةٌ او دا خو إباحت دی وَصَارَ كَالْمُبَاحِ لَهُ الطَّعَامُ او داسي سو لکه ديو چا لپاره چي طعام مباح کړی سوی وي وَقَوْلُهُ وَلَا يَتَمَوَّلُونَهُ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُمْ لَا يَبِيعُونَهُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْعُرُوضِ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "ولا يتموّلونه" ودې طرف ته اشاره ده چي هغوی به د سرو او سپينو زرو او د سامان په عوض کي د غنيمت مال نه خرڅوي لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ إِلَى ذٰلِكَ ځکه چي دې ته ضرورت نسته فَإِنْ بَاعَهُ أَحَدُهُمْ رَدَّ الثَّمَنَ إِلَى الْغَنِيمَةِ او که چيري يو مجاهد هغه خرڅ کړي نو مجاهد به د هغه قيمت د غنيمت مال ته واپس کوي لِأَنَّهُ بَدَلُ عَيْنٍ كَانَتْ لِلْجَمَاعَةِ ځکه چي هغه د داسي عين بدل دی کوم چي د ټوله جماعت [مجاهدينو] لپاره دی أَمَّا الثِّيَابُ وَالْمَتَاعُ فَيُكْرَهُ الِانْتِفَاعُ بِهَا قَبْلَ الْقِسْمَةِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ کوم چي جامې او سامان دی نو تر تقسيم مخکي له هغوی څخه بېله ضرورته فايده اخيستل مکروه دي لِلِاشْتِرَاكِ ځکه چي [په هغوی کي د مجاهدينو] شرکت دی إِلَّا أَنَّهُ يُقَسِّمُ الْإِمَامُ بَيْنَهُمْ فِي دَارِ الْحَرْبِ إِذَا احْتَاجُوا إِلَى الثِّيَابِ وَالدَّوَابِّ وَالْمَتَاعِ لېکن کله چي مجاهدين جامو، سپارليو او سامان ته مجبوره سي نو امام په دارُ الحرب کي دا شيان د دوی په مينځ کي تقسيمولای سي لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ يُسْتَبَاحُ لِلضَّرُورَةِ ځکه [کله] چي د ضرورت په وجه حرام شی مباح ګرځي فَالْمَكْرُوهُ أَوْلَى نو مکروه شی خو به په درجه اولیٰ مباح ګرځي وَهٰذَا لِأَنَّ

حَقَّ الْمَدَدِ مُحْتَمَلٌ او دا حكم په دې وجه دى چې د دې شيانو د مدد حق احتمالي دى وَحَاجَةُ هٰؤُلَاءِ مُتَيَقَّنٌ بِهَا او دې شيانو ته د مجاهدينو حاجت يقيني دى فَكَانَ أَوْلٰى بِالرِّعَايَةِ نو د ايقيني ا حاجت رعايت كول به غوره وي وَلَمْ يَذْكُرِ الْقِسْمَةَ فِي السِّلَاحِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په وسله كي د تقسيم يادونه كړې نه ده وَلَا فَرْقَ فِي الْحَقِيقَةِ او په حقيقت كي ادوسلې او جامي په مينځ كي ا هيڅ فرق نسته فَإِنَّهُ إِذَا احْتَاجَ وَاحِدٌ ځكه كه چيري يو مجاهد وسلې ته مجبوره سي يُبَاحُ لَهُ الِانْتِفَاعُ فِي الْفَصْلَيْنِ نو هغه ته په دواړو صورتونو كي ايعني له جامې او وسلې دواړو څخه ا نفع اخيستل روا كيږي وَإِنِ احْتَاجَ الْكُلُّ يُقَسِّمُ فِي الْفَصْلَيْنِ او كه ټوله مجاهدين دې ته مجبوره سي نو امام جامه او وسله دواړه د دوى په مينځ كي تقسيمولاى سي بِخِلَافِ مَا إِذَا احْتَاجُوا إِلَى السَّبْيِ په خلاف د هغه صورت كله چي مجاهدين قيد كړل سوو ښځو ته محتاج سي حَيْثُ لَا يُقَسِّمُ نو امام به اهغه د دوى په مينځ كي ا نه تقسيموي لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَيْهِ فِي فُضُولِ الْحَوَائِجِ ځكه چي د دې حاجت له اضافي حاجاتو څخه دى ايعني له حوائج اصليه وو څخه نه دى ا.

**اللغات**: ﴿حطب﴾ لرګي، د سوځولو بوټي او لرګي. ﴿دُهن﴾ روغن، تېل. ﴿يوقحوا﴾ د افعال مضارع ده: مراد ځني د ځاروي پر پښو او ښونګرو تېل مږل (مالش كول) دي. ﴿لا يتموّلونه﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: د ځان لپاره ذخيره كول، جمع كول. ﴿يُستباح﴾ د استفعال له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده: مباح ګرځول (روا ګرځول). ﴿سَبْي﴾ قيدي، مراد ځني قيدي كړى سوې ښځه ده كوم چي د مينځي جوړولو قابل وي.

**تشريح**: **صورت دمسئلې**: دا دى كه مجاهدين مجبوره سي نو په دار الحرب كي د غنيمت تر تقسيم مخكي هلته (د كفارو) لرګي، بوټي، تېل او خوشبويي استعمالولاى سي. همدارنګه د هغه ځاى (د كفارو) په وسله سره قتال هم كولاى سي په دې شرط كه د مجاهدينو سره وسله نه وي او دوى وسلې ته مجبوره وي. دلته دا خبره تاسي په ياد لرئ! چي په عبارت كي د "كل ذٰلک بلا قسمة" تعلق د طعام، علف، ثياب او د داسي نورو ټولو سره دى لېكن د "وتأويله" تعلق فقط د "ويقاتلو بما يجدونه من السلاح" سره دى لكه څرنګه چي په پورتني عبارت كي په دې هكله پوره بحث سوى دى. (بناية ج:۶، ص:۵۷۶)

**ولايجوز إلخ:** مسئله دا ده چي د غنيمت مال د سرو زرو او سپينو زرو په عوض کي خرڅول جائز نه دي او نه د يو بل سامان په عوض کي د هغه خرڅول جائز دي او نه د هغه ذخيره کول جائز دي: ځکه چي د بيع او تمول لپاره ملکيت ضروري دي، حال دا چي په دار الحرب کي قبل الإحراز والقسمة د مجاهدينو ملکيت معدوم دی، او کله چي ملکيت معدوم دی نو ښکاره خبره ده چي بيع به هم صحيح نه وي. پاته عبارت واضح دی.

**وأما الثياب والمتاع إلخ:** د دې حاصل دا دی چي د غازيانو لپاره بلا ضرورته د غنيمت له مال څخه جامې او داسي نور سامان استعمالول مکروه دي. ځکه چي دا ټوله مشترک مال دی او په دې کي د ټولو حق سته. او که چيري ټوله مجاهدين د جامو او سامان استعمالولو ته مجبوره سي نو امام د دوی په مينځ کي دا شيان تقسيمولای سي. ځکه ضرورت چي کله حرام شی مباح ګرځوي نو مکروه شی خو به په درجه اولیٰ مباح ګرځوي. دويمه خبره دا ده چي غازيان اوس د غه شيانو ته محتاجه دي او حاجت او ضرورت متيقن دی، او له دار الاسلام څخه د دې شيانو راغوښتل او بيا د هغوی را رسېدل محتمل دي (يعني په دې خبره کي احتمال دی چي د دار الأسلام له طرفه به دا شيان را واستول سي او بيا به هغه را ورسېدل سي)، او د متقين مخته محتمل هيڅ حيثيت نه لري. لهذا پر متيقن يعني پر حقيقي ضرورت به عمل کيږي او دا شيان به په دار الحرب کي د ننه مجاهدينو ته ورکول کيږي.

**ولم يذكر القسمة إلخ:** فرمايي چي امام محمد رَحِمَهُ الله په سير صغير کي د وسلې (اسلحې) په هکله دا نه دي ليکلي چي آيا د ضرورت په وخت کي هغه تقسيمول کېدای سي. که نه؟ لېکن حقيقت دا دی چي که مجاهد دې ته مجبوره سي نو له جامې او وسلې دواړو څخه فايده اخيستلای سي (يعني هغه ته له دواړو څخه فايده اخيستل جائز دي). او که ټوله مجاهدين دې ته مجبوره سي. نو امام د جامې په څېر وسله هم د دوی په مينځ کي تقسيمولای سي (ځکه چي له دې دواړو څخه فايده اخيستل په حاجت اصليه کي داخل دي).

**بخلاف ما إذا احتاجوا إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که د مجاهدينو له طرفه قيد کړل سوو ښځو ته د مجاهدينو ضرورت پيدا سي چي جماع ورسره وکړي. نو امام به هغه تر إحراز مخکي په مجاهدينو کي نه تقسيموي. ځکه چي قبل الإحراز په دې ښځو کي ملکيت معدوم دی. او بل دا چي جامه او وسله خو په حاجت اصليه کي داخل دي، او د ښځي سره جماع کول په حاجت اصليه کي داخل نه دي. نو ځکه به قبل الإحراز هغه د مجاهدينو په مينځ کي نه تقسيموي.

## د دار الحرب مسلمانان

قَالَ: وَمَنْ أَسْلَمَ مِنْهُمْ فرمايي: او څوک چې له کفارو څخه اسلام راوړي مَعْنَاهُ فِي دَارِ الْحَرْبِ يعني په دارُ الحرب کې [اسلام راوړي] أَحْرَزَ بِإِسْلَامِهِ نَفْسَهُ نو هغه په اسلام راوړلو سره خپل ځان محفوظ کړی لِأَنَّ الْإِسْلَامَ يُنَافِي ابْتِدَاءَ الِاسْتِرْقَاقِ ځکه چې اسلام د غلام جوړولو [او د غلام جوړېدلو] منافي دی وَأَوْلَادَهُ الصِّغَارَ او هغه خپل کوچني [نابالغه] بچيان هم محفوظ کړل لِأَنَّهُمْ مُسْلِمُونَ بِإِسْلَامِهِ تَبَعًا ځکه چې کوچني بچيان د تابع په توګه د پلار په اسلام سره مسلمانان دي ايعني دوی د خپل پلار تابع کيږي او د هغه په اسلام راوړلو سره وجه مسلمانان شمارل کيږي] وَكُلُّ مَالٍ هُوَ فِي يَدِهِ او هغه [په خپل اسلام راوړلو] هر هغه مال هم محفوظ کړی کوم چې د هغه په قبضه کې دی لِقَوْلِهِ الطَّيِّلَا [1]: مَنْ أَسْلَمَ عَلَى مَالٍ فَهُوَ لَهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کوم څوک چې په داسې حال کې اسلام راوړي چې د ده سره مال وي نو هغه مال به د ده وي وَلِأَنَّهُ سَبَقَتْ يَدُهُ الْحَقِيقِيَّةُ إِلَيْهِ يَدَ الظَّاهِرِينَ عَلَيْهِ او ځکه چې پر هغه مال د مجاهدينو له قبضې راتللو څخه مخکې د ده قبضه باقي ده أَوْ وَدِيعَةً فِي يَدِ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ او هغه [په خپل اسلام راوړلو سره] خپل هغه مال هم محفوظ کړی کوم چې د يو مسلمان يا ذمي په قبضه کې د امانت په توګه [پروت] وي لِأَنَّهُ فِي يَدٍ صَحِيحَةٍ مُحْتَرَمَةٍ ځکه چې هغه [هم] په صحيح او محترمه قبضه کې دی وَيَدُهُ كَيَدِهِ او د مودَع قبضه د هغه [نوي مسلمان] د قبضې په څير ده فَإِنْ ظَهَرْنَا عَلَى دَارِ الْحَرْبِ فَعَقَارُهُ فَيْءٌ او که چيرې موږ [مسلمانان] پر دارُ الحرب غالب سو نو د هغه [نوي مسلمان] جايداد به "فيء" وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: هُوَ لَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه به [هم] د ده وي لِأَنَّهُ فِي يَدِهِ ځکه چې هغه [جايداد] د ده په قبضه کې دی فَصَارَ كَالْمَنْقُولِ نو هغه د منقول مال په څير سو وَلَنَا أَنَّ الْعَقَارَ فِي يَدِ أَهْلِ الدَّارِ وَسُلْطَانُهَا زموږ دليل دا دی چې جايداد د حربيانو او د هغوی د باچا په قبضه کې دی إِذَا هُوَ مِنْ جُمْلَةِ دَارِ الْحَرْبِ ځکه چې جايداد [هم] د دارُ الحرب له جملې څخه دی فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهِ حَقِيقَةً لهذا هغه حقيقتاً د ده په قبضه

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، رقم الحديث: ۱۸۲۵.

کي نه دی وَقِيلَ: هٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ الْآخِرُ او ویل سوي دي: چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی وَفِي قَوْلِ مُحَمَّدٍ وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ الْأَوَّلُ هُوَ كَغَيْرِهِ مِنَ الْأَمْوَالِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په اول قول کي جایداد هم د هغه انوي مسلمان ا د نورو منقوله أموالو په شیر دی بِنَاءً عَلَى أَنَّ الْيَدَ حَقِيقَةً لَا تَثْبُتُ عَلَى الْعَقَارِ عِنْدَهُمَا وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ تَثْبُتُ دا اختلاف پر دې ا قاعده ا مبني دی چي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په جایداد کي حقیقي قبضه نه ثابتیږي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ثابتیږي وَزَوْجَتُهُ فَيْءٌ او د هغه انوي مسلمان ا ښځه به ا هم ا فئ وي لِأَنَّهَا كَافِرَةٌ حَرْبِيَّةٌ لَا تَتْبَعُهُ فِي الْإِسْلَامِ ځکه چي هغه حربیه کافره ده او په اسلام کي د خپل خاوند تابعداري نه کوي وَكَذَا حَمْلُهَا فَيْءٌ او همدارنګه د هغې حمل به ا هم ا فئ وي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ هُوَ يَقُولُ: إِنَّهُ مُسْلِمٌ تَبَعًا په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله. هغه فرمايي: چي حمل ا د مور ا په متابعت کي مسلمان دی كَالْمُنْفَصِلِ لکه جلا سوی بچی ايعني لکه هغه حمل (بچی) چي دمتابعت په توګه مسلمان شمارل کیږي کوم چي پیدا سوی وي ا وَلَنَا: أَنَّهُ جُزْؤُهَا زموږ دلیل دا دی: چي حمل د خپل مور جزء دی فَيَرِقُّ بِرِقِّهَا لهذا د مور د رقیت ا غلامتوب ا په وجه به هغه هم غلام کیږي وَالْمُسْلِمُ مَحَلٌّ لِلتَّمَلُّكِ تَبَعًا لِغَيْرِهِ او مسلمان د بل چا د تابع په توګه د ملکیت محل ګرځي بِخِلَافِ الْمُنْفَصِلِ لِأَنَّهُ حُرٌّ په خلاف د منفصل، ځکه چي هغه آزاد وي لِانْعِدَامِ الْجُزْئِيَّةِ عِنْدَ ذٰلِكَ ځکه چي د انفصال په وخت کي جزئیت معدوم وي وَأَوْلَادُهُ الْكِبَارُ فَيْءٌ او د هغه انوي مسلمان ا غټ ا بالغ ا بچیان به ا هم ا فئ وي لِأَنَّهُمْ كُفَّارٌ حَرْبِيُّونَ ځکه چي هغوی ټوله حربي کافران دي وَلَا تَبَعِيَّةَ او تبعیت معدوم دی وَمَنْ قَاتَلَ مِنْ عَبِيدِهِ فَيْءٌ او د هغه ا نوي مسلمان ا له غلامانو څخه چي کوم غلام قتال وکړي، هغه به ا هم ا فئ وي لِأَنَّهُ لَمَّا تَمَرَّدَ عَلَى مَوْلَاهُ ځکه کله چي هغه غلام خپل پر مالک سرکښي وکړه خَرَجَ مِنْ يَدِهِ فَصَارَ تَبَعًا لِأَهْلِ دَارِهِمْ نو د مالک له قبضې څخه ووتی او د حربیانو تابع سو وَمَا كَانَ مِنْ مَالِهِ فِي يَدِ حَرْبِيٍّ فَهُوَ فَيْءٌ او د هغه ا نوي مسلمان ا کوم مال چي د يو حربي په قبضه کي وي، هغه به ا هم ا فئ وي غَصْبًا كَانَ أَوْ وَدِيعَةً برابره ده د غصب په توګه ا د حربي په قبضه

کي اوي یا د امانت په توګه لِأَنَّ يَدَهُ لَيْسَتْ بِمُحْتَرَمَةٍ ځکه چي د حربي قبضه محترمه نه ده.

**اللغات:** ﴿أحرز﴾ د افعال ماضي ده: محفوظه کول، خوندي کول. ﴿استرقاق﴾ د استفعال مصدر دی: غلام جوړول. ﴿ظاهرين﴾ جمع د ظاهِر ده: مراد ځني غلبه کونکي (فاتحين) دي. ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده. ﴿فيء﴾ غنيمت. ﴿منفصل﴾ جلا کېدونکی، مراد ځني پيدا سوي بچي دي (ځکه چي هغه له خپل مور څخه را جلا سي). ﴿تمرّد﴾ د تفعّل ماضي ده: سرکښي کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د دارُ الحرب تر فتح کولو وروسته له کفارو څخه یو څوک مسلمان سي نو د اسلام په وجه به د هغه ځان هم له قتل او مملوک کېدلو (غلام کېدلو) څخه ساتل کيږي او د هغه نابالغه أولاد به هم ساتل کيږي او د هغه مال به هم محفوظه کيږي برابره ده مال د ده په قبضه کي وي یا د یو مسلمان او ذمي سره د امانت په توګه پروت وي؛ د هغه د ځان محفوظه کولو دليل دا دی چي اسلام ابتداءً یو څوک د بل چا مملوک نه جوړوي، ځکه چي د مسلمانېدلو په وجه بنده د الله تعالیٰ کامل مملوک وي لهذا په هغه کي به د بنده ملکيت نه داخليږي. ها! اسلام د بقاءً مملوک کېدلو منافي نه دی. او څرنګه چي د "الولد يتبع خير الأبوين دينًا" په وجه نابالغه أولاد د خپل پلار تابع کيږي، نو ځکه به د دې نوي مسلمان سړي په متابعت کي نابالغه أولاد د هغه تابع کيږي او هغه به هم مسلمانان وي او له قتل او مملوک کېدلو څخه به ساتل کيږي. پاته عبارت واضح دی.

**فإن ظهرنا إلخ:** د دې حاصل دا دی که چيري غازيان او مجاهدين پر دارُ الحرب غالب سي نو د دې نوي مسلمان عقار (جايداد) به "فيء" وي، يعني د غنيمت په مال کي به داخليږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به عقار د هغه (نوي مسلمان وي) او "فيء" به نه وي، وبه قال مالک وأحمد (بنايه). د امام شافعي دليل دا دی چي هغه پر دغه عقار قابض دی. لهذا څرنګه چي هغه د خپل منقوله جايداد مالک دی همداسي به د غير منقوله جايد (عقار) هم مالک وي. زموږ دليل دا دی چي پر عقار د هغه قبضه نه ده، ځکه چي پر عقار خو د اهلُ الحرب او د حرب د باچا قبضه وي او دا عقار له دارُ الحرب څخه شمارل کيږي او څرنګه چي دارُ الحرب فيء دی. لهذا عقار (غير منقوله جايداد) به هم فيء وي.

**وقيل: هذا إلخ:** ځيني حضرات فرمايي چي د دغه نوي مسلمان عقار "فيء" ګرځول له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دی. او عقار د نوي مسلمان مملوک ګرځول د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول وو. او دا اختلاف په حقيقت کي پر دې أصل مبني دي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر عقار حقيقي قبضه نه ثابتيږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر عقار هم حقيقي قبضه ثابتيږي.

وزوجته إلخ: فرمايي چي د دغه نوي مسلمان ښځه به هم فئ وي او که چيري هغه حامله وي نو زموږ په نېز به د هغې حمل هم فئ وي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به د هغې حمل فئ نه وي. بلکي څرنګه چي نابالغه بچی د پلار تابع کيږي او مسلمان شمارل کيږي، همداسي به حمل هم د پلار تابع کيږي او مسلمان به وي. زموږ دليل دا دی چي حمل د مور تابع دی او د هغې جزء دی او څرنګه مور رقيقه (تر غلامي لاندي) ده. لهذا حمل به هم رقيق وي. او که موږ د امام شافعي رَحِمَهُ الله په څير حمل د خپل پلار تابع وګرځوو او مسلمان يې ومنو نو بيا به هم رقيق وي، ځکه چي د بل چا په متابعت کي مسلمان مملوک او رقيق جوړېدای سي. د دې مثال دا دی لکه يو مسلمان چي د بل چا د مينځي سره نکاح وکړي نو که څه هم له دې نکاح څخه پيدا سوی بچی به د پلار په متابعت کي مسلمان وي لېکن د مور په وجه به هغه رقيق وي، همداسي به دا حمل هم د مور په وجه رقيق او فئ وي. ها! که چيري حمل پيدا سوی وي او له مور څخه جلا سوی وي. نو اوس به هغه آزاد وي، فئ به نه وي، ځکه چي تر انفصال وروسته جزئيت ختم سو.

او د دې نوي مسلمان بالغ أولاد به فئ وي، ځکه چي هغوی ټوله حربي کافران دي، او د غتوالي او بالغوالي په وجه د هغو په حق کي تبعيت معدوم دی، او هغوی د خپل مسلمان پلار اتباع هم کړې نه ده (او اسلام يې نه دي راوړی). همدارنګه که د دې نوي مسلمان سړي يو غلام د مسلمانانو سره قتال وکړي نو هغه به هم فئ وي، ځکه چي دا غلام د خپل مالک د نافرمانۍ کولو په وجه د هغه له قبضې څخه ووتی او د أهلُ الحرب تابع سو. او څرنګه چي د دارُ الحرب کفار فئ دي، لهذا دا غلام به هم فئ وي. همدارنګه که د دې نوي مسلمان مال د يو حربي کافر په قبضه کي وي نو هغه به هم فئ وي، برابره ده هغه مال حربي غصب کړی وي يا حربي ته د امانت په توګه پروت وي، ځکه چي د حربي قبضه د حفاظت او احترام قابله نه ده، او د هغه قبضه د مسلمانانو د قبضې په څير نه ده چي د هغه په وجه دي د حربي سره موجود مال محفوظ او محترم سي.

## د نوي مسلمان د مغصوب مال حکم

وَمَا كَانَ غَصْبًا فِي يَدِ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ او [د هغه نوي مسلمان] کوم مال چي د غصب په توګه د يو مسلمان يا ذمي په قبضه کي وي فَهُوَ فَيْءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز فئ دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: لَا يَكُونُ فَيْئًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه به فئ نه وي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: كَذَا ذَكَرَ الِاخْتِلَافُ فِي السِّيَرِ الْكَبِيرِ ناتوانه بنده وايي: چي امام محمد رَحِمَهُ الله په سير کبير کي هم داسي اختلاف بيان کړی دی وَذَكَرُوا فِي شُرُوحِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ قَوْلَ أَبِي يُوسُفَ مَعَ مُحَمَّدٍ او شارحينو د جامع صغير په شرح کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول د امام محمد رَحِمَهُ الله سره ذکر کړی دی لَهُمَا: أَنَّ

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٥٥). [القول الراجح ج:١، ص:٢٨٢]

الْمَالَ تَابِعٌ لِلنَّفْسِ د صاحبينو دليل دا دی: چې مال د نفس تابع وي وَقَدْ صَارَتْ مَعْصُومَةً بِإِسْلَامِهِ او د اسلام راوړلو په وجه نفس معصوم سو فَيَتْبَعُهَا مَالُهُ فِيهَا لهذا مال به په معصوموالي کې د نفس تابع وي وَلَهُ: أَنَّهُ مَالٌ مُبَاحٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا يو مباح مال دی فَيُمْلَكُ بِالِاسْتِيلَاءِ نو په قبضه کولو سره به هغه مملوک جوړيږي وَالنَّفْسُ لَمْ تَصِرْ مَعْصُومَةً بِالْإِسْلَامِ او د اسلام راوړلو په وجه نفس معصوم نه سو أَلَا تَرَى أَنَّهَا لَيْسَتْ بِمُتَقَوِّمَةٍ آيا ته نه ګورې! چې نفس متقوّم نه دی إِلَّا أَنَّهُ مُحَرَّمُ التَّعَرُّضِ فِي الْأَصْلِ لېکن أصلاً پر هغه تعرّض [او تجاوز] کول حرام دي لِكَوْنِهِ مُكَلَّفًا ځکه چې هغه مکلف دی وَإِبَاحَةُ التَّعَرُّضِ بِعَارِضِ شَرِّهِ او تعرض کول د هغه د شرّ د عارض په وجه مباح وو وَقَدِ انْدَفَعَ بِالْإِسْلَامِ او [اوس] د اسلام په وجه د هغه شرّ ليرې سو بِخِلَافِ الْمَالِ لِأَنَّهُ خُلِقَ عُرْضَةً لِلِامْتِهَانِ ځکه چې هغه [فقط] د خرچ کولو [خرچولو] لپاره پيدا سوی دی فَكَانَ مَحَلًّا لِلتَّمَلُّكِ نو ځکه به هغه د تملک محل وي وَلَيْسَتْ فِي يَدِهِ حُكْمًا او حکماً [هم] دا مال د هغه [نوي مسلمان] په قبضه کې نه دی فَلَمْ تَثْبُتِ الْعِصْمَةُ لهذا [په دې مال کې] عصمت ثابت نه سو.

**اللغات**: ﴿فئ﴾ د غنيمت مال. ﴿معصومة﴾ محفوظ. ﴿استيلاء﴾ قبضه. غلبه. ﴿التعرّض﴾ د تفعّل مصدر دی: په يو شي پسې کېدل. طلب کول. کار په لرل. ﴿عُرضة﴾ هدف. نښانه. ﴿امتهان﴾ د افتعال مصدر دی: له يو شي څخه خدمت اخيستل (په يو کار کې مصرفول). مراد ځني د مال مصرفول او خرچول دي. ﴿التملک﴾ د تفعّل مصدر دی: د يو شي مالک کېدل. مالک جوړېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دې که چيرې د يو نوي مسلمان کس مال بل مسلمان غصب کړی وي يا يو ذمي غصب کړی وي او مال د غاصب په قبضه کې وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به هغه "فئ" وي. لېکن د صاحبينو په نيز به "فئ" نه وي. بلکي د خپل مالک (صاحبُ المال) به وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د انسان مال د هغه د نفس تابع کيږي او د اسلام راوړلو په وجه د نوي مسلمان نفس معصوم او محفوظه سو. لهذا د هغه مال به هم محفوظه کيږي او فئ به نه وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې مال په اصل کې مباح وي او څوک چې پر هغه قبضه او غلبه وکړي مال د هغه په ملکيت کې شمارل کيږي. نو ځکه اوس پر دغه مال د غاصب قبضه ده او دا مال د نوي مسلمان له قبضې څخه خارج دی. لهذا دا به د هغه نه وي بلکي فئ به وي. او پاته سو د نفس معصوم

شمارل او مال د هغه تابع او معصوم ګرځول نو دا خبره موږ نه تسليموو. ځکه چې زموږ په نيز نفس د دومره درجې معصوم او محفوظ نه دی چې په بل شي کي عصمت (حفاظت) ثابت کړي. ځکه چې د دومره درجې عصمت په دارُ الاسلام سره ثابتيږي او دا مسئله د دارُ الحرب ده (يعني دغه نوي مسلمان په دارُ الحرب کي دننه اسلام راوړی دی) همدا وجه ده چې د دې نوي مسلمان نفس متقوّم نه دی او که يو مسلمان هغه قصداً يا خطاءً قتل کړي نو د هغه پر قاتل قصاص يا ديت نسته. خو څرنګه چې په نفسُ الأمر کي پر هغه تعرّض او تجاوز کول حرام دی ځکه چې هغه په احکامو مکلّف دی او له عصمت څخه بغير پر احکامو عمل کول ناممکن دي، لهذا په دې درجه کي موږ هغه معصوم منلی دی، او پر هغه تعرّض کول او د هغه قتلول په دې وجه مباح وو چې د هغه شرّ يعني کفر او حرب دفع سي. لېکن کله چې هغه اسلام راوړی نو دا إباحت هم ساقط سو او له تعرّض څخه د هغه نفس پاک سو.

د دې په خلاف د مال مسئله ده. نو مال خو فقط د خرچولو او صرفولو لپاره پيدا سوي دی. لهذا مال به په ملکيت کي د راتللو قابل وي. او څرنګه چې دا مال د صاحبُ المال يعني د نوي مسلمان په قبضه کي نه دی، بلکي د غاصب په قبضه کي دی او د هغه په حق کي د غاصب قبضه معتبره نه ده. لهذا په دې مال کي به معمولي غوندي عصمت هم نه ثابتيږي او هغه به فئ وي.

## له دارُ الحرب څخه دباندي د غنيمت مال استعمالول

وَإِذَا خَرَجَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ دَارِ الْحَرْبِ او کله چې مسلمانان له دارُ الحرب څخه ووځي لَمْ يَجُزْ أَنْ يَعْلِفُوا مِنَ الْغَنِيمَةِ وَلَا يَأْكُلُوا مِنْهَا نو د دوی لپاره جائز نه دي چې د غنيمت له مال څخه خپلو څاريو ته وابنه [خوراکه] ورکړي. او نه دي [په خپله] د غنيمت له مال څخه خوراک کوي لِأَنَّ الضَّرُورَةَ قَدْ ارْتَفَعَتْ ځکه چې ضرورت ختم سو وَالْإِبَاحَةُ بِاعْتِبَارِهَا او اباحت [روايېنت] د ضرورت په اعتبار سره ثابت وو وَلِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ تَأَكَّدَ او ځکه چې [د مجاهدينو] حق مضبوط [او مستحکم] سو حَتَّى يُوَرَّثَ نَصِيبُهُ همدا وجه ده [که اوس يو مجاهد مړ سي نو] د هغه حصه ميراث ګرځي [او وارثانو ته به ورکول کيږي] وَلَا كَذٰلِكَ قَبْلَ الْإِخْرَاجِ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او [له دارُ الحرب څخه] دارُ الاسلام ته تر راوتلو مخکي حکم دا نه دی وَمَنْ فَضَلَ مَعَهُ عَلَفٌ أَوْ طَعَامٌ او د کوم کس [مجاهد] سره چې د څاريو وابنه يا خوراک اضافه پاته سي رَدَّهُ إِلَى الْغَنِيمَةِ نو هغه دي غنيمت ته واپس کړي [يعني

هغه دي د غنيمت په مال کي واپس کښېږدي ا مَعْنَاهُ: إِذَا لَمْ تُقَسَّمْ د دې مطلب دا دی: چي کله غنيمت تقسيم سوی نه وي وَعَنِ الشَّافِعِيِّ مِثْلُ قَوْلِنَا او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه زموږ د قول په څير روايت سوی دی وَعَنْهُ: أَنَّهُ لَا يَرُدُّ او له هغه څخه ادويم قول ا دا روايت سوی دی: چي امجاهد به پاته سوې خوراکه غنيمت ته ا نه واپس کوي اعْتِبَارًا بِالْمُتَلَصِّصِ پر غله باندي په قياس کولو سره وَلَنَا: أَنَّ الِاخْتِصَاصَ ضَرُورَةُ الْحَاجَةِ زموږ دليل دا دی: چي اختصاص د حاجت په وجه دی وَقَدْ زَالَتْ او حاجت ختم سو بِخِلَافِ الْمُتَلَصِّصِ په خلاف د غله لِأَنَّهُ كَانَ أَحَقَّ بِهِ قَبْلَ الْإِحْرَازِ ځکه چي هغه تر إحراز مخکي د دې حقداره وو فَكَذَا بَعْدَهُ لهذا تر إحراز وروسته به هم اهغه د دې ا حقداره وي وَبَعْدَ الْقِسْمَةِ تَصَدَّقُوا بِهِ إِنْ كَانُوا أَغْنِيَاءَ او تر تقسيم وروسته که مجاهدين مالداره وي نو هغه [پاته سوې خوراکه] دي صدقه کړي وَانْتَفَعُوا بِهِ إِنْ كَانُوا مَحَاوِيجَ او که محتاجه وي نو ا په خپله ا دي له هغه څخه نفع واخلي لِأَنَّهُ صَارَ فِي حُكْمِ اللُّقَطَةِ ځکه چي هغه د لقطې په حکم کي سو لِتَعَذُّرِ الرَّدِّ عَلَى الْغَانِمِينَ ځکه چي پر مجاهدينو واپس کولو مشکل دي وَإِنْ كَانُوا انْتَفَعُوا بِهِ بَعْدَ الْإِحْرَازِ او که په دارُ الاسلام کي تر جمع کولو [او راوړلو] وروسته مجاهدينو له هغه څخه نفع اخيستې وي تُرَدُّ قِيمَتُهُ إِلَى الْمَغْنَمِ إِنْ كَانَ لَمْ يُقَسَّمْ نو د هغه قيمت به د غنيمت مال ته واپس کيږي که چيري د غنيمت مال تقسيم سوی نه وي وَإِنْ قُسِّمَتِ الْغَنِيمَةُ او که غنيمت تقسيم وی وي فَالْغَنِيُّ يَتَصَدَّقُ بِقِيمَتِهِ نو مالدار مجاهد به د هغه قيمت صدقه کوي وَالْفَقِيرُ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او پر غريب مجاهد هيڅ شی نسته لِقِيَامِ الْقِيمَةِ مَقَامَ الْأَصْلِ ځکه چي قيمت د أصل قائم مقام دی فَأَخَذَ حُكْمَهُ نو قيمت د أصل حکم واخيستی ايعني د قيمت حکم د أصل د حکم په څير سو ا.

**اللغات**: ﴿يعلفوا﴾ د ضرب مضارع ده: څاروي ته واښه ورکول، خوراکه ورکول. ﴿تأكد﴾ د تفعل ماضي ده: مضبوطېدل، پخېدل (ټينګېدل). ﴿فضل﴾ د نصر له باب څخه د ماضي صيغه ده: باقي پاتېدل، اضافه کېدل، زياتېدل. ﴿متلصص﴾ د تفعل اسم فاعل دی: غل. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول، ذخيره کول، جمع کول. ﴿محاويج﴾ دا جمع د مُحْوِجٌ ده کوم چي د افعال د باب

اسمِ فاعل دی. په اصل کي د دې جمع مُحْوِجُوْن راځي خو عرب يې "محاويج" استعمالوي لکه مفاطير او مفاليس. د مُحْوِجٌ معنیٰ ده: محتاج، غريب. (مصباح المنير). ﴿لقطة﴾ په لاره کي لوېدلی مال، په لاره کي غورځول سوی مال (هغه مال او سامان کوم چي په لاره کي پروت وي او مالک يې معلوم نه وي، که يو څوک لقطه پيدا کړي، نو د هغه حکم دا دی چي که پيدا کونکی مالدار وي، نو لقطه دې صدقه کړي، او که غريب وي، نو هغه دي په خپله استعمال کړي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د مجاهدينو لپاره د غنيمت له مال څخه د مطعوماتو او داسي نورو د استعمالولو اجازه په دارُ الحرب کي دننه سته، لېکن له دارُ الحرب څخه تر وتلو وروسته د دوی لپاره د غنيمت له مال څخه نه خپلو ځاروېو ته د واښه او خوراکه ورکولو اجازه سته او نه يې په خپله د خوړلو اجازه سته؛ ځکه چي دا اباحت او اجازه د ضرورت پر بناء ثابته وه، او ضرورت ختم سو. نو ځکه به اوس د دې استعمال اجازه نه وي. او بل دا چي د إحراز په وجه په دې غنيمت کي د مسلمانانو حق پوخ او مؤکّد سو او په دې کي اشتراک مضبوط سو. او که چيري اوس يو مجاهد مړ سي نو د هغه حصه ميراث ګرځي، لهذا اوس خو به د دې استعمال بيخي صحيح نه وي. ها! څرنګه چي په دارُ الاسلام کي تر إحراز مخکي (يعني په دارُ الحرب کي دننه) حق او اشتراک دومره پوخ او مضبوط نه وي او هلته ضرورت او حاجت هم وي، نو ځکه به په هغه حالت کي د غنيمت له مال څخه د ضرورت شيان استعمالول مباح وي.

**ومن فضل معه إلخ:** فرمايي که چيري په دارُ الحرب کي د غنيمت مال تقسيم سوی نه وی او مجاهدينو د خپل ځان يا د خپلو ځاروېو لپاره د خوراک څه شيان ساتلي وي او هغه تر اوسه پاته وي، نو هغوی ته پکار دي چي له دارُ الحرب څخه د وتلو په وخت کي هغه شيان د غنيمت په مال کي واپس کښېږدي، دا حکم زموږ په نېز دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې سلسله کي دوه قوله دي: ① يو قول يې زموږ د قول په څېر دی، ② دويم قول يې دا دی چي هغه دي نه واپس کوي، دا قول د غله (سارق) پر غلا باندي قياس دی، يعني که د امام له اجازې څخه بغير يو څوک له دارُ الحرب څخه مال غلا کړي نو پر هغه باندي لازم نه دي چي دا مال په غنيمت کي جمع کړي، همدغسي پاته سوې خوراکه او غله واپس کول هم پر غازيانو لازم نه دي.

**ولنا أن الاختصاص إلخ**: زموږ دليل دا دی چې د ځينې مجاهدينو لپاره د ضرورت او حاجت پر بناء دغه مشترک مال (مالِ غنيمت) مباحُ الاستعمال گرځول سوی وو (د اختصاص مطلب دا دی چې کوم مجاهدينو د مالِ غنيمت استعمالولو ته حاجت او ضرورت درلودی، د مالِ غنيمت اباحت د هغو سره خاص وو). او دا ضرورت اوس ختم سو، لهذا اباحت به هم ختميږي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس (يعني دا د سارق پر مال قياسول) صحيح نه دي، ځکه چې هغه تر إحرز مخکي هم د دې مال مستحق وو، لهذا تر إحراز وروسته به هم د دې مال مستحق هغه وي. حال دا چې په دې مسئله کي فقط تر إحراز وروسته ټوله مجاهدين په مالِ غنيمت کي په پوره توگه شريک گرځي او د هغوی شرکت مضبوطيږي، لهذا منفرد مال پر مشترک مال قياسول صحيح نه دي.

**وبعد القسمة إلخ**: پورتنی حکم او تفصيل خو د هغه صورت سره متعلق وو کله چې امام د غنيمت مال تقسيم کړی نه وي، ليکن که امام هغه د مجاهدينو په مينځ کي تقسيم کړی وي. او بيا د دوی سره څه خوراکه او غلّه اضافه پاته سي، نو که چيري مجاهد مالدار وي نو هغه دي صدقه کړي او که محتاج او تنگلاسی وي نو هغه دي په خپله استعمال کړي، ځکه چې دا مال د لُقطې (غورځول سوي مال) په څير سو. او څرنگه چې ټوله مجاهدين متفرق سوي او جلا سوي دي. لهذا هر يوه ته د هغه واپس کول مشکل دي. لهذا اوس آسانه لاره همدا ده چې يا هغه صدقه کړي يا يې د حاجت په صورت کي په خپله استعمال کړي. دا حکم د دارُ الحرب دی.

او که دارُ الاسلام ته تر راوړلو وروسته مجاهدين هغه پاته سوې غله او خوراکه استعمال کړي او غنيمت تر اوسه تقسيم سوی نه وي، نو په دې صورت کي به مجاهدين د دې غلې او سامان قيمت په مالِ غنيمت کي جمع کوي، ځکه چې دا غلّه مشترکه ده، او د ټولو مجاهدينو حق د هغه سره متعلق دی. او که چيري غنيمت تقسيم سوی وي، نو مالدار مجاهد به د هغه قيمت صدقه کوي او که چيري مجاهد محتاج او غريب وي نو پر هغه هيڅ شی نه لازميږي، ځکه چې قيمت د "أصل" قائم مقام دی. او څرنگه چې د غريب مجاهد لپاره "أصل" مباحُ الاستعمال دی. لهذا د هغه قيمت به هم مباحُ الاستعمال وي. فقط والله أعلم وعلمهُ أتم



# فَصْلٌ فِيْ كَيْفِيَّةِ الْقِسْمَةِ

(دا) فصل د (غنيمت) تقسيمولو د كيفيت (په بيان كي) دى

## خُمس ايستل او د شهسوار د حصې بحث

قال: وَيُقَسِّمُ الْإِمَامُ الْغَنِيمَةَ فَيُخْرِجُ خُمُسَهَا فرمايي: او امام به غنيمت تقسيم كړي او له هغه څخه به خمس [پنځمه حصه] وباسي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: فَإِنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ [الأنفال: ٤١] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: نو [د غنيمت] يو خمس به د الله [او د رسول] لپاره وي اسْتَثْنَى الْخُمُسَ [په دې آيت كې] الله تعالىٰ د يوه خمس استثناء كړې ده وَيُقَسِّمُ الْأَرْبَعَةَ الْأَخْمَاسِ بَيْنَ الْغَانِمِينَ او پاته څلور خُمسونه به د مجاهدينو په مينځ كي تقسيموي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] قَسَّمَهَا بَيْنَ الْغَانِمِينَ ځكه چي نبي كريم ﷺ هغه د مجاهدينو په مينځ كي تقسيم كړي وو ثُمَّ لِلْفَارِسِ سَهْمَانِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د شهسوار لپاره [يعني پر آس د جنګ كونكي مجاهد لپاره] دوې حصې دي او د پياده جنګ كونكي لپاره يوه حصه ده وَقَالَا [2]: لِلْفَارِسِ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي: چي د فارس لپاره درې حصې دي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى لِمَا رَوَى ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَسْهَمَ لِلْفَارِسِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمًا د هغه حديث په وجه كوم چي له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت سوى دى: چي نبي كريم ﷺ فارس ته درې حصې وركړې او رَاجِل ته يې يوه حصه وركړه وَلِأَنَّ الِاسْتِحْقَاقَ بِالْغَنَاءِ او ځكه چي [د غنيمت] استحقاق د كفايت [او په كار راتللو] په اندازه وي [يعني چي هغه څومره اندازه په كار راځي او څومره كار كوي. د هغه په اندازه به د غنيمت مستحق وي] وَغَنَاؤُهُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَمْثَالِ الرَّاجِلِ او فارس

---

● تخريج: أخرجه طبراني في معجمه.

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٥٦)، وكذا في البحر الرائق (ج:٥، ص:٨٨) [القول الراجح ج:١، ص:٢٨٢]

د دریو پیاده وو په اندازه کفایت کوي [یعني فارس د راجل په مقابله کې د دریو خلکو په څیر کارو او د دریو کارونو لپاره په کار راځي] لِأَنَّهُ لِلْكَرِّ وَالْفَرِّ وَالثَّبَاتِ ځکه چې فارس د حمله کولو لپاره [هم] دی او د ځغستلو لپاره [هم] دی او [پر یوه ځای] د ږېدلو [هم] دی وَالرَّاجِلُ لِلثَّبَاتِ لَا غَيْرُ او راجل فقط پر یوه ځای د ږېدلو [او ثابت قدم پاتېدلو] لپاره دی. نه د بل شي لپاره وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ مَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنه: أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام ❷ أَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ وَالرَّاجِلَ سَهْمًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل هغه حدیث دی کوم چې له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت سوی دی: چې نبي کریم ﷺ فارس ته دوې حصې ورکړې او راجل ته یې یوه حصه ورکړه فَتَعَارَضَ فِعْلَاهُ نو د نبي کریم ﷺ دوه فعلونه متعارض سول فَيُرْجَعُ إِلَى قَوْلِهِ نو ځکه به د نبي کریم ﷺ د قول وطرفه ته رجوع کیږي وَقَدْ قَالَ: عليه السلام ❸: لِلْفَارِسِ سَهْمَانِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمٌ او نبي ﷺ فرمایلي دي: چې د فارس لپاره دوې حصې دي او د راجل لپاره یوه حصه ده كَيْفَ وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه: أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام ❹ قَسَّمَ لِلْفَارِسِ سَهْمَيْنِ او څرنګه صاحبین رَحِمَهُمَا الله د ابن عمر رضي الله عنه په حدیث سره دلیل نیولای سي حال دا چې له هغه څخه دا روایت هم سوی دی: چې نبي کریم ﷺ فارس ته دوې حصې او راجل ته یوه حصه تقسیم کړه وَإِذَا تَعَارَضَتْ رِوَايَتَاهُ او کله چې د ابن عمر رضي الله عنه دوه روایتونه متعارض سول تُرَجَّحُ رِوَايَةُ غَيْرِهِ نو د بل راوي روایت به راجح کیږي وَلِأَنَّ الْكَرَّ وَالْفَرَّ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ او ځکه چې کرّ او فرّ [دوړه] له یوه جنس څخه دي فَيَكُونُ غِنَاؤُهُ مِثْلَيْ غِنَاءِ الرَّاجِلِ لهذا د فارس کفایت [اوکار] به د راجل له کار څخه دوچنده وي [مطلب د چې فارس د راجل په مقابله کې فقط د دوو کارونو لپاره

---

❷ تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الجهاد، باب سهام الفرس، رقم الحديث:٢٨٦٣.

❸ تخریج: ستر محقق صاحب د اثمار الهدایې فرمایي: چې دغه حدیث د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا نه دی. بلکې د مجمع بن حارثه رضي الله عنه دی. نو په دې وجه شارحین په شک کې لوېدلي دي او ډېر اختلاف یې کړی دی. دا خبره تاسې په یاد لرئ! چې د علامه مرغیناني رَحِمَهُ الله عادت دا دی چې کله نا کله د حدیث معنی ذکر کوي (یعني په خپلو الفاظو سره د هغه مفهوم او معنی ذکر کوي) نو ځیني حضرات دا فکر وکړي چې شاید دا حدیث به ډېر غریب وي، لېکن هغه حدیث بالکل په قطعي توګه په صحیح روایت سره ثابت وي. دغه حدیث په ابوداؤد شریف کې داسې ذکر سوی دی: عن عمّه مجمع بن حارثة.....فأعطى الفارس سهمين وأعطى الراجل سهمًا. (ابو داؤد شريف، باب فيمن أسهم له سهما، ص:٣٩٨، رقم الحديث:٢٧٣٦).

❹ تخریج: أخرجه دار قطني في سننه رقم:١٩ ج٤ ص:٦١، رقم الحديث:٤١٣٨.

په كار راځي، نه د دريو كارونو لپاره] فَيَفْضُلُ عَلَيْهِ بِسَهْمٍ نو ځكه به فارس پر راجل يوه حصه زيات وي [يعني هغه به له راجل څخه فقط يوه حصه لوړ وي] وَلِأَنَّهُ تَعَذَّرَ اعْتِبَارُ مِقْدَارِ الزِّيَادَةِ او ځكه چي د زياتوب د مقدار اعتبار كول متعذر دي لِتَعَذُّرِ مَعْرِفَتِهِ ځكه چي د هغه معلومول [او شمارل] متعذر دي فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى سَبَبٍ ظَاهِرٍ لهذا د حكم مدار به پر ظاهري سبب وي وَلِلْفَارِسِ سَبَبَانِ: اَلنَّفْسُ وَالْفَرَسُ او د فارس په حق كي دوه ظاهري سببونه دي: ① د هغه نفس ② او د هغه آس وَلِلرَّاجِلِ سَبَبٌ وَاحِدٌ او د راجل په حق كي يو ظاهري سبب دى فَكَانَ اسْتِحْقَاقُهُ عَلَى ضِعْفِهِ لهذا د فارس استحقاق به پر راجل دوچنده وي [يعني فارس به له راجل څخه د دوچنده مال مستحق وي].

**اللغات**: ﴿خُمُس﴾ او خُمْس: پنځمه حصه. ﴿فارس﴾ پر آس سپور. شهسوار (شاهسوار). مراد ځني هغه مجاهد دى چي د كفارو سره پر آس جنګ كوي. ﴿راجل﴾ په پښو تلونكى. پياده تلونكى. مراد ځني پياده جنګ كونكى مجاهد دى. ﴿أسهم﴾ د افعال ماضي ده: حصه وركول. د يو چا لپاره حصه مقرر كول (ټاكل). ﴿الغناء﴾ كفايت، كافي كېدل، په كار راتلل. ﴿الكرّ﴾ د نصر اسم مصدر دى: (پر دښمن) راتاوېدل او حمله پر كوله. راګرځېدل او حمله پر كول (يعني پر دښمن آس رتاوول او ناڅاپه وار پر كول). ﴿الفرّ﴾ د ضرب اسم مصدر دى: تښتېدل، مراد ځني تېز ځغستل او منډه وهل دي. (صاحب د مصباحُ المنير وايي چي كله دا لفظ د "فارس" سره ذكر سي، نو بيا دا معنىٰ وركوي چي "شهسوار په دې غرض له دښمن څخه آس وځغلوي چي څه ليري يو دم د آس مخ راوګرځوي او بيرته په تېزه پر دښمن راسي او حمله پر وكړي. ج:٢، ص:٤٦٧). ﴿يُدار﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: مدار كېدل. ﴿ضِعف﴾ دوچنده.

**تشريح**: د مخكني باب "بابُ الغنائم" په ضمن كي دا خبره ذكر سوه چي د غنيمت مال په به پنځه حصې كيږي چي له هغو څخه به يوه حصه د الله او د رسول وي او پاته څلور حصې به په مجاهدينو كي تقسيمول كيږي، ځكه چي د قرآن كريم په دې آيت "وَاعْلَمُوْا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ" كي د يوه خمس استثناء سوې ده.

**ثم للفارس الخ**: دا ډېره اختلافي مسئله ده، په دې كي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله مشهور اختلاف دى چي د هغه حاصل دا دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به فارس ته يعني آس لرونكي

او پر آس جنګ کونکي مجاهد به ته دوې حصې ورکول کیږي او رَاجِل یعنې پیاده جنګ کونکي ته به یوه حصه ورکول کیږي، لیکن د صاحبینو او د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نیز به فارس ته درې حصې ورکول کیږي او رَاجِل ته به یوه حصه ورکول کیږي.

**د صاحبینو دلیـل:** د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حدیث دی نبي ﷺ فارس ته دري حاصې ورکړي او رَاجِل ته یې حصه ورکړي، او د نبي ﷺ دا عمل د دې خبرې دلیل دا دی چې فارس د دریو حصو حقدار دی.

د صاحبینو عقلي دلیل دا دی چې د مال غنیمت استحقاق د کفایت او کار په اعتبار سره دی (یعنې جنګ کونکي [مجاهد] چې څومره کار کوي هغومره د غنیمت مستحق ګرځي)، او فارس د جنګ په ډګر کې د دریو کارونو لپاره په کار راځي: ① پر دښمن باندې د حمله کولو لپاره. ② د څغستا (او منډه وهلو) لپاره (د "کر" او فرّ" تعریف په لغاتو کې ذکر سو)، ③ او که موقع او ضرورت وي نو پر یوه ځای د درېدلو (او ثابت قدم پاتېدلو) لپاره، او راجل فقط یو کار کوي، یعنې په ثابت قدمۍ سره جنګ کوي (مطلب دا چې پر یوه ځای ولاړ وي جنګ کوي "کرّ" او "فرّ" نه سي کولای)، نو ګواکې د راجل په مقابله کې فارس د دریو خلګو په اندازه کار کوي، لهذا هغه ته به د دریو خلګو په اندازه حصه هم ورکول کیږي.

**د امام صاحب دلیل:** هغه حدیث دی کوم چې له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روایت سوی دی چې نبي کریم ﷺ فارس ته دوې حصې ورکړې او راجِل ته یې یوه حصه ورکړه. او څرنګه چې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په روایت کې فارس ته د "دریو حصو ورکول" ذکر سوي دي . نو د نبي ﷺ په فعل کې تعارض راغلی، او قاعده دا ده چې کله په فعل کې تعارض راسي نو د قول وطرف ته رجوع کیږي، او د نبي ﷺ له قول څخه دا ثابت دي چې "لِلْفَارِسِ سَهْمَانِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمٌ" . او بل دا چې د ابن ابی شیبه په روایت کې په خپله له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه نقل سوي دي چې نبي ﷺ فارس ته دوې حصې ورکړې، او قاعده دا ده چې کله د یوه راوي دوه روایتونه سره متعارض سي نو د بل راوي په روایت به عمل کیږي، لهذا د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حدیث سره د صاحبینو دلیل نیول او فارس د دریو حصو مستحق ګرځول صحیح نه دي.

ولأن الكرّ إلخ: د صاحبینو او نورو حضراتو د عقلي دلیل جواب دا دی چې "کرّ" یعنې "حمله کول" او "څغستل" دا دواړه کارونه یو شی او له یوه جنس څخه دي، ځکه چې عموماً د حمله کولو لپاره.. شاته او مخته تللو ضرورت پیښیږي (یعنې د دې ضرورت پیښیږي چې انسان له دښمن آس څخه وځغلوي د دې لپاره چې دلیري خوا په تېزۍ سره پر دښمن آس را وځغلوي او ګذار پر وکړي)، کنې د جنګ له ډګر څخه

ځغستل او د فرار لاره اختيارول خو بالكل جائز نه دي، لهذا "كَرّ" او "فَرّ" يو شى سو او د فارس دويم كار ثبات سو، نو د هغه كارونه درې نه دي بلكې دوه دي، لهذا په دې حواله سره به هم هغه ته دوې حصې وركول كيږي درې حصې به نه وركول كيږي، يعنې د راجل په مقابله كې به هغه ته فقط يوه حصه زياته وركول كيږي.

د امام صاحب عقلي دليل دا دى چې فارس د راجل په مقابله كې څومره زيات كار كوي دغه زياتوب معلومول او د هغه اعتبار كول ناممكن او ستونزمن دي، ځكه چې د هغه شمارل او اندازه كول مشكل دي، نو ځكه به د غنيمت د حكم دار ومدار پر ظاهري سبب وي، او ظاهري سبب د فارس په حق كې دوه دي (يعني د فارس په حق كې دوه ظاهري سببونه دي): ① د هغه نفس، ② د هغه آس. نو ځكه به هغه د دوو حصو حقداره وي، او د راجل په حق كې ظاهري فقط يو دى يعني نفس. نو ځكه به هغه فقط د يوې حصې حقداره وي.

## شهسوار ته د خپلو آسونو په اندازه د حصې وركولو مسئله

وَلَا يُسْهَمُ إِلَّا لِفَرَسٍ وَاحِدٍ فرمايي: او فقط د يوه آس حصه به وركول كيږي [د طرفينو په نېز] وَقَالَ ❁: أَبُويُوسُفَ: يُسْهِمُ لِفَرَسَيْنِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې د دوو آسونو حصه به وركول كيږي لِمَا رُوِيَ ❶ أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام أَسْهَمَ لِفَرَسَيْنِ ځكه روايت سوى دى چې نبي كريم ﷺ د دوو آسونو حصه وركړه وَلِأَنَّ الْوَاحِدَ قَدْ يَعْيَى فَيَحْتَاجُ إِلَى الْآخَرِ او ځكه چې كله يو آس ستړى كيږي نو د دويم ضرورت پيدا كيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْبَرَاءَ بْنَ أَوْسٍ قَادَ فَرَسَيْنِ فَلَمْ يُسْهِمْ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم ❷ إِلَّا لِفَرَسٍ وَاحِدٍ د طرفينو دليل دا دى: چې حضرت براء بن اوس رضي الله عنه [جنګ ته] دوه آسونه راوستي وو لېكن نبي كريم هغه ته فقط د يوه آس حصه وركړه وَلِأَنَّ الْقِتَالَ لَا يَتَحَقَّقُ بِفَرَسَيْنِ دَفْعَةً وَاحِدَةً او ځكه چې په يوه وار پر دوو آسونو قتال كول ثابتېداى نه سي فَلَا يَكُونُ السَّبَبُ الظَّاهِرُ مُفْضِيًا إِلَى الْقِتَالِ عَلَيْهِمَا لهذا پر دواړو آسونو به قتال كول د غنيمت د استحقاق ظاهري سبب نه وي فَيُسْهِمُ

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في الهندية (ج:٢، ص:٢١٢)، وكذا في الخانية (ج:٢، ص:٢٦٣). [القول الراجح ج:١، ص:٤٨٥]

❶ تخريج: أخرجه دار قطني في سننه (رقم:١٦ ج:٤ ص:٥٩، رقم الحديث:٤١٣١).

❷ تخريج: د دې حديث په معنى سره يو حديث د عبدالله بن زبير په حواله سره په دار قطني كې ذكر سوى دى (دار قطني، ج:٤، ص:٦٢، رقم الحديث:٤١٤٣).

لِوَاحِدٍ نو ځکه به [فقط] د يوه آس حصه ورکول کيږي وَلِهٰذَا لَا يُسْهِمُ لِثَلَاثَةِ أَفْرَاسٍ همدا وجه ده چي د دريو آسونو حصه نه ورکول کيږي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى التَّنْفِيلِ او کوم حديث چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه د "نفل" پر ورکولو [يعني پر انعام ورکولو] محمول دی كَمَا أَعْطَى سَلَمَةَ بْنَ الْأَكْوَعِ سَهْمَيْنِ وَهُوَ رَاجِلٌ لکه څرنګه چي نبي کريم ﷺ حضرت سلمه بن الأکوع رضي الله عنه ته دوې حصې ورکړې، حال دا چي هغه راجل [پياده جهاد کونکی] وو وَالْبَرَاذِيْنُ وَالْعِتَاقُ سَوَاءٌ او عجمي [دېسي] آس او خالص عربي آس دواړه سره برابر دي لِأَنَّ الْإِرْهَابَ مُضَافٌ إِلَى جِنْسِ الْخَيْلِ فِي الْكِتَابِ ځکه چي په قرآن کريم کي "بېرول" د آس د جنس وطرف ته مضاف سوی دی قال: اللهُ تَعَالَى: وَمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللهِ وَعَدُوَّكُمْ [الأنفال: ٦٠] الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسي هغه آسونه تيار کړئ! چي د هغه په ذريعه تاسي د الله دښمنان او خپل دښمنان وبېروئ! وَاسْمُ الْخَيْلِ يُطْلَقُ عَلَى الْبَرَاذِيْنِ وَالْعِتَاقِ وَالْهَجِيْنِ وَالْمُقْرِفِ إِطْلَاقًا وَاحِدًا او د "خيل" لفظ پر عجمي آس، عربي آس، هجين او مقرف ټولو باندي په مساوي توګه ويل کيږي [يعني دغه ټولو آسونو ته "خيل" ويل کيږي] وَلِأَنَّ الْعَرَبِيَّ إِنْ كَانَ فِي الطَّلَبِ وَالْهَرَبِ أَقْوَى او ځکه چي عربي آس که څه هم په حمله کولو او ځغستلو کي قوي [پالوان] وي فَالْبِرْذَوْنُ أَصْبَرُ وَأَلْيَنُ عَطْفًا نو عجمي آس بيا زيات صبرناک وي او د هغه را تاوول [يعني د هغه مخ راګرځول] ډېر آسانه وي [او د هغه په طبيعت کي نرمي وي] فَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَنْفَعَةٌ مُعْتَبَرَةٌ نو له دوی څخه په هر يوه کي معتبر منفعت سته فَاسْتَوَيَا نو ځکه به دوی دواړه [په حکم کي] سره برابر وي.

**اللغات:** ﴿قَادَ﴾ د نصر ماضي ده. قاد الفرس: د مخ لخوا آس کشول، آس بېول، آس روانول. ﴿إرهاب﴾ د افعال مصدر دی: بېرول، ډارول، ترهول. ﴿خَيْل﴾ آس. ﴿رباط﴾ تړل. ﴿أَلْيَن﴾ ډېر نرم (يعني دېسي آس ډېر نرم وي په طبيعت کي يې شوخي نه وي). ﴿عطفًا﴾ د ضرب مصدر دی: ګرځېدل، د سپارلي (آس) قيزه کشول او راګرځول (يعني د آس قيزه راکشول او د هغه مخ بل طرف ته اړول). ﴿براذين﴾ عجمي آس، ترکي آس، هغه آس چي په جنګ کي په کار راځي لېکن په قد کي لږ کوچني وي نو داسي آس ته براذين يعني عجمي يا ديسي آس وايي. او اوږده قد والا آس ته عتاق

يعني عربي او اصلي آس وايي. (أثمار الهداية)، ﴿هجين﴾ هغه آس چې له عجمي آس او عربي آسپې ځخه پیدا سوی وي (يعني پلار يې عجمي وي او مور يې عربي وي)، ﴿مقرف﴾ هغه آس چې له عربي آس او عجمي آسپې ځخه پیدا سوی وي (يعني پلار يې عربي وي او مور يې عجمي وي). په مصباحُ اللغات کې د دې دوو لفظونو (هجين او مقرف) تعريف د دې برعکس سوی دی، خو زياتره قاموسونو يې همدغه تعريف کړی دی کوم چې موږ ذکر کړی.

**تشريح: صورت مسئلې**: دا دی چې فارس ته به فقط يوه حصه ورکول کيږي که څه هم د هغه سره دوه آسونه وي، دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی، همدا د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دی، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي که چيري فارس د ځان سره دوه آسونه را روان کړي وي او په جنګ کې يې شرکت کړی وي او په دوو آسونو سره هغه جهاد کوي، نو هغه ته به د دواړو آسونو حصه ورکول کيږي.

**د امام ابو يوسف دليل**: د عمرو بن محصن حديث دی چې په هغه کې ذکر سوي دي چې نبي کريم ﷺ عمرو بن محصن ته "چې د هغه سره دوه آسونه وو" څلور حصې ورکړې، ښکاره خبره ده چې که د دوو آسونو حصه ورکول صحيح نه وای، نو نبي ﷺ به هغه ته څلور حصې نه ورکولای. د دې عقلي دليل دا دی چې کله نا کله يو آس ستړی کيږي او د دويم آس ضرورت پيښيږي، لهذا هغه ته به هم له غنيمت ځخه حق ورکول کيږي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چې حضرت براء بن أوس ﷺ د دوو آسونو سره د جهاد په ميدان کې وکړی، لېکن نبي کريم ﷺ هغه ته فقط د يوه آس حصه ورکړه، له دې ځخه معلومه سوه چې فقط د يوه آس حصه به ورکول کيږي، نه د دوو.

د دوی عقلي دليل دا دی چې په يوه وار فقط په يوه آس سره جنګ او قتال کيږي. نه په دوو آسونو سره، او ستحقاق د قتال په وجه ثابتيږي، لهذا د دوو آسونو والا ته به درې حصې نه بلکې دوې حصې ورکول کيږي؛ ځکه چې انعام د کار په اندازه ورکول کيږي نه د شمېر او تعداد په اعتبار سره، همدا وجه ده که يو ځوک درې يا ځلور آسونه د ځان سره بوځي او په جنګ کې شرکت وکړي نو هغه ته به د تعداد په اعتبار سره حصه نه ورکول کيږي، بلکې فقط د يوه آس حصه به ورکول کيږي. پاته سو د عمرو بن محصن حديث کوم چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خپل دليل کې ذکر کړی دی، نو د هغه جواب دا دی چې نبي کريم ﷺ عمرو بن محصن ته انعام ورکړی همدا وجه ده چې د دوو آسونو په عوض کې يې څلور حصې ورکړې حالانکې هغه فقط د دوو حصو حقدار وو، او د انعام په توګه ورکول له نبي کريم ﷺ ځخه ثابت هم دي، لکه څرنګه چې سلمه بن الأکوع ته نبي کريم ﷺ دوې

حصې ورکړې حالانکې هغه راجل وو او فقط د يوې حصې حقدار وو، لهذا په دې حديث سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل نيول صحيح نه دي.

**والبرذين إلخ:** فرمايي چې عجمي او عربي دواړه قسمه آسونه د غنيمت په استحقاق کې سره برابر دي؛ ځکه په دې آيت "وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللهِ...إلخ" کې چې کوم د إرهاب حکم جاري سوی دی دا إرهاب د مطلق خَيْل وطرف ته منسوب دی او په مطلق خَيل کې براذين او عتاق او داسې نور ټول آسونه داخل دي، لهذا د غنيمت په استحقاق کې به هم ټول داخل او برابر وي.

د دې سلسلې عقلي دليل دا دی چې که څه هم عربي آس په حمله کولو او په ځغستلو کې قوي او ماهر وي، نو عجمي او د بسې آس بيا زيات صبرناک وي او هغه د دښمن د وار په زغملو کې قوي وي او بل دا چې د هغه په طبيعت کې شوخي نه وي بلکې نرمي وي او د هغه را ګرځول آسانه وي. لهذا دواړه آسونه په منفعت کې سره برابر دي، لهذا د منفعت په حصول يعني په غنيمت کې به هم دواړه سره برابر وي.

## د شهسورا تفصيل او تعريف

**وَمَنْ دَخَلَ دَارَ الْحَرْبِ فَارِسًا فَنَفَقَ فَرَسُهٗ** او کوم [مجاهد] چې دارُ الحرب ته په داسې حالت کې داخل سي چې پر آس سپور وي، بيا د هغه آس هلاک سي **اسْتَحَقَّ سَهْمَ الْفُرْسَانِ** نو هغه به د شهسوارانو د حصې مستحق وي **وَمَنْ دَخَلَ رَاجِلًا فَاشْتَرَى فَرَسًا** او کوم [مجاهد] چې په داسې حالت کې [دارُ الحراب ته] داخل سي چې هغه پياده وي، بيا آس رانيسي **اسْتَحَقَّ سَهْمَ رَاجِلٍ** نو هغه به د راجل د حصې مستحق وي **وَجَوَابُ الشَّافِعِيِّ عَلٰى عَكْسِهٖ فِي الْفَصْلَيْنِ** او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کې حکم د دې برعکس دی **وَهٰكَذَا رَوَى ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِي الْفَصْلِ الثَّانِيْ أَنَّهٗ يَسْتَحِقُّ سَهْمَ الْفُرْسَانِ** او په دويم صورت کې ابن المبارک هم د دې برعکس روايت کړی دی چې هغه به د شهسوارانو د حصې مستحق وي **وَالْحَاصِلُ: أَنَّ الْمُعْتَبَرَ عِنْدَنَا حَالَةُ الْمُجَاوَزَةِ وَعِنْدَهٗ حَالَةُ اِنْقِضَاءِ الْحَرْبِ** خلاصه دا: چې زمونږ په نيز [تر سرحد] د تيرېدلو [او قتال ته د تللو] حالت معتبر دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د جنګ د ختميدلو حالت معتبر دی. **لَهٗ: أَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْقَهْرُ وَالْقِتَالُ** د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د غنيمت د استحقاق سبب غلبه او قتال دی **فَيُعْتَبَرُ حَالُ الشَّخْصِ عِنْدَهٗ** لهذا د هر سړي په حق کې به د قتال د وخت حالت معتبر وي **وَالْمُجَاوَزَةُ**

وَسِيلَةٌ إِلَى السَّبَبِ كَالْخُرُوجِ مِنَ الْبَيْتِ او تېرېدل [او تلل] د استحقاق د سبب يو ذريعه ده لکه د کور څخه وتل وَتَعْلِيقِ الْأَحْكَامِ بِالْقِتَالِ يَدُلُّ عَلَى إِمْكَانِ الْوُقُوفِ عَلَيْهِ او پر قتال أحكام معلق کول په قتال د واقف کېدلو اخبرېدلو] دليل دی وَلَوْ تَعَذَّرَ أَوْ تَعَسَّرَ او که چيري پر قتال واقف کېدل ناممکن سي يا ستونزمن [مشکل] سي تَعَلَّقَ بِشُهُودِ الْوَقْعَةِ نو [په دې صورت کي] به جنګ ته پر حاضرېدلو [شرکت کولو] باندي أحکام متعلق کيږي لِأَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى الْقِتَالِ ځکه چي جنګ ته حاضرېدل قتال ته نژدې دي وَلَنَا: أَنَّ الْمُجَاوَزَةَ نَفْسَهَا قِتَالٌ زموږ دليل دا دی: چي [تر سرحد] تېرېدل [او قتال ته تلل] په خپله قتال دي لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُمُ الْخَوْفُ بِهَا ځکه چي په مجاوزت سره کفارو ته بېره رسيږي [يعني کله چي دښمن په دې خبر سي چي مجاهدين زموږ وطرف ته را روان دي او تر سرحد را تېر سول. نو په دې سره هغوی په سخته بېره او رعب کي لوېږي] وَالْحَالُ بَعْدَهَا حَالَةُ الدَّوَامِ او تر مجاوزت وروسته د دوام حالت دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِهَا او هغه حالت لره اعتبار نسته وَلِأَنَّ الْوُقُوفَ عَلَى حَقِيقَةِ الْقِتَالِ مُتَعَسِّرٌ او ځکه چي د قتال پر حقيقت واقف کېدل مشکل دي وَكَذَا عَلَى شُهُودِ الْوَقْعَةِ او همدارنګه جنګ ته پر حاضرېدلو او په جنګ کي د مجاهد پر شرکت کولو واقف کېدل هم مشکل دي لِأَنَّهُ حَالَ الْتِقَاءِ الصَّفَّيْنِ ځکه چي هغه [د کفر او اسلا] د دوو صفونو د يو ځای کېدلو [هنګامه يي] حالت وي اچي په هغه کي هر کس په قتال سره مصروف وي. نو په بل چا به څنګه خبر وي چي هغه جنګ ته حاضر سوی وو. که نه!؟] فَتُقَامُ الْمُجَاوَزَةُ مَقَامَهُ لهذا مجاوزت به د قتال قائم مقام کيږي إِذْ هُوَ السَّبَبُ الْمُفْضِي إِلَيْهِ ظَاهِرًا إِذَا كَانَ عَلَى قَصْدِ الْقِتَالِ ځکه چي همدا مجاوزت د قتال ظاهري سبب دی [په دې شرط] کله چي د قتال په اراده سره وي ايعني په دې شرط چي تر سرحد تېرېدل او تلل د جنګ په نيت سره وي] فَيُعْتَبَرُ حَالُ الشَّخْصِ بِحَالَةِ الْمُجَاوَزَةِ فَارِسًا كَانَ أَوْ رَاجِلًا نو ځکه به د هر کس [مجاهد] په حق کي د مجاوزت د حالت اعتبار کيږي چي هغه [د مجاوزت په حالت کي] فارس وو او که راجل وَلَوْ دَخَلَ فَارِسًا وَقَاتَلَ رَاجِلًا لِضِيقِ الْمَكَانِ او که يو مجاهد د فارس والي په حالت کي [دار الحرب ته] داخل سي او د ځای [او ميدان] د تنګوالي په وجه پياده قتال وکړي يَسْتَحِقُّ سَهْمَ الْفُرْسَانِ بِالِاتِّفَاقِ نو هغه به بالاتفاق د شهسوارانو د حصې مستحق کيږي وَلَوْ دَخَلَ فَارِسًا ثُمَّ بَاعَ

فَرَسَهُ أَوْ وَهَبَ أَوْ أَجَرَ أَوْ رَهَنَ او که هغه د فارس والي په حالت کي داخل سي بيا هغه خپل آس خرڅ کړي يا يې هبه کړي يا يې په اُجرت [کرايه] ورکړي يا يې [يو چا ته] په رهن کي ورکړي فَفِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ يَسْتَحِقُّ سَهْمَ الْفُرْسَانِ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد په روايت کي به هغه د شهسوارانو د حصې مستحق کيږي اعْتِبَارًا لِلْمُجَاوَزَةِ د مجاوزت په اعتبار کولو سره [يعني دا حکم د مجاوزت پر اعتبار مبني دی] وَفِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ يَسْتَحِقُّ سَهْمَ الرَّجَّالَةِ او په ظاهر روايت کي به هغه د راجل د حصې مستحق کيږي لِأَنَّ الْإِقْدَامَ عَلَى هَذِهِ التَّصَرُّفَاتِ يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ بِالْمُجَاوَزَةِ الْقِتَالُ فَارِسًا ځکه چي پر دغه تصرّفاتو د هغه إقدام کول د دې خبري دليل دی چي [تر سرحد] په تېرېدلو او قتال ته په تللو اسره د هغه اراده د فارس والي په حالت کي قتال کول نه وو وَلَوْ بَاعَهُ بَعْدَ الْفَرَاغِ او که هغه تر قتال وروسته آس خرڅ کړي لَمْ يَسْقُطْ سَهْمُ الْفُرْسَانِ نو اد هغه په حق کي ا به د شهسوارانو حصه نه ساقطيږي وَكَذَا إِذَا بَاعَ فِي حَالَةِ الْقِتَالِ عِنْدَ الْبَعْضِ او همدارنګه د ځيني علماؤ په نېز [به دا حصه نه ساقطيږي] کله چي هغه د قتال په حالت کي آس خرڅ کړي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَسْقُطُ [ليکن] زياته صحيح دا ده: چي [د هغه] دا حصه به ساقطيږي لِأَنَّ الْبَيْعَ يَدُلُّ عَلَى أَنَّ غَرَضَهُ التِّجَارَةُ فِيهِ إِلَّا أَنَّهُ يَنْتَظِرُ عِزَّتَهُ ځکه چي خرڅول د دې خبري دليل دی چي د هغه مقصد په آس سره تجارت کول وو ليکن هغه [فقط] د آس ګرانوالي ته منتظر وو [يعني دې ته منتظر وو چي هر څوک زما څخه په ګران قيمت آس وغواړي نو زه به پر هغه آس خرڅ کړم]

**اللغات**: ﴿مجاوزة﴾ د مفاعلې مصدر دی: سفر کول (د يو کار په اراده يو خوا ته تلل). تېرېدل. تر سرحد تېرېدل (تر سرحد اوښتل. عبور کول. پوري وتل). ﴿انقضاء﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل. ﴿شهود﴾ د سمع مصدر دی: حاضرېدل. موجودېدل (مراد ځني په جنګ کي شرکت کول دي). ﴿ضيق﴾ تنګي. تنګوالی (مراد ځني د ډېر رش او ګڼه ګوڼي په وجه د جنګ ميدان تنګېدل دي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مجاهد په کوم حالت کي د قتال په نيت د دارُ الاسلام تر سرحد تير سي او په دارُ الحرب کي داخل سي، نو زموږ په نېز به د هغه حالت مطابق مجاهد د غنيمت مستحق وي. نو که هغه پر آس باندي سپور وي او د جهاد او قتال کولو په غرض دارُ الحرب ته داخل

سي لېکن بيا د هغه آس هلاک سي او پياده قتال وکړي، نو هغه ته به د فارس حصه ورکول کيږي يعني له مال غنيمت څخه به دوې حصې ورکول کيږي، او که يو څوک پياده يعني له آس او سپارلي څخه بغير د دارُ الاسلام تر سرحد تېر سي او دارُ الحرب ته داخل سي، نو هغه ته به د راجل حصه يعني فقط يوه حصه ورکول کيږي که څه هم هغه وروسته په دارُ الحرب کي آس رانيسي او پر آس قتال وکړي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز حکم د دې بر عکس دئ همدا د امام احمد او امام مالک رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، يعني د دوی په نيز د قتال کولو حالت معتبر دی، نو په اول صورت کي به د دوی په نيز فارس ته د راجل حصه (يعني يوه حصه) ورکول کيږي، ځکه چي تر قتال مخکي د هغه آس مړ سو، او هغه پياده قتال وکړی، او په دويم صورت کي به راجل ته د فارس حصه ورکول کيږي، ځکه چي د قتال په دوران کي هغه فارس وو.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د مال غنيمت د مستحق کېدلو سبب قهر او قتال دی، لهذا د قتال په وخت کي چي د مجاهد کوم حالت وي د هغه اعتبار به کيږي. او پاته سو د مجاوزت او له سرحد څخه د تېرېدلو مسئله، نو مجاوزت د دې سبب وسيله ده، لکه د کور څخه وتل چي وسيله ده. او له کور څخه د وتلو حالت لره اعتبار نسته، لهذا مجاوزت لره به هم اعتبار نه وي، بلکي د قتال حالت لره به اعتبار وي، او قتال که څه هم مخفي أمر دی لېکن په هغه واقف کېدل (او خبرېدل) ممکن دي، ځکه چي شريعت پر قتال نور أحکام هم معلق کړي دي، مثلاً که يو بچی قتال وکړي نو هغه ته به "رَضخ" يعني لږ مال ورکول کيږي، لهذا د قتال د استحقاق سبب به هم فقط پر قتال موقوف وي. او که د هغه د قتال پته او خبر نه وي (چي آيا هغه قتال او جنګ کړی دی، که نه؟) نو کوم مجاهدين چي په جنګ کي شريک وي له هغو څخه به معلومات کيږي چي آيا فلانکی په قتال کي شريک وو او که نه؟ (يعني هغه جنګ وکړی، که نه؟) او که شريک وو نو هغه پر آس سپور وو او که پياده وو؟ (يعني فارس وو او که راجل؟)، لنډه دا چي د هغه د حالت صحيح خبر تر لاسه کول ممکن دي، نو ځکه به د هغه استحقاق د قتال پر حالت مبني وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د قتال په اراده سره تر سرحد تېرېدل او دارُ الحرب ته ننوتل په خپله قتال دی، ځکه چي د مسلمانانو د راتګ په خبر سره کفار په رعب کي لوېږي او پر هغوی لرزه جاري کيږي. او تر دې وروسته چي کوم حالت وي هغه د قتال د دوام حالت وي، او دوام لره اعتبار نسته، بلکي وجود لره اعتبار سته، او څرنګه چي په مجاوزت سره قتال په وجود کي راځي او ثابتيږي، نو ځکه به د استحقاق مدار پر مجاوزت وي او د مجاوزت د حالت اعتبار به کيږي.

او امام شافعي چي استحقاق پر قتال باندي مبني کوي، دا صحيح نه دي، ځکه چي حقيقتاً په قتال خبرېدل متعذر او ناممکن دي، ځکه چي د امام لپاره دا ممکن نه دي چي د هر، هر مجاهد د حالت

معاينه وکړي چې کوم يو قتال کوي او کوم يو يې نه کوي. همدارنګه له نور مجاهدينو (شرکاؤ) څخه هم د دې معلومات تر لاسه کول ممکن نه دي، ځکه چې د جنګ په حالت کې هر يو په خپل ځان اخته وي او ګډه امې وي او يوه ته هم د بل خبر نه وي. نو په همدې وجه موږ مجاوزت د قتال قائم مقام کړي او د مجاوزت د حالت اعتبار مو وکړي.

ولو دخل فارسًا إلخ: دا عبارت واضح دی.

ولو دخل فارسًا ثم باع إلخ: د دې مطلب دا دی چې که يو مجاهد د فارس والي په حالت کې دارُ الحرب ته داخل سي لېکن بيا هغه خپل آس خرڅ کړي يا يې هبه کړي يا يې په رهن او اجاره کې ورکړي، نو په دې باره کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد روايت دا دی چې هغه به فارس شمارل کيږي او د فارس حصه به ورکول کيږي، لېکن په ظاهر روايت کې به هغه ته د فارس حصه نه ورکول کيږي، ځکه چې د هغه خرڅول يا هبه کول يا داسې نور د دې خبرې دليل دی چې هغه د جنګ کولو په نيت سره راغلی نه دی، همدا حکم به په هغه وخت کې هم وي کله چې د جنګ او قتال په دوران کې هغه خپل آس خرڅ کړي، ځکه چې دا کار به د هغه نيت د تجارت په نيت بدل کړي او دا به ښکاره کړي چې هغه د آس د ګران بيه کېدلو په انتظار په قتال کې مصروف وو او د هغه اصل مقصد تجارت کول وو، نه قتال کول، همدا صحيح او معتمد دی، که څه هم ځيني مشائخ فرمايي چې د قتال په دوران کې د آس د خرڅولو په صورت کې به هم هغه ته د فارس حصه ورکول کيږي. ها! که چيري له قتال ختمېدلو څخه وروسته يې هغه خرڅ کړي نو بيا به بېله شکه هغه ته د فارس حصه ورکول کيږي.

## د غنيمت په مال کې د غلام، ښځې او بچې حصه

وَلَا يُسْهَمُ لِمَمْلُوكٍ وَلَا امْرَأَةٍ وَلَا صَبِيٍّ وَلَا ذِمِّيٍّ او غلام، ښځې، بچي او ذمي ته به [د غنيمت په مال کې] حصه نه ورکول کيږي وَلٰكِنْ يَرْضَخُ لَهُمْ عَلٰى حَسَبِ مَا يَرَى الْإِمَامُ لېکن امام به دوی ته څه [لږ] مال ورکوي څومره چې امام مناسب وګڼي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَام [1] كَانَ لَا يُسْهِمُ لِلنِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ وَالْعَبِيدِ وَكَانَ يَرْضَخُ لَهُمْ ځکه روايت سوی دی چې نبي کريم ﷺ به ښځو، بچيانو او غلامانو ته حصه نه ورکوله [بلکې] هغو ته به يې لږ مال ورکوی وَلَمَّا اسْتَعَانَ [2] عَلَيْهِ السَّلَام بِالْيَهُودِ عَلَى الْيَهُودِ او کله چې نبي

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الجهاد باب: ٥٠ رقم الحديث: ١٣٧

[2] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب السنن الكبرىٰ ج: ٩ ص: ٦۴

ﷺ اد خيبر ا د يهودو په خلاف اد مديني ا له يهودو څخه مرسته وغوښتله لَمْ يُعْطِهِمْ شَيْئًا مِنَ الْغَنِيمَةِ نو هغو ته يې له غنيمت څخه هيڅ شی نه ورکړی يَعْنِي أَنَّهُ لَمْ يُسْهِمْ لَهُمْ يعني د هغو لپاره يې حصه مقرره نه کړه وَلِأَنَّ الْجِهَادَ عِبَادَةٌ وَالذِّمِّيُّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الْعِبَادَةِ او ځکه چې جهاد عبادت دی او ذمي د عبادت أهل نه دی وَالصَّبِيُّ وَالْمَرْأَةُ عَاجِزَانِ عَنْهُ او بچی او ښځه له جهاد څخه عاجزه وي وَلِهٰذَا لَمْ يَلْحَقْهُمَا فَرْضُهُ له همدې کبله پر دوی جهاد فرض نه دی وَالْعَبْدُ لَا يُمَكِّنُهُ الْمَوْلَى او غلام ته به خپل مالک ا پر جهاد ا قدرت ا او اجازه ا نه ورکوي وَلَهُ مَنْعُهُ او اکه اجازه ورکړي هم نو تر دې وروسته ا مالک ته اد غلام ا د منع کولو حق اهم ا سته إِلَّا أَنَّهُ يَرْضَخُ لَهُمْ تَحْرِيضًا عَلَى الْقِتَالِ مَعَ إِظْهَارِ انْحِطَاطِ رُتْبَتِهِمْ لېکن پر قتال باندې د هڅولو اآماده کولو ا لپاره ا او د هغه تر څنګ ا د دوی د مرتبې د ټيټوالي څرګندولو لپاره به دوی ته څه مال ورکول کيږي وَالْمُكَاتَبُ بِمَنْزِلَةِ الْعَبْدِ او مکاتب د غلام په درجه کې دی لِقِيَامِ الرِّقِّ ځکه چې په هغه کې اهم ا غلامتوب موجود دی وَتَوَهُّمِ عَجْزِهِ او د هغه د عاجزه کېدلو وهم اهم ا سته ا يعني کېدای سي چې هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزه سي ا فَيَمْنَعُهُ الْمَوْلَى عَنِ الْخُرُوجِ إِلَى الْقِتَالِ نو مالک به هغه جنګ ا جهاد ا ته له تللو څخه منع کړي ثُمَّ الْعَبْدُ إِنَّمَا يُرْضَخُ لَهُ إِذَا قَاتَلَ بيا به غلام ته هغه وخت څه مال ورکول کيږي کله چې هغه قتال وکړي لِأَنَّهُ دَخَلَ لِخِدْمَةِ الْمَوْلَى ځکه چې هغه د مالک د خدمت لپاره ا دار الحرب ته ا داخل سو فَصَارَ كَالتَّاجِرِ نو هغه داسې سو لکه تاجر وَالْمَرْأَةُ يُرْضَخُ لَهَا إِذَا كَانَتْ تُدَاوِي الْجَرْحَى وَتَقُومُ عَلَى الْمَرْضَى او ښځې ته به هغه وخت څه مال ورکول کيږي کله چې هغې د زخميانو علاج ا او درملنه ا کړې وي او د مريضانو خدمت يې کړې وي لِأَنَّهَا عَاجِزَةٌ عَنْ حَقِيقَةِ الْقِتَالِ ځکه چې هغه له حقيقي قتال کولو څخه عاجزه وي فَيُقَامُ هٰذَا النَّوْعُ مِنَ الْإِعَانَةِ مَقَامَ الْقِتَالِ نو اد هغې په حق کې ا به دا ډول مرسته د قتال قائم مقام کيږي بِخِلَافِ الْعَبْدِ لِأَنَّهُ قَادِرٌ عَلَى حَقِيقَةِ الْقِتَالِ په خلاف د غلام. ځکه چې غلام پر حقيقي قتال کولو قادر وي وَالذِّمِّيُّ إِنَّمَا يُرْضَخُ لَهُ إِذَا قَاتَلَ أَوْ دَلَّ عَلَى الطَّرِيقِ وَلَمْ يُقَاتِلْ او ذمي ته به په هغه صورت کې څه مال ورکول کيږي کله چې هغه قتال کړی وي يا يې امجاهدينو ته ا د قتال

لاره [او ليكه] ور ښوولې وي، او قتال يې كړى نه وي لِأَنَّ فِيهِ مَنْفَعَةً لِلْمُسْلِمِينَ ځكه چي په دې كي د مسلمانانو منفعت دى إِلَّا أَنَّهُ يُزَادُ عَلَى السَّهْمِ فِي الدَّلَالَةِ إِذَا كَانَتْ فِيهِ مَنْفَعَةٌ عَظِيمَةٌ لېكن كه د ذمي په لارښوونه كي غټ منفعت [او فايده] وي نو هغه ته به [د مجاهد] له حصې څخه [هم] زيات مال وركول كيږي وَلَا يَبْلُغُ بِهِ السَّهْمَ إِذَا قَاتَلَ لېكن كه چيري هغه [فقط] قتال كړى وي نو هغه ته وركونكى مال به [د مجاهد] حصې ته نه رسول كيږي [يعني ديوه مجاهد له حصې څخه به كم مال وركول كيږي] لِأَنَّهُ جِهَادٌ ځكه چي دا جهاد دى وَالْأَوَّلُ لَيْسَ مِنْ عَمَلِهِ او اول [يعني لارښوونه] د جهاد له عمل څخه نه ده [يعني لارښوونه "جنګ او جهاد كول" نه دي] وَلَا يُسَوَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمُسْلِمِ فِي حُكْمِ الْجِهَادِ او د جهاد په حكم كي به د مسلمان او ذمي په مينځ كي برابري نه كيږي.

**اللغات:** ﴿يرضخ﴾ د مضارع صيغه ده. له فتح او ضرب دواړو څخه راځي: له ډېر مال څخه لږ شى وركول. ﴿تحريض﴾ د تفعيل مصدر دى: هڅول، آماده كول. ﴿انحطاط﴾ د انفعال مصدر دى: د انفعال مصدر دى: ټيټېدل، كښته كېدل، لاندي كېدل. ﴿جَرْحَى﴾ جمع د جَرِيحٌ ده: زخمي، ټپي. ﴿دَلّ﴾ د نصر ماضي ده. د دې باب په صله كي چي "عَلَى" راسي، نو د "لار ښوولو" معنىٰ وركوي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه چيري غلام، ښځه يا بچى يا ذمي قتال وكړي، نو هغو ته به د عامو مجاهدينو په څير له "مال غنيمت" څخه حصه نه وركول كيږي، بلكي "رضخ" يعني لږ مال به وركول كيږي، ځكه چي همدا د نبي كريم ﷺ عادت او معمول وو. او يو ځل نبي كريم ﷺ د "خيبر د غزا" په وخت كي د مدينې له يهوديانو څخه د مدد غوښتنه وكړه او هغوى مدد وكړى، نو هغو ته هم نبي كريم ﷺ له "مال غنيمت" څخه حصه نه وركړه، بلكي "رضخ" يې وركړى، دا واقعه د دې خبري دليل ده چي ذمي ته به له مال غنيمت څخه حصه نه وركول كيږي. د دې عقلي دليل دا دى چي جهاد كول عبادت دى او ذمي د عبادت أهل نه دى، او په ښځه او بچي كي د جهاد أهليت او صلاحيت نه سته، همدا وجه ده چي شريعت پر دوى جهاد فرض كړى نه دي، او كوم چي د غلام مسئله ده نو اول خو خپل مالك (مولىٰ) هغه ته اجازه نه وركوي او كه اجازه وركړي هم، نو هم به يې ورووسته (د خپل خدمت لپاره) له جهاد څخه منع كوي، لهذا د دې كسانو له طرفه به جهاد نه ثابتيږي. او كله چي دوى جهاد نه كوي نو ښكاره خبره ده چي د مال غنيمت حقداره به هم نه وي لېكن كه جهاد وكړي او د جنګ په ميدان كي شركت وكړي نو د دوى د اطمينان لپاره او پر جهاد باندي د هڅولو او آماده كولو لپاره لږ څه مال دوى ته وركول كيږي.

**والمكاتب إلخ**: فرمايي چي د غنيمت د نه مستحق کېدلو په هکله چي کوم حکم د غلام دی هغه حکم د مکاتب هم دی، ځکه چي په هغه کي هم رقيت (غلامتوب) موجود دی. او بل دا چي کيدای سي هغه به د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجز سي او بيا به غلام وګرځي او مالک به هغه له جهاد کولو څخه را وګرځوي، لهذا د مالک په قبضه کي د موجود والي په حواله سره مکاتب هم د غلام په څير دی، او څرنګه چي غلام ته له غنيمت څخه حصه نه ورکول کيږي، همداسي به مکاتب ته هم نه ورکول کيږي.

**ثم العبد إلخ**: له دې ځايه دا خبره بيان سوې ده چي ښځي، غلام او داسي نورو ته به "رضخ" هغه وخت ورکول کيږي کله چي دوی قتال وکړي ، د غلام په حق کي خو ظاهراً قتال کول شرط دي. او ښځه پر حقيقي قتال قادره نه ده نو ځکه د هغې په حق کي زخميانو ته درمل او دواء ورکول او د مريضانو خدمت کول "قتال" شمارل سوی دی. همدا حکم د ذمي هم دی چي که هغه قتال وکړي يا د حرب او قتال په هکله څه لارښوونه وکړي او په هغه کي د مسلمانانو فايده وي. نو بيا به ذمي ته "رضخ" ورکول کيږي، کنې نه به ورکول کيږي. او که چيري ذمي يو داسي مشوره ورکړي يا يو داسي ترکيب او ترتيب ور وښيي چي په هغه سره مسلمانان زياته نفع حاصله کړي نو په دې صورت کي به هغه ته د يوه مجاهد له حصې څخه زيات انعام ورکول کيږي، ځکه چي د ذمي لارښوونه جهاد نه دی نو هغه ته له "سهم واحد" (يوې حصې) څخه په زيات مال ورکولو کي هيڅ حرج نسته. ځکه چي د هغه په لارښوونه سره دومره نفع حاصله سوې ده. ها! که چيري ذمي فقط قتال کړی وي او څه لارښوونه يې کړې نه وي نو په دې وخت کي به هغه ته "رضخ" ورکول کيږي چي د هغه مقدار به له "سهم واحد" څخه کم وي، ځکه چي ذمي د مسلمان تابع دي، لهذا د هغه او د مسلمان حصه به نه سره برابرول کيږي.

## د خُمس مصارف (خُمس به چا ته ورکول کيږي؟)

وَأَمَّا الْخُمُسُ فَيُقْسَمُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَسْهُمٍ او پاته سو خُمس نو هغه به پر دريو حصو تقسيمول کيږي سَهْمٌ لِلْيَتَامَى وَسَهْمٌ لِلْمَسَاكِينِ وَسَهْمٌ لِابْنِ السَّبِيلِ (۱) يو حصه د يتيمانو لپاره. (۲) يوه حصه د مسکينانو لپاره، (۳) او يوه حصه د مسافرانو لپاره يَدْخُلُ فُقَرَاءُ ذَوِي الْقُرْبَى فِيهِمْ وَيُقَدَّمُونَ او په دې کي به [د نبي کريم ﷺ] محتاجه قرابت والا [قريبان] داخليږي او هغوی به تر ټولو مخکي کول کيږي وَلَا يُدْفَعُ إِلَى أَغْنِيَائِهِمْ [لېکن] د هغو مالدارانو ته به نه ورکول کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُمْ خُمُسُ الْخُمُسِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي قرابت والا [ذوی القربیٰ] ته به د خمس پنځمه حصه

ورکول کيږي يَسْتَوِي فِيهِ غَنِيُّهُمْ وَفَقِيرُهُمْ او په هغه کې به د دوی مالدار او غريب ادواړه ا برابر وي وَيُقَسَّمُ بَيْنَهُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ او هغه خمس به د دوی په مينځ کې د "للذكر مثل حظ الأنثيين" مطابق تقسيمول کيږي وَيَكُونُ لِبَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ دُونَ غَيْرِهِمْ او دا به د بنو هاشم او بنو مطلب لپاره وي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَلِذِي الْقُرْبَىٰ [الأنفال: ٤١] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بَيْنَ الْغَنِيِّ وَالْفَقِيرِ ځکه چې الله تعالىٰ فرمايلي دي: "ولذی القربیٰ". د مالدار او غريب په مينځ کې له فرق کولو څخه بغير ايعني په دې آيت کې د مالدار او غريب هيڅ فرق سوی نه دی. بلکې مطلق حکم سوی دی ا وَلَنَا: أَنَّ الْخُلَفَاءَ الْأَرْبَعَةَ الرَّاشِدِينَ قَسَّمُوهُ عَلَىٰ ثَلَاثَةِ أَسْهُمٍ عَلَىٰ نَحْوِ مَا قُلْنَاهُ زموږ دليل دا دی: چې څلورو خلفاء راشدينو دغه خمس د هغه طريقې مطابق پر دريو حصو تقسيم کړی دی کوم چې موږ ذکر کړه وَكَفَىٰ بِهِمْ قُدْوَةً او په دوی پسې اقتداء کول (زموږ لپاره) کافي دي وَقَالَ: عليه السلام [1]: يَا مَعْشَرَ بَنِي هَاشِمٍ! إِنَّ اللهَ تَعَالَىٰ كَرِهَ لَكُمْ غُسَالَةَ النَّاسِ وَأَوْسَاخَهُمْ وَعَوَّضَكُمْ مِنْهَا بِخُمُسِ الْخُمُسِ اهمدارنګه ا نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "اې بني هاشمو! الله ستاسي لپاره د خلګو خيري ناخوښه کړي دي او د هغه په عوض کې يې تاسي ته د غنيمت پنځمه حصه درکړې ده" وَالْعِوَضُ إِنَّمَا يَثْبُتُ فِي حَقِّ مَنْ يَثْبُتُ فِي حَقِّهِ الْمُعَوَّضُ او عوض د هغه کس په حق کې ثابتيږي کوم چې د معوض مستحق وي وَهُمُ الْفُقَرَاءُ او هغه فقيران دي ايعني د دې عوض مستحقين فقط فقيران دي ا وَالنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] أَعْطَاهُمْ لِلنُّصْرَةِ او نبي کريم ﷺ بنو مطلب ته د مرستي امدد ا په وجه اخمس ا ورکړی وو أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ عليه السلام عَلَّلَ فَقَالَ: إِنَّهُمْ لَنْ يَزَالُوا مَعِي هَكَذَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَالْإِسْلَامِ وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ آيا ته نه ګورې! چې نبي ﷺ د ورکولو علت هم بيان کړی او داسي يې وفرمايل چې: "دا خلګ همېشه ا په هره پېښه کې ا داسي زما سره او سېدلي دي په جاهليت کې ا هم ا او په اسلام کې ا هم ا او نبي کريم ﷺ خپلې ګوتي سره يو ځای کړې دَلَّ عَلَىٰ أَنَّ الْمُرَادَ مِنَ النَّصِّ قُرْبُ النُّصْرَةِ لَا قُرْبُ الْقَرَابَةِ د نبي ﷺ دا فرمان پر دې خبرې دلالت کوي چې په آيت کې له قُرب څخه د مرستي ا او مدد ا نژدېکت مراد دی، نه د قرابت نژدېکت.

---

[1] تخريج: أخرجه الطبراني في معجمه.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الخراج في بيان مواضع قسم الخمس، رقم الحديث: ٢٩٨٠.

**اللغات**: ﴿ابن السبيل﴾ لاروی، مسافر. ﴿قُدوة﴾ د دې لفظ دوې معناوې دي: ① اقتداء، پیروي. ② مُقتدا، پېشوا. دلته يې اوله معنىٰ مراد ده. ﴿معشر﴾ جماعت، ډله. ﴿غُسالة﴾ هغه اُوبه چې يو شی په پرېولل سي او خرې او ناپاکه وګرځي، ناولې او خیرنې اُوبه. ﴿أوساخ﴾ جمع د وَسَخ: خیره، چټلتیا، ناولتوب. ﴿شبّک﴾ د تفعیل ماضي ده: ګوتې سره يو ځای کول، ديوه لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کې دننه کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې د هغه خُمس بيان سوی دی کوم چې د غنيمت په مال کې د ذوی القربی او يتامىٰ لپاره ټاکل کېږي، نو زموږ په نېز به دغه خُمس درې حصې ګرځول کېږي چې له هغو څخه به يوه حصه د يتيمانو وي، يوه حصه به د مساکينو وي او يوه حصه به د مسافرانو وي او د نبي کريم ﷺ محتاجه قرابت والا (سيدان) به هم د دې دريو صنفونو سره د خُمس مستحق وي بلکې دوی به تر ټولو مخکې کول کېږي، ځکه چې د دوی سره د ګران پېغمبر ﷺ مبارک نسبت تړلی دی. او زموږ په نېز به د رسولُ الله ﷺ مالداره قرابت والا په دې خُمس کې نه شريکول کېږي او هغوی ته به له دې خمس څخه حصه نه ورکول کېږي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به په هر صورت کې د نبي ﷺ قرابت والا په دې خُمس کې شريکول کېږي او حصه به ورکول کېږي هغه که محتاج وي او که مالدار وي. او دا تقسيم به د "لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنْثَيَيْنِ" مطابق وي يعني خلګو ته به دوې حصې ورکول کېږي او ښځو ته به يوه حصه ورکول کېږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چې هغه آيت په کوم سره چې د ذوی القربیٰ لپاره د خمس استحقاق ثابت سوی دی، هغه د غني او فقير له تفصيل څخه خالي دی. آيت دا دی: وَاعْلَمُوْا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِی الْقُرْبٰی وَالْيَتٰمٰی وَالْمَسَاكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ. په دې آيت کې د غني او فقير تر مينځ هيڅ فرق ذکر سوی نه دی. نو ځکه موږ ته هم دا حق نسته چې غني له دغه خُمس څخه بې برخې کړو، بلکې هغه به هم د خُمس مستحق وي.

**زموږ دليل**: دا دی چې کوم تقسيم موږ اختيار کړی دی هغه له خلفاء راشدينو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه روايت سوی دی. او د خلفاء راشدينو اقتداء کول زموږ لپاره کافي ده. همدارنګه نبي کريم ﷺ بنو هاشم د صدقې او زکاة له اخيستلو څخه منع کړي دي او د هغه پر ځای يې دوی ته د خمس اجازه ورکړې ده. يعني ګواکي خُمس د هغه چا لپاره صحيح دی چې د هغه لپاره معوّض يعني زکاة

اخيستل صحيح وي (لنډه دا چې د بنو هاشم او سيدانو لپاره د زكاة پر ځای خمس تاكل سوی دی).
او دا ښكاره خبره ده چې د زكاة هغه خلك حقداره دي كوم چې فقراء او محتاجه وي. لهذا د خمس حقدار به هم د نبي كريم محتاجه قريبان وي. او څرنګه چې د نسبي شرافت او نبوي قرابت په وجه د بنو هاشمو فقراء له زكاة اخيستلو څخه منع سوي دي. لهذا كوم شی چې د زكاة عوض دی يعني خُمس د هغه مستحقين به هم فقط فقراء وي. نو ځكه د امام شافعي رَحِمَهُ الله لپاره په دې خُمس كي اغنياء شريكول صحيح نه دي.

پاته سو دا سوال چې نبي كريم ﷺ خو د بنو عبد المطلب سره بنو هاشم ته خمس وركړ. لېكن بنو عبد شمس او بنو نوفل ته يې نه وركړی. آخر د دې څه وجه ده؟ د دې جواب دا دی چې په آيت كي له "ذوی القربیٰ" څخه د نصرت او اعانت قرابت مراد دی او "قربُ القرابة" يعني نسبي قرابت مراد نه دی. همدا وجه ده چې نبي كريم ﷺ بنو هاشم ته له خُمس وركولو څخه وروسته وفرمايل چې دې خلكو همېشه زما اعانت او مرسته كړې ده او زه په بنو عبد المطلب او بنوهاشم كي هيڅ فرق نه احساسوم.

## د خمس تقسيم

قَالَ: فَأَمَّا ذِكْرُ اللهِ تَعَالَى فِي الْخُمُسِ فَإِنَّهُ لِافْتِتَاحِ الْكَلَامِ تَبَرُّكًا بِاسْمِهِ فرمايي: كوم چې په خمس كي د الله د نامه ذكر كېدل دي نو هغه د تبرّك په توګه د الله په نامه سره د شروع كولو لپاره دي وَسَهْمُ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سَقَطَ بِمَوْتِهِ كَمَا سَقَطَ الصَّفِيُّ او د نبي كريم ﷺ په وفات سره د هغوی ﷺ حصه ساقطه سوه لكه څرنګه چې "صفي" ساقط سو لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَام كَانَ يَسْتَحِقُّهُ بِرِسَالَتِهِ وَلَا رَسُولَ بَعْدَهُ [1] ځكه چې نبي كريم ﷺ د خپل رسول كېدلو په وجه د دې حصې مستحق وو. او تر هغوی وروسته بل هيڅ رسول نسته وَالصَّفِيُّ شَيْءٌ كَانَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يَصْطَفِيهِ لِنَفْسِهِ مِنَ الْغَنِيمَةِ مِثْلَ دِرْعٍ أَوْ سَيْفٍ أَوْ جَارِيَةٍ او صفي هغه دی كوم چې به نبي ﷺ به له غنيمت څخه د خپل ځان لپاره انتخابوی لكه زغره. توره او مينځه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُصْرَفُ سَهْمُ الرَّسُولِ إِلَى الْخَلِيفَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د نبي كريم ﷺ حصه به [د هغه] خليفه ته وركول كيږي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا قَدَّمْنَاهُ لېكن ا د هغه په خلاف زموږ هغه دليل حُجت دی كوم چې موږ مخكي بيان كړی وَسَهْمُ ذَوِي

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الخراج، باب ما جاء في سهم الخضر، رقم الحديث: ۲۹۹۱ .

الْقُرْبٰى كَانُوا يَسْتَحِقُّونَهُ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ ﷺ بِالنُّصْرَةِ او ذوی القربی ا قرابت والا ا به د نبي ﷺ په زمانه کي د مدد په وجه د حصي مستحقين وو لِمَا رَوَيْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ روايت کړی قال: وَبَعْدَهُ بِالْفَقْرِ فرمايي: چي د نبي ﷺ تر زمانې وروسته به د فقر ا غربت ا په وجه هغوی د خپلې حصې مستحقين ګرځي قال: الْعَبْدُ الضَّعِيفُ عَصَمَهُ اللهُ: هٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ قَوْلُ الْكَرْخِيِّ ناتوانه بنده وايي (الله دي هغه وساتي): چي دغه قول کوم چي امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی د امام خرکي رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ الطَّحَاوِيُّ: سَهْمُ الْفَقِيرِ مِنْهُمْ سَاقِطٌ أَيْضًا او امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ا د نبي کريم ﷺ ا د غريب قرابت والا حصه هم ساقطه ده لِمَا رَوَيْنَا مِنَ الْإِجْمَاعِ د هغه اجماع په وجه کوم چي موږ روايت کړه وَلِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الصَّدَقَةِ نَظَرًا إِلَى الْمَصْرِفِ او ځکه چي د مصرف وطرف ته په نظر کولو سره په دې کي د صدقې معنیٰ موجوده ده فَيَحْرُمُ كَمَا يَحْرُمُ الْعُمَالَةَ نو د عاملانو په څير به دا هم حرام وي. وَجْهُ الْأَوَّلِ وَقِيلَ هُوَ الْأَصَحُّ: مَا رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَعْطَى الْفُقَرَاءَ مِنْهُمْ د اول قول (او ويل سوي دي چي همدغه زيات صحيح قول دی) دليل دا دی: چي حضرت عمر رضي الله عنه ا د نبي کريم ﷺ ا غريبو قريبانو ته له خمس څخه حصه ورکړه وَالْإِجْمَاعُ انْعَقَدَ عَلَى سُقُوطِ حَقِّ الْأَغْنِيَاءِ او إجماع دمالدارانو د حق پر ساقطېدلو منعقده سوې ده أَمَّا فُقَرَاؤُهُمْ فَيَدْخُلُونَ فِي الْأَصْنَافِ الثَّلَاثَةِ او کوم چي د دوی غريبان دي، نو هغوی به ا خامخا ا په دريو أصنافو کي داخليږي.

**اللغات**: ﴿صفي﴾ دغنيمت په مال کي د جنګ د مشر (قائد) ذاتي حصه. ﴿يصطفيه﴾ د افتعال مضارع ده: غوره کول. انتخابول. ﴿مصرف﴾ د ضرب له باب څخه د اسم ظرف صيغه ده: هغه کس چي يو مال پر خرچ کول سي يعني زکاة يا داسي بل مال ورکول سي. دلته ځني مراد هغه کس دی چي د خمس مال ورکول کيږي. جمع: مَصَارِف. ﴿عمالة﴾ جمع د عَامِلٌ: کار کونکی. مراد ځني د زکاة عامل دی (کوم چي له خلکو څخه عُشر، زکاة او داسي نور راټولوي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په دې آيت "وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ" کي چي د الله لپاره د خمس کوم ذکر

سوی دی. هغه د الله په نامه په شروع کولو سره د برکت حاصلولو لپاره دی (په لنډه توګه دا چې په دې آیت کې د الله نوم د برکت په توګه اخیستل سوی دی) او ظاهراً په خمس کې د الله هیڅ حصه نسته لأنهٔ غنی. همدارنګه د نبي کریم ﷺ تر وفات وروسته د هغه "سهم" (حصه) هم ساقطه سوه. ځکه چې رسول الله ﷺ د خپل رسالت په وجه د "سهم" مستحق وو. او څرنګه چې له نبي کریم ﷺ څخه وروسته بل هیڅ رسول نسته، نو له همدې کبله اوس زموږ په نېز دا حصه ساقطه ده. او اوس به د نبي ﷺ خلفاؤ ته دا حصه نه ورکول کیږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به ورکول کیږي. خو دا صحیح نه دي، ځکه که دا صحیح وای نو خلفاء راشدینو به خُمس پر څلورو حصو تقسیمولای حالانکې هغو هم خُمس پر دریو حصو تقسیم کړی.

همدارنګه "صفي" هم د نبي ﷺ تر وفات وروسته ساقط سو. د صفي معنیٰ ده "غوره کول. خوښول. انتخابول". د دې مطلب دا دی چې کله به اول د غنیمت مال راغلی او په هغه کې به د نبي کریم ﷺ یو شی خوښ سو مثلاً زغره، توره، مینځه او داسي نور، نو هغه به یې د خپل ځان لپاره منتخب کوی. تر دې وروسته به یې غنیمت تقسیموی، دغه انتخاب‌ولو ته "صفي" وایي. څرنګه چې دا د رسول کېدلو په وجه د نبي ﷺ حق وو، او اوس هیڅ رسول نسته، نو له همدې کبله د صفي حق هم ساقط سو.

وسهم ذوی القربیٰ: فرمایي چې د نبي ﷺ په ژوند کې د هغه قرابت والا (ذوی القربیٰ) د نصرت او اعانت پر بناء د خُمس مستحقین وو، او د نبي ﷺ تر وفات وروسته به هغوی د فقر او محتاجي په وجه د خمس مستحقین ګرځي، دا د امام کرخي رَحِمَهُ الله قول دی. او د امام طحاوي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې د نبي ﷺ تر وفات وروسته د محتاجه قرابت والا حصه هم ساقطه سوه. ځکه چې خلفاء راشدینو به هم خُمس فقط پر دریو حصو تقسیموی، او په هغه کې به یې ذوی القربیٰ ته حصه نه ورکول. د دې سلسلې عقلي دلیل دا دی چې د مَصرِف وطرف ته په نظر کولو سره د خُمس دا حصه د صدقې په معنیٰ کې ده له همدې کبله د نبي ﷺ تر مرګ وروسته هاشمي ته له دې څخه حصه ورکول جائز نه دي که څه هم هغه محتاج وي، لکه کله چې یو عامل هاشمي وي نو د هغه لپاره هم له خُمس څخه د خپل عمل مزدوري اخیستل جائز نه دي. لېکن زیاته صحیح خبره دا ده چې د نبي ﷺ محتاجه قرابت والا ته له خمس څخه حصه ورکول جائز دي، ځکه چې حضرت عمر رضی الله عنه دوی ته حق او حصه ورکړې ده. او د دوی د حق د سقوط په هکله چې کومه اجماع سوې ده، هغه د مالدارانو سره خاص ده. او فقیران په هر حال کې د دې مستحق او حقداره دي او په أصناف ثلاثه وو یعني په یتامیٰ، مساکین او ابن السبیل کې داخل او شامل دي.

## د امام له اجازت څخه بغير په دار الحرب کي د لوټماري کونکو د غنيمت مسئله

وَإِذَا دَخَلَ الْوَاحِدُ أَوِ الاِثْنَانِ دَارَ الْحَرْبِ مُغِيرَيْنِ بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ او کله چي يو يا دوه خلک د امام له اجازت څخه بغير د لوټماري کولو لپاره دار الحرب ته داخل سي فَأَخَذُوا شَيْئًا او هغوی يو شی واخلي ايعني يو مال لوټ کړي ا لَمْ يُخَمَّسْ نو له هغه مال څخه به خمس نه ايستل کيږي لِأَنَّ الْغَنِيمَةَ هُوَ الْمَأْخُوذُ قَهْرًا وَغَلَبَةً لَا اخْتِلَاسًا وَسَرِقَةً ځکه چي غنيمت هغه مال ته وايي کوم چي په زوره او غلبه سره اخيستل سوی وي. نه په چل کولو او غلا کولو سره وَالْخُمُسُ وَظِيفَتُهَا او خمس د غنيمت وظيفه ده ايعني خمس د غنيمت له مال څخه اخيستل کيږي ا وَلَوْ دَخَلَ الْوَاحِدُ أَوِ الاِثْنَانِ بِإِذْنِ الْإِمَامِ او که چيري اهغه ا يو يا دوه خلک د امام په اجازت سره داخل سي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې باره کي دوه روايتونه دي. وَالْمَشْهُورُ أَنَّهُ يُخَمَّسُ او مشهور روايت دا دی چي له هغه څخه به خمس ايستل کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا أَذِنَ لَهُمُ الْإِمَامُ ځکه کله چي امام هغو ته اجازه ورکړه فَقَدِ الْتَزَمَ نُصْرَتَهُمْ بِالْإِمْدَادِ نو امام اپر خپل ځان ا د امداد په ذريعه د دوی مرسته کول لازم کړه فَصَارَ كَالْمَنَعَةِ نو ادغه يو. دوه خلک ا داسي سو لکه قوت والا ايعني ګواکي دغه يوه. دوو خلګو ته هم دفاعي قوت حاصل سو ا فَإِنْ دَخَلَتْ جَمَاعَةٌ لَهَا مَنَعَةٌ فَأَخَذُوا شَيْئًا او که چيري يو داسي جماعت چي هغه ته دفاعي قوت حاصل وي ادار الحرب ا ته داخل سي او يو شی واخلي خُمِّسَ نو له هغه څخه به خمس ايستل کيږي وَإِنْ لَمْ يَأْذَنْ لَهُمُ الْإِمَامُ که څه هم امام هغو ته اجازه ورکړې نه وي لِأَنَّهُ مَأْخُوذٌ قَهْرًا وَغَلَبَةً ځکه چي دا مال په زور او غلبه سره اخيستل سوی دی فَكَانَ غَنِيمَةً لهذا هغه به غنيمت وي وَلِأَنَّهُ يَجِبُ عَلَى الْإِمَامِ أَنْ يَنْصُرَهُمْ او ځکه چي پر امام د دوی مرسته کول ضروري دي إِذْ لَوْ خَذَلَهُمْ كَانَ فِيهِ وَهْنُ الْمُسْلِمِينَ ځکه که امام دوی مرسته نه وکړي نو په دې کي به د مسلمانانو کمزوري وي ايعني په دې سره به د مسلمانانو ضعف او کمزوري ښکاره سي ا بِخِلَافِ الْوَاحِدِ وَالاِثْنَيْنِ په خلاف د يوه او دوو خلکو لِأَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ نُصْرَتُهُمْ ځکه چي پر امام د هغو مرسته کول ضروري نه دي.

**اللغات**: ﴿مُغيرين﴾ د افعال جمع اسمِ فاعل دی: لوټماري کونکي، ډاکه وهونکي، چاپه وهونکي. ﴿اختلاس﴾ چل کول، له يو چا څخه د هغه د ناپامۍ په حالت کي ناڅاپه او په ډېره تېزي سره يو شی اخيستل. ﴿منعة﴾ د مدافعت قوت، دفاعي قوت. ﴿خذلهم﴾ د نصر ماضي ده: مدد پرېښوول. مرسته نه ور سره کول (مصباح اللغات). ﴿وهن﴾ کمزوري.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري يو يا دوه خلک د امام له اجازې څخه بغير په دارُ الحرب کي د لوټماري کولو په نيت ننوځي او بيا هلته يو څه مال حاصل کړي، نو له هغه څخه به خمس نه ايستل کيږي، ځکه چي خمس له غنيمت څخه ايستل کيږي. او دا د غنيمت مال نه دی. ځکه چي غنيمت هغه مال ته وايي کوم چي په قهر، زور او غلبه سره حاصل کړی سي نه په غلا او لوټماري سره. او څرنګه چي دا د لوټماري مال دی نو ځکه به له هغه څخه خُمس نه ايستل کيږي. او که چيري دا خلک د امام په اجازه سره داخل سوي وي، نو په دې صورت کي د خمس ايستلو په هکله دوه روايتونه دي: ① يو روايت دا دی چي له هغه څخه به خمس نه ايستل کيږي. ② دويم روايت دا دی چي ايستل کيږي به، ځکه چي امام هغو ته په اجازه ورکولو سره د هغوی د حمايت او نصرت اعلان وکړی او معناً هغو ته قوت حاصل سو. همدا وجه ده که (د مجاهدينو) داسي جماعت (ډله) کوم چي (د منع کولو) قوت لري دارُ الحرب ته ننوځي او هلته مال حاصل کړي نو له هغه څخه به خمس ايستل کيږي که څه هم د جماعت خلکو له امام څخه اجازه اخيستې نه وي. ځکه چي دوی په قهر او غلبه سره هغه مال حاصل کړی دی نو ځکه به هغه د غنيمت مال وي. او په دې وجه هم چي دغه جماعت ته قوت هم حاصل دی او د امام نصرت هم ورته حاصل دی. ځکه که امام د دوی نصرت او مدد نه وکړي نو په مسلمانانو کي به انتشار پيدا سي او په دې سره به د مسلمانانو کمزوري ښکاره سي چي د هغه فايده به دښمن ته ورسيږي. نو د دې خرابۍ د مخنيوي لپاره به امام خامخا د دوی نصرت کوي. لېکن که چيري يو، دوه خلک وي نو پر امام د هغو نصرت کول ضروري نه دی. ځکه چي په داسي حرکت کولو سره به بيا هر يو د نصرت او حمايت په طمع او لالچ کي ګرېږ جوړوي او لوټماري به کوي.



# فَصْلٌ فِي التَّنْفِيْلِ

(دا) فصل د نفل (يعني د زائد انعام وركولو په بيان كي) دى

## د امام له طرفه "د نفل" د بخشش كولو وعده

قال: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُنَفِّلَ الْإِمَامُ فِي حَالِ الْقِتَالِ فرمايي: او په دې كي هيڅ حرج نسته چي د قتال [جنګ] په حالت كي امام تنفيل وكړي وَيُحَرِّضَ عَلَى الْقِتَالِ او [په دې سره] مجاهدين پر قتال وهڅوي فَيَقُولَ مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ سَلَبُهُ او [مثلاً داسي] ووايي: "كوم مجاهد چي يو كافر قتل كړي نو د كافر سامان د هغه دى" وَيَقُولَ لِلسَّرِيَّةِ: قَدْ جَعَلْتُ لَكُمُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ ايا مثلاً] سريې والا ته [داسي] ووايي: "تر خُمس وروسته د غنيمت څلورمه حصه ما ستاسو لپاره [خاص] وګرځوله مَعْنَاهُ بَعْدَمَا رَفَعَ الْخُمُسَ يعني تر خمُس ايستلو وروسته لِأَنَّ التَّحْرِيضَ مَنْدُوبٌ إِلَيْهِ ځكه چي [پر جنګ] هڅول مستحب دي قَالَ اللهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ [الأنفال: ٦٥] الله تعالىٰ فرمايلي دي: اې نبي! مسلمانان پر جنګ وهڅوه! وَهَذَا نَوْعُ تَحْرِيضٍ او دا [تنفيل] هم يو قسم هڅول دي ثُمَّ قَدْ يَكُونُ التَّنْفِيلُ بِمَا ذُكِرَ بيا تنفيل كله داسي كيږي لكه څرنګه چي [په متن كي] ذكر سو وَقَدْ يَكُونُ بِغَيْرِهِ او كله له هغه څخه بغير [په بله توګه] كيږي ايعني له هغه څخه بغير په بله طريقه سره هم تنفيل كېداى سي] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يُنَفِّلَ بِكُلِّ الْمَأْخُوذِ لېكن د امام لپاره پكار نه دي چي د ټوله اخيستل سوي مال تنفيل وكړي لِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ حَقِّ الْكُلِّ ځكه چي په دې كي د ټولو د حق باطلول دي فَإِنْ فَعَلَهُ مَعَ السَّرِيَّةِ جَازَ لېكن كه د سريې والا سره داسي وكړي نو جائز دي لِأَنَّ التَّصَرُّفَ إِلَيْهِ ځكه چي تصرف [فقط] امام ته حاصل دى وَقَدْ يَكُونُ الْمَصْلَحَةُ فِيهِ او كله نا كله په داسي كولو كي مصلحت [او خير] وي وَلَا يُنَفِّلُ بَعْدَ إِحْرَازِ الْغَنِيمَةِ بِدَارِ الْإِسْلَامِ او په دارُ الاسلا كي د غنيمت تر جمع كولو وروسته امام تنفيل نه سي

کولای لِأَنَّ حَقَّ الْغَيْرِ قَدْ تَأَكَّدَ فِيهِ بِالْإِحْرَازِ ځکه چي د إحراز (جمع کولو) په وجه په دې مال کي د نورو حق پوخ (او مضبوط) سو قَالَ: إِلَّا مِنَ الْخُمُسِ فرمايي: مګر له خمس څخه تنفيل کولای سي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِلْغَانِمِينَ فِي الْخُمُسِ ځکه چي په خُمس کي د مجاهدينو حق نسته.

**اللغات**: ﴿يُنَفِّل﴾ د تفعيل مضارع ده، نَفَّلَ يُنَفِّلُ تَنْفِيْلًا: د اضافي انعام ورکولو وعده کول. ﴿يُحَرِّض﴾ د تفعيل مضارع ده: حَرَّضَ يُحَرِّضُ تَحْرِيْضًا: هڅول، آماده کول، پارول، تشويقول، جنګ او جګړې ته تيارول. ﴿سَلَبَ﴾ (د لام په فتحه سره): سلب کړی سوی سامان. هغه سامان چي له يو چا څخه په زور سلب کړی سي. مراد ځني د مقتول وسله او سامان دی. ﴿سرية﴾ د مجاهدينو کوچنی ډله، کوچنی لښکر. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول (خوندي کول). ذخيره کول (جمع کول). ﴿غانمين﴾ جمع د غَانِمٌ ده: غنيمت حاصلونکي، مراد ځني غازي او مجاهد دی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که امام د قتال په دوارن کي پر جنګ د مجاهدينو د هڅولو لپاره هغو ته د "نفل" په توګه د څه انعام ورکولو اعلان وکړي، نو دا صحيح او جائز دي. مثلاً امام داسي ووايي: "کوم مجاهد چي کافر قتل کړي، د هغه مقتول کافر وسله او سامان هم د هغه مجاهد دي". يا مثلاً امام د يوې سرېې مجاهدينو ته داسي ووايي: "کوم مال چي تاسي حاصل کړئ. تر خمس ايستلو وروسته هغه ټوله مال ستاسو دی". نو دغه تحريض بشکل التنفيل صحيح او جائز دی او د قرآن کريم په دې آيت سره ثابت دی "يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ" او د تنفيل په حواله سره چي کوم صورت موږ بيان کړی هغه هم د تحريض يو صورت دی بلکي أهم صورت يې دی. او تحريض فقط زموږ د دغه بيان سوي صورت سره خاص نه دی بلکي له دې څخه بغير په نورو طريقو سره هم تحريض کېدای سي، مثلاً امام داسي ووايي "که چيري په مال غنيمت کي سره زر او سپين زر لاس ته راسي نو هغه زه تاسي ته د "نفل" په توګه درکووم" او داسي نور. لنډه دا چي په دې باره کي هره طريقه صحيح ده.

خو امام ته پکار دي چي د ټوله مال غنيمت د تنفيل اعلان نه وکړي. ځکه چي په داسي کولو سره به د نورو مجاهدينو حق ضايع سي، او د يو چا حق ضايع کول او لاندي کول صحيح نه دی. ها! که چيري امام د سرېې سره دا کار وکړي يعني د سرېې مجاهدينو ته داسي ووايي: "په دغه جنګ کي چي کوم مال تاسي حاصل کړی هغه ستاسو دی". نو امام ته د داسي ويلو او کولو حق سته. ځکه چي د

تصرّف ولايت فقط امام ته حاصل دی. او ځيني وخت په داسي کولو کي مصلحت او خير هم وي.
نو ځکه به امام ته د دې حق وي.

**ولا ينفل إلخ:** فرمايي چي په دارُ الاسلام کي د مالِ غنيمت تر جمع کولو وروسته امام تنفيل نه سي کولای؛ ځکه چي تر إحراز وروسته د دغه مال سره د هر مجاهد حق متعلق کيږي او د هر مجاهد حق پکښې مستحکم کيږي. همدارنګه تر إحراز وروسته قتال ختم سي حال دا چي تنفيل د تحريض على القتال لپاره دی. نو ځکه به تر إحراز وروسته د تنفيل هيڅ فايده نه وي. ها! له مال غنيمت څخه تر خمس ايستلو وروسته تنفيل کېدای سي. ځکه چي په خُمس کي د غازيانو او مجاهدينو حق نسته. نو ځکه به دا د هغو د حق إبطال نه وي.

## د مقتول په سامان کي د قاتل استحقاق

وَإِذَا لَمْ يَجْعَلِ السَّلَبَ لِلْقَاتِلِ او که چيري امام د قتل کونکي [مجاهد] لپاره [د مقتول] سامان مقرر کړی نه وي فَهُوَ مِنْ جُمْلَةِ الْغَنِيمَةِ نو هغه سامان به د غنيمت له مجموعې څخه وي وَالْقَاتِلُ وَغَيْرُهُ فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ او قاتل او غير قاتل به په هغه کي برابر وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: اَلسَّلَبُ لِلْقَاتِلِ إِذَا كَانَ مِنْ أَهْلِ أَنْ يُسْهَمَ لَهُ وَقَدْ قَتَلَهُ مُقْبِلًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د مقتول] سامان به د قاتل وي [په دې شرط] کله چي هغه د دې أهل وي چي [په غنيمت کي] حصه ورکول سي او هغه يو مخامخ حمله کونکي [کافر] قتل کړی وي لِقَوْلِهِ [1] عَلَيْهِ السَّلَامُ: مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ سَلَبُهُ ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: څوک چي يو څوک قتل کړي نو د مقتول سامان به د هغه وي وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ نَصْبُ شَرْعٍ او ښکاره دا ده چي دا د يو قانون مقرر کول دي [يعني ظاهري حالت دا دی چي په دې فرمان سره نبي ﷺ د همېشه لپاره يو قانون ښوولی او مقرر کړی دی] لِأَنَّهُ بَعَثَهُ لَهُ ځکه چي نبي کريم ﷺ د همدې [قانون مقرر کولو] لپاره رالېږل سوی وو وَلِأَنَّ الْقَاتِلَ مُقْبِلًا أَكْثَرُ غَنَاءً او ځکه چي د مخامخ حمله کولو والا قتل کونکی [مسلمانانو ته] زيات نفع رسونکی دی [يعني کوم قاتل (مجاهد) چي داسي کافر قتل کړي کوم چي مخامخ حمله کونکي وي نو په دې سره هغه مسلمانانو ته زياته نفع ورسوله] فَيَخْتَصُّ بِسَلَبِهِ نو ځکه به دغه قاتل د هغه مقتول د سامان سره خاص کيږي إِظْهَارًا لِلتَّفَاوُتِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ د دې

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الجهاد باب في السلب يعطى القاتل، رقم الحديث: ۲۷۱۷.

لپاره چې د ده او د نورو په مینځ کې فرق ښکاره کړی شي. وَلَنَا: أَنَّهُ مَأْخُوذٌ بِقُوَّةِ الْجَيْشِ زموږ دلیل دا دی: چې دا سامان د لښکر په زور سره اخیستل سوی دی فَيَكُونُ غَنِيمَةً نو ځکه به دا غنیمت وي فَيُقْسَمُ قِسْمَةَ الْغَنَائِمِ او د غنیمتونو په څیر به تقسیمول کیږي كَمَا نَطَقَ بِهِ النَّصُّ لکه قرآني آیت چې د دې بیان کړی دی [مراد څني دا آیت دی: وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ...(سورة الأنفال:٤١)] وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: لِحَبِيبِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ: لَيْسَ لَكَ مِنْ سَلَبِ قَتِيلِكَ إِلَّا مَا طَابَتْ بِهِ نَفْسُ إِمَامِكَ او نبي کریم ﷺ حبیب بني أبی سلمه رضی الله عنه ته وفرمایل چې: ستا لپاره [فقط] د مقتول هغه سامان دی چې د هغه [په درکولو] ستا امام خوشاله وي ایعني ته نقط د خپل مقتول هغه سامان اخیستلای سې کوم چې یې امام تا ته درکړي] وَمَا رَوَاهُ يَحْتَمِلُ نَصْبَ الشَّرْعِ وَيَحْتَمِلُ التَّنْفِيلَ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله روایت کړی سوی حدیث د قانون مقرّر کولو [او ښوولو] احتمال [هم] لري او د نفل په توګه د ورکولو احتمال [هم] لري فَنَحْمِلُهُ عَلَى الثَّانِي لِمَا رَوَيْنَاهُ نو ځکه موږ د حضرت حبیب رضی الله عنه په حدیث سره دغه روایت پر دویمه معنیٰ حمل کوو وَزِيَادَةُ الْغَنَاءِ لَا تُعْتَبَرُ فِي جِنْسٍ او د نفع زیاتوب په یوه جنس کې معتبر نه دی وَاحِدٍ كَمَا ذَكَرْنَاهُ لکه مخکې چې موږ [دا خبره] ذکر کړه.

**اللغات**: ﴿جملة﴾ مجموعه، ﴿مُقبِل﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: د مخ لخوا وار کونکی، مخامخ حمله کونکی، ﴿ما طابت به نفسه﴾ هغه څه چې د انسان زړه په خوشاله سي، دلته یې مطلب دا دی هغه څه کوم چې یې تا ته خپل امام په رضا او خوښي سره درکړي، ﴿قتیل﴾ قتل کړی سوی (وژل سوی)، مقتول.

**تشریح**: **صورت دمسئلې**: دا دی چې زموږ په نیز به قاتل (غازي) ته په هغه صورت کې د مقتول وسله او سامان ورکول کیږي کله چې امام داسې اعلان کړی وي چې "من قتل قتیلا فله سلبه". لیکن که د امام له طرفه دا اعلان نه وسي، نو زموږ په نیز به قاتل د مقتول د سامان حقدار نه وي، بلکې هغه سامان به په مال غنیمت کې شاملیږي او ټوله مجاهدین به په هغه کې شریک وي. د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز حکم دا دی چې که چیري قاتل د سهم او حصې مستحق وي او هغه مخامخ حمله کونکی کافر قتل کړی وي (یعني کافر د قاتل سره مخامخ جنګ او نښته کړې وي او بیا قاتل هغه قتل کړی وي، داسې نه وي چې د کافر شا وي، یا د تیښتې په حال کې وي او قاتل قتل کړی وي) نو په دې صورت کې قاتل د هغه مقتول د سامان مستحق کیږي.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې په حدیث کې په ښکاره توګه دا اعلان سوی دی "من قتل قتیلا فله سلبه". په دې حدیث سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې توګه دلیل نیسي چې نبي کریم ﷺ په دې فرمان سره (د همېشه

لپاره) يوه قاعده او قانون ټاکلی دی چې قاتل به د مقتول د سامان مستحق وي، او څرنګه چې نبي ﷺ د شرعي قوانيو د ټاکلو او د خلکو د لارښوونې لپاره دنيا ته را استول سوی دی. لهذا په دې حواله سره دغه طرف ته نور تقويت حاصل سو.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چې کله قاتل يو داسي کافر قتل کړي کوم چې مخامخ پر مسلمانانو حمله کول غوارې نو ښکاره خبره ده چې قاتل د هغه له شر څخه د ډېرو مسلمانانو ځان او نفس وساتی، او د مسلمانانو ځان ساتل ډېر أهم کار دی او ډېره غټه نفع ده. نو په دې وجه به هم دغه قاتل (غازي) د هغه کافر مقتول د سامان مستحق وي، د دې لپاره چې د ده او د نورو قاتلانو (غازيانو) په مينځ کي فرق وسي.

ګواکي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به داسي قاتل ته د خپل شجاعت او مېړاني په وجه د مقتول سامان په انعام کي ورکول کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې نبي کريم ﷺ حضرت حبيب بن سلمه رضی الله عنه ته داسي وفرمايل چې "ليس لک من سلب قتيلک إلا ما طابت به نفس إمامك" يعني د مقتول په سامان کي فقط ستاسي حق نسته يعني ټول سامان ستاسي نه دی بلکي څومره چې ستاسو امام وغواړي بس! هغومره به تاسي اخلئ!. صاحب د بنايې ليکلي دي چې نبي کريم ﷺ دا إرشاد او فرمان مخامخ (براه راست) حضرت حبيب ته نه وو کړی. بلکي دا د حضرت معاذ رضی الله عنه فرمان دی، قصه داسي ده چې يو وار حضرت حبيب رضی الله عنه يو تاجر قتل کړی چې د هغه سره ډېر زيات مال وو، کله چې هغه مال راوړل سو نو حضرت حبيب رضی الله عنه وغوښتل چې ټول مال واخلي. لېکن حضرت ابو عبيده رضی الله عنه ورته وويل چې وروره!! ټول مه اخله! نو حضرت حبيب وويل: "قال رسول الله ﷺ: من قتل قتيلا فله سلبه"، د دې په اوريدلو سره حضرت ابو عبيده وويل: "لم يکن ذلک للأبد" چې د نبي کريم ﷺ دا إرشاد د همېشه لپاره نه وو، نو په دې وخت کي حضرت معاذ رضی الله عنه حضرت حبيب رضی الله عنه ته وفرمايل: "ألا تتقي الله وتأخذ ما طابت به نفس إمامك" چې اې حبيب! له الله څخه وېرېږه او څومره چې د امام خوښه وي هغه په رضا سره واخله!. او حضرت معاذ دا کلام تر نبي کريم ﷺ پوري مرفوع کړی او پر دې باندي هغو اتفاق وکړی(بنايه ج:۶، ص:۵۹۶)، له دې څخه معلومه سوه چې د امام له مخکني اعلان څخه بغير قاتل د مقتول د پوره سامان نه حقداره کيږي.

پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله بيان سوی حديث نو په هغه کي دوه احتماله دي: (۱) هغه به قانون وي. (۲) يا هغه به د انعام او تنفيل په توګه وي، او څرنګه چې د حضرت معاذ رضی الله عنه په روايت سره د دې خبرې تائيد کيږي چې هغه د تنفيل په توګه دی. نو ځکه موږ هغه پر تنفيل محمول کړو. او بل دا چې که هغه قانون وای نو په هغه کي به د مخامخ حمله کونکي کافر قتل کول شرط نه وای، ځکه چې د شريعت قوانين عموماً عام وي. او بل دا چې فقط په قتال کولو کي زياته نفع رسول معتبر نه دي، ځکه چې زموږ په نېز "کر" او "فر"

دواړه يو شی دي او له يوه جنس څخه دي، نو کله چي کرّ او فرّ دواړه يو شی دي، نو د مُقبِل کافر او مُدبِر کافر قتل کول به هم يو شی وي او د انعام په حواله سره به په دوی کي هيڅ فرق نه کيږي.

## د "سلب" تشريح او تعيين

وَالسَّلَبُ مَا عَلَى الْمَقْتُولِ مِنْ ثِيَابِهِ وَسِلَاحِهِ او سَلَب هغه جامه او وسله ده کوم چي د مقتول پر بدن وي وَمَرْكَبُهُ وَكَذَا مَا كَانَ عَلَى مَرْكَبِهِ مِنَ السَّرْجِ وَالْآلَةِ او [همدارنګه] د هغه سپارلي او هغه زين او آلات [قيزه] کوم چي پر سپارلي وي وَكَذَا مَا مَعَهُ عَلَى الدَّابَّةِ مِنْ مَالِهِ فِي حَقِيبَتِهِ أَوْ عَلَى وَسَطِهِ او همدارنګه هغه مال کوم چي د ده سره په تبلی [بسته] کي وي يا په هغه تبلی کي وي کوم چي د سپارلی پر مينځ [انس] تړل سوې وي وَمَا عَدَا ذٰلِكَ فَلَيْسَ بِسَلَبٍ او له دې څخه بغير نور شيان سَلَب نه دی وَمَا كَانَ مَعَ غُلَامِهِ عَلَى دَابَّةٍ أُخْرَىٰ فَلَيْسَ بِسَلَبِهِ او کوم سامان چي د ده د غلام سره پر بله سپارلي وي نو هغه [هم] د ده سَلَب نه دی. ثُمَّ حُكْمُ التَّنْفِيلِ قَطْعُ حَقِّ الْبَاقِينَ بيا د تنفيل حکم دا دی: چي [له دې مال څخه] د نورو مجاهدينو حق قطع کيږي فَأَمَّا الْمِلْكُ فَإِنَّمَا يَثْبُتُ بَعْدَ الْإِحْرَازِ بِدَارِ الْإِسْلَامِ او کوم چي ملکيت دی نو اد منفل لهٔ لپاره] هغه په دارُ الاسلام کي تر أحراز وروسته ثابتيږي لِمَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چي مخکي تېر سو حَتّٰى لَوْ قَالَ الْإِمَامُ: مَنْ أَصَابَ جَارِيَةً فَهِيَ لَهُ تر دې که امام [داسي] ووايي: "کوم غازي چي مينځه ترلاسه کړي هغه مينځه د هغه ده" فَأَصَابَهَا مُسْلِمٌ وَاسْتَبْرَأَهَا بيا يو مجاهد يوه مينځه ترلاسه کړي او د هغې استبراء [هم] وکړي ايعني په حيض سره هغه پاکه هم کړي] لَمْ يَحِلَّ لَهُ وَطْؤُهَا وَكَذَا لَا يَبِيعُهَا نو د دې مجاهد لپاره د هغه مينځي سره وطي کول روا نه دي او نه د هغې خرڅول روا دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ: مُحَمَّدٌ❁: لَهُ أَنْ يَطَأَهَا وَيَبِيعَهَا امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغې سره وطي کول هم روا دي او د هغې خرڅول هم روا دي لِأَنَّ التَّنْفِيلَ يَثْبُتُ بِهِ الْمِلْكُ عِنْدَهُ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په تنفيل سره ملکيت ثابتيږي كَمَا يَثْبُتُ بِالْقِسْمَةِ فِي دَارِ الْحَرْبِ وَبِالشِّرَاءِ مِنَ الْحَرْبِيِّ لکه په دارُ الحرب کي د تقسيمولو او له حربي څخه د رانيولو په صورت کي چي ملکيت ثابتيږي وَوُجُوبُ الضَّمَانِ بِالْإِتْلَافِ قَدْ قِيلَ: عَلَى هٰذَا الِاخْتِلَافِ او د هلاکولو په وجه د ضمان واجبدلو په باره کي ويل سوي دي: چي هغه [هم] پر دغه اختلاف دي.

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۶۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۸۵]

**اللغات**: ﴿مركب﴾ سپارلي، سورلي، ﴿ما عدا ذالک﴾ له دې څخه بغير، له دې څخه بغير. ﴿حقيبة﴾ بستره، خلته، تېلۍ، صاحب د معجم الوسيط يې داسې تعريف کړی دی: خريطة يعلقها المسافر في الرحل للزاد (يعني هغه غټه خلته او کڅوړه کوم چې يې مسافر او مجاهد د سپارلۍ په کجاوه کې راځړوي او خوراک، جامې او داسې نور څه پکښې ږدي)، ﴿وسط﴾ دا هغه تېلۍ او کڅوړې ته وايي کوم چې يې مسافر او مجاهد د آس پر مینځ يعني د هغه پر نس راځړوي چې په هغه کې خپل سامان ږدي، ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: محفوظه کول، خوندي کول، ﴿إتلاف﴾ د افعال مصدر دی: هلاکول.

**تشريح**: مخکې چې کوم دا خبره ذکر سوه چې که امام د تنفيل اعلان وکړي نو قاتل د مقتول د سلب او سامان حقدار جوړيږي، په دې عبارت کې د هغه سلب تعيين او تفصيل بيان سوی دی، نو فرمايي چې د مقتول د بدن جامې، اسلحه، او نور مالونه کوم چې د مقتول په خلته (تېلۍ) کې محفوظ وي، همدارنګه د هغه آس، د آس زين او قيضه (قيزه) دا ټوله شيان په سلب کې داخل او شامل دي او منفل لهٔ (قاتل) د دې ټولو شيانو مستحق دی. له دې څخه بغير که چيرې د مقتول بله سپارلي وي او پر هغه باندې هم سامان وي چې هغه د مقتول د غلام په لاس کې وي (يعني د هغه غلام يې حفاظت کوي)، نو هغه سپارلي او داسې نور سلب نه دی.

بيا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په تنفيل سره فقط په دارُ الحرب کې دا حکم ثابتيږي چې د دغه مقتول له سامان څخه د نورو مجاهدينو حق منطقع کيږي او د منفل لهٔ ملکيت په دارُ الاسلام کې تر إحراز وروسته ثابتيږي، لېکن د امام محمد او ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله په نيز محض په تنفيل سره د مقتول په سلب کې د قاتل ملکيت ثابتيږي، نو که چيرې امام د تنفيل داسې اعلان وکړي چې "هر مجاهد چې مينځه حاصله کړي هغه مينځه د هغه مجاهد ده" او بيا يو مجاهد يو کافر قتل کړي او د هغه مينځه ترلاسه کړي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه مجاهد په دارُ الحرب کې د مينځې سره نه وطي کولای سي او نه يې خرڅولای سي، لېکن د امام محمد او ائمه ثلاثه وو په نيز دا دواړه شيان حلال او روا دي، ځکه چې د دوی په نيز په تنفيل سره ملکيت ثابت سو.

**ووجوب الضمان إلخ**: د دې حاصل دا دی چې که يو مجاهد د مقتول سلب او سامان حاصل کړي او بيا يو بل څوک هغه هلاک کړي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به مُتلف (هلاکوکی) نه ضامن کيږي، ځکه چې قاتل مجاهد د هغه مالک نه دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به مُتلف د هغه ضامن کيږي، ځکه چې د امام محمد په نيز مجاهد د هغه مالک سو او په هغه کې د مجاهد ملکيت ثابت سو. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ اِسْتِيلَاءِ الْكُفَّارِ

(دا) باب د كافرانو د غالبېدلو (د احكامو په بيان كي) دی

**تشريح:** مخكي تر دې د مسلمانانو د استيلاء په هکله بيان وسو. اوس له دې ځايه د كفارو د استيلاء بيان كيږي او ښكاره خبره ده چي د مسلمانانو أحكام له كفارو څخه مقدم او أفضل دي. نو په دې وجه يې هغه مخكي بيان كړل.

## د كفارو په قبضه كي د راتلونكو أموالو حكم

وَإِذَا غَلَبَ التُّرْكُ عَلَى الرُّومِ او كه چيري ترک والا [تركيان] پر روميانو غالب سي فَسَبَوْهُمْ وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ او هغوی قيد كړي او مالونه يې واخلي مَلَكُوهَا نو هغوی د دې [مالونو] مالكان كيږي لِأَنَّ الِاسْتِيلَاءَ قَدْ تَحَقَّقَ فِي مَالٍ مُبَاحٍ ځكه چي په مباح مال كي غلبه ثابته سوه وَهُوَ السَّبَبُ او همدا غلبه د ملكيت سبب ده عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چي وروسته به موږ انشاء الله د دې بيان وكړو فَإِنْ غَلَبْنَا عَلَى التُّرْكِ حَلَّ لَنَا مَا نَجِدُهُ مِنْ ذَلِكَ او كه چيري موږ پر تركيانو غالب سو نو زموږ لپاره هغه مالونه حلال ګرځي كوم چي يې موږ حاصل كړو اعْتِبَارًا بِسَائِرِ أَمْلَاكِهِمْ د هغوی پر نورو ملكيتونو باندي په قياس كولو سره وَإِذَا غَلَبُوا عَلَى أَمْوَالِنَا وَالْعِيَاذُ بِاللهِ وَأَحْرَزُوهَا بِدَارِهِمْ او كه هغوی زموږ پر مالونو غالب سي (العياذ بالله) او [بيا] هغه مالونه په خپل ملک كي محفوظ كړي [يعني دارُ الحرب ته يې يووړي] مَلَكُوهَا نو دوی د هغه مالكان كيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَمْلِكُونَهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه نه مالكان كيږي لِأَنَّ الِاسْتِيلَاءَ مَحْظُورٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً ځكه چي [زموږ پر مالونو د كفارو] قبضه ممنوع ده ابتداءً هم او انتهاءً هم وَالْمَحْظُورُ لَا يَنْتَهِضُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ او ممنوع د ملكيت سبب جوړېدلای نه سي عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ قَاعِدَةِ الْخَصْمِ لكه څرنګه چي د خصم له قاعدې څخه معلومه سوې ده وَلَنَا أَنَّ الِاسْتِيلَاءَ وَرَدَ عَلَى مَالٍ مُبَاحٍ زموږ دليل دا دی: چي [د كفارو] قبضه پر مباح مال واقع سوې ده فَيَنْعَقِدُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ دَفْعًا لِحَاجَةِ الْمُكَلَّفِ لهذا د مكلف د حاجت دفع

کولو په خاطر به دا قبضه د ملکيت سبب جوړيږي كَاسْتِيلَائِنَا عَلَى أَمْوَالِهِمْ لکه زموږ قبضه چې د دوی پر مالونو [د ملکيت سبب جوړيږي] وَهَذَا لِأَنَّ الْعِصْمَةَ تَثْبُتُ عَلَى مُنَافَاةِ الدَّلِيلِ ضَرُورَةَ تَمَكُّنِ الْمَالِكِ مِنَ الِانْتِفَاعِ او دا حکم په دې وجه دی چې [د أموالو] عصمت ځکه ثابتيږي چې مالک د نفع پر حاصلولو قادر سي فَإِذَا زَالَتِ الْمُكْنَةُ [الیکن] کله چې د انتفاع قدرت زائل سي عَادَ مُبَاحًا كَمَا كَانَ نو هغه مال د مخکې په څير مباح وګرځي غَيْرَ أَنَّ الِاسْتِيلَاءَ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالْإِحْرَازِ بِالدَّارِ خو له إحراز بالدار څخه بغير پوره قبضه نه ثابتيږي لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنِ الِاقْتِدَارِ عَلَى الْمَحَلِّ حَالًا وَمَآلًا ځکه چې قبضه په حال او مآل [پای] دواړو کې پر مقبوضه مال له قدرت لرلو څخه عبارت ده ايعني استيلاء او قبضه دې ته وايي چې په حال او مستقبل دواړو کې قابض د مقبوضه مال پر انتفاع قادر وي] وَالْمَحْظُورُ لِغَيْرِهِ إِذَا صَلُحَ سَبَبًا لِكَرَامَةٍ تَفُوقُ الْمِلْكَ وَهُوَ الثَّوَابُ الْآجِلُ فَمَا ظَنُّكَ بِالْمِلْكِ الْعَاجِلِ؟ او ممنوع لغيره چې کله د يو داسې کرامت [ستر والي] سبب وي کوم چې له ملکيت څخه بالا اغتر] وي چې هغه أخروي ثواب دی نو د اوسني ملکيت [دنياوي منفعت] په هکله ستا څه خيال دی؟

**اللغات**: ﴿تُرْك﴾ ترکيان، د ترک والا، رُوْم: روميان، دلته له تُرک او روم څخه مراد دوه کفري ملکونه دي. ﴿سبوهم﴾ د ضرب ماضي ده، سَبَى يَسْبِيًا سَبْيًا: دښمن قيدول، بندي کول. ﴿استيلاء﴾ د افتعال اسم مصدر دی: غلبه، قبضه، فتح. ﴿لا ينتهض﴾ د افتعال له باب څخه د نفي صيغه ده: ولاړېدل، پورته کېدل، دلته ځني مراد جوړېدل دي لاينتهض سببًا: يعني سبب نه جوړيږي (أحسن الهداية). ﴿خصم﴾ مخالف فريق، مدعي او مدعىٰ عليه دواړو ته ويل کيږي. ﴿مُكنة﴾ قدرت، طاقت. ﴿مَآل﴾ پای، وروسته (مستقبل او راتلونکي وخت). ﴿آجل﴾ وروستني، ځنډنی، مؤخر. ﴿عَاجِل﴾ بيړه کونکی، اوسنی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د تُرک خلک د رُوم پر خلکو غالب سي (يعني که ديوه کافر ملک خلک د بل کافر ملک پر خلکو غالب راسي) او د هغوی مالونه لوټ کړي نو هغوی (ترکيان) د دې أموالو مالکان جوړيږي، ځکه چې قبضه او غلبه د مباح مال د ملکيت سبب ده او دلته قبضه او غلبه موجوده سو، نو ځکه به ترکيان د روميانو د أموالو مالکان ګرځي. تر دې وروسته که موږ پر ترکيانو غالب راسو نو کوم مالونه چې هغوی له روميانو څخه اخيستي وي. هغه ټوله مالونه به زموږ لپاره حلال او صحيح وي. او که خدای مه کړه! هغوی (ترکيان يا روميان) پر موږ غالب سي او زموږ پر

أموالو قابض سي او دارُ الحرب ته يې نقل کړي نو زموږ په نيز به دوی د هغه أموالو مالکان جوړيږي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د هغه مالکان نه جوړيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د مسلمانانو أموال نعمت دي. او کفار پر نعمت قابض کېدلای نه سي نه ابتداءً يعني په دارُ الاسلام کي او نه انتهاءً يعني دارُ الحرب ته تر نقل کولو وروسته. او کله چې د دوی غالب کېدل او قابض کېدل ممنوع دي نو ښکاره خبره ده چې دا ممنوع شی به د دوی په حق کي ملکيت نه فايده کوي (او دوی به زموږ د أموالو مالکان نه جوړيږي). لهذا نه خو به د دوی استيلاء صحيح وي او نه به د دوی ملکيت معتبر وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د کفارو دا قبضه پر مباح مال واقع سوې ده. د دې حاصل دا دی چې د مسلمانانو مال چې تر څو د مسلمانانو په قبضه کي وي (يعني چې تر څو دوی د خپل مال مالکان وي) تر هغه وخته پوري مال معصوم او قابلِ احترام وي. حالانکي د "خُلِقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا" له روېه په هغه وخت کي هم د مسلمانانو د أموالو مباح کېدل پکار دي. لېکن موږ د مالکانو د ضرورت او د هغه د انتفاع د حاجت په خاطر په هغه کي عصمت ثابت کړی او د نورو شرکت مو ختم کړی. لېکن کله چې کفارو پر دې مال غالب سول. نو د هغو د غالبېدلو په وجه په دې مال کي عصمت ختم سو او دا مال د "خُلِقَ لَكُم...إلخ" په وجه مباح سو او ګواکي کفارو پر مباح مال قبضه وکړه. او د مباح قبضه ملکيت فايده کوي. نو ځکه به کفار زموږ د أموالو مالکان جوړيږي. لېکن د دوی دا قبضه به هغه وخت پوره او بشپړ کېږي کله چې هغوی دا مالونه دارُ الحرب ته نقل کړي. ځکه چې استيلاء دې ته وايي چې له مقبوضه مال څخه فی الحال او فی المآل دواړه ډوله نفع اخيستل ممکن وي. او د کفارو په حق کي دارُ الاسلام د فی الحال نفع اخيستلو (انتفاع) مقام دی او دارُ الحرب د فی المآل (يعني د مستقبل په اعتبار) سره د انتفاع مقام دی. او په ادارُ الاسلام کي د کفارو په استيلاء سره فی الحاله انتفاع ثابته سوه. او کله چې کفار دغه أموال دارُ الحرب ته نقل کړي نو فی المآله انتفاع به هم ثابته سي او استيلاء به کامله او بشپړ سي.

**والمحظور لغيره إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي. حاصل يې دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله چې د کفارو استيلاء ممنوع ګرځوي او کفار د مسلمانانو د أموالو مالکان نه ګرځوي دا صحيح نه دي. ځکه چې ممنوع او محظور شی له ملکيت څخه هم د زيات غټ شي د ثبوت او حصول سبب جوړېدای سي (ملکيت خو هلته پر پرده!). مثلاً که يو څوک ديو چا ځمکه غصب کړي. او بيا په هغه ځمکه کي هغه (غاصب) لمونځ وکړي نو هغه ته د لمانځه ثواب حاصليږي. حالانکي د ثواب تعلق د آخرت سره دی. نو کله چې په مغصوبه ځمکه کي لمونځ کول د ثواب

موجب دی حال دا چي غصب ممنوع او محظور دی، نو په محظور او ممنوع استيلاء سره خو به دنياوي ملكيت او منفعت په طريقه اولیٰ سره حاصليږي. په عبارت كي له "بِالْمِلْكِ الْعَاجِل" څخه دغه دنياوي ملكيت مراد دی.

## له حربيانو څخه د اموالو د واپس اخيستلو بيان

فَإِنْ ظَهَرَ عَلَيْهَا الْمُسْلِمُونَ فَوَجَدَهَا الْمَالِكُونَ قَبْلَ الْقِسْمَةِ بيا كه مسلمانان پر هغو مالونو غالب سي او تر تقسيم مخكي مالكان خپل مالونه پيدا وكړي فَهِيَ لَهُمْ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو هغه مالونه به بېله عوضه د دوی وي وَإِنْ وَجَدُوهَا بَعْدَ الْقِسْمَةِ او كه تر تقسيم وروسته مالكان خپل مالونه پيدا كړي أَخَذُوهَا بِالْقِيمَةِ إِنْ أَحَبُّوا نو هغه به دوی د قيمت په عوض كي اخلي كه چيري د دوی خوښه وي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1] فِيهِ: إِنْ وَجَدْتَهُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ فَهُوَ لَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ وَإِنْ وَجَدْتَه بَعْدَ الْقِسْمَةِ فَهُوَ لَكَ بِالْقِيمَةِ ځكه په دې باره كي نبي كريم ﷺ فرمايلي دي: كه چيري تر تقسيم مخكي ته هغه پيدا كړي نو هغه بېله قيمته ستا دی او كه تر تقسيم وروسته يې پيدا كړي نو هغه د قيمت په عوض كي ستا دی وَلِأَنَّ الْمَالِكَ الْقَدِيمَ زَالَ مِلْكُهُ بِغَيْرِ رِضَاهُ او ځكه چي د پخواني مالک [يعني د اول مالک] ملكيت د هغه له رضاء څخه بغير زائل سو فَكَانَ لَهُ حَقُّ الْأَخْذِ نَظَرًا لَهُ لهذا د هغه د مصلحت [او پر هغه د شفقت] په خاطر به هغه ته د اخيستلو حق وي إِلَّا أَنَّ فِي الْأَخْذِ بَعْدَ الْقِسْمَةِ ضَرَرًا بِالْمَأْخُوذِ مِنْهُ خو [څرنګه چي] تر تقسيم وروسته په اخيستلو كي د مأخوذ منهٗ تاوان دی بِإِزَالَةِ مِلْكِهِ الْخَاصِّ ځكه چي [په اخيستلو كي] د هغه د خاص ملكيت زائلول دي فَيَأْخُذُهُ بِالْقِيمَةِ نو ځكه به [اول مالک] هغه د قيمت په عوض كي اخلي لِيَعْتَدِلَ النَّظَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ چي په دواړو طرفونو كي مصلحت [او ښېګڼه] برابره سي [مطلب دا چي په دواړو طرفونو كي مصلحت ثابت سي او يو طرف هم تاواني نه سي] وَالشَّرِكَةُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ عَامَّةٌ او تر تقسيم مخكي [په دې مال كي] د عامو مجاهدينو شركت وي فَيَقِلُّ الضَّرَرُ لهذا [په هغه صورت كي] به ضرر كم وي فَيَأْخُذُهُ بِغَيْرِ قِيمَةٍ نو ځكه به مالک له قيمت څخه بغير هغه اخلي.

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه ج:۴ ص: ۱۱۴ ۱۱۵.

**اللغات**: ﴿ظهر﴾ د فتح ماضي ده، ښکاره کېدل، کله چې د دې باب په صله کې "عَلیٰ" راسي نو د "غالبېدلو" په معنیٰ سره راځي. ﴿مأخوذ منهُ﴾ هغه کس چې مال ځنې واخيستل سي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چېرې مسلمانان له کفارو څخه دوباره هغه مالونه واخلي کوم چې کفارو له مسلمانانو څخه سلب کړي وي، او تر اوسه هغه مالونه تقسيم سوي نه وي چې (مسلمانان) مالکان خپل مالونه په هغه مالونو کي پيدا کړي، نو هغه مالونه به خپل مالکان اخلي او د هغه په عوض کي به هيڅ قيمت نه ورکوي، او که مالونه تقسيم سوي وي، نو د مالکانو مالونه چې د چا لاس ته راغلي وي، مالکان به هغه ته قيمت ورکوي او خپل مال به ځني اخلي. له قيمت ورکولو څخه بغير به يې نه ځني اخلي؛ ځکه چې په داسي معامله کي نبي کريم ﷺ همدغه حکم کړی دی. عقلي دليل دا دی چې د قابض کېدلو او غالب کېدلو په وجه کفارو دغه مالونه. مالکانو له رضاء څخه بغير سلب کړي وو او دارُ الحرب ته يې نقل کړي وو، لهذا کله چې دا مالونه بير ته د مسلمانانو لاس ته راغله نو خپل مالکان به د هغوی مستحق کېږي، لېکن که تر تقسيمولو وروسته هغه مالونه د بل چا په لاس کي راسي نو له هغه څخه په مُفت اخيستلو کي به هغه ته ضرر لاحق سي. نو په دې وجه مالک ته د قيمت په عوض کي د خپل مال دا اخيستلو اختيار سته. د دې لپاره چې مالک ته خپل مال حاصل سي او مأخوذ منهُ ته د خپل حق په عوض کي قيمت حاصل سي او د دواړو له طرفه معامله برابره سي. او څرنګه چې تر شرکت مخکي په دې مال کي د عامو مجاهدينو حق وي او د هيچا سره دا مال خاص نه وي، نو ځکه به په دې صورت کي مالک له قيمت ورکولو څخه بغير (مُفت) هغه اخلي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

وَإِنْ دَخَلَ دَارَ الْحَرْبِ تَاجِرٌ فَاشْتَرٰى ذٰلِكَ وَأَخْرَجَهُ إِلٰى دَارِ الْإِسْلَامِ او که يو مسلمان تاجر دارُ الحرب ته داخل سي او هغه مال رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راوړي فَمَالِكُهُ الْأَوَّلُ بِالْخِيَارِ نو د هغه مال اول مالک ته اختيار دی إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِالثَّمَنِ الَّذِي اشْتَرَاهُ بِهِ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ که وغواړي نو د هغه ثمن په عوض کي دي يې رانيسي د کوم ثمن په عوض کي چې تاجر [مشتري] هغه رانيولی وي او که وغواړي نو هغه دي پرېږدي لِأَنَّهُ يَتَضَرَّرُ بِالْأَخْذِ مَجَّانًا ځکه چې په مُفت [بېله] عوضه اخيستلو سره تاجر نقصان مند کېږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ قَدْ دَفَعَ الْعِوَضَ بِمُقَابَلَتِهِ آيا ته نه ګورې! چې تاجر د دې مال په بدله کي عوض ورکړی دی فَكَانَ اعْتِدَالُ النَّظَرِ فِيمَا قُلْنَاهُ نو د مصلحت اعتدال [برابر والی] به په هغه صورت کي وي کوم چې موږ ذکر کړی وَلَوِ اشْتَرَاهُ بِعَرَضٍ او که تاجر هغه مال د يو سامان په

عوض كي رانيولى وي يَأْخُذُهُ بِقِيمَةِ الْعَرَضِ نو مالک به د سامان د قيمت په عوض كي هغه مال اخلي وَلَوْوَهَبُوهُ لِمُسْلِمٍ او كه كفارو يو مسلمان ته هغه مال هبه كړى وي يَأْخُذُهُ بِقِيمَتِهِ نو مالک به د خپل قيمت په عوض كي هغه مال اخلي [يعني د هبې په صورت كي به هم هغه د مال قيمت وركوي، مُفت يې نه سي اخيستلاى] لِأَنَّهُ ثَبَتَ لَهُ مِلْكٌ خَاصٌّ ځكه چي موهوب لهٗ لره خاص ملكيت ثابت سوى دى فَلَا يَزَالُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ نو بېله قيمته [مُفت] به هغه نه زائليږي وَلَوْكَانَ مَغْنُومًا وَهُوَ مِثْلِيٌّ او كه هغه په غنيمت كي حاصل كړى سوى وي او مثلي مال وي يَأْخُذُهُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ نو تر تقسيم مخكي به مالک هغه [مُفت] اخلي وَلَا يَأْخُذُهُ بَعْدَهَا [لېكن] تر تقسيم وروسته به يې نه اخلي لِأَنَّ الْأَخْذَ بِالْمِثْلِ غَيْرُ مُفِيدٍ ځكه چي د مثلي شي په عوض كي [مثلي شى] اخيستل هيڅ فايده نه كوي [ابلكي دا بى معنىٰ او بې فايدې سودا ده] وَكَذَا إِذَا كَانَ مَوْهُوبًا همدارنګه كه هغه شى هبه كړى سوى وي لَا يَأْخُذُهُ نو [هم] دي مالک هغه نه اخلي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَكَذَا إِذَا كَانَ مُشْتَرًى بِمِثْلِهِ قَدْرًا وَوَصْفًا همدارنګه كه هغه شى په مقدار او وصف كي په برابرى سره رانيول سوى وي [نو هم دي يې نه اخلي].

**اللغات**: ﴿أخرجه﴾ د افعال ماضي ده: را ايستل (يعني له دارُ الحرب څخه يې را وباسي دارُ الاسلام ته يې راوړي). ﴿مجاناً﴾ مُفت، موت، بېله قيمته، بېله عوضه. ﴿عرض﴾ سامان. ﴿مثلي﴾ هغه شى چي مثل يې موجود وي، لكه سره زر، سپين زر، غلّه مثلاً اُوړه. وريجي دا مثلي شيان دي. يعني د اُوړو په بدله كي به هغومره اُوړه وركول كيږي، كمي او زياتوب پكښي كېداى نه سي كنې سود پكښې راځي كوم چي حرام دى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي كله كفار د مسلمانانو مال سلب كړي او دارُ الحرب ته يې نقل كړي، تر دې وروسته يو مسلمان دارُ الحرب ته ولاړ سي او هغه مال رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راوړي، نو اوس د هغه مال اول مالک ته اختيار دى كه وغواړي نو له رانيونكي تاجر څخه دي په خپل قيمت هغه واخلي (يعني په كوم قيمت چي تاجر هغه رانيولى دى). او كه وغواړي نو هغه دي پرېږدي، يعني كه د قيمت په عوض كي يې اخلي نو صحيح ده كنې مُفت دي يې نه اخلي؛ ځكه چي تاجر هغه مال په ثمن او قيمت په عوض كي رانيولى دى لهذا كه له تاجر څخه مفت دغه مال واخيستل سي، نو په دې كي د تاجر ضرر او تاوان دى. او چا ته ضرر رسول صحيح نه دي. او كه

چيري تاجر د سامان په عوض کي هغه مال رانيولی وي. نو اول مالک به د هغه سامان د قيمت په عوض کي خپل مال ځني اخلي. همدارنګه که کفار هغه مال يو مسلمان ته هبه کړي کړي. نو اول مالک به موهوب لهٗ ته د هغه قيمت ورکوي او بيا به يې ځني اخلي. ځکه چي د مشتري او موهوب لهٗ لپاره په دې مال کي خاص ملکيت ثابت سوی دی. لهذا دا ملکيت به مُفت (بېله عوضه) نه ساقطيږي.

**ولوكان مغنومًا إلخ**: د دې حاصل دا دی که چيري د اول مالک مال په "مال غنيمت" کي مسلمانانو ته حاصل وی او هغه مال مثلي وي يعني د هغه مثل موجود وي. د مثال په توګه د خالد يو مَن اُوړه کفارو سلب کړه او دارُ الحرب ته يې نقل کړه. او بيا مسلمانانو غنيمت حاصل کړی او په غنيمت کي يې هغه يو مَن اُوړه هم راوړل. نو تر تقسيم مخکي به خالد خپل اُوړه مفت اخلي. لېکن که دا اُوړه تقسيم سوي وه او د زيد په حصه کي راغلي وه. نو څرنګه چي اُوړه مثلي شی دی. يعني د اُوړو په بدله کي به اُوړه ورکوي. نو ځکه دا هيڅ فايده نه کوي. يعني که اوس خالد خپل اُوړه اخيستل وغواړي نو د هغه په عوض کي به زيد ته يو مَن اُوړه ورکوي. حالانکي په دې کي د خالد هيڅ فايده نسته. نو ځکه غوره دا ده چي خالد خپل اُوړه واپس نه واخلي.

**وكذا إذا كان موهوبًا إلخ**: د دې حاصل دا دی که د خالد مثلي شی مثلاً يو مَن اُوړه کفارو سلب کړه. وروسته کفارو دا اُوړه مثلاً زيد ته هبه کړه. او بيا خالد وغوښتل چي له زيد (موهوب لهٗ) څخه خپل اُوړه واخلي. نو څرنګه چي اُوړه مثلي شی دی. نو ځکه به خالد زيد ته يو مَن اُوړه ورکوي. او د يو مَن اُوړو په بدله کي يو مَن اُوړه کول هيڅ فايده نه کوي. نو غوره همدا ده چي خالد دي هغه نه اخلي.

**وكذا إذا كان مشترًى بمثله إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که د خالد يو مَن اُوړه کفارو سلب کړه. او بيا زيد له کفارو څخه د يو مَن اُوړو په عوض کي هغه يو مَن اُوړه رانيول (يعني زيد کفارو ته د قيمت پر ځای يو مَن اوړه ورکړه. او هغه د خالد اُوړه يې ځني رانيول). او دارُ الاسلام ته يې راوړه. نو اوس دا هيڅ فايده نه کوي چي خالد د خپل يو مَن اُوړو په عوض کي هغه ته يو مَن اُوړه ورکړي. نو ځکه غوره دا ده چي خالد دي هغه واپس نه اخلي. (قَدْرًا: د مقدار په اعتبار سره. يعني زيد کفارو ته د هغه يو مَن په اُوړو کي يو مَن اوړه ورکړي وي. وَصْفًا: د وصف په اعتبار سره. مثلاً د خالد اُوړه د أعلیٰ درجې اُوړه وه. او زيد هم کفارو ته د اعلیٰ درجې اُوړه ورکړي وي).

## د پورتنی مسئلې یو بل صورت

قَالَ: فَإِنْ أَسَرُوا عَبْدًا فَاشْتَرَاهُ رَجُلٌ وَأَخْرَجَهُ إِلَىٰ دَارِ الْإِسْلَامِ فرمايي: که چيري کفار يو مسلمان غلام قيد کړي او يو سړی هغه رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي فَفُقِئَتْ عَيْنُهُ بيا د غلام سرګه ويستل سي ايعني بيا يو څوک د غلام پر سترګه واري وکړي او د هغه سترګه وباسي، يا يې سترګه ور ړنده کړي] وَأَخَذَ أَرْشَهَا او مشتري د هغه تاوان واخلي فَإِنَّ الْمَوْلَىٰ يَأْخُذُهُ بِالثَّمَنِ الَّذِي أُخِذَ بِهِ مِنَ الْعَدُوِّ نو مالک به دا غلام په هغه ثمن [قيمت] سره اخلي په کوم ثمن سره چي مشتري هغه له کفارو څخه رانيولی وو أَمَّا الْأَخْذُ بِالثَّمَنِ فَلِمَا قُلْنَا کوم چي د ثمن په عوض کي اخيستل دي نو د هغه دليل په وجه دي کوم چي موږ بيان کړی وَلَا يَأْخُذُ الْأَرْشَ او مالک به أرش [تاوان] نه خلي لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيهِ صَحِيحٌ ځکه چي [د سترګي د تاوان اخيستلو په وخت کي] په دې غلام کي د مشتري ملکيت صحيح وو فَلَوْ أَخَذَهُ نو [اوس] که چيري مالک له مشتري څخه هغه تاوان واخلي أَخَذَهُ بِمِثْلِهِ نو د هغه د مثل په عوض کي به يې اخلي [يعني د هغه تاوان په مثل به مالک هم مشتري ته تاوان ورکوي] وَهُوَ لَا يُفِيدُ او دا فايده نه کوي [ځکه چي مثل ورکول او بيرته مثل څني اخيستل بې معنیٰ کار او بې فايدې سودا ده] وَلَا يُحَطُّ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ او له ثمن څخه به هيڅ شی نه کمول کيږي لِأَنَّ الْأَوْصَافَ لَا يُقَابِلُهَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ ځکه چي د أوصافو په مقابله کي ثمن [قيمت] نه راځي بِخِلَافِ الشُّفْعَةِ په خلاف د شفعي لِأَنَّ الصَّفْقَةَ لَمَّا تَحَوَّلَتْ إِلَى الشَّفِيعِ ځکه کله چي صفقه [معامله] د شفعي وطرف ته بدله [او منتقله] سوه صَارَ الْمُشْتَرَىٰ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي بِمَنْزِلَةِ الْمُشْتَرَىٰ شِرَاءً فَاسِدًا نو رانيول سوی شی د مشتري په قبضه کي د هغه شي په څير سو کوم چي په شراء فاسد سره رانيول سوي وي وَالْأَوْصَافُ تُضْمَنُ فِيهِ او په شراء فاسد کي د أوصافو [هم] ضمان واجبيږي كَمَا فِي الْغَصْبِ لکه په غصب کي اچي ضمان واجبيږي] أَمَّا هٰهُنَا الْمِلْكُ صَحِيحٌ لېکن دلته [په دې مسئله کي] ملکيت صحيح دی فَافْتَرَقَا لهذا دواړي مسئلې سره جلا سوې [يعني په دواړو کي فرق راغلی] وَإِنْ أَسَرُوا عَبْدًا فَاشْتَرَاهُ رَجُلٌ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ او که کفار يو علام قيد کړي بيا يو مسلمان هغه د زرو درهمو په عوض کي رانيسي فَأَسَرُوهُ ثَانِيًا وَأَدْخَلُوهُ دَارَ الْحَرْبِ بيا کفار هغه دويم وار قيد کړي او دارُ الحرب ته يې بوځي فَاشْتَرَاهُ رَجُلٌ آخَرُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ بيا دويم سړی هغه د زرو درهمو په عوض کي رانيسي فَلَيْسَ لِلْمَوْلَى الْأَوَّلِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنَ الثَّانِي بِالثَّمَنِ نو اول مالک ته

دا حق نسته چې هغه يې له دويم مشتري څخه د ثمن په عوض کې واخلي لِأَنَّ الْأَسْرَ مَا وَرَدَ عَلَى مِلْكِهِ ځکه چې اد غلام ا قيدول او نيول ا د هغه پر ملکيت نه دي واقع سوي وَلِلْمُشْتَرِي الْأَوَّلِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنَ الثَّانِي بِالثَّمَنِ او اول مشتري ته به دا حق وي چې هغه اغلام ا له دويم مشتري څخه د ثمن په عوض کې واخلي لِأَنَّ الْأَسْرَ وَرَدَ عَلَى مِلْكِهِ ځکه چې قيدول د هغه پر ملکيت واقع سوي دي ثُمَّ يَأْخُذُهُ الْمَالِكُ الْقَدِيمُ بِالثَّمَنَيْنِ إِنْ شَاءَ بيا که اول مالک وغواړي نو هغه دي د دوو زرو درهمو په عوض کې واخلي لِأَنَّهُ قَامَ عَلَيْهِ بِالثَّمَنَيْنِ ځکه چې اول مشتري ته دا غلام د دوو زرو په عوض کې ولاړ دی فَيَأْخُذُهُ بِهِمَا لهذا مالک به د دوو زرو په عوض کې هغه اخلي وَكَذَا إِذَا كَانَ الْمَأْسُورُ مِنْهُ الثَّانِي غَائِبًا او همدارنګه له کوم مشتري څخه چې دويم وار غلام نيول سوی دی ايعني اول مشتري ا که هغه غائب وي لَيْسَ لِلْأَوَّلِ أَنْ يَأْخُذَهُ نو اول مالک ته دا حق نسته چې له دويم مشتري څخه هغه واخلي اعْتِبَارًا بِحَالِ حَضْرَتِهِ د هغه د حضور اموجو والي ا پر حالت باندې په قياس کولو سره.

**اللغات**: ﴿أسروا﴾ د ضرب ماضي ده: أَسَرَ يَأْسِرُ أَسْرًا: قيدول، نيول، ﴿فُقِئَتْ﴾ د فتح له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: د يو چا سترګه ايستل (باسل)، سترګه شيرل، ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه، ﴿صفقة﴾ عقد، معامله، ﴿تحوّلت﴾ د تفعّل ماضي ده: اوښتل بدلېدل، ﴿حضرة﴾ حضور (حاضر والی)، موجوديت (موجود والی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري کفار د يو مسلمان غلام ونيسي او قيد يې کړي، بيا يو بل مسلمان دارُ الحرب ته ولاړ سي او له کفارو څخه هغه غلام رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي، بيا د هغه مسلمان مشتري (رانيونکي) په قبضه کې يو څوک دا غلام پر سترګه ووهي او سترګه يې ور وباسي، او مشتري له مجرم څخه تاوان واخلي، نو اوس که چيري اول مالک دغه غلام له مشتري څخه اخيستل وغواړي، نو مشتري چې په څومره قيمت سره غلام رانيولی وي په هغومره قيمت دې يې مالک له مشتري څخه رانيسي او د غلام تاوان دې نه ځني اخلي؛ ځکه چې دا تاوان خو مشتري په خپل صحيح ملکيت کې حاصل کړی دی (او له مجرم څخه يې اخيستی دی)، لهذا اوس که چيري مالک له مشتري څخه تاوان واخلي نو بيرته به هغومره قيمت مشتري ته ورکوي او په دې کې هيڅ فايده نسته، او دا به هم نه کوي چې د سترګې په عوض کې له قيمت څخه څه پيسې (روپۍ) کمې کړي، ځکه چې سترګه وصف ده او د وصف په عوض او مقابله کې ثمن (قيمت) نه راځي.

د دې په خلاف په شفعه کې د وصف په عوض کې ثمن وي (يعني هلته د وصف په عوض کې ثمن راځي). ځکه چې له مشتري څخه د شفيع وطرف ته د صفقې د مستقل کېدلو او بدلېدلو په وجه رانيول سوی شی د "شراء فاسد" په درجه کې دی، او په "شراءِ فاسد" کې د وصف په عوض کې ثمن راځي. لکه څرنګه

چي له مغصوب مال څخه يو شی يا يوه حصه هلاکه سي يا د مغصوب مال يو وصف فوت سي نو د هغه هم ضمان واجبيږي، ځکه چي په شراء فاسد سره خو نه د مشتري ملکيت ثابتيږي او نه په غصب سره د غاصب ملکيت ثابتيږي، لېکن په شراء صحيح سره د مشتري ملکيت ثابتيږي، نو ځکه به په دې صورت کي د وصف ضمان نه واجبيږي.

**وإن أسروا إلخ**: د دې حاصل دا دی که چيري کفار يو غلام قيد کړي، بيا يو سړی هغه د زرو درهمو په عوض کي رانيسي، تر دې وروسته دوباره کفار هغه قيد کړي او هغه دارُ الحرب ته بوځي، او بيا له اول مشتري څخه بغير يو بل څوک هغه رانيسي، نو د دې غلام مالک ته به دا حق نه وي چي هغه دويم مشتري ته ثمن (قيمت) ورکړي او غلام ځني رانيسي، ځکه چي دا غلام د اول مشتري په ملکيت کي نيول سوی او قيد کړی سوی دی، نه د دويم مشتري په ملکيت کي، نو په دې وجه دويم مشتري لره د هغه د خرڅولو حق نسته، ها! لېکن د دې طريقه به دا وي چي له دويم مشتري څخه دي اول مشتري هغه غلام د يو زر درهمو په عوض کي رانيسي، بيا دي يې مالک له اول مشتري څخه د دوو زرو درهمو په عوض کي رانيسي؛ ځکه چي اول مشتري هغه يو وار له کفارو څخه د زر درهمو په عوض کي رانيوی او دويم وار يې له دويم مشتري څخه يو زر درهمو په عوض کي رانيوی، ګواکي هغه د دوو زرو په عوض کي دا غلام رانيولی دی، نو په دې وجه به مالک ته د دوو زرو په عوض کي د دې غلام داخيستلو او رانيول اختيار وي که خوښه يې په همدې قيمت دي غلام واخلي. کنې نه دي يې اخلي. همدارنګه که هغه کس چي له هغه څخه دوباره غلام نيول سوی وي يعني اول مشتري غائب وي، نو هم مالک له دويم مشتري څخه د زرو درهمو په عوض کي هغه غلام نه سي رانيولای، ځکه چي مالک د اول مشتري په حضور او موجودوالي کي هم له دويم مشتري څخه د زرو درهمو په عوض کي هغه غلام نه سي رانيولای، لهذا د هغه په غائبوالي کي به يې هم نه سي رانيولای.

## کفار د تسلط په ذريعه زموږ د کومو شيانو مالک کېدای نه سي؟

وَلَا يَمْلِكُ عَلَيْنَا أَهْلُ الْحَرْبِ بِالْغَلَبَةِ مُدَبَّرِينَا وَأُمَّهَاتِ أَوْلَادِنَا وَمُكَاتَبِينَا وَأَحْرَارَنَا او کفار پر موږ باندي په غلبه کولو سره زموږ د مدبرو غلامانو، اُم ولد مينځو، د مکاتبو غلامانو او زموږ د آزادو خلکو مالک کېدلای نه سي وَنَمْلِكُ عَلَيْهِمْ جَمِيعَ ذٰلِكَ [لېکن] موږ پر دوی باندي [د غلبه کولو په صورت کي] د دې ټولو مالک کېدلای سو لِأَنَّ السَّبَبَ إِنَّمَا يُفِيدُ الْمِلْكَ فِي مَحَلِّهِ ځکه چي د ملکيت سبب په خپل محل کي ملکيت فايده کوي وَالْمَحَلُّ الْمَالُ الْمُبَاحُ او محل مباح [روا] مال دی وَالْحُرُّ مَعْصُومٌ بِنَفْسِهِ او آزاد بذات خود معصوم وي وَكَذَا مَنْ سِوَاهُ او همدارنګه له هغه څخه بغير نور [يعني مکاتب او داسي نور] هم معصوم دي لِأَنَّهُ تَثْبُتُ الْحُرِّيَّةُ فِيهِ مِنْ وَجْهٍ ځکه په هغه [يعني په مکاتب او داسي نورو] کي [هم] په يوه اعتبار سره آزادي ثابتيږي

بِخِلَافِ رِقَابِهِمْ په خلاف د كفارو د رقبو ايعني په خلاف د كفارو د مكاتبينو...او أموالوا لِأَنَّ الشَّرْعَ أَسْقَطَ عِصْمَتَهُمْ جَزَاءً عَلَى جِنَايَتِهِمْ وَجَعَلَهُمْ أَرِقَّاءَ ځكه چي شريعت د دوى د جرم په سزا كي د دوى عصمت ساقط كړى دى او هغوى يې رقيق [غلامان] جوړ كړي دي وَلَا جِنَايَةَ مِنْ هَؤُلَاءِ او د مسلمانانو له طرفه هيڅ جرم نسته وَإِذَا أَبَقَ عَبْدٌ لِمُسْلِمٍ او كه چيري د يو مسلمان غلام وتښتي فَدَخَلَ إِلَيْهِمْ فَأَخَذُوهُ او كفارو ته ولاړ سي [ابيا] كفار هغه ونيسي لَمْ يَمْلِكُوهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز كفار د هغه نه مالک کيږي وَقَالَا ❁ : يَمْلِكُونَهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي كفار د هغه مالک کيږي لِأَنَّ الْعِصْمَةَ لِحَقِّ الْمَالِكِ لِقِيَامِ يَدِهِ ځكه چي د مالک د قبضې د موجود والي په وجه د هغه د حق په توګه [په غلام کي] عصمت موجود دی [يعني غلام ځکه معصوم وي چي پر هغه باندي د مالک قبضه موجود وي] وَقَدْ زَالَتْ حال دا چي [اوس] د مالک قبضه ختمه سوه وَلِهَذَا لَوْ أَخَذُوهُ مِنْ دَارِ الْإِسْلَامِ مَلَكُوهُ همدا وجه ده که کفار له دارُ الاسلام څخه هغه ونيسي [او دارُ الحرب ته يې بوځي] نو [هم] کفار د هغه مالکان کيږي وَلَهُ: أَنَّهُ ظَهَرَتْ يَدُهُ عَلَى نَفْسِهِ بِالْخُرُوجِ مِنْ دَارِنَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي له دارُ الاسلام څخه د دې غلام د وتلو په وجه پر خپل ذات باندي هغه ته اختيار حاصل سو لِأَنَّ سُقُوطَ اعْتِبَارِهَا لِتَحَقُّقِ يَدِ الْمَوْلَى عَلَيْهِ ځکه چي د هغه د اختياراتو سقوط پر هغه باندي د مالک د قبضې د ثبوت په وجه وو تَمْكِينًا لَهُ مِنَ الِانْتِفَاعِ د دې لپاره چي مالک له هغه څخه نفع حاصله کړی سي وَقَدْ زَالَتْ يَدُ الْمَوْلَى او [د غلام په نيول کېدلو سره] د مالک قبضه ختمه سوه فَظَهَرَتْ يَدُهُ عَلَى نَفْسِهِ نو په دې وجه پر خپل نفس د هغه خپل اختيار ښکاره [او ثابت] سو وَصَارَ مَعْصُومًا بِنَفْسِهِ او هغه په خپله معصوم وګرځېدی فَلَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلْمِلْكِ لهذا د ملکيت محل پاته نه سو بِخِلَافِ الْمُتَرَدِّدِ په خلاف د مترَدّد [يعني هغه غلام کوم چي په دارُ الاسلام کي ګرځي راګرځي او دارُ الحرب ته تښتېدلی نه وي] لِأَنَّ يَدَ الْمَوْلَى بَاقِيَةٌ عَلَيْهِ ځکه چي پر هغه [اوس هم] د مالک قبضه باقي ده لِقِيَامِ يَدِ أَهْلِ الدَّارِ ځکه چي [پر هغه] د دارُ الاسلام د خلکو قبضه موجوده ده فَمَنَعَ ظُهُورَ يَدِهِ نو دغه قبضې د غلام د اختيار ښکاره کېدل منع کړه [مطلب چي دغه قبضه د دې مترَدّد غلام د اختياراتو له ظهور

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الخانية (ج:٤، ص:٤٦٤)، وكذا في الدر المنتقى (ج:١، ص:٦٦٢). [القول الراجح ج:١، ص:٤٨٧]

او ثبوت څخه مانع ده] وَإِذَا لَمْ يَثْبُتِ الْمِلْكُ لَهُمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او كله چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د كفارو لپاره ملكيت نه ثابتيږي يَأْخُذُهُ الْمَالِكُ الْقَدِيمُ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو اول مالک به هغه غلام بېله عوضه [مُفت] اخلي مَوْهُوبًا كَانَ أَوْ مُشْتَرًى أَوْ مَغْنُومًا قَبْلَ الْقِسْمَةِ برابره ده هغه غلام كه هبه كړى سوى وي يا رانيول سوى وي يا تر تقسيم مخكې په غنيمت كې حاصل سوى وي وَبَعْدَ الْقِسْمَةِ يُؤَدَّى عِوَضُهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او تر تقسيم وروسته به د هغه عوض له بيتُ المال څخه اداء كول كيږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ إِعَادَةُ الْقِسْمَةِ لِتَفَرُّقِ الْغَانِمِينَ وَتَعَذُّرِ اجْتِمَاعِهِمْ ځكه چې د غنيمت اخيستونكو [مجاهدينو] د متفرق كېدلو او د هغو د اجتماع د مشكل والي په وجه [اوس] د تقسيم راگرځول ممكن نه دي وَلَيْسَ لَهُ عَلَى الْمَالِكِ جُعْلُ الْآبِقِ او د غلام د راوستونكي [تاجر يا مسلمان] لپاره پر مالک [د غلام راوستلو] مزدوري لازم نه ده لِأَنَّهُ عَامِلٌ لِنَفْسِهِ ځكه چې هغه د خپل ځان لپاره كار كونكى دى [يعني هغه د خپل ځان لپاره غلام را وستى دى] إِذْ فِي زَعْمِهِ أَنَّهُ مِلْكُهُ ځكه چې د هغه گومان دا دى چې دا غلام زما ملكيت دى [يعني د هغه خيال دا دى چې دا زما غلام دى، او په همدې نيت سره يې راوستى دى]

**اللغات**: ﴿يملك﴾ د ضرب مضارع ده: ديو شي مالک كېدل، مالک جوړېدل، ﴿معصوم﴾ محفوظ، ﴿أرقاء﴾ جمع د رَقِيقٌ ده: مملوک، غلام، ﴿تمكين﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت وركول، ﴿مغنوم﴾ په غنيمت كې حاصل سوى مال، ﴿تفرُّق﴾ د تفعّل مصدر دی: متفرق كېدل، جلا جلا كېدل، سره بېلېدل، ﴿جعل﴾ أجرت او مزدوري.

**تشريح**: په دې عبارت كې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... كه چيري كفار پر مسلمانانو غالب سي، نو هغوى د مسلمانانو د أموالو مالک جوړېداى سي، لېكن د مسلمانانو د ذات او د مسلمانانو د مدبر او مكاتب غلامانو او د أُم ولد مينځو مالک نه سي جوړېداى؛ ځكه كه څه هم استيلاء د ملكيت سبب ده، لېكن دا سبب په خپل محل كې ملكيت فايده كوي، او محل مباح مال دی، لېكن له مسلمانانو څخه آزاد خلک، او مكاتبين، مدبّرين او داسې نور د ملكيت محل نه دي؛ ځكه چې آزاد خو بذات خود محترم او معصوم وي، او په مكاتب او داسې نورو كې من وجه حُريت ثابت سوى وي، لهذا په دې حواله سره په مكاتب او داسې نورو كې هم عصمت وي او إباحت نه وي، لهذا دوى به هم مملوک كېدلاى نه سي.

د دې په خلاف كه چيري مورږ مسلمانان پر كفارو غالب سو نو مورږ د هغو د أموالو هم مالک جوړيږو او د هغوى د نفوسو هم مالک جوړيږو؛ ځكه چې هغوى له توحيد او رسالت څخه د انكار كولو په وجه دېر غټ ظلم كړى دی او الله تعالىٰ هغوى ته د دې ظلم دا سزاء وركړې ده چې په داسې حالت كې يې هغوى رقيق وگرځول او رقيق مملوک وي، نو ځكه به هغوى ټوله مملوک گرځي (يعني زمورږ تر ملكيت به لاندې وي). او

ځرنګه چې مسلمانانو او د دوی مکاتبينو او داسې نورو هيڅ جنايت کړی نه دی، نو ځکه به هغوی رقيق او مملوک نه ګرځي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که چيرې د يو مسلمان سړي مسلمان غلام وتښتي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او کفار هغه ونيسي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به کفار د هغه مالک نه ګرځي (يعني مالکان يې نه جوړيږي).

لېکن د صاحبينو په نيز به کفار د هغه مالک ګرځي: ځکه چې دا غلام د خپل مالک په ملکيت او مالک کېدلو سره معصوم وو، لېکن د کفارو په قبضه کې د راتللو په وجه د غلام د مالک ملکيت ختم سو، نو د غلام عصمت هم ساقط سو، لهذا هغه اوس مباح وګرځېدی، او مباح مملوک کېدای سي، لهذا هغه به مملوک ګرځي (او کفار به د هغه مالک جوړيږي)، همدا وجه ده که کفار هغه په دارُ الاسلام کې ونيسي او دارُ الحرب ته يې راولي نو هم د مالک د حق ساقطېدلو په وجه هغه د کفارو مملوک ګرځي.

**وله إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې تر څو دا غلام په دارُ الاسلام کې وو تر هغه وخته پورې د خپل مالک قبضه پر هغه باقي وه، او د مالک د حق او د مالک د انتفاع په وجه مور د هغه پر ذات د هغه خپل اختيارات او تصرّفات ساقط کړل، لېکن کله چې هغه له دارُ الاسلام څخه ووتی نو د مالک له ملکيت څخه هم ووتی او پر خپل ذات هغه ته اختيارات حاصل سول (يعني خود مختاره سو) او هغه په خپله معصوم او محترم وګرځېدی او د ملکيت محل پاته نه سو، او کله چې د ملکيت محل پاته نه سو، نو ښکاره خبره ده چې کفار د هغه مالک جوړېدای نه سي.

د دې په خلاف هغه غلام کوم چې له مالک څخه تښتېدلی وي خو په دارُ الاسلام کې ګرځي راګرځي او دارُ الحرب ته تللی نه وي، نو هغه به خود مختاره نه وي؛ ځکه که څه هم ظاهراً هغه د مالک په قبضه کې نه دی، لېکن په دارُ الاسلام کې د موجودېدلو په وجه معناً پر هغه د مالک قبضه موجوده ده، نو په دې وجه هغه خود مختاره کېدای نه سي.

**وإذا لم إلخ:** د دې حاصل دا دی چې کله (د امام صاحب په نيز) پر پورتني غلام د کفارو ملکيت ثابتېدای نه سي نو آخر به د هغه پايله څه وي، آيا په دارُ الحرب کې به هسې پرېښوول کيږي، نو فرمايي چې خبره داسې نه ده. بلکي د يو چا په ذريعه به دا غلام له دارُ الحرب څخه دارُ الاسلام ته راوستل کيږي او د هغه مالک ته به بېله عوضه (مُفت) ور کول کيږي، برابره ده که کفارو هغه يو چا ته هبه کړی وي يا يو چا هغه رانيولی وي يا يې په مالِ غنيمت کې ترلاسه کړی وي نو تر تقسيم مخکې معامله به بالکل مُفته او بېله عوضه وي، لېکن تر تقسيم وروسته چې د چا په حصه کې دا غلام راغلی وي، نو هغه ته به له بيتُ المال څخه د غلام عوض ور کول کيږي او غلام به خپل مالک ته سپارل کيږي، يعني د دې غلام د واپس اخيستلو لپاره به مالک يوه روپۍ هم نه خرچوي، بلکي د هغه عوض به بيتُ المال ور کوي او تقسيم به هم له سره نه راګرځول کيږي. ځکه چې د مجاهدينو د متفرق کېدلو په وجه به د هغو را جمع کول ستونزمن او مشکل وي.

**وليس له إلخ:** د دې حاصل دا دی چې کوم تاجر يا مسلمان دغه غلام له دارُ الحرب څخه راوستلی وي، هغه د دې حق نه لري چې د غلام له مالک څخه اُجرت او مزدوري واخلي (يعني هغه سړی د دې حق نه لري چې د غلام مالک ته ووايي: "دغه غلام خو ما له دارُ الحرب څخه راوستی دی نو زما حقُ الزحمه او مزدوري راکړه")؛ ځکه چې هغه خو په دې نيت غلام راوستی دی چې دا غلام تر دې وروسته زما دی. نو د خپل نيت په وجه هغه سړی عامل لنفسهٖ دی، يعني د خپل ځان لپاره عامل (کار کوونکی) دی، د مالک لپاره عامل نه دی، او عامل لنفسهٖ لره دا حق نسته چې له بل چا څخه اُجرت او مزدوري واخلي.

## د پورتني مسئلې يو بل صورت

وَإِنْ نَدَّ بَعِيرٌ إِلَيْهِمْ او که چيرې يو اوښ [د دارُ الحرب] د کفارو وطرف ته وتښتي فَأَخَذُوهُ او کفار هغه ونيسي مَلَكُوهُ نو دوی د هغه مالک کيږي لِتَحَقُّقِ الِاسْتِيلَاءِ ځکه چې قبضه ثابته سوه إِذْ لَا يَدَ لِلْعَجْمَاءِ لِتَظْهَرَ عِنْدَ الْخُرُوجِ مِنْ دَارِنَا ځکه چې څاروي لره ذاتي اختيار نسته چې له دارُ الاسلام څخه د وتلو په وخت کې ښکاره سي بِخِلَافِ الْعَبْدِ په خلاف د غلام [ځکه چې هغه لره ذاتي اختيارات سته] عَلَىٰ مَا ذَكَرْنَا لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه وَإِنْ اشْتَرَاهُ رَجُلٌ وَأَدْخَلَهُ دَارَ الْإِسْلَامِ او که يو څوک هغه اوښ رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي فَصَاحِبُهُ يَأْخُذُهُ بِالثَّمَنِ إِنْ شَاءَ نو د اوښ مالک به هغه د ثمن په عوض کې اخلي که خوښه يې وي [مُفت يې نه سي اخيستلای] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی فَإِنْ أَبَقَ عَبْدٌ إِلَيْهِمْ وَذَهَبَ مَعَهُ بِفَرَسٍ وَمَتَاعٍ او که [زموږ] يو غلام د کفارو وطرف ته وتښتيږي او د خپل ځان سره آس او سامان هم يوسي فَأَخَذَ الْمُشْرِكُونَ ذَلِكَ كُلَّهُ او مشرکين هغه ټوله شيان ونيسي وَاشْتَرَى رَجُلٌ ذَلِكَ كُلَّهُ وَأَخْرَجَهُ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ او [بيا] يو سړی هغه ټوله رانيسي او دارُالاسلام ته يې راوړي فَإِنَّ الْمَوْلَى يَأْخُذُ الْعَبْدَ بِغَيْرِ شَيْءٍ وَالْفَرَسَ وَالْمَتَاعَ بِالثَّمَنِ نو مالک به غلام بېله عوضه اخلي او آس او سامان به د ثمن په عوض کې اخلي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا [*]: يَأْخُذُ الْعَبْدَ وَمَا مَعَهُ بِالثَّمَنِ إِنْ شَاءَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې مالک به غلام او د هغه سره موجوده شيان [ټوله] د ثمن په عوض کې اخلي که خوښه يې وي اِعْتِبَارًا لِحَالَةِ الِاجْتِمَاعِ بِحَالَةِ الِانْفِرَادِ پر "حالت انفراد" باندې د "حالت اجتماع" په قياسولو سره وَقَدْ بَيَّنَّا الْحُكْمَ فِي كُلِّ فَرْدٍ او موږ [مخکې] د هر فرد حکم

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٦٦٩). [القول الراجح ج:١، ص:٢٨٨]

بيان کړی ﴿وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ﴾ او که چيرې يو حربي دارُ الاسلام ته په أمان سره داخل سي ﴿وَاشْتَرَى عَبْدًا مُسْلِمًا وَأَدْخَلَهُ دَارَ الْحَرْبِ﴾ او يو مسلمان غلام رانيسي او هغه دارُ الحرب ته بوځي ﴿عَتَقَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ﴾ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه غلام آزاديږي ﴿وَقَالَا﴾ : ﴿لَا يُعْتَقُ﴾ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نه آزاديږي ﴿لِأَنَّ الْإِزَالَةَ كَانَتْ مُسْتَحَقَّةً بِطَرِيقٍ مُعَيَّنٍ وَهُوَ الْبَيْعُ﴾ ځکه چي د حربي ملکيت زائلول د يوې معينې طريقې يعني د بيع په ذريعه ممکن وو ﴿وَقَدِ انْقَطَعَتْ وِلَايَةُ الْجَبْرِ عَلَيْهِ﴾ حالانکي [اوس] پر هغه د مجبوره کولو ولايت قطع سو [يعني کله چي هغه دارُ الحرب ته ولاړی نو اوس مسلمانان هغه پر بيع مجبوره کولای نه سي] ﴿فَبَقِيَ فِي يَدِهِ عَبْدًا﴾ نو ځکه هغه د ده [حربي] په قبضه کي [هم] غلام پاته سو ﴿وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ تَخْلِيصَ الْمُسْلِمِ عَنْ ذُلِّ الْكَافِرِ وَاجِبٌ﴾ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مسلمان د کفارو له ذلت څخه خلاصول واجب دي ﴿فَيُقَامُ الشَّرْطُ وَهُوَ تَبَايُنُ الدَّارَيْنِ مَقَامَ الْعِلَّةِ وَهُوَ الْإِعْتَاقُ﴾ لهذا شرط يعني "د دارُ الاسلام او دارُ الحرب جلا کېدل" به د علت يعني د إعتاق قائم مقام کيږي ﴿تَخْلِيصًا لَهُ﴾ د دې لپاره چي هغه غلام خلاص کړی سي ﴿كَمَا يُقَامُ مُضِيُّ ثَلَاثِ حِيَضٍ مَقَامَ التَّفْرِيقِ فِيمَا إِذَا أَسْلَمَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ فِي دَارِ الْحَرْبِ﴾ لکه د دريو حيضو تېرېدل چي د تفريق قائم مقام کيږي په هغه صورت کي کله چي له خاوند او ښځي څخه يو په دارُ الحرب کي اسلام راوړي.

**اللغات**: ﴿مَضَى﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي صيغه ده: د اوښ تېرېدل، ترهېدل، بېرېدل او تېښتېدل. ﴿عجماء﴾ څاروی، حيوان (د دې لفظ خپله معنیٰ ده: ګونګی، بې ژبی، څرنګه چي څاروی هم څه ويلای نه سي، نو ځکه هغه ته عجماء وايي)، جمع: عجماوات. ﴿تباين﴾ د تفاعل مصدر دی: جلا کېدل، عليحده کېدل، بېلېدل. ﴿إعتاق﴾ د افعال مصدر دی: آزادول. ﴿تخليص﴾ د تفعيل مصدر دی: خلاصول، نجات ورکول، خوشي کول. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب مصدر دی: تېرېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي چي هغه به انشاء الله د مصنف د ترتيب مطابق ستاسي مخته ذکر سي: (۱)... اوله مسئله دا ده چي که د يو مسلمان اوښ وتړبږي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او کفار هغه په خپله قبضه کي واخلي، نو کفار د دې مالک جوړېږي؛ ځکه چي اوښ مال دی او پر مال د هغو قبضه هم راغله کوم چي ملکيت فايده کوي، او بل دا چي د اوښ لپاره د غلام په څېر

---

القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۲۶۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۹]

ذاتي اختيارات هم نسته چي له دارُ اسلام څخه دوتلو په وجه هغه خود مختاره وشمارل سي. لهذا بېله اختلافه به هغه مملوک ګرځي. او که يو څوک هغه غلام له کفارو څخه رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي، او د هغه مالک د خپل غلام غوښتنه وکړي، نو مالک ته به اختيار وي که وغواړي نو د ثمن په عوض کي دي هغه واخلي، کنې هغه دي پرېږدي. يعني مُفت (بېله عوضه) يې نه سي اخيستلای.

(٢)... دويمه مسئله دا ده که د يو مسلمان غلام د آس او څه سامان سره وتښتيږي دارُ الحرب ته ولاړ سي، او کفار هغه ونيسي، بيا يو کس هغه د سامان سره رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به مالک ته دا غلام مُفت ورکول کيږي (يعني مالک به د هغه په عوض کي ثمن نه ورکوي). خو د آس او سامان ثمن به ورکوي. لېکن د صاحبينو په نېز که مالک وغواړي نو غلام، آس او سامان ټوله دي د ثمن په عوض کي واخلي، کنې مُفت هيڅ شی اخيستلای نه سي. يعني هغه ته فقط د ثمن په عوض کي د دې شيانو د اخيستلو حق سته. لکه کله چي فقط آس وتريږي او دارُ الحرب ته ولاړ سي يا فقط غلام ولاړ سي نو مالک ته به فقط د ثمن په عوض کي د هغه د اخيستلو حق وي مفت يې نه سي اخيستلای، همدارنګه کله چي د هغه له ملکيت څخه دېر سامانونه ووځي، نو مالک ته به د ثمن په عوض کي د هغو د اخيستلو حق وي (يعني د ټولو ثمن او قيمت به ورکوي) مفت يې نه سي اخيستلای. ګواکي صاحبينو رَحِمَهُمَا الله حالتِ اجماع پر حالتِ انفراد باندي قياس کړی دی.

(٣)... دريمه مسئله دا ده که يو حربي کافر اُمان واخلي او دارُ الاسلام ته راسي او دلته يو مسلمان غلام رانيسي او دارُ الحرب ته يې بوځي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه غلام آزاديږي. او د صاحبينو په نېز نه آزاديږي. د صاحبينو دليل دا دی چي له دې غلام څخه په يو مُعيّنه طريقه سره يعني د بيع په ذريعه د کافر ملکيت زائلول واجب وو، په دې توګه چي کافر حربي د هغه پر خرڅولو مجبور کړي سوي وای، لېکن کله چي داسي ته وسوه او هغه کافر له دارُ الاسلام څخه دا غلام دارُ الحرب ته نقل کړي چي د هغه په وجه د جبر ولايت هم ختم سو، نو ځکه دا غلام د مخکي په څير د هغه حربي مشتري سره غلام پاته سو او آزاد نه سو.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د دې آيت "لَنْ يَّجْعَلِ اللهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا" [سورة النساء: ١٤١] په وجه مسلمان د کافر له قبضې څخه خلاصول ضروري دي او څرنګه چي په دې مسئله کي پر کافر جبر کول ممکن نه دي ځکه چي هغه دارُ الحرب ته تللی دی، نو په دې وجه به تبايُنُ الدارين د إعتاق قائم مقام ګرځول کيږي او له هغه کافر حربي څخه به مسلمان

غلام خلاصول کيږي او تر تخليص وروسته به هغه آزاد شمارل کيږي. او شرط د علت قائم مقام ګرځول په شريعت کي جاري دي (او د دې ډېر مثالونه سته)، مثلاً که له زَوجينو څخه يو (يعني يا خاوند يا ښځه) په دارُ الحرب کي اسلام راوړي نو د دوی په مينځ کي خو تفريق کول واجب دی. لېکن څرنګه چي د دارُ الحرب په وجه جبر علی التفريق ممکن نه دی. نو په دې وجه به دلته د درېو حيضونو تېرېدل د تفريق قائم مقام ګرځول کيږي، همداسي په دې مسئله کي تباينُ الدارين د إعتاق قائم مقام ګرځول سوی دی.

## د حربي کافر د مسلمان غلام حکم

وَإِذَا أَسْلَمَ عَبْدٌ لِحَرْبِيٍّ ثُمَّ خَرَجَ إِلَيْنَا او که چيري د يو حربي کافر غلام اسلام راوړي بيا زموږ وطرف ته راسي [يعني دارُ الاسلام ته راسي] أَوْ ظُهِرَ عَلَى الدَّارِ يا پر دارُ الحرب [د مسلمانانو له طرفه] قبضه وسي فَهُوَ حُرٌّ نو هغه غلام آزاد دی وَكَذٰلِكَ إِذَا خَرَجَ عَبِيدُهُمْ إِلَى عَسْكَرِ الْمُسْلِمِينَ هدارنګه که د کفارو غلامان د مسلمانانو لښکر ته راسي فَهُمْ أَحْرَارٌ نو هغوی [ټوله] آزاد دي لِمَا رُوِيَ أَنَّ عَبِيدًا مِنْ عَبِيدِ الطَّائِفِ أَسْلَمُوا وَخَرَجُوا[1] إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه چي روايت سوی دی چي د طائف له غلامانو څخه يو څو غلامانو اسلام راوړی او نبي کريم ﷺ ته راغلل فَقَضَى بِعِتْقِهِمْ وَقَالَ: هُمْ عُتَقَاءُ اللهِ نو نبي کريم ﷺ د دوی د آزاد والي فيصله وکړه او وي فرمايل: دوی د الله تعالیٰ [له طرفه] آزاد کړل سوي دي وَلِأَنَّهُ أَحْرَزَ نَفْسَهُ بِالْخُرُوجِ إِلَيْنَا مُرَاغِمًا لِمَوْلَاهُ أَوْ بِالِالْتِحَاقِ بِمَنَعَةِ الْمُسْلِمِينَ إِذَا ظَهَرَ عَلَى الدَّارِ او په دې وجه [هم] چي دغه غلام د خپل مالک په پرېښوولو سره [او] زموږ وطرف ته د راوتلو په وجه يا د مسلمانانو د لښکر سره (کله چي هغه پر دارُ الحرب غالب سي) د يوځای کېدلو په وجه خپل ځان محفوظ کړی وَاعْتِبَارُ يَدِهِ أَوْلَى مِنْ اعْتِبَارِ يَدِ الْمُسْلِمِينَ او د ده قبضې ته اعتبار ورکول د مسلمانانو قبضې ته له اعتبار ورکولو څخه غوره دي لِأَنَّهَا أَسْبَقُ ثُبُوتًا عَلَى نَفْسِهِ ځکه چي تر ټولو مخکي پر خپل ځان د ده قبضه ثابته سوې ده فَالْحَاجَةُ فِي حَقِّهِ إِلَى زِيَادَةِ تَوْكِيدٍ نو د ده په حق کي [فقط] د قبضې مؤکد کولو [مضبوطولو] ته ضرورت سته وَفِي حَقِّهِمْ إِلَى إِثْبَاتِ الْيَدِ ابْتِدَاءً او د

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في المراسيل، رقم الحديث: ٣٣١.

مسلمانانو په حق کي د ابتداءً قبضې ثابتولو ته ضرورت سته فَلِهَذَا كَانَ أَوْلَى نو ځکه به د غلام قبضه غوره [او معتبره] وي.

**اللغات**: ﴿قَضَى﴾ د ضرب ماضي ده: فيصله کول، ﴿أَحرز﴾ د افعال ماضي ده: محفوظه کول (محفوظول)، خوندي کول، ﴿مُراغِم﴾ د مفاعلې اسم فاعل دی: پرېښوونکی، ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه او قدرت دی، ﴿مَنَعَة﴾ (د نون په فتحه سره) جمع د مَانِعٌ ده: منع کونکي، سپاهي، له مَنَعَةٌ څخه مراد اسلامي سپاهيان او لښکر دی، ﴿أسبق﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: زيات مخکي، تر ټولو مخکي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري د يو حربي غلام مسلمان سي بيا هغه دارُ الاسلام ته راسي يا پر دارُ الحرب د مسلمانانو قبضه راسي نو په دې دواړو صور تونو کي به هغه غلام آزاديږي، همدا حکم د هغو ټولو غلامانو دی کوم چي اسلام راوړي او دارُ الاسلام ته راسي يا پر دارُ الحرب باندي د قبضې په صورت کي اسلامي لښکر ته راسي او د هغه سره يو ځای سي: ځکه د طائف کومو غلامانو چي اسلام راوړی او د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سول، د هغوسره نبي ﷺ همدغسي معامله وکړه، او دا زموږ لپاره سند او دليل دی.

عقلي دليل دا دی چي کله دې غلامانو خپل مالکان پرېښوول او زموږ (د دارُ الاسلام) وطرف ته راغلل، نو هغوی خپل ځانونه محفوظ کړل او د دوی پر ذات د دوی خپله قبضه راغله يعني دوی په تصرّف کي خود مختاره سول، او څرنګه چي پر خپل ذات د دوی ذاتي قبضه د مسلمانانو له قبضې څخه مخکي او مُقدّمه ده او د غلامانو په حق کي د نور تأکيد ضرورت سته يعني دغه قبضه به نوره مضبوطول کيږي او د مسلمانانو په حق کي د ابتداءً قبضې ثابتولو ته ضرورت سته، او دا ښکاره خبره ده چي د چا په حق کي قبضه مخکي ثابته وي نو د هغه قبضې پاتېدل او د هغه قبضې مؤکدول (مضبوطول) له ابتداءً قبضې ثابتولو څخه أولیٰ او غوره دي، نو په دې وجه به د غلام په حق کي د هغه خپله قبضه معتبره وي او هغه به آزاد وي. والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْمُسْتَأْمِنِ

(دا) باب دأمان د طلب کونکی (په بیان کی) دی

**تشریح**: دلته، له مستأمن څخه هغه مسلمان مراد دی کوم چې دارُالحرب ته ولاړ سي او له حربیانو څخه أمان طلب کړي؛ له بابُ الاستیلاء څخه وروسته د بابُ المستأمن د بیانولو وجه دا ده چې استیلاء قهراً او غلبةً وي لېکن أمن او أمان له قهر (غلبې) څخه بغیر وي. نو په دې وجه تر قهر وروسته أمان بیانیږي. او د اسلام د ستر توب او شرافت په خاطر د مسلمان مستأمن بحث او بیان له حربي مستأمن څخه مخکي سوی دی. (بناية ج:۶، ص:۶۱۸)

## دارُ الحرب ته د داخلېدونکي مسلمان لپاره حکم

وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُ دَارَ الْحَرْبِ تَاجِرًا او که چیري مسلمانْ د تاجر په توګه [یعني د تجارت په نیت] دارُ الحرب ته داخل سي فَلَايَحِلُّ لَهُ أَنْ يَتَعَرَّضَ لِشَيْءٍ مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَلَا مِنْ دِمَائِهِمْ نو هغه ته روا نه دي چې د کفارو په أموالو تعرّض [او تجاوز] وکړي لِأَنَّهُ ضَمِنَ أَنْ لَا يَتَعَرَّضَ لَهُمْ بِالِاسْتِيمَانِ ځکه چې هغه دأمان په غوښتولو سره د دې خبري ذمه واري اخیستې ده چې هغه به په کفارو تعرض نه کوي فَالتَّعَرُّضُ بَعْدَ ذٰلِكَ يَكُونُ غَدْرًا لهذا تر دې وروسته به تعرض کول غدر [او د عهد ماتول] وي وَالْغَدْرُ حَرَامٌ او غدر حرام دی إِلَّا إِذَا غَدَرَ بِهِمْ مَلِكُهُمْ فَأَخَذَ أَمْوَالَهُمْ أَوْ حَبَسَهُمْ لېکن که د کفارو باچا د مسلمانانو تاجرانو سره غدر وکړي او د دوی مالونه واخلي یا دوی قیدیان کړي أَوْ فَعَلَ غَيْرُهُ بِعِلْمِ الْمَلِكِ وَلَمْ يَمْنَعْهُ یا له باچا څخه بغیر بل کس دا کار وکړي [او] باچا په خبر وي [لېکن] هغه منع نه کړي لِأَنَّهُمْ هُمُ الَّذِينَ نَقَضُوا الْعَهْدَ ځکه چې [په دې صورت کي] کفارو په خپله عهد مات کړی بِخِلَافِ الْأَسِيرِ په خلاف د قیدي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُسْتَأْمَنٍ ځکه چې هغه دأمان طلب کونکی [غوښتونکی] نه دی فَيُبَاحُ لَهُ التَّعَرُّضُ وَإِنْ أَطْلَقُوهُ طَوْعًا نو ځکه به د هغه لپاره تعرض کول روا وي که څه هم کفارو هغه په خپله خوښې سره ایله کړی وي فَإِنْ غَدَرَ بِهِمْ أَعْنِي التَّاجِرَ فَأَخَذَ شَيْئًا

وَغَدَرَ بِهِ او که مسلمان يعني تاجر د کفارو سره غدر وکړي او يو شی واخلي او [دار الاسلام ته] يې يووسي مَلَكَهُ مِلْكًا مَحْظُورًا نو هغه د ممنوع ملک په توګه د دې شي مالک کيږي لِوُرُوْدِ الْاِسْتِيْلَاءِ عَلٰی مَالٍ مُبَاحٍ ځکه چې پر مباح مال قبضه واقع سوې ده اِلَّا أَنَّهُ حَصَلَ بِسَبَبِ الْغَدْرِ ځکه چې دا مال [شی] د غدر په سبب سره حاصل سوی دی فَأَوْجَبَ ذٰلِكَ خُبْثًا فِيْهِ نو غدر په هغه کې بدي [مردارتوب] پيدا کړی [يعني د غدر په وجه هغه مال د ده لپاره ناروا وګرځېدی] فَيُؤْمَرُ بِالتَّصَدُّقِ بِهِ لهذا هغه ته به د دې مال د صدقه کولو حکم کيږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْحَظْرَ لِغَيْرِهِ لَا يَمْنَعُ اِنْعِقَادَ السَّبَبِ او دا [حکم] په دې وجه دی چې ممانعت لغيره د سبب له انعقاد څخه مانع نه دی عَلٰی مَا بَيَّنَّاهُ لکه مخکې چې مونږ د دې بيان وکړی.

**اللغات**: ﴿يتعرض﴾ د تفعّل مضارع ده: په يو شي پسې کېدل. کار په لرل (کار په درلودل)، دخل اندازي کول، مقاومت او مقابله کول، مراد ځني تجاوز او تېری کول دي. ﴿ضمن﴾ د سمع ماضي ده: ضامن کېدل، ذمه واري اخيستل. ﴿غَدْر﴾ مصدر دی، له ضرب، نصر او سمع ټولو څخه راځي. قول او ژبه ماتول، عهد ماتول (وعده خلافي کول)، غداري کول، خيانت او دوکه بازي کول. ﴿محظور﴾ د ضرب له باب څخه اسم مفعول دی: ممنوع، منع سوی دی، حَظْر: ممانعت، منع کول، بنديز لګول. ﴿استيلاء﴾ د استفعال مصدر دی: قبضه کول، غلبه کول. ﴿خُبث﴾ ناولتوب، مردارتوب، ګندګي، خرابي، بدي. ﴿التصدّق﴾ د تفعّل مصدر دی: صدقه کول، خيراتول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو مسلمان تاجر أمان طلب کړي دارُ الحرب ته ولاړسي، نو د هغه لپاره د کفارو په أموالو او نفوسو کې دخل کول او په هغوی کار درلودل (تعرّض او تجاوز کول) جائز نه دي؛ ځکه چې استيمان د دې منافي دی، او تعرّض کول غداري (وعده خلافي) او دوکه بازه دي، او غداري حرامه ده. هـا کـه چيري په خپله د کفارو د باچا له طرفه د مسلمانو تاجرانو سره غداري وسي او مسلمانان لوټ کړي يا يې قيد کړي يا له باچا څخه بغير يو بل حربي دا کار وکړي او باچا په هغه خبر وي، خو بيا يې هم منع نه کړي، نو په دې صورت کې به دغه تاجرانو لره هم د تعرض او کاروايي کولو حق وي؛ ځکه چې شروع د کافرانو له طرفه راغله يعني کفارو په خپله په غداري شروع وکړه. لهذا اوس به هغو ته د خپلې غدارۍ سزا ورکول کيږي. او که چيري کفار په دارُ الاسلام کې يو مسلمان قيد کړي دارُ الحرب ته يې بوځي نو د هغه لپاره تعرّض کول مباح دي که څه هم کفارو هغه په دارُ

الحرب کي ايله کړی وي، ځکه چي هغه مستأمن نه دی يعني هغه أمان طلب کړی نه دی او د هيڅ شي عهد او وعده يې کړې نه ده (نو په دې صورت کي د هغه تعرّض غدر او دوکه بازي نه وي).

او که مسلمان تاجر په غداري شروع وکړي او د کفارو مال لوټ کړي او قبضه پر وکړي، نو که څه هم د قبضه کولو په وجه به دا تاجر د هغه مال مالک وي، لېکن دا ملکيت به ممنوع وي، ځکه چي تاجر په غلطه طريقه سره يعني د غدر په ذريعه دا مال حاصل کړی دی، نو د غدر په وجه په هغه کي خُبث پيدا سو. لهذا دې تاجر ته به د هغه مال د صدقه کولو حکم کيږي، خو پر هغه مال به د تاجر قبضه ثابتيږي، ځکه چي دلته د تاجر د ملکيت ممانعت لغيره دی (يعني د خپل ذات په وجه نه دی، بلکي د بل شي په وجه [يعني د غدر په وجه] د هغه ملکيت ممنوع دی)، او ممانعت لغيره د سبب له انعقاد څخه يعني له استيلاء او قبضې څخه مانع نه دی.

## له دارُ الحرب څخه د قرض يا د غصب مال راوړل

وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُ دَارَ الْحَرْبِ بِأَمَانٍ او که يو مسلمان دارُ الحرب ته په أمان سره داخل سي فَأَدَانَهُ حَرْبِيٌّ أَوْ أَدَانَ هُوَ حَرْبِيًّا [بيا] يو حربي هغه ته قرض [پور] ورکړي يا هغه يو حربي ته قرض ورکړي أَوْ غَصَبَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ يا په مسلمان او حربي کي يو د خپل ملګري [يعني يو د بل] مال غصب کړي ثُمَّ خَرَجَ إِلَيْنَا بيا يې دارُ الاسلام ته راوړي وَاسْتَأْمَنَ الْحَرْبِيُّ او حربي هم أمان طلب کړي لَمْ يُقْضَ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ بِشَيْءٍ نو په دوی کي به د يوه لپاره [هم] د هغه د ملګري په خلاف د هيڅ شي فيصله نه کيږي أَمَّا الْإِدَانَةُ فَلِأَنَّ الْقَضَاءَ يَعْتَمِدُ الْوِلَايَةَ کوم چي قرض ورکول دي نو هغه په دې وجه چي د قاضي د قضاء [فيصلې] مدار پر ولايت دی وَلَا وِلَايَةَ وَقْتَ الْإِدَانَةِ أَصْلًا او د قرض ورکولو په وخت کي ولايت [بالکل] نسته وَلَا وَقْتَ الْقَضَاءِ عَلَى الْمُسْتَأْمَنِ او نه د قضاء په وخت کي پر مستأمن د قاضي ولايت حاصل دی لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَ حُکْمَ الْإِسْلَامِ فِيمَا مَضَى مِنْ أَفْعَالِهِ ځکه چي مستأمن حربي په خپلو تېرو [پخوانيو] کارو کي د اسلامي حکم التزام نه دي کړی وَإِنَّمَا الْتَزَمَ ذٰلِكَ فِي الْمُسْتَقْبَلِ بلکي هغه خو په راتلونکي زمانه کي د دې التزام کړی دی وَأَمَّا الْغَصْبُ فَلِأَنَّهُ صَارَ مِلْكًا لِلَّذِي غَصَبَهُ وَاسْتَوْلَى عَلَيْهِ او کوم چي غصبول دي نو ځکه چي مال د هغه سړي ملکيت [مملوک] وګرځېدی چي هغه دا مال غصب کړی او قبضه يې پر وکړه [يعني مغصوب مال د غصبونکي او

قبضه کونکي ملکيت وګرځېدى او هغه د مال مالک سو [ لِمَا دَلَّتِه مَالًا غَيْرَ مَعْصُومٍ ځکه چي قبضه پر غير معصوم [مباح] مال باندي واقع سوه عَلَىٰ مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ د دې بيان وکړی وَكَذٰلِكَ لَوْ كَانَا حَرْبِيَّيْنِ فَعَلَا ذٰلِكَ ثُمَّ خَرَجَا مُسْتَأْمَنَيْنِ او همدارنګه کله چي دوه حربيان داسي کار وکړي بيا [دارُ الاسلام ته] راسي په داسي حال کي چي دواړه أمان غوښتونکي وي [يعني دواړه أمان واخلي دارُ الاسلام ته راسي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ خَرَجَا مُسْلِمَيْنِ او که دوی په داسي حال کي [دارُ الاسلام ته] راسي چي دواړه مسلمانان وي [يعني دواړه اسلام راوړي دارُ الاسلام ته راسي] قُضِيَ بِالدَّيْنِ بَيْنَهُمَا نو د دوی په مينځ کي به د قرض په هکله فيصله کيږي وَلَمْ يُقْضَ بِالْغَصْبِ او د غصب په هکله به فيصله نه کيږي أَمَّا الْمُدَايَنَةُ فَلِأَنَّهَا وَقَعَتْ صَحِيحَةً کوم چي د قرض معامله ده نو ځکه به د هغه په هکله فيصله کيږي چي د قرض معامله صحيح واقع سوې وه لِوُقُوعِهَا بِالتَّرَاضِي ځکه چي هغه د دواړو په رضا سره واقع سوې وه وَالْوِلَايَةُ ثَابِتَةٌ حَالَةَ الْقَضَاءِ او د قاضي د قضاء په وخت کي ولايت ثابت دی لِالْتِزَامِهِمَا الْأَحْكَامَ بِالْإِسْلَامِ ځکه چي [په دې وخت کي] دوی په اسلام راوړلو سره د اسلامي أحکامو التزام وکړی وَأَمَّا الْغَصْبُ فَلِمَا بَيَّنَّا او کوم چي غصب دی نو د هغه دليل په وجه به د غصب په هکله فيصله نه کيږي کوم چي موږ بيان کړی أَنَّهُ مَلَكَهُ [او هغه دا] چي غاصب د دې [مغصوب] مال مالک سو وَلَا خُبْثَ فِي مِلْكِ الْحَرْبِيِّ حَتَّىٰ يُؤْمَرَ بِالرَّدِّ او د حربي په ملکيت کي هيڅ بدي نسته چي هغه ته [اوس] د واپس کولو حکم وسي.

**اللغات**: ﴿أدان﴾ د مفاعلې ماضي ده: قرض ورکول. د قرض معامله کول. ﴿يعتمد﴾ د افتعال مضارع ده: اعتماد کول. تېک لګول (مراد ځني مدار کېدل او بنياد کېدل دي. أحسنُ الهداية). ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر خپل ځان لازمول. په خپله غاړه اخيستل. ﴿خبث﴾ مردار توب. ګندګي. بدي. خرابي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو مسلمان دارُ الحرب ته ولاړ سي أمان طلب کړي او هلته يو حربي ده ته قرض ورکړي يا دا مسلمان په خپله يو حربي ته قرض ورکړي. يا هغه د حربي مال غصب

کړي یا یې حربي څني غصب کړي، بیا دا مسلمان دارُ الاسلام ته راسي او هغه حربي هم أمان واخلي او دارُ الاسلام ته راسي نو د قرض او غصب په دواړو صورتونو کي به په دارُ لاسلام کي نه د مسلمان لپاره پر حربي د ضمان (تاوان) فیصله کیږي او نه به د حربي لپاره پر مسلمان د ضمان فیصله کیږي: ځکه چي د قاضي د قضاء (فیصلې) مدار د قاضي پر ولایت وي. او پر قرض باندي د قاضي فیصله د معاملې کولو په وخت کي صادریږي، حال دا چي د معاملې کولو په وخت کي دوی دواړه په دارُ الحرب کي وه، او په دارُ الحرب کي نه پر مسلما د قاضي ولایت حاصل وو او نه پر حربي مستأمن د قاضي ولایت حاصل وو، ځکه چي حربي د أمان په اخیستلو سره د مستقبل او را رواني زمانې په افعالو کي د اسلامي احکامو التزام کړی دی. او کوم افعال چي هغه په تېره زمانه کي د أمان تر طلب مخکي کړي دي، هغه لره هیڅ اعتبار نسته. نو ځکه به په دارُ الاسلام کي د دوی پر قرض هیڅ فیصله نه کیږي، او پر غصب به یې هم هیڅ فیصله نه کیږي، ځکه چي غاصب په غصب کولو او پر مغصوب مال باندي په قبضه کولو سره د هغه مالک جوړیږي او دا مال مباح مال دی نو پر هغه د غاصب قبضه هم ثابتیږي، لهذا کله چي په دارُ الحرب کي دا معامله وسوه او هلته قبضه هم ثابته سو. نو اوس به په دارُ الاسلام کي د دوی په خلاف هیڅ کاروایي نه کیږي، دوی پوه سول او خپل کار یې پو سنوه.

او که دوو حربي کافرانو په دارُ الحرب کي همدغه کار کړی وي، بیا هغوی أمان واخلي دارُ الاسلام ته راسي نو په دې صورت کي به هم د هغو په خلاف هیڅ کاروایي نه کیږي. ځکه په کوم ځای کي او په کوم وخت کي چي هغو دا کار کړی دی هلته او په هغه وخت کي د قاضي ولایت معلوم دی.

**ولا قضاء بدون الولاية**: ها! که چي دا دواړه حربیان اسلام راوړي دارُ الاسلام ته راسي او بیا په دارُ الاسلام کي قاضي ته خپله معامله او مسئله پېش کړي او د انصاف غوښتنه وکړي. نو د قرض په صورت کي به قاضي مقروض ته دا حکم کوي چي قرض غوښتونکي ته خپل قرض ورکړي: ځکه چي د قرض معامله دوی په خپل رضا او خوښي سره کړې وه. نو هغه صحیح وه. او اوس پر دوی د قاضي ولایت هم ثابت دی. لهذا د قرض په هکله خو به د قاضي فرمان او فیصله جاري کیږي. لېکن د غصب په باره کي به اوس هم هیڅ فیصله نه کیږي. ځکه چي غاصب مخکي د مغصوب شي مالک سوی دی او د هغه په ملکیت کي هیڅ خرابي او بدي نسته یعني هغه په غداری او وعده خلافی سره هغه مال حاصل کړی نه دی چي هغه د مال پر واپس کولو مجبور کړی سي، نو په دې وجه به د غصب په صورت کي هیڅ فیصله نه کیږي.

## له کوم حربي څخه چي مال غصب سوی وي د هغه مسلمانېدل او دارُ الاسلام ته راتلل

وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُ دَارَ الْحَرْبِ بِأَمَانٍ او که چیري مسلمان په أمان سره دارُ الحرب ته داخل سي فَغَصَبَ حَرْبِيًا او د يو حربي مال غصب کړي ثُمَّ خَرَجَا مُسْلِمَيْنِ بيا دوی په داسي حال کي [دارُ الاسلام ته] راسي چي دواړه مسلمانان وي أُمِرَ بِرَدِّ الْغَصْبِ وَلَمْ يُقْضَ عَلَيْهِ نو غاصب ته به [دیانتاً] د مغصوب مال د واپس کولو حکم کيږي لېکن پر هغه به [د قاضي له طرفه] فیصله نه کيږي أَمَّا عَدَمُ الْقَضَاءِ فَلِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ مَلَكَهُ کوم چي فیصله نه کول دي نو د هغه دلیل په وجه [به فیصله نه کيږي] کوم چي موږ ذکر کړی چي غاصب د مغصوب مال مالک سو وَأَمَّا الْأَمْرُ بِالرَّدِّ وَمُرَادُهُ الْفَتْوَى بِهِ فَلِأَنَّهُ فَسَدَ الْمِلْكُ او کوم چي واپس کول دي (او په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد فتویٰ ده) نو ځکه چي [د دې مسلمان] ملکيت فاسد سو لِمَا يُقَارِنُهُ مِنَ الْمُحَرَّمِ وَهُوَ نَقْضُ الْعَهْدِ ځکه چي [د هغه] ملکيت د حرام کار سره متصل دی او هغه دعهد ماتول [وعده خلافي کول] دي.

**اللغات**: ﴿أُمِر﴾ د نصر له باب څخه د ماضي مجهول صیغه ده: أمر کول، حکم کول. ﴿رِدّ﴾ د نصر مصدر دی: واپس کول (بیرته ورکول). ﴿يقارن﴾ د مفاعلې له باب څخه د مضارع معلوم صیغه ده: متصل کېدل، يو ځای کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که يو مسلمان أمان واخلي دارُ الحرب ته ولاړ سي نو د هغه لپاره د حربیانو په مال تعرض کول (او په هغه کي دخل او تجاوز کول) حرام دی، لېکن که هغه د يو حربي مال غصب کړي بيا هغه حربي مسلمان سي یا أمن واخلي او د دغه مسلمان غاصب سره دارُ الاسلام ته راسي، نو دیانتاً به غاصب ته ویل کيږي چي ورروه! د دې نوي مسلمان حربي مال هغه ته واپس کړه!، ځکه چي تا په غدر (او وعده خلافی) سره هغه مال حاصل کړی دی او غدر حرام دی، لهذا په دې مال کي ستا ملکيت فاسد سو، نو ځکه ښه خبره دا ده چي ته هغه ته خپل مال واپس کړه، خو بیا هم قاضي په واپس کولو کي پر هغه زور او جبر نه سي کولای، ځکه چي د حربي مال غیر معصوم او مباح وي، نو غاصب د هغه په غصب کولو سره دومره غټ جرم نه کړی دی چي قاضي هغه ته سزا ورکړي او په دې هکله هغه مجبوره کړي. ها! په مینه او نرمۍ سره به مال ځني اخیستل کيږي او نوي مسلمان حربي ته به ورکول کيږي، د دې لپاره چي د نوي مسلمان حربي زړه خوشاله سي او د اسلام په لمن کي هغه په هره توګه خپل ځان محفوظ وګڼي او مطمئن سي.

**ومراده الفتوىٰ به**: يعني د متن په "أُمِرَ بِرَدِّ" کي له "رَدّ" څخه د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد فتویٰ ورکول دي. يعني د هغه مراد او مطلب دا دی چي د "واپس کولو" فتویٰ به نه ورکول کيږي لېکن دیانتاً به هغه ته د واپس کولو حکم کيږي.

## په دارُ الحرب کي مسلمان قتلول

وَإِذَا دَخَلَ مُسْلِمَانِ دَارَ الْحَرْبِ بِأَمَانٍ او که چيري دوه مسلمانان په أمان سره دارُ الحرب ته داخل سي فَقَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ عَمْدًا أَوْ خَطَأً او په دوی کي يو په قصد يا خطاء سره خپل ملګری قتل کړي فَعَلَى الْقَاتِلِ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ نو پر قاتل به په خپل مال کي ديت واجب وي وَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ فِي الْخَطَإِ او په قتلِ خطاء کي به پر هغه کفاره [هم] واجب وي أَمَّا الْكَفَّارَةُ فَلِإِطْلَاقِ الْكِتَابِ کوم چي د کفارې وجوب دی نو ځکه چي کتابُ الله [آيت] مطلق دی وَأَمَّا الدِّيَةُ فَلِأَنَّ الْعِصْمَةَ الثَّابِتَةَ بِالْإِحْرَازِ بِدَارِ الْإِسْلَامِ لَا تَبْطُلُ بِعَارِضِ الدُّخُولِ بِالْأَمَانِ او کوم چي د ديت وجوب دی نو ځکه چي په إحراز بدار الاسلام سره ثابت سوی عصمت په أمان اخيستلو سره د عارضي دخول په وجه نه باطليږي وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اسْتِيفَاؤُهُ إِلَّا بِمَنَعَةٍ او قياس ځکه نه واجبيږي چي له طاقت [دفاعي قوت] څخه بغير د قصاص اخيستل ممکن نه دي وَلَا مَنَعَةَ دُونَ الْإِمَامِ وَجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ او له امام او جماعةُ المسلمين څخه بغير طاقت حاصلېدای نه سي وَلَمْ يُوجَدْ ذَلِكَ فِي دَارِ الْحَرْبِ او دا [امام او جماعة المسلمين] په دارُ الحرب کي موجود نه دي وَإِنَّمَا تَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ فِي الْعَمْدِ لِأَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ الْعَمْدَ او د قتلِ عمد په صورت کي ديت ځکه د قاتل په خپل مال کي واجبيږي چي عاقله د قتلِ عمد ديت نه ورکوي وَفِي الْخَطَإِ لِأَنَّهُ لَا قُدْرَةَ لَهُمْ عَلَى الصِّيَانَةِ مَعَ تَبَايُنِ الدَّارَيْنِ او د قتلِ خطاء په صورت کي [ځکه د قاتل په خپل مال کي ديت واجبيږي] چي د دارَينو د تباين سره عاقله پر حفاظت قدرت نه لري وَالْوُجُوبُ عَلَيْهِمْ عَلَى اعْتِبَارِ تَرْكِهَا او پر عاقله وو به د ديت وجوب د حفاظت پرېښوولو په وجه وي وَإِنْ كَانَا أَسِيرَيْنِ فَقَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ أَوْ قَتَلَ مُسْلِمٌ تَاجِرٌ أَسِيرًا او که هغوی دواړه [مسلمانان] قيديان وي او په هغوی کي يو خپل ملګری قتل کړي يا يو مسلمان تاجر يو قيدي قتل کړي فَلَا شَيْءَ عَلَى الْقَاتِلِ نو پر قاتل هيڅ شی واجب نه دی إِلَّا الْكَفَّارَةُ فِي الْخَطَإِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په قتلِ خطاء کي کفاره واجب ده وَقَالَا ❁: فِي الْأَسِيرَيْنِ

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٧٢). [القول الراجح ج:١، ص:٤٩٠]

الدِّيَةُ فِي الْخَطَإِ وَالْعَمْدِ او صاحبين فرمايي: چي د قتلِ خطاء او عمد په دواړو صورتونو کي په دواړو قيديانو کي [پر قاتل] ديت واجب دی. لِأَنَّ الْعِصْمَةَ لَا تَبْطُلُ بِعَارِضِ الْأَسْرِ كَمَا لَا تَبْطُلُ بِعَارِضِ الِاسْتِئْمَانِ ځکه چي د قيد په عارض سره عصمت نه ختميږي لکه څرنګه چي د استيمان په عارض سره عصمت نه ختميږي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ د دې بيان وکړی وَامْتِنَاعُ الْقِصَاصِ لِعَدَمِ الْمَنَعَةِ او د قصاص منع کېدل د طاقت [دفاعي قوت] د نشتوالي په وجه دي وَيَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ او دا ديت به د قاتل په مال کي واجب وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ بِالْأَسْرِ صَارَ تَبَعًا لَهُمْ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د قيدېدلو په وجه قيدي د حربيانو تابع سو لِصَيْرُورَتِهِ مَقْهُورًا فِي أَيْدِيهِمْ ځکه چي هغه د دوی په قبضه کي مغلوب وګرځېدی وَلِهَذَا يَصِيرُ مُقِيمًا بِإِقَامَتِهِمْ وَمُسَافِرًا بِسَفَرِهِمْ همدا وجه ده چي [اوس] هغه د دوی په مقيم کېدلو سره مقيم ګرځي او د دوی په مسافر کېدلو سره مسافر ګرځي فَيَبْطُلُ بِهِ الْإِحْرَازُ أَصْلًا نو په دې سره إحرز بالکل باطليږي وَصَارَ كَالْمُسْلِمِ الَّذِي لَمْ يُهَاجِرْ إِلَيْنَا او دا د هغه مسلمان په څېر سو چي هغه زموږ [د دارُ الاسلام] وطرف ته هجرت نه وکړي وَخَصَّ الْخَطَأَ بِالْكَفَّارَةِ او امام قدوري رَحِمَهُ الله قتلِ خطاء د کفارې سره خاص کړی دی لِأَنَّهُ لَا كَفَّارَةَ فِي الْعَمْدِ عِنْدَنَا ځکه چي زموږ په نېز په قتلِ عمد کي کفاره نسته.

**اللغات**: ﴿مَنَعة﴾ د مدافعت قوت، دفاعي طاقت، ﴿عواقل﴾ جمع د عاقلةٌ ده: (د قاتل) خاندان والا، قبيلې والا، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول، اخيستل، ﴿صيانة﴾ حفاظت، ﴿أسر﴾ د ضرب مصدر دی: قيدول (قيدي کول)، ﴿صيرورة﴾ د ضرب مصدر دی: ګرځېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري دوه مسلمانان أمان واخلي دارُ الحرب ته ولاړ سي او هلته په دوی کي يو مسلمان بل مسلمان قتل کړي برابره ده عمداً يې قتل کړي يا خطاءً، په دواړو صورتونو کي به پر قاتل په خپل مال کي ديت واجب وي، او د خطاءً په صورت کي به د ديت سره کفاره هم پر واجب وي؛ د کفارې د وجوب دليل دا آيت دی: "وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ...إلخ" [سورة النساء: ٩٢]، په دې آيت کي د مطلق قتلِ خطاء په جزاء کي ديت واجب سوی دی، نو ځکه به د قتلِ خطاء په صورت کي ديت واجبيږي، او د عمد په صورت کي به هم ديت واجبيږي او قصاص به نه واجبيږي، ځکه

چي د قصاص اخيستلو لپاره د طاقت او قوت ضرورت وي، او په دارُ الحرب کي نه امامُ المسلمين وي او نه د مسلمانانو يو ګوند او جماعت وي، نو په دې وجه هلته قصاص واجبول بې نفع او بې فايدې دي. ها! د مسلمان د خون او وينې د احترام او ساتلو لپاره به پر قاتل ديت واجب وي (چي د مسلمان وينه هدر او ضايع نه سي او قاتل موت جوت خلاص نه سي). ځکه چي په دارُ الحرب کي د مسلمان د عارضي أمان په اخيستلو سره د هغه دائمي عصمت ساقط سوی نه دی بلکي دا عصمت پاته دي او د همدغه عصمت په وجه به پر قاتل ديت واجب وي او دا به د قاتل په مال کي واجب وي، ځکه چي عاقله د قتلِ عمد ديت نه ورکوي. او عاقله که څه هم د قتلِ خطاء ديت وُرکوي لېکن په دې مسئله کي به د قتلِ خطاء ديت هم عاقله نه ورکوي. بلکي قاتل به يې ورکوي، ځکه چي پر عاقله وو باندي د صيانت او حفاظت د پرېښولو په وجه ديت واجبيږي او صيانت پرېښوول په دارُ الاسلام کي ثابتيږي حال دا چي دلته قتل په دارُ الحرب کيٰ واقع سوی دی او په دارُ الحرب کي عاقله پر صيانت قدرت نه لري، نو ګواکي د دارُ الحرب په قتل کي د دوی له طرفه د صيانت پرېښوول موجود نه سو، نو ځکه به دوی به د هغه ديت هم نه ورکوي.

**وإن كان أسيرين إلخ**: مسئله دا ده که چيري کفار په دارُ الاسلام کي دوه خلک ونيسي. قيديان يې کړي او دارُ الحرب ته يې نقل کړي، بيا هلته يوه قيدي هغه بل قيدي قتل کړي، يا مسلمان تاجر يو مسلمان قيدي قتل کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به پر قاتل هيڅ شی واجب نه وي لېکن که چيري قتلِ خطاء وي نو پر قاتل به کفاره واجب وي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي که چيري يوه قيدي بل قيدي قتل کړی وي نو د قتلِ عمد او خطاء په دواړو صورتونو کي به پر قاتل ديت واجب وي؛ ځکه چي مقتول مسلمان دی او د هغه عصمت دائمي دی، لهذا په عارضي قيد سره به د هغه عصمت نه ساقطيږي لکه څرنګه چي په عارضي استيمان سره عصمت نه ساقطيږي او څرنګه چي دا دارُ الحرب معامله ده او هلته اسلامي قوت او جماعت معلوم دی، نو ځکه به پر هغه قصاص واجب نه وي خو ديّت به خامخا پر واجب وي.

**ولأبي حنيفة إلخ**: د امام صاحب دليل دا دی چي د نيولو او قيدېدلو په وجه هغه مسلمان د کفارو په قبضه کي دی او د هغو تر لاس لاندي دی او په هر اعتبار سره د هغو تابع دی، همدا وجه ده چي دا مسلمان د هغو کفارو په مقيموالي سره مقيم شمارل کيږي او د هغو په مسافر کېدلو سره مسافر شمارل کيږي او په داسي مضبوط تبعيت سره إحراز بالکل ختميږي او کله چي إحراز ختم او باطل سو نو عصمت هم ساقط سو. او کله چي عصمت نسته نو ديت به څرنګه واجب سي (ځکه چي ديت خو د معصوم، محترم او محفوظ نفس د قتلولو په وجه واجبيږي). د دې مثال داسي دی لکه يو کافر چي په دارُ الحرب کي مسلمان سي لېکن له هغه ځای څخه دارُ الاسلام ته را نه سي نو د هغه په حق کي هم مکمل عصمت نه ثابتيږي او هغه به د کفارو په قبضه کي مقهور (او د هغو تر لاس لاندي) ګڼل کيږي، همداسي د دغه قيدي هم دغه حکم دی.

**وخص الكفارة إلخ**: فرمايي چي دلته فقط د قتلِ خطاء په صورت کي کفاره واجب سوې ده. د هغه وجه دا ده چي په قتل عمد کي زموږ په نېز کفاره نسته. فقط والله أعلم وعلمهُ أتمّ

# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ أَحْكَامِ الْمُسْتَأْمِنِ مِنَ الْحَرْبِ)

## (دا) فصل (د مستأمن حربي د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** مخکې مونږ دا خبره وکړه چې د مستأمن حربي أحكام تر مسلمان مستأمن وروسته بيان سوي دي. اوس له دې ځای څخه د هغه بيان دی.

### حربي ته به څومره مودت أمان ورکول کيږي؟

قَالَ: وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ إِلَيْنَا مُسْتَأْمَنًا فرمايي: که چيري يو حربي زموږ [د دارُ الاسلام] وطرف ته په داسي حال کې راسي چې أمان غوښتونکی وي لَمْ يُمَكَّنْ أَنْ يُقِيمَ فِي دَارِنَا سَنَةً نو د دې موقع او قدرت] به نه ورکول کيږي چې په دارُ الاسلام کې د يوه [پوره] کال لپاره پاته سي وَيَقُوْلُ لَهُ الْإِمَامُ: إِنْ أَقَمْتَ تَمَامَ السَّنَةِ وَضَعْتُ عَلَيْكَ الْجِزْيَةَ او امام به هغه ته وايي: که چيري ته [دلته] ټوله کال پاته سي نو زه به پر تا جزيه کښيږدم [مقرره کړم] وَالْأَصْلُ: أَنَّ الْحَرْبِيَّ لَا يُمَكَّنُ مِنْ إِقَامَةٍ دَائِمَةٍ فِي دَارِنَا إِلَّا بِالِاسْتِرْقَاقِ أَوِ الْجِزْيَةِ او قاعده دا ده: چې له غلام جوړلو يا له جزيه مقرر کولو څخه بغير به د دائمي پاتېدلو موقع نه ورکول کيږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ عَيْنًا لَهُمْ وَعَوْنًا عَلَيْنَا ځکه چې [د دې په وجه] به هغه د حربيانو جاسوس جوړ سي او زموږ په خلاف [د هغو] مدد ګار جوړ سي فَيَلْتَحِقُ الْمَضَرَّةُ بِالْمُسْلِمِينَ نو [د هغه په وجه] به مسلمانانو ته ضرر ورسيږي وَيُمَكَّنُ مِنَ الْإِقَامَةِ الْيَسِيرَةِ الېکن] هغه ته به د معمولي [لږ] مودت لپاره د پاتېدلو موقع ورکول کيږي لِأَنَّ فِي مَنْعِهَا قَطْعَ الْمِيرَةِ وَالْجَلَبِ وَسَدَّ بَابِ التِّجَارَةِ ځکه چې د لږ مودت په منع کولو سره د غلې او مال تر لاسه کولو [دنده] ختميږي او د تجارت [کاروبار] کولو دروازه بندي کيږي فَفَصَلْنَا بَيْنَهُمَا بِسَنَةٍ نو ځکه موږ د ډېر او لږ مودت په مينځ کې په يوه کال سره فاصله کړې ده لِأَنَّهَا مُدَّةٌ تَجِبُ فِيهَا الْجِزْيَةُ ځکه چې يو کال داسي مودت دی چې په هغه کې جزيه واجبيږي فَتَكُونُ الْإِقَامَةُ لِمَصْلَحَةِ الْجِزْيَةِ لهذا [يو کال د حربي]

پاتېدل به د جزيې د مصلحت لپاره وي ثُمَّ إِنْ رَجَعَ بَعْدَ مَقَالَةِ الْإِمَامِ قَبْلَ تَمَامِ السَّنَةِ إِلَى وَطَنِهِ بيا كه چيري هغه د امام تر خبري وروسته تر يوه كال پوره كېدلو مخكې دارُ الحرب ته ولاړ سي فَلَا سَبِيلَ عَلَيْهِ نو پر هغه به [د جزيې لازمولو] هيڅ لاره نه وي وَإِذَا مَكَثَ سَنَةً فَهُوَ ذِمِّيٌّ او كه چيري هغه يو كال پاته سي نو ذمي به وي لِأَنَّهُ لَمَّا أَقَامَ سَنَةً بَعْدَ تَقَدُّمِ الْإِمَامِ إِلَيْهِ ځكه كله چي هغه يو كال پاته سو وروسته تر دې چي امام هغه ته مخكې [خبره] وكړه [چي كه ته دلته ټوله كال پاته سې نو زه به پر تا جزيه مقرر كړم] صَارَ مُلْتَزِمًا الْجِزْيَةَ نو هغه پر خپل ځان د جزيې لازمونكى سو فَيَصِيرُ ذِمِّيًّا نو ځكه به هغه ذمي گرځي وَلِلْإِمَامِ أَنْ يُؤَقِّتَ فِي ذَٰلِكَ مَا دُونَ السَّنَةِ كَالشَّهْرِ وَالشَّهْرَيْنِ او امام ته دا اختيار سته چي په دې هكله تر يوه كال كم مودت لكه يوه مياشته، دوې مياشتې [او داسي نور] وټاكي وَإِذَا أَقَامَهَا بَعْدَ مَقَالَةِ الْإِمَامِ يَصِيرُ ذِمِّيًّا او كه چيري هغه د امام تر خبري وروسته ټوله كال پاته سي نو [هم] به ذمي گرځي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړى ثُمَّ لَا يُتْرَكُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ بيا به هغه دې ته نه پرېښوول كيږي چي دارُ الحرب ته واپس ولاړ سي لِأَنَّ عَقْدَ الذِّمَّةِ لَا يُنْقَضُ ځكه چي د ذمي والي عقد ماتېدلاى نه سي كَيْفَ وَأَنَّ فِيهِ قَطْعَ الْجِزْيَةِ وَجَعْلَ وَلَدِهِ حَرْبًا عَلَيْنَا څرنګه به مات كړى سي حال دا چي په دې كي د جزيې قطع كېدل او زموږ په خلاف د هغه د أولاد حربي كېدل سته وَفِيهِ مَضَرَّةٌ بِالْمُسْلِمِينَ او په دې كي د مسلمانانو [ښكاره] نقصان دى.

**اللغات:** ﴿مستأمن﴾ د استفعال اسمِ فاعل دى: د أمان طلب كونكى، أمان غوښتونكى، أمان اخيستونكى، ﴿أقمت﴾ د افعال ماضي ده: اقامت كول، پاتېدل، يو ځاى خپل وطن گرځول، ﴿استرقاق﴾ د استفعال مصدر دى: غلام جوړول، ﴿عين﴾ جاسوس، ﴿عون﴾ مددگار، مرستيال، ﴿ميرة﴾ غله، ﴿جَلَب﴾ صاحب د مصباح اللغات د دې لفظ معنىٰ داسي كړې ده: هغه مال كوم چي له يو ښار څخه بل ښار ته راوړل سي، ﴿مُلتزِم﴾ د افتعال اسمِ فاعل دى: پر ځان لازمونكى، په خپله غاړه اخيستونكى (ذمه واري قبلونكى).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي له جزيې اخيستلو يا له غلام جوړلو څخه بغير به حربي ته په دارُ الاسلام كي د اوسېدلو لپاره د يوه كال وېزه (اجازت نامه) نه وركول كيږي. ها! هغه ته مياشت، دوې مياشتي په دارُ الاسلام كي د اوسېدلو اجازه وركول كېداى سي: ځكه كه چيري هغه ټوله كال په

دارُ لاسلام کي اووسيږي، نو د مسلمانانو په رازونو او چالونو به خبر سي او جاسوسي به وکړي او زموږ په خلاف به د کفارو مرسته وکړي او مسلمانانو ته به نقصان ورسوي. نو ځکه د به د تهوله کال لپاره د اوسېدلو اجازه نه ورکول کيږي. لېکن له يوه کال څخه د کم مودت لپاره به هغه ته اقامتي ويزه ورکول کيږي. ځکه که هغه له دې څخه هم منع کړی سي نو بيا به د غلې او مالونو د استولو او ترلاسه کولو او د تجارت او کاروبار کولو لاره بنده سي. او که چيري هغه د تهوله کال لپاره اوسېدل غواړي نو هغه به جزيه ورکوي يا به د غلامۍ طوق غاړي ته اچوي.

**وإن رجع إلخ**: د دې حاصل دا دی چي امام به حربي ته دا خبره کړې وي چي ورووره! د پوره کال اوسېدلو په صورت کي به ته جزيه اداء کوې او هغه به دا خبره منظور کړې وي. لېکن بيا تر کال پوره کېدلو مخکي هغه خپل وطن ته ولاړ سي، نو اوس به پر هغه جزيه نه واجبيږي. ها! که چيري هغه يو کال په دارُ الاسلام کي اووسيږي نو بيا به هغه ذمي ګرځول کيږي او پر هغه به جزيه واجبيږي او د هغه لپاره به دارُ الحرب ته د واپس تللو اجازه نه وي. ځکه چي هغه د پوره کال په اوسېدلو سره ذمي وګرځېدی او هغه په خپل فعل او اوسېدلو سره په خپله د جزيې التزام وکړی. "عقد ذمه" ماتېدلای نه سي، ځکه چي د هغه په ماتولو کي د مسلمانانو نقصان دی. نو په دې وجه به هغه حربي اوس دارُ الحرب ته هم واپس تللای نه سي.

## که حربي په دارُ الاسلام کي ځمکه رانيسي (حکم)

**فَإِنْ دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ** او که چيري يو حربي په أمان سره دارُ الاسلام ته راسي **وَاشْتَرَى أَرْضَ خَرَاجٍ** او هغه يوه خراجي ځمکه رانيسي **فَإِذَا وُضِعَ عَلَيْهِ الْخَرَاجُ** نو کله چي پر هغه خراج کېښېنول سي [يعني کله چي پر دې حربي خراج لازم سي] **فَهُوَ ذِمِّيٌّ** نو [له هغه وخت څخه] به هغه ذمي وي **لِأَنَّ خَرَاجَ الْأَرْضِ بِمَنْزِلَةِ خَرَاجِ الرَّأْسِ** ځکه چي د ځمکي خراج · فرد [انسان] د خراج په درجه کي دی **فَإِذَا الْتَزَمَهُ صَارَ مُلْتَزِمًا الْمَقَامَ فِي دَارِنَا** او کله چي هغه پر ځان خراج لازم کړی نو هغه په دارُ اسلام کي پاتېدل پر ځان لازم کړه **أَمَّا بِمُجَرَّدِ الشِّرَاءِ لَا يَصِيرُ ذِمِّيًّا** لېکن محض د ځمکي په رانيولو سره به هغه ذمي نه ګرځي **لِأَنَّهُ قَدْ يَشْتَرِيهَا لِلتِّجَارَةِ** ځکه چي کله هغه د تجارت لپاره هم ځمکه رانيسي **وَإِذَا لَزِمَهُ خَرَاجُ الْأَرْضِ فَبَعْدَ ذٰلِكَ تَلْزَمُهُ الْجِزْيَةُ لِسَنَةٍ مُسْتَقْبَلَةٍ** او کله چي د ځمکي خراج پر هغه لازم سو نو تر دې وروسته به پر هغه د را روان کال لپاره جزيه لازم وي **لِأَنَّهُ يَصِيرُ ذِمِّيًّا بِلُزُومِ**

الْخَرَاجِ ځکه چي د خراج په لازمېدلو سره به هغه ذمي وګرځي فَتُعْتَبَرُ الْمُدَّةُ مِنْ وَقْتِ وُجُوبِهِ لهذا د جزيې د وجوب له وخت څخه به د هغه د ذمي والي مودت معتبر وي وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: فَإِذَا وُضِعَ عَلَيْهِ الْخَرَاجُ فَهُوَ ذِمِّيٌّ تَصْرِيحٌ بِشَرْطِ الْوَضْعِ او په متن [جامع صغير] کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: " فإذا وُضع عليه الخراج فهو ذمي" د خراج ايښولو [مقرر کولو] د شرطېدلو صراحت دی فَيَتَخَرَّجُ عَلَيْهِ أَحْكَامٌ جَمَّةٌ نو پر دې شرط به [د دغه مسئلې په هکله] د ډېرو أحکامو تخريج کيږي فَلَا يُغْفَلُ عَنْهُ لهذا له دې څخه دي غفلت نه کيږي [يعني دا په ياد ساتل پکار دي] وَإِذَا دَخَلَتْ حَرْبِيَّةٌ بِأَمَانٍ فَتَزَوَّجَتْ ذِمِّيًّا او کله چي يوه حربي ښځه په امان سره [دارُ الاسلام ته] داخله سي صَارَتْ ذِمِّيَّةً نو هغه ذميه ګرځي لِأَنَّهَا الْتَزَمَتْ الْمُقَامَ تَبَعًا لِلزَّوْجِ ځکه چي هغي د خپل خاوند په متابعت کي پر خپل ځان [په دارُ الاسلام کي] پاتېدل لازم کړه وَإِذَا دَخَلَ حَرْبِيٌّ بِأَمَانٍ فَتَزَوَّجَ ذِمِّيَّةً او که چيري يو حربي په أمان سره [دارُ الاسلام ته] راسي او د يوې ذمي ښځي سره نکاح وکړي لَمْ يَصِرْ ذِمِّيًّا نو هغه ذمي نه ګرځي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فَيَرْجِعُ إِلَى بَلَدِهِ ځکه چي د هغه لپاره دا ممکن دي چي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي او خپل ښار ته واپس ولاړ سي فَلَمْ يَكُنْ مُلْتَزِمًا الْمُقَامَ نو هغه [په دارُ الاسلام کي] د پاتېدلو لازمونکی نه سو.

**اللغات**: ﴿تصريح﴾ د تفعيل مصدر دی: وضاحت کول، په ښکاره توګه ذکر کول. ﴿مقام﴾ مصدر ميمي دی: پاتېدل، اقامت کول، يو ځای خپل وطن ګرځول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چيري يو حربي أمان واخلي دارُالاسلام ته راسي او دلته هغه يوه خراجي ځمکه رانيسي نو کله چي پر هغه خراج لازم سي يعني په کوم وخت چي هغه په دې ځمکه کي کښتګري وکړي (يا د کښتګرۍ وخت راسي) نو له هغه وخت څخه به دا حربي ذمي شمارل کيږي: ځکه چي د ځمکي خراج د انسان د ذات د خراج په څير دی، لهذا کله چي هغه پر ځان د ځمکي خراج لازم کړي (يعني کله چي پر هغه خراج لازم سي) نو دلالتاً به هغه په خپله هم په دارُ الاسلام کي اوسېدونکی شمارل کيږي او له همدغه وخت څخه به هغه ذمي ګرځول کيږي او پر هغه به د را روان کال جزيه واجب وي، يعني د هغه د ذمي کېدلو دار ومدار د هغه د خراج پر التزام دی. نو محض د ځمکي په رانيولو سره به هيڅ حربي ذمي نه ګرځول کيږي ځکه چي کله نا کله ځمکه د تجارت په نيت سره هم رانيول کيږي لهذا د هغه د ذمي کېدلو لپاره په إقامت او تجارت کي فرق کول ضروري

دي او دا فرق د خراج په التزام يعني په کښتګرۍ، زراعت او داسي نورو سره حاصليږي. نو په دې وجه مونږ د هغه ذمي والي د خراج پر التزام منحصر کړی دی. او په متن کي له دې جملې "فإذا وضع عليه الخراج" ځخه همدغه مراد دي، او پر همدې به د ډيرو أحکام تخريج هم کيږي. مثلاً تر دې وروسته به هغه دارُ الحرب ته تللای نه سي. او د مسلمان لپاره به په هغه تعرّض کول حرام وي. او داسي نور. (بنايه ج:۶، ص:۶۲۷)

**وإذا دخلت إلخ**: که چيري يوه حربي ښځه أمان واخلي دارُ الاسلام ته راسي او دلته د يو ذمي سره نکاح وکړي نو هغه به ذميه ګرځي، ځکه چي په نکاح کولو سره هغې خپل ځان د خاوند تابع وګرځوی او د خاوند سره يې په دارُ الاسلام کي د اوسېدلو عهد او تړون وکړی. د دې په خلاف که چيري يو حربي دارُ الاسلام ته راسي د يوې ذمي ښځي سره نکاح وکړي نو هغه به ذمي نه ګرځي، ځکه چي شريعت نارينه حاکم او متبوع جوړ کړی دی او ښځه يې تابع جوړه کړې ده. نو په دې وجه به دا حربي د خپلي دمي ښځي نه تابع کيږي او نه به د هغې په وجه په دارُ الاسلام کي پر هغه اوسېدل لازم وي. بلکي که چي هغه وغواړي نو هغې ته به طلاق ورکړي او غوته به په شا کړي دارُ الحرب ته به ولاړ سي. نو په دې وجه مونږ هغه ذمي ګرځولای نه سو.

## که حربي په دارُ الاسلام کي يو چا ته په قرض يا په امانت مال ورکړی وي (حکم)

وَلَوْ أَنَّ حَرْبِيًّا دَخَلَ دَارَنَا بِأَمَانٍ او که چيري يو حرابي په أمان سره دارُ الاسلام ته راسي ثُمَّ عَادَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ بيا دارُ الحرب ته واپس ولاړ سي وَتَرَكَ وَدِيعَةً عِنْدَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ أَوْ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِمْ او د يو مسلمان يا ذمي سره يو امانت پر ېږدي يا د دوی په پر ذمه يو قرض پرېږدي فَقَدْ صَارَ دَمُهُ مُبَاحًا بِالْعَوْدِ نو د واپس تللو په وجه د هغه وينه مباح [روا] وګرځېده لِأَنَّهُ أَبْطَلَ أَمَانَهُ ځکه چي هغه خپل أمان باطل کړی وَمَا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ مِنْ مَالِهِ عَلَى خَطَرٍ او په دارُ الاسلام کي چي د هغه کوم مال دی هغه متردّد دی فَإِنْ أُسِرَ أَوْ ظُهِرَ عَلَى الدَّارِ فَقُتِلَ نو که هغه [حربي] قيد کړی سي يا پر دارُ الحرب اد مسلمانانو] قبضه راسي بيا هغه قتل کړی سي سَقَطَتْ دُيُونُهُ نو د هغه قرضونه ساقطيږي وَصَارَتِ الْوَدِيعَةُ فَيْئًا او د هغه أمانت فئ ګرځي أَمَّا الْوَدِيعَةُ فَلِأَنَّهَا فِي يَدِهِ تَقْدِيرًا کوم چي امانت دی نو هغه تقديراً [معنا] د ده [حربي] په قبضه کي دی لِأَنَّ يَدَ الْمُودَعِ كَيَدِهِ ځکه چي د مودَع قبضه د ده د قبضې په شير ده فَيَصِيرُ فَيْئًا تَبَعًا لِنَفْسِهِ نو د ده په تبع کي به أمانت فئ وګرځي وَأَمَّا الدَّيْنُ فَلِأَنَّ

إِثْبَاتَ الْيَدِ عَلَيْهِ بِوَاسِطَةِ الْمُطَالَبَةِ او كوم چي قرض دى نو ا هغه به ځکه ساقطيږي ا چي پر هغه د حربي قبضه د مطالبې په ذريعه ثابتيږي وَقَدْ سَقَطَتْ حال دا چي [د حربي] د مطالبې حق ساقط سو وَيَدُ مَنْ عَلَيْهِ أَسْبَقُ إِلَيْهِ مِنْ يَدِ الْعَامَّةِ او كوم سړي چي پر دې [قرض او امانت] قابض دى د هغه قبضه د عوامو له قبضې څخه مخكې ده فَيَخْتَصُّ بِهِ نو ځکه به دا [قرض او امانت] د هغه سره خاص كيږي وَإِنْ قُتِلَ وَلَمْ يُظْهَرْ عَلَى الدَّارِ او كه حربي قتل كړى سي لېكن پر دارُ الحرب [د مسلمانانو له طرفه] قبضه نه وسي فَالْقَرْضُ الْوَدِيعَةُ لِوَرَثَتِهِ نو قرض او امانت به د هغه د وارثانو لپاره وي وَكَذٰلِكَ إِذَا مَاتَ او همدارنګه كه هغه مړ سي [نو هم دغه حكم دى] لِأَنَّ نَفْسَهُ لَمْ تَصِرْ مَغْنُومَةً ځکه چي د دې حربي نفس غنيمت نه وګرځېدى فَكَذٰلِكَ مَالُهُ نو همداسي به د ده مال هم [غنيمت نه ګرځي] وَهٰذَا لِأَنَّ حُكْمَ الْأَمَانِ بَاقٍ فِي مَالِهِ او دا حكم په دې وجه دى چي د دې حربي په مال كي د أمان حكم باقي پاته دى فَيُرَدُّ عَلَيْهِ أَوْ عَلَى وَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ نو ځکه به هغه مال ده ته واپس كيږي يا تر ده وروسته به د ده وارثانو ته واپس كيږي.

**اللغات**: ﴿وديعة﴾ امانت، هغه شى يا مال كوم چي يو چا ته امانتاً كښېښول سي. ﴿ظهر﴾ د فتح له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده. د دې باب په صله كي چي "على" راسي، نو د "غالبېدلو" او "قبضه كولو" په معنىٰ سره راځي. ﴿يد﴾ قبضه، قدرت.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه چيري يو حربي أمان واخلي دارُ الاسلام ته راسي او دلته هغه خپل مال يو مسلمان يا ذمي ته د امانت په توګه كښېږدي يا هغه ته يې په قرض وركړي او بيا دا ټوله پرېږدي او دارُ الحرب ته ولاړ سي، نو اوس هغه د مخكي په څېر حربي ګرځي او د هغه أمان به باطليږي او د مخكي په څېر به هغه مباحُ الدم وي. او پاته سوه د هغه د مال مسئله (يعني د هغه د قرض او امانت مسئله)، نو د هغه د مال حكم متردّد او مشكوک دى. ځکه كه چيري دا حربي د مسلمانانو له طرفه ونيول سي، يا پر دارُ الحرب د مسلمانانو قبضه راسي او هغه قتل كړى سي نو د هغه ټوله مخكني قرضونه ساقطيږي او د هغه أمانت فئ ګرځي؛ ځکه چي هغه مال معناً اوس هم د دې حربي په قبضه كي دى. ځکه چي د مودَع (امانت ساتونكي) قبضه د امانت د مالک (صاحبُ الوديعه) د قبضې په څېر وي. او څرنګه چي صاحبُ الوديعه يعني حربي د نيول كېدلو او قيدېدلو په وجه فئ ګرځېدلى دى لهذا د هغه مال به هم د هغه په متابعت كي فئ ګرځي. او د هغه قرض به ځکه ساقطيږي چي پر

قرض اوس د هغه قبضه د مطالبې کولو په ذريعه ثابتيږي (يعني دا حربي هغه وخت د خپل مال او قرض حقداره ګرځي کله چې هغه د قرض مطالبه وکړي). حالانکي دارُ الحرب ته د تللو په وجه د ده لپاره د مطالبې کولو حق نسته (او دا حق ځني ساقط سو). نو په دې وجه به له هغه مال (قرض) څخه هم د ده حق ساقطيږي او د هغه مال مستحق به مديون وي. ځکه چې پر هغه مال د مديون قبضه د ټولو خلکو له قبضې څخه مخکي وي. نو ځکه به مديون تر ټولو زيات د هغه حقداره وي.

او که چيري دا حربي قتل کړی سي. يا په خپله مړ سي او پر دارُ الحرب د مسلمانانو قبضه راغلې نه وي. نو د هغه د قرض او امانت مال به د هغه د وارثانو وي: ځکه کله چې د هغه نفس مغنوم نه سو نو ښکاره خبره ده چې د هغه مال به هم نه مغنوم کيږي او د هغه په مال کي به أمان باقي پاته وي او د هغه په ژوند کي به دا مال هغه ته ورکول کيږي او د هغه تر مرګ وروسته به وارثانو ته ورکول کيږي.

## له جنګ څخه بغير د حاصل سوي مال حکم

قَالَ: وَمَا أَوْجَفَ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ مِنْ أَمْوَالِ أَهْلِ الْحَرْبِ بِغَيْرِ قِتَالٍ فرمايي: او د کفارو هغه أموال کوم چي مسلمانانو له جنګ څخه بغير محض په پېش قدمي کولو سره حاصل کړي وي يُصْرَفُ فِي مَصَالِحِ الْمُسْلِمِينَ نو هغه به د مسلمانانو په مصلحتونو [ښېګڼو] کي خرچول کيږي كَمَا يُصْرَفُ الْخَرَاجُ لکه څرنګه چي خراج خرچول کيږي قَالُوا: هُوَ مِثْلُ الْأَرَاضِي الَّتِي أَجْلَوْا أَهْلَهَا عَنْهَا مشائخو فرمايلي دي: چي دغه مالونه د هغه ځمکو په څير دي چي مجاهدينو له هغوی څخه خپل خلک [مالکان] ايستلي وي وَالْجِزْيَةِ وَلَا خُمُسَ فِي ذَلِكَ او په هغه کي خُمس نسته. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِيهِمَا الْخُمُسُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې دواړو کي به خمس وي اعْتِبَارًا بِالْغَنِيمَةِ په غنيمت باندي په قياس کولو سره وَلَنَا مَا رُوِيَ [1] أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ او زموږ دليل دا روايت دی چي نبي کريم ﷺ جزيه واخيستل وَكَذَا عُمَرُ وَمُعَاذٌ او همدارنګه حضرت عمر او حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هم جزيه واخيستل وَوُضِعَ فِي بَيْتِ الْمَالِ وَلَمْ يُخَمَّسْ او هغه په بيتُ المال کي کېښېښول سوه او له هغې څخه خمس نه واخيستل سو وَلِأَنَّهُ مَالٌ مَأْخُوذٌ بِقُوَّةِ الْمُسْلِمِينَ مِنْ غَيْرِ قِتَالٍ او ځکه چي دا مال له جنګ کولو څخه بغير د مسلمانانو په قوت سره اخيستل سوی احاصل سوی ا دی بِخِلَافِ الْغَنِيمَةِ په خلاف د غنيمت لِأَنَّهُ مَمْلُوكٌ بِمُبَاشَرَةِ الْغَانِمِينَ وَبِقُوَّةِ الْمُسْلِمِينَ ځکه چي

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الخراج باب في تدوين العطاء رقم الحديث: ٢٩٦١

غنيمت د مجاهدينو په محنت او د مسلمانانو په قوت [دواړو] سره حاصل سوی وي فَاسْتَحَقَّ الْخُمُسَ بِمَعْنًى وَاسْتَحَقَّهُ الْغَانِمُونَ بِمَعْنًى نو ځکه د يوې معنیٰ په اعتبار سره بيتُ المال د خمس مستحق سو او د بلې معنیٰ په اعتبار سره مجاهدين د خمس مستحق سول وَفِي هٰذَا السَّبَبِ وَاحِدٌ او په دغه مال کې سبب يو دی وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا يو سبب هغه دی کوم چې موږ ذکر کړی [يعني د مسلمانانو قوت] فَلَا مَعْنٰى لِإِيجَابِ الْخُمُسِ لهذا د خمس واجبولو لره هيڅ [وجه او] مطلب نسته.

**اللغات**: ﴿أوجف﴾ د افعال ماضي ده: آس تېز ځغلول، حرکت ورکول. دلته ځني مراد وړانديتوب او پېش قدمي کول دي (يعني په وړانديتوب او پېش قدمي سره د مالونو حاصلول). ﴿أجْلُوا﴾ د افعال ماضي ده: أَجْلٰى يُجْلِيْ إِجْلَاءً: يو څوک له خپلې ځمکې څخه باسل، پسې اخيستل. ﴿يُصرف﴾ د ضرب له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده: مصرفول، خرچول. ﴿إيجاب﴾ د افعال مصدر دی: واجبول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې هغه مالونه کوم چې پر مسلمانان له جنګ او قتال کولو څخه بغير محض د بېرولو او دمکي ورکولو په ذريعه له کفارو څخه حاصل کړي، نو هغه مالونه به د خراج د خرچولو (مصرفولو) په څير د مسلمانانو په مصالحو (ښېګڼو) يعني د پُل په جوړولو، د نهر او والي په کنبلو او د قاضيانو په تنخا او داسي نورو کي مصرفول کيږي. زموږ په نېز دغه مالونه د هغه ځمکو په څير دي چې له هغوی څخه مسلمانان خپل مالکان برطرفه کړي او هغه ځمکي په خپله قبضه کي واخلي، او د دې مالونو حيثيت د جزيې په څير دی، همدا وجه ده چې زموږ په نېز په دې مالونو کي خُمس نسته، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز چې څرنګه له غنيمت څخه خمس اخيستل کيږي، همداسي به له دغه مالونو څخه خمس اخيستل کيږي، او له مذکوره ځمکو څخه به هم خمس اخيستل کيږي.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل هغه روايت دی چې په هغه کي داسي ذکر سوي دي چې نبي کريم ﷺ د "نجران" له عيسايانو څخه او د "هجر" له مجوسيانو څخه جزيه واخيستل، همدارنګه حضرت عمر رضي الله عنه له أهل السواد څخه او حضرت معاذ رضي الله عنه له أهل يمن څخه جزيه اخيستې وه، او د دې حضراتو په واقعاتو کي له جزيې څخه بغير د بل شي يعني د خمس او د داسي نورو د اخيستلو يادونه سوې نه ده، نو دا د دې خبري ښکاره دليل دی چې په داسي مالونو کي خمس نسته، او د نبوي حديث او د صحابي

د عمل په مقابله کې قياس هيڅ حيثيت نه لري، لهذا امام شافعي رَحِمَهُ الله چې دا مالونه د غنيمت پر مال قياسوي، دا صحيح نه دي:

په دې هکله عقلي دليل دا دی چې دا مالونه له قتال څخه بغير محض د مسلمانانو په قوت او رعب سره حاصل سوي دي، لېکن د غنيمت په حصول کې د مجاهدينو محنت هم شامل وي او د مسلمانانو قوت هم پکښې شامل وي، نو د قوت وطرف ته په نظر کولو سره د غنيمت خُمس بيتُ المال ته ورکول کيږي او محنت ته په نظر کولو سره د هغه څلور حصې مجاهدينو ته ورکول کيږي. لېکن کوم مال چې له قتال څخه بغير حاصل کړی سي د هغه لپاره فقط يو سبب دی يعني د مسلمانانو طاقت او قوت، نو په دې وجه په هغه کې خمس نه سي واجب کېدلا سي، ځکه چې په يوه سبب سره په يوه شي کې دوه حکمونه ثابتېدلای نه سي.

## د اسلام راوړونکي حربي د دارُ الحرب د مال او داسي نورو حکم

| |
|---|
| وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ او که چيري يو حربي په أمان سره دارُ الاسلام ته راسي وَلَهُ امْرَأَةٌ فِي دَارِ الْحَرْبِ وَأَوْلَادٌ صِغَارٌ وَكِبَارٌ وَمَالٌ أَوْدَعَ بَعْضَهُ ذِمِّيًّا وَبَعْضَهُ حَرْبِيًّا وَبَعْضَهُ مُسْلِمًا او په دارُ الحرب کې د هغه ښځه وي، د هغه کوچني [نابالغه] بچيان وي او مال وي چې له هغه څخه ده څه مال يو ذمي ته په امانت ورکړی وي او څه يې يو حربي ته او څه يې يو مسلمان ته په امانت ورکړی وي فَأَسْلَمَ هٰهُنَا او هغه حربي دلته [په دارُ الاسلام کې] اسلام راوړي ثُمَّ ظُهِرَ عَلَى الدَّارِ بيا پر دارُ الحرب [د مسلمانانو له طرفه] قبضه وسي فَذٰلِكَ كُلُّهُ فَيْءٌ نو دغه ټوله شيان به فئ وي أَمَّا الْمَرْأَةُ وَأَوْلَادُهُ الْكِبَارُ فَظَاهِرٌ کوم چې د ده او غټ [بالغه] بچيان دي نو [د هغوی فئ کېدل] ښکاره دي لِأَنَّهُمْ حَرْبِيُّونَ كِبَارٌ وَلَيْسُوا بِأَتْبَاعٍ ځکه چې هغوی [ټوله] بالغ حربيان دي او تابع نه دي وَكَذٰلِكَ مَا فِي بَطْنِهَا لَوْ كَانَتْ حَامِلًا همدارنګه که چيري [د ده] ښځه حامله وي نو د هغې په نس کې موجود حمل هم [فئ دی] لِمَا قُلْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ مخکي ذکر کړی وَأَمَّا أَوْلَادُهُ الصِّغَارُ فَلِأَنَّ الصَّغِيرَ إِنَّمَا يَصِيرُ مُسْلِمًا تَبَعًا لِإِسْلَامِ أَبِيهِ إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ وَتَحْتَ وِلَايَتِهِ او کوم چې د ده کوچني بچيان دي نو [هغوی به ځکه فئ وي] چې کوچنی بچی هغه وخت د خپل پلار د اسلام په متابعت کې مسلمان ګرځي کله چې هغه د پلار په قبضه کې وي او د هغه تر ولايت لاندي وي وَمَعَ تَبَايُنِ الدَّارَيْنِ لَا يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ او د تباينُ الدارَين سره دا [قبضه او ولايت] ثابتېدای نه سي وَكَذَا أَمْوَالُهُ لَا تَصِيرُ مُحْرَزَةً |

بِإِحْرَازِهِ نَفْسَهُ همدارنګه د ده مالونه هم د ده د خپل ذات په محرز کولو [محفوظ کولو] سره محرز کېدای نه سي لِاخْتِلَافِ الدَّارَيْنِ د دارينو د اختلاف په وجه فَبَقِيَ الْكُلُّ فَيْئًا وَغَنِيمَةً نو ځکه ټوله فئ او غنيمت پاته سول وَإِنْ أَسْلَمَ فِي دَارِ الْحَرْبِ ثُمَّ جَاءَ او که حربي په درُ احراب کي اسلام راوړي بيا [دار الاسلام ته] راسي فَظُهِرَ عَلَى الدَّارِ بيا پر دارُالاسلام [د مسلمانانو له طرفه] قبضه وسي فَأَوْلَادُهُ الصِّغَارُ أَحْرَارٌ مُسْلِمُونَ تَبَعًا لِأَبِيهِمْ نو د ده کوچني بچيان به د خپل پلار د متابعت په توګه آزاد او مسلمانان وي لِأَنَّهُمْ كَانُوا تَحْتَ وِلَايَتِهِ حِينَ أَسْلَمَ ځکه چي د پلار د اسلام راوړولو په وخت کي هغوی ټوله د ده تر ولايت لاندي وه إِذِ الدَّارُ وَاحِدَةٌ ځکه چي دار يو دی [يعني پلار او بچيان ټوله په دارُالحرب کي وه] وَمَا كَانَ مِنْ مَالٍ أَوْدَعَهُ مُسْلِمًا أَوْ ذِمِّيًّا او هغه مال کوم چي ده مسلمان يا ذمي ته په امانت ورکړی وي فَهُوَ لَهُ نو هغه به د ده وي لِأَنَّهُ فِي يَدٍ مُحْتَرَمَةٍ ځکه چي هغه مال په داسي قبضه کي دی کوم چي د احترام [او حفاظت] قابل ده وَيَدُهُ كَيَدِهِ او د مسلمان يا ذمي قبضه د ده د خپلي قبضې په څېر ده وَمَا سِوَى ذَلِكَ فَيْءٌ او له دې څخه بغير نور څه به فئ وي أَمَّا الْمَرْأَةُ وَأَوْلَادُهُ الْكِبَارُ فَلِمَا قُلْنَا کوم چي ښځه او د ده بالغ بچيان دي نو د هغه دليل په وجه [به فئ وي] کوم چي مونږ بيان کړی وَأَمَّا الْمَالُ الَّذِي فِي يَدِ الْحَرْبِيِّ فَلِأَنَّهُ لَمْ يَصِرْ مَعْصُومًا او پاته سو هغه مال کوم چي د حربي په قبضه کي دی نو په دې وجه به [فئ وي] چي هغه معصوم [محترم] نه وګرځېدی لِأَنَّ يَدَ الْحَرْبِيِّ لَيْسَتْ يَدًا مُحْتَرَمَةً ځکه چي د حربي قبضې د احترام [او حفاظت] قابل نه ده.

**اللغات**: ﴿أودع﴾ د افعال ماضي ده: په امانت ايښوول، اماناً ورکول. ﴿فئ﴾ غنيمت، دا هغه غنيمت ته وايي کوم چي له جنګ کولو څخه بغير د مسلمانانو په قبضه کي راسي. ﴿تباين﴾ د تفاعل مصدر دی: جلا کېدل، عيلحده کېدل، مختلف کېدل. ﴿محرزة﴾ محفوظ کړی سوی.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که چيري يو حربي أمان واخلي دارُالاسلام ته راسي او دلته هغه اسلام راوړي حال دا چي په دارُالحربي کي د ده حربيه ښځه او د ده کوچني او غټ بچيان هم موجود وي. او د ده سره مالونه وي چي له هغه څخه ده څه مال ذمي ته د امانت په توګه ايښی وي، څه يې حربي ته او څه يې يو مسلمان ته د امانت په توګه ايښی وي. اوس که چيري په دې صورت کي پر دارُالحرب د مسلمانانو قبضه راسي نو د ده ښځه، بچيان او د ده تمام مالونه به فئ او غنيمت ګرځي او پر هغو به د ده (نوي مسلمان) لپاره هيڅ حق نه وي.

ځکه چي د ده ښځه او بالغ بچيانو خو خُود مختاره دي او د ده تابع نه دي بلکي د مخکي په ځير حربيان دي. او کله چي مسلمانان پر دارُ الحرب قبضه وکړي نو په هغه وخت کي حربيان فئ او غنيمت گرځي، نو ځکه به دغه کسان هم فئ او غنيمت گرځي لکه څرنگه چي نور مالونه غنيمت گرځي. همدارنگه که د دغه حربي ښځه حامله وي نو حمل به هم د هغې په متابعت کي فئ گرځي. ځکه چي حمل د مور جزء دی. لهذا کله چي کُل فئ دی نو جزء به هم فئ وي.

پاته سو د دې نوي مسلمان حربي د کوچني (نابالغه) بچيانو مسئله. نو کوچني بچيان به په هغه صورت کي د خپل مسلمان پلار تابع کيږي او مسلمانان به شمارل کيږي کله چي هغوی د پلار په قبضه کي وي او د پلار تر نگراني او ساتني لاندي وي، حالانکي دلته د تباينُ الدارين په وجه هغوی د پلار په قبضه او ساتنه کي نه دي، نو ځکه به هغوی د ده په متابعت کي مسلمانان نه وي او فئ به گرځي. او همدا حکم به د دې نوي مسلمان حربي د مالونو هم وي چي د تباينُ الدار په وجه به فقط دغه مُحرز او محفوظ او د ده أموال به محرز نه وي او ټوله به فئ او غنيمت گرځي.

د دې په خلاف که چيري دغه حربي په دارُ الحرب کي اسلام راوړي او دارُ الاسلام ته راسي او صورت د مسئلې همدغه وي، بيا پر دارُ الحرب د مسلمانانو قبضه راسي، نو په دې صورت کي به د هغه نابالغه بچيان د خپل پلار تابع کيږي او مسلمانان او آزاد شمارل کيږي؛ ځکه کله چي د دوی پلار اسلام راوړی نو په هغه وخت کي دوی ټوله د پلار په قبضه او ساتنه کي وه ځکه چي پلار هم په دارُ الحرب کي وو او په دارُ الحرب کي هغه اسلام زاوړی، لهذا د اتحادُ الدار په وجه به دوی د پلار تابع کيږي او مسلمانان به وي، فئ او غنيمت به نه وي، همدارنگه دغه حربي چي مسلمان يا ذمي ته کوم مال د امانت په توگه ايښی وي هغه به هم د ده وي ځکه چي د اتحادُ الدار په وجه د ده مال هم محترم دی او په محترمه قبضه کي هم دی، نو د ده د نفس په څير به د ده مال هم معصوم او محفوظ وي، لېکن ده چي کوم مال حربي ته ايښی وي نو هغه به د ده نه وي او هغه به فئ وي. ځکه چي د حربي قبضه محترمه نه ده، همدارنگه د ده ښځه او بالغ بچيان هم به فئ وي، ځکه چي هغوی ټوله حربيان دي او د خپل مسلمان خاوند يا پلار تابع نه دي.

## د اسلام راوړونکي حربي قتل کول

**وَإِذَا أَسْلَمَ الْحَرْبِيُّ فِي دَارِ الْحَرْبِ** او که يو حربي په دارُ الحرب کي اسلام راوړي **فَقَتَلَهُ مُسْلِمٌ عَمْدًا أَوْ خَطَأً** بيا يو مسلمان هغه قصداً يا خطاءً قتل کړي **وَلَهُ وَرَثَةٌ مُسْلِمُونَ هُنَاكَ** او هلته [په دارُ الحرب کي] د هغه مسلمانان وارثان وي **فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ إِلَّا الْكَفَّارَةُ فِي الْخَطَإِ** نو پر قاتل په قتلِ خطاء کي له کفارې څخه بغير بل هيڅ شی واجب نه وي **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ الدِّيَةُ فِي الْخَطَإِ وَالْقِصَاصُ فِي الْعَمْدِ** او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په قتلِ خطاء کي ديت واجبيږي او په قتلِ عمد کي قصاص **لِأَنَّهُ أَرَاقَ دَمًا مَعْصُومًا لِوُجُودِ الْعَاصِمِ وَهُوَ الْإِسْلَامُ** ځکه چي قاتل داسي وينه بيولې ده چي هغه د عاصم [ساتونکي] يعني د اسلام په وجه معصومه

ده لِكَوْنِهٖ مُسْتَجْلِبًا لِلْكَرَامَةِ ځکه چي اسلام د شرافت استر توب [ راوستونکی دی ايعني د اسلام د عظمت او د ستر والي سبب جوړيدونکی دی ] وَهٰذَا لِأَنَّ الْعِصْمَةَ أَصْلُهَا الْمُؤَثِّمَةُ او دا [ حکم ] ځکه دی چي عصمت په أصل کي [ قاتل ] ګنهګار ګرځوي لِحُصُولِ أَصْلِ الزَّجْرِ بِهَا ځکه چي په عصمت سره زجر حاصليږي وَهِيَ ثَابِتَةٌ إِجْمَاعًا او [ په دغه نوي مسلمان حربي کي ] دا عصمت بالاتفاق ثابت دی وَالْمُتَقَوِّمَةُ كَمَالٌ فِيهِ او د عصمت مقوم کېدل د زجر کمال دی [ يعني عصمت متقوّمه کامل زجر دی ] لِكَمَالِ الْامْتِنَاعِ بِهٖ ځکه چي په هغه سره کامله امتناع حاصليږي فَيَكُونُ وَصْفًا فِيهِ لهذا دا کمال [ کامل کېدل ] به په دې أصل کي وصف وي فَتَتَعَلَّقُ بِمَا عُلِّقَ بِهِ الْأَصْلُ نو د کوم شي سره چي اصل متعلق دی د هغه سره به وصف [هم] متعلق وي ايعني دواړه به د اسلام سره متعلق وي ] وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ [النساء: ٩٢] زموږ دليل د الله تعالیٰ دا إرشاد دی: نو که چيري مقتول له يو داسي قوم څخه وي کوم چي ستاسي دښمن وي حالانکي هغه [مقتول] مسلمان وي نو اد قاتل جزاء ] يو مسلمان غلام آزادول دي جَعَلَ التَّحْرِيرَ كُلَّ الْمُوجَبِ الله تعالیٰ [ په دې آيت کي ] د غلام آزادول پوره جزاء [سزاء ] ګرځولې ده رُجُوعًا إِلَىٰ حَرْفِ الْفَاءِ د فاء د حرف وطرف ته په نظر کولو سره أَوْ إِلَىٰ كَوْنِهٖ كُلَّ الْمَذْكُورِ يا ځکه چي کومه ذکر سوې ده هغه پوره جزاء [سزا] ده فَيَنْتَفِي غَيْرُهُ لهذا له هغه څخه بغير [بل شی] به منتفي کيږي وَلِأَنَّ الْعِصْمَةَ الْمُؤَثِّمَةَ بِالْآدَمِيَّةِ او ځکه چي عصمت [قاتل] د انسان کېدلو په وجه سره ګنهګار ګرځوي لِأَنَّ الْآدَمِيَّ خُلِقَ مُتَحَمِّلًا أَعْبَاءَ التَّكْلِيفِ ځکه چي انسان د شريعت د أحکامو د زغملو [اداء کولو] لپاره پيدا سوی دی وَالْقِيَامُ بِهَا بِحُرْمَةِ التَّعَرُّضِ او د تعرّض حرام کېدل هم د أحکامو په زغملو [اداء کولو] کي شامل دي وَالْأَمْوَالُ تَابِعَةٌ لَهَا او مالونه د آدميت [انسان کېدلو] تابع دي أَمَّا الْمُتَقَوِّمَةُ فَالْأَصْلُ فِيهَا الْأَمْوَالُ او کوم چي عصمت مقومه دی نو أصل په هغه کي أموال وي [يعني عصمت ځکه متقوم کيږي چي په هغه کي أموال أصل وي ] لِأَنَّ التَّقَوُّمَ يُؤْذِنُ بِجَبْرِ الْفَائِتِ ځکه چي متقوم کېدل د فوت سوي شي د تلافی ورکولو خبري ورکوي وَذٰلِكَ فِي الْأَمْوَالِ دُونَ النُّفُوسِ او دا په أموالو کي کېدای سي. نه په نفوسو کي لِأَنَّ مِنْ شَرْطِهِ التَّمَاثُلَ ځکه چي د تلافی لپاره تماثل [مثل کېدل] شرط دي وَهُوَ فِي الْمَالِ دُونَ النَّفْسِ او تماثل په مال کي کېدای سي. نه په نفوسو کي فَكَانَتِ النُّفُوسُ تَابِعَةً نو ځکه به نفوس [د أموالو] تابع وي

ثُمَّ الْعِصْمَةُ الْمُقَوَّمَةُ فِي الْأَمْوَالِ بِالْإِحْرَازِ بِالدَّارِ بيا د أموالو عصمتِ مقومه د دارُ الاسلام په إحراز سره ثابتيږي لِأَنَّ الْعِزَّةَ بِالْمَنَعَةِ ځکه چې عزت په قوت سره حاصليږي فَكَذٰلِكَ فِي النُّفُوسِ او د نفوسو به هم دغه حکم وي إِلَّا أَنَّ الشَّرْعَ أَسْقَطَ اعْتِبَارَ مَنَعَةِ الْكَفَرَةِ لېکن شريعت د کفارو د طاقت اعتبار ساقط کړی دی لِمَا أَنَّهُ أَوْجَبَ إِبْطَالَهَا ځکه چې شريعت د کفارو د قوت باطلول [ختمول] واجب کړي دي وَالْمُرْتَدُّ وَالْمُسْتَأْمَنُ فِي دَارِنَا مِنْ أَهْلِ دَارِهِمْ حُكْمًا او په دارُ الاسلام کي مرتد او مستأمن د حربيانو په حکم کي دي لِقَصْدِهِمَا الِانْتِقَالَ إِلَيْهَا ځکه چې دوی دواړه دارُ الحرب ته د واپس تللو اراده لري.

**اللغات**: ﴿أراق﴾ د افعال ماضي ده: بيول. ﴿عاصم﴾ د ضرب اسمِ فاعل دی: حفاظت کونکی، ساتونکی. ﴿مستجلب﴾ د استفعال اسمِ فاعل دی: حاصلونکی، راکشونکی، سبب جوړېدونکی (مصباح اللغات). ﴿مؤثمة﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: ګنهګارونکی، ګنهګار ګرځونکی (ګنهګار جوړونکی). ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل. ﴿تحرير﴾ د تفعيل مصدر دی: آزادول. ﴿رقبه﴾ غاړه، مملوک ذات، مراد ځني غلام دی. ﴿مُوجَب﴾ د افعال له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: واجب سوی شی، مراد ځني جزاء او سزا ده (ځکه چې هغه د شريعت له طرفه پر بنده واجب سوې وي) ﴿أعباء﴾ جمع د عِبْءٌ ده: بوج، بار. ﴿جبر﴾ جبران، د تاوان تلافي کول، د نقصان بدله ورکول (د فوت سوي شي د نقصان عوض ورکول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چيري حربي په دارُ الحرب کي اسلام راوړي او بيا يو مسلمان هغه (په دارُ الحرب کي) عمداً يا خطاءً قتل کړي، نو په دې صورت کي به زموږ په نېز پر قاتل نه قصاص واجب وي او نه ديت، لېکن د قتلِ خطاء په صورت کي به پر هغه کفاره واجب وي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي که قاتل هغه عمداً قتل کړی وي نو پر هغه به قصاص واجب وي، او که خطاءً يې قتل کړی وي نو ديت به پر واجب وي و به قال مالک و أحمد رَحِمَهُمَا الله. (بناية)

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي قاتل يو معصوم يعني مسلمان نفس قتل کړی دی، او د نفسِ معصومه عصمت قاتل مجرم او ګنهکار ګرځوي، ځکه چي په عصمت سره زجر حاصليږي، يعني د مقتول مسلمان کېدل او معصوم کېدل د هغه خوف او دهشت (بيري) لپاره کافي دي چي د هغه په بدله کي به قاتل قتلول کيږي، او بيا دا چي کله د دې عصمت سره دا خبره هم متصله ده چي دغه قتل د ديت او مال مُوجب دی نو په دغه وصف سره دا عصمت په هر اعتبار سره کامل او مکمل وګرځېدی، او د دانسي أصل عصمت تعلق د اسلام سره دی نو همداسي به د وصف تعلق هم د اسلام سره وي، او څرنګه چي دلته مقتول مسلمان دی، نو ځکه به د قتلِ عمد په صورت کي پر قاتل قصاص واجب وي او د قتلِ خطاء په صورت کي به ديت پر واجب وي.

**زموږ دليل:** دا آيت كريمه دى: "فَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ... إلخ". په دې آيت سره موږ په دې توګه دليل نيسو چې په دې کې الله تعالىٰ د هغه مسلمان د قتل جزاء او سزا بيان کړې ده کوم چې د کفارو سره وي يعني په دارُالحرب کې وي او يو مسلمان هغه قتل کړي، نو د هغه جزاء يو غلام آزادول دي، او څرنګه چې په دې آيت کې د عمد او خطاء هيڅ قيد نسته، نو ځکه به په دواړو صوتونو کې حکم يو وي او تحريرُ الرقبه يعني کفاره به پوره جزاء وي، ځکه چې په "فَتَحْرِيرُ" کې "فاء" ذکر سوې ده. او د فاء حرف د "فَالْجَزاءُ" قائم مقام دى، او جزاء هغه سزا ته وايي کوم چې کافي او کامله وي، نو معلومه سوه چې تحريرُ الرقبه د دغه مقتول پوره سزا ده.

او د دې خبري بل دليل چې "تحريرُ الرقبه پوره جزاء ده" دا دى چې د شريعت مقصد دلته حکم بيانول او له خپل جرم څخه د مجرم بري کول دي، او ښکاره خبره ده چې که موږ تحريرُ الرقبه پوره جزاء نه ومنو، نو د دې مطلب به دا وي چې دلته (په دې آيت کې) شريعت واضح حکم نه دى بيان کړى حالانکې دا زموږ د يقين او عقيدې خلاف خبره ده، لهذا په دې حواله سره به هم تحريرُ الرقبه د دغه مقتول پوره سزا وي او له دې څخه بغير به بل شى نه واجبيږي.

**ولأن العصمة إلخ:** دا زموږ عقلي دليل دى او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب هم دى، حاصل يې دا دى چې د نفس معصومه عصمت د اسلام په وجه قاتل مجرم او ګنهګار نه ګرځوي، بلکې د انسانيت او آدميت (انسان کېدلو) په وجه يې مجرم ګرځوي، ځکه چې انسان د شريعت په أحکامو باندې د عمل کولو لپاره پيدا سوى دى، او أصلاً الله تعالىٰ د هر انسان وينه او نفس معصوم او محفوظ ګرځولى دى، لېکن په کافرانو کې د خپل کفر په وجه الله تعالىٰ د دوى عصمت باطل کړى دى، خو کله چې کافر له خپل کفر څخه توبه وکړي او مسلمان سي نو هغه د خپل أصل فطرت او خلقت مطابق معصومُ الدم وګرځي. او أموال د آدميت تابع وي، يعني اصلاً خو هغى مباح وي لېکن د انسان د خپل ضرورت په وجه د تبعيت په توګه په هغوى کې هم عصمت راځي، لهذا د اسلام په وجه نفس او مال معصوم ګرځول صحيح نه دي، او د اسلام پر بناء عصمت متقوّم ګرځول هم صحيح نه دي، ځکه چې په متقوم کېدلو کې أموال أصل وي، ځکه چې د متقوم کېدلو مطلب دا دى چې د قتل په وجه چې کوم نقصان راغلى دى (او کوم شى فوت سوى دى) په مال سره د هغه تلافي وکړى سي، او د تلافي لپاره په جابر (تلافي کونکي) او په فائت (فوتېدونکى) کې تماثل ضروري دي، او دا تماثل به په مال کې مستحق وي، نه په نفوسو کې، لهذا د ديت او أموالو په معامله کې به أموال أصل وي او نفوس به د هغوى تابع وي، په دې سره دا خبره هم ښکاره سوه چې "عصمت مؤثمه" جلا شى دى او "عصمتِ متقوّمه" جلا شى دى، او متقوّمه د مؤثمه کامل وصف نه دى لکه څرنګه چې شوافع وايي. (عنايه)

**ثم العصمة إلخ:** د دې حاصل دا دى چې په أموالو کې چې کوم عصمتِ متقومه دى يعني د کوم نفس ديت چې ورکول کيږي په دارُالاسلام کې د هغه موجودېدل ضروري دي، ځکه چې تقوّم او عزت په طاقت او قوت سره

حاصليږي. او حال دا چي دلته (په دغه مسئله کي) قتل په دارُ الحرب کي واقع سوی دی او په دارُ الحرب کي د قتلِ عمد په صورت کي هم قصاص نه واجبيږي، ځکه چي هلته د قتلِ عمد صورت کي عصمت مؤثمه محرز نه دی. او د دارُ الحرب طاقت او قوت لره هيڅ اعتبار نسته، ځکه چي شريعت د هغه قوت د ختمولو او بربادولو حکم کړی دی او هغه يې بالکل غيرِ معتبر ګرځولی دی. همدارنګه که په دارُ الاسلام کي يو مرتد وي يا يو مستأمن حربي وي نو د دارُالاسلام په وجه به هغه محرز نه وي او نه به د هغه أموال متقوم وي. بلکي هغه به دحربيانو په حکم کي وي، او که يو مسلمان هغه قتل کړي او د هغه أموال ضايع کړي نو پر هغه به ديت نه واجبيږي؛ ځکه چي هغه دارُ الحرب ته دواپس تللو اراده کړې ده او دارُ الاسلام پر هغه سم نه لګيږي (او د دارُ الاسلام سايه خوند نه ورکوي)، لهذا د هغه په قتلولو سره به پر مسلمان هيڅ أثر او اغېز نه پرېوځي.

## د هغه مقتول ديت چي د هغه هيڅ وارث نه وي

وَمَنْ قَتَلَ مُسْلِمًا خَطَأً لَا وَلِيَّ لَهُ او که يو څوک داسي مسلمان خطاءً قتل کړي چي هغه هيڅ ولي نه لري أَوْ قَتَلَ حَرْبِيًّا دَخَلَ إِلَيْنَا بِأَمَانٍ فَأسلسم يا داسي حربي قتل کړي کوم چي په أمان سره دارُ الاسلام ته راغلی وي بيا يې اسلام راوړی وي فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ لِلْإِمَامِ نو د قاتل پر عاقله وو به د امام لپاره ديت واجب وي [يعني د قاتل عاقله به د مقتول ديت امام ته ورکوي] وَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ او پر قاتل به کفاره واجب وي لِأَنَّهُ قَتَلَ نَفْسًا مَعْصُومَةً خَطَأً ځکه چي هغه يو معصوم نفس خطاءً قتل کړی دی فَيُعْتَبَرُ بِسَائِرِ النُّفُوسِ الْمَعْصُومَةِ لهذا دا به پر نورو معصومو نفوسو قياسول کيږي وَمَعْنَى قَوْلِهِ لِلْإِمَامِ أَنَّ حَقَّ الْأَخْذِ لَهُ او د ماتن د دې قول "لِلْإِمَامِ" مطلب دا دی چي د ديت اخيستلو حق امام لره دی لِأَنَّهُ لَا وَارِثَ لَهُ ځکه چي د دې مقتول هيڅ وارث نسته وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او که چيري قتلِ عمد وي فَإِنْ شَاءَ الْإِمَامُ قَتَلَهُ نو که [په قتلِ عمد کي] امام وغواړي نو قاتل دي قتل کړي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الدِّيَةَ او که وغواړي نو ديت دي [ځني] واخلي لِأَنَّ النَّفْسَ مَعْصُومَةٌ ځکه چي نفس معصوم دی وَالْقَتْلُ عَمْدٌ وَالْوَلِيُّ مَعْلُومٌ او قتل عمد دی او ولي متعين دی وَهُوَ الْعَامَّةُ أَوِ السُّلْطَانُ او هغه عوام دي يا باچا [امام] دی قال: عليه السلام [1]: اَلسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ نبي ﷺ فرمايلي دي: باچا د هغه کس ولي دي کوم چي ولي نه لري وَقَوْلُهُ وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الدِّيَةَ مَعْنَاهُ بِطَرِيقِ الصُّلْحِ او د ماتن د دې قول "وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الدِّيَةَ" مطلب دا دی چي امام د صلح [او مصلحت] په توګه ديت اخيستلای سي لِأَنَّ مُوجِبَ الْعَمْدِ وَهُوَ الْقَوَدُ عَيْنًا ځکه چي د قتلِ عمد موجب أصلاً قصاص دی وَهُوَ الْقَوَدُ

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب النكاح، باب فى الولى رقم الحديث:٢٠٨٣.

عَيْنًا وَهٰذَا لِأَنَّ الدِّيَةَ أَنْفَعُ فِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ مِنَ الْقَوَدِ. او دا ځکه چي په دې مسئله کي ديت د مسلمانانو لپاره له قصاص څخه زيات نفع مند دی فَلِهٰذَا كَانَ لَهُ وِلَايَةُ الصُّلْحِ عَلَى الْمَالِ نو په دې وجه به امام ته د مال په عوض کي د صلح کولو حق حاصل وي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَعْفُوَ لېکن هغه ته به د معافولو حق نه وي لِأَنَّ الْحَقَّ لِلْعَامَّةِ ځکه چي أصل حق خو د عوامو دی وَوِلَايَتُهُ نَظَرِيَّةٌ او د امام ولايت پر شفقت مبني وي وَلَيْسَ مِنَ النَّظَرِ إِسْقَاطُ حَقِّهِمْ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ او دا شفقت نه دی چي د عوامو حق بېله عوضه [مُفت] ساقط کړی سي.

**اللغات:** ﴿عاقلة﴾ د مقتول قبيلې والاي، خاندان والا. ﴿قود﴾ قصاص. ﴿نظرية﴾ پر مصلحت او شفقت مبني.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري يو مسلمان خطاءً يو داسي مسلمان قتل کړي چي د هغه هيڅ وارث او ولي نه وي يا يو داسي حربي قتل کړي کوم چي په أمان سره دارُ الاسلام ته راغلی وي او اسلام يې راوړی وي، نو په دې صورت کي د قاتل سزا دا ده چي د قاتل عاقله دي امام ته د مقتول ديت ورکړي او قاتل دي د قتل کفاره اداء کړي، ځکه چي قاتل يو معصوم نفس خطاءً قتل کړی دی، لهذا څرنګه چي د نورو معصومو نفوسو په خطاءً قتلولو سره ديت او کفاره واجبيږي همداسي به د دې قتل په وجه هم ديت او کفاره دواړه واجبيږي، لکه څرنګه چي په دې آيت "ومن قتل مؤمناً خطأً فتحرير رقبة مؤمنة ودية مسلّمة إلى أهله" کي د داسي قتل همدغه سزا بيان سوې ده.

او که چيري دا قتل عمداً وي نو امام ته به دوه اختياره وي: ① يا دي قاتل قتل کړي، ② يا دي پر ديت صلح او مصالحت ورسره وکړي او ديت دي ځني واخلي، ځکه چي په قتلِ عمد کي د مقتول اولياؤ ته هم دغه دوه اختياره حاصل وي، او دلته د مقتول لپاره هيڅ ولي نسته، نو د دې حديث "السلطانُ وَلِيُّ من لا وَلِيَّ له" په وجه به امام د دغه مقتول ولي او امام ته به دغه دواړه اختياره حاصل وي. لېکن که امام د قتل پر ځای ديت اختيار کړي نو دا ډېره غوره ده، د دې لپاره چي هغه مال په بيتُ المال کي جمع سي او د مسلمانان په کار راسي، خو امام ته به دا حق هيڅکله نه وي چي مُفت او بېله عوضه قاتل معاف کړي، ځکه چي امام د همدې لپاره د ټولو عوامو له طرفه نماينده جوړ سوی دی چي د هغه ولايت پر شفقت او رعايت باندي مبني دی، حالانکي بېله عوضه او مفت د عوامو حق ساقطول شفقت نه دی بلکي عداوت دی، لهذا امام خو به د صلح على المال حق لري لېکن د قاتل د معافولو حق او اختيار به نه لري. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْعُشْرِ وَالْخَرَاج

## (دا) باب د عشر او خراج (د أحكامو په بيان كي) دى

**تشريح:** مخكي تر دې د مستأمن حربي د ذمي والي أحكام او مسئلې بيان سوې. اوس له دې ځايه پر هغه د لازمېدونكي عُشر او خراج أحكام بيانيږي. خو ځرنګه چي په عُشر كي د عبادت معنىٰ سته دى نو په دې وجه هغه تر خراج مخكي بيانيږي.

ښكاره دې وي چي د "عُشر" لغوي معنىٰ ده "أَحَدُ الْأَجْزَاءِ الْعَشَرَة" (له لسو حصو څخه يوه حصه، يعني لسمه حصه. مراد ځني هغه زكاة دى كوم چي د ځمكي د حاصلاتو په عوض كي د ځمكي له مالک څخه اخيستل كيږي). او خَرَاج د "راء" په فتحه او كسره دواړه سره ويل كېدا سي. د خراج معنىٰ ده: د ځمكي محصول. مراد ځني هغه ټيكس او محصول دى كوم چي پر مفتوحه ځمكو اخيستل كيږي (يعني هغه ځمكي چي مسلمانان يې فتح كړي او بيا يې د مسلمانانو په مينځ كي تقسيم نه كړي بلكي د ځمكو پر مالكانو (ذميانو) محصول كښيږدي. يا دا چي له فتح كولو څخه بغير د ځمكو د مالكانو سره پر محصول او ټيكس باندي صلح وكړي نو دې ته هم خراج وايي). همدارنګه خراج هغه مال او محصول ته هم وايي كوم چي د ذميانو پر ذات ايښوول كيږي چي هغه ته په عامه اصطلاح جزيه وايي (معجم لغة الفقهاء). دلته ځني مراد اوله معنىٰ ده. جزيه به په را روان باب كي بيان سي.

### د عربو ټوله ځمكه عشري ده

قَالَ: أَرْضُ الْعَرَبِ كُلُّهَا أَرْضُ عُشْرٍ فرمايي: چي د عربو ټوله ځمكه عُشري ځمكه ده وَهِيَ مَا بَيْنَ الْعُذَيْبِ إِلَى أَقْصَى حَجَرٍ بِالْيَمَنِ بِمَهْرَةَ إِلَى حَدِّ الشَّامِ او د عربو ځمكه له "عذيب" څخه واخله د يمن تر "حجر" پوري ده [حجر په يمن كي د يو ځاى نوم دى] او له مهر څخه واخله د شام تر حدّ پوري ده وَالسَّوَادُ أَرْضُ خَرَاجٍ او د عراق ځمكه خراجي ده وَهُوَ مَا بَيْنَ الْعُذَيْبِ إِلَى عَقَبَةِ حُلْوَانَ او هغه له عُذيب څخه تر عقبه حلوان پوري دي وَمِنَ الثَّعْلَبِيَّةِ وَيُقَالُ مِنَ الْعَلْثِ إِلَى عَبَّادَانَ او له ثعلبه څخه او ويل سوي دي: چي له علث څخه تر عبادان پوري ده [يعني له ثعلبه يا علث څخه تر عبادان پوري ده] لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَالْخُلَفَاءَ الرَّاشِدِينَ لَمْ يَأْخُذُوا الْخَرَاجَ مِنْ أَرَاضِي الْعَرَبِ ځكه چي نبي كريم ﷺ او

خلفاء راشدینو د عربو له ځمکو څخه خراج نه دي اخیستی وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْفَيْءِ او ځکه چې خراج د فئ په درجه کې دي فَلَا يَثْبُتُ فِي أَرَاضِيهِمْ كَمَا لَا يَثْبُتُ فِي رِقَابِهِمْ نو ځکه به د عربو په ځمکو کې خراج نه ثابتیږي لکه څرنګه چې د دوی په ذات کې نه ثابتیږي وَهَذَا لِأَنَّ وَضْعَ الْخَرَاجِ مِنْ شَرْطِهِ أَنْ يُقَرَّ أَهْلُهَا عَلَى الْكُفْرِ او دا [حکم] ځکه دی چې د خراج له شرائطو څخه دا دي چې د خراجي ځمکې والا به پر خپل کفر باقي پرېښوول کیږي ایعني مسلمانان چې له کومو خلکو څخه خراج اخلي، هغوی به پر اسلام راوړلو نه مجبوره کوي، دا د خراج اخیستلو لپاره شرط دی] كَمَا فِي سَوَادِ الْعِرَاقِ لکه څرنګه چې د عراق په ځمکه کې [داسې] سوي دي وَمُشْرِكُو الْعَرَبِ لَا يُقْبَلُ مِنْهُمْ إِلَّا الْإِسْلَامُ أَوِ السَّيْفُ حال دا چې د عرب له مشرکینو څخه به فقط اسلام قبلول کیږي یا په توره سره به فیصله کیږي وَعُمَرُ حِينَ فَتَحَ السَّوَادَ وَضَعَ الْخَرَاجَ عَلَيْهَا بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ او حضرت عمر ﷺ چې کله د عراق ځمکه فتح کړه نو د صحابه وو په حضور کې یې پر هغه ځمکې خراج مقرر کړی وَوَضَعَ عَلَى مِصْرَ حِينَ افْتَتَحَهَا عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ او همدارنګه کله چې عمرو بن العاص ﷺ مصر فتح کړی نو پر مصر [هم] حضرت عمر ﷺ خراج مقرر کړی وَكَذَا اجْتَمَعَتِ الصَّحَابَةُ عَلَى وَضْعِ الْخَرَاجِ عَلَى الشَّامِ همدارنګه پر شام باندې د خراج پر مقرر کولو [هم] صحابه وو اتفاق وکړی قَالَ: وَأَرْضُ السَّوَادِ مَمْلُوكَةٌ لِأَهْلِهَا فرمايي: چې د عراق ځمکه د خپلو خلکو په ملکیت کې ده يَجُوزُ بَيْعُهُمْ لَهَا وَتَصَرُّفُهُمْ فِيهَا د دوی لپاره د هغې خرڅول او په هغې کې تصرف کول [ټوله] جائز دي لِأَنَّ الْإِمَامَ إِذَا فَتَحَ أَرْضًا عَنْوَةً وَقَهْرًا ځکه امام چې کله په زور او غلبه سره یو ځمکه فتح کړي لَهُ أَنْ يُقِرَّ أَهْلَهَا عَلَيْهَا وَيَضَعَ عَلَيْهَا وَعَلَى رُءُوسِهِمُ الْخَرَاجَ نو هغه ته دا اختیار وي چې د هغه ځمکې خلک [مالکان] پر خپله ځمکه باقي پرېږدي او د دوی پر ځمکه او پر دوی خراج مقرر کړي فَتَبْقَى الْأَرَاضِي مَمْلُوكَةً لِأَهْلِهَا نو [تر دې وروسته] به هغه ځمکه د خپلو خلکو په ملکیت کې پاتېږي وَقَدْ قَدَّمْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او مخکې موږ د دې بیان وکړی.

**اللغات**: ﴿أقصٰى﴾ آخري. نهائي. ﴿عذيب﴾ دا يو د ځای نوم دی کوم چي د عراق سره دی. او د عراق حاجيان به د دې ځای سره تېرېدل. ﴿حجر﴾ دا په يمن کي د يو ځای نوم دی. ﴿سواد﴾ مراد ځني ځمکه ده. سواد په اصل کي تور والي ته وايي. په پخوا زمانه کي به د عراق په ځمکه کي ډېره کښت او کرنه کېدل. او د عراق ټوله ځمکه به شنه او زرغونه ښکارېده. نو په دې وجه به د عراق ځمکي ته سواد (توره) يعني زرغونه ځمکه ويل کېدل. ﴿فيء﴾ هغه غنيمت کوم چي له جنګ څخه بغير د مسلمانانو په قبضه کي راسي. ﴿رِقاب﴾ جمع د رَقَبَةٌ غاړه. مراد ځني ذات او ځان دی. ﴿وضع﴾ د فتح ماضي ده: ايښول. مراد ځني مقرر کول او ټاکل دي. ﴿عنوة﴾ په زوره. د مُټ په زور. په غلبه سره. ﴿يُقِرّ﴾ د افعال له باب څخه د مضارع صيغه ده. د دې باب ډېري معناوي دي. دلته يې معنیٰ ده: پاته کول. باقي ساتل (باقي پرېښوول).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي د عربو ټوله ځمکه عُشري ده. او د عربو ځمکه له "عُذيب" څخه واخله د يمن تر "حجر" نامي مقام پوري ده. دا په عرض (بره) سره د عربو د ځمکي مقدار دی. او د عربو د ځمکي طُول (اوږدول) له "مهره" څخه واخله د شام تر سرحده پوري دی. دا ټوله ځمکه عربي او عُشري ځمکه ده. د دې په مقابل کي د عراق ټوله ځمکه خراجي ده کوم چي عرضاً له "عُذيب" څخه واخله تر "عقبه حلوان" پوري ده او په طولاً له "علث" څخه واخله تر "عبادان" پوري ده: د عربو د ځمکي د عشري کېدلو اول دليل دا دی چي نبي کريم ﷺ او خلفاء راشدينو هيڅ کله هم د عربو له ځمکي څخه خراج اخيستی نه دی. که چيري د عربو ځمکه خراجي وي نو يو وخت نه وخت به خامخا له هغې څخه خراج اخيستل کېدای. نو د عربو له ځمکي څخه د نبي کريم ﷺ او صحابه وو خراج نه اخيستل د دې خبري ښکاره دليل دی چي دا ځمکه خراجي نه ده.

د دې دويم دليل دا دی چي خراج د فئ او غنيمت په درجه کي دی. او د عربو په ذات کي فئ ثابت نه دی. ځکه چي په نفوسو او ذواتو کي د فئ ثابتولو مطلب دا دی چي هغوی به پر خپل کفر باقي پرېښوول کيږي. حالانکي د عربو د مشرکينو په هکله دا اختيار نسته چي هغوی به پر خپل کفر پرېښوول کيږي. بلکي يا هغوی به اسلام راوړي يا به قتلول کيږي او هيڅکله به هم پر کفر نه پرېښوول کيږي. نو په دې وجه د عربي مشرکينو په نفوسو (ذواتو) کي خراج ثابتېدلای نه سي او د نفوسو په څير به د هغو په ځمکه کي هم خراج نه وي.

او د عراق د ځمکي د خراجي کېدلو دليل دا دی چي کله د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په دور کي سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه عراق فتح کړی نو حضرت عمر رضي الله عنه د عراق پر ځمکو خراج و ټاکی او له يو څو صحابه وو څخه بغير نور ټولو صحابه وو پر دې اتفاق وکړی. همدارنګه کله چي حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه مصر فتح کړی نو هلته هم حضرت عمر رضي الله عنه خراج مقرر کړی او پر شام باندي هم د

صحابه وو په اتفاق سره خراج مقرر کړی سو. د حضرت عمر رضي الله عنه او د صحابه وو دا عمل د دې خبرې ښکاره دليل دا دی چي له عربو څخه بغير د نورو ځايونو پر ځمکو خراج مقرر کول صحيح او جائز دي.

قال: وأرض السواد إلخ: فرمايي چي د عراق ځمکه د خپلو اوسېدونکو په ملکيت کي ده. او د هغو لپاره خپلي ځمکي خرڅول او په هغه کي تصرّف کول دا ټوله جائز دي. ځکه کله چي امام غلبةً او قهراًيو ځمکه فتح کړي نو هغه ته دا اختيار وي چي د هغه ځای اوسېدونکي پر خپلو ځايو پرېږدي او د دوی پر ځمکو او نفوسو خراج مقرر کړي او هغه ځمکي د دوی په ملکيت کي باقي پرېږدي. لکه په "باب قسمة الغنائم" کي چي د حضرت عمر رضي الله عنه د عمل په حواله سره د دې تفصيل ذکر سو.

## ځمکه کله عشري جوړېږي؟

قال: وَكُلُّ أَرْضٍ أَسْلَمَ أَهْلُهَا أَوْ فُتِحَتْ عَنْوَةً وَقُسِّمَتْ بَيْنَ الْغَانِمِينَ فرمايي: او هر هغه ځمکه چي د هغې [اوسېدونکي] خلک اسلام راوړي يا هغه په زور [او غلبه سره] فتح کړی سي او د مجاهدينو په مينځ کي تقسيم کړی سي فَهِيَ أَرْضُ عُشْرٍ نو هغه عشري ځمکه ده لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى ابْتِدَاءِ التَّوْظِيفِ عَلَى الْمُسْلِمِ ځکه چي په هغه ځمکه کي ابتداءً پر مسلمان باندي د وظيفي [محصول] مقررولو ته ضرورت سته وَالْعُشْرُ أَلْيَقُ بِهِ او د مسلمان سره عشر زيات لائق [مناسب] دی لِمَا فِيهِ مِنْ مَعْنَى الْعِبَادَةِ ځکه چي په عشر کي د عبادت معنیٰ سته وَكَذَا هُوَ أَخَفُّ همدارنګه عُشر سپک هم دی حَيْثُ يَتَعَلَّقُ بِنَفْسِ الْخَارِجِ ځکه چي هغه فقط [د ځمکي] د پيداوار سره تعلق لري وَكُلُّ أَرْضٍ فُتِحَتْ عَنْوَةً فَأُقِرَّ أَهْلُهَا عَلَيْهَا او هر هغه ځمکه کوم چي په زور [او غلبه سره] فتح کړی سی او خپل خلک [مالکان] پر هغه باقي پرېښوول سي فَهِيَ أَرْضُ خَرَاجٍ نو هغه خراجي ځمکه ده وَكَذَا إِذَا صَالَحَهُمْ همدارنګه که [امام] د کفارو سره [د محصول پر اخيستلو] صلح وکړي انو داسي ځمکه هم خراجي ده] لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى ابْتِدَاءِ التَّوْظِيفِ عَلَى الْكَافِرِ ځکه چي [په دې صورت کي] ابتداءً پر کافر د وظيفي مقررولو ته ضرورت سته وَالْخَرَاجُ أَلْيَقُ بِهِ او د کافر سره خراج زيات لائق دی وَمَكَّةُ مَخْصُوصَةٌ مِنْ هٰذَا او مکه مکرمه له دې حکم څخه عليحده ده فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم [1] فَتَحَهَا عَنْوَةً

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الجهاد، باب فتح مكة، رقم الحديث: ٨٤.

وَتَرَكَهَا لِأَهْلِهَا وَلَمْ يُوَظِّفِ الْخَرَاجَ ځکه چې رسول الله ﷺ هغه په زور او غلبه سره فتح کړه او د مکې خلک يې اپر خپلو ځمکو پرېښوول او اپر هغو يې خراج نه وټاکی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: كُلُّ أَرْضٍ فُتِحَتْ عَنْوَةً فَوَصَلَ إِلَيْهَا مَاءُ الْأَنْهَارِ او په جامع صغير کې ذکر سوي دي: چې هر هغه ځمکه کوم چې غلبةً فتح کړی سي او هغې ته د نهرونو اوبه رسېږي ايعني د نهر په اوبو سره اوبول کيږي فَهِيَ أَرْضُ خَرَاجٍ نو هغه خراجي ځمکه ده وَمَا لَمْ يَصِلْ إِلَيْهَا مَاءُ الْأَنْهَارِ وَاسْتُخْرِجَ مِنْهَا عَيْنٌ او کومې ځمکې ته چې اوبه نه رسيږي ابلکې هلته ته چينه را ايستل سوې وي فَهِيَ أَرْضُ عُشْرٍ نو هغه عشري ځمکه ده لِأَنَّ الْعُشْرَ يَتَعَلَّقُ بِالْأَرْضِ النَّامِيَةِ ځکه چې عشر د نما کونکې اوده کونکې اځمکې سره تعلق لري ايعني عشر د ځمکې د پیداوار او حاصلاتو سره تعلق لري وَنَمَاؤُهَا بِمَائِهَا او د ځمکې نماء د هغې په اوبو سره وي فَيُعْتَبَرُ السَّقْيُ بِمَاءِ الْعُشْرِ أَوْ بِمَاءِ الْخَرَاجِ لهذا په عشري اوبو يا خراجي اوبو سره اوبه کولو ته به اعتبار ورکول کيږي.

**اللغات**: ﴿غانمين﴾ جمع د غَانِمٌ ده: غنيمت حاصلونکی. مراد ځني غازيان او مجاهدين دي. ﴿توظيف﴾ د تفعيل مصدر دی: وظيفه مقررول (ټاکل). مراد ځني محصول مقررول دي. ﴿أليق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات لائق، زيات مناسب. ﴿الخارج﴾ پيداوار. حاصلات. فصل (له ځمکې څخه راوتونکې فصل او غله). ﴿أنهار﴾ جمع د نَهرٌ ده: لويه واله (غټه واله). ﴿ناميه﴾ نماء کونکې، وده کونکې. ﴿نماء﴾ وده. لوېدنه. نمو.

**تشريح: مسئله**: دا ده که چيري ديوې ځمکې اوسېدونکي خلک اسلام راوړي يا ځمکه په زور او غلبه سره فتح کړی سي او د مجاهدينو په مينځ کې تقسيم کړی سي نو هغه ځمکه عُشري ګرځي. ځکه چې د ځمکې محصول به تر ټولو مخکې پر مسلمانانو لازمول کيږي او د مسلمانانو د حالت سره عُشر مطابق دی. ځکه چې په عشر کې د عبادت معنیٰ موجوده ده او بل دا چې عُشر أخف او آسانه هم دی. ځکه چې د عُشر تعلق د پيداوار (حاصلاتو) سره دی او که چيري پيداوار نه وي (يعني ځمکه فصل او غلّه نه وکړي) نو عشر نه واجبيږي.

او کومه ځمکه چې په زور او غلبه سره فتح کړی سي يا د هغه ځمکې د اوسېدونکو سره صلح وسي او په دواړو صورتونو کې هغوی پر خپله ځمکه پرېښوول سي نو هغه به خراجي ځمکه وي.

ځکه چي په دې صورت کي د ځمکي محصول تر ټولو مخکي پر کافرانو لازمول کيږي او کفار د خراج قابل دي، ځکه چي په خراج کي د عقوبت معنیٰ سته او په هغه کي تغليظ او سختي هم وي، ځکه که چيري پيداوار نه وي نو هم به کفار خراج ورکوي.

او له دې حکم څخه مکه مکرمه عليحده او جلا ده، ځکه چي نبي کريم ﷺ مکه مبارکه په زور او غلبه سره فتح کړه او د مکې خلکو ته يې پر خپلو ځمکو د اوسېدلو اجازه ورکړه، لېکن بيا هم نبي کريم ﷺ پر هغو خراج مقرر نه کړی، دا فقط د مکې مبارکي "بلد الأمين" خصوصيت دی، لهذا پر دې به نوري ځمکي نه قياسول کيږي.

**وفي الجامع الصغير إلخ**: فرمايي چي په جامع صغير کي امام محمد رَحِمَهُ الله دا قانون ذکر کړی دی چي کومه ځمکه چي په زور او غلبه سره فتح کړی سي او هغه ځمکه د نهرونو په اُوبو سره اوبول کيږي نو هغه خراجي ځمکه ده او که چيري هغه د نهرونو په اوبو سره نه اوبول کيږي بلکي په هغه ځمکه کي څاګان کيندل سوي وي يا چينې را ايستل سوي وي او د هغوی په اوبو سره اوبول کيږي نو هغه عشري ځمکه ده: د دې قانون دليل دا دی چي د عُشر تعلق د "نامي" (نماء کونکي) ځمکي سره دی. او د ځمکي د پيداوار او نماء مدار د ځمکي پر اوبو دی، لهذا د ځمکي په عشري کېدلو او خراجي کېدلو کي به د اوبو اعتبار کيږي.

## د شاړي او نا آبادي ځمکي آبادول

قَالَ: **وَمَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَوَاتًا** فرمايي: او کوم څوک چي شاړه [ويرانه] ځمکه ژوندۍ کړي **فَهِيَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ مُعْتَبَرَةٌ بِحَيِّزِهَا** ❁ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د هغې اعتبار په څنګ والا ځمکي سره کيږي [يعني کومه ځمکه چي هغې ته ترخه او نژدې وي، پر هغې به قياسول کيږي] **فَإِنْ كَانَتْ مِنْ حَيِّزِ أَرْضِ الْخَرَاجِ وَمَعْنَاهُ بِقُرْبِهِ** نو که هغه خراجي ځمکي ته نژدې وي **فَهِيَ خَرَاجِيَّةٌ** نو هغه به خراجي وي **وَإِنْ كَانَتْ مِنْ حَيِّزِ أَرْضِ الْعُشْرِ** او که عشري ځمکي ته نژدې وي **فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ** نو هغه به عشري ځمکه وي **وَالْبَصْرَةُ عِنْدَهُ عُشْرِيَّةٌ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ** او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د

---

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وإن أحيا مواتا يعتبر قربه عند أبي يوسف رَحِمَهُ الله لأن ما قارب الشيء يعطى له حكمه، ويعتبر ماؤه عند محمد رَحِمَهُ الله، وبالأول يفتى، وهذا في حق المسلم أما الكافر فالخراج مطلقا اتفاقا (الدر المنتقى ج:١، ص:٦٧٤)، وكذا في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٨٢). [القول الراجح ج:١، ص:٢٩١]

صحابه وو د اجماع په وجه د بصرې ټوله ځمکې عشري دي لِأَنَّ حَيِّزَ الشَّيْءِ يُعْطَى لَهُ حُكْمُهُ ځکه چي د شي حيز ته د هغه شي حکم ورکول کيږي كَفِنَاءِ الدَّارِ يُعْطَى لَهُ حُكْمُ الدَّارِ لکه د کور فناء ته چي د کور حکم ورکول کيږي حَتَّى يَجُوزَ لِصَاحِبِهَا الِانْتِفَاعُ بِهِ همدا وجه ده چي د کور د مالک لپاره د کور له فناء څخه نفع اخيستل جائز دي وَكَذَا لَا يَجُوزُ أَخْذُ مَا قَرُبَ مِنَ الْعَامِرِ او همدارنګه آبادي ته چي کومه ځمکه نژدې وي له هغې څخه اخيستل جائز نه وي وَكَانَ الْقِيَاسُ فِي الْبَصْرَةِ أَنْ تَكُونَ خَرَاجِيَّةً او د بصرې په هکله قياس داوو چي هغه دي خراجي واى لِأَنَّهَا مِنْ حَيِّزِ أَرْضِ الْخَرَاجِ ځکه چي هغه خراجي ځمکې ته نژدې ده إِلَّا أَنَّ الصَّحَابَةَ وَظَّفُوا عَلَيْهَا الْعُشْرَ لېکن صحابه وو پر هغې خراج مقرر کړی فَتُرِكَ الْقِيَاسُ لِإِجْمَاعِهِمْ نو د صحابه وو د اجماع په وجه قياس پرېښوول سو وَقَالَ مُحَمَّدٌ: إِنْ أَحْيَاهَا بِبِئْرٍ حَفَرَهَا أَوْ بِعَيْنٍ اسْتَخْرَجَهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که چيري [يو څوک] شاړه ځمکه د څاه په اوبو سره ژوندۍ کړي کوم چي ده کيندلې وي يا يې د چينې په اوبو سره ژوندۍ کړي کوم چي ده را ايستلې وي أَوْ مَاءِ دِجْلَةَ أَوِ الْفُرَاتِ أَوِ الْأَنْهَارِ الْعِظَامِ الَّتِي لَا يَمْلِكُهَا أَحَدٌ او يا يې د دجلې او فرات يا يې د هغو غټو نهرونو په اوبو سره ژوند کړي چي هيڅوک د هغه مالک نه وي [يعني چي هغه د هيچا په ملکيت کي نه وي] فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ نو هغه به عشري ځمکه وي وَكَذَا إِنْ أَحْيَاهَا بِمَاءِ السَّمَاءِ همدارنګه که هغه يې په آسماني اوبو سره ژوندۍ کړي [نو هم به هغه عشري ځمکه وي] وَإِنْ أَحْيَاهَا بِمَاءِ الْأَنْهَارِ الَّتِي احْتَفَرَهَا الْأَعَاجِمُ مِثْلَ نَهْرِ الْمَلِكِ وَنَهْرِ يَزْدَجَرْدَ او که د هغو نهرونو په اوبو سره يې اوبه کړي کوم چي عجمو کيندلي وي لکه نهر ملک او نهر يزدجرد فَهِيَ خَرَاجِيَّةٌ نو هغه به خراجي ځمکه وي لِمَا ذَكَرْنَا مِنِ اعْتِبَارِ الْمَاءِ د هغه دليل په وجه کوم چي د اوبو معتبر والي په هکله موږ بيان کړی إِذْ هُوَ السَّبَبُ لِلنَّمَاءِ ځکه چي همدا اُوبه د ځمکې سبب دي وَلِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَوْظِيفُ الْخَرَاجِ ابْتِدَاءً عَلَى الْمُسْلِمِ كَرْهًا او ځکه چي له شروع څخه پر يو مسلمان په زوره خراج مقرر کول ممکن نه دي فَيُعْتَبَرُ فِي ذَٰلِكَ الْمَاءُ نو ځکه به په دې سلسله کي اوبو لره اعتبار ورکول کيږي لِأَنَّ السَّقْيَ بِمَاءِ الْخَرَاجِ دَلَالَةُ الْتِزَامِهِ ځکه چي په خراجي اوبو سره اوبه کول د خراج د التزام دليل دی.

**اللغات**: ﴿أَحْيَا﴾ او أَحْيٰى: د افعال ماضي ده: ژوندی کول. مراد ځني د کښت او کرنې قابل جوړول او آبادول دي. ﴿موات﴾ شاړه ځمکه، مړه او ناآباده ځمکه. بنجر. ﴿حَيِّز﴾ پر وزن د فَيْعِل دی او حَيْز هم ول کېدای سي: مکان، ځای، ګوښه. څنګ (طرف). ﴿فناء﴾ د کور حويلي (غولي) ته هم وايي. او د کور أطرافو ته هم وايي. دلته ځني مراد هغه ځمکه ده کوم چې د کور په اطرافو کې خالي پرېښوول سوې وي. ﴿کَرهاً﴾ په زوره. په ناخوښۍ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري يو سړی شاړه او مړه ځمکه د کښت او کرنې (کښتګرۍ) قابله جوړه کړي نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د داسې ځمکې د عشري کېدلو او خراجي کېدلو فيصله د هغې د محلُ الوقوع مطابق کيږي. يعني که چيري هغه عشري ځمکې ته نژدې وي (يعني څنګ يې ته عَشري ځمکه وي) نو هغه به عَشري ځمکه وي او که خراجي ځمکې ته نژدې وي نو خراجي ځمکه به وي. ځکه چې د شي حيز او قُرب ته د هغه شي حکم ورکول کيږي. لکه څرنګه چې د کور فناء ته د حيز او قُرب په وجه د کور حکم ورکول کيږي. له همدې کبله د کور مالک لره د کور له فناء څخه نفع اخيستل جائز وي. همدارنګه کومه ځمکه چې آبادي علاقې او آباد کلي ته نژدې وي. نو د چا لپاره دا جائز نه وي چې هغه د کښت او کرنې قابله جوړه کړي او له هغه څخه شی واخلي. ځکه کومه ځمکه چې آبادۍ ته نژدې نو له هغه څخه فقط د آبادۍ والا نفع اخيستلای سي.

والبصرة عنده إلخ: فرمايي چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د بصرې ټولې ځمکې عشري دي. ځکه چې صحابه وو د بصرې له خلکو څخه فقط عُشر اخيستی دی. نه خراج. حالانکې د قياس تقاضا دا ده چې د بصرې ځمکې دي خراجي وای ځکه چې هغه د خراجي ځمکو سره نژدې دي. لېکن د دې باوجود د صحابه وو د عمل او د هغوی د اتفاق په وجه موږ قياس پرې ايښی دی او د بصرې ځمکې مو عُشري ګرځولي دي.

وقال محمد إلخ: فرمايي: چې د شاړې ځمکې تر آبادولو وروسته د هغې په عشري کېدلو او خراجي کېدلو کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د ځمکې اوبو لره اعتبار دی. نو که يو چا په شاړه ځمکه کې څاه کيندلې وي يا يې چينه را ايستلې وي او د هغه په اوبو سره ځمکه اوبوي يا د دجلې او فرات په اوبو سره يې اوبوي يا يې د غټو نهرونو په اوبو سره اوبوي کوم چې د هيچا په ملکيت کې نه وي يا يې په باراني اوبو سره اوبوي نو په دې ټولو صورتونو کې به هغه عشري ځمکه وي. د دې په خلاف که چيري يو څوک خپله ځمکه د عجمي باچاهانو په کيندل سوو نهرونو سره مثلاً په نهرِ نوشيروان يا

نهر یزدجرد سره اوبوي نو هغه ځمکه به خراجي وي. ځکه چې د عُشر تعلق د نما کونکي ځمکي سره دی. او د نماء دار ومدار پر اُوبو دی لهذا د عشر او خراج دار ومدار به هم پر اُوبو وي.

د عشر او خراج په سلسله کي د اوبو د معتبر والي یو دلیل دا هم دی چي که چیري مونږ ابتداءً پر یو مسلمان په زوره په شاړه ځمکه کي خراج لازم کړو. نو په دې سره به د مسلمان زړه مات سي او د آینده لپاره به د هیڅ شاړه ځمکه نه آبادوي. نو په دې وجه غوره همدا ده چي د عشر او خراج فیصله پر اوبو منحصره کړی سي. نو په هغه ځمکه کي به خراج لازمول کیږي کوم چي یې سړی په خراجي اوبو سره اوبوي او په خراجي اوبو سره یې د کښت او کرني قابله جوړوي. ځکه چي په خراجي اوبو سره اوبه کول او د ځمکي آبادول د دې خبري دلیل دی چي هغه سړی پر خپل ځان خراج لازموي.

## د خراج او محصولاتو تشریح

قال: وَالْخَرَاجُ الَّذِی وَضَعَهُ عُمَرُ عَلٰی أَهْلِ السَّوَادِ مِنْ كُلِّ جَرِیبٍ یَبْلُغُهُ الْمَاءُ قَفِیزٌ هَاشِمِیٌّ فرمایي: او هغه خراج [محصول] کوم چي حضرت عمر رضی الله عنه د عراق پر خلکو مقرر کړی وو هغه په هر داسي جریب کي چي هغه ته اوبه رسیږي یو هاشمي قفیز وو وَهُوَ الصَّاعُ وَدِرْهَمٌ او هاشمي قفیز یو صاع او یو درهم دی وَمِنْ جَرِیبِ الرَّطْبَةِ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ او د سبزیجاتو په یوه جریب کي یې پنځه درهمه مقرر کړي وه وَمِنْ جَرِیبِ الْكَرْمِ الْمُتَّصِلِ وَالنَّخِیلِ الْمُتَّصِلِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ او د ګڼو انګورو او ګڼو خرماوو په یوه جریب کي یې لس درهمه مقرر کړي وه وَهٰذَا هُوَ الْمَنْقُولُ عَنْ عُمَرَ همدا له حضرت عمر رضی الله عنه څخه نقل سوي دي فَإِنَّهُ بَعَثَ عُثْمَانَ بْنَ حُنَیْفٍ حَتّٰی یَمْسَحَ سَوَادَ الْعِرَاقِ ځکه چي هغه عثمان بن حنیف واستوای چي د عراق ځمکه اندازه کړي [یعني جریب یې کړي] وَجَعَلَ حُذَیْفَةَ مُشْرِفًا عَلَیْهِ او حضرت حذیفه یې پر هغه د نګران په توګه مقرر کړی [یعني د هغه سره د نګران په توګه واستوی] فَمَسَحَ فَبَلَغَ سِتًّا وَثَلَاثِینَ أَلْفَ أَلْفِ جَرِیبٍ بیا عثمان بن حنیف د عراق ځمکه اندازه کړه نو هغه دریو کروړو او شپیتو لکو (۳۶۰۰۰۰۰۰) جریبو ته ورسېده وَوَضَعَ عَلٰی ذٰلِكَ مَا قُلْنَا او بیا یې [زموږ د ذکر سوي حساب مطابق پر هغه خراج مقرر کړی وَكَانَ ذٰلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ مِنْ غَیْرِ نَكِیرٍ او دا کار د صحابه وو په حضور کي له څه انکار څخه بغیر وسو فَكَانَ إِجْمَاعًا مِنْهُمْ نو ځکه دا د دوی له طرفه إجماع سوه وَلِأَنَّ الْمُؤَنَ مُتَفَاوِتَةٌ او ځکه چي [د کښتګری په کارونو کي] خرچې

الکښتونه] متفاوت [بېلا بېل] وي فَالْكَرْمُ أَخَفُّهَا مُؤْنَةً نو انګور ډېر سپک [البړ] مؤنت والا وي وَالْمَزَارِعُ أَكْثَرُهَا مُؤْنَةً او [د غلې] کښتونه [کېتي] زيات مؤنت والا وي وَالرُّطَبُ بَيْنَهُمَا او سبزيجات د دوی په مینځ کي [أوسط مؤنت والا] وي وَالْوَظِيفَةُ تَتَفَاوَتُ بِتَفَاوُتِهَا او د مؤنة په متفاوت کېدلو سره په محصول کي [هم] تفاوت راځي فَجُعِلَ الْوَاجِبُ فِي الْكَرْمِ أَعْلَاهَا نو په دې وجه په انګورو کي تر ټولو زيات محصول مقرر کړی سوی دی وَفِي الزَّرْعِ أَدْنَاهَا او [د غلې] په کښت کي تر ټولو کم محصول مقرر کړی سوی دی وَفِي الرُّطَبَةِ أَوْسَطَهَا او په سبزيجاتو کي د مينځوی درجې محصول مقرر کړی سوی دی قَالَ: وَمَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الْأَصْنَافِ كَالزَّعْفَرَانِ وَالْبُسْتَانِ وَغَيْرِهِ يُوضَعُ عَلَيْهَا بِحَسَبِ الطَّاقَةِ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: او له دې څخه بغير چي د کښت او کرني نور کوم أقسام دي لکه د زعفرانو کښت [کېتي] او باغ او داسي نور نو پر هغوی به د طاقت په اندازه محصول مقررول کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ تَوْظِيفُ عُمَرَ ځکه چي په هغه کي له حضرت عمر ﷺ څخه د محصول مقررول ثابت نه دي وَقَدْ اِعْتَبَرَ الطَّاقَةَ فِي ذَلِكَ او حضرت عمر ﷺ [د نورو کښتونو او باغونو] په سلسله کي د طاقت اعتبار کړی دی فَنَعْتَبِرُهَا فِيمَا لَا تَوْظِيفَ فِيهِ لهذ چيري چي توظيف نه وي نو هلته به هم موږ د ځمکي د طاقت اعتبار کوو قَالُوا: وَنِهَايَةُ الطَّاقَةِ أَنْ يَبْلُغَ الْوَاجِبُ نِصْفَ الْخَارِجِ لَا يُزَادُ عَلَيْهِ مشائخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي د طاقت انتهاء دا ده چي واجب مقدار د پيداوار نيمايي [انصف] ته ورسيږي او پر هغه زيات نه کړی سي لِأَنَّ التَّنْصِيفَ عَيْنُ الْإِنْصَافِ ځکه چي نصف تاکل عين انصاف دی لِمَا كَانَ لَنَا أَنْ نُقَسِّمَ الْكُلَّ بَيْنَ الْغَانِمِينَ ځکه چي موږ ته دا حق [هم] وو چي ټوله ځمکه مو په مجاهدينو کي تقسيم کړي وای وَالْبُسْتَانُ كُلُّ أَرْضٍ يَحُوطُهَا حَائِطٌ وَفِيهَا نَخِيلٌ مُتَفَرِّقَةٌ وَأَشْجَارٌ أُخَرُ او بُستان هر هغه ځمکه ده چي پر هغې [چار طرفه] دېوال راګرځېدلی وي او په هغې کي د خُرما درختني او نوري درختي وي وَفِي دِيَارِنَا وَظَّفُوا مِنَ الدَّرَاهِمِ فِي الْأَرَاضِي كُلِّهَا او زموږ په علاقو کي [عاملين] په دراهمو سره محصول اخلي وَتُرِكَ كَذَلِكَ او پورته بيان سوې طريقه پرېښول سوې ده لِأَنَّ التَّقْدِيرَ يَجِبُ أَنْ يَكُونَ بِقَدْرِ الطَّاقَةِ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ كَانَ ځکه چي کوم مقدار مقرر سوی دی هغه دا دی چي د طاقت په اندازه وي [برابره ده] هغه که له هر جنس څخه وي.

**اللغات**: ﴿جريب﴾ د دې تفصيل به په تشريح کې ذکر سي. ﴿قفيز﴾ پېمانه. ﴿کرم﴾ انګور. صاحب د مصباحُ اللغات وايي چې دا د انګورو باغ او عام ګڼ باغ ته هم وايي. ﴿المتصل﴾ سره يو ځای سوی. مراد ځني ګڼ باغ دی. ﴿نخيل﴾ د خرما درختنه. ﴿يمسح﴾ د فتح مضارع ده: مساحت معلومول. کچه او اندازه معلومول. مراد ځني جريبول دي (جريب کشي کول). ﴿مُؤَن﴾ جمع د مُؤْنَةٌ ده: خرچه. لګښت. مشقت. بوج او تکيف. ﴿تنصيف﴾ د تفعيل مصدر دی: نيمول. نيمايي کول. نصف مقررول. نيمايي ټاکل.

**تشريح**: د عبارت له تشريح څخه مخکې بايد تاسي د دې دوو الفاظو معنیٰ په ياد ولرئ!: ① ... جريب. په الدر المختار کې ليکلي دي چې جريب هغه مقدار ته وايي چې د کسریٰ د لاس مطابق د هغه اوږدول هم شپېته (٦٠) لاسه وي او د هغه بر (عرض) هم (٦٠) لاسه وي. او (٦٠) چې په (٦٠) کې ضرب کړی سي نو مجموعه د (٣٦٠٠) مربع لاسو څمکه يو جريب کيږي. (رد المحتار. مطلب فی خراج المقاسمة. کتاب الجهاد. ج: ٦. ص: ٢٩٢). (د اوسني زماني په حساب سره د کسریٰ لاس (٥٣.٣٥ سنتي متره) کيږي. يعني تقريباً درو پنځوس (٥٣) سنتي متره کيږي. او د عام سړي لاس (٤٥.٧٢ سنتي متره) کيږي).

## ﴿ د اوسني زماني په مقدار سره د جريب او ايکړ تفصيل ﴾

| جريب | اوږدول | ضرب | بر (عرض) | برابر | مربع فوټ يا ګز |
|---|---|---|---|---|---|
| يو جريب | ٦٠ لاسه | × | ٦٠ لاسه | = | ٣٦٠٠ مربع لاسه کيږي |
| يو جريب | ١٠٥ فوټه | × | ١٠٥ فوټه | = | ١١٠٢٥ مربع فوټه کيږي |
| يو جريب | ٣٥ ګزه | × | ٣٥ ګزه | = | ١٢٢٥ مربع ګزه کيږي |
| يو جريب | ٣٢.٠٠٤ ميټره | × | ٣٢.٠٠٤ ميټره | = | ١٠٢٤.٢٥ مربع ميټره کيږي |
| يعني د پاکستاني ميټر په حساب سره يو جريب تقريبا (١٠٢٤) ميټره کيږي. ميټر تر ګز لږ څه غټ دی. | | | | | |

## ﴿ايکړ﴾

ايکړ تر جريب غټ دی. د ګز او ميټر په حساب سره د هغه اندازه په لاندي توګه ده:

| ايکړ | اوږدول | ضرب | بر (عرض) | برا | مربع فوټ يا ګز |
|---|---|---|---|---|---|
| يو ايکړ | ٦٩.٥٧ ګزه | × | ٦٩.٥٧ ګزه | = | ٤٨٤٠ مربع ګزه کيږي |
| يو ايکړ | ٦٣.٦١٤ ميټره | × | ٦٣.٦١٤ ميټره | = | ٤٠٤٦.٨٥٦ مربع ميټره کيږي |

(۲)... رطبة: د دې لفظ اصل معنیٰ ده: لوند او نرم. دلته ترکاري او سبزیجات ځني مراد دي لکه توری، بینډی، رومیان، بادرنګ او داسې نور.

**صورت د مسئلې:** دا دی چې حضرت عمر ﷺ د عراق پر خلګو د جریب په اعتبار سره محصول او خراج مقرر کړی وو. او په کوم جریب کې چې به کښتګري کېدل او هغه ته به خراجي اوبه رسېدلې. په هغه کې یې یو هاشمي قفیز محصول مقرر کړی وو (د خراج ي أوبو تفصیل مخکې تېر سو). د هاشمي قفیز مقدار یو صاع او یو درهم وو. او د "رطبه" (سبزیجاتو) له کښت څخه به یې پر یوه جریب پنځه درهمه اخیستل او د انګور او خرماوو پر ګڼو باغاتو به یې لس درهمه اخیستل. او د دې کار لپاره هغه عثمان بن حنیف ﷺ عراق ته واستوی او عثمان بن حنیف ﷺ د عراق د ځمکې جریب کشي وکړه (یعني د عراق ځمکه یې جریب کړه) نو هغه ټوله درې کروړه شپېته لکه (۳۶۰۰۰۰۰۰) جریبه ځمکه سوه. او په همدې حساب سره یې هلته محصول مقرر کړی. او د حضرت عمر ﷺ دا کار د ټولو صحابه وو په حضور کې وسو او پر دې هیچا نکیر نه وکړی. نو ځکه دې د إجماع شکل اختیار کړی.

د دې سلسلې عقلي دلیل دا دی چې محصول او خراج د مؤنة په اعتبار سره اخیستل کیږي او د هغه طریقه دا وي چې په کوم کښت او کېتی کې چې مؤنة او محنت زیات وي په هغه کې کم محصول واجبیږي او په کوم کښت کې چې مؤنة کم وي په هغه کې زیات محصول واجبیږي. او که غور وسي نو معلومه به سي چې د انګورو په کښت کې زیات مؤنة وي نو په دې وجه د انګورو محصول تر ټولو زیات دی یعني په یوه جریب کې لس درهمه دی او د غلې (مثلاً د غنمو او داسې نورو) په کښت کې مؤنة او محنت ډېر زیات وي. نو ځکه د هغه محصول تر ټولو کم وي یعني په یوه جریب کې یو صاع او یو درهم دی. او په سبزیجاتو "رطبة" کې مؤنة د مینځوی درجې وي. یعني له انګورو څخه زیات او له غلې څخه کم. نو ځکه په هغه کې د مینځوی درجې محصول واجب سوی دی چې د هغه مقدار پنځه درهمه دي.

**قال وما سوی ذلك إلخ:** فرمایي: له پورتني درېو قسمونو څخه بغیر چې د کښت نور کوم قسمونه دي لکه د زعفرانو کښت او کېتی. د مېوو باغات او داسې نور. نو په هغوی کې به د ځمکې د طاقت یعني د پیداوار په اعتبار سره محصول مقررول کیږي. ځکه چې د هغوی په هکله له حضرت عمر ﷺ هیڅ توظیف نقل سوې نه دی. او هغه هم په دغه شیانو کې د طاقت او پیداوار په اعتبار سره محصول ټاکلی دی. لهذا موږ به هم په دې سلسله کې د هغه تقلید او پیروي کوو. او دا خبره په یاد لرئ! چې د طاقت آخري درجه دا ده چې د محصول مقدار د نیمایي پیداوار (نصف الخارج) سره برابر کړی سي ...

له هغه څخه زيات نه سي. ځکه چي تر نصف او نيمايي پوري اخيستل انصاف دي او له هغه څخه زيات اخيستل تعدي او تجاوز دی. تر نصف پوري اخيستل په دې وجه انصاف دی چي کله موږ ته دا حق سته چي هغه ټوله (خراجي) ځمکه د مجاهدينو په مينځ کي تقسيم کړو او مالکانو (کفارو) ته هيڅ شی نه ورکړو نو موږ ته به په طريقه اولیٰ د نصف اخيستلو حق هم وي او دا به زموږ له طرفه پر هغو احسان هم چي نصف هغو ته پرېږدو.

**وفي ديارنا إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي زموږ د مرغينان په علاقه او هغې ته په څرمه علاقو کي له پيداوار څخه د محصول اخيستلو رواج بالکل متروک او ختم سوی دی او اوس په هر ډول ځمکو کي د دراهمو او د نغدو روپو اخيستل رواج سوي دي هغه که عشري ځمکه وي يا خراجي ځمکه وي. ځکه چي أصل شی خو د طاقت او پيداوار په اندازه ورکول دي برابره ده هغه که له هر جنس څخه وي.

**فايده:** د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله استوګنځی د مرغينان علاقه وه کوم چي په "فرغانه" کي واقع وه. او فرغانه اوس د أزبکستان په حصه کي راغلې ده.

## امام ته د محصول کمولو اختيار

قال: **فَإِنْ لَمْ تُطِقْ مَا وُضِعَ عَلَيْهَا** فرمايي: که چيري ځمکه د هغه محصول طاقت ابرداشت انه لري کوم چي پر هغې مقرر کړی سوي وي **نَقَصَهُمُ الْإِمَامُ** نو امام دي محصول کم کړي **وَالنُّقْصَانُ عِنْدَ قِلَّةِ الرِّيْعِ جَائِزٌ بِالْإِجْمَاعِ** او د پيداوار د کموالي په صورت کي محصول کمول بالاتفاق جائز دي **أَلَا تَرَى إِلَى قَوْلِ عُمَرَ: لَعَلَّكُمَا حَمَّلْتُمَا الْأَرْضَ مَا لَا تُطِيقُ** آيا ته د حضرت عمر ﷺ دې فرمان ته نه ګورې اچي هغه حذيفه او عثمان بن حُنيف رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته وويل ا: شايد تاسي به پر ځمکي دومره محصول اچولی وي چي ځمکي به د هغه طاقت ااو برداشت انه درلود **فَقَالَا: لَا بَلْ حَمَّلْنَاهَا مَا تُطِيقُ وَلَوْ زِدْنَا لَأَطَاقَتْ** نو هغوی وويل: چي نه! بلکي موږ د هغې د طاقت مطابق محصول پر واچوی او که چيري موږ تر دې زيات محصول پر مقرر کړي وای نو هم به ځمکي برداشت کړي وای **وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى جَوَازِ النُّقْصَانِ** دا قول د محصول کمولو پر جواز اروايت ا دلالت کوي **وَأَمَّا الزِّيَادَةُ عِنْدَ زِيَادَةِ الرِّيْعِ يَجُوزُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** او د پيداوار د زياتوالي په صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په محصول کي اضافه کول جائز دي **اعْتِبَارًا بِالنُّقْصَانِ** د محصول پر کمي باندي په قياس کولو سره **وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يَجُوزُ** الیکن ا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دي **لِأَنَّ عُمَرَ لَمْ يَزِدْ حِينَ أُخْبِرَ بِزِيَادَةِ الطَّاقَةِ** ځکه کله ... چي حضرت عمر ﷺ، ته د محصول د زياتوالي خبر ورکول سو نو هغه په محصول

کي اضافه نه وکړه وَإِنْ غَلَبَ عَلَى أَرْضِ الْخَرَاجِ الْمَاءُ أَوِ انْقَطَعَ الْمَاءُ عَنْهَا أَوِ اصْطَلَمَ الزَّرْعَ آفَةٌ او که چیري پر خراجي ځمکه اوبه غالبي سي ایعني اوبه پې لاندي کړي ا یا له هغې څخه اوبه قطع سي یا یو آفت کښت اکېتی ا تباه کړي فَلَا خَرَاجَ عَلَيْهِ نو پر هغه ځمکي خراج نسته لِأَنَّهُ فَاتَ التَّمَكُّنُ مِنَ الزِّرَاعَةِ وَهُوَ النَّمَاءُ التَّقْدِيرِيُّ الْمُعْتَبَرُ فِي الْخَرَاجِ ځکه چي د کښت قدرت ااو طاقت ا ختم سو او هغه نماء تقدیري ده کوم چي په خراج کي معتبره ده وَفِيمَا إِذَا اصْطَلَمَ الزَّرْعَ آفَةٌ فَاتَ النَّمَاءُ التَّقْدِيرِيُّ فِي بَعْضِ الْحَوْلِ او په هغه صورت کي "کله چي یو آفت کښت تباه کړي" نماء تقدیري د کال په ځیني حصه کي فوت سوه وَكَوْنُهُ نَامِيًا فِي جَمِيعِ الْحَوْلِ شَرْطٌ كَمَا فِي مَالِ الزَّكَاةِ حال دا چي هغه ټوله کال نامي کېدل اد خراج د وجوب لپاره ا شرط دي لکه څرنګه چي په زکاة دي أَوْ يُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى الْحَقِيقَةِ عِنْدَ خُرُوجِ الْخَارِجِ یا د پیداوار د ښکاره کېدلو په صورت کي به د حکم مدار پر حقیقي نماء اېښوول کېږي.

**اللغات**: ﴿لم تُطِق﴾ د افعال له باب څخه د جحد صیغه ده، أَطَاقَ يُطِيقُ إِطَاقَةً: طاقت لرل، برداشت کول. زغمل، ﴿ريع﴾ ځلا، پیداوار، ﴿حمّلتما﴾ د تفعیل له باب څخه د تثنیه مذکر مخاطب ماضي صیغه ده: پر یو شي بار اچول، ﴿اصطلم﴾ د افتعال ماضي ده: تباه کول، بربادول، پوپنا کول، ﴿تمكّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت ور کول، قدرت او طاقت، ﴿يُدار﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: مدار کېدل، مدار اېښوول (یو شی پر بل شي موقوف کول، مبني کول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چیري د ځمکي پیداوار کم وي او پر هغې اېښوول سوی (مقرر سوی) محصول او خراج ډېر وي چي ځمکه هغه زغملای نه سي، نو په دې صورت کي د امام لپاره محصول کمول جائز او صحیح دي؛ دلیل دا دی چي حضرت عمر ﷺ و حضرت حذیفه او حضرت عثمان بن حنیف رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته وفرمایل: "لعلكما حملتما الأرض ما لاتطيق فقالا: لا بل حملناها ما تطيق. ولو زدناها لأطاقت"، په دې قول کي "ولو زدناها لأطاقت" د دې خبري دلیل دا دی چي حضرت حذیفه او حضرت عثمان کم محصول مقرر کړی وو او که هغو له هغه څخه زیات محصول مقرر کړي وای نو هم به صحیح وای، معلومه سوه چي محصول کمول جائز دي، لهذا کله چي د پیداوار د زیاتوالي په صورت کي کمي جائز ده نو د پیداوار د کموالي په صورت کي خو په درجه اولیٰ محصول کمول جائز دي.

**وأما الزيادة إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که پیداوار له توقع او اُمید څخه زیات سي (یعني څومره چي د مالک اُمید وي ځمکه تر هغه زیات پیداوار وکړي)، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چي څرنګه د پیدا وار د کموالي په صورت کي محصول کمول جائز دي همدارنګه د پیداوار د زیاتوالي په صورت کي محصول اضافه کول

هم صحيح دي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز اضافه کول صحيح نه دي، ځکه چي کله حضرت عثمان بن حنيف او حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا و حضرت عمر رضي الله عنه ته په عراق کي د پيداوار د زياتوالي خبر ورکړی، نو حضرت عمر رضي الله عنه په محصول کي اضافه نه وکړه. له دې څخه معلومه سوه چي اضافه کول جائز نه دي.

**وإن غلب إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که پر خراجي ځمکه اوبه راسي او له اوبو څخه ډکه سي يا بالکل وچه سي يا په يو آسماني آفت سره کښت او فصل تباه سي او هيڅ پيداوار هم نه وسي، نو په داسي صورت کي به پر هغه ځمکي خراج او محصول لازم نه وي؛ ځکه چي د دې عوارضو په وجه د کښت قدرت ختم سو. حالانکي همدا کښت د ځمکي تقديري نماء ده او په خراج کي اعتبار نماء لره دی. لهذا کله چي کښت او زراعت ختم سو نو نماء هم ختمه سوه. او کله چي نماء معدوم ده نو ښکاره خبره ده چي خراج به هم معدوم وي. او که چيري کښت د آسماني آفت په وجه تباه سوی وي نو په دې صورت کي که څه هم د کال په څه حصه کي تقديري نماء فوت ده خو بيا هم په دې څه غونډي فوتېدلو سره خراج ساقطيږي. ځکه چي د خراج د وجوب لپاره ټوله کال د نماءِ تقديري موجودېدل شرط دي لکه څرنګه چي د زکاة په مال کي حولان حول شرط دي.

**أويدار الحکم إلخ:** د دې حاصل دا دی چي په دې مسئله کي د خراج سقوط په دې توګه هم بيانېدلای سي چي نماء تقديري د نماءِ حقيقي يعني د پيداوار په حکم کي ده. لېکن کله چي پيداوار ښکاره سو نو بيا نماء تقديري ختمه سوه او حکم د نماءِ حقيقي سره متعلق سو او کله چي کښت په آسماني آفت سره هلاک سو. نو ښکاره خبره ده چي نماء هم هلاکه سوه او د خراج معامله ساقطه سوه.

## د کښت او کرني پرېښوولو په صورت کي د خراج نه ساقطېدلو بيان

قال: **وَإِنْ عَطَّلَهَا صَاحِبُهَا** فرمايي: او که د ځمکي مالک خپله [خراجي] ځمکه بې کاره پرېږدي **فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ** نو پر هغه به خراج لازم وي **لِأَنَّ التَّمَكُّنَ كَانَ ثَابِتًا وَهُوَ الَّذِي فَوَّتَهُ** ځکه چي هغه ته [پر کښت او کرني] قدرت حاصل وو او هغه [قصداً] هغه فوت کړی **قَالُوا: مَنِ انْتَقَلَ إِلَى أَخَسِّ الْأَمْرَيْنِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَعَلَيْهِ خَرَاجُ الْأَعْلَى** مشائخو فرمايلي دي: چي کوم کس بېله عذره په دوو کارونو کي د لاندي درجې [ټيټ] کار وطرف ته ميلان وکړي نو پر هغه به د لوړي درجې خراج لازم وي **لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِي ضَيَّعَ الزِّيَادَةَ** ځکه چي هغه زياتوب ضايع کړی **وَهَذَا يُعْرَفُ وَلَا يُفْتَى بِهِ** او دا [فقط] پېژندل پکار دي لېکن [ پر دې به فتوی نه

ورکول کیږي کَیْ لَا یَتَجَرَّأَ الظَّلَمَةُ عَلٰی أَخْذِ أَمْوَالِ النَّاسِ د دې لپاره چې ظالمان د خلکو د مالونو په اخیستلو کي جرائت نه وکړي وَمَنْ أَسْلَمَ مِنْ أَهْلِ الْخَرَاجِ او که له خراج ورکونکو خلکو څخه یو څوک اسلام راوړي أُخِذَ مِنْهُ الْخَرَاجُ عَلٰی حَالِهِ نو له هغه څخه به د مخکني حالت په څیر خراج اخیستل کیږي لِأَنَّ فِیهِ مَعْنَی الْمُؤْنَةِ ځکه چې په خراج کي د مؤنة معنیٰ سته فَیُعْتَبَرُ مُؤْنَةً فِی حَالَةِ الْبَقَاءِ لهذا د بقاء په حالت کي به هغه مؤنة ګڼل کیږي فَأَمْکَنَ إِبْقَاؤُهُ عَلَی الْمُسْلِمِ نو د مسلمان پر ذمه به د هغه (خراج) باقي پاته کول ممکن وي وَیَجُوزُ أَنْ یَشْتَرِیَ الْمُسْلِمُ أَرْضَ الْخَرَاجِ مِنَ الذِّمِّیِّ او د مسلمان لپاره جائز دي چې له ذمي څخه خراجي ځمکه رانیسي وَیُؤْخَذَ مِنْهُ الْخَرَاجُ او له دې مسلمان څخه به خراج اخیستل کیږي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَقَدْ صَحَّ أَنَّ الصَّحَابَةَ اِشْتَرَوْا أَرَاضِيَ الْخَرَاجِ وَکَانُوا یُؤَدُّونَ خَرَاجَهَا او په صحیح روایت کي (ذکر سوی) دي چې صحابه وو خراجي ځمکي رانیولې او هغوی به د هغه ځمکو خراج اداء کوی فَدَلَّ عَلٰی جَوَازِ الشِّرَاءِ وَأَخْذِ الْخَرَاجِ وَأَدَائِهِ لِلْمُسْلِمِ مِنْ غَیْرِ کَرَاهَةٍ نو د صحابه وو دا فعل پر دې دلالت کوي (یعني د دې خبرې دلیل دی) چې (د مسلمان لپاره) خراجي ځمکه رانیول. او له هغه څخه خراج اخیستل، او دا خراج مسلمان ته ورکول بېله کراهته جائز دي.

**اللغات:** ﴿عطلها﴾ د تفعیل ماضي ده: بېکاره پرېښوول، شنهول (بې حاصله پرېښوول). ﴿أخس﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: خسیس، کمتر، د کمي درجې والا، رذیل، سپک.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مالک په خراجي ځمکه کي کښت او کرنه (زراعت) نه وکړي او هغه شاړه پرېږدي نو پر هغه به هم خراج واجب وي، او د زراعت پرېښوولو په وجه به خراج نه ساقطیږي. ځکه چي دا د هغه سړي یو بد معاشي او لوچکي ده چي کښت او کرل نه کوي. لهذا شریعت هغه پر خپل دغه حرکت نه معافوي او د ځمکي محصول به څني اخیستل کیږي.

مشائخ فرمایي چې که دیو چا په ځمکه کي د زعفران راشنه کولو او پیدا کولو صلاحیت وي او هغه زعفران نه وکري او بېله عذره بانجن، رومیان یا داسي بله سبزي وکري. نو هم به هغه مجرم وي او پر هغه به د ځمکي د طاقت او صلاحیت په حساب سره د زعفران خراج لازم وي. صاحب د هدایې فرمایي چي په دې سره فقط علماؤ ته ځان خبرول او معلومات ورکول پکار دي، لېکن د دې فتویٰ به نه ورکول کیږي. کنې ظالمان حاکمان به د ځمکي له مالک څخه په دې حیله د زعفرانو خراج اخلي چي ستا ځمکه خو د زعفران را شنه کولو قابله ده تا زعفران ولي کرلي نه دي؟

**ومن أسلم من أهل إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که له خراج ورکونکو خلکو څخه یو څوک مسلمان سي نو له هغه څخه به د مخکي په څیر خراج اخیستل کیږي او د اسلام په وجه به له هغه څخه خراج نه ساقطیږي:

ځکه چي د عشر په څير خراج هم مؤنة دی لهذا د بقاء په حالت کي به هم هغه مؤنة شمارل کيږي يعني پر مسلمان که څه هم ابتداءً خراج واجبېدلای نه سي لېکن بقاءً هغه خراج ورکولای سي. ځکه چي بقاء له ابتداء څخه زيات سپکه او آسانه ده.

همدارنګه د مسلمان لپاره له ذمي څخه خراجي ځمکه رانيول جائز دي. او تر رانيولو وروسته چي څرنګه له ذمي څخه خراج اخيستل کيږي همداسي به له دغه رانيونکي مسلمان څخه هم خراج اخيستل کيږي.

ځکه چي په دې کي د مؤنة معنیٰ سته نو د ځمکي محصول به په هر صورت کي ورکول کيږي.

د دې يو واضح دليل د صحابه وو عمل هم دی چي هغو خراجي ځمکي رانيولي وې او د هغه خراج به يې ورکوی، لکه څرنګه چي په رواياتو کي د حضرت ابن مسعود، حضرت خباب بن الأرت او حضرت حسين بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په هکله د خراجي ځمکو د رانيولو او د خراج اداء کولو واقعات موجود دي. همدارنګه عامر بن عتبه بن فرقد سلمي وحضرت عمر ﷺ ته وويل: "إني اشتريتُ أرضاً بالسواد. فقال عمر ﷺ: أنت فيها بمنزلة صاحبها". يعني ما په عراق کي ځمکه رانيولې ده. نو حضرت عمر ﷺ ورته وفرمايل چي څرنګه د هغه ځمکي پر مالک خراج لازم وو، ته به هم هغسي خراج اداء کوې. له دې څخه معلومه سوه چي د مسلمان لپاره خراجي ځمکه رانيول صحيح دي او تر دې وروسته به هغه هم خراج اداء کوي.

## عشر او خراج سره جمع کول

وَلَا عُشْرَ فِي الْخَارِجِ مِنْ أَرْضِ الْخَرَاجِ او د خراجي ځمکي په پيداوار کي عشر نسته وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي عشر او خراج به دواړه سره جمع کيږي [يعني دواړه به اخيستل کيږي] لِأَنَّهُمَا حَقَّانِ مُخْتَلِفَانِ وَجَبَا فِي مَحِلَّيْنِ بِسَبَبَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ ځکه چي دواړه جلا [بېلا بېل] حقونه دي کوم چي په دوو جلا سببونو سره په دوو محلونو کي واجب سوي دي فَلَا يَتَنَافَيَانِ لهذا يو به د بل منافي نه وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: لَا يَجْتَمِعُ عُشْرٌ وَخَرَاجٌ فِي أَرْضِ مُسْلِمٍ زموږ دليل د نبي ﷺ دا إرشاد دی: چي: د يو مسلمان په ځمکه کي عشر او خراج جمع کېدلای نه سي وَلِأَنَّ أَحَدًا مِنْ أَئِمَّةِ الْعَدْلِ وَالْجَوْرِ لَمْ يَجْمَعْ بَيْنَهُمَا او ځکه چي [د مسلمانانو] له امامانو څخه يوه امام هم (هغه که عادل وي، که ظالم) دا دواړه سره جمع کړي نه دي وَكَفَى بِإِجْمَاعِهِمْ حُجَّةً او د دوی اجماع د حجت لپاره کافي ده وَلِأَنَّ الْخَرَاجَ يَجِبُ فِي أَرْضٍ فُتِحَتْ عَنْوَةً قَهْرًا او ځکه چي خراج په داسي ځمکه

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه باب أواخر الزكاة.

کي واجبیږي کوم چي په زور او غلبه سره فتح کړی سوې وي وَالْعُشْرُ فِي أَرْضٍ أَسْلَمَ أَهْلُهَا طَوْعًا او عشر په هغه ځمکه کي واجبیږي چي د هغې خلکو په رضا سره اسلام راوړی وي وَالْوَصْفَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي أَرْضٍ وَاحِدَةٍ او دا دوه وصفونه [قهر او طوع] په یوه ځمکه کي جمع کېدای نه سي وَسَبَبُ الْحَقَّيْنِ وَاحِدٌ وَهُوَ الْأَرْضُ النَّامِيَةُ او د دواړو حقونو سبب یو دی او هغه نما کونکې ځمکه ده إِلَّا أَنَّهُ يُعْتَبَرُ فِي الْعُشْرِ تَحْقِيقًا وَفِي الْخَرَاجِ تَقْدِيرًا خو په عشر کي دا سبب حقیقتاً معتبر دی او په خراج کي تقدیراً معتبر دی وَلِهَذَا يُضَافَانِ إِلَى الْأَرْضِ همدا وجه ده چي دوی دواړه [عشر او خراج] د ځمکي وطرف ته منسوب کیږي وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الزَّكَاةُ مَعَ أَحَدِهِمَا او پر همدغه اختلاف د عشر یا خراج سره د زکاة جمع کول دي وَلَا يَتَكَرَّرُ الْخَرَاجُ بِتَكَرُّرِ الْخَارِجِ فِي سَنَةٍ او په یوه کال کي د پیداوار په مکرر کولو سره خراج نه مکرر کیږي لِأَنَّ عُمَرَ لَمْ يُوَظِّفْهُ مُكَرَّرًا ځکه چي حضرت عمر ﷺ هغه مکرر نه دي ټاکلی بِخِلَافِ الْعُشْرِ په خلاف د عشر لِأَنَّهُ لَا يَتَحَقَّقُ عُشْرًا إِلَّا بِوُجُوبِهِ فِي كُلِّ خَارِجٍ ځکه چي عشر [فقط] هغه وخت ثابتیږي کله چي په هر پیداوار کي عشر واجب سي.

**اللغات**: ﴿طوعاً﴾ په رضا او خوښي سره. ﴿نامية﴾ وده کونکې. ﴿لم يوظفه﴾ د تفعیل له باب څخه د جد صیغه ده: وظیفه او محصول مقرر کول. ټاکل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز عشر او خراج جمع کول صحیح او جائز نه دي. بلکي له خراجي ځمکي څخه به فقط خراج اخیستل کیږي او له عشري ځمکي څخه به فقط عشر اخیستل کیږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز عشر او خراج دواړه جمع کېدای سي په دې کي هیڅ حرج نشته.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي عشر او خراج دواړه دوه مختلف او بېلابېل حقونه دي په دې توګه چي په یوه کي (په عشر کي) د عبادت معنیٰ سته او په بل کي د عقوبت معنیٰ سته او دا دواړه په دوو مختلفه سببونو سره په دوو مختلفه ځایونو (محلونو) کي واجب دي. ځکه چي د عشر د وجوب سبب نماء حقیقي ده او د خراج د وجوب سبب قدرة علی الزراعه دی. او بل دا چي خراج د ځمکي د مالک پر ذمه واجبیږي او د عشر تعلق د خارج یعني د پیداوار سره وي. لنډه دا چي دا دواړه په هره توګه یو له بل څخه مختلف او جلا دي، نو په دې وجه د دوی په اجتماع کي هیڅ منافات نشته.

**زموږ دليل**: دا حديث دی: "لا يجتمع عشر وخراج في أرض مسلم" چي د مسلمان په ځمکه کي عشر او خراج دواړه جمع کېدای نه سي، له دې حديث څخه معلومه سوه چي عشر او خراج دواړه په يوه ځمکه کي جمع کېدای نه سي، او قاعده دا ده چي کله په يو مسئله کي صريح نص موجود وي نو په هغه کي به له قياس څخه کار نه اخيستل کيږي، لهذا د دې نص په مقابله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل بې حيثيته دی.

زموږ عقلي دليل دا دی چي د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسه پوري يوه امام هم عشر او خراج سره جمع کړي نه دي هغه که عادل امام وي او که ظالم. او د هغو دا فعل زموږ لپاره قوي حجت دی. زموږ دريم دليل دا دی چي خراج په غلبةً او قهراً فتح کړل سوې ځمکه کي واجبيږي لېکن عشر د هغه ځمکي محصول دی چي د هغې اوسېدونکو په رضا سره اسلام راوړی وي. او ښکاره خبره ده چي غلبةً او طوعاً يو ځای سره جمع کېدای نه سي نو عشر او خراج به څرنګه يو ځای سره جمع کړی سي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي "دواړه په دوو مختلفه سببونو سره واجبيږي" صحيح نه ده، بلکي دواړه په يوه سبب سره واجبيږي او هغه سبب د ځکي نماء ده خو په عشر کي دا سبب حقيقتاً معتبر دی او په خراج کي تقديراً معتبر دی لېکن أصلاً د دواړو سبب يو دی همدا وجه ده چي د عشر او خراج دواړو نسبت د ځمکي وطرف ته کيږي او "عشر الأرض" او "خراج الأرض" ويل کيږي.

<u>وعلى هذا الخلاف إلخ</u>: فرمايي چي زموږ او د شوافعو چي کوم اختلاف د عشر او خراج په اجتماع او عدم اجتماع کي دی هغه اختلاف د عشر يا خراج سره د زکاة په اجتماع او عدم اجتماع کي هم دی. نو که يو څوک د تجارت په نيت سره عشري يا خراجي ځمکه رانيسي نو زموږ به په نېز په هغې کي زکاة نه واجبيږي.

<u>ولا يتكرر الخراج إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چي که په يوه کال کي دوه واره په خراجي ځمکه کي پيداوار وسي نو دوه واره به خراج نه واجبيږي، ځکه چي حضرت عمر رضي الله عنه مکرر خراج نه دي مقرر کړی، او څرنګه چي په دې سلسله کي حضرت عمر ﷺ أصلُ الاصول دی لهذا کله چي له هغه څخه تکرار ثابت نه دی نو بل به هيچا ته هم د تکرار حق نه وي. د دې په خلاف که چيري په عشري ځمکه کي د کاله دوه واره پيداوار وسي نو له هغه څخه به دوه واره عشر اخيستل کيږي. ځکه چي د عشر تعلق د خارج (پيداوار) سره دی نو د هغه وجوب به هم د خارج په حساب سره وي او د خارج مطابق به عشر واجبيږي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ الْجِزْيَةِ

(دا) باب د جزيې (د أحکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** مخکې تر دې د ځمکې د خراج بيان وسو اوس له دې ځايه د ذات او رأس خراج يعني د جزيې بيان کيږي. او د ځمکې د خراج د مُقدّم کولو وجه دا ده چې د ځمکې د خراج او عشر دواړو سَبب يو دی او په عشر کې د قربت او عبادت معنیٰ سته او قربت له عقوبت څخه مخکې وي. نو په دې وجه صاحب د کتاب د ځمکې خراج د رأس او ذات له خراج څخه مخکې بيان کړی دی.

د "جزيـة" لغوي معنی ده: بدله، جمع يې جُزیٰ راځي لکه د لحيـة جمع چې لُحیٰ راځي. او د "جزية" اصطلاحي معنیٰ ده: هغه مال کوم چې له ذمي څخه د هغه د ذات په بدله کې اخيستل کيږي.

## د جزيې اقسام او د مقدار بيان

وَهِيَ عَلَىٰ ضَرْبَيْنِ: جِزْيَةٌ تُوضَعُ بِالتَّرَاضِيْ وَالصُّلْحِ جزيه پر دوه قسمه ده: ① هغه جزيه کوم چې ايو د بل] په رضا او صلح سره مقرره کړی سي فَتَتَقَدَّرُ بِحَسَبِ مَا يَقَعُ عَلَيْهِ الِاتِّفَاقُ نو دا به په هغه مقدار سره اندازه کيږي چې پر هغه اتفاق واقع سي [مطلب دا چې د دې مقدار به هغه وي کوم چې په اتفاق او تراضي سره وټاکل سي] كَمَا صَالَحَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[1] أَهْلَ نَجْرَانَ عَلَىٰ أَلْفٍ وَمِائَتَيْ حُلَّةٍ لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ د نجران د خلکو سره پر دوونس سوو (۱۲۰۰) جوړو [جامو] باندې صلح وکړه وَلِأَنَّ الْمُوجِبَ هُوَ التَّرَاضِيْ او ځکه چې د مال واجبونکی شی [ايو د بل] رضا ده فَلَا يَجُوزُ التَّعَدِّيْ إِلَىٰ غَيْرِ مَا وَقَعَ عَلَيْهِ الِاتِّفَاقُ لهذا پر کوم مقدار چې اتفاق واقع سوی وي تر هغه به تجاوز کول جائز نه وي وَجِزْيَةٌ يَبْتَدِئُ الْإِمَامُ وَضْعَهَا إِذَا غَلَبَ الْإِمَامُ عَلَى الْكُفَّارِ وَأَقَرَّهُمْ عَلَىٰ أَمْلَاكِهِمْ ② او دويم قسم هغه جزيه ده کوم چې يې امام [پر کفارو] ابتداءً مقرره کړي [په هغه وخت کې] کله چې امام پر کفارو غالب سي او هغوی پر خپلو ملکيتونو باقي پرېږدي فَيَضَعُ عَلَى الْغَنِيِّ الظَّاهِرِ الْغِنَىٰ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ ثَمَانِيَةً وَأَرْبَعِينَ دِرْهَمًا يَأْخُذُ مِنْهُمْ فِيْ كُلِّ شَهْرٍ أَرْبَعَةَ دَرَاهِمَ نو د کوم مالدار مالداري چې ښکاره وي

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الخراج، باب في أخذ الجزية، رقم الحديث: ۳۰۴۱

امام به پر هغه په هر کال کي اته څلويښت [۴۸] درهمه مقرر کوي او له هغو [مالدارانو] څخه به هره مياشت څلور درهمه اخلي وَعَلَى وَسَطِ الْحَالِ أَرْبَعَةً وَعِشْرِينَ دِرْهَمًا فِي كُلِّ شَهْرٍ دِرْهَمَيْنِ او پر مينځوي درېږ والا به څلورويښت [۲۴] درهمه مقرر کوي، په هره مياشت کي دوه درهمه وَعَلَى الْفَقِيرِ الْمُعْتَمِلِ اِثْنَيْ عَشَرَ دِرْهَمًا فِي كُلِّ شَهْرٍ دِرْهَمًا او پر کار کونکي [کزاره کېدونکي] غريب به دوولس [۱۲] درهمه مقرر کوي، په هره مياشت کي يو درهم وَهَذَا عِنْدَنَا او دا [تفصيل] زموږ په نېز دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضَعُ عَلَى كُلِّ حَالِمٍ دِينَارًا أَوْ مَا يَعْدِلُ الدِّينَارَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام به پر هر بالغ يو دينار يا ديوه دينار سره برابر مال به مقرر کوي وَالْغَنِيُّ وَالْفَقِيرُ فِي ذَلِكَ سَوَاءٌ او مالدار او غريب دواړه په دې کي برابر دي [يعني په دې کي به د مالدار او غريب تر مينځ فرق نه کيږي] لِقَوْلِهِ عليه السلام لِمُعَاذٍ[2]: خُذْ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ وَحَالِمَةٍ دِينَارًا أَوْ عِدْلَهُ مَعَافِرَ ځکه چي نبي کريم ﷺ حضرت معاذ ته وفرمايل: چي له هر بالغ سړي او بالغي ښځه څخه يو دينار يا د هغه سره برابر يمني جامه ځني اخله! مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ [دا حديث] له څه فرق [او تفصيل] څخه بغير [وارد سوى] دى وَلِأَنَّ الْجِزْيَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ بَدَلًا عَنِ الْقَتْلِ او ځکه چي جزيه د قتل په عوض کي واجبيږي حَتَّى لَا تَجِبَ عَلَى مَنْ لَا يَجُوزُ قَتْلُهُ بِسَبَبِ الْكُفْرِ كَالذَّرَارِيِّ وَالنِّسْوَانِ همدا وجه ده چي پر هغه کس نه واجبيږي چي د کفر په وجه د هغه قتلول جائز نه وي لکه نابالغه بچيان او ښځي وَهَذَا الْمَعْنَى يَنْتَظِمُ الْفَقِيرَ وَالْغَنِيَّ او دا معنى فقير او غني دواړو ته شامليږي وَمَذْهَبُنَا مَنْقُولٌ عَنْ عُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيٍّ او زموږ مذهب له حضرت عمر، حضرت عثمان او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه نقل سوى دى وَلَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِمْ أَحَدٌ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ او له مهاجرينو او انصارو څخه هيچا پر دې نکير کړى نه دى [يعني هيچا په دې باره کي منع او انکار کړى نه دى] وَلِأَنَّهُ وَجَبَ نُصْرَةً لِلْمُقَاتِلَةِ او په دې وجه [هم] چي جزيه د مجاهدينو د نصرت [امداد] لپاره واجب سوې ده فَتَجِبُ عَلَى التَّفَاوُتِ بِمَنْزِلَةِ خَرَاجِ الْأَرْضِ لهذا د ځمکي د خراج په څېر به جزيه [هم] په تفاوت سره واجبيږي وَهَذَا لِأَنَّهُ وَجَبَ بَدَلًا عَنِ النُّصْرَةِ بِالنَّفْسِ وَالْمَالِ او په

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الزكاة، رقم الحديث: ۱۵۷۶.

دې وجه [هم] چې جزيه د ځان او مال د نصرت په بدل کې واجب سوې ده وَذٰلِكَ يَتَفَاوَتُ بِكَثْرَةِ الْوَفْرِ وَقِلَّتِهِ او دا شی دمال په کموالي او زياتوالي سره متفاوت کيږي. فَكَذَا مَا هُوَ بَدَلُهُ لهذا د هغه بدل [عوض] به هم متفاوت کيږي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ كَانَ ذٰلِكَ صُلْحًا او کوم حديث چې امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه پر صلح محمول دی وَلِهٰذَا أَمَرَهُ بِالْأَخْذِ مِنَ الْحَالِمَةِ همدا وجه ده چې [په هغه کې] نبي کريم ﷺ حضرت معاذ ته له بالغي ښځي څخه د جزيې اخيستلو حکم کړی دی وَإِنْ كَانَتْ لَا يُؤْخَذُ مِنْهَا الْجِزْيَةُ حال دا چې له ښځي څخه جزيه نه اخيستل کيږي.

**اللغات:** ﴿تُوضَع﴾ د فتح مضارع مجهوله ده: ايښوول. مقرر کول (ټاکل). ﴿تراضى﴾ د تفاعل مصدر دی: خپل مينځوي رضامندي. يو د بل رضا کېدل. يو تر بله رضا کېدل (په خپل مينځ کې د خلکو پر يو شي رضا کېدل). ﴿حُلّة﴾ جوړه. نوې جامه (کپړه). ﴿التعدّى﴾ د تفعل مصدر دی: تجاوز کول. تر حدّ تېرېدل. ﴿حَالِم﴾ بالغ. ﴿معافر﴾ يمني جامه (کپړه. ټوکر). ديمن جامه. ﴿ذراري﴾ کوچني بچيان. ﴿نصرة﴾ مدد. مرسته. امداد. ﴿وفر﴾ پوره کېدل. ډېرېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې جزيه پر دوه قسمه ده: ① اول قسم هغه جزيه ده کوم چې په صلح او مصالحت سره پر مسلمانانو او کافرانو وټاکل سي. د دې حکم دا دی چې پر څومره مقدار صلح سوې وي هغومره مقدار به واجب وي او تر هغه زيات مقدار به اخيستل جائز نه وي. لکه څرنګه چې نبي کريم ﷺ د نجران د خلکو سره د جامو په (۱۲۰۰) جوړو صلح کړې وه. ② دويم قسم هغه جزيه ده کوم چې امامُ المسلمين قهراً او غلبةً يو ځمکه فتح کړي او د هغه ځای پر خلکو جزيه لازم کړي. زموږ په نېز د دې تفصيل دا دی چې امام به له مالدار کس څخه په هره مياشته کې څلور (۴) درهمه اخلي کوم چې د کاله (۴۸) دراهم کيږي او له متوسط کس څخه به هره مياشته دوه (۲) درهمه اخلي او له کزاره کېدونکي غريب څخه به هره مياشته يو (۱) درهم اخلي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به امام په دغه دويم قسم کې پر هر بالغ سړي او ښځي باندې يو دينار مقرر کوي هغه که مالدار يا غريب وي يا ديوه دينار په اندازه جامې يا بل سامان به پر مقرر کوي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی چې نبي کريم ﷺ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ته وفرمايل: "خُذْ مِن حالِمٍ أو حالِمةٍ ديناراً أو عدله معافر" (اې معاذ! له هري بالغ سړي او بالغي ښځي څخه يو دينار اخله! يا ديوه دينار سره برابر يمني جامه [کپړه] ځني اخله!). په دې حديث کې په ښکاره توګه پر

بالغ سړي او بالغي ښځي يو دينار واجب سوی دی او د غني او فقير هيڅ تفصيل پکښې ذکر سوی نه دی، نو ځکه به له تفصيل او فرق څخه بغير به پر ټولو يو دينار لازم وي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي جزيه د قتل عوض ده يعني د جزيې په وجه کفار او ذميان له قتل څخه ساتل کيږي او په دغه سبب او بدل کي غني او فقير دواړه برابر دي. نو ځکه به پر دواړو په مساوي توګه يو دينار لازم وي.

**زموږ دليل: ومذهبنا إلخ:** زموږ دليل دا دی چي حضرت عمر ﷺ په همدغه تفصيل سره پر غني. متوسطُ الحال او فقير باندي جزيه مقرر کړې وه، او تر هغه وروسته حضرت عثمان او عضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په همدغه طريقه عمل کړی وو، او يوه صحابي به هم پر دي نکير نه وو کړی چي د هغه په وجه دا عمل د إجماع شکل اختيار کړی، او إجماع له شرعي حجتونو څخه يو قوي حجت دی.

زموږ عقلي دليل دا دی چي جزيه د مجاهدينو د نصرت او امداد لپاره ټاکل کيږي. لهذا څرنګه چي خراج د مجاهدينو د نصرت لپاره ټاکل کيږي او هغه په متفرقه توګه مقررول کيږي همداسي به جزيه هم په متفرقه توګه مقررول کيږي. په متفرق توګه د جزيې د مقرر کولو يو دليل دا دی چي کوم کفار د مسلمانانو تر حکم او قبضه لاندي وي پر هغو د مسلمانانو نصرت کول واجب دي. لېکن کله چي کافر په ذهني توګه د دارُ الحرب وطرف ته ميلان کوي او په خپل ځان او مال سره د مسلمانانو مدد نه کوي، نو له هغه څخه اخيستل سوې جزيه د هغه د ځان او مال بدل ده. او په ځان سره او مال سره د مدد کولو صورتونه مختلف او بدل دي نو ځکه به د جزيې وجوب هم د حالاتو مطابق بدلول کيږي او غريب او مالدار ټولو ته به په يوه نظر سره نه کتل کيږي بلکي پر هر يوه به د خپل حال مطابق جزيه ټاکل کيږي.

پاته سو هغه حديث کوم چي امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل دليل کي پېش کړی دی. نو هغه د جزيې د اول قسم يعني د صلح د صورت سره متعلق دی. ځکه چي په هغه حديث کي له ښځي څخه هم د جزيه اخيستلو حکم ذکر سوی دی حالانکي له ښځي څخه جزيه نه اخيستل کيږي. او زموږ بحث او کلام د جزيې د دويم قسم په هکله دی، لهذا په دې دويم قسم کي په هغه حديث سره دليل نيول صحيح نه دي.

## له اهل کتاب او مجوسیانو څخه جزیه اخیستل

قَالَ: وَتُوضَعُ الْجِزْيَةُ عَلَى أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمَجُوسِ فرمايي: چي پر اهلِ کتابو او مجوسو به هم جزيه مقررول کيږي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ [التوبة: ۲۹] ځکه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: چي د اهلِ کتابو سره [وجنګيږئ!] تر دې چي هغوی جزيه درکړي وَوَضَعَ [1] رَسُولُ اللهِ ﷺ الْجِزْيَةَ عَلَى الْمَجُوسِ [همدارنګه] نبي کريم ﷺ پر مجوسو جزيه مقرره کړې ده

قَالَ: وَعَبَدَةِ الْأَوْثَانِ مِنَ الْعَجَمِ فرمايي: چي د عجمو پر بُت پرستو به هم جزيه مقررول کيږي وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَقُولُ: إِنَّ الْقِتَالَ وَاجِبٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَقَاتِلُوهُمْ [البقرة: ۱۹۳] هغه فرمايي: چي [د کفارو سره] جنګ کول واجب دي، ځکه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: او تاسي د هغوی سره وجنګيږئ! إِلَّا أَنَّا عَرَفْنَا جَوَازَ تَرْكِهِ فِي حَقِّ أَهْلِ الْكِتَابِ بِالْكِتَابِ وَفِي حَقِّ الْمَجُوسِ بِالْخَبَرِ ليکن موږ د اهلِ کتابو په حق کي د قتال پرېښوولو جواز [روايښت] په کتابُ الله سره او د مجوسو په حق کي د هغه جواز په حديث سره معلوم کړی دی فَبَقِيَ مَنْ وَرَاءَهُمْ عَلَى الْأَصْلِ نو ځکه له دوی څخه بغير د نورو په حق کي حکم پر خپل أصل [قتال کولو] پاته سو وَلَنَا: أَنَّهُ يَجُوزُ اسْتِرْقَاقُهُمْ زموږ دليل دا دی: چي دوی [بُت پرسته] غلامان جوړول جائز دي فَيَجُوزُ ضَرْبُ الْجِزْيَةِ عَلَيْهِمْ لهذا پر دوی به جزيه ټاکل [هم] صحيح وي إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَشْتَمِلُ عَلَى سَلْبِ النَّفْسِ مِنْهُمْ ځکه چي په دې دواړو [استرقاق او ضرب الجزيه] کي هر کار د دوی د ذات پر سلبولو مشتمل دی فَإِنَّهُ يَكْتَسِبُ وَيُؤَدِّي إِلَى الْمُسْلِمِينَ ځکه چي کافر مال ګټي او مسلمانانو ته يې ورکوي وَنَفَقَتُهُ فِي كَسْبِهِ او د هغه نفقه [هم] په ګټل سوي مال کي وي.

**اللغات:** ﴿عبدة﴾ جمع د عَابِدٌ ده: عبادت کونکي، أوثان جمع د وَثَنٌ ده: بُت، عبدةُ الأثاون: د بُتانو عبادت کونکي، بُت پرستان، آتش پرسته. ﴿استرقاق﴾ د استفعال مصدر دی: غلام جوړول، غلام ګرځول. ﴿ضرب﴾ د ضرب مصدر دی، د دې باب ډيري معناوي دي، دلته يې معنىٰ ده: "مقرر کول" او "ټاکل". ﴿سلب﴾ د نصر مصدر دی: سلبول، په زوره اخيستل، بې برخي کول. ﴿کسب﴾ ګټه. ګټل سوی مال.

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجزية، باب الجزية، رقم الحديث: ۳۱۵۷.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې د کفارو په ځير له مجوسو او اهلِ کتابو څخه هم جزيه اخيستل صحيح او جائز دي؛ له اهل کتاب څخه د جزيې اخيستلو دليل د قرآن کريم دا آيت دی: "حتیٰ يُعطوا الجزية عن يدٍ وهم صاغرون". او له مجوسو څخه د جزيې اخيستلو دليل د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه دا روايت دی: "أن رسول الله ﷺ أخذها (أی الجزية) من مجوس هَجَر" يعني نبي کريم ﷺ د "هجر" له مجوسو څخه جزيه واخيستل.

همدا رنګه له د عمجو له بتُ پرستو څخه جزيه اخيستل هم زموږ په نېز جائز دي. لېکن د امام شافعي رحمه الله په نېز له هغو څخه جزيه اخيستل جائز نه دي؛ د امام شافعي دليل د قرآن کريم دا آيت دی: "وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ...إلخ". څرنګه چې دا آيتِ کريمه عام دی او په دې کې د هر، هر کافر سره د قتال کولو حکم ثابت دی لېکن کوم کفار چې په بل نص سره مستثنیٰ ګرځول سي دي هغوی به مستثنیٰ وي او مجوس او اهلِ کتاب په قرآن او حديث سره مستثنیٰ سوي دي (ځکه په قرآن کي ذکر سوه چې "حتیٰ يُعطوا الجزية" يعني له اهلِ کتابو څخه جزيه اخيستل کېدای سی، او په حديث کي ذکر سوه چې نبي کريم ﷺ د "هجر" له مجوسو څخه جزيه واخيستل)، نو ځکه دا دواړه جماعتونه له قتال څخه مستثنیٰ سوي او وتلي دي. نو اوس فقط بُت پرستان پاته سول او هغوی له قتال څخه مستثنیٰ سوي نه دي (ځکه چې د هغو د جزيې په باره کي هيڅ آيت او حديث ذکر سوی نه دی) لهذا د دوی په حق کي به أصل حکم يعني قتال کول باقي پاته وي. نو ځکه به د دوی سره فقط جنګ او قتال کيږي او جزيه به نه څني اخيستل کيږي.

زموږ دليل دا دی چې بُت پرسته خلک غلامان ګرځول صحيح دي لهذا پر دوی به جزيه مقرر کول هم صحيح وي، ځکه څرنګه چې په غلام ګرځولو سره د دوی ذات او منفعت سلبيږي همداسي په جزيه مقرر کولو سره هم د دوی ذات او منفعت سلبيږي ځکه کافر چې څه ګټي هغه مسلمانانو ته ورکوي او څرنګه چې په هغه کي د ده خرڅه او نفقه هم شامله وي نو په دې حواله سره د هغه ټوله څه سلبيږي او څرنګه چې يو غلام خپل مال مالک ته سپاري دي بالکل همداسي د بُت پرستو معامله هم وي، نو ځکه به پر دوی جزيه لازمول هم جائز وي.

## د عربو پر مشرکينو او پر مرتدينو د جزيې حکم

وَإِنْ ظُهِرَ عَلَيْهِمْ قَبْلَ ذٰلِكَ او که چيري تر جزيې لازمولو مخکي د عجمو پر بُت پرستو (د مسلمانانو) غلبه راسي فَهُمْ وَنِسَاؤُهُمْ وَصِبْيَانُهُمْ فَيْءٌ نو دوی او د دوی ښځې او بچيان به ټوله فئ وي لِجَوَازِ اسْتِرْقَاقِهِمْ ځکه چې دوی غلامان جوړول جائز دي وَلَا تُوضَعُ عَلَىٰ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ مِنَ الْعَرَبِ وَلَا الْمُرْتَدِّينَ او د عربو پر بُت پرستو او مرتدينو به جزيه نه مقررول کيږي لِأَنَّ كُفْرَهُمَا قَدْ تَغَلَّظَ ځکه

چي د هغو کفر سخت [او سنګين] سو أَمَّا مُشْرِكُو الْعَرَبِ فَلِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَشَأَ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ کوم چي د عربو مشرکين [بُت پرستان] دي نو ځکه چي نبي ﷺ د دوی په مينځ کي را پورته سوی دی وَالْقُرْآنُ نَزَلَ بِلُغَتِهِمْ او قران د دوی په ژبه نازل سوی دی فَالْمُعْجِزَةُ فِي حَقِّهِمْ أَظْهَرُ لهذا د دوی په حق کي معجزه ډېره ښکاره ده وَأَمَّا الْمُرْتَدُّ فَلِأَنَّهُ كَفَرَ بِرَبِّهِ بَعْدَ مَا هُدِيَ لِلْإِسْلَامِ وَوَقَفَ عَلَى مَحَاسِنِهِ او کوم چي مرتد دی نو ځکه چي هغه د خپل رب انکار وکړی وروسته تر دې چي هغه ته د اسلام هدايت وسو او د اسلام په ښېګڼو خبر سو فَلَا يُقْبَلُ مِنَ الْفَرِيقَيْنِ إِلَّا الْإِسْلَامُ أَوِ السَّيْفُ نو ځکه به له دواړو ډلو څخه فقط إسلام يا توره قبلول کيږي زِيَادَةً فِي الْعُقُوبَةِ د دې لپاره چي [د دوی] سزا هم سخته سي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُسْتَرَقُّ مُشْرِكُو الْعَرَبِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د عربو مشرکين غلامان جوړېدلای سي وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا [ليکن] د امام شافعي جواب هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَإِذَا ظُهِرَ عَلَيْهِمْ او کله چي پر دوی [يعني د عربو پر مشرکينو او مرتدينو. د مسلمانانو] غلبه راسي فَنِسَاؤُهُمْ وَصِبْيَانُهُمْ فَيْءٌ نو د دوی ښځي او بچيان به فئ [غنيمت] وي لِأَنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اسْتَرَقَّ نِسْوَانَ بَنِي حَنِيفَةَ وَصِبْيَانَهُمْ لَمَّا ارْتَدُّوا وَقَسَّمَهُمْ بَيْنَ الْغَانِمِينَ ځکه کله چي بنو حنيفه مرتد سول نو ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغو ښځي او بچيان غلامان جوړ کړل او هغوی يې په مجاهدينو کي تقسيم کړل وَمَنْ لَمْ يُسْلِمْ مِنْ رِجَالِهِمْ او د دوی [مشرکينو او مرتدينو] له خلکو څخه چي څوک اسلام نه راوړي قُتِلَ نو هغه به قتلول کيږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَا جِزْيَةَ عَلَى امْرَأَةٍ وَلَا صَبِيٍّ او پر ښځي او بچي جزيه نسته لِأَنَّهَا وَجَبَتْ بَدَلًا عَنِ الْقَتْلِ أَوْ عَنِ الْقِتَالِ ځکه چي جزيه د قتل يا جنګ کولو په عوض کي واجب سوې ده وَهُمَا لَا يُقْتَلَانِ وَلَا يُقَاتِلَانِ او ښځه او بچی خو نه قتلول کېدای سي او نه دوی جنګ کولای سي لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چي [په دوی کي] اهليت نسته.

**اللغات:** ﴿ظُهِر﴾ د فتح ماضي مجهوله ده: د دې باب په صله کي چي "علیٰ" ذکر سي نو د "غالبېدلو" او "قبضه کولو" په معنیٰ سره راځي. ﴿فيء﴾ غنيمت. ﴿تغلظ﴾ د تفعّل ماضي ده: سختېدل. ﴿هُدِيَ﴾ د ضرب ماضي ده: هدايت کېدل، هدايت کول، لار ښوونه کول. ﴿وقف﴾ د ضرب ماضي ده. د دې باب په صله کي چي "عَلیٰ" راسي نو د "واقف کېدلو" او "خبرېدلو" په معنیٰ سره راځي.

**تشريح: صورت دمسئلې:** دا دی کــه چيــري د عجمو پر بُت پرستو باندي لـه جزيې ټاکلو څخه مخکې مسلمانان پر دوی غالب سي نو د دوی ښځي او بچيان به ټوله غنيمت وي: ځکه کله چي دوی غلامان ګرځول (يعني له دوی څخه غلامان جوړول) جائز دي نو دوی فیځ او غنيمت ګرځول هم جائز دي.

او د عربو پر بُت پرستو او مرتدينو جزيه مقررول صحيح نه دي. برابره ده مرتـدين کـه عـرب وي او کـه عجـم وي. ځکـه چـي د عربـو د مشـرکينو او مرتـدينو دواړو کفر سـخت او ډېـر بـد دی. د عربـو د مشرکينو کفر خو په دې وجه ډېر بد او ناوړه دی چي نبي کـريم ﷺ پـه دوی کـي را اسـتول سوی او را پورته سوی دی، او قرآن کي د دوی په ژبه نازل سوی دی. نو د دوی په حق کي د نورو په نسبت نبوي او قرآني معجزه ډېره ښکاره او څرګنده ده. لهذا د دې باوجود اسلام نه راوړل او شـرک کـول ډېـر غـټ جرم دی، همدارنګه مرتد چي کله يـو ځـل اسلام راوړي، هـدايت او لارښوونه حاصـله کـړي او د اسلام پـه ښېګڼو خبر سي، لېکن د دې باوجود له اسلام څخه منکر سـي او مرتـد وګرځـي، نـو دا هـم يـو غـټ جـرم دی، نو ځکه به د دې خلګو سزا هم سخته وي او له دوی څخه به يا اسلام قبلول کيږي يا به قتلول کيږي.

**وعند الشافعي الخ:** فرمايي: چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله پـه نـيـز د عربو مشـركين هم غلامان جوړېدلای سي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف زموږ دليل حجت دی چي د دوی کفر سخت او زيات بد دی.

**وإذا ظهر الخ:** پاته عبارت واضح دی.

## پر معذوره کسانو او بوډاګانو د جزيې حکم

| |
|---|
| **قَالَ: وَلَا زَمِنٍ وَلَا أَعْمٰى** فرمايي: چي پر شل او نابينا به [هم] جزيه نه مقررول کيږي **وَكَذَا الْمَفْلُوجُ وَالشَّيْخُ الْكَبِيرُ** او همدارنګه پر فلج [ګوزڼ وهلي] او ډېر بوډا [به هم جزيه نه مقررول کيږي] **لِمَا بَيَّنَّا** د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی. **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ**[*]: **أَنَّهُ تَجِبُ إِذَا كَانَ لَهُ مَالٌ** او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي که د هغه سره مال وي نو جزيه به پر واجبيږي **لِأَنَّهُ يُقْتَلُ فِي الْجُمْلَةِ إِذَا كَانَ لَهُ رَأْيٌ** ځکه که چيري هغه لره [په جنګ] کي رايه وي [يعني په جنګ کي مشوره ورکولای سي] نو هغه به قتلول کيږي [نو ځکه به جزيه هم ځني اخيستل کيږي] **وَلَا عَلَى فَقِيرٍ غَيْرِ مُعْتَمِلٍ** او پر هغه فقير به [هم] جزيه نه مقررول کيږي کوم چي کار نه کوي [او ګزاره يې نه کيږي] **خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ** په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله **لَهُ إِطْلَاقُ حَدِيثِ مُعَاذٍ** د هغه دليل د حضرت معاذ |

[*] القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٢٩٤). [القول الراجح ج:١، ص:٢٩٣]

ﷺ د حديث إطلاق دى [يعني هغه فرمايي چي د حضرت معاذ حديث مطلق دى] وَلَنَا: أَنَّ عُثْمَانَ ﷺ لَمْ يُوَظِّفْهَا عَلَى فَقِيرٍ غَيْرِ مُعْتَمِلٍ او زموږ دليل دا دی: چي حضرت عثمان پر غير معتمل فقير جزيه مقرره نه کړه وَكَانَ ذٰلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ او دا کار د صحابه وو په حضور [موجودګي] کي وسو وَلِأَنَّ خَرَاجَ الْأَرْضِ لَا يُوَظَّفُ عَلَى أَرْضٍ لَا طَاقَةَ لَهَا او ځکه چي د ځمکي خراج پر هغه ځمکي نه مقررول کيږي کوم چي [د کښت او کرني] طاقت نه لري فَكَذَا هٰذَا الْخَرَاجُ نو همداسي به دا خراج هم وي [يعني دا به هم پر قدرت نه لرونکي سړي نه واجبيږي] وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى الْمُعْتَمِلِ او د حضرت معاذ ﷺ حديث پر کار کونکي [ګزاره کېدونکي] فقير محمول دی وَلَا تُوضَعُ عَلَى الْمَمْلُوكِ وَالْمُكَاتَبِ وَالْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ او پر مملوک، مکاتب، مدبر او أُم ولد به جزيه نه مقررول کيږي لِأَنَّهُ بَدَلٌ عَنِ الْقَتْلِ فِي حَقِّهِمْ ځکه چي جزيه د دوی په حق کي د قتل عوض ده وَعَنِ النُّصْرَةِ فِي حَقِّنَا او زموږ په حق کي د نصرت عوض ده وَعَلَى اعْتِبَارِ الثَّانِي لَا تَجِبُ او پر دويم اعتبار [پر دوی] جزيه واجبېدلای نه سي فَلَا تَجِبُ بِالشَّكِّ لهذا د شک په وجه سره به جزيه نه واجبيږي وَلَا يُؤَدِّي عَنْهُمْ مَوَالِيهِمْ او د دوی له طرفه به خپل مالکان [هم] جزيه نه اداء کوي لِأَنَّهُمْ تَحَمَّلُوا الزِّيَادَةَ بِسَبَبِهِمْ ځکه چي د دې غلامانو په وجه به دوی د زيات بوج اخيستونکي سي [يعني د غلامانو په وجه به پر مالکانو زيات بوج لازم سي] وَلَا تُوضَعُ عَلَى الرُّهْبَانِ الَّذِينَ لَا يُخَالِطُونَ النَّاسَ او پر هغه راهبانو به هم جزيه نه مقررول کيږي کوم چي د خلکو سره ګډون نه کوي [يعني د خلکو سره هيڅ تعلق او اړيکي نه ساتي] كَذَا ذَكَرَ هٰهُنَا دلته امام قدوري رَحِمَهُ الله داسي ذکر کړي دي وَذَكَرَ مُحَمَّدٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ تُوضَعُ عَلَيْهِمْ إِنْ كَانُوا يَقْدِرُونَ عَلَى الْعَمَلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله نقل کړي دي چي که دوی [راهبان] پر کار کولو قادر وي نو جزيه به پر مقررول کيږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دی وَجْهُ الْوَضْعِ عَلَيْهِمْ: أَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى الْعَمَلِ هُوَ الَّذِي ضَيَّعَهَا پر دوی [راهبانو] د جزيې مقررولو وجه دا ده: چي هغه په خپله د کار کولو قدرت [او صلاحيت] ضايع کړی دی فَصَارَ كَتَعْطِيلِ الْأَرْضِ الْخَرَاجِيَّةِ نو دا داسي سو لکه خراجي ځمکه بې کاره پرېښوول وَوَجْهُ الْوَضْعِ

عَنْهُمْ: أَنَّهُ لَا قَتْلَ عَلَيْهِمْ إِذَا كَانُوا لَا يُخَالِطُونَ النَّاسَ او له دوی څخه د جزيې ساقطېدلو وجه دا ده: چې که هغوی د خلګو سره ګډون نه کوي نو پر هغوی قتل نسته [يعني که چيرې هغوی د خپلو کفارو سره تعلق نه ساتي، نو نه به قتلول کيږي] وَالْجِزْيَةُ فِي حَقِّهِمْ لِإِسْقَاطِ الْقَتْلِ او جزيه د دوی په حق کې د قتل ساقطولو په وجه واجبيږي [مطلب دا چې موږ ځکه له کفارو څخه جزيه اخلو چې هغوی د قتل مستحقين دی. لېکن موږ له هغو څخه د دې جزيې په عوض کې قتل ساقط کړی دی او هغه مو معاف کړی دي، لهذا کوم کفار چې د قتل مستحق نه وي يعني مخالطت نه کونکي راهبان، نو پر هغوی به څرنګه جزيه واجب کړی سي!] وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمُعْتَمِلُ صَحِيحًا او د معتمل فقير صحيح کېدل [روغوالی] ضروري دی وَيَكْتَفِي بِصِحَّتِهِ فِي أَكْثَرِ السَّنَةِ او د کال په زياتره په حصه کې به د هغه پر صحيت [روغتيا] اکتفاء کيږي.

**اللغات:** ﴿زَمِن﴾ شل. هغه کس چې پښې يا لاسونه يې کار نه کوي، معذور. ﴿مفلوج﴾ هغه کس چې د فالج (ګوزڼ) په ناروغی مبتلا وي، ګوزڼ وهلی. ﴿رأی﴾ د مشورې ورکولو صلاحيت (ورتيا)، ﴿غير معتمل﴾ ناکارنده. نه کار کونکی. مراد ځني هغه غريب دئ چې ګزاره يې نه کيږي(أحسن الهداية)، ﴿رهبان﴾ جمع د رَاهِب ده: د اهلِ کتابو عابد، زاهد. دنيا پرېښوونکی. له خلګو څخه ګوښه کېدونکی، کوښه ناست. ﴿لا يخالطون﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي صيغه ده: ګډون کول، ګډوډوند کول، مراد ځني تعلق او اړيکې ختمول دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې پر شلِ او شوټ. فلج. نابينا او ډېر بوډا باندې جزيه نسته؛ ځکه چې دغه کسان له قتل او قتال څخه عاجز دي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې که په دې کسانو کې د يوه سره مال وي نو پر هغه به جزيه لازم وي، ځکه چې هغه که څه هم قتال نه سي کولای لېکن د قتال په حواله سره مشوره ورکولای سي او د هغه مال هم په کار راتلای سي. نو ځکه به پر هغه جزيه واجب وي. زموږ په نېز پر غيرِ معتمل فقير (يعني پر هغه فقير چې کار نه کوي او هيڅ ګزاره يې نه کيږي) هم جزيه نسته. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه جزيه سته؛ د هغه دليل د حضرت معاذ رضي الله عنه د حديث إطلاق دی چې په هغه که له څه تخصيص او تفصيل څخه بغير د "خذ من کل حالم دينارا" حکم وارد سوی دی. او غيرِ متعمل فقير هم په "حالم" کې داخل دی. نو ځکه به پر هغه هم جزيه واجب وي.

زموږ دليل دا دی چې عثمان بن حنيف ﷺ د عراق پر غير متعملو فقيرانو جزيه واجب نه کړه او دا عمل د صحابه وو او د حضرت عمر ﷺ د خلافت په زمانه کې وسو او هيچا هم پر غير معتمل فقير د جزيې مقررولو خبره نه وکړه، او بل دا چې جزيه او خراج دواړه قريبُ المعنیٰ دي او کومه ځمکه چې د کښت او کرنې طاقت نه لري او شيان پکښې راشنه کېدلای نه سي نو په هغه ځمکه کې خراج نه واجبيږي نو همداسې به جزيه هم پر هغه کس نه واجبيږي کوم چې د جزيې اداء کولو طاقت نه لري.

او د حضرت معاذ ﷺ په حديث سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل نيول صحيح نه دي، ځکه چې په هغه کې له فقير څخه معتمل فقير مراد دی.

<u>ولايوضع إلخ</u>: پر مملوک، مکاتب او داسې نورو باندې هم جزيه نسته؛ ځکه چې پر ذميانو د جزيې وجوب د هغوی د نه قتلولو او زموږ د مدد نه کولو په عوض او بدله کې دی، يعني پر ذميانو د جزيې د وجوب دوې وجهې او دوه طرفونه دي: ① يو دا چې موږ هغوی پر خپل کفر پرېږدو او نه يې قتل کوو، نو د دغه نه قتلولو په عوض کې به هغوی موږ ته جزيه راکوي، ② او بل دا چې هغوی زموږ نصرت او مدد نه کوي، نو د دې په بدل کې به موږ ته جزيه راکوي، او څرنګه چې مملوک او مدبر زموږ مدد نه سي کولای (ځکه چې هغوی د خپل مالک تر ولکه او قبضه لاندې وي)، نو د مدد نه کولو وجه او طرفه په هغو کې ثابتېدلای نه سي لهذا د مدد نه کولو په حواله سره خو پر هغو جزيه نه سي واجب کېدلای، پاته سو د قتل د عوض طرف، نو فقط د دې يوه طرف په وجه هم موږ پر هغو جزيه نه سو واجبولای. او د مملوک، مکاتب او داسې نورو له طرفه خپل مالک (مولیٰ) هم جزيه نه سي ورکولای، ځکه چې دا داسې دي لکه پر مالک دوه واره جزيه واجبول، او له يوه صنف څخه دوه واره جزيه اخيستل صحيح نه دي، ځکه چې دا سخت بوج او تکليف دی.

او پر هغو راهبانو کوم چې د خلګو سره هيڅ تعلق او اړيکي نه ساتي، پر هغو جزيه نسته. دا د قدوري حکم دی، لېکن له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د امام محمد رَحِمَهُ الله روايت دا دی چې که راهبان پر کار کولو قادر وي نو پر هغو به هم جزيه لازم وي، ځکه چې د قدرة على العمل باوجود کار نه کول د هغو لوچکي او نامردي ده او د هغو له طرفه تعدیٰ ده، لهذا څرنګه چې په خراجي ځمکه کې د کښت او زراعت د طاقت باوجود يو څوک پر هغې کښت او کرنه نه وکړي نو پر هغه ځمکې خراج واجبيږي همداسې به د قدرة على العمل باوجود که څوک کار نه کوي نو پر هغه به هم جزيه لازم وي.

او امام قدري رَحِمَهُ الله چې پر راهبانو جزيه نه ده مقرر کړي، د هغه دليل دا دی چې جزيه د نه قتلولو

عوض ده، لېکن څرنګه چې داړيکو او تعلق نه ساتلو په وجه پر راهبانو قتل نسته نو ښکاره خبره ده چې پر هغو به جزيه هم نه وي.

او پر معتمل فقير به جزيه هغه وخت واجبيږي کله چې هغه روغ رمټ او صحيح سالم وي همدارنګه که هغه د کال په زياتره حصه کې صحيح سالم وي نو دا هم پر هغه باندې د جزيې د وجوب لپاره کافي دي، يعني په دې صورت کې به هم پر هغه جزيه واجبيږي.

## د جزيه ورکونکي کس مړ کېدل يا اسلام راوړل

وَمَنْ أَسْلَمَ وَعَلَيْهِ جِزْيَةٌ او کوم کس چې اسلام راوړي په داسې حال کې چې پر هغه جزيه واجب وي سَقَطَتْ عَنْهُ نو له هغه څخه جزيه ساقطيږي وَكَذٰلِكَ إِذَا مَاتَ كَافِرًا او همدارنګه که هغه د کفر په حالت کې مړ سي [نو هم جزيه ځني ساقطيږي] خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِيهِمَا د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په دواړو صورتونو کې اختلاف دی لَهُ: أَنَّهَا وَجَبَتْ بَدَلًا عَنِ الْعِصْمَةِ أَوْ عَنِ السُّكْنٰى د امام شافعي دليل دا دی: چې جزيه خو د نفس د حفاظت يا د سکونت [استوګې] په عوض کې واجب سوې ده وَقَدْ وَصَلَ إِلَيْهِ الْمُعَوَّضُ او هغه ته معوّض رسېدلی دی فَلَا يَسْقُطُ عَنْهُ الْعِوَضُ بِهٰذَا الْعَارِضِ لهذا د دې عارض په وجه به له هغه څخه عوض نه ساقطيږي كَمَا فِي الْأُجْرَةِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ لکه په أجرت او صلح عن دم العمد کې چې [تاکل سوی مال له هغه څخه نه ساقطيږي] وَلَنَا: قَوْلُهُ الْعَلَيْلَا [1]: لَيْسَ عَلٰى مُسْلِمٍ جِزْيَةٌ زموږ دليل د نبي ﷺ دا إرشاد دی چې: پر مسلمان جزيه نسته وَلِأَنَّهَا وَجَبَتْ عُقُوبَةً عَلَى الْكُفْرِ او ځکه چې جزيه پر کفر د سزا په توګه واجب سوې ده وَلِهٰذَا تُسَمّٰى جِزْيَةً له همدې کبله جزيه ورته وايي وَهِيَ وَالْجَزَاءُ وَاحِدٌ او جزيه او جزاء [سزا] دواړه يو شی دی وَعُقُوبَةُ الْكُفْرِ تَسْقُطُ بِالْإِسْلَامِ او د کفر سزا د اسلام په وجه سره ساقطيږي وَلَا تُقَامُ بَعْدَ الْمَوْتِ او تر مرګ وروسته سزا جاري کېدای نه سي وَلِأَنَّ شَرْعَ الْعُقُوبَةِ فِي الدُّنْيَا لَا يَكُونُ إِلَّا لِدَفْعِ الشَّرِّ او ځکه چې په دنيا کې سزا فقط [د کافر] د شر ختمولو لپاره مشروع سوې ده وَقَدِ انْدَفَعَ بِالْمَوْتِ وَالْإِسْلَامِ حال دا چې په مرګ او اسلام سره [د هغه] شر ختم سو وَلِأَنَّهَا وَجَبَتْ بَدَلًا عَنِ النُّصْرَةِ فِي حَقِّنَا او ځکه چې جزيه زموږ په

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الخراج باب في الذمي، رقم الحديث: ٣٠٥٣ .

حق کي د نصرت د عوض په توګه واجب سوې ده ایعني څرنګه چي ذمیان زموږ (د مسلمانانو) امداد نه کوي، نو په دې وجه هم پر هغو جزیه واجب سوې ده. لکه مخکښي چي په دې هکله بحث وسوا وَقَدْ قَدَرَ عَلَيْهَا بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ او تر اسلام راوړلو وروسته هغه په خپله پر نصرت قادر سو وَالْعِصْمَةُ تَثْبُتُ بِكَوْنِهِ آدَمِيًّا او عصمت [حفاظت] خو د هغه د انسان کېدلو په وجه ثابت دی وَالذِّمِّيُّ يَسْكُنُ مِلْكَ نَفْسِهِ او ذمي د خپل ځان په ملکیت کي اوسیږي فَلَا مَعْنَى لِإِيجَابِ بَدَلِ الْعِصْمَةِ وَالسُّكْنَى لهذا د عصمت او سکونت په عوض کي د جزیې واجبولو لره هیڅ مطلب [او وجه] نسته.

**اللغات**: ﴿عصمة﴾ حفاظت، ساتنه. ﴿سكنى﴾ استوګنه، استوګه (اوسېدنه). سکونت. ﴿مُعوَّض﴾ د تفعیل له باب څخه د اسم مفعول صیغه ده: د کوم شي په بدله کي چي عوض ورکول سي، هغه شي ته "معوّض" وايي. ﴿اندفع﴾ د انفعال ماضي ده: لیري کېدل. ختمېدل. ﴿إيجاب﴾ د افعال مصدر دی: واجبول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی ذمي وي او پر هغه جزیه واجب وي. بیا اسلام راوړي. یا د کفر په حالت کي مړ سي، نو زموږ په دې دواړو صورتونو کي له هغه څخه جزیه ساقطیږي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نه د هغه د اسلام راوړلو په وجه جزیه ساقطیږي او نه د هغه د مړ کېدلو په وجه جزیه ساقطیږي.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي جزیه د ذمي د نفس او ځان د حفاظت (عصمت) یا په دارُ الاسلام کي د هغه د سکونت (اوسېدلو) د عوض او بدل په توګه وجب ده. او کله چي ذمي دارُ الاسلام ته راسي نو هغه ته خپل معوّض حاصلیږي یعني د هغه ځان هم محفوظه کیږي او هغه ته سکونت او استوګه هم حاصلیږي. لهذا کله چي هغه ته د عوض په بدله کي معوّض حاصل سو نو د مرګ یا د اسلام د پېښېدلو په وجه به دا عوض نه ساقطیږي. لکه څرنګه چي ذمي په اُجرت (کرایه) یو شی واخلي او له هغه څخه نفع حاصله کړي یا عمداً ناحقه قتل وکړي او د قتل په عوض کي پر مال صلح وکړي، نو د هغه په مراګ یا اسلام راوړلو سره په اُجرت یا صلح کي ټاکل سوی مال نه ساقطیږي. همداسي به په دې مسئله کي هم د مرګ یا اسلام په وجه له ذمي څخه جزیه نه ساقطیږي.

**زموږ دلیل**: دا حدیث دی "ليس على مسلم جزية" یعني پر مسلمان جزیه نسته. او څرنګه چي پر مسلمان ابتداءً جزیه لازمول کېدای نه سي نو ځکه به له دې حدیث څخه خامخا دا مرادیږي چي که ذمي اسلام راوړي نو پر هغه جزیه نسته. دویم دلیل دا دی چي جزیه پر کفر باندي د باقي پاتېدلو سزا

ده حالانکې تر اسلام راوړلو وروسته د کفر سزا ختميږي "لأن الاسلام يهدم ما كان قبله". او تر مرګ وروسته هم پر چا سزا جاري کېدای نه سي، همدارنګه په دنيا کې پر کافر ځکه سزا مقرروله کيږي چې د هغه شر دفع سي، او څرنګه چې د مرګ يا اسلام وجه دا شرط ختم سو او د جزيې د إيجاب مقصد حاصل سو. نو ځکه اوس د هغې د وجوب په باقي پرېښوولو کې هيڅ فايده نسته (نو ځکه به د هغې وجوب ساقطول کيږي او تر مرګ يا اسلام وروسته به جزيه نه واجبيږي).

د جزيې د اسقاط بل دليل دا دی چې پر ذمي د جزيې وجوب زموږ په حق کې د مدد او نصرت بدل دی. او د اسلام راوړلو په وجه ذمي او مَنْ كَانَتْ عَلَيْهِ الْجِزْيَة په خپله پر نصرت قادر سو، لهذا اوس به کار د أصل (نصرت) سره وي، نه د بدل سره: (ځکه پر اوبو چې انسان قادر سي، نو بيا د تيمم هيڅ ضرورت او روايښت نسته).

**والعصمة إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې جزيې ته د عصمت (حفاظت) بدل ويل صحيح نه دي. ځکه چې عصمت او سکونت په جزيه سره نه ثابتيږي، بلکې د آدميت او انسانيت په وجه ثابتيږي (يعني ذمي د انسان کېدلو په وجه په خپله محفوظ دی). همدرنګه ذمي په خپل ذاتي ملکيت کې استوګه او سکونت کوي (نه د بل چا په ملکيت کې). لهذا جزيه د عصمت او سکونت بدل ګرځول صحيح نه دي.

## په جزيه کې د تداخل بيان (او د علماؤ اختلاف)

وَإِنِ اجْتَمَعَتْ عَلَيْهِ الْحَوْلَانِ او که چيري پر يو ذمي د دوو کالو [جزيه] جمع سي تَدَاخَلَتْ نو په دواړو جزيو کې به تداخل کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَمَنْ لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ خَرَاجُ رَأْسِهِ حَتَّى مَضَتِ السَّنَةُ وَجَاءَتْ سَنَةٌ أُخْرَى او په جامع صغير کې [ذکر سوي] دي: چې له کوم ذمي څخه چې جزيه نه واخيستل سي تر دې چې کال تېر سي او بل کال راسي لَمْ يُؤْخَذْ نو له هغه څخه به [د تېر سوي کال] جزيه نه اخيستل کيږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: يُؤْخَذُ مِنْهُ او شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: له چې هغه څخه به [د تېر سوي کال] جزيه [هم] اخيستل کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی. وَإِنْ مَاتَ عِنْدَ تَمَامِ

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن نجيم المصري رَحِمَهُ الله : والأصح أنه إذا دخلت السنة الثانية سقطت جزية السنة الأولى، لأن الوجوب بابتداء الحول... إلخ (البحر الرائق ج:٢، ص:٥٩٦)، وكذا في الدر المختار (ج:٣، ص:٢٩٥). [القول الراجح ج: ١، ص:٢٩٤]

السَّنَةِ او كه د كال پوره كېدلو سره هغه مړ سي [يعني كه تر كال پوره كېدلو وروسته هغه ذمي مړ سي] لَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو له هغه څخه به د دوى ټولو په قول كي جزيه نه اخيستل كيږي وَكَذَلِكَ إِنْ مَاتَ فِي بَعْضِ السَّنَةِ او همدارنګه كه هغه د كال په يو حصه كي [يعني د كال په دوران كي] مړ سي [نو هم به جزيه نه ځني اخيستل كيږي] أَمَّا مَسْأَلَةُ الْمَوْتِ فَقَدْ ذَكَرْنَاهَا كوم چي د مرګ مسئله ده نو هغه موږ [مخكي] ذكر كړه وَقِيلَ: خَرَاجُ الْأَرْضِ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ او ويل سوي دي چي د ځمكي خراج هم پر دغه اختلاف دى وَقِيلَ: لَا تَدَاخُلَ فِيهِ بِالِاتِّفَاقِ او ويل سوي دي: چي د ځمكي په خراج كي به بالاتفاق [د ټولو په نيز] تداخل نه كيږي لَهُمَا: فِي الْخِلَافِيَّةِ أَنَّ الْخَرَاجَ وَجَبَ عِوَضًا په مختلف فيه مسئله كي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي خراج د عوض په توګه واجب سوى دى وَالْأَعْوَاضُ إِذَا اجْتَمَعَتْ وَأَمْكَنَ اسْتِيفَاؤُهَا او عوضونه چي كله سره جمع سي او د هغوى حاصلول [اخيستل] ممكن وي تُسْتَوْفَى نو هغوى به اخيستل كيږي وَقَدْ أَمْكَنَ فِيمَا نَحْنُ فِيهِ بَعْدَ تَوَالِي السِّنِينَ او په كومه مسئله كي چي موږ يو په هغه كي له څو پرلپسې كالو څخه وروسته هم [د جزيې] اخيستل ممكن دي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَسْلَمَ په خلاف د هغه صورت كله چي ذمي مسلمان سي لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ اسْتِيفَاؤُهُ ځكه چي [په هغه وخت كي] د هغه [جزيې] اخيستل مشكل وګرځي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا وَجَبَتْ عُقُوبَةً عَلَى الْإِصْرَارِ عَلَى الْكُفْرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي جزيه پر كفر باندي د ټينګار كولو [ټينګ پاتېدلو] په وجه د سزا په توګه واجب سوې ده عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لكه [مخكي] چي موږ د دې بيان وكړى وَلِهَذَا لَا يُقْبَلُ مِنْهُ لَوْ بَعَثَ عَلَى يَدِ نَائِبِهِ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَاتِ همدا وجه ده كه چيري ذمي د خپل نائب په لاس [جزيه] وراستوي نو په صحيح روايت كي به له هغه څخه [جزيه] نه قبلول كيږي بَلْ يُكَلَّفُ أَنْ يَأْتِيَ بِهِ بِنَفْسِهِ فَيُعْطِيَ قَائِمًا وَالْقَابِضُ مِنْهُ قَاعِدٌ بلكي هغه به په دې مكلف كيږي چي خپله يې راوړي او [او امام ته دي يې] په ولاړي وركړي او امام دي يې په ناسته ځني واخلي وَفِي رِوَايَةٍ: يَأْخُذُ بِتَلْبِيبِهِ وَيَهُزُّهُ هَزًّا وَيَقُولُ: أَعْطِ الْجِزْيَةَ يَا ذِمِّيُّ او په يوه روايت كي دي: چي امام دي هغه تر ګرېوان ونيسي او ودې يې ښوروي او داسي دي

ورته وواييږ: اې ذمي! جزيه راكړه! وَقِيْلَ: عَدُوَّالله او يو قول دا دى: چي [داسي دي ورته وواييږ] اې د الله دښمنه! فَثَبَتَ أَنَّهُ عُقُوبَةٌ نو ثابته سوه چي جزيه يو سزا ده وَالْعُقُوبَاتُ إِذَا اجْتَمَعَتْ تَدَاخَلَتْ كَالْحُدُودِ او سزاګاني چي كله سره جمع سي نو په هغوى كي تداخل كيږي لكه په حدونو كي [چي تداخل كيږي] وَلِأَنَّهَا وَجَبَتْ بَدَلًا عَنِ الْقَتْلِ فِي حَقِّهِمْ وَعَنِ النُّصْرَةِ فِي حَقِّنَا او ځكه چي جزيه د ذميانو په حق كي د قتل دعوض په توګه واجب سوې ده او زموږ په حق كي د نصرت دعوض په توګه واجب سوې ده [يعني جزيه د زميانو په حق كي د قتل عوض ده او زموږ په حق كي د نصرت عوض ده] كَمَا ذَكَرْنَا لكه [مخكي] چي موږ [دا خبره] ذكر كړه لٰكِنْ فِي الْمُسْتَقْبَلِ لَا فِي الْمَاضِي لېكن دا د مستقبل لپاره دي نه د ماضي لپاره [يعني د قتل او نصرت تعلق د مستقبل سره دى، نه د ماضي سره] لِأَنَّ الْقَتْلَ إِنَّمَا يُسْتَوْفَى لِحِرَابٍ قَائِمٍ فِي الْحَالِ لَا لِحِرَابٍ مَاضٍ ځكه چي قتل په هغه جنګ كي كيږي كوم چي فى الحاله موجود [شروع] وي، نه په تېر سوي جنګ كي [يعني جنګ چي كله تېر سي نو په هغه كي قتل كېداى نه سي، ځكه چي د ماضي دنده خو ختمه سوه] وَكَذَا النُّصْرَةُ فِي الْمُسْتَقْبَلِ همدارنګه نصرت هم د مستقبل سره متعلق دى لِأَنَّ الْمَاضِيَ وَقَعَتِ الْغُنْيَةُ عَنْهُ ځكه چي له ماضي څخه خو استغنا واقع سوه [يعني ځكه چي د ماضي دنده ختمه سوه. او له ماضي څخه استغناء او بې پروايي كيږي] ثُمَّ قَوْلُ مُحَمَّدٍ فِي الْجِزْيَةِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَجَاءَتْ سَنَةٌ أُخْرٰى حَمَلَهُ بَعْضُ الْمَشَايِخِ عَلَى الْمُضِيِّ مَجَازًا بيا په جامع صغير كي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: "وجاءت سنة أخرى" ځيني مشائخو [د دويم كال] پر تېرېدلو محمول كړى دى وَقَالَ: الْوُجُوبُ بِآخِرِ السَّنَةِ او فرمايلي يې دي: چي [د جزيې] وجوب د كال په آخري حصه كي كيږي فَلَابُدَّ مِنَ الْمُضِيِّ لِيَتَحَقَّقَ الِاجْتِمَاعُ فَتَتَدَاخَلَ لهذا د كال تېرېدل ضروري دي چي اجتماع ثابته سي او تداخل وكړى سي وَعِنْدَ الْبَعْضِ هُوَ مُجْرٰى عَلٰى حَقِيقَتِهِ او د ځيني مشائخو په نېز هغه پر خپل حقيقت محمول دى وَالْوُجُوبُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بِأَوَّلِ الْحَوْلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د كال په اوله حصه [شروع] كي وجوب كيږي [يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د كال په شروع كېدلو سره جزيه واجبيږي] فَيَتَحَقَّقُ الِاجْتِمَاعُ بِمُجَرَّدِ الْمَجِيءِ لهذا محض [د دويم كال] په راتللو سره به اجتماع ثابته سي

وَالْأَصَحُّ: أَنَّ الْوُجُوْبَ عِنْدَنَا فِي ابْتِدَاءِ الْحَوْلِ وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ فِي آخِرِهِ اعْتِبَارًا بِالزَّكَاةِ او صحيح خبره دا ده: چې زمونږ په نيز وجوب د کال په شروع کې دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د کال په آخر کې دی، پر زکاة باندې په قياسولو سره وَلَنَا: أَنَّ مَا وَجَبَ بَدَلًا عَنْهُ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا فِي الْمُسْتَقْبَلِ او زمونږ دليل دا دی: چې کوم شی د قتل په عوض کې واجب سوی دی [يعني جزيه] هغه فقط په مستقبل کې ثابتيږي عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ لکه مونږ چې دا [خبره] ثابته کړه فَتَعَذَّرَ إِيجَابُهُ بَعْدَ مُضِيِّ الْحَوْلِ لهذ تر کال تېرېدلو وروسته د هغه واجبول مشکل دي فَأَوْجَبْنَاهُ فِي أَوَّلِهِ نو ځکه مونږ د کال په اوله حصه [شروع] کې هغه واجب کړه.

**اللغات:** ﴿حول﴾ يو کال، ﴿تداخلت﴾ د تفاعل ماضي ده: يو په بل کې داخلېدل، يو تر بله سره ننوتل، ﴿خراج رأس﴾ د سر محصول، مراد ځني جزيه ده، ﴿أعواض﴾ جمع د عِوَض ده: بدل، هغه شی کوم چې يو چا ته د يو شي په بدله کې ورکول سي، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: حاصلول، ترلاسه کول، اخيستل، ﴿توالي﴾ د تفاعل مصدر دی: پرلپسې کېدل (پرلپسې والی)، ﴿تعذّر﴾ د تفعّل ماضي ده: مشکل کېدل، ناممکن کېدل، ﴿تلبيب﴾ گرېوان، جمع: تلابيب، ﴿يهزّه﴾ د نصر مضارع ده: په زروه ښورول، ﴿مستقبل﴾ حال او استقبال دواړو ته وايي (يعني اوسنی زمانه او را روانه زمانه [راتلونکې زمانه]).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري يو ذمي د يوه کال جزيه نه ورکړي تر دې چې هغه کال تېر سي او بل کال راسي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د دويم کال په راتلو سره په دواړو جزيو کې تداخل کيږي او پر هغه به فقط يوه جزيه واجب وي، لېکن د صاحبينو او د امام شافعي ﷺ په نيز چې کله دويم کال راسي او ختم سي نو په هغه وخت کې به پر هغه ذمي د دواړو کالو جزيه واجب وي يعني د دې حضراتو په نيز به تداخل نه کيږي، او که چيري ذمي د کال تر پوره کېدلو وروسته مړ سي نو زمونږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله ټولو په نيز به له هغه شخه جزيه نه اخيستل کيږي. د ځيني علماؤ رايه دا ده چې د خراج مسئله هم پر دغه اختلاف ده، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به په خراج کې هم تداخل کيږي لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به تداخل نه کيږي، او د ځيني حضراتو رايه دا ده چې په خراج کې به د يوه امام په نيز هم تداخل نه کيږي.

**لهما في الخلافية إلخ:** په مختلف فيه مسئله کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې جزيه د عوض په توگه واجب سوې ده (لکه مخکې چې مونږ ووېل)، او أعواض که چيري ډير جمع سي او د هغو اخيستل ممکن وي (يعني پر يوه ځای د أعواضو اخيستل او ترلاسه کول ممکن وي) نو هغوی به اخيستل کيږي او په هغوی کې به تداخل نه کيږي. او څرنگه په دې مسئله کې (له ذمي شخه) د دوو کالو جزيه اخيستل ممکن دي. نو ځکه به د هر، هر کال جزيه اخيستل کيږي، ها! که چيري ذمي مسلمان سي نو بيا به له هغه شخه جزيه نه اخيستل

کیږي، ځکه چي د مسلمان تعظیم او احترام کول واجب دي، حال دا چي جزیه ځني اخیستل د هغه توهین او سپکاوی دی.

**ولأبي حنيفة إلخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي جزیه په کفر باندي د پاتېدلو او پر کفر د ټینګار کولو سزا ده (همدا وجه ده چي جزیه به فقط له ذمي شخصه اخیستل کیږي او د هغه د نائب یا قاصد د لاس شخه به نه اخیستل کیږي)، او د سزا ګانو حکم دا دی چي که ډېري سزاګاني جمع سي نو په هغوی کي تداخل کیږي لکه څرنګه چي په حدّونو کي تداخل کیږي چي که یو سړی پر ډېرو خلګو تهمت ولګوي او پر هغه ډېر د قذف حدّونه واجب سي نو پر هغه به فقط یو حدّ جاري کیږي او په حدّونو کي به تداخل کیږي، او څرنګه چي جزیه هم سزا ده نو د جزیو د جمع کېدلو په وخت کي به هم تداخل کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دویم دلیل دا دی چي جزیه د ذمیانو په حق کي د نه قتلولو عوض ده او زموږ په حق کي د نصرت نه کولو عوض او بدل ده یعني هغوی زموږ نصرت او مدد نه کوي او موږ جزیه ځني اخلو او هغوی نه قتل کوو، او د قتل او نصرت تعلق د مستقبل سره دی نه د تیري سوي زمانې (ماضي) سره، ځکه چي په وخت تېرېدلو سره په ماضي کي له واقع سوي فعل شخه استغناء او بې پروایي منځ ته راځي، لهذا په دې حواله سره به هم د تېرسوي وخت په جزیو کي تداخل کیږي.

**ثم قول محمد إلخ**: امام محمد رَحِمَهُ الله چي په جامع صغیر کي کوم قول ذکر کړی دی یعني "وجائت سنة أخرى"، له دې شخه د ځیني مشائخو په نیز د دویم کال تېرېدل مراد دي او د ځینو په نېز د دویم کال راتلل مراد دی او همدا د أحنافو په نېز صحیح هم دي چي د جزیې نفسِ وجوب د کال په اوله حصه کي دی (یعني د کال په شروع کي جزیه واجبیږي)، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا وجوب د کال په آخري حصه کي دی لکه په زکاة کي چي هم د کال په آخري حصه کي وجوب راځي. زموږ دلیل دا دی چي جزیه بدل عن القتل والنصرة ده، او بدل فقط په مستقبل کي ثابتیږي، ځکه چي تر کال تېرېدلو وروسته بیرته هغه کال ماضي جوړیږي حال دا چي له ماضي شخه استغناء او بې پروایي کیږي، نو ځکه موږ په مستقبل کي هغه واجب کړې ده او د مستقبل تحقق او ثبوت د کال له شروع شخه کیږي. او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي هغه پر زکاة قیاسوي دا صحیح نه دي، ځکه چي د زکاة لپاره حولان حول شرط دی، او حول (کال) پر څلورو فصلونو او موسمونو مشتمل وي، نو ځکه زکاة مجبوراً او د ضرورت پر بناء د کال په آخري حصه کي واجب سوی دی. والله أعلم



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ مَا يَجُوْزُ لَهُمْ أَنْ يَّفْعَلُوْا)

(دا) فصل (په بيان کې د هغو کارو دی کوم چې [د سکنۍ په هکله] ذمیانو لره جائز) دي

## په دارُ الاسلام کي کليسا او داسي نور جوړول

وَلَا يَجُوْزُ إِحْدَاثُ بِيعَةٍ وَلَا كَنِيْسَةٍ فِيْ دَارِ الْإِسْلَامِ او په دارُ الاسلام کي ګرجا او کليسا جوړول جائز نه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : لَا خِصَاءَ فِي الْإِسْلَامِ وَلَا كَنِيْسَةَ ځکه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: په اسلام کي خسي کېدل او کليسا نسته وَالْمُرَادُ إِحْدَاثُهَا او له دې څخه مراد له نوي سره د کليسا جوړول دي وَإِنْ انْهَدَمَتِ الْبِيَعُ وَالْكَنَائِسُ الْقَدِيْمَةُ او که چيري ګرجا او پخوانۍ کليسا ونړيږي أَعَادُوْهَا نو ذميان هغه دويم ځل [دوباره] جوړولای سي لِأَنَّ الْأَبْنِيَةَ لَا تَبْقٰى دَائِمًا ځکه چي عمارتونه [ودانۍ] همشه نه پاتيږي وَلَمَّا أَقَرَّهُمُ الْإِمَامُ فَقَدْ عَهِدَ إِلَيْهِمُ الْإِعَادَةَ او کله چي امام ذميانو ته [په دارُ الاسلام کي] د اوسېدلو اختيار ورکړي نو هغه [ګواکي] د دوی سره [د کليسا او داسي نورو] د دوباره جوړولو عهد هم وکړی إِلَّا أَنَّهُمْ لَا يُمَكَّنُوْنَ مِنْ نَقْلِهَا خو ذميانو ته به د کليسا [او داسي نورو] د نقل کولو قدرت [اجازه] نه ورکول کيږي لِأَنَّهُ إِحْدَاثٌ فِي الْحَقِيْقَةِ ځکه چي نقل کول په حقيقت کي له نوي سره جوړول دي وَالصَّوْمَعَةُ لِلتَّخَلِّيْ فِيْهَا بِمَنْزِلَةِ الْبِيعَةِ او صومعه [ديره] کوم چي د ګوښه ناستې لپاره وي هغه د ګرجې [او کليسا] په درجه کي ده بِخِلَافِ مَوْضِعِ الصَّلَاةِ فِي الْبَيْتِ په خلاف د هغه ځای کوم چي په کور کي د لمانځه لپاره [جوړ کړی سي] لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلسُّكْنٰى ځکه چي هغه د استوګې [او مسکن] تابع دی وَهٰذَا فِي الْأَمْصَارِ دُوْنَ الْقُرٰى او دا [أحکام] په ښارونو کي دي، نه په أطرافو کي [قرٰی جمع د قرية ده، قرية هغه کلي ته وايي کوم چي د ښار په أطرافو يعني د صحرا په سيمه کي

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب السنن الكبرىٰ ج:١ ص:٤١

وي، چې هغه ته زموږ په اصطلاح أطراف يا صحرا وايي] لِأَنَّ الْأَمْصَارَ هِيَ الَّتِي تُقَامُ فِيهَا الشَّعَائِرُ ځکه چې ديني شعائر په ښارونو کې تر سره کيږي فَلَا تُعَارَضُ بِإِظْهَارِ مَا يُخَالِفُهَا لهذا په أطرافو کې د دې [کليسا او داسې نورو] ځرګندول [او جوړول] به د ديني شعارئو مخالف نه وي وَقِيلَ: فِي دِيَارِنَا يُمْنَعُونَ مِنْ ذٰلِكَ فِي الْقُرٰى أَيْضًا او ويل سوي دي: چې زموږ په علاقو کې به هم ذميان په أطرافو کې له دې کار څخه منع کول کيږي لِأَنَّ فِيهَا بَعْضَ الشَّعَائِرِ ځکه چې په أطرافو کې [هم] ځينې شعائر موجود وي وَالْمَرْوِيُّ عَنْ صَاحِبِ الْمَذْهَبِ فِي قُرَى الْكُوفَةِ او د مذهب له خاوند [يعني له امام صاحب رَحِمَهُ الله] څخه روايت سوی دی چې د کوفې په أطرافو کې جائز دي لِأَنَّ أَكْثَرَ أَهْلِهَا أَهْلُ الذِّمَّةِ ځکه چې د هغه زياتره اوسېدونکي ذميان دي وَفِي أَرْضِ الْعَرَبِ يُمْنَعُونَ مِنْ ذٰلِكَ فِي أَمْصَارِهَا وَقُرَاهَا او د عربو په ځمکه کې به ذميان له دې کار څخه په ښارونو او أطرافو دواړو کې منع کول کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: لَا يَجْتَمِعُ دِينَانِ فِي جَزِيرَةِ الْعَرَبِ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: د عربو په جزيره [ځمکه] کې دوه دينونه سره يو ځای کېدای نه سي.

**اللغات**: ﴿إحداث﴾ د افعال مصدر دی: نوې جوړول، نوي پيدا کول. ﴿بيعة﴾ د عيسايانو او يهوديانو معبد (عبادتځی)، د کفارو معبد. ﴿کنيسة﴾ کليسا، د عيسايانو معبد (لغتپوهانو په دې کې اختلاف کړی دی، ځينې لغتپوهانو يې د دې برعکس معنیٰ کړې ده). ﴿صومعه﴾ هغه کوچنۍ حجره کوم چې يې راهب په يو ګوښه ځای کې د ځانله عبادت کولو لپاره جوړوي. ديره. ﴿خصاء﴾ خصي کېدل، خسي کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې په دارُ الاسلام کې کوم ذميان اوسيږي د هغو لپاره په دارُ الاسلام کې کنيسه او بيعه جوړول جائز نه دي؛ ځکه چې په حديث کې په ښکاره توګه دا خبره ذکر سوې ده چې په اسلام کې نه خسي کول جائز دي او نه کنيسه جوړل جائز دي؛ او په حديث کې د خصاء او کنيسه حکم ځکه يو ځای بيان سوی دی چې له نبي کريم ﷺ څخه دوو خلګو پر يوه ځای د خصاء او کنيسه په هکله پوښتنه وکړه، او نبي کريم ﷺ هم غالباً پر يوه ځای دواړو ته جواب

---

[2] تخريج: مصنف عبد الرزاق، باب إجلاء اليهود من المدينة ج:٦، ص:٤٤، رقم: ٢٧٨٢.

ورکړي. (بناية ج: ۶، ص: ۶۸۳)، هو! که چېرې له مخکې څخه د یهودیانو او عیسایانو معبد (عبادتځی) موجود وي او نړېدلی وي نو د هغه بیا جوړول (ترمیمول) او لاس پکښې وهل جائز دي: ځکه چې دا ښکاره خبره ده چې هیڅ ودانۍ او عمارت د همېشه لپاره پر خپل حال نه پاتېږي او په هغه کې خامخام جوړښت او ترمیم ته ضرورت پیښېږي، او بل دا چې کله امام ذمیانو ته په دارُ الاسلام کې د اوسېدلو اجازه ورکړي نو د اجازې په ضمن کې دا عهد (او تړون) هم راځي چې هغو ته به خپل پخواني معبدونه ورکول کیږي "لأنا أُمِرنا بترکهم وما یدینون". خو د نوي معبدونو د جوړښت اجازه به نه ورکول کیږي او نه به دا اجازه ورکول کیږي چې پخوانی معبد بل ځای ته نقل کړي. ځکه چې نقل هم په حقیقت کې إحداث دی. او په حدیث کې له إحداث څخه منع سوې ده..

**والصومعه**: فرمايي هغه عبادتځای کوم چې یې راهبان له خلګو څخه د ګوښه کېدلو او ځانله عبادت کولو لپاره جوړوي د هغه حکم هم د کنیسه او بیعه د حکم په څیر دی یعني له نوي سره د هغه جوړول جائز نه دي لېکن ترمیم پکښې کېدای سي. همدارنګه که یو ذمي په خپل کور کې د لمانځه او عبادت لپاره یو ځای متعین او جوړ کړي نو دا هم جائز دي: ځکه چې دا د هغه د خپل مکان او مسکن تابع دي، او هغه ته په خپل مکان کې د هر څه جوړولو اختیار سته.

**وهذا في الأمصار إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چې د ممانعت دا حکم د ښارونو سره متعلق دی او د ښار په أطرافو کې د دې هیڅ ممانعت نسته، ځکه چې په ښارو کې اسلامي شعائر موجود وي. لهذا د ښار په أطرافو او د صحرا په سیمو کې به ذمیان له کنیسه او بیعه جوړولو څخه نه منع کیږي. لېکن د علامه شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې زموږ په علاقو کې به ذمیان په أطرافو کې هم له دې کار څخه منع کیږي. ځکه چې په أطرافو کې هم اسلامي شعائر مثلاً أذان، د جماعت لمونځ او داسي نور موجود وي. لېکن له امام صاحب څخه رَحِمَهُ الله روایت سوی دی چې د کوفې په أطرافو کې به ذمیان له دې څخه نه منع کیږي. ځکه چې د کوفې په أطرافو کې ذمیان زیاتره آباد دي او هلته مسلمانان کم دی او اسلامي شعائر هم کې دی. لهذا هلته د دې کار په جائز ګرځولو کې هیڅ حرج نسته. هو! د عربو په ځمکه کې به هیڅ ځای هم د دې اجازه نه ورکول کیږي هغه که ښار وي او که أطراف. ځکه په حدیث کې ذکر سوي دي: "لا یجتمع دینان في جزیرة العرب".

## په دارُ الاسلام کي د ذميانو د اوسېدلو طور او طريقې

قال: وَيُؤْخَذُ أَهْلُ الذِّمَّةِ بِالتَّمَيُّزِ عَنِ الْمُسْلِمِينَ فِي زِيِّهِمْ وَمَرَاكِبِهِمْ وَسُرُوجِهِمْ وَقَلَانِسِهِمْ فرمايي: چي ذميانو ته به دا حکم کيږي [او بنديز به پر لګول کيږي] چي هغوی په خپل طرز [کړه وړه] او په خپلو سپارليو، په خپلو زينانو او په خپلو خوليو کي له مسلمانانو څخه توپير [او امتياز] راولي فَلَا يَرْكَبُونَ الْخَيْلَ وَلَا يَعْمَلُونَ بِالسِّلَاحِ نو هغوی دي پر آسونو نه سپرېږي او نه دي وسله استعمالوي [يعني نه دي وسله ګرځوي] وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَيُؤْخَذُ أَهْلُ الذِّمَّةِ بِإِظْهَارِ الْكُسْتِيجَاتِ وَالرُّكُوبِ عَلَى السُّرُوجِ الَّتِي هِيَ كَهَيْئَةِ الْأُكُفِ او په جامع صغير کي دي: چي ذميانو ته به دا حکم کيږي چي خپلي پټياني وتړي او پر هغه زينانو سپاره سي کوم چي د ځل په څېر وي وَإِنَّمَا يُؤْخَذُونَ بِذَلِكَ إِظْهَارًا لِلصَّغَارِ عَلَيْهِمْ وَصِيَانَةً لِضَعَفَةِ الْمُسْلِمِينَ او دوی ته به ځکه د دې حکم کيږي چي پر دوی خپل تيټوالی [ذلت] څرګند سي [يعني دوی ته خپل رذالت ښکاره سي] او چي کمزوري مسلمانان له هغو څخه محفوظ سي وَلِأَنَّ الْمُسْلِمَ يُكْرَمُ وَالذِّمِّيَّ يُهَانُ او ځکه چي د مسلمان إکرام [عزت] کيږي او د ذمي سپکاوی کيږي وَلَا يُبْتَدَأُ بِالسَّلَامِ وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ الطَّرِيقُ او په سلام سره به [ذمي ته] شروع نه کيږي او پر هغه به لاره تنګول کيږي فَلَوْلَمْ تَكُنْ عَلَامَةٌ مُمَيِّزَةٌ فَلَعَلَّهُ يُعَامَلُ مُعَامَلَةَ الْمُسْلِمِينَ لهذا که يو توپير کونکی علامت [نښاني] نه وي نو کېدای سي چي د ذمي سره هم د مسلمانانو په څېر معامله [او چلند] وسي وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ حالانکي دا جائز نه دي وَالْعَلَامَةُ يَجِبُ أَنْ يَكُونَ خَيْطًا غَلِيظًا مِنَ الصُّوفِ يَشُدُّهُ عَلَى وَسَطِهِ دُونَ الزُّنَّارِ مِنَ الْإِبْرَيْسَمِ او علامت دا دی چي ذمي پر خپل مينځ [يعني پر خپله ملا] له وړی څخه جوړيو پنډ تار وتړي لېکن هغه به د وريښمو مزی نه وي فَإِنَّهُ جَفَاءٌ فِي حَقِّ أَهْلِ الْإِسْلَامِ ځکه چي دا د مسلمانانو په حق کي ظلم دی وَيَجِبُ أَنْ يَتَمَيَّزَ نِسَاؤُهُمْ عَنْ نِسَائِنَا فِي الطُّرُقَاتِ وَالْحَمَّامَاتِ او دا هم ضروري دي چي د ذميانو ښځي به د مسلمانانو ښځو د لارو او غسلخانو څخه جلا [او ليري] اوسي وَيُجْعَلُ عَلَى دُورِهِمْ عَلَامَاتٌ كَيْ لَا يَقِفَ عَلَيْهَا سَائِلٌ يَدْعُو لَهُمْ بِالْمَغْفِرَةِ او د ذميانو پر کورو به نښانياني کښل کيږي [يعني د هغو کورونه به نښاني کيږي] د دې لپاري چي يو غوښتونکی [فقير] د هغو پر دروازه نه ودرېږي چي هغو ته د بخښني دعاء وکړي

قَالُوا: الْأَحَقُّ أَنْ لَا يُتْرَكُوا أَنْ يَرْكَبُوا إِلَّا لِلضَّرُورَةِ مشائخو فرمايلي دي: غوره دا ده چې بېله ضرورت ته دي هغو ته د سپرېدلو اجازه نه ورکول کيږي وَإِذَا رَكِبُوا لِلضَّرُورَةِ فَلْيَنْزِلُوا فِي مَجَامِعِ الْمُسْلِمِينَ او کله چې د ضرورت په وجه هغوی سپاره سي نو چيرې چې د مسلمانانو مجمع وي هلته دي شوه کيږي فَإِنْ لَزِمَتْهُ ضَرُورَةٌ اتَّخَذُوا سُرُوجًا بِالصِّفَةِ الَّتِي تَقَدَّمَتْ او که چيرې [اسپرېدلو ته] لازمي ضرورت وي نو هغوی دي د ځل په څير زينونه جوړ کړي وَيُمْنَعُونَ مِنْ لِبَاسٍ يَخْتَصُّ بِهِ أَهْلُ الْعِلْمِ وَالزُّهْدِ وَالشَّرَفِ او هغوی به له داسي کاليو څخه منع کيږي کوم چې د علماء، بزرگانو او د شريفو خلکو سره خاص وي.

**اللغات**: ﴿زِيّ﴾ شکل، طرز، کړه وړه. ﴿سروج﴾ جمع د سرج ده: زين. ﴿قلانس﴾ جمع د قلنسوة ده: خولی، رخچينه. ﴿أُكُف﴾ د خره او غاطري ځل. ﴿كستيجات﴾ جمع د كُسْتِيْجَةٌ ده: د کوتي په څير پنډه پټۍ (مزی) کوم چې به ذميانو د خپلو کاليو د پاسه تړې، مذهبي علامتي تار. ﴿غليظ﴾ پنډ. ﴿زنّار﴾ هغه تار او پټۍ کوم چې يې هندوان او داسي نور د نکتايۍ په څير پر خپلو غاړو ځړوي.

**تشريح**: په دې ټوله عبارت کې دا مسئله ذکر سوې ده چې ذميان به په دارُ الاسلام کې په کوم طرز او طريقه سره اوسيږي او تر کومو اُصولو او قوانينو لاندي به ژوند تېروي، نور عبارت واضح او ښرګند دی، تشريح ته ضرورت نه لري، او مشکل الفاظ د "اللغات" په ضمن کې تشريح سول.

## د ذمي د جرائمو سزا

وَمَنِ امْتَنَعَ مِنَ الْجِزْيَةِ او کوم ذمي چې له جزيې څخه انکار وکړي أَوْ قَتَلَ مُسْلِمًا يا يو مسلمان قتل کړي أَوْ سَبَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ يا نبي کريم ﷺ ته ښکنځا وکړي أَوْ زَنَى بِمُسْلِمَةٍ يا د مسلماني ښځي سره زنا وکړي لَمْ يُنْتَقَضْ عَهْدُهُ نو د هغه عهد به نه ماتيږي [يعني د هغه أمان به نه ختميږي] لِأَنَّ الْغَايَةَ الَّتِي يَنْتَهِي بِهَا الْقِتَالُ الْتِزَامُ الْجِزْيَةِ لَا أَدَاؤُهَا ځکه هغه غايت چې په هغه سره قتال منع کيږي پر ځان د جزيې لازمول دي، نه د جزيې اداء کول وَالِالْتِزَامُ بَاقٍ او التزام [اوس هم] پاته دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: سَبُّ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَكُونُ نَقْضًا امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نبي کريم ﷺ ته ښکنځا کول د عهد ماتول دي لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ مُسْلِمًا يَنْقُضُ إِيمَانَهُ ځکه که چيرې ښکنځا کونکی يو مسلمان

وي نو د هغه ايمان ختميږي فَكَذَا يَنْتَقِضُ أَمَانُهُ نو همداسي به د ذمي عهد هم [په سبّ او شتم سره] ختميږي إِذْ عَقْدُ الذِّمَّةِ خَلَفٌ عَنْهُ ځکه چې عقد ذمه د ايمان خيفه [بدل] دی وَلَنَا: أَنَّ سَبَّ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ كُفْرٌ مِنْهُ زموږ دليل دا دی: چې نبي کريم ﷺ ته ښکنځا کول کفر دی وَالْكُفْرُ الْمُقَارِنُ لَا يَمْنَعُهُ فَالطَّارِئُ لَا يَرْفَعُهُ او هغه کفر کوم چې د عقد ذمه [او عهد] سره متصل وو هغه د ده له ذمي والي څخه مانع نه دی نو طاري [اوسنی] کفر به هم د هغه عقد ذمه [او عهد] نه ماتوي قال: وَلَا يُنْتَقَضُ الْعَهْدُ إِلَّا أَنْ يَلْحَقَ بِدَارِ الْحَرْبِ أَوْ يَغْلِبُوا عَلَى مَوْضِعٍ فَيُحَارِبُونَنَا فرمايي: چې د ذمي عهد به نه ماتيږي مګر دا چې هغه دارُ الحرب ته ولاړ سي يا ذميان پر يو ځای غلبه [او قبضه] وکړي او زموږ سره جنګ شروع کړي لِأَنَّهُمْ صَارُوا حَرْبًا عَلَيْنَا ځکه چې [په دې صورت کې] هغوی زموږ په خلاف جنګ کونکي وګرځېدل فَيَعْرَى عَقْدُ الذِّمَّةِ عَنِ الْفَائِدَةِ وَهُوَ دَفْعُ شَرِّ الْحِرَابِ نو عقد ذمه به له خپلې فايدې څخه خالي سي چې هغه د جنګ شر ختمول دي وَإِذَا نَقَضَ الذِّمِّيُّ الْعَهْدَ او کله چې ذمي عهد مات کړي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُرْتَدِّ نو هغه به د مرتد په درجه کې وي مَعْنَاهُ فِي الْحُكْمِ بِمَوْتِهِ بِاللَّحَاقِ يعني هغه به د مرتد په حکم کې وي چې دارُ الحرب ته په تللو سره به د هغه دمرګ فيصله کيږي لِأَنَّهُ الْتَحَقَ بِالْأَمْوَاتِ ځکه چې هغه د مړو سره يو ځای سو وَكَذَا فِي حُكْمِ مَا حَمَلَهُ مِنْ مَالِهِ همدارنګه هغه چې کوم مال د ځان سره يووسي هغه به هم د مرتد د مال په حکم کې وي إِلَّا أَنَّهُ لَوْ أُسِرَ يُسْتَرَقُّ بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ لېکن که هغه قيد کړی سي نو غلام به ګرځول کيږي، په خلاف د مرتد.

**اللغات**: ﴿امتنع﴾ د افتعال ماضي ده: منع کېدل، انکار کول، ﴿سبّ﴾ ښکنځا، ښکنځل، بد ورد، ﴿عهد﴾ وعده، تړون، قول، ژمنه، عهد او پيمان، ﴿الغاية﴾ آخري خبره، انتهاء، ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول، په خپله غاړه اخيستل، ﴿يسترق﴾ د استفعال له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده: غلام جوړول، غلام ګرځول،

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو ذمي له جزيې ورکولو څخه انکار وکړي يا يو مسلمان قتل کړي يا نعوذ بالله نبي کريم ﷺ ته ښکنځا او بد ورد ووايي يا د يوې مسلماني ښځي سره زنا وکړي، نو د دې جرائمو په وجه به د هغه عقد ذمه نه ماتيږي او د هغه أمان به نه ختميږي، بلکي باقي به پاته وي: ځکه چې عهد په جنګ کولو سره ماتيږي (چې ذمي د مسلمانانو سره جنګ شروع کړي)، يا هغه د أمان پ

وخت کي يو شرط لګولی وي او د هغه مخالفت وکړي، نو په دې سره عهد ماتيږي. او دلته هغه داسې نه دي کړي؛ ليکن د دې جرمو سزا به ورکول کيږي، مثلاً که جزيه نه اداء کوي نو جزيه به ځني اخيستل کيږي، او د مسلمان د قتل په بدله کې به هغه هم قتل کيږي، او نبي ﷺ ته د ښکنځا کولو په وجه به هغه مباحُ الدم ګرځي، او د مسلماني ښځې سره د زنا کولو په وجه به هغه د حدّ زنا مستحق وي.

لأن الغاية دا عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې له قتال څخه چې کوم شی مانع هغه دی هغه د جزيې لازمول دي نه د جزيې اداء کول، يعني د مسلمانانو له طرفه د ذمي سره جنګ کول او د هغه قتلول په دې وجه منع سوي وو. چې هغه د جزيې ورکول قبول کړي، او هغه د جزيې ورکول قبول کړه که څه هم نه يې ورکوي او انکار ځني وي، نو ځکه به اوس د هغه عهد نه ماتيږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په نورو جرائمو سره به د هغه عهد نه ماتيږي. ليکن که هغه بلبخته نبي کريم ﷺ ته بد ورد ووايي نو د هغه عهد به د هغه پر مخ وهل کيږي، ځکه که يو مسلمان داسې ناوړه حرکت کوي نو د هغه ايمان سلبيږي، لهذا کله چې يو کافر ذمي داسې ګستاخي وکړي نو د هغه به هم عهد او أمان ختميږي؛ ځکه چې عقدِ ذمه د ايمان بدل دی. زموږ دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ ته بد ورد ويل کفر دی، حالانکي د ذمي کفر دعقدِ ذمه له جواز څخه مانع نه دی ځکه چې هغه د همدغه کفر په حالت کي ذمي جوړيږي (يعني دعقدِ ذمه د کفر سره خاص دی)، نو کله چې ابتدائي کفر له ذميت څخه مانع نه دی نو طاري (او باقي) کفر به دعقدِ ذمه ختمونکی نه وي "لأن البقاء أسهل من الابتداء".

قال: ولاينتقض إلخ: فرمايي که چيري ذمي دارُ الحرب ته ولاړ سي يا ذميان پر يو ځای قبضه وکړي او پر مسلمانانو حمله وکړي نو د دوی عهد وأمان ختميږي، ځکه چې په داسې کولو سره به هغوی زموږ په خلاف جنګ کونکي وګرځي او دعقدِ ذمه مقصد او د هغه منفعت يعني "دفع شرّ الحراب" به فوت سي.

او تر عهد ماتولو وروسته به د ذمي نفس او د هغه مال د مرتد د نفس او مال په حکم کي وي. ځکه چې هغه دارُ الحرب ته ولاړی او د کفارو سره يو ځای سو کوم چې يو ړول مړه دي، او که چيري د هغه ښځه په دارُ الاسلام کي وي نو د مرتد د ښځي په څير هغه هم بائنه ګرځي. همدارنګه که مسلمانان پر دارُ الحرب غالب سو نو د هغه أموال به غنيمت وي. ليکن د دې ذمي او مرتد په مينځ کي به فرق دا وي چې ذمي به تر نيولو وروسته غلام ګرځول کيږي ليکن مرتد غلام نه سي جوړېدای. بلکي هغه ته به فقط دوه اختياره وي: ① يا به اسلام قبلوي ② يا به قتل ته ځان تياروي.



# فَصْلٌ (فِيْ أَحْكَامِ نَصَارىٰ بَنِيْ تَغْلَبَ)

(دا) فصل (د بنو تغلب د نصارىٰ وو د أحكامو په بيان کي) دى

**تشريح**: د بنو تغلب أحكامو له نورو نصارىٰ وو څخه مختلف دي، نو په دې وجه د هغوى أحکام په جلا فصل کي بيانيږي.

## د بنو تغلب د جزيې مقدار

وَنَصَارىٰ بَنِي تَغْلِبَ يُؤْخَذُ مِنْ أَمْوَالِهِمْ ضِعْفُ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ مِنَ الزَّكَاةِ او د بنو تغلب د نصارىٰ وو له مالونو څخه به هغومره دوچنده اخيستل کيږي څومره چي له مسلمانانو څخه په زکاة کي اخيستل کيږي [زموږ د جمهورو علماؤ په نيز] لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صَالَحَهُمْ عَلَىٰ ذٰلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ ځکه چي حضرت عمر رضي الله عنه د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په حضور کي پر همدغه مقدار د هغو سره صلح کړې وه وَيُؤْخَذُ مِنْ نِسَائِهِمْ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْ صِبْيَانِهِمْ او د هغو له ښځو څخه به [هم] اخيستل کيږي [ليکن] د هغو له کوچنيانو څخه به نه اخيستل کيږي لِأَنَّ الصُّلْحَ وَقَعَ عَلَى الصَّدَقَةِ الْمُضَاعَفَةِ ځکه چي صلح پر دوچنده صدقه واقع سوې وه وَالصَّدَقَةُ تَجِبُ عَلَيْهِنَّ دُوْنَ الصِّبْيَانِ او صدقه [فقط] پر ښځو واجبيږي، نه پر کوچنيانو فَكَذَا الْمُضَاعَفُ لهذا مضاعف [دوچنده مال] به هم [فقط] پر ښځو واجبيږي. وَقَالَ: زُفَرُ ●: لَا يُؤْخَذُ مِنْ نِسَائِهِمْ أَيْضًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغو له ښځو څخه به هم نه اخيستل کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى لِأَنَّهُ جِزْيَةٌ فِي الْحَقِيْقَةِ ځکه چي دا په حقيقت کي جزيه ده عَلَىٰ مَا قَالَ عُمَرُ: هٰذِهِ جِزْيَةٌ فَسَمُّوْهَا مَا شِئْتُمْ لکه څرنګه چي حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي وو: دا جزيه ده! تاسي چي کوم نوم غواړئ! هغه پر کښېږدئ! وَلِهٰذَا تُصْرَفُ مَصَارِفَ الْجِزْيَةِ همدا وجه ده چي هغه د جزيې په مصارفو کي خرچول کيږي وَلَا جِزْيَةَ عَلَى النِّسْوَانِ او پر ښځو جزيه نسته وَلَنَا: أَنَّهُ مَالٌ وَجَبَ بِهِ الصُّلْحُ زموږ دليل دا دى:

● القول الراجح: قول الجمهور، كما ذكر في الدر المختار (ج:٣، ص:٣٠٦). [القول الراجح ج:١، ص:٤٩٥]

چي دا يو داسي مال دى كوم چي د صلحي په ذريعه واجب سوى دى وَالْمَرْأَةُ مِنْ أَهْلِ وُجُوبِ مِثْلِهِ عَلَيْهَا او ښځه د دې خبري أهل ده چي پر هغې داسي مال واجب كړى سي وَالْمَصْرِفُ مَصَالِحُ الْمُسْلِمِينَ او [د دې مال] مصرف د مسلمانانو مصالح دي [يعني دا مال به د مسلمانانو د ښېګڼي په كارو كي خرڅول كيږي] لِأَنَّهُ مَالُ بَيْتِ الْمَالِ ځكه چي دا د بيتُ المال مال دى وَذٰلِكَ لَا يَخْتَصُّ بِالْجِزْيَةِ او دا مصرف د جزيې سره خاص نه دى أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يُرَاعَىٰ فِيهِ شَرَائِطُهَا آيا ته نه ګورې! چي په دې كي د جزيې د شرطونو رعايت نه كيږي.

**اللغات**: ﴿ضعف﴾ دوچنده، ﴿محضر﴾ حضور، موجوديت (موجودګي)، ﴿سمّوها﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع مذكر امرِ حاضر صيغه ده: نوم ايښوول، نومول. ﴿تُصرف﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: صرفول، خرڅول. ﴿مصالح﴾ جمع د مصلحة ده: د ښېګڼي كارونه.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دى چي د بنو تغلب له نصارىٰ وو څخه چي كومه جزيه اخيستل كيږي، د هغه مقدار به د زكاة له مال څخه دوچنده وي، يعني له هغو څخه به په هرو سلو درهمو كي پنځه درهمه اخيستل كيږي؛ ځكه كله چي حضرت عمر ﷺ د بنو تغلب پر نصارىٰ وو جزيه لازم كړه، نو هغوى له دې څخه انكار وكړى او ويې ويل چي تاسو زموږ څخه د زكاة په اندازه مال واخلئ!، نو حضرت عمر ﷺ وفرمايل: "لا آخُذُ الصّدقة من مشرك" (زه له مشرك څخه صدقه نه اخلم). نو په دې وخت كي نعمان بن زرعه ﷺ وويل: اې اميرالمؤمنين! "خُذ منهم الصدقة بإسم الجزية" (يعني له هغو څخه د جزيې په نامه صدقه واخله!)، نو حضرت عمر ﷺ پر هغو د صدقې دوچنده مال مقرر كړى(بنايه)، او دا مال به د هغو له ښځو څخه هم اخيستل كيږي ليكن له بچيانو څخه به يې نه اخيستل كيږي، ځكه چي صلح پر دوچنده صدقه واقع سوې وه او صدقه پر ښځو واجب ده ليكن بچيان له دې وجوب څخه مستثنىٰ دي.

د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به له ښځو څخه هم جزيه نه اخيستل كيږي، ځكه چي دا په حقيقت كي جزيه ده او پر ښځو جزيه نسته. همدا وجه ده چي دا مال د جزيې په مصارفو كي خرڅول كيږي.

زموږ دليل دا دى چي دا د صلحي په نتيجه كي حاصلېدونكى مال دى او د صلحي مال پر ښځو هم واجبيږي. او دا خبره چي "دا مال د جزيې په مصارفو كي خرڅول كيږي" صحيح نه ده، ځكه

چي دا مال د مسلمانانو په فايدو او مصالحو کي خرچول کيږي. او دا مصالح د جزيې د أموالو سره خاص نه دي، بلکي په دوی کي هر ډول أموال مثلاً خراج او داسي نور ټول وي. همدا وجه ده چي دا مال د نائب په ذريعه هم اخيستل کيږي او په دې کي دا هم شرط نه دي چي ورکونکي (مُعطي) به يې په ولاړي ورکوي حالانکي په جزيه کي د دې شرطونو رعايت کيږي. له دې څخه هم معلومه سوه چي دا د صلحي مال دی، د جزيې مال نه دی.

## د بنو تغلب د آزاد کړل سوو غلامانو حکم

وَيُوضَعُ عَلَى مَوْلَى التَّغْلِبِيِّ الْخَرَاجُ أَيْ الْجِزْيَةُ وَخَرَاجُ الْأَرْضِ بِمَنْزِلَةِ مَوْلَى الْقُرَشِيِّ او د هاشمي آزاد کړی سوي غلام په څېر به د بنو تلغب پر آزاد کړی سوي غلام هم جزيه او خراج مقررول کيږي وَقَالَ زُفَرُ ●: يُضَاعَفُ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: إِنَّ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له هغه څخه به دوچنده اخيستل کيږي، ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي د يو قوم آزاد کړی سوی غلام له هغو څخه دی أَلَا تَرَى أَنَّ مَوْلَى الْهَاشِمِيِّ يَلْحَقُ بِهِ فِي حَقِّ حُرْمَةِ الصَّدَقَةِ آيا ته نه ګورې! چي د صدقې د حُرمت په حق کي د هاشمي آزاد کړی سوی غلام د هاشمي سره يو ځای کيږي وَلَنَا: أَنَّ هَذَا تَخْفِيفٌ وَالْمَوْلَى لَا يَلْحَقُ بِالْأَصْلِ فِيهِ زموږ دليل دا دی: چي دا تخفيف دی او آزاد کړی سوی غلام به په تخفيف کي د أصل سره نه يو ځای کيږي وَلِهَذَا تُوضَعُ الْجِزْيَةُ عَلَى مَوْلَى الْمُسْلِمِ إِذَا كَانَ نَصْرَانِيًّا همدا وجه ده که چيري د مسلمان آزاد کړی سوی غلام نصراني وي نو پر هغه جزيه مقررول کيږي بِخِلَافِ حُرْمَةِ الصَّدَقَةِ لِأَنَّ الْحُرُمَاتِ تَثْبُتُ بِالشُّبُهَاتِ په خلاف د صدقې د حرام کېدلو، ځکه چي په شبهاتو سره [هم] حرمتونه ثابتيږي فَأُلْحِقَ الْمَوْلَى بِالْهَاشِمِيِّ فِي حَقِّهِ لهذا د حرمت په حق کي به د هاشمي مولیٰ د هاشمي سره يوځای کيږي وَلَا يَلْزَمُ مَوْلَى الْغَنِيِّ او د مالدار کس پر آزادي کړی سوي غلام اعتراض نه سي واردېدلای حَيْثُ لَا تَحْرُمُ عَلَيْهِ الصَّدَقَةُ لِأَنَّ الْغَنِيَّ مِنْ أَهْلِهَا ځکه چي پر هغه په دې وجه صدقه اخيستل حرام نه دي چي [په بنيادي توګه] په مالدار کس کي [هم] د صدقې اخيستلو أهليت وي وَإِنَّمَا الْغِنَى مَانِعٌ [فقط د هغه] مالداري له اخيستلو څخه مانع وي وَلَمْ يُوجَدْ فِي

---

● القول الراجح: قول الجمهور، كما ذكر في فتح القدير (ج:۵، ص:۳۰۵)، وكذا في الدر المختار (ج:۳، ص:۳۰۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۶]

حَقِّ الْمَوْلَى او [ د هغه ] د آزاد کړی سوي غلام په حق کي دا خبره نسته أَمَّا الْهَاشِمِيُّ فَلَيْسَ بِأَهْلٍ لِهَذِهِ الصِّلَةِ أَصْلًا کوم چي هاشمي دی نو هغه بالکل د دې عطيې مستحق نه دی لِأَنَّهُ صِيْنَ لِشَرَفِهِ وَكَرَامَتِهِ عَنْ أَوْسَاخِ النَّاسِ ځکه چي هغه د خپل شرافت او ستر والي په وجه د خلکو له خيرو څخه ساتل سوی دی فَأُلْحِقَ بِهِ مَوْلَاهُ لهذا د هغه آزاد کړی سوی غلام هم د هغه سره لاحق کړی سو.

**اللغات**: ﴿مولیٰ﴾ ① آزاد کړی سوی غلام ② مالک، دلته ځني مراد اوله معنیٰ ده. ﴿صِين﴾ د نصر له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي مجهول صيغه ده: ساتل، ژغورل، حفاظت کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نيز به د بنو تغلب د نصارىٰ وو پر آزاد کړی سوي غلامانو هم جزيه او د هغو په ځمکو کي خراج مقررول کيږي، خو د أصل يعني د بنو تغلب په څير به د هغو له غلامانو څخه، دوچنده نه اخيستل کيږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز به له تغلبي غلامانو څخه هم د بنو تغلب په څير دوچنده اخيستل کيږي، ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي "د قوم آزاد کړی سوي غلامان هم له هغه قوم څخه وي" يعني کوم أحکام او مسائل چي د قوم وي هغه أحکام د قوم د مواليو هم دي، او څرنګه چي له بنو تغلب څخه دوچنده اخيستل کيږي لهذا د هغو له مواليو څخه به هم دوچنده اخيستل کيږي لکه پر هاشمي کس چي صدقه حرامه ده نو د هغه د آزاد کړی سوي غلام لپاره هم صدقه اخيستل حرام دي.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل دا دی چي په حقيقت کي له بنو تغلب څخه دوچنده اخيستل د هغو په حق کي تخفيف في الذلة دی، يعني په دوچنده مال ورکولو کي د جزيې او خراج په نسبت ذلت او رسوايي کمه ده، لهذا دا تخفيف به د هغو د مواليو په حق کي نه ثابتيږي، لکه څرنګه چي پر مسلمان کس جزيه نسته لېکن که دا مسلمان کس يو نصراني غلام لري نو پر هغه جزيه لازم ده او د مسلمان مالک په حق کي چي جزيه معدوم ده، دا انعدام د هغه د غلام په حق کي مؤثر نه دی.

د دې په خلاف د صدقې د حُرمت مسئله ده نو د هاشمي پر مولیٰ (آزاد کړی سوي غلام) ځکه صدقه حرام ده چي په هاشمي کي خو بالکل د صدقې اخيستلو صلاحيت نسته او د خپل شرافت او ستروالي په وجه هغه په هيڅ حالت کي هم صدقه نه سي اخيستلای او څرنګه چي د هاشمي په غلام کي هم څه نا څه د هاشميت أثر او بوی راځي نو د دغه شبهې او أثر په وجه د هاشمي مولیٰ د صدقې په حرمت کي د هاشمي سره لاحق سوی دی.

مثلاً که يو سړى مالدار وي نو ښکاره خبره ده چي د هغه لپاره صدقه اخيستل حرام دي، لېکن دا حرمت د هغه د مولىٰ (آزاد کړى سوي غلام) په حق کي مؤثر نه دی او د هغه لپاره صدقه اخيستل حلال دي که چيري هغه غريب وي، ځکه چي د هغه په أصل يعني په مالدار کي فى الجمله د صدقې اخيستلو صلاحيت موجود دی، فقط د غنىٰ د عارض په وجه د هغه لپاره صدقه حرام سوې ده. او څرنګه چي دا عارض د هغه په مولىٰ کي موجود نه دی، نو ځکه به د هغه د مولىٰ په حق کي صدقه اخيستل حلال او روا وي.

## د خراج، جزيې او د حربيانو د هداياوو مصارف

قَالَ: وَمَا جَبَاهُ الْإِمَامُ مِنَ الْخَرَاجِ وَمِنْ أَمْوَالِ بَنِي تَغْلِبَ وَمَا أَهْدَاهُ أَهْلُ الْحَرْبِ إِلَى الْإِمَامِ وَالْجِزْيَةُ فرمايي: او امام چي له خراج او د بنو تغلب له مالونو څخه کوم مال جمع کړي او هغه مال کوم چي يې حربيان امام ته هديه کړي او جزيه تُصْرَفُ فِي مَصَالِحِ الْمُسْلِمِينَ كَسَدِّ الثُّغُورِ وَبِنَاءِ الْقَنَاطِرِ وَالْجُسُورِ دا به ټوله د مسلمانانو په مصلحتونو کي خرچول کيږي لکه سرحدونه مظبوطول، پلونه جوړول وَيُعْطَى قُضَاةُ الْمُسْلِمِينَ وَعُمَّالُهُمْ وَعُلَمَاؤُهُمْ مِنْهُ مَا يَكْفِيهِمْ او له هغه څخه به د مسلمانانو قاضيانو ته او عاملانو او علماؤ ته دومره مال ورکول کيږي کوم چي د هغو لپاره کافي وي وَيُدْفَعُ مِنْهُ أَرْزَاقُ الْمُقَاتِلَةِ وَذَرَارِيهِمْ او له هغه مال څخه به مجاهدينو او د هغو بچيانو ته هم روزينه ورکول کيږي لِأَنَّهُ مَالُ بَيْتِ الْمَالِ ځکه چي دا د بيتُ المال مال دی فَإِنَّهُ وَصَلَ إِلَى الْمُسْلِمِينَ مِنْ غَيْرِ قِتَالٍ ځکه چي دا له جنګ کولو څخه بغير مسلمانانو ته رسېدلی دی وَهُوَ مُعَدٌّ لِمَصَالِحِ الْمُسْلِمِينَ او بيتُ المال د مسلمانانو د مصالحو لپاره تيار سوی دی وَهَؤُلَاءِ عَمَلَتُهُمْ او دا خلک د مسلمانانو عمله [کار کونکي] دي وَنَفَقَةُ الذَّرَارِيِّ عَلَى الْآبَاءِ او د بچيانو نفقه پر خپلو پلرونو ده فَلَوْ لَمْ يُعْطَوْا كِفَايَتَهُمْ لَاحْتَاجُوا إِلَى الِاكْتِسَابِ نو که چيري هغو ته د کفايت په اندازه مال نه ورکول سي نو هغوی به مال ګټلو [او مزدورۍ کولو] ته محتاج سي فَلَا يَتَفَرَّغُونَ لِلْقِتَالِ لهذا هغوی به جنګ کولو ته نه فارغيږي وَمَنْ مَاتَ فِي نِصْفِ السَّنَةِ او [له قاضيانو او داسي نورو څخه چي] کوم کس د کال په مينځ کي مړ سي فَلَا شَيْءَ لَهُ مِنَ الْعَطَاءِ نو له عطيې څخه به هغه ته هيڅ شی نه ورکول کيږي لِأَنَّهُ نَوْعُ صِلَةٍ وَلَيْسَ

بِدَيْنٍ ځکه چې هغه يو ډول صله ده او قرض نه دی وَلِهٰذَا سُمِّيَ عَطَاءً له همدې کلبه هغه ته عطاء وايي فَلَا يَمْلِكُ قَبْلَ الْقَبْضِ لهذا تر قبضې مخکې به هيڅوک د هغه نه مالک کيږي وَيَسْقُطُ بِالْمَوْتِ او د مستحق په مرګ سره به ساقطيږي وَأَهْلُ الْعَطَاءِ فِي زَمَانِنَا مِثْلُ الْقَاضِي وَالْمُدَرِّسِ وَالْمُفْتِي وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او د عطيې ورکولو أهل [حقداره] زموږ په زمانه کې قاضي، مدرس او مفتي دي، او الله زيات خبر لرونکی دی.

**اللغات:** ﴿جباه﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي. جبیٰ يَجْبُوْ جَبًّا وَجَبْوًا: خراج او محصول جمع کول. ﴿سدّ﴾ د نصر مصدر دی: بندول، مظبوطول. ﴿ثغور﴾ جمع د ثَغْرٌ ده: سرحد، وېش، پوله (باډر). ﴿قناطير﴾ جمع د قَنْطَرَةٌ ده: پُل. لوړ او غټ عمارت (ودانۍ). ﴿جسور﴾ جمع د جَسْرٌ او جِسْرٌ ده: پُل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د خراج، جزيې او د حربيانو د هديې کوم مالونه چې د امام سره جمع سي، امام ته پکار دي چې هغه ټوله أموال د مسلمانانو په مصالحو يعني د سرحدونو په مضبوطوالي او په پُل او داسې نورو ضروري تعميراتو کې خرچ کړي، او له هغه مالونو څخه دې قاضيانو، عاملانو او علماؤ ته تنخا ورکړي او مجاهدينو او د هغو أهل او عيال ته دې هم نفقه ځنې ورکړي. ځکه چې دا د بيتُ المال مال دی، او بيتُ المال د مسلمانانو په مصالحو او د هغو په مصائبو کې د کارولو لپاره جوړيږي. او څرنګه چې دا خلګ يعني قاضيان او داسې نور د مسلمانانو د تنظيم او ترقۍ لپاره کار کوي نو ځکه به د هغو روزينه او تنخا د مسلمانانو له مال يعني له بيتُ المال څخه ورکول کيږي. او څرنګه چې د أولاد نفقه د پلار پر ذمه وي نو په دې وجه امام ته پکار دي چې هر کس ته دومره مال ورکړي چې د هغه د ذاتي خرچې او د هغه د أهل او عيال د خرچې او ضرورياتو لپاره کافي سي او هغه د خپلو بچيانو د نفقې په فکر کې د کار او مزدورۍ کولو په هکله سوچ نه وکړي، ځکه که په دوی کې يو کس له خپل کار او دندې څخه منع سي نو د دې نقصان به خاص مسلمانانو ته ورسيږي.

**ومن مات إلخ:** د دې حاصل دا دی چې څرنګه قاضيانو او عاملانو ته د کال په آخر کې د ټوله کال تنخا ورکول کيږي، نو که له دوی څخه يو څوک د کال په مينځ کې مړ سي نو د هغه استحقاق ساقطيږي: ځکه چې دا عطيه ده قرض نه دی، او د عطيې حکم دا دی چې له قبضې څخه مخکې هيڅوک د عطيې مالک نه جوړيږي. او کوم کس چې مړ سي نو ښکاره خبره ده چې هغه قبضه نه ده کولای، نو ځکه به د کال په مينځ کې په مړه کېدلو سره استحقاق ختميږي، ها! که چيرې هغه د کال په آخر کې مړ سي نو په دې صورت کې د هغه وارث او قريب ته د هغه حصه ورکول کېدای سي. او په دې زمانه کې مفتي، قاضي او مُدرس هم په أهلِ عطاء کې شامل او داخل دي، لهذا د هغو به هم پوره خيال ساتل کيږي. والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ أَحْكَامِ الْمُرْتَدِّيْنَ

(دا) باب له اسلام څخه د ګرځېدونکو خلګو (د أحکامو په بيان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې د أصلي کفر أحکام بيان سول. اوس د طاري (او اوسني) کفر أحکام بيانيږي. ځکه چې طاري له أصلي څخه وروسته وي.

## د مرتد أحکام

قال: وَإِذَا ارْتَدَّ الْمُسْلِمُ عَنِ الْإِسْلَامِ وَالْعِيَاذُ بِاللّٰهِ فرمايي: که چيري يو مسلمان (نعوذ بالله) له اسلام څخه وګرځيږي عُرِضَ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ نو پر هغه دې اسلام پېش کړی سي فَإِنْ كَانَتْ لَهُ شُبْهَةٌ كُشِفَتْ عَنْهُ او که هغه يوه شبهه لري نو هغه دې ځنې ليرې کړی سي لِأَنَّهُ عَسَاهُ اعْتَرَتْهُ شُبْهَةٌ فَتُزَاحُ ځکه کېدای سي چې هغه ته يو شبهه پېښه سوې وي نو هغه به [ځنې ] ليرې کيږي وَفِيهِ دَفْعُ شَرِّهِ بِأَحْسَنِ الْأَمْرَيْنِ او په داسې کولو سره په دوو طريقو کې په غوره طريقه سره د هغه شر دفع کول دي إِلَّا أَنَّ الْعَرْضَ عَلَى مَا قَالُوا غَيْرُ وَاجِبٍ خو د مشائخو رَحِمَهُمُ الله د قول مطابق پر هغه اسلام پېشول واجب نه دي لِأَنَّ الدَّعْوَةَ بَلَغَتْهُ ځکه چې هغه ته د اسلام دعوت رسېدلی دی قال: وَيُحْبَسُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فرمايي: چې مرتد به درې ورځې قيدول کيږي فَإِنْ أَسْلَمَ وَإِلَّا قُتِلَ که هغه اسلام راوړي [نو صحيح ده ] کنې هغه به قتل کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: الْمُرْتَدُّ يُعْرَضُ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ حُرًّا كَانَ أَوْ عَبْدًا او په جامع صغير کې دي: چې پر مرتد به اسلام پېشول کيږي برابره ده هغه آزاد وي، که غلام وي فَإِنْ أَبَى قُتِلَ که هغه انکار وکړي نو هغه به قتل کيږي وَتَأْوِيلُ الْأَوَّلِ: أَنَّهُ يَسْتَمْهِلُ فَيُمْهَلُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ د اول قول تأويل دا دی: چې که مرتد مهلت وغواړي نو هغه ته به درې ورځې مهلت ورکول کيږي لِأَنَّهَا مُدَّةٌ ضُرِبَتْ لِإِبْلَاءِ الْأَعْذَارِ ځکه چې د عذرونو د پېشولو [او د هغوی د قبلولو ] لپاره همدغه مودت ټاکل سوی دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ يُسْتَحَبُّ أَنْ يُؤَجِّلَهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ طَلَبَ ذٰلِكَ أَوْ لَمْ يَطْلُبْ او له

شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت سوی دی: چې تر دريو ورځو پورې مرتد ته مهلت ورکول مستحب دي برابره ده هغه مهلت وغواړي، که يې نه وغواړي وَعَنِ الشَّافِعِيِّ: أَنَّ عَلَى الْإِمَامِ أَنْ يُؤَجِّلَهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چې پر امام لازم دي چې مرتد ته درې ورځې مهلت ورکړي وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَقْتُلَهُ قَبْلَ ذٰلِكَ او تر دې مخکې د هغه قتل کول د امام لپاره روا نه دي لِأَنَّ ارْتِدَادَ الْمُسْلِمِ يَكُونُ عَنْ شُبْهَةٍ ظَاهِرًا ځکه چې د مسلمان مرتد کېدل په ظاهره د شهې په وجه وي فَلَا بُدَّ مِنْ مُدَّةٍ يُمْكِنُهُ التَّأَمُّلُ لهذا دومره مودت [ورکول] ضروري دي چې د مرتد لپاره [په هغه مودت کې] غور او فکر کول ممکن وي فَقَدَّرْنَاهَا بِالثَّلَاثَةِ نو موږ هغه مودت په دريو ورځو سره اندازه کړی وَلَنَا قَوْلُه تَعَالَى: فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ [التوبة: ٥] مِنْ غَيْرِ قَيْدِ الْإِمْهَالِ زموږ دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: فاقتلوا المشركين په دې آيت کې د مهلت ورکولو قيد نسته وَكَذَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام[1]: مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ او همدارنګه ﷺ دا إرشاد دی: څوک چې خپل دين بدل کړي نو تاسې هغه قتل کړئ! وَلِأَنَّهُ كَافِرٌ حَرْبِيٌّ بَلَغَتْهُ الدَّعْوَةُ او ځکه چې هغه داسې حربي کافر دی کوم ته چې د اسلام دعوت رسېدلی دی فَيُقْتَلُ لِلْحَالِ مِنْ غَيْرِ اسْتِمْهَالٍ لهذا هغه به له څه مهلت ورکولو څخه بغير سمدستي [فورا] قتل کيږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ تَأْخِيرُ الْوَاجِبِ لِأَمْرٍ مَوْهُومٍ او دا [حکم] ځکه دی چې د شکمن کار په وجه واجب شی ځنډول جائز نه دي [او د مرتد اسلام راوړل موهوم او شکمن دي] وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ لِإِطْلَاقِ الدَّلَائِلِ او د دلائلو د مطلقوالي په وجه په آزاد او غلام کې هيڅ فرق نسته وَكَيْفِيَّةُ تَوْبَتِهِ: أَنْ يَتَبَرَّأَ عَنِ الْأَدْيَانِ كُلِّهَا سِوَى الْإِسْلَامِ او د مرتد د توبې طريقه دا ده: چې له اسلام څخه بغير نور له ټولو أديانو څخه بېزاري ښکاره کړي [چې زه له اسلام څخه بغير بل له هر دين څخه بېزاره يم] لِأَنَّهُ لَا دِينَ لَهُ ځکه چې [فی الحاله] هغه لره هيڅ دين نسته وَلَوْ تَبَرَّأَ عَمَّا انْتَقَلَ إِلَيْهِ او مرتد چې د کوم دين وطرف ته نقل سوی [او مائل سوی] وي که چيري [فقط] له هغه څخه بېزاري ښکاره کړي كَفَاهُ نو [هم] کافي دي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ ځکه چې مقصود حاصل سو.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجهاد، باب لا يعذب بعذاب الله رقم الحديث: ٣٠١٧.

**اللغات:** ﴿ارتدّ﴾ د افتعال ماضي ده: گرځېدل، اوښتل، مرتد کېدل. ﴿عُرِض﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: پېشول، وړاندې کول. ﴿کُشِفت﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده. ښکاره کول، لځول، د دې باب په صله کې چې "عَنْ" راسي، نو معنی يې راځي: د يو شي پر ښکاره کولو مجبوره کول، حل کول، يعني د هغه شبهه دې حلّ کړی سي او د شبهې ليرې کولو دې کوښښ وسي. ﴿اعترته﴾ د افتعال ماضي ده: واردېدل، پېښېدل. ﴿فتُزاح﴾ د مؤنث غائب مضارع مجهول صيغه ده: ليرې کول. ﴿إبلاء﴾ د افعال مصدر دی: إبلاء دې ته چې د يو چا مخته عذر پېش کړی سي او هغه يې قبول کړي. يعني د يو چا مخته عذر پېشول او د هغه قبلول، له خپل ځان څخه د ملامتی ليري کولو لپاره عذر بيانول (مصباح اللغات). ﴿يوجّله﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع صيغه ده: وخت ورکول، مودت ټاکل. ﴿إمهال﴾ د افعال مصدر دی: مهلت ورکول. ﴿يبترّأ﴾ د تفعّل مضارع ده: بېزاره کېدل، د ناتعلقی اعلان کول.

**تشريح:** د عبارت مطلب واضح دی چې په عامه توګه په دين اسلام کې د يو شبهې په وجه مسلمان مرتد کيږي، نو په دې وجه د مرتد تر وژلو مخکې د هغه شکوک او شبهات ليري کول ضروري دي چې هغه مطمئن سي او دوباره اسلام راوړي، له همدې کبله د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مرتد ته درې ورځې مهلت ورکول (إمهال) مستحب دي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز إمهال واجب دی: زموږ دليل دا دی چې د قرآن کريم دا آيت "فاقتلو المشرکين" د إمهال له قيد څخه خالي دی او په دې کې فوراً (بېله ځنډه) د مشرکينو د وژلو حکم سوی دی. همدارنګه په دې حديث "من بدّل دينه فاقتلوه" کې هم فوراً د مرتد د وژلو حکم وارد سوی دی. لهذا مرتد ته مهلت ورکول خو به مستحب وي لېکن واجب او لازم به نه وي.

د مرتد د توبې طريقه دا ده چې هغه له دين اسلام څخه بغير نور له ټولو أديانو څخه توبه وکړي او له ټولو څخه بېزاري او برائت ښکاره کړي. او که مرتد فقط له هغه دين څخه بېزاري او برائت ښکاره کړي د کوم دين وطرف ته چې هغه مائل سوی وو نو دا هم صحيح دي. او په دې سره هم د هغه توبه او برائت ثابتيږي: ځکه چې مقصود حاصل سو او د هغه ارتداد ختم سو.

## پر مرتد له اسلام پېشولو څخه مخکې هغه قتل کول

قال: فَإِنْ قَتَلَهُ قَاتِلٌ قَبْلَ عَرْضِ الْإِسْلَامِ عَلَيْهِ فرمايي: که پر مرتد له اسلام پېشولو څخه مخکې يو قاتل هغه قتل کړي كُرِهَ وَلَا شَيْءَ عَلَى الْقَاتِلِ نو دا مکروه دي [لېکن] پر قاتل به هيڅ ضمان نه وي وَمَعْنَى الْكَرَاهِيَةِ هٰهُنَا تَرْكُ الْمُسْتَحَبِّ او دلته مکروه والی د مستحب پرېښوولو په معني سره دی

وَانْتِفَاءُ الضَّمَانِ لِأَنَّ الْكُفْرَ مُبِيحٌ لِلْقَتْلِ او ضمان په دې وجه نسته چې كفر قتل مباح (روا) ګرځوي وَالْعَرْضُ بَعْدَ بُلُوغِ الدَّعْوَةِ غَيْرُ وَاجِبٍ او تر دعوت رسېدلو وروسته اسلا پېشول واجب نه دي وَأَمَّا الْمُرْتَدَّةُ فَلَا تُقْتَلُ او كوم چې مرتده ښځه ده نو هغه به نه قتل كيږي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ تُقْتَلُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې هغه به (هم) قتل كيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه كوم چې موږ روايت كړى وَلِأَنَّ رِدَّةَ الرَّجُلِ مُبِيحَةٌ لِلْقَتْلِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ جِنَايَةٌ مُغَلَّظَةٌ او ځكه چې د سړي ارتداد د جرم د سختېدلو په حيثيت سره قتل روا ګرځوي فَتُنَاطُ بِهَا عُقُوبَةٌ مُغَلَّظَةٌ لهذا د دې جرم سره به سخته سزا هم متعلق كيږي وَرِدَّةُ الْمَرْأَةِ تُشَارِكُهَا فِيهَا او د ښځې ارتداد (هم) په دې جرم كې شريک دي فَتُشَارِكُهَا فِي مُوجِبِهَا لهذا هغه به د دې جرم په سزا كې (هم) شريک كيږي وَلَنَا: أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ زموږ دليل دا دی: چې نبي كريم ﷺ د ښځو له قتلولو څخه منع كړې ده وَلِأَنَّ الْأَصْلَ تَأْخِيرُ الْأَجْزِيَةِ إِلَى دَارِ الْآخِرَةِ او په دې وجه (هم) چې د آخرت لپاره سزاګاني مؤخر كول أصل دي إِذْ تَعْجِيلُهَا يُخِلُّ بِمَعْنَى الِابْتِلَاءِ ځكه چې ژر سزا وركول د ابتلاء (او ازمايښت) په معنىٰ كې نقص (كمښت) راولي (يعني په دنيا كې په سزا وركولو سره سزا كميږي) وَإِنَّمَا عُدِلَ عَنْهُ دَفْعًا لِشَرٍّ نَاجِزٍ وَهُوَ الْحِرَابُ ليكن له دې أصل څخه په دې مقصد إعراض سوى دى چې في الحاله پيدا كېدونكى شر يعني جنګ ختم سي وَلَا يَتَوَجَّهُ ذٰلِكَ مِنَ النِّسَاءِ او له ښځو څخه د جنګ توقع نه كيږي لِعَدَمِ صَلَاحِيَةِ الْبِنْيَةِ ځكه چې (په ښځو كې) د جنګ كولو صلاحيت نه وي بِخِلَافِ الرِّجَالِ په خلاف د خلكو فَصَارَتِ الْمُرْتَدَّةُ كَالْأَصْلِيَّةِ لهذا مرتده ښځه د أصليه كافري په څېر سوه قَالَ: وَلٰكِنْ تُحْبَسُ حَتّٰى تُسْلِمَ فرمايي: ليكن مرتده ښځه به قيدول كيږي تر دې چې هغه اسلام راوړي لِأَنَّهَا اِمْتَنَعَتْ عَنْ إِيفَاءِ حَقِّ اللهِ تَعَالٰى بَعْدَ الْإِقْرَارِ ځكه چې هغې د حقَ الله تر اقرار كولو وروسته د هغه له پوره كولو څخه منع سوه فَتُجْبَرُ عَلٰى إِيفَائِهِ بِالْحَبْسِ لهذا د قيد په ذريعه به هغه د حقَ الله پر پوره كولو مجبورول كيږي كَمَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ لكه څرنګه چې په حقوقَ العبد كې (هم) دغه حكم دی (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَتُجْبَرُ الْمَرْأَةُ عَلَى الْإِسْلَامِ حُرَّةً كَانَتْ أَوْ أَمَةً او په جامع صغير كې

دي: چي مرتده ښځه به د اسلام پر راوړلو مجبوروول کيږي برابره ده هغه آزاده وي. که مينځه وي وَالْأَمَةُ يُجْبِرُهَا مَوْلَاهَا او مينځه به خپل مالک مجبوره کوي أَمَّا الْجَبْرُ فَلِمَا ذَكَرْنَا کوم چي مجبوره کول دي نو په هغه وجه دي کوم چي موږ بيان کړه وَمِنَ الْمَوْلَى لِمَا فِيهِ مِنَ الْجَمْعِ بَيْنَ الْحَقَّيْنِ او [مينځه به] مالک ځکه مجبوره کوي چي په دې کي د دواړو حقونو جمع کېدل [او رعايت] سته وَيُرْوَى: تُضْرَبُ فِي كُلِّ أَيَّامٍ مُبَالَغَةً فِي الْحَمْلِ عَلَى الْإِسْلَامِ او روايت سوی دی: چي مينځه به هره ورځ وهل کيږي د دې لپاره چي پر اسلام په [د هغې] په آماده کولو کي مبالغه وسي.

**اللغات**: ﴿مبيح﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: روا کونکی، حلال ګرځونکی. ﴿جناية﴾ جرم. ﴿مغلّظة﴾ سخت، سنګين (درون). ﴿تناط﴾ د مضارع مجهول صيغه ده: متعلق کېدل. مدار کېدل (أحسن الهدايه). ﴿تعجيل﴾ د تفعيل مصدر دی: تلوار کول. يو کار ژر کول. ﴿ناجز﴾ ژر کېدونکی (ژر پوره کېدونکی)، حاضر (اوسنی)، موجود.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نيز پر مرتد اسلام پېشول مستحب دي واجب نه دي، له همدې کبله که يو څوک قبل العرض مرتد قتل کړي نو پر هغه به ضمان واجب نه وي. ځکه چي د مرتد کفر د هغه قتل مباح او روا وګرځوی، ها! تر اسلام پېشولو مخکي د هغه قتلول مکروه او نامناسب کار دی. او که چيري يوه ښځه مرتده سي نو زموږ په نيز به هغه نه قتلول کيږي لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به هغه هم قتلول کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي په دې حديث: "من بدّل دينه فاقتلوه" کي د "مَنْ" کلمه عامه ده کوم چي نر او ښځي دواړو ته شامله ده. او عقلي دليل يې دا دی چي ارتداد يو مغلظ او سخت جنايت دی نو مرتد د خپل جرم د سختوالي په وجه د سختي سزا يعني د قتل موجب دی. او ښځه په نفسِ ارتداد او نفسِ جنايت کي د هغه شريکه ده. لهذا کله چي د ښځي جنايت هم مغلظ او سخت دی. نو ښکاره خبره ده چي د هغې سزا به هم سخته اوي هغه به هم قتلول کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي نبي کريم ﷺ د ښځو له قتلولو څخه منع کړې ده. نو په دې وجه د ښځو قتلول جائز نه دي. او بيا دارُ الآخرة د سزا کور (دارُ الجزاء) دی او سزاګاني مؤخّر کول أصل دي نو په دې وجه به هم ښځي ته په دنيا کي د خپل ارتداد سزا نه ورکول کيږي. او همدا أصل د سړي په هکله هم دی. لېکن د سړي د شريعني د جنګ ختمولو او دفع کولو په خاطر د هغه په حق کي له دغه أصل څخه اعراض سوی دی او هغه ته په دنيا کي سزا ورکول سوې ده. او څرنګه چي په ښځو کي د جنګ او قتال صلاحيت نسته نو ځکه د هغوی په حق کي دغه أصل پر خپل مخکني حالت پاته دی. او مرتده

ښځه د كافري ښځي په څېر ده څرنګه چي كافره ښځه نه قتلول كيږي نو مرتده ښځه به هم نه قتلول كيږي. ها! هغه به قيدول كيږي تر دې چي اسلام راوړي، ځكه چي هغې تريو ځل اسلام راوړلو او د حقوقُ الله تر اقرار كولو وروسته اوس د حقوقُ الله له إيفاء او پوره كولو څخه مخ واړوی. لهذا څرنګه چي د حقوقُ العباد مثلاً د قرض او داسي نورو د اداء كولو لپاره مديون سړی او مديونه ښځه قيدول كيږي همداسي به د حقوقُ الله د اداء كولو لپاره هم مرتده ښځه قيدول كيږي.

په جامعِ صغير كي هم دغه حكم ذكر سوی دی، او په هغه كي دا اضافه هم سوې ده چي مرتده ښځه كه چيري مينځه وي، نو د اسلام راوړلو لپاره دي خپل مالک (مولیٰ) پر هغې دباو او فشار واچوي د دې لپاره چي د حقُ الله رعايت هم وسي او په خپله د مالک حق يعني استخدام هم هغه ته حاصل سي. له همدې وجهې په ځيني رواياتو كي ذكر سوي دي چي د اسلام راوړلو لپاره مالک خپله مينځه وهلای او ډبولای هم سي. د دې لپاره چي كما حقهٗ جبر ثابت سي او هغه مرتده مينځه بيا په اسلام سره ځان مشرّفه كړي.

## د مرتد ملكيت زائلېدل

قال: وَيَزُولُ مِلْكُ الْمُرْتَدِّ عَنْ أَمْوَالِهِ بِرِدَّتِهِ زَوَالًا مُرَاعًى فرمايي: چي د ارتداد په وجه له خپلو مالونو څخه د مرتد ملكيت د موقوف زوال په څېر زائليږي فَإِنْ أَسْلَمَ عَادَتْ عَلَى حَالِهَا نو كه هغه اسلام راوړي نو ملكيت خپل حال ته را وګرځي قَالُوا: هٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ مشائخو فرمايلي دي: چي دا [حكم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَعِنْدَهُمَا●: لَا يَزُولُ مِلْكُهُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مرتد ملكيت نه زائليږي لِأَنَّهُ مُكَلَّفٌ مُحْتَاجٌ ځكه چي هغه [هم] مكلف او محتاج وي فَإِلَى أَنْ يُقْتَلَ يَبْقَى مِلْكُهُ لهذا د هغه تر قتلېدلو پوري به د هغه ملكيت باقي پاتيږي كَالْمَحْكُومِ عَلَيْهِ بِالرَّجْمِ وَالْقِصَاصِ لكه هغه كس چي پر هغه د رجم يا قصاص فيصله سوې وي وَلَهُ: أَنَّهُ حَرْبِيٌّ مَقْهُورٌ تَحْتَ أَيْدِينَا حَتَّى يُقْتَلَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي هغه يو داسي حربي دی كوم چي زموږ تر لاسو لاندي مغلوب دی. تر دې چي هغه قتل كړی سي وَلَا قَتْلَ إِلَّا بِالْحِرَابِ او له جنګ كولو څخه بغير قتل نسته وَهٰذَا يُوجِبُ زَوَالَ مِلْكِهِ وَمَالِكِيَّتِهِ او د هغه حربي كې د هغه د ملكيت او مالكيت زوال ثابتوي غَيْرَ أَنَّهُ مَدْعُوٌّ إِلَى الْإِسْلَامِ بِالْإِجْبَارِ عَلَيْهِ خو په مجبوره كولو سره به هغه د اسلام وطرف

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۲۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۹۷]

ته رابلل کيږي وَيُرْجٰى عَوْدُهُ إِلَيْهِ او د اسلام وطرف ته د هغه واپس راتلل متوقع دي فَتَوَقَّفْنَا فِي أَمْرِهِ نو ځکه موږ د هغه په معامله کي توقف وکړی فَإِنْ أَسْلَمَ جُعِلَ الْعَارِضُ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ فِي حَقِّ هٰذَا الْحُكْمِ نو که چيري هغه اسلام راوړي نو مذکوره عارض [ارتداد] به د ملکيت د زوال په حق کي معدوم ګرځول کيږي وَصَارَ كَأَنْ لَمْ يَزَلْ مُسْلِمًا وَلَمْ يَعْمَلِ السَّبَبُ او داسي به ګڼل کيږي لکه هغه چي له همېشه څخه مسلمان وو او هغه بالکل [د ملکيت د زوال] سبب اختيار کړی نه دی وَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ عَلٰى رِدَّتِهِ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ وَحُكِمَ بِلَحَاقِهِ او که چيري هغه مړ سي يا د مرتد والي په حالت کي قتل کړی سی يا دارُ الحرب ته ولاړ سي او دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله وسي [يعني قاضي د هغه د تللو حکم وکړي] اِسْتَقَرَّ كُفْرُهُ نو [په دې صورت کي] به د هغه کفر مضبوط استحکم اسي فَيَعْمَلُ السَّبَبُ عَمَلَهُ نو سبب به خپل عمل وکړي [او خپل أثر به ښکاره کړي] وَزَالَ مِلْكُهُ او د هغه ملکيت به زائل سي.

**اللغات**: ﴿مقهور﴾ د فتح د باب اسمِ مفعول دی: مغلوب، مجبور. ﴿حِرَاب﴾ د مفاعلې مصدر دی: جنګ کول. ﴿لَحِقَ﴾ د سمع ماضي ده: ور سره يو ځای کېدل. ﴿استقر﴾ د استفعال ماضي ده: ثابتېدل، مضبوطېدل (ټينګېدل، کلکېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي کله يو سړی مرتد سي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه ملکيت موقوفاً زائلېږي يعني که چيري هغه اسلام راوړي نو د هغه ملکيت بيرته فعاله کيږي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه ملکيت بالکل نه زائلېږي، ځکه چي هغه په أحکامو مکلّف دی او مال او ملکيت ته محتاج دی لهذا تر څو چي قتل سوي نه وي تر هغه وخته به يې ملکيت باقي پاتيږي، لکه پر يو سړي چي د رجم يا قصاص فيصله وسي نو د هغه ملکيت هم تر هغه وخته پوري پاتيږي تر څو چي رجم سوي يا قتل سوی نه وي، همداسي به په دې مسئله کي د مرتد تر قتلېدلو پوري د هغه ملکيت باقي پاتيږي.

**وله أنه إلخ**: د امام صاحب دليل دا دی چي دا مرتد اوس حربي کافر ګرځېدلی دی او زموږ يعني د مسلمانانو تر لاس لاندي او مغلوب دی او د هغه ارتداد د هغه د قتل موجب دی. همدارنګه د هغه حربي کېدل د هغه د ملکيت او مالکيت د زوال سبب دی په دې توګه چي په دغه ډول مغلوبېدلو سره انسان مملوک ګرځي او کوم کس چي مملوک وي د هغه مالکيت ختمېږي او کله چي مالکيت ختم سي نو ملکيت هم ختمېږي. نو په دې وجه د همېشه لپاره د هغه ملکيت ختمېدل او زائلېدل پکار

دي. خو ځرنګه چې هغه د اسلام په محاسنو او ښېګڼو خبر سوی دی او دويم ځل د هغه اسلام راوړل ممکن او متوقع دي نو په همدې وجه موږ د هغه ملکيت موقوفاً زائل ګرځولی دی او پر هغه به اسلام پېشوو. که چيري هغه اسلام راوړي نو د هغه ملکيت به د مخکې ځير فعاله کيږي او داسې به ګڼل کيږي چې هغه بالکل مرتد سوی نه دی. او که چيري هغه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي يا مړ سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي د هغه د تللو فيصله وکړي چې هغه دارُ الحرب ته ولاړ نو په دې صورت کې به د هغه ارتداد او کفر مضبوط ګرځي او د هغه ملکيت به رائليږي.

## د مرتد تر قتل وروسته د هغه د مال حکم

قال: وَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ فرمايي: او که مرتد مړ سي يا د خپل ارتداد په حالت کې قتل کړی سي انْتَقَلَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي إِسْلَامِهِ إِلَى وَرَثَتِهِ الْمُسْلِمِينَ نو هغه چې د اسلام په حالت کې کوم مال ګټلی وي، هغه به د ده د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي وَكَانَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ رِدَّتِهِ فَيْئًا او هغه مال کوم چې ده د ارتداد په حالت کې ګټلی وي، هغه به فيئ وي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ●: كِلَاهُمَا لِوَرَثَتِهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې دواړه مالونه به د هغه د وارثانو وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: كِلَاهُمَا فَيْءٌ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دواړه مالونه به فيئ وي لِأَنَّهُ مَاتَ كَافِرًا ځکه چې هغه د کفر په حالت کې مړ سوی دی وَالْمُسْلِمُ لَا يَرِثُ الْكَافِرَ او مسلمان د کافر وارث کېدلای نه سي ثُمَّ هُوَ مَالٌ حَرْبِيٌّ لَا أَمَانَ لَهُ بيا هغه د داسې حربي مال دی کوم ته چې أمان حاصل نه دی فَيَكُونُ فَيْئًا نو ځکه به هغه فيئ وي وَلَهُمَا: أَنَّ مِلْكَهُ فِي الْكَسْبَيْنِ بَعْدَ الرِّدَّةِ بَاقٍ زموږ دليل دا دی چې تر ارتداد وروسته [هم] په دواړو ګټو [يعني په دواړو ګټل سوو مالونو] کې ملکيت پاته دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکې] چې موږ د دې بيان وکړی فَيَنْتَقِلُ بِمَوْتِهِ إِلَى وَرَثَتِهِ لهذا د هغه په مرګ سره به دا ملکيت د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي وَيَسْتَنِدُ إِلَى مَا قُبَيْلَ رِدَّتِهِ او دا انتقال به د هغه له مرتد کېدلو څخه لږ څه مخکې وخت ته منسوب کيږي [يعني ګواکې د هغه تر ارتداد لږ څه مخکې د هغه ملکيت د وارثانو وطرف ته منتقل سو. لکه د مړي ملکيت چې تر مرګ لږ څخه مخکې (د ځکندن په حالت کې) وارثانو ته

● القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۲۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۸]

نقل كيږي ا إِذِ الرِّدَّةُ سَبَبُ الْمَوْتِ ځكه چي همدغه ارتداد [د هغه] د مرګ سبب دى فَيَكُونُ تَوْرِيثَ الْمُسْلِمِ مِنَ الْمُسْلِمِ نو دا به مسلمان د مسلمان وارث جوړېدل وي [يعني دا به له مسلمان ځخه د مسلمان وراثت حاصلول وي] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يُمْكِنُ الِاسْتِنَادُ فِي كَسْبِ الْإِسْلَامِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي د اسلام والا په ګټه [ګټل سوي مال] كي استناد ممكن دى لِوُجُودِهِ قَبْلَ الرِّدَّةِ ځكه چي دا ګټه تر ارتداد مخكي موجوده ده [يعني د اسلام په حالت كي ګټل سوى مال تر ارتداد مخكي ګټل سوى دى] وَلَا يُمْكِنُ الِاسْتِنَادُ فِي كَسْبِ الرِّدَّةِ لېكن په ارتداد والا ګټه كي استناد ممكن نه دى لِعَدَمِهِ قَبْلَهَا ځكه چي تر ارتداد مخكي دا ګټه معدومه ده وَمِنْ شَرْطِهِ وُجُودُهُ حالانكي د استناد لپاره تر ارتداد مخكي د ګټي موجودېدل شرط دي ثُمَّ إِنَّمَا يَرِثُهُ مَنْ كَانَ وَارِثًا لَهُ حَالَةَ الرِّدَّةِ وَبَقِيَ وَارِثًا إِلَى وَقْتِ مَوْتِهِ بيا به هغه سړى د دې مرتد وارث كيږي كوم چي د ارتداد په حالت كي د ده وارث وي او د ده تر مرګه پوري يې وارث پاته سوى وي فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اعْتِبَارًا لِلِاسْتِنَادِ دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه يو روايت دى كوم چي د استناد پر اعتبار مبني دى وَعَنْهُ: أَنَّهُ يَرِثُهُ مَنْ كَانَ وَارِثًا لَهُ عِنْدَ الرِّدَّةِ له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه دويم روايت دا دى: چي كوم سړى د ارتداد په وخت كي د ده [مرتد] وارث وي، نو هغه به د ده وارث كيږي وَلَا يَبْطُلُ اسْتِحْقَاقُهُ بِمَوْتِهِ او د وارث په مرګ سره به د وارث [خپل] استحقاق نه باطليږي بَلْ يَخْلُفُهُ وَارِثُهُ بلكي د هغه وارث به [يعني د وارث وارث به] د هغه نائب كيږي لِأَنَّ الرِّدَّةَ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْتِ ځكه چي ارتداد د مرګ په درجه كي دى وَعَنْهُ: أَنَّهُ يُعْتَبَرُ وُجُودُ الْوَارِثِ عِنْدَ الْمَوْتِ له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه دريم روايت دا دى: چي د مرتد د مرګ په وخت كي د وارث موجودېدل معتبر دى لِأَنَّ الْحَادِثَ بَعْدَ انْعِقَادِ السَّبَبِ قَبْلَ تَمَامِهِ كَالْحَادِثِ قَبْلَ انْعِقَادِهِ ځكه چي د سبب تر منعقدېدلو وروسته [او] د هغه تر پوره كېدلو مخكي پيدا كېدونكى وارث داسي دى لكه د سبب تر منعقدېدلو مخكي پيدا سوى بِمَنْزِلَةِ الْوَلَدِ الْحَادِثِ مِنَ الْمَبِيعِ قَبْلَ الْقَبْضِ لكه پر مبيعه مينځي باندي له قبضې كولو ځخه مخكي پيدا كېدونكى بچى وَتَرِثُهُ امْرَأَتُهُ الْمُسْلِمَةُ إِذَا مَاتَ أَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ او كه چيري مرتد د خپل ارتداد

په حالت كي مړ سي يا قتل كړى سي او د ده مسلمانه ښځه د ده په عدت كي وي نو هغه به د ده وارثه كيږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ فَارًّا وَإِنْ كَانَ صَحِيحًا وَقْتَ الرِّدَّةِ ځكه چي دا سړى به فارّ وګرځيږي كه څه هم دارتداد په وخت كي روغ [سالم] وي وَالْمُرْتَدَّةُ كَسْبُهَا لِوَرَثَتِهَا او د مرتده ښځي ګټه [ګټل سوى مال] به د هغي د وارثانو وي لِأَنَّهُ لَا حِرَابَ مِنْهَا ځكه چي د هغې له طرفه جنګ [قتال] نه صادريږي فَلَمْ يُوجَدْ سَبَبُ الْفَيْءِ لهذا د فيئ سبب موجود [او ثابت] نه سو بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ په خلاف د مرتد سړي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَيَرِثُهَا زَوْجُهَا الْمُسْلِمُ إِنِ ارْتَدَّتْ وَهِيَ مَرِيضَةٌ او كه چيري يوه ښځه مرتده سي او هغه مريضه [ناروغه] وي نو د هغې مسلمان خاوند به د هغې وارث كيږي لِقَصْدِهَا إِبْطَالَ حَقِّهِ ځكه چي ښځي د هغه د حق باطلولو اراده كړې ده وَإِنْ كَانَتْ صَحِيحَةً او كه هغه روغه وي لَا يَرِثُهَا نو خاوند به د هغې نه وارث كيږي لِأَنَّهَا لَا تُقْتَلُ ځكه ښځه نه قتلول كيږي فَلَمْ يَتَعَلَّقْ حَقُّهُ بِمَالِهَا بِالرِّدَّةِ لهذا [د ښځي] په مرتد كېدلو سره د هغې د مال سره د خاوند حق متعلق نه سو بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ په خلاف د مرتد سړي.

**اللغات**: ﴿فيء﴾ غنيمت، هغه مال كوم چي له جنګ كولو څخه بغير حاصل كړى سي. او امام ته د خپلي رايي مطابق د هغه د صرفولو اختيار وي. ﴿قُبيل﴾ د قَبْلٌ تصغير دى: لږ څه مخكي. ﴿توريث﴾ د تفعيل مصدر دى: وارث جوړول. ﴿فارّ﴾ تښتېدونكى، ځان خلاصونكى (هغه خاوند چي د ښځي له ميراث څخه ځان خلاصوي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه مرتد مړ سي يا د ارتداد په حالت كي قتل كړى سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د اسلام په حالت كي د هغه ګټل سوى مال به د هغه د مسلمانانو وارثانو وي. او د ارتداد په حالت كي ګټل سوى مال به يې فيئ وي. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به د هغه دواړه قسمه مالونه وارثانو ته ورکول كيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به د هغه دواړه قسمه مالونه فيئ وي.

**د امام شافعي دليل**: دا دى چي دا سړى مرتد سو او د كفر په حالت كي مړ سو. او مسلمان د كافر وارث كېدلاى نه سي. همدارنګه دغه مرتد ته أمان هم نه دى حاصل. ځكه چي هغه حربي كافر دى او د حربي مال فيئ وي لهذا د هغه مال به هم فيئ وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د اسلام او ارتداد په دواړو حالتونو کې چې هغه کوم مال ګټلی دی په هغه کې د ده ملکيت موجود دی لهذا د هغه په مرګ يعني د هغه په مرتد کېدلو سره به دا ملکيت د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي او څرنګه چې د هغه ارتداد د هغه مرګ دی نو ځکه به تر ارتداد لږ څه مخکې دا ملکيت د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي لکه څرنګه چې تر مرګ لږ څخه مخکې د نزع او ځکندن په حالت کې د مړي د أموالو سره د وارثانو حق متعلق کيږي همداسې به دلته هم تر ارتداد لږ څه مخکې ملکيت د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل کيږي او څرنګه چې په هغه حالت کې (يعني تر ارتداد لږ څه مخکې) مورث مسلمان دی او د هغه وارثان هم مسلمانان دي. لهذا مسلمان به د مسلمان وارث وګرځي او دا صحيح دي.

**د امام صاحب دليل**: هم هغه دی کوم چې د صاحبينو دليل دی. ليکن فرق يې دا دی چې د مرتد د وارثانو وطرف ته د مرتد هغه ګټل سوی مال منتقل کېدای سي کوم چې هغه د اسلام په حالت کې ګټلی وي. ځکه چې د اسلام په حالت کې ګټل سوي مال له ارتداد او د ارتداد له شبهې څخه خالي وي ځکه چې تر ارتداد مخکې هغه نه دي ګټل سوی حالانکې د نقل او إسناد لپاره تر ارتداد مخکې کَسب او ګټل شرط دي او هغه دلته نسته له همدې کبله موږ تر ارتداد وروسته ګټل سوی مال د هغه د وارثانو وطرف ته نه دي منتقل کړی بلکې هغه مو فيئ او غنيمت ګرځولی دی.

ثم إنما يرثه إلخ: اوس پاته سوه دا خبره چې د هغه وارث به څوک وي؟ نو په دې سلسله کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه درې روايتونه نقل سوي دي: .

(١)... اول روايت کوم چې د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله دی. دا دی چې کوم سړی د ارتداد په حالت کې د مرتد وارث وي يعني آزاد او مسلمان وي او د مرتد تر مرګه پوري پر دغه وصف قائم وي نو هغه به د مرتد وارث وي: ځکه چې د هغه وارث کېدل به په إستناد سره ثابت وي او د مستند لپاره دا ضروري دي چې هغه به هماغه وصف ته منسوب وي په کوم وصف سره چې هغه ثابت سوی وو او څرنګه چې وارث د وارثت په وخت کې (يعني د وارث کېدلو په وخت کې) حُرّ او مسلمان وو. نو په دې وجه د إستناد په حالت کې هم د هغه حُرّ کېدل او مسلمان کېدل ضروري دي.

(٢)... دويم روايت د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی. او هغه دا دی چې د ارتداد په حالت کې چې کوم سړی د هغه وارث وو. د مرګ په حالت کې به هم هغه د ده وارث وي. او که چيري دغه وارث مړ سي نو د ده استحقاق به نه باطليږي بلکې د دې وارث وارث به د هغه مرتد (مورث) وارث وي. ځکه چې ارتداد هم د مرګ په درجه کې دی او که چيري د مورث تر مرګ وروسته يو وارث مړ سي نو د هغه نائب د مورث وارث کيږي همداسې به دلته هم د مړ سوي وارث نائب د خپل د أصل مورث وارث کيږي.

(٣) له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دريم روايت دامام محمد رَحِمَهُ الله دی او همدا أصحُ الروايات دی. د دې حاصل دا دی چې د مرتد د مرګ په وخت کې د وارث موجودېدل معتبر دي برابره ده هغه وارث که د ارتداد په وخت کې موجود وي او که نه وي، ځکه چې د سبب تر انعقاد (منعقد کېدلو) وروسته او د هغه له پوره کېدلو څخه مخکې چې کوم شی په وجود کې راسي هغه داسي دی لکه تر سبب مخکې پيدا سوی شی، مثلاً که يو څوک مينځه رانيسي او تر قبضه کولو مخکې له هغې مينځې څخه بچی پيدا سوی وي نو هغه بچی له بيع څخه مخکې شمارل کيږي او د بچي په عوض کې به هم پر مشتري ثمن لازم وي، ځکه چې دا بچی د حادث قبل انعقاد السبب په څېر دی.

وترثه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مرتد مړ سي يا د ارتداد په حالت کې هغه قتل کړی سي او د هغه مسلمانه ښځه د هغه په عدت کې وي نو دا ښځه به د هغه وارثه کيږي، ځکه هغه (مرتد) فارّ دی يعني له ميراث څخه د ښځې محرومونکی دی، لهذا څرنګه چې د هغه د مريض والي په حالت کې ښځه د هغه وارثه کيږي همداسي به د هغه د روغوالي په صورت کې هم ښځه د هغه وارثه کيږي.

او که چيري ښځه مرتده سوې وي نو د هغې ګټل سوی مال به د هغې وارثانو ته ورکول کيږي، ځکه چې د ښځې له طرفه جنګ او قتال کول بالکل ممکن نه دي لهذا هغه به حربيه نه وي. او د هغې مال به هم فيئ نه وي، لېکن د مرتد سړي بعد الارتداد والا ګټل سوی مال به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز فيئ وي ځکه چې د هغه له طرفه جنګ او قتال متوقع دی او هغه حربي دی. اوس که چيري دا ښځه تر مريضه وي نو د هغې مسلمان خاوند به د هغې وارث کيږي، ځکه چې د مريض والي په صورت کې به دا فايده وي او په ارتداد سره به دا ښځه د خپل خاوند حق باطلونکې وي. لېکن که دا ښځه روغه وي نو خاوند به د هغې نه وارث کيږي، ځکه چې اوس دا فايده نسته او هغه به قتلول کيږي هم نه، لهذا د هغې په ارتداد سره د خاوند حق د هغې د مال سره متعلق نه سو نو ځکه به خاوند د هغې نه وارث کيږي. د دې په خلاف نارينه مرتد د قتل مستحق کيږي او د هغه په ارتداد سره د وارثانو حق د هغه د مال سره متعلق کيږي نو ځکه به د مرتد سړي وارثان د هغه وارث کيږي.

## دارُ الحرب ته د مرتد تلل

قَالَ: وَإِنْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا فرمايي: که [يو سړی] د مرتد والي په حالت کې دارُ الحرب ته ولاړ سي وَحَكَمَ الْحَاكِمُ بِلَحَاقِهِ او حاکم دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله صادره کړي عَتَقَ مُدَبَّرُوهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ نو د هغه مدبر غلامان او اُم ولد مينځې ټوله آزاديږي وَحَلَّتْ الدُّيُونُ الَّتِي عَلَيْهِ او د هغه ميعادي قرضونه فوراً واجبُ الاداء ګرځي وَنُقِلَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ الْإِسْلَامِ إِلَى وَرَثَتِهِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ او

د اسلام په حالت کي د هغه ګټل سوی مال د هغه د وارثانو وطرف منتقل کیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَبْقَى مَالُهُ مَوْقُوفًا كَمَا كَانَ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغه مال د مخکي په څېر موقوف پاتیږي لِأَنَّهُ نَوْعُ غَيْبَةٍ ځکه چي دارُ الحرب ته تلل يو قسم غيبوبت [غائب والی] دی فَأَشْبَهَ الْغَيْبَةَ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ نو دا د دارُ الاسلام د غيبوبت سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّهُ صَارَ مُرْتَدًّا بِاللَّحَاقِ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ زموږ دليل دا دی: چي د حربيانو سره د يو ځای کېدلو په وجه دا سړی مرتد وګرځېدی وَهُمْ أَمْوَاتٌ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الْإِسْلَامِ او حربيان د اسلامي أحكامو په حق کي د مړو په څېر دي لِانْقِطَاعِ وِلَايَةِ الْإِلْزَامِ ځکه چي [پر هغو] د يو شي لازمولو ولايت ختم سوی دی كَمَا هِيَ مُنْقَطِعَةٌ عَنِ الْمَوْتَى لکه څرنګه چي له مړي څخه ختم سوی دی فَصَارَ كَالْمَوْتِ نو مرتد د مړه په څېر سو إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْتَقِرُّ لَحَاقُهُ إِلَّا بِقَضَاءِ الْقَاضِي خو د قاضي له فيصلې څخه بغير به [دارُ الحرب ته] د هغه تلل [او تېنتېدل] نه مضبوطيږي لِاحْتِمَالِ الْعَوْدِ إِلَيْنَا ځکه چي زموږ وطرف ته [د هغه] د واپس راتللو احتمال سته فَلَا بُدَّ مِنَ الْقَضَاءِ نو ځکه [د هغه د لحاق] فيصله ضروري ده وَإِذَا تَقَرَّرَ مَوْتُهُ ثَبَتَتِ الْأَحْكَامُ الْمُتَعَلِّقَةُ بِهِ وَهِيَ مَا ذَكَرْنَاهَا او کله چي د هغه مرګ [مړ والي] مستحکم سو نو د مړه سره متعلق أحکام به ثابتيږي يعني هغه أحکام کوم چي موږ ذکر کړل كَمَا فِي الْمَوْتِ الْحَقِيقِيِّ لکه په حقيقي مړه کي [چي داسي کيږي] ثُمَّ يُعْتَبَرُ كَوْنُهُ وَارِثًا عِنْدَ لَحَاقِهِ فِي قَوْلِ مُحَمَّدٍ بيا به د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کي [دارُ الحرب ته] د هغه د تللو [ارسېدلو] په وخت کي د وارث کېدلو اعتبار کیږي لِأَنَّ اللَّحَاقَ هُوَ السَّبَبُ ځکه چي تلل [ارسېدل] د ميراث سبب دی وَالْقَضَاءُ لِتَقَرُّرِهِ بِقَطْعِ الِاحْتِمَالِ او فيصله کول د هغه [الحاق] د مضبوطېدلو لپاره دي چي [د مرتد] د واپس کېدلو احتمال ختم سي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: وَقْتَ الْقَضَاءِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د قضا [فيصلې] په وخت کي [به د وارث کېدلو اعتبار کيږي] لِأَنَّهُ يَصِيرُ مَوْتًا بِالْقَضَاءِ ځکه چي هغه [الحاق] د قاضي په فيصله سره مرګ ګرځي وَالْمُرْتَدَّةُ إِذَا لَحِقَتْ بِدَارِ الْحَرْبِ او که يوه مرتده ښځه دارُ الحرب ته ولاړه

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٢٩). [القول الراجح ج:١، ص:٥٠٠]

سي فَهِيَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ نو هغه هم پر دغه اختلاف دي.

**اللغات**: ﴿لحق﴾ د سمع ماضي ده: يو ځاى كېدل، مراد ځني دارُ الحرب ته تلل او د حربيانو سره يو ځاى كېدل دي، ﴿لا يستقر﴾ د استفعال له باب څخه د نفي صيغه ده: ثابتېدل، مضبوطېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو سړى مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي د هغه د تللو فيصله وكړي نو اوس هغه د مړو (أمواتو) په څير ګرځي او د هغه ټوله مدبر غلامان او اُم ولد مينځي آزاديږي، او پر هغه چي كوم ميعادي قرضونه وي د هغوى ميعاد (ميـاد) ختميږي او هغه في الحاله واجبُ الاداء ګرځي همدارنګه هغه چي د اسلام په حالت كي كوم مال ګټلى وي هغه ټوله د ده د وارثانو وطرف ته منتقل كيږي، دا حكم زموږ په نيز دى. لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د هغه مال محفوظ پاتيږي لكه څرنګه چي دارُ الحرب ته له تللو څخه مخكي د هغه مال محفوظ وو، ځكه چي دارُ الحرب ته د هغه تلل يو قسم غيبوبت دى او په غيبوبت سره انسان مړ نه ګرځي (يعني په غيبوبت سره انسان مړ نه شمارل كيږي) لكه څرنګه چي يو شوک په دارُ الاسلام كي غائب سي نو ښكاره خبره ده چي پر هغه د مړه حكم نه لګول كيږي، همداسي به دلته هم (د شوافعو په نيز) پر هغه مرتد د مړه حكم نه لګول كيږي.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل دا دى چي په مرتد كېدلو او د حربيانو سره د يو ځاى كېدلو په وجه هغه مړ (ميّت) وګرځېدى، ځكه چي حربيان د اسلامي أحكامو په حق كي مړه (أموات) دي او د مړو په څير پر هغو هم ديو حكم لازمولو ولايت نسته (يعني څرنګه چي شوک پر ميّت حكم نه سي لازمولى، همداسي پر دغه كفارو هم حكم نه سي لازمولى)، خو څرنګه چي د دې مرتد دواپس راتللو احتمال سته نو ځكه به د قاضي له قضاء (فيصلې) څخه مخكي د هغه ارتداد او لحاق بدار الحرب مضبوط نه وي. لېكن كله چي قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله وكړي نو د مړو (حربيانو) سره به هغه هم مړ شمارل كيږي او كوم أحكام چي بيان سول "يعني مدبر غلامان او اُم ولد مينځي آزادېدل او قرضونه في الحاله واجبُ الاداء ګرځېدل" هغه ټوله به د ده په حق كي هم ثابتيږي.

**ثم يعتبر كونه إلخ**: د دې حاصل دا دى چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دارُ الحرب ته د دې مرتد د رسېدلو په وخت كي چي د ده كوم وارثان وي فقط هغوى به د ده وارثان شمارل كيږي او وروسته وارث لره به اعتبار نه وركول كيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز چي دارُ الحرب ته د هغه تر تللو وروسته او د قاضي تر قضا مخكي د هغه كوم وارثان وي هغوى ټوله به د ده د مرګ په وخت كي د ده

وارثان شمارل کیږي؛ د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې مرتد کېدل او دارُ الحرب ته د هغه رسېدل (لحاق بدار الحرب) د میراث سبب دی لهذا همدغه لحاق به د وارث کېدلو سبب هم وي. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د میراث سبب د هغه د مرګ حکم دی او لحاق د قاضي په قضاء سره مرګ ګرځي لهذا د وارث کېدلو او نه کېدلو مدار به هم پر هغه وخت (یعني د قاضي پر قضاء) وي. د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دغه اختلاف په مرتده ښځه کي هم دی.

## د مرتد قرضونه (پوروونه)

وَتُقْضٰى الدُّيُوْنُ الَّتِىْ لَزِمَتْهُ فِىْ حَالِ الْإِسْلَامِ مِمَّا اكْتَسَبَهُ فِىْ حَالِ الْإِسْلَامِ او پر مرتد چې د اسلام په حالت کي څومره قرضونه لازم سوي وي دا قرضونه به له هغه مال څخه اداء کیږي کوم چې مرتد د اسلام په حالت کي ګټلی وي وَمَا لَزِمَهُ فِىْ حَالِ رِدَّتِهٖ مِنَ الدُّيُوْنِ تُقْضٰى مِمَّا اكْتَسَبَهُ فِىْ حَالِ رِدَّتِهٖ او کوم قرضونه چې د ارتداد په حالت کي پر هغه لازم سوي وي هغوی به له هغه مال څخه اداء کیږي کوم چې مرتد د ارتداد په حالت کي ګټلی وي قَالَ: الْعَبْدُ الضَّعِيْفُ: هٰذِهٖ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِىْ حَنِيْفَةَ ناتوانه بنده وايي: چې دا له امام څخه یو روایت دی وَعَنْهُ: أَنَّهٗ يُبْدَأُ بِكَسْبِ الْإِسْلَامِ او له هغه څخه [د حسن بن زياد] روایت دا دی: چې د اسلام والا په ګټې [ګټل سوي مال] سره به پیل کیږي وَإِنْ لَمْ يَفِ بِذٰلِكَ يُقْضٰى مِنْ كَسْبِ الرِّدَّةِ او که دا ګټه د قرضونو لپاره ناکافي سي نو له ارتداد والا ګټې څخه به اداء کیږي وَعَنْهُ ❀ عَلٰى عَكْسِهٖ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د دې برعکس روایت [هم] سوی دی وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ بِالسَّبَبَيْنِ مُخْتَلِفٌ د اول روایت دلیل دا دی: چې پر هغه واجب سوی قرض د دوو جلا، جلا سببونو په وجه مختلف دی وَحُصُوْلُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْكَسْبَيْنِ بِاعْتِبَارِ السَّبَبِ الَّذِىْ وَجَبَ بِهِ الدَّيْنُ او له دې دواړو ګټو څخه هره ګټه [ګټل سوی مال] په هغه سبب سره حاصل دی په کوم سبب سره چې پر هغه دین واجب سوی دی فَيُقْضٰى كُلُّ دَيْنٍ مِنَ الْكَسْبِ الْمُكْتَسَبِ فِىْ تِلْكَ الْحَالَةِ لهذا هر قرض به له هغه ګټې څخه اداء کیږي کوم چې په هغه حالت کي ګټل سوې وي

❀ القول الراجح: رواية الحسن بن زياد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الكاساني رَحِمَهُ الله: والصحيح رواية الحسن، لأن دين الإنسان يقضى من ماله لا من مال غيره (بدائع الصنائع ج:۷، ص:۱۳۹)، وكذا فى رد المحتار (ج:۳، ص:۳۳۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۰۱]

لِيَكُونَ الْغُرْمُ بِالْغُنْمِ د دې لپاره چي نقصان د نفع په عوض کي راسي ايعني چي معامله برابره وګرځي.
الغرم بالغنم: دا يو محاوره ده، مطلب يې دا دی چي غنيمت يعني نفع چي څرنګه حاصله سوې وي تاوان به يې هغه سي اداء کيږي. يعني په کوم حالت کي چي مال ګټل سوی دی. په دغه ګټل سوي مال سره دي د هغه حالت قرض اداء کړی سي ا وَجْهُ الثَّانِي: أَنَّ كَسْبَ الْإِسْلَامِ مِلْكُهُ د دويم روايت دليل دا دی: چي د اسلام ګټه اګټل سوی مال ا د هغه ملکيت دی حَتَّى يَخْلُفَهُ الْوَارِثُ فِيهِ همدا وجه ده چي وارث په هغه کي د ده نائب کيږي وَمِنْ شَرْطِ هَذِهِ الْخِلَافَةِ الْفَرَاغُ عَنْ حَقِّ الْمُوَرِّثِ او د وارث د نائب کېدلو لپاره د مورث له حق څخه د ملکيت فارغېدل شرط دي فَيُقَدَّمُ بِالدَّيْنِ عَلَيْهِ لهذا قرض به تر ميراث مخکي کول کيږي أَمَّا كَسْبُ الرِّدَّةِ فَلَيْسَ بِمَمْلُوكٍ لَهُ کوم چي د ارتداد والا ګټه ده نو هغه د مرتد په ملکيت کي نه ده لِبُطْلَانِ أَهْلِيَّةِ الْمِلْكِ بِالرِّدَّةِ عِنْدَهُ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په ارتداد سره د ملکيت أهليت باطليږي فَلَا يُقْضَى دَيْنُهُ مِنْهُ لهذا له دغي ګټي څخه به د هغه قرض نه اداء کيږي إِلَّا إِذَا تَعَذَّرَ قَضَاؤُهُ مِنْ مَحَلٍّ آخَرَ لېکن که چيري له اسلام والا ګټي څخه د قرض اداء کول مشکل وي فَحِينَئِذٍ يُقْضَى مِنْهُ نو په دې وخت کي به له ارتداد والا ګټي څخه اداء کيږي كَالذِّمِّيِّ إِذَا مَاتَ وَلَا وَارِثَ لَهُ لکه يو ذمي چي مړ سي او د هيغه هيڅ وارث نه وي يَكُونُ مَالُهُ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ نو د هغه مال به د عامو مسلمانانو وي وَلَوْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يُقْضَى مِنْهُ او که پر هغه اذمي ا قرض باندي وي نو له هغه مال څخه به اداء کيږي كَذَلِكَ هَهُنَا همداسي به دلته هم کيږي وَجْهُ الثَّالِثِ: أَنَّ كَسْبَ الْإِسْلَامِ حَقُّ الْوَرَثَةِ وَكَسْبَ الرِّدَّةِ خَالِصُ حَقِّهِ د دريم روايت دليل دا دی: چي د اسلام والا ګټه د وارثانو حق ده او د ارتداد والا ګټه د هغه خپل حق ده فَكَانَ قَضَاءُ الدَّيْنِ مِنْهُ أَوْلَى لهذا د هغه له خپلي ګټي څخه د قرض اداء کول به غوره وي إِلَّا إِذَا تَعَذَّرَ بِأَنْ لَمْ يَفِ بِهِ لېکن کله چي اداء مشکل سي په دې توګه چي د ارتداد والا مال د قرض لپاره ناکافي سي فَحِينَئِذٍ يُقْضَى مِنْ كَسْبِ الْإِسْلَامِ نو په دې وخت کي به له اسلام والا ګټي څخه قرض اداء کيږي تَقْدِيمًا لِحَقِّهِ ځکه چي اد هغه اد قرض اداء کول له ميراث څخه مخکي دي وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: تُقْضَى دُيُونُهُ مِنَ الْكَسْبَيْنِ

او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د هغه قرضونه به له دواړو ګټو څخه اداء کيږي لِأَنَّهُمَا جَمِيعًا مِلْكُهُ ځکه چې دواړه ګټې د هغه خپل ملکيت دی حَتّٰى يَجْرِيَ الْإِرْثُ فِيهِمَا همدا وجه ده چې په دواړو کي ميراث جاري کيږي. والله أعلم

**اللغات**: ﴿ديون﴾ جمع د دَيْن ده: قرض، پور. ﴿لم يف﴾ د ضرب له باب څخه د جحد صيغه ده: پوره کېدل. ﴿كَسْب﴾ ګټه، مراد ځني ګټل سوی مال دی. ﴿غنم﴾ غنيمت، نفع. ﴿تعذّر﴾ د تفعل ماضي ده: مشکل کېدل، ناممکن کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيرې پر مرتد قرضونه (پورونه) باندي وي نو هغه قرضونه به پر دوو حصو تقسيمول کيږي او د اسلام په حالت کي چې پر هغه کوم قرضونه لازم سوي وي هغوی به د مرتد له هغه مال څخه اداء کيږي کوم چې مرتد د اسلام په حالت کي ګټلی وی او کوم قرضونه چې د ارتداد په حالت کي پر لازم سوي وي هغوی به له هغه مال څخه اداء کيږي کوم چې يې د ارتداد په حالت کي ګټلی وي، دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د امام زفر رَحِمَهُ الله روايت دی. او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد روايت دا دی چې اول به د حالت اسلام والا له ګټې څخه قرضونه اداء کيږي (يعني اول به د مرتد له هغه مال څخه قرضونه اداء کيږي کوم چې يې د اسلام په حالت کي ګټلی وي) او که چيري د اسلام په حالت کي ګټل سوی مال د قرضونو لپاره ناکافي سي نو د بيا به د حالت ارتداد والا له ګټې څخه قرضونه اداء کيږي. او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دريم روايت کوم چې د امام ابو يوسف دی، دا دی چې د حالت ارتداد والا له ګټې څخه به د قرض اداء کول شروع کيږي. دا ټوله دري روايات سول.

**د اول روايت دليل**: دا دی چې دواړه ګټل سوي مالونه يو له بل څخه جلا دي يعني يو د اسلام په حالت کي حاصل سوی دی او بل د ارتداد په حالت کي. او د دې دواړو حالتونو قرضه هم په جلا جلا سبب سره ثابته ده، لهذا د هر حالت قرض به د هغه حالت په ګټل سوي مال سره اداء کيږي د دې لپاره چې د قرض ادا ينه د ګټې (ګټل سوي مال) سره برابره سي.

**د دويم روايت دليل**: دا دی چې د اسلام په حالت کي چې هغه کوم مال ګټلی دی هغه د ده په ملکيت کي دی له همدې کبله به د هغه وارثان د دې مال مالکان (او په دغه مال کي د هغه نائبان) کيږي او د دې خلافت او نيابت لپاره شرط دا دی چې دا ملکيت د مورث له حق څخه يعني له قرض او داسي نورو څخه فارغ وي نو ځکه به د وراثت والا پر خلافت باندي قرض مخکي کول کيږي. پاته سو د ارتداد په حالت کي ګټل سوی مال نو هغه د ده مملوک نه دی ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز

په ارتداد سره د ملکيت أهليت او صلاحيت ختميږي نو په دې وجه به د حالت ارتداد والا له ګټې شخه د هغه قرضونه نه اداء کيږي، هاا که چيرې د حالت اسلام والا له ګټې شخه قرضونه اداء نه سي نو بيا به د حالت ارتداد والا له ګټې شخه هغه اداء کيږي.

**د دريم روايت دليل:** دا دی چي د حالت اسلام والا ګټه د وارثانو حق دی لېکن د حالت ارتداد والا ګټه د مرتد خپل حق دی، لهذا د مرتد له خپل مال شخه به د هغه قرضونه اداء کيږي، لېکن که چيرې د حالت ارتداد والا ګټه د قرضونو لپاره ناکافي وي نو د حالت اسلام والا له ګټې شخه به هغه اداء کيږي. د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د هغه له دواړو ګټو شخه د هغه قرضونه اداء کيږي ځکه چي هغه د دواړو ګټو مالک دی او په دواړو کي وراثت جاري دی لهذا له دواړو ګټو شخه د قرضو په اداء کولو کي هيڅ حرج او پرېشاني نسته.

## د مرتدوالي د حالت تصرّفات

قَالَ: وَمَا بَاعَهُ أَوِ اشْتَرَاهُ أَوْ أَعْتَقَهُ أَوْ وَهَبَهُ أَوْ رَهَنَهُ أَوْ تَصَرَّفَ فِيهِ مِنْ أَمْوَالِهِ فِي حَالِ رِدَّتِهِ فرمايي: او مرتد چي د خپل ارتداد په حالت کي کوم مال خرڅ کړي يا يې رانيسي يا يې آزاد کړي يا يې هبه کړي يا يې په رهن کي کښېږدي يا په خپلو مالونو کي يو تصرف وکړي فَهُوَ مَوْقُوفٌ نو د هغه تصرف به موقوف وي فَإِنْ أَسْلَمَ صَحَّتْ عُقُودُهُ نو که هغه اسلام راوړي نو د هغه دا عقدونه [او تصرّفات] به صحيح کيږي. وَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ او که هغه مړ سي يا قتل کړی سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي بَطَلَتْ نو د هغه عقدونه به باطليږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ❁ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: يَجُوزُ مَا صَنَعَ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي به د هغه تصرفات جائز وي اِعْلَمْ! أَنَّ تَصَرُّفَاتِ الْمُرْتَدِّ عَلَى أَقْسَامٍ پوه سه! چي د مرتد تصرفات پر څو قسمه دي نَافِذٌ بِالِاتِّفَاقِ كَالِاسْتِيلَادِ وَالطَّلَاقِ (۱) اول هغه کوم چي بالاتفاق نافذيږي لکه اُم ولد جوړول او طلاق ورکول لِأَنَّهُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى حَقِيقَةِ الْمِلْكِ وَتَمَامِ الْوِلَايَةِ ځکه چي دا تصرّفات حقيقي ملکيت او د ولايت پوره والي ته محتاج نه وي وَبَاطِلٌ بِالِاتِّفَاقِ كَالنِّكَاحِ وَالذَّبِيحَةِ (۲) دويم هغه تصرفات دي کوم چي بالاتفاق باطليږي لکه نکاح او ذبيحه

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۳۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۰۲]

ایعني د مسلماني ښځي سره نکاح کول او څاروی ذبح کول. نو د مرتد دا تصرفات بالاتفاق باطل دي ا لِأَنَّهُ يَعْتَمِدُ الْمِلَّةَ وَلَا مِلَّةَ لَهُ ځکه چي د دې تصرفاتو د صحت مدار پر ملت اسلام ا دی او مرتد لره ملت نسته ایعني مرتد مسلمان نه دی. نو ځکه د هغه دا تصرفات باطل دي ا وَمَوْقُوفٌ بِالِاتِّفَاقِ كَالْمُفَاوَضَةِ دریم هغه تصرفات دي کوم چي بالاتفاق موقوف دي لکه شرکت مفاوضه لِأَنَّهَا تَعْتَمِدُ الْمُسَاوَاةَ ځکه چي د شرکت مفاوضه مدار پر مساوات امذهبي برابر والي ا دی وَلَا مُسَاوَاةَ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْمُرْتَدِّ مَا لَمْ يُسْلِمْ او د مسلمان او مرتد په مینځ کي مساوات نسته تر څو چي مرتد اسلام نه راوړي وَمُخْتَلَفٌ فِي تَوَقُّفِهِ (۴) او څلورم هغه تصرفات دي چي د هغوی په موقوف کېدلو کي اختلاف دی وَهُوَ مَا عَدَدْنَاهُ او دا هماغه تصرفات دي کوم چي موږ شمار کړل لَهُمَا: أَنَّ الصِّحَّةَ تَعْتَمِدُ الْأَهْلِيَّةَ د صاحبينو دليل: دا دی چي د دې تصرفاتو د صحت دار ومدار د متصرف پر اهليت دی وَالنَّفَاذَ يَعْتَمِدُ الْمِلْكَ او د نفاذ مدار پر ملکيت دی وَلَا خَفَاءَ فِي وُجُودِ الْأَهْلِيَّةِ او د أهليت په موجودېدلو کي هيڅ پټوالی نسته ایعني د مرتد په أهليت کي هيڅ شبهه نسته. هغه بالکل أهل دی ا لِكَوْنِهِ مُخَاطَبًا ځکه چي متصرف امرتدا په شرعي أحکامو مخاطب دی وَكَذَا الْمِلْكُ همدارنګه د هغه ملکيت هم موجود دی لِقِيَامِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ځکه چي ملکيت د هغه تر مرګ مخکي پاته دی ایعني د هغه تر مرګه پوري پاته دی ا عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي موږ د دې بيان وکړی وَلِهَذَا لَوْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ بَعْدَ الرِّدَّةِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ امْرَأَةٍ مُسْلِمَةٍ همدا وجه ده که د هغه تر مرتد کېدلو وروسته د هغه له مسلماني ښځي څه په شپږو مياشتو کي ادننه ا يو بچی پيدا سي يَرِثُهُ نو هغه بچی به د دې مرتد وارث کيږي وَلَوْ مَاتَ وَلَدُهُ بَعْدَ الرِّدَّةِ قَبْلَ الْمَوْتِ او که چيري تر ارتداد وروسته د مرتد له مرګ څخه مخکي د هغه بچی مړ سي لَا يَرِثُهُ نو هغه به د مرتد نه وارث کيږي فَتَصِحُّ تَصَرُّفَاتُهُ نو ځکه به أتر مرګ مخکي ا د هغه تصرفات صحيح کيږي إِلَّا أَنَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ تَصِحُّ كَمَا تَصِحُّ مِنَ الصَّحِيحِ خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د هغه تصرفات داسي صحيح کيږي لکه څرنګه چي د روغ سړي تصرفات صحيح کيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَوْدُهُ إِلَى الْإِسْلَامِ ځکه چي

اسلام ته د هغه واپس راتلل ښکاره دي إِذِ الشُّبْهَةُ تُزَاحُ ځکه چي اغالب گومان دا دی چي له هغه ځخه به اشبهه ليري کړی سي فَلَا يُقْتَلُ نو هغه به نه قتل کيږي وَصَارَ كَالْمُرْتَدَّةِ او هغه داسي سو لکه مرتده ښځه وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ تَصِحُّ كَمَا تَصِحُّ مِنَ الْمَرِيضِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به د مرتد تصرفات داسي صحيح کيږي لکه څرنګه چي د مريض تصرفات صحيح کيږي لِأَنَّ مَنِ انْتَحَلَ إِلَى نِحْلَةٍ لَا سِيَّمَا مُعْرِضًا عَمَّا نَشَأَ عَلَيْهِ قَلَّمَا يَتْرُكُهُ ځکه کوم سړی چي د بل مذهب وطرف ته نقل سي "خصوصاً په هغه صورت کله چي دئ له هغه مذهب ځخه اعراض کونکی وي پر کوم مذهب چي دئ پيدا سوی وي" نو داسي کس ډېر کم دا بل مذهب پرېږدي ايعني ډېر کم داسي کيږي چي هغه دا دويم مذهب هم پرېږدي ا فَيُفْضِي إِلَى الْقَتْلِ ظَاهِرًا او په ښکاره هغه قتل ته رسوي ايعني غالب گومان همدا دی چي داسي کس به قتل کړی سی ا بِخِلَافِ الْمُرْتَدَّةِ لِأَنَّهَا لَا تُقْتَلُ په خلاف د مرتدي ښځي. ځکه چي هغه نه قتل کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ حَرْبِيٌّ مَقْهُورٌ تَحْتَ أَيْدِينَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هغه داسي حربي دی کوم چي سوږ تر لاسو لاندي مغلوب دی عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ فِي تَوَقُّفِ الْمِلْكِ لکه امخکي ا چي د هغه د ملکيت د موقوف کېدلو په هکله موږ د دې بيان وکړی وَتَوَقُّفُ التَّصَرُّفَاتِ بِنَاءً عَلَيْهِ او د تصرفاتو موقوف کېدل د ملکيت پر موقوف کېدلو مبني دی وَصَارَ كَالْحَرْبِيِّ يَدْخُلُ دَارَنَا بِغَيْرِ أَمَانٍ او دا مرتد د هغه حربي په څېر سو کوم چي له أمان ځخه بغير زموږ دارُ الاسلام ته راسي فَيُؤْخَذُ وَيُقْهَرُ نو ځکه به هغه نيول کيږي او ازموږ تر لاس لاندي به ا مغلوب وي وَتَتَوَقَّفُ تَصَرُّفَاتُهُ او د هغه تصرفات به موقوف کيږي لِتَوَقُّفِ حَالِهِ ځکه چي د هغه حال موقوف دی فَكَذَا الْمُرْتَدُّ نو همداسي به مرتد هم وي وَاسْتِحْقَاقُهُ الْقَتْلَ لِبُطْلَانِ سَبَبِ الْعِصْمَةِ فِي الْفَصْلَيْنِ او مرتد ځکه د قتل مستحق دی چي په دواړو صوُرتونو کي د عصمت سبب باطل دی فَأَوْجَبَ خَلَلًا فِي الْأَهْلِيَّةِ نو هغه ادمرتدا په أهليت کي خلل پيدا کړی بِخِلَافِ الزَّانِي وَقَاتِلِ الْعَمْدِ په خلاف د زناکا کونکي او قصداً قتل کونکي لِأَنَّ الِاسْتِحْقَاقَ فِي ذَلِكَ جَزَاءٌ عَلَى الْجِنَايَةِ ځکه چي په دوی کي د قتل استحقاق د جرم د سزا په توګه وي وَبِخِلَافِ الْمَرْأَةِ او په خلاف د ښځي لِأَنَّهَا لَيْسَتْ

حَرْبِيَّةً ځکه چي ښځه جنګ کونکې نه وي وَلِهٰذَا لَا تُقْتَلُ او له همدې کبله هغه نه قتل کيږي.

**اللغات**: ﴿رِدَّة﴾ ارتداد، مرتد کېدل. ﴿عقود﴾ معاملات. ﴿تعتمد﴾ د افتعال مضارع ده: اعتماد کول، مبني کېدل. ﴿انتحل﴾ د افتعال ماضې ده: نسبت اختيارول، منتقل کېدل. ﴿نحلة﴾ مذهب، عقيده (مراد ځني له اسلام څخه بغير بل دين دی). ﴿يفضي﴾ د افعال مضارع ده: رسول، سبب جوړېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د ارتداد په حالت کي چي مرتد کوم تصرفات کوي مثلاً خرڅول او رانيول (بيع او شراء)، هبه کول، غلام آزادول او داسي نور، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د هغه دا تصرفات موقوف کيږي که چيري هغه اسلام راوړي نو د هغه دا عقود او تصرفات به نافذيږي او که هغه مړ سي يا سي قتل کړی سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي نو دا ټوله تصرفات به باطليږي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به په دواړو صورتونو کي د هغه تصرفات صحيح کيږي برابره ده هغه که د اسلام په حالت کي دا تصرفات کړي وي او که د ارتداد په حالت کي او د بعد القتل والموت په دواړو صورتونو کي به د هغه تصرفات جائز او صحيح وي. اصل خبره دا ده چي د مرتد تصرفات ټوله پر څلور قسمه دي: (١) هغه تصرفات کوم چي بالاتفاق نافذيږي لکه مرتد چي يو مينځه اُم ولد جوړه کړي يا د عدت په دوران کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي نو د هغه دا فعلونه د ټولو په نيز نافذيږي، ځکه چي د اُم ولد جوړولو او ذ طلاق ورکولو لپاره نه د حقيقي ملکيت ضرورت پکار دی او نه مکمل ولايت، له همدې کبله فقهاؤ د غلام طلاق صحيح ګرځولی دی حالانکي په غلام کي هيڅ ولايت هم نسته.

(٢) دويم قسم هغه تصرفات دي کوم چي بالاتفاق باطل دي، او دا له ترجمې څخه واضح دي. (٣) دريم هغه تصرفات دي کوم چي بالاتفاق موقوف دي. لکه مرتد چي د يو مسلمان سره د کاروبارو کولو په وخت کي شرکتِ مفاوضه وکړي نو دا شرکت مفاوضه به موقوف پاته وي که چيري هغه اسلا راوړي نو مفاوضه به صحيح کيږي او که د ارتداد په حالت کي هغه مړ سي يا قتل کړی سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي نو مفاوضه باطليږي او د دې بُطلان وجه دا ده چي د مفاوضې د صحت لپاره مساوات بين الشريکين ضروري دی حالانکي په مسلمان او مرتد کي هيڅ مساوات نسته. ځکه چي په اسلام او کفر کي ښکاره تضاد دی. (۴) څلورم قسم هغه تصرفات دي کوم چي مختلف فيه دي او په عبارت کي بيان سوي دي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د تصرف د صحت (صحيح کېدلو) دار ومدار د تصرف پر أهليت دی او دې تصرف نافذېدل د متصرّف پر ملکيت موقوف دي او دلته (په دې مسئله کې) د متصرف په أهليت کې هيڅ شبهه نسته، ځکه چې هغه په شرعي أحکامو مخاطب دی له همدې کبله د ارتداد په وجه پر هغه قتل واجب دی، همدارنګه کوم شی چې د تصرف نافذېدلو لپاره ضروري دی هغه په دغه مرتد کې موجود دی يعني د ده تر مرګه پوري د ده ملکيت باقي پاته دی همدا وجه که د ده تر ارتداد وروسته د ده مسلمانځه په شپږو مياشتو کې دننه بچی وزېږوي نو هغه بچی به د ده وارث وي او که چيري تر ارتداد وروسته او تر مرګ مخکې د ده يو بچی مړ سي نو هغه به د خپل دغه مرتد پلار نه وارث کيږي، ځکه چې د مرتد ملکيت تر مرګه پوري باقي دی او دا بچی د هغه تر مرګ مخکې مړ سوی دی فلا يرثه، له دې څخه دا خبره معلومه سوه چې قبل الموت به د مرتد تصرفات صحيح کيږي او کله چې تصرفات صحيح کيږي نو د اسلام تصرفات به يې داسي صحيح وي لکه د روغ سړي تصرفات چې صحيح کيږي يعني دا تصرفات به د متصرف مرتد په ټوله مال کې صحيح وي، ځکه چې ظاهري حالت همدا دی چې هغه به بيرته د اسلام وطرف ته را وګرځي ځکه چې غالب ګومان همدا دی چې د هغه شبهه به ليري کړی سي. او څرنګه چې مرتده ښځه نه قتلول کيږي همداسي به دغه مرتد هم نه قتلول کيږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به دا تصرفات د مريض د تصرفاتو په څير صحيح کيږي يعني د هغه د مال له دريمې حصې څخه به نافذيږي. ځکه کله چې يو څوک پريوه مذهب او عقيدې پيدا سي او په هغه کې راغښ سي او بيا دئ هغه مذهب پريږدي دويم مذهب اختيار کړي نو تر دې وروسته داسي ډېر کم کيږي چې هغه به دا دويم مذهب هم پريږدي، لهذا د دغه مرتد دوباره اسلام راوړل مشکل دي او د ده پايله او انجام قتل دی. نو ځکه به د ميّت (مرتد) له طرفه به فقط د مال په دريمه حصه کې د هغه تصرفات نافذيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې له ارتداد څخه بغير مرتد حربي کيږي او څرنګه چې دئ زموږ تر لاس لاندي او مغلوب دی، لهذا د ده تصرفات به هم د هغه حربي په څير موقوف وي کوم چې له أمان اخيستلو څخه بغير دارُ الاسلام ته راسي او زموږ تر لاس لاندي مغلوب وګرځي. ځکه چې د ده ملکيت موقوف پاتيږي حالانکي د تصرفاتو صحت د ملکيت پر صحيت موقوف دی. لهذا کله چې د ده ملکيت موقوف دی نو ښکاره خبره ده چې د ده تصرّفات به هم موقوف وي.

پاته سو د دې مرتد د استحقاقُ القتل سوال؟ نو د هغه جواب دا دی چې د عصمت د سبب يعني له اسلام څخه د ګرځېدلو په وجه يا د حربي کېدلو په وجه د هغه عصمت او حفاظت معدوم سو او د عصمت په معدوم کېدلو سره د هغه په أهليت او صلاحيت کې خلل او نقص راغلی او کله چې د هغه په أهليت کې ګړبړ دی نو ښکاره خبره ده چې د هغه په تصرفاتو کې به هم ګړبړ وي يعني صحيح

کیږي او نافذیږي به نه. او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله چي هغه پر مرتده ښځه قیاسوي دا صحیح نه دي. ځکه چي ښځه نه حربیه کیږي او ښځه قتلول کیږي هم نه. همدارنګه زاني او عمداً قتل کونکی په دې وجه د قصاص مستحق کیږي چي قصاص او قتل د دوی د جرم او جنایت سزا ده. لهذا پر هغو باندي هم مرتد قیاسول صحیح نه دي.

## د مرتد اسلام راوړل او له دارُ الحرب څخه واپس راتلل

فَإِنْ عَادَ الْمُرْتَدُّ بَعْدَ الْحُكْمِ بِلَحَاقِهِ بِدَارِ الْحَرْبِ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ مُسْلِمًا بیا که مرتد وروسته تر دې "چي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فیصله وسي" دار الاسلام ته راسي فَمَا وَجَدَهُ فِي يَدِ وَرَثَتِهِ مِنْ مَالِهِ بِعَيْنِهِ نو هغه چي خپل کوم مال بعینهٖ د خپلو وراثانو سره پیدا کړي أَخَذَهُ نو هغه دي اخلي او خلي لِأَنَّ الْوَارِثَ إِنَّمَا يَخْلُفُهُ فِيهِ لِاسْتِغْنَائِهِ ځکه چي وارث هغه وخت د دې مال وارث کیږي کله چي مرتد له هغه څخه مستغني وي (یعني مرتد هغه مال ته محتاج نه وي) وَإِذَا عَادَ مُسْلِمًا احْتَاجَ إِلَيْهِ او کله چي هغه د مسلمانوالي په حالت کي (دارُ الاسلام ته) واپس راسي نو هغه (خپله) دې مال ته محتاج سي فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ نو ځکه به هغه تر وارث مخکي کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَزَالَهُ الْوَارِثُ عَنْ مِلْكِهِ په خلاف د هغه صورت کله چي وارث دا مال له خپل ملکیت څخه ایستلی وي وَبِخِلَافِ أُمَّهَاتِ أَوْلَادِهِ وَمُدَبَّرِيهِ او په خلاف د هغه د اُم ولد مینځو او مدبرو غلامانو لِأَنَّ الْقَضَاءَ قَدْ صَحَّ بِدَلِيلٍ مُصَحِّحٍ ځکه چي د هغو په هکله په مصحح دلیل سره صحیح فیصله سوې ده فَلَا يُنْقَضُ لهذا دا صحیح فیصله به نه ماتیږي وَلَوْ جَاءَ مُسْلِمًا قَبْلَ أَنْ يَقْضِيَ الْقَاضِي بِذَلِكَ او که هغه د مسلمانوالي په حالت کي راسي مخکي تر دې چي قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فیصله وکړي انو د هغه ټوله أملاک به پر خپل حال پاته وي فَكَأَنَّهُ لَمْ يَزَلْ مُسْلِمًا ځکه چي (په دې صورت کي) به هغه داسي وي لکه له همېشه څخه چي مسلمان وو (او بالکل مرتد سوی نه وو) لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿لحاق﴾ د سمع مصدر دی: یو ځای کېدل. مراد ځني دارُ الحرب ته تلل او د حربیانو سره یو ځای کېدل دي. ﴿ید﴾ لاس. مراد ځني قبضه ده. ﴿استغناء﴾ د استفعال مصدر دی: بې پروا کېدل (یو شي ته احتیاج نه لرل).

**تشريح** : **صورت د مسئلې** : دا دی که يو سړی مرتد سي دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله وکړي. بيا هغه مسلمان سي دويم ځل دارُ الاسلام ته راسي ، نو د دې صورت حکم دا دی چي په دارُ الاسلام کي چي د وارثانو سره د هغه کوم مالونه بعينهٖ موجود وي هغه به دا مالونه له وارثانو څخه واپس اخلي ، ځکه چي وارث په هغه صورت کي د دې اسلام راوړونکي مرتد د مال مستحق کيږي کله چي هغه مال ته محتاج نه وي. حالانکي د اسلام په حالت کي دارُ الاسلام ته په واپس راتللو سره هغه په خپله مال ته محتاج سو. نو د هغه حاجت او ضرورت به د وارث له حاجت څخه مخکي کيږي. لېکن که چيري وارث هغه مال په خپل - اجت کي مصرف کړی وي نو له هغه مال څخه د اسلام راوړونکي مرتد حق ختميږي. همدارنګه د ده هغه مدبر غلامان او داسي کوم چي آزاد کړی سوي وي هغه هم آزاد پاتيږي او بيا به غلامان نه جوړيږي، ځکه چي د هغو په هکله د قاضي فيصله په صحيح دليل سره صادره سوې وه. لهذا اوس به هغه فيصله نه ماتيږي. ها! که چيري مرتد دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله نه وکړي بيا هغه مسلمان سي دار الاسلام ته واپس راسي نو د هغه ملکيتونه (أملاک) به د مخکي په څير پر خپل حال پاتيږي او هيڅ شی به د هغه له ملکيت څخه نه زائليږي، ځکه چي په دې صورت کي به هغه له همېشه څخه مسلمان ګڼل کيږي او د هغه ارتداد به معدوم شمارل کيږي.

## د ارتداد په حالت کي د کافري مينځي سره وطي کول

وَإِذَا وَطِئَ الْمُرْتَدُّ جَارِيَةً نَصْرَانِيَّةً كَانَتْ لَهُ فِي حَالَةِ الْإِسْلَامِ او که چيري مرتد د داسي نصراني مينځي سره وطي وکړي کوم چي د اسلام په حالت کي د ده مينځه وي فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ ارْتَدَّ بيا هغه مينځه د ده د مرتد کېدلو له وخت څخه تر شپږو مياشتو په زيات مودت کي بچی وزېږوي فَادَّعَاهُ او مرتد د بچي دعوىٰ وکړي فَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ وَالْوَلَدُ حُرٌّ وَهُوَ ابْنُهُ نو هغه مينځه به د ده اُم ولد وي او بچی به آزاد وي او د ده زوی به وي وَلَا يَرِثُهُ ليکن ا بچی به د ده نه وارث کيږي وَإِنْ كَانَتِ الْجَارِيَةُ مُسْلِمَةً او که مينځه مسلمانه وي وَرِثَهُ الِابْنُ إِنْ مَاتَ عَلَى الرِّدَّةِ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ نو که چيري مرتد پر ارتداد مړ سوی وي يا دارُ الحرب ته تللی وي نو زوی به د هغه وارث کيږي أَمَّا صِحَّةُ الِاسْتِيلَادِ فَلِمَا قُلْنَا کوم چي د اُم ولد جوړولو صحيح کېدل دي نو د هغه دليل په وجه دي کوم چي مو بيان کړی وَأَمَّا الْإِرْثُ فَلِأَنَّ الْأُمَّ إِذَا كَانَتْ نَصْرَانِيَّةً وَالْوَلَدُ تَبَعٌ لَهُ او کوم چي د زوي وارث کېدل

دي نو ځکه چي کله مور نصراني وي نو بچی به د خپل مرتد پلار تابع وي لِقُرْبِهِ إِلَى الْإِسْلَامِ ځکه چي [په دې صورت کي] پلار اسلام ته زيات نژدې دی لِلْجَبْرِ عَلَيْهِ ځکه چي هغه به پر اسلام راوړلو مجبورول کيږي فَصَارَ فِي حُكْمِ الْمُرْتَدِّ نو دا بچی هم د مرتد په حکم کي سو وَالْمُرْتَدُّ لَا يَرِثُ الْمُرْتَدَّ او مرتد د مرتد وارث کېدلای نه سي أَمَّا إِذَا كَانَتْ مُسْلِمَةً لېکن که هغه مينځه مسلمانه وي فَالْوَلَدُ مُسْلِمٌ تَبَعًا لَهَا نو بچی به د هغې په متابعت کي مسلمان وي لِأَنَّهَا خَيْرُهُمَا دِينًا ځکه چي [په دې صورت کي] مور د دين په اعتبار سره غوره ده وَالْمُسْلِمُ يَرِثُ الْمُرْتَدَّ او مسلمان د مرتد وارث کېدلای سي وَإِذَا لَحِقَ الْمُرْتَدُّ بِمَالِهِ بِدَارِ الْحَرْبِ او که چيري مرتد د خپل مال سره دارُ الحرب ته ولاړ سي ثُمَّ ظُهِرَ عَلَى ذٰلِكَ الْمَالِ بيا پر هغه مال [د مجاهدينو] غلبه وسي فَهُوَ فَيْءٌ نو هغه به فيئ وي فَإِنْ لَحِقَ ثُمَّ رَجَعَ وَأَخَذَ مَالًا وَأَلْحَقَهُ بِدَارِ الْحَرْبِ او که مرتد دارُ الحرب ته ولاړ سي بيا واپس راسي او مال واخلي او دارُ الحرب ته يې يووسي فَظُهِرَ عَلَى ذٰلِكَ الْمَالِ بيا پر هغه مال [د مجاهدينو] غلبه وسي فَوَجَدَتْهُ الْوَرَثَةُ قَبْلَ الْقِسْمَةِ او د مرتد وارثان هغه د غنيمت تر تقسيم مخکي پيدا کړي رُدَّ عَلَيْهِمْ نو هغه مال به هغو ته واپس کيږي لِأَنَّ الْأَوَّلَ مَالٌ لَمْ يَجْرِ فِيهِ الْإِرْثُ ځکه چي اول مال يو داسي مال دی چي په هغه کي وارثت جاري نه دی وَالثَّانِي انْتَقَلَ إِلَى الْوَرَثَةِ او دويم مال د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل سو بِقَضَاءِ الْقَاضِي بِلَحَاقِهِ ځکه چي قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله وکړه فَكَانَ الْوَارِثُ مَالِكًا قَدِيمًا لهذا وارثانو به پخواني حقداره وي.

**اللغات**: ﴿ظُهِر﴾ د فتح ماضي مجهوله ده، د دې باب په صله کي چي "عَلَى" ذکر سي نو د "غالبېدلو" او "قبضه کولو" په معنیٰ سره راځي. ﴿فيء﴾ د غنيمت مال. ﴿ألحقه﴾ د افعال ماضي ده: ور سره يو ځای کول، مراد ځني د مال وړل دي. ﴿رُدّ﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: واپس کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د اسلام په زمانه کي د مرتد يوه نصرانيه مينځه وي او مرتد د هغې مينځي سره وطي وکړي، بيا هغه مينځه د دې مرتد د ارتداد له وخت شخه تر شپږو مياشتو په زيات مودت کي بچی وزېږوي او مرتد د هغه دعوی وکړي. نو مينځه به د ده (مرتد) اُمِ ولد کيږي او هغه بچی به د ده زوی کيږي او آزاد به وي لېکن د خپل پلار به نه وارث کيږي، ها! که چيري مينځي

اسلام راوړي وي او مرتـد دارتـداد پـه حالـت کـي مړ سوی وي يـا دارُ الحرب تـه تللـی وي نو پـه دې صورت هغه پيدا سوی بچی د خپل پلار وارث کيږي؛ صاحب د هدايې دليل بيانوي فرمايي چي د مرتد استيلاد صحيح دی (يعني دا صحيح دي چي مرتد يوه مينځه اُم ولد جوړه کړي). ځکه چي د استيلاد لپاره نه حقيقي ملکيت ضروري وي او نه د ولايت بشپړ تيا(تماميت) ضروري وي. او د مور د نصراني والي په صورت کي به ځکه بچی د خپل مرتد پلار نه وارث کيږي چي بچی به د خپل پلار تابع وي، ځکه چي پلار به پر دوباره اسلام راوړلو مجبوره کيږي او هغه به اسلام ته زيات نژدې وي. نو د پلار په متابعت کي به هغه بچی هم د مرتد په حکم کي وي، او مرتـد د مرتـد وارث کېدلای نه سي.

او د مور د مسلمانوالي په صورت کي به د "الولد يتبع خير الأبوين" په وجه بچی د خپلي مور تابع کيږي او مسلمان به وي. او مسلمان د مرتد وارث کېدلای سي. لهذا په دې صورت کي د بچي د خپل پلار په وارث کېدلو کي هيڅ شبهه نسته.

**وإذا لحق المرتد إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که مرتد خپل مال د ځان سره دارُ الحرب ته يووسي. بيا پر هغه مال د مجاهدينو غلبه او قبضه راسي نو هغه مال به فيئ وي. ځکه چي د ارتداد او لحاق بدار الحرب په وجه هغه مرتد حربي وګرځېدی او د حربي مال فيئ وي. او که چيري مرتـد يـوازي دارُ الحرب تـه ولاړ سي بيا واپس راسي او دويـم وار د ځـان سره سامان دارُ الحـرب تـه يووسـي او بيـا پـر هغـه مـال د مجاهدينو قبضه راسي او له تقسيم څخه مخکي هغه مال د مرتد وارثانو ته ورسيږي. نو هغه به فقط د وارثانو حق وي (بـل چا تـه بـه نـه ورکول کيږي)، ځکه کله چي قاضي دارُ الحرب تـه د مرتـد د تللـو فيصله وکړه نو د مرتد مـال د هغـه د وارثـانو وطرف تـه منتقل سو او وارثـان د هغـه مـال پخـواني مالکـان سول (يعني د هغه مال اول حقداره وګرځېدل) او د مجاهدينو تر غلبې وروسته هغه مال بيرتـه وارثـانو ته ورسېدی نو همدغه پخواني مالکان به د هغه زيات حقداره وي. لهذا فقط هغو ته به مال ورکول کيږي.

## که زوی د خپل مرتد پلار غلام مکاتب جوړ کړي (حکم)

وَإِذَا لَحِقَ الْمُرْتَدُّ بِدَارِ الْحَرْبِ او که چيري مرتد دارُ الحرب ته ولاړ سي وَلَهُ عَبْدٌ فَقُضِيَ بِهِ لِابْنِهِ او د ده يو غلام وي چي د هغه په هکله د ده د زوی لپاره فيصله وسي [يعني قاضي دا فيصله وکړي چي دا غلام د مرتد د زوی دی] وَكَاتَبَهُ الِابْنُ او زوی هغه مکاتب جوړ کړي ثُمَّ جَاءَ الْمُرْتَدُّ مُسْلِمًا بيا مرتد د مسلمانوالي په حالت کي راسي فَالْكِتَابَةُ جَائِزَةٌ وَالْمُكَاتَبَةُ وَالْوَلَاءُ لِلْمُرْتَدِّ الَّذِي أَسْلَمَ نو مکاتبت [مکاتب جوړول] به جائز وي او د کتابت مال او د مکاتب ولاء د هغه مرتد ته ورکول کيږي کوم چي مسلمان سوی دی لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى بُطْلَانِ الْكِتَابَةِ ځکه چي د مکاتبت د باطلولو هيڅ صورت نسته

لِنُفُوذِهَا بِدَلِيلٍ مُنَفِّذٍ ځکه چې هغه په نافذونکي دليل سره نافذ سوی دی فَجَعَلْنَا الْوَارِثَ الَّذِي هُوَ خَلَفُهُ كَالْوَكِيلِ مِنْ جِهَتِهِ نو ځکه موږ هغه وارث کوم چې د مرتد نائب دی د هغه له طرفه وکيل جوړ کړی وَحُقُوقُ الْعَقْدِ فِيهِ تَرْجِعُ إِلَى الْمُوَكِّلِ او په عقد کتابت کي د عقد حقوق د مؤکل وطرف ته راجع کيږي وَالْوَلَاءُ لِمَنْ يَقَعُ الْعِتْقُ عَنْهُ او ولاء هغه کس ته حاصليږي چي د هغه له طرفه آزادي واقع سوې وي وَإِذَا قَتَلَ الْمُرْتَدُّ رَجُلًا خَطَأً او که چيري مرتد خطاءً يو سړی قتل کړي ثُمَّ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ أَوْ قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ بيا هغه دار الحرب ته ولاړ سي يا د ارتداد په حالت کي قتل کړی سي فَالدِّيَةُ فِي مَالٍ اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ الْإِسْلَامِ خَاصَّةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به ديت فقط په هغه مال کي وي کوم چي هغه [مرتد] د اسلام په حالت کي ګټلی وي وَقَالَا[1]: الدِّيَةُ فِيمَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالَةِ الْإِسْلَامِ وَالرِّدَّةِ جَمِيعًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي ديت به په هغه ټوله مال کي وي کوم چي هغه د اسلام او ارتداد په دواړو حالتونو کي ګټلی وي لِأَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ الْمُرْتَدَّ ځکه چي عاقله د مرتد ديت نه ورکوي لِانْعِدَامِ النُّصْرَةِ ځکه چي نصرت معدوم وي فَتَكُونُ فِي مَالِهِ لهذا ديت به [فقط] د هغه په مال کي وي وَعِنْدَهُمَا الْكَسْبَانِ جَمِيعًا مَالُهُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دواړي ګټي د هغه خپل مال [او ملکيت] دي لِنُفُوذِ تَصَرُّفَاتِهِ فِي الْحَالَيْنِ ځکه چي په دواړو حالتونو کي د هغه تصرفات نافذيږي وَلِهَذَا يَجْرِي الْإِرْثُ فِيهِمَا عِنْدَهُمَا له همدې کبله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دواړو ګټو کي وراثت جاري کيږي وَعِنْدَهُ مَالُهُ الْمُكْتَسَبُ فِي الْإِسْلَامِ او د امام صاحب په نيز د مرتد مال هغه دی کوم چي هغه د اسلام په حالت کي ګټلی وي لِنَفَاذِ تَصَرُّفِهِ فِيهِ دُونَ الْمَكْسُوبِ فِي الرِّدَّةِ ځکه چي [د امام صاحب په نيز] د مرتد تصرفات په هغه مال کي نافذيږي، نه د حالت ارتداد په ګټه کي لِتَوَقُّفِ تَصَرُّفِهِ ځکه چي په هغه ګټه کي د ده تصرف موقوف وي وَلِهَذَا كَانَ الْأَوَّلُ مِيرَاثًا عَنْهُ وَالثَّانِي فَيْئًا عِنْدَهُ له همدې کبله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د حالت اسلام والا ګټه ميراث کيږي او د حالت ارتداد والا ګټه فيئ کيږي.

---

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفه رحمه‌الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۳۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۰۳]

**اللغات**: ﴿كاتبه﴾ د مفاعلې ماضي ده: د مكاتبت معامله كول. مكاتب جوړول. ﴿ولاء﴾ د آزاد كړى سوي غلام ميراث.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو سړى مرتد سي دارُ الحرب ته ولاړ سي او د دې مرتد سړي يو غلام وي چي د هغه په باره قاضي دا فيصله وكړي چي تر دې وروسته دا غلام د مرتد د زوى دى. او زوى هغه غلام مكاتب جوړ كړي. تر دې وروسته مرتد اسلام راوړي او دارُ الاسلام ته واپس راسي. نو د هغه د زوى مكاتبت به جائز وي. خو د عقد كتابت د بدل اداء كولو په صورت كي به د مكاتب غلام ولاء د هغه مخكني مالک يعني دغه اسلام راوړونكي مرتد ته وركول كيږي. ځكه چي په دې مسئله كي بدلِ كتابت باطل نه سو. ځكه چي د ده زوى د قاضي په قضاء سره د غلام مالک سوى دى. نو ځكه موږ د صحت د صورت په اختيارولو سره د ده وارث زوى د ده وكيل ګرځولى دى او څرنګه چي په عقد كتابت كي عقد د مؤكل وطرف ته راجع كيږي نو ځكه به د كتابت بدل (عوض) او د مكاتب ولاء همدغه مؤكل يعني "اسلام راوړونكي مرتد" ته وركول كيږي. ځكه چي آزادي د ده له طرفه واقع سوې او دا خو مشهوره خبره ده چي "الولاء للمُعتِق".

**وإذا قتل المرتد إلخ**: فرمايي: كه چيري مرتد خطاءً يو څوک قتل كړي بيا هغه دارُ الحرب ته ولاړ سي يا د ارتداد په حالت كي قتل كړى سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د ده په هغه مال كي ديت واجبيږي كوم چي ده د اسلام په حالت كي ګټلى وي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نه نيز به د اسلام او ارتداد په دواړو ګټو كي ديت واجبيږي: د صاحبينو دليل دا دى چي د دواړو حالتونو ګټې د هغه ملكيت دى ځكه چي په دواړو كي د هغه تصرفات نافذيږي او په دواړو كي ميراث هم جاري دى. لهذا له دواړو ګټو څخه به ديت هم اداء كيږي. او څرنګه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز فقط د حالت اسلام والا په ګټه كي د مرتد تصرفات نافذيږي او فقط په هغه كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ميراث جاري كيږي. لهذا فقط د حالت اسلام والا ګټه به د هغه مال وي او له هغه څخه به ديت اداء كيږي. پاته سو د حالت ارتداد والا ګټه نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه د مرتد نه ده. ځكه چي په هغه كي د ده تصرفات موقوف پاته وي. او هغه ګټه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ميراث هم نه ګرځي بلكې فيئ به وي. نو په همدې وجه به له هغه څخه ديت هم نه اداء كيږي. او په دواړو صورتونو كي د قاتل له مال څخه د ديت اداء كولو وجه دا ده چي په مرتد او مسلمان كي خپل مينځوى نصرت معلوم دى (يعني مسلمان د مرتد نصرت او مدد نه سي كولاى) نو په دې وجه به دلته عاقله د هغه ديت نه اداء كوي.

## د ارتداد او ديت يوه مسئله

وَإِذَا قُطِعَتْ يَدُ الْمُسْلِمِ عَمْدًا او كه چيري د يو مسلمان لاس قصداً پرېكړى سي فَارْتَدَّ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ بيا نعوذ بالله هغه مرتد سي ثُمَّ مَاتَ عَلَى رِدَّتِهِ مِنْ ذٰلِكَ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ بيا د هغه قطع او زخم په وجه مړ سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي ثُمَّ جَاءَ مُسْلِمًا فَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا د مسلمانوالي په حالت كي راسي او د هغه قطع په وجه مړ سي فَعَلَى الْقَاطِعِ نِصْفُ الدِّيَةِ فِي مَالِهِ لِلْوَرَثَةِ نو پر قاطع [پرېكونكي] به په خپل مال كي [د ميّت] د وارثانو لپاره نيم ديت واجب وي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ السِّرَايَةَ حَلَّتْ مَحَلًّا غَيْرَ مَعْصُومٍ كوم چي اول صورت دى نو ځكه چي قطع په داسي محل كي سرايت كړى وو كوم چي د حفاظت قابل نه وو فَأُهْدِرَتْ نو ځكه د هغه وينه [او خون] هدر [او بې ضمانه] سو بِخِلَافِ مَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُ الْمُرْتَدِّ ثُمَّ أَسْلَمَ فَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ په خلاف د هغه صورت كله چي د مرتد لاس پرېكړى سي بيا هغه مسلمان سي او د هغه قطع په وجه مړ سي [نو پر قاطع هيڅ شى نه واجبيږي] لِأَنَّ الْإِهْدَارَ لَا يَلْحَقُهُ الِاعْتِبَارُ ځكه چي [په هغه صورت كي] إهدار لره هيڅ اعتبار نه وي أَمَّا الْمُعْتَبَرُ قَدْ يُهْدَرُ بِالْإِبْرَاءِ فَكَذَا بِالرِّدَّةِ كوم چي معتبر قصاص دى نو هغه په معافولو سره ساقطيږي نو همداسي به په ارتداد سره هم قصاص ساقطيږي وَأَمَّا الثَّانِي وَهُوَ مَا إِذَا لَحِقَ وَمَعْنَاهُ إِذَا قُضِيَ بِلَحَاقِهِ فَلِأَنَّهُ صَارَ مَيِّتًا تَقْدِيرًا او كوم چي دويم صورت دى يعني كله چي هغه دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي د هغه د تللو فيصله وكړي نو [د هغه قصاص به ځكه باطليږي] چي هغه په تقديري اعتبار سره مړ وګرځېدى وَالْمَوْتُ يَقْطَعُ السِّرَايَةَ او مرګ سرايت قطع كوي [يعني مرګ د زخم أثر له سرايت كولو څخه منع كوي] وَإِسْلَامُهُ حَيَاةٌ حَادِثَةٌ فِي التَّقْدِيرِ او د هغه اسلام راوړل تقديراً [د معنىٰ په اعتبار سره] نوى ژوند دى [يعني لكه هغه چي نوي ژوندى سو] فَلَا يَعُودُ حُكْمُ الْجِنَايَةِ الْأُولَى لهذا [په دې نوي ژوند كي] به د اول جرم حكم نه راګرځي فَإِذَا لَمْ يَقْضِ الْقَاضِي بِلَحَاقِهِ او كه چيري قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله كړې نه وي فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِي نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى نو دا [مسئله] پر هغه اختلاف ده چي هغه به موږ انشاء الله [څه وروسته] بيان كړو.

**اللغات:** ﴿سراية﴾ د ضرب مصدر دی: أثر او اغېز کول، سرايت کول، (په بدن کې د زخم أثر غوړېدل او نشر کېدل)، ﴿أهدرت﴾ د افعال ماضي ده: وينه ضايع کول (خون ضايع كول)، بېله بدلې او بېله ضمانه پرېښودل. بربادول، باطلول. ﴿يُهدر﴾ د مضارع مجهوله صيغه ده: هدر کېدل، خون او وينه ضايع کېدل (پالتو کېدل). بې بدلې پاتېدل. ﴿إبراء﴾ د افعال مصدر دی: بري کول، معاف کول (بخښل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک قصداً د يو مسلمان لاس پرېکړي بيا دا مقطوع بدبخته مرتد سي او د ارتداد په حالت کې مړ سي يا دارُ الحرب ته ولاړ سي، لېکن څو وخت وروسته بېرته اسلام راوړي او واپس راسي او بيا د هغه مخکنې زخم په وجه مړ سي نو اوس به پر قاطع د نفس ديت نه وي بلکې پر هغه به د لاس ديت واجب وي کوم چې د نفس د ديت نصف کيږي؛ په اول يعنې د ارتداد والا په صورت کې د نفس د ديت نه واجبېدلو وجه دا ده چې که څه هم مقطوع د اسلام په حالت کې زخمي سوی دی لېکن دغه زخم چې کله په هغه کې سرايت کړی دی په هغه وخت کې دئ مرتد وو او زخم په غير محترم او غير محفوظ مقام کې سرايت کړی دی نو ځکه به د هغه عوض او ديت نه واجبيږي، ځکه چې عوض د هغه محل لپاره واجبيږي کوم چې محترم وي. د دې په خلاف که چيرې د مرتد لاس پرېکړی سي بيا هغه مسلمان سي او د هغه مخکنې زخم په وجه مړ سي نو پر قاطع به هيڅ ضمان واجب نه وي نه به د نفس ديت پر واجب وي او نه به د لاس ديت پر واجب وي؛ ځکه په کوم وخت کې چې د ده (مرتد) لاس پرېکړی سو په هغه وخت کې ده لره هيڅ اعتبار نه وو او په هغه وخت کې ديت واجب نه وو، لهذا تر اسلام راوړلو وروسته به هم هغه لره هيڅ اعتبار نه وي او وروسته به هم ديت نه واجبيږي.

او په دويم صورت يعني دارُ الحرب ته د تللو په صورت کې د نفس د ديت نه واجبېدلو وجه دا ده چې دارُ الحرب ته د تللو په وجه هغه مرتد معناً د مړه په څېر سو او مرګ د زخم له سرايت څخه مانع دی او دوباره د هغه اسلام راوړل داسې دي لکه دوباره نوي ژوندی کېدل، نو ځکه به په دې نوي ژوند کې مخکنې زخم لره هيڅ أثر او اعتبار نه وي او په مخکنې زخم سره د مړه کېدلو په وجه به پر قاطع د نفس ديت واجب نه وي. او که چيرې قاضي دارُ الحرب ته د دې مرتد د تللو فيصله نه وي کړې نو د هغه حکم به په راتلونکې عبارت کې ذکر سي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

قال: **فَإِنْ لَمْ يَلْحَقْ وَأَسْلَمَ ثُمَّ مَاتَ** فرمايي: که مرتد دارُ الحرب ته ولاړ نه سي او اسلام راوړي بيا مړ سي **فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ كَامِلَةً** نو پر هغه به پوره ديت واجب وي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ** دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی **وَقَالَ: مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ** ●: **فِي جَمِيعِ ذَلِكَ نِصْفُ الدِّيَةِ** امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په دې ټولو صورتونو کې به نيم ديت واجب وي **لِأَنَّ اعْتِرَاضَ الرِّدَّةِ أَهْدَرَ**

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:٥، ص:١٣٧). [انظر: الراجح ج:١، ص:٥٠٥]

السِّرَايَةِ ځکه چي ارتداد سرايت باطل کړی (يعني د ارتداد پېښېدلو په وجه سرايت باطل سو) فَلَا يَنْقَلِبُ بِالْإِسْلَامِ إِلَى الضَّمَانِ لهذا په اسلام راوړلو سره به دا إهدار په ضمان سره نه بدلېږي كَمَا إِذَا قُطِعَ يَدُ مُرْتَدٍّ فَأَسْلَمَ لکه د يو مرتد لاس چي پرېکړی سي بيا هغه مسلمان سي وَلَهُمَا: أَنَّ الْجِنَايَةَ وَرَدَتْ عَلَى مَحَلٍّ مَعْصُومٍ وَتَمَّتْ فِيهِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي جرم په محترم (محفوظ) محل کي واقع سوی دی او په هغه کي پوره سوی دی فَيَجِبُ ضَمَانُ النَّفْسِ نو ځکه به د نفس ضمان واجبېږي كَمَا إِذَا لَمْ تَتَخَلَّلِ الرِّدَّةُ لکه کله چي ارتداد مُخل نه سي (يعني په دې دوران کي ارتداد پېښ نه سي) وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِقِيَامِ الْعِصْمَةِ فِي حَالِ بَقَاءِ الْجِنَايَةِ او دا ځکه چي د جرم د بقاء په حالت کي د عصمت (او حفاظت) موجود والي لره هيڅ اعتبار نسته وَإِنَّمَا الْمُعْتَبَرُ قِيَامُهَا فِي حَالِ انْعِقَادِ السَّبَبِ وَفِي حَالِ ثُبُوتِ الْحُكْمِ بلکي د سبب د منعقد کېدلو او د حکم د ثابتېدلو په وخت کي د عصمت موجود والی معتبر دی وَحَالَةُ الْبَقَاءِ بِمَعْزِلٍ مِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ او د بقاء حالت له دې ټولو څخه جلا دی وَصَارَ كَقِيَامِ الْمِلْكِ فِي حَالِ بَقَاءِ الْيَمِينِ او دا داسي دی لکه د يمين د بقاء په حالت کي د ملکيت پاتېدل (موجود والی) وَإِذَا ارْتَدَّ الْمُكَاتَبُ وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ وَاكْتَسَبَ مَالًا او که چيري مکاتب مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او (هلته) مال وګټي فَأُخِذَ بِمَالِهِ وَأَبَى أَنْ يُسْلِمَ فَقُتِلَ بيا هغه د خپل مال سره ونيول سي او هغه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي. بيا قتل کړی سي فَإِنَّهُ يُوَفَّى مَوْلَاهُ مُكَاتَبَتَهُ نو (د هغه له مال څخه) به مالک ته د مالک د کتابت مال ورپوره کېږي وَمَا بَقِيَ فَلِوَرَثَتِهِ او کوم مال چي باقي پاته سي نو هغه به د ده د وارثانو وي وَهٰذَا ظَاهِرٌ عَلَى أَصْلِهِمَا او دا خو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر أصل ښکاره دي لِأَنَّ كَسْبَ الرِّدَّةِ مِلْكُهُ إِذَا كَانَ حُرًّا ځکه که چيري مرتد آزاد وي نو د هغه ګټه (د صاحبينو په نېز) د هغه خپل ملکيت دی فَكَذَا إِذَا كَانَ مُكَاتَبًا لهذا کله چي هغه مکاتب وي نو هم به ګټه د هغه ملکيت وي وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فَلِأَنَّ الْمُكَاتَبَ إِنَّمَا يَمْلِكُ أَكْسَابَهُ بِالْكِتَابَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا حکم په دې وجه دی چي مکاتب د عقد کتابت په وجه د خپلي ګټي مالک کېږي وَالْكِتَابَةُ لَا تَتَوَقَّفُ بِالرِّدَّةِ او د هغه په مرتد کېدلو سره کتابت نه موقوف

کیږي فَكَذَا اَكْسَابُهٗ نو همداسې به د هغه ګټه هم نه موقوفه کیږي اَلَا تَرٰى اَنَّهٗ لَا يَتَوَقَّفُ تَصَرُّفُهٗ بِالْاَقْوٰى وَهُوَ الرِّقُّ آيا ته نه ګورې! چې د هغه تصرّف په ډېر قوي شي يعني په رقيت (غلامتوب) سره نه موقوف کیږي فَكَذَا بِالْاَدْنٰى بِالطَّرِيْقِ الْاَوْلٰى لهذا په أدنىٰ شي (ارتداد) سره به په طريقه اولىٰ نه موقوف کیږي.

**اللغات**: ﴿اعتراض﴾ د افتعال مصدر دی: په مینځ کې راتلل. پیښیدل ﴿معزل﴾ ګوښه والی. جلا والی. ﴿كَسب﴾ ګټه. ګټل سوی مال.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چیرې "مقطوعُ اليد مرتد" دارُ الحرب ته ولاړ نه سي. یا ولاړ سي لیکن قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فیصله نه وکړي بیا هغه مسلمان سي او تر اسلام راوړلو وروسته د قطعُ اليد په وجه مړ سي. نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پر قاطع د هغه پوره دیت واجب وي. لیکن د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز به په ټولو صوتوکو کې فقط نیم دیت واجب وي: د دې حضراتو دلیل دا دی چې د مقطوع ارتداد د زخم سرایت او أثر ختم کړی. لهذا د هغه په مسلمانېدلو سره به دغه إهدار په ضمان سره نه بدلیږي. نو ځکه به د نفس دیت نه واجبیږي. بلکې په ټولو صورتونو کې به نیم دیت یعني د لاس دیت واجب وي.

د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې کله د مقطوع لاس پرېکړی سو په هغه وخت کې دئ مسلمان وو او جنایت پر محترم او معصوم محل باندې واقع سو او د اسلام په حالت کې د هغه زخم په وجه دئ مړ هم سو نو ځکه به د نفس دیت واجب وي. لکه کله چې په مینځ کې ارتداد واقع نه سي نو په هغه صورت کې هم پر قاطع د نفس دیت واجبیږي همداسې به په دې مسئله کې هم پر هغه کامل دیت واجب وي.

او څرنګه چې په دې مسئله کې مقطوع د قطعُ اليد په وخت کې مسلمان دی او د هغه عصمت کامل دی. لهذا د دې وخت د جنایت جزاء او سزا به هم کامله وي او پر قاطع به پوره دیت واجب وي. د دې مثال داسې دی لکه څرنګه چې د یمین د بقاء په حالت کې د ملکیت باقي پاتېدل ضروري نه دي. بلکې که د یمین د منعقد کېدلو په وخت کې (یعني د قسم اخیستلو په وخت کې) ملکیت باقي وي نو یمین صحیح کیږي. مثلاً که یو څوک خپلې ښځې ته ووایي "إن دخلتِ الدار فأنتِ طالقٌ" نو څرنګه چې د یمین په وخت کې هغه د ده ښځه ده نو ځکه یمین صحیح دی. او که تر دې وروسته دئ هغه ښځې ته طلاق بائن ورکړي او له خپل ملکیت څخه یې وباسي او بیا دوباره نکاح سره ورکړي. تر دې وروسته دا ښځه کور ته داخله سي نو هم هغه طلاقیږي.

**وإذا إلخ:** فرمايي كه چيري يو مكاتب مرتد سي دارُ الحرب ته ولاړ سي او هلته مال وګټي بيا امام هغه د خپل مال سره ونيسي او پر هغه اسلام پيش كړي، لېكن هغه له اسلام راوړلو څخه انكار وكړي. نو امام دي هغه قتل كړي او د هغه سره چي كوم مال دی، په هغه مال سره دي د ده عقد كتابت اداء كړي او كوم مال چي باقي پاته سي نو هغه دي د ده وارثانو ته وركړي. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو د دې صحيح كېدل ظاهر او څرګند دی ځكه چي د صاحبينو په نېز مرتد د حالت ارتداد والا د ګټي مالك دی او عقد كتابت چي كله په مرګ سره نه باطليږي نو په ارتداد سره به په طريقه اولىٰ نه باطليږي.

او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې د صحيح كېدلو وجه دا ده چي د عقد كتابت په وجه مكاتب د خپلي ګټي مالك كيږي ځكه چي د ارتداد په وجه په عقد كتابت كي هېڅ خرابي نه راځي. لهذا د مكاتب په ګټه كي به هم د ارتداد په وجه هيڅ خرابي نه راځي او د هغه له ګټي څخه به بدل كتابت هم اداء كيږي او پاته ګټه به د هغه وارثانو ته وركول كيږي. همدارنګه كله چي د رقيت په وجه د مرتد تصرفات نه موقوف كيږي نو د ارتداد په وجه خو به په طريقه اولىٰ نه موقوف كيږي، ځكه چي د مانعيت په حواله سره رقيت له ارتداد څخه زيات قوي دی.

## خاوند او ښځه يو ځای مرتد كېدل او دارُ الحرب ته تلل

**وَإِذَا ارْتَدَّ الرَّجُلُ وَامْرَأَتُهُ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ** او كه چيري سړی او ښځه دواړه (نعوذ بالله) مرتد سي **وَلَحِقَا بِدَارِ الْحَرْبِ** او دواړه درُ الحرب ته ولاړ سي **فَحَبِلَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَارِ الْحَرْبِ وَوَلَدَتْ وَلَدًا** او ښځه په دارُ الحرب كي حامله [بلاربه] سي او بچی وزېږوي **وَوُلِدَ لِوَلَدِهِمَا وَلَدٌ** او د دوی د بچي [هم] بچی پيدا سي **فَظُهِرَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا** بيا پر دوی ټولو [د مجاهدينو] غلبه وسي **فَالْوَلَدَانِ فَيْءٌ** نو دواړه بچيان به فيئ وي **لِأَنَّ الْمُرْتَدَّةَ تُسْتَرَقُّ فَيَتْبَعُهَا وَلَدُهَا** ځكه چي مرتده ښځه به مينځه ګرځول كيږي نو د هغې بچی به د هغې تابع كيږي **وَيُجْبَرُ الْوَلَدُ الْأَوَّلُ عَلَى الْإِسْلَامِ وَلَا يُجْبَرُ وَلَدُ الْوَلَدِ** او اول بچی به پر اسلام راوړلو مجبورول كيږي [لېكن] د بچي بچی [المسى] به نه مجبورول كيږي **وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يُجْبَرُ تَبَعًا لِلْجَدِّ** او حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت كړی دی چي د نيكه په متابعت كي به لمسى هم مجبورول كيږي **وَأَصْلُهُ التَّبَعِيَّةُ فِي الْإِسْلَامِ** او د دې روايت اصل په اسلام كي تابع كېدل دی ايعني آيا لمسی په مسلمان كېدلو كي د خپل نيكه تابع كيږي. كه نه؟ا **وَهِيَ**

رَابِعَةُ أَرْبَعِ مَسَائِلَ كُلُّهَا عَلَى الرِّوَايَتَيْنِ او دا له هغو څلورو مسئلو څخه څلورمه مسئله ده کوم چي هره يوه پر دوو روايتونو ده (يعني په هر يوه کي دوه روايتونه دي) وَالثَّانِيَةُ صَدَقَةُ الْفِطْرِ او دويمه مسئله د صدقه فطر (سرسايې) ده (يعني نيکه به د غريب لمسي له طرفه صدقه فطر اداء کوي. که نه؟) وَالثَّالِثَةُ جَرُّ الْوَلَاءِ او دريمه مسئله د ولاء راکشولو ده (يعني نيکه ته به د لمسي ولاء حاصليږي. که نه؟) وَالْأُخْرَى الْوَصِيَّةُ لِلْقَرَابَةِ او څلورمه مسئله د قرابت لپاره د وصيت کولو ده.

**اللغات**: ﴿جر﴾ د نصر مصدر دی: کشول (را کشول). ﴿ولاء﴾ د آزاد کړی سوي غلام ميراث.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چيري خاوند او ښځه يو ځای مرتد سي دارُ الحرب ته ولاړ سي او ښځه هلته يو بچی وزيږوي بيا دا بچی غټ سي او واده وکړي او د ده ښځه هم بچی وزيږوي. بيا مجاهدين پر دارُ الحرب غالب سي، نو په دې صورت کي به د دوی بچی او لمسی دواړه فيئ او غنيمت وي، ځکه چي مرتده ښځه خو به مينځه جوړول کيږي او څرنګه چي په رقيت او حُريت کي بچی د مور تابع کيږي لهذا د خپلي مور په متابعت کي به هغه هم فيئ وي. او د دوی زوی به پر اسلام مجبورول کيږي، ځکه چي پلار مرتد دی او پر مرتد اسلام پېشول کېدا سي لهذا د پلار په متابعت کي به پر زوی هم اسلام پېشول کيږي. لېکن د زوی. زوی يعني لمسی پر اسلام راوړلو مجبورول کېدای نه سي ځکه چي لمسی د نيکه نه تابع کيږي، دا ظاهر روايت دی. او حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا بيان کړی دی چي د نيکه په متابعت کي به پر لمسي هم اسلام پېشول کيږي. او د دې اختلاف وجه دا ده چي په ظاهر روايت کي د مسلمان کېدلو لپاره د نيکه تبعيت لره هيڅ اعتبار نسته لېکن د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله په نيز دا تبعيت معتبر دی.

صاحب د هدايې فرمايي چي دا له هغو څلورو مسئلو څخه يو مسئله ده چي په هغوی کي د ظاهر الروايه او د حسن بن زياد دوه جلا، جلا روايتونه دي. ② دويمه مسئله د صدقه فطر (سرسايې) ده. يعني که د يو بچي پلار غريب وي او د هغه نيکه مالدار وي نو ظاهر په روايت کي پر نيکه د هغه صدقه فطر واجب نه ده او د حسن بن زياد په نيز واجب ده. ③ دريمه مسئله دا ده چي که پلار د يو چا غلام وي او نيکه د لمسي مالک جوړ سي چي د هغه په وجه لمسی آزاد سي. نو په ظاهر روايت کي نيکه د لمسي د ولاء نه حقداره کيږي، او د حسن بن زياد په نيز هغه د لمسي د ولاء حقداره کيږي. ④ څلورمه مسئله دا ده چي که يو څوک د خپلو قريبانو لپاره وصيت کړي نو د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله په نيز په هغه وصيت کي د پلار سره نيکه هم داخليږي، لېکن په ظاهر روايت کي نيکه نه پکښي داخليږي.

## د بچي مرتد کېدل

قال: وَارْتِدَادُ الصَّبِيِّ الَّذِي يَعْقِلُ ارْتِدَادٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ فرمايي: چې د ا نابالغ ا پوهېدونکي بچي ارتداد د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ارتداد دی ايعني د صاحبينو په نېز د هغه مرتد کېدل معتبر دي ا وَيُجْبَرُ عَلَى الْإِسْلَامِ وَلَا يُقْتَلُ او هغه به اهم ا پر اسلام راوړلو مجبوروول کيږي الېکن ا هغه به نه قتل کيږي وَإِسْلَامُهُ إِسْلَامٌ او د هغه اسلام اهم ا اسلام دی ايعني د هغه اسلام راوړل هم معتبر دي ا لَا يَرِثُ أَبَوَيْهِ إِنْ كَانَا كَافِرَيْنِ اهمدا وجه ده ا که چيري د هغه مور وپلار کافران وي نو هغه د دوی نه وارث کيږي وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ ۞: ارْتِدَادُهُ لَيْسَ بِارْتِدَادٍ وَإِسْلَامُهُ إِسْلَامٌ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغه مرتد کېدل معتبر نه دي الېکن ا د هغه اسلام راوړل معتبر دي وَقَالَ: زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: إِسْلَامُهُ لَيْسَ بِإِسْلَامٍ وَارْتِدَادُهُ لَيْسَ بِارْتِدَادٍ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې نه د هغه اسلام راوړل معتبر دي او نه د هغه مرتد کېدل معتبر دي لَهُمَا فِي الْإِسْلَامِ: أَنَّهُ تَبَعٌ لِأَبَوَيْهِ فِيهِ د اسلام په هکله د دې حضراتو دليل دا دی: چې په اسلام راوړلو کې هغه د خپل مور وپلار تابع دی فَلَا يُجْعَلُ أَصْلًا لهذا ا په اسلام راوړلو کې ا به هغه أصل نه ګرځول کيږي وَلِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ أَحْكَامًا تَشُوبُهَا الْمَضَرَّةُ او ځکه ا که د هغه اسلام راوړل معتبر ومنل سي نو ا پر هغه به داسي أحکام لازم سي چې په هغوی کې به نقصان ګډ وي ايعني هغه به د بچي لپاره نقصان مند وي ا فَلَا يُؤَهَّلُ لَهُ نو په دې وجه به اهم ا هغه د اسلام راوړلو أهل نه ګرځول کيږي وَلَنَا فِيهِ: أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَسْلَمَ فِي صِبَاهُ وَصَحَّحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِسْلَامَهُ او د اسلام راوړلو په هکله زموږ دليل دا دی: چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په کوچنيوالي کې اسلام راوړی او نبي کريم ﷺ د هغه اسلام صحيح وګرځوی وَافْتِخَارُهُ بِذَلِكَ مَشْهُورٌ او په کوچنيوالي کې د اسلام راوړلو په هکله د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فخر کول مشهور دي الکه څرنګه چې هغه په ځينو أشعارو کې هم د دې يادونه کړې ده ا وَلِأَنَّهُ أَتَى بِحَقِيقَةِ الْإِسْلَامِ او

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في الملتقى (ج:١، ص:٦٩٥)، وكذا في [illegible] (ج:٢، ص:٣٣٠). [القول الراجح ج:١، ص:٥٠٦]

ځکه چې بچی هم حقیقتاً اسلام راوړي وَهِيَ التَّصْدِيقُ وَالْإِقْرَارُ مَعَهُ او هغه تصدیق کول او اقرار کول دي ایعني حقیقتاً اسلام دا دی: په زړه سره تصدیق کول او په ژبه سره اقرار کول ا لِأَنَّ الْإِقْرَارَ عَنْ طَوْعٍ دَلِيلٌ عَلَى الِاعْتِقَادِ ځکه چې په خوښۍ ااو رضاا سره اقرار کول د هغه پر اعتقاد دلیل دی عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې دا معلوم دي وَالْحَقَائِقُ لَا تُرَدُّ او حقیقتونه احقیقتاً ایمان ا رد کېدلای نه سي وَمَا يَتَعَلَّقُ بِهِ سَعَادَةٌ أَبَدِيَّةٌ وَنَجَاةٌ عُقْبَاوِيَّةٌ او د اسلام سره متعلق کېدونکي شی دائمي سعادت انېکبختي ا ده او اُخروي نجات دی وَهِيَ مِنْ أَجَلِّ الْمَنَافِعِ او دا ډېره غټه نفع ده وَهُوَ الْحُكْمُ الْأَصْلِيُّ او همدا أصلي حکم دی ثُمَّ يَبْتَنِي عَلَيْهِ غَيْرُهَا بیا له هغه څخه بغیر نور شیان اهم ا پر هغه مبني دي فَلَا يُبَالَى بِشَوْبِهِ لهذا په دې هکله به د نقصان په راتلو سره پروا نه کیږي وَلَهُمْ فِي الرِّدَّةِ: أَنَّهَا مَضَرَّةٌ مَحْضَةٌ او د ارتداد په هکله د دې حضراتو دلیل دا دی: چې هغه محض نقصان دی ایو ذره نفع هم پکښې نسته ا بِخِلَافِ الْإِسْلَامِ عَلَى أَصْلِ أَبِي يُوسُفَ په خلاف د اسلام. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ اللهُ پر أصل لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ أَعْلَى الْمَنَافِعِ ځکه چې د اسلام سره ډېري غټې نفعې متعلق کیږي عَلَى مَا مَرَّ لکه ااوس ا چې تېر سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ فِيهَا: أَنَّهَا مَوْجُودَةٌ حَقِيقَةً د ارتداد په هکله د طرفینو رَحِمَهُمَا اللهُ دلیل دا دی: چې هغه حقیقتاً موجود دی وَلَا مَرَدَّ لِلْحَقِيقَةِ او حقیقت رد کېدلای نه سي كَمَا قُلْنَا فِي الْإِسْلَامِ لکه د اسلام په هکله چې موږ ااوس ا وویل إِلَّا أَنَّهُ يُجْبَرُ عَلَى الْإِسْلَامِ لېکن هغه به پر اسلام مجبورول کیږي لِمَا فِيهِ مِنَ النَّفْعِ لَهُ ځکه چې په دې کي د هغه نفع ده وَلَا يُقْتَلُ او هغه به نه قتل کیږي لِأَنَّهُ عُقُوبَةٌ ځکه چې قتل سزا ده وَالْعُقُوبَاتُ مَوْضُوعَةٌ عَنِ الصِّبْيَانِ مَرْحَمَةً عَلَيْهِمْ او پر بچیانو د رحم ااو شفقت ا کولو په خاطر له هغو څخه سزاګاني ساقطه سوي دي وَهَذَا فِي الصَّبِيِّ الَّذِي يَعْقِلُ او دا حکم د هغه بچي په باره کي دی کوم چې پوهیږي وَمَنْ لَا يَعْقِلُ مِنَ الصِّبْيَانِ لَا يَصِحُّ ارْتِدَادُهُ او کوم بچیان چې نه پوهیږي نو د هغو ارتداد صحیح نه دی لِأَنَّ إِقْرَارَهُ لَا يَدُلُّ عَلَى تَغَيُّرِ الْعَقِيدَةِ ځکه چې د هغه اقرار د عقیدې پر بدلولو دلالت نه کوي وَكَذَا الْمَجْنُونُ وَالسَّكْرَانُ الَّذِي لَا يَعْقِلُ او همدا حکم د لېوني او د هغه نشه سړي دی کوم چې ا په شي ا نه پوهیږي ااو عقل یې نشې لاندي کړی وي ا.

**اللغات**: ﴿يشوبه﴾ د نصر مضارع ده: ګډېدل، ور سره يوځاى كېدل. ﴿يؤهّل﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده؛ أهل ګرځول. ﴿صبا﴾ كوچنيوالى (د كوچنيتوب وخت). ﴿طوع﴾ رضا، خوښي. ﴿لا يُبالي﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: پروا كول. ﴿سكران﴾ په نشه كې ډوب، نشه سړى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د پوهېدونكي (عاقل) بچي ارتداد هم مقبول او متعبر دى او د هغه اسلام هم معتبر دى. نو كه هغه مرتد سي نو پر اسلام راوړلو به هغه مجبورول كيږي او كه هغه مسلمان وي نو د خپل كافر مور و پلار به نه وارث كيږي. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د بچي ارتداد خو معتبر نه دى لېكن د هغه اسلام مقبول او متعبر دى. لېكن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز نه د هغه ارتداد معتبر دى او نه يې اسلام معتبر دى.

**دليل**: د اسلام د نه معتبر كېدلو په هكله د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي بچى په دين او مذهب كي د خپل پلار تابع كيږي، حال دا چي د هغه مور و پلار كافران دي لهذا د هغوى په متابعت كي به دا بچى هم كافر وي. او كه چيري مور د بچي اسلام معتبر ومنو نو تابع به أصل وګرځي حالانكي په أصليت او تبعيت كي منافات دى. همدارنګه كه چيري مونږ د هغه اسلام معتبر ومنو نو هغه ته به نقصان او ضرر ورسيږي يعني هغه به د خپل مور و پلار له ميراث څخه محروم سي لهذا په دې حواله سره به هم د هغه اسلام معتبر نه وي.

**زمونږ دليل**: د بچي د اسلام د معتبريت او مقبوليت په هكله زمونږ دليل د حضرت علي رضي الله عنه اسلام دى چي هغه په كوچنيوالي كي اسلام قبول كړى او نبي كريم ﷺ د هغه اسلام صحيح وګرځوى. او په كوچنيوالي كي پر ايمان راوړلو به حضرت علي رضي الله عنه همېشه فخر كوى. نو دا ټوله د دې خبري دليل دى چي د بچي اسلام مقبول او معتبر دى.

عقلي دليل دا دى چي د بالغ په څېر پوهېدونكى (عاقل) بچى هم حقيقتاً اسلام راوړي يعني هغه هم په زړه سره تصديق كوي او په ژبه سره اقرار كوي او څرنګه چي دا تصديق او اقرار هغه په خپله خوښي او رضا سره كوي نو ځكه به دا هم معتبر او مقبول وي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي "كه چي د بچي اسلام معتبر ومنل سي نو هغه ته به نقصان ورسيږي" دا مونږ نه تسليموو. ځكه چي د هغه نقصان يعني "له ميراث څخه محرومېدل" د دنيا سره متعلق دي حال دا چي د هغه په عوض كي بچي

ته دائمي سعادت او د آخرت له عذاب څخه خلاصون حاصليږي چي تر دې بل هيڅ غټه نفع نسته. او همدا د مؤمن مسلمان د ژوند مقصد او هدف دی او پر دې باندي نور منافع مبني کيږي. لهذا د دومره غټي نفعي په مقابله کي به په معمولي نقصان هيڅ پروا نه کيږي او د هغه اسلام به معتبر وي.

دبچي د ارتداد د نه معتبر کېدلو دليل دا دی چي په ارتداد کي سراسر نقصان دی. او د نقصان والا کار د بچي په حق کي نه معتبر کيږي نو ځکه به د هغه ارتداد هم معتبر نه وي. د ارتداد په سلسله کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د امام شافعي رَحِمَهُ الله سره دی او د اسلام په هکله کي هغه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله سره دی.

دبچي د ارتداد د معتبر کېدلو په هکله د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي ارتداد حقيقتاً موجوديږي او حقيقت هيڅوک ردولای نه سي نو ځکه به د بچي ارتداد خو معتبر وي لېکن هغه به پر اسلام راوړلو مجبورول کيږي، ځکه که هغه اسلام راوړي نو د هغه دنيا او آخرت به دواړه سم سي. لېکن که هغه له اسلام څخه انکار وکړي نو هغه به نه قتلول کيږي، ځکه چي قتل يو غټه سزا ده او بچی د معمولي سزا هم لائق نه دی، غټه سزا خو هلته پرېږده!.

وهذا في الصبي إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي دا اختلاف د پوهېدونکي بچي په هکله دی. لېکن د ناپوه بچي ارتداد بالكل صحيح نه دی، ځکه نا پوه بچی د اسلام او کفر تر مينځ توپير نه سي کولای. لهذا که هغه زر واره هم اقرار وکړي نو د هغه اقرار به د عقيدې د تغيير دليل نه وي. همدا د حکم د لېوني او د ډېر نشه سړي هم دی کوم چي په خپل حال کي نه وي او په هيڅ نه پوهيږي. يعني د دې کسانو ارتداد هم معتبر نه دی. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم



# بَابُ الْبُغَاةِ

## (دا) باب د سرکښانو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: د مرتدینو له أحکامو څخه وروسته د بابُ البغاة بیانولو وجه دا ده چې څرنګه له اسلام څخه تر انکار وروسته مرتدین قتل کیږي همدارنګه که باغیان په حمله کولو پیل وکړي نو هغوی به هم قتل کیږي. نو په دې وجه دا دواړه بابونه پرلپسې بیان سوي دي. لېکن څرنګه چې له مرتدینو څخه د اسلام أمید او توقع هم کیږي نو په دې وجه د هغو أحکام د باغیانو له أحکامو څخه بیان سول.

ښکاره دې وي چې بُغاة جمع د بَاغِي ده لکه قُضَاة چې جمع د قَاضِي ده. د دې لفظ لغوي معنیٰ ده طلب کول لکه په قرآن کې چې ذکر سوي دي "ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ" [سورة الکهف: ۶۴]. او بغاوت سرکښي او نافرماني ته وایي. او د "بُغاة" اصطلاحي معنیٰ ده: هغه خلک کوم چې د عادل او پرحق امام له اطاعت څخه ووځي او د هغه حکم او فرمان نه مني.

## د باغیانو سره تر جنګ مخکې د مذاکراتو حکم

وَإِذَا تَغَلَّبَ قَوْمٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى بَلَدٍ او که چیري یو مسلمان قوم په زور پر یو ښار غلبه وکړي وَخَرَجُوا مِنْ طَاعَةِ الْإِمَامِ او د امام له اطاعت څخه ووځي دَعَاهُمْ إِلَى الْعَوْدِ إِلَى الْجَمَاعَةِ نو امام دې هغو ته [د مسلمانانو] د جماعت سره د یو ځای کېدلو دعوت ورکړي وَكَشَفَ عَنْ شُبْهَتِهِمْ او د هغو شبهه دې لیري لِأَنَّ عَلِيًّا فَعَلَ كَذٰلِكَ بِأَهْلِ حَرُورَاءَ قَبْلَ قِتَالِهِمْ ځکه چې حضرت علي ﷜ د "حروراء" د خلکو سره تر جنګ کولو مخکې همداسې معامله وکړه وَلِأَنَّهُ أَهْوَنُ الْأَمْرَيْنِ او ځکه چې دا له دوو کارو څخه آسانه [او نفع مند] کار دی وَلَعَلَّ الشَّرَّ يَنْدَفِعُ بِهِ او کېدای سي چې په دې سره شر ختم سي فَيَبْدَأُ بِهِ نو ځکه به امام په دې سره شروع کوي.

**اللغات**: ﴿أهون﴾ د اسمِ تفیل صیغه ده: زیات سپک. زیاته آسانه. ﴿یبدأ﴾ د فتح مضارع ده: شروع کول. پېل کول.

**تشريح : مسئله** : دا ده که يو قوم له عادل امام څخه بغاوت وکړي او د مسلمانانو له جماعت څخه جلا سي او پريو ښار يا علاقې باندې قابض او غالب سي. نو امام ته پکار دی چې د هغو سره تر جنګ کولو مخکې د اسلامي جماعت سره د يو ځای کېدلو دعوت ورکړي او که د اسلام يا جماعة المسلمين په مکله هغو ته يو شبهه وي نو هغه دې ځني ليري کړي. ځکه چې د حروراء د خلکو سره همدغه معامله سوې وه. لهذا موږ ته هغسې کول پکار دي. او کېدای سي چې د خبرو اترو او مذاکراتو په ذريعه معامله حل سي او له قتل او قتال څخه نجات حاصل سي. لهذا په دې حواله سره به هم دعوت او مذاکرات له قتال څخه مخکې کول کيږي. د حروراء د خلکو قصه مشهوره ده او د هدايې د ۶۰۸ صفحې په دريمه حاشيه کې په تفصيل سره ذکر سوې ده.

## د باغيانو سره به کله جنګ شروع کيږي؟

وَلَا يَبْدَأُ بِقِتَالٍ حَتّٰى يَبْدَءُوْهُ او امام به د هغو سره په قتل (جنګ کولو) شروع نه کوي تر دې چې هغوی قتال شروع کړي فَإِنْ بَدَءُوْهُ قَاتَلَهُمْ حَتّٰى يُفَرِّقَ جَمْعَهُمْ نو که هغوی قتال شروع کړي نو امام دې د هغو سره قتال وکړي تر دې چې د هغو جماعت منتشر (او تيت پرک) کړي. قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: هٰكَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُوْرِيُّ فِي مُخْتَصَرِهٖ ناتوانه بنده وايي: چې همداسې امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل مختصر (مختصرُ القدوري) کې ذکر کړي دي وَذَكَرَ الْإِمَامُ الْمَعْرُوْفُ بِخُوَاهَرْ زَادَهْ أَنَّ عِنْدَنَا يَجُوْزُ أَنْ يَبْدَأَ بِقِتَالِهِمْ إِذَا تَعَسْكَرُوْا وَاجْتَمَعُوْا او د خواهر زاده په نامه سره مشهور امام ذکر کړي دي: چې که باغيان خپل لښکر جوړ کړي او (د قتال لپاره) جمع سي نو د امام لپاره د هغو سره په قتال کولو شروع کول جائز دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوْزُ حَتّٰى يَبْدَءُوْا بِالْقِتَالِ حَقِيْقَةً او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دي تر دې چې هغوی حقيقتا (ربښتيا) په قتال کولو شروع وکړي لِأَنَّهُ لَا يَجُوْزُ قَتْلُ الْمُسْلِمِ إِلَّا دَفْعًا ځکه چې د مسلمان قتلول جائز نه دي مګر اله ځان څخه (د دفع کولو لپاره وَهُمْ مُسْلِمُوْنَ او باغيان (هم) مسلمانان دي بِخِلَافِ الْكَافِرِ په خلاف د کافر لِأَنَّ نَفْسَ الْكُفْرِ مُبِيْحٌ عِنْدَهُ ځکه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نفس کفر (د قتل) روا کونکی دی وَلَنَا: أَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى الدَّلِيْلِ زموږ دليل دا دی: چې د حکم دار ومدار پر دليل وي وَهُوَ الْاِجْتِمَاعُ وَالْاِمْتِنَاعُ او ادلته (دليل د باغيانو جمع کېدل او د امام له اطاعت څخه انکار کول دي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَوْ تُنْتَظَرُ الْإِمَامُ حَقِيْقَةَ

قِتَالِهِمْ او دا ځکه که چیري امام د هغو حقیقتاً قتال کولو ته انتظار وکړي رُبَّمَا لَا يُمْكِنُهُ الدَّفْعُ نو ځیني وخت د امام لپاره [د هغو] دفع کول ناممکن وګرځي فَيُدَارُ عَلَى الدَّلِيلِ ضَرُورَةَ دَفْعِ شَرِّهِمْ لهذا د هغوی د شر [او فساد] دفع کولو د ضرورت په خاطر به د حکم مدار پر دلیل وي وَإِذَا بَلَغَهُ أَنَّهُمْ يَشْتَرُونَ السِّلَاحَ وَيَتَأَهَّبُونَ لِلْقِتَالِ او که چیري امام ته دا خبر ورسیږي چي باغیان وسله رانسي او جنګ ته تیاري کوي يَنْبَغِي أَنْ يَأْخُذَهُمْ وَيَحْبِسَهُمْ حَتَّى يُقْلِعُوا عَنْ ذٰلِكَ وَيُحْدِثُوا تَوْبَةً نو امام ته پکار دی چي هغوی ونیسي او قیدیې کړي تر دې چي هغوی له دې ځخه منع سي او توبه وکړي دَفْعًا لِلشَّرِّ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ د دې لپاره چي حتى الإمكان د هغو شر دفع سي وَالْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ مِنْ لُزُومِ الْبَيْتِ مَحْمُولٌ عَلَى حَالِ عَدَمِ الْإِمَامِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله ځخه چي کوم دا خبره نقل سوې ده چي [کله فتنه عامه سي نو] په کورو کي کښېنستل پکار دي دا پر هغه صورت محمول دی کله چي امام نه وي أَمَّا إِعَانَةُ الْإِمَامِ الْحَقِّ فَمِنَ الْوَاجِبِ عِنْدَ الْغَنَاءِ وَالْقُدْرَةِ کوم چي د برحق امام تعاون کول دي نو د طاقت او قدرت په وخت کي هغه واجب دی.

**اللغات**: ﴿يفرّق﴾ د تفعیل مضارع ده: جلا کول، منتشر کول، خواره واره کول. ﴿تعسكروا﴾ د تفعلل ماضي ده: لښکر تیارول، لښکر جوړول. ﴿يقلعوا﴾ د افعال مضارع ده: منع کېدل. پرېښوول. لیري کېدل. ﴿غناء﴾ قدرت، استطاعت.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي تر ځو باغیان په قتال شروع نه وکړي تر هغه وخته به امام د هغو سره قتال نه کوي. لېکن که هغوی په قتال شروع وکړي نو امام ته پکار دي چي د هغو سره قتال وکړي، په قدوري کي هم دغه حکم ذکر سوی دی. لېکن شیخ الاسلام خواهر زاده لیکلي دي چي که باغیان لښکر جوړ کړي او د قتال لپاره جمع سي نو هم د هغو سره قتال کول واجب دي. د دې په خلاف د شوافعو په نېز به تر هغه وخته پوري د هغو سره قتال نه کیږي تر ځو چي هغوی حقیقي جنګ شروع نه کړي، ځکه چي د مسلمان قتلول جائز نه دي او دا خلک هم مسلمانان دي. لهذا تر ځو چي هغوی حقیقتاً قتال نه وکړي تر هغه وخته به قتال نه ور سره کیږي.

**ولنا إلخ**: زموږ دلیل دا دی چي د حکم دار ومدار د قتال پر دلیل دی. نه پر حقیقتاً قتال. او د قتال دلیل پر یوه ځای د باغیانو جمع کېدل دي او د عادل او برحق امام له اطاعت ځخه وتل دي. او دا کارونه تر حقیقتاً قتال مخکي د هغو له طرفه موجودیږي. لهذا د حقیقتاً قتال انتظار به نه کیږي. ځکه چي په

دې انتظار کې ځيني وخت باغيان دومره زور واخلي چې د هغو مخ راگرځول او په قابو کې راوستل مشکل وي، لهذا کله چې هم دا معلومه سي چې باغيان يو په ځای کې جمع سوي دي او د جنګ لپاره تياري کوي نو پر هغو به حمله کول جائز وي.

که امام ته دا خبر ورسيږي چې باغيان وسله رانيسي او د قتال تياري کوي. نو امام ته پکار دي چې هغوی ونيسي او قيد يې کړي د دې لپاره چې توبه وکړي او له خپل دغه حرکت څخه منع سي او په دې توگه د هغو شر او فساد ختم سي.

والمروی إلخ: د دې حاصل دا دی چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو قول دا نقل سوی دی چې کله په مسلمانانو کې فتنه وغورځيږي نو هغو ته پکار دي چې په خپلو کورو کې کښېني. دا قول پر هغه صورت محمول دی کله چې په مسلمانانو کې امام نه وي لېکن که چيري عادل او برحق امام موجود وي او د هغه له طرفه دا اعلان وسي چې تاسي د فتنې ختمولو او د مقابله کولو لپاره له کورو څخه را ووځئ! نو په دې صورت کې پر هر کس د خپل طاقت مطابق په هغه کې حصه اخيستل واجب دي، ځکه چې قرآن کريم په ښکاره لفظو سره دا اعلان کړی دی: "فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ الله". [سورة الحجرات: ۹]

## د باغيانو سره د مدد کونکو حکم

فَإِنْ كَانَتْ لَهُمْ فِئَةٌ أُجْهِزَ عَلَى جَرِيحِهِمْ او که چيري د باغيانو يو مدد گاره ډله وي نو د هغو زخميان دي قتل کړی سي وَأُتْبِعَ مُوَلِّيهِمْ دَفْعًا لِشَرِّهِمْ او د هغو په تښتېدونکو دي [مجاهدين] پسې سي [او هغوی دي هم قتل کړي] چې د هغو شر دفع کړی سي كَيْ لَا يَلْحَقُوا بِهِمْ د دې لپاره چې هغوی د باغيانو سره يوځای نه سي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ فِئَةٌ او که د باغيانو مدد کونکې ډله نه وي لَمْ يُجْهَزْ عَلَى جَرِيحِهِمْ وَلَمْ يُتْبَعْ مُوَلِّيهِمْ نو د هغو زخميان دي نه قتل کيږي او نه دي د هغو په تښتېدونکو [مجاهدين] پسې کيږي لِانْدِفَاعِ الشَّرِّ دُونَهُ ځکه چې له دې څخه بغير [يعني له قتلولو څخه بغير] د هغو شر ختم سو وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ ذٰلِكَ فِي الْحَالَيْنِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو حالتونو کې دا جائز نه دي لِأَنَّ الْقِتَالَ إِذَا تَرَكُوهُ لَمْ يَبْقَ قَتْلُهُمْ دَفْعًا ځکه کله چې باغيان قتال پرېږدي نو د هغو قتلول به د دفع لپاره نه وي وَجَوَابُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ دَلِيلُهُ لَا حَقِيقَتُهُ او د دې جواب هغه دی کوم چې موږ [مخکې] بيان کړې چې معتبر د قتال دليل دی نه حقيقتاً قتال کول

وَلَا يُسْبٰى لَهُمْ ذُرِّيَّةٌ وَلَا يُقَسَّمُ لَهُمْ مَالٌ او د هغو ښځي او بچيان دي نه قيدول کيږي او نه دي د هغو مال تقسيمول کيږي لِقَوْلِ عَلِيٍّ يَوْمَ الْجَمَلِ: وَلَا يُقْتَلُ أَسِيرٌ وَلَا يُكْشَفُ سِتْرٌ وَلَا يُؤْخَذُ مَالٌ ځکه چي د "جمل" د جنګ په ورځ حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: چي نه دي ا د هغو ا قيدي قتلول کيږي او نه دي د يوې ښځي بې پردګي کيږي او نه دي څه مال اخيستل کيږي وَهُوَ الْقُدْوَةُ فِي هٰذَا الْبَابِ او هم هغه په دې باب کي ا زموږ ا مقتدا ا پيشوا ا دی وَقَوْلُهُ فِي الْأَسِيرِ تَأْوِيلُهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُمْ فِئَةٌ او د قيدي په هکله د هغه د قول تأويل دا دی چي دا په هغه صورت کي دي کله چي د باغيانو يو مددګاره ډله نه وي فَإِنْ كَانَتْ يَقْتُلُ الْإِمَامُ الْأَسِيرَ ليکن که د هغو يو مددګاره ډله وي نو امام دي قيدي قتل کړي وَإِنْ شَاءَ حَبَسَهُ او که امام وغواړي نو هغه دي قيدي وساتي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلِأَنَّهُمْ مُسْلِمُونَ او ځکه چي دا خلک ا باغيان ا مسلمانان دي وَالْإِسْلَامُ يَعْصِمُ النَّفْسَ وَالْمَالَ او اسلام د ځان او مال حفاظت کوي وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُقَاتِلُوا بِسِلَاحِهِمْ إِنِ احْتَاجَ الْمُسْلِمُونَ إِلَيْهِ او په دې کي هيڅ پروا نسته چي مسلمانان د باغيانو په وسله د هغو سره جنګ وکړي کله چي مسلمانان دې ته مجبوره سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا جائز نه دي وَالْكُرَاعُ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او د هغو جنګي سپارلۍ الکه آس او داسي نور ا استعمالول هم پر دغه اختلاف دي لَهُ: أَنَّهُ مَالُ مُسْلِمٍ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا د مسلمان مال دی فَلَا يَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ إِلَّا بِرِضَاهُ لهذا د هغه له خوښۍ څخه بغير له دې مال څخه فايده اخيستل جائز نه دي وَلَنَا: أَنَّ عَلِيًّا قَسَّمَ السِّلَاحَ فِيمَا بَيْنَ أَصْحَابِهِ بِالْبَصْرَةِ زموږ دليل دا دی: چي حضرت علي رضي الله عنه په بصره کي د مجاهدينو په مينځ کي مال تقسيم کړی وَكَانَتْ قِسْمَتُهُ لِلْحَاجَةِ او دا تقسيم د ضرورت پر بناء وو ا يعني صحابه هغه مال ته مجبور وه ا لَا لِلتَّمْلِيكِ ادا تقسيم ا د مالک جوړولو لپاره نه وو وَلِأَنَّ لِلْإِمَامِ أَنْ يَفْعَلَ ذٰلِكَ فِي مَالِ الْعَادِلِ عِنْدَ الْحَاجَةِ او په دې وجه هم چي د ضرورت په وخت کي د امام لپاره د عادل سړي په مال کي هم داسي تقسيم کول صحيح دي اله عادل څخه مراد هغه مسلمان دی کوم چي باغي نه وي ا فَفِي مَالِ الْبَاغِي أَوْلٰى نو د باغي په مال کي به په طريقه اولیٰ هغه ته اختيار وي وَالْمَعْنٰى فِيهِ إِلْحَاقُ الضَّرَرِ الْأَدْنٰى لِدَفْعِ الْأَعْلٰى او د دې وجه دا ده چي د غټ ضرر ليري

کولو لپاره به ادنیٰ ضرر برداشت کیږي او دلته له باغیانو څخه وسله اخیستل کوچنی ضرر دی او د مسلمانانو مجاهدینو ضرورت نه پوره کېدل او هغوی د قتل په خطره کي لوېدل غټ ضرر دی. نو ځکه به هغه کوچنی ضرر برداشت کیږي او له باغیانو څخه به وسله اخیستل کیږي چي مسلمانان مجبوره پاته نه سي ا وَيَحْبِسُ الْإِمَامُ أَمْوَالَهُمْ او امام به د دوی أموال را گرځوي. فَلَا يَرُدُّهَا عَلَيْهِمْ وَلَا يُقَسِّمُهَا او امام به هغه نه دوی ته واپس ورکوي او نه به یې تقسیموي حَتَّىٰ يَتُوبُوا فَيَرُدُّهَا عَلَيْهِمْ تر دې چي هغوی توبه وکړي نو ابیا ا به امام هغو ته خپل مالونه ورکوي أَمَّا عَدَمُ الْقِسْمَةِ فَلِمَا بَيَّنَّاهُ کوم چي نه تقسیمول دي نو د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَأَمَّا الْحَبْسُ فَلِدَفْعِ شَرِّهِمْ بِكَسْرِ شَوْكَتِهِمْ او کوم چي د مال راگرځول دي نو د دې لپاره چي د هغو د شان وشوکت په ماتولو سره د هغو شر او فساد ا دفع کړی سي وَلِهَٰذَا يَحْبِسُهَا عَنْهُمْ وَإِنْ كَانَ لَا يَحْتَاجُ إِلَيْهَا او له همدې کبله به امام د هغو أموال راگرځوي که څه هم امام هغه ته ضرورت نه لري إِلَّا أَنَّهُ يَبِيعُ الْكُرَاعَ خو امام به جنگي سپارلی خرڅوي او د هغوی قیمت به خوندي کوي ا لِأَنَّ حَبْسَ الثَّمَنِ أَنْظَرُ وَأَيْسَرُ ځکه چي د قیمت راگرځول د مصلحت مطابق هم دي او آسانه هم دي وَأَمَّا الرَّدُّ بَعْدَ التَّوْبَةِ فَلِانْدِفَاعِ الضَّرُورَةِ او کوم چي د باغیانو ا تر توبې وروسته د أموالو واپس کول دي نو هغه د ضرورت ختمېدلو په وجه دي أیعني اوس د مال راگرځولو ته ضرورت پاته نه سوي ا وَلَا اسْتِغْنَامَ فِيهَا او دا مال غنیمت هم نه سي جوړېدلای.

**اللغات**: ﴿فئة﴾ مددگار جماعت (مرسته کونکې ډله). ﴿أجهز﴾ د افعال له باب څخه د ماضي مجهول صیغه ده: مراد ځني قتلول دي. ﴿اتبع﴾ مخکني صیغه ده: په یو چا پسې کېدل او د هغه طلب کول. ﴿مُولّيهم﴾ دا په أصل کي مُوَلِّيْنَ دی "نون" د اضافت په وجه حذف سوی دی. جمع د مُوَلٍّ ده: شا اړونکی. مراد ځني تښتېدونکی دی. ﴿اندفاع﴾ د انفعال مصدر دی: لیري کېدل. ﴿لا يسبي﴾ د ضرب له باب څخه د نفي مجهول صیغه ده: قیدول. بندي کول. ﴿يحبس﴾ د ضرب له باب څخه د مضارع صیغه ده: بندي کول. منع کول. راگرځول. ﴿كراع﴾ جنگي سپارلی لکه آسونه او داسي نور. ﴿أنظر﴾ زیات مصلحت والا (زیات فایده من). ﴿أيسر﴾ زیات آسانه ﴿اغتنام﴾ د افتعال مصدر دی: غنیمت جوړول.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی که چیري د باغیانو یو مددګار او حمایت کونکی جماعت وي او هغوی د باغیانو سره په ګډه د مسلمانانو په خلاف قتال کوي، نو په هغو کي چي کوم خلک زخمیان سي مسلمانانو ته پکار دي چي هغوی قتل کړي او کوم خلک چي وتښتي په هغو دي پسې سي او هغوی دي هم قتل کړي چي دویم وار بیا د باغیانو سره شریک نیسي او د هغو مدد نه وکړي. ها! که چیري د هغو یو مددګار جماعت نه وي نو دا کار به نه کیږي او بې ځایه به وینه نه بیول کیږي: ځکه چي اوس له قتل او داسي نورو څخه بغیر هم شر دفع سو. لهذا بېله څه وجهي د وینو بیولو هیڅ ضرورت نسته. د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي برابره ده د باغیانو حمایتي جماعت وي که نه وي په هر صورت کي نه د هغو زخیمان قتلول جائز دي او نه د هغو په تښتېدونکو پسې کېدل جائز دي. ځکه چي د هغو سره جنګ او قتال کول د مدافعت لپاره مباح دی حالانکي کله چي هغو قتال پرېښووی نو اوس د هغو سره قتال کول د دفع او مدافعت لپاره نه سو. نو ځکه به مباح نه وي. لېکن زموږ له طرفه د دې جواب هغه دی کوم چي موږ مخکي بیان کړی چي د باغیانو په حق کي د قتال د إباحت لپاره د قتال دلیل معتبر دی نه حقیقي قتال. او د هغو خپل ځان ته ډله جوړول او د بر حق امام له اطاعت څخه وتل د قتال دلیل دی، نو ځکه به د هغو قتل او قتال مباح وي.

**ولا یُسبىٰ لهم إلخ** : د دې حاصل دا دی چي که مجاهدین پر باغیانو غالب سي نو په دې صورت کي به امام د هغو ذریت یعني ښځي او بچیان نه قیدوي او غلامان به یې نه جوړوي. او نه به د هغو مالونه په مجاهدینو کي تقسیموي: ځکه چي د "جمل" د جنګ په ورځ حضرت علي ﷺ له دې کارو څخه منع وکړه حتی چي د قیدیانو له قتل څخه یې هم منع وکړه نو ځکه فقهاؤ د هغه دا قول پر هغه صورت محمول کړی دی کله چي د باغیانو سره یو حمایتي او مددګار جماعت نه وي. لېکن که د هغو یو مددګار جماعت وي نو امام ته به اختیار وي که وغواړي نو د هغو قیدیان دي قتل کړي چي له شر او فساد څخه یې خلک محفوظ سي.

**ولا بأس إلخ** : فرمایي که چیري مسلمانان ضرورت مند وي نو له باغیانو څخه وسله او سامان سلبول او په هغه وسله د دوی سره جنګ کول هیڅ پروا نه لري. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مسلمانانو لپاره داسې کول جائز نه دي. همدا حال د هغو د جنګي سپارلیو هم دی یعني زموږ په نېز د هغوی استعمالول جائز دي: زموږ دلیل دا دی چي حضرت علي ﷺ په بصره کي د ضرورت او احتیاج په وجه په مجاهدینو کي وسله تقسیم کړه. او بل دا چي امام ته دا حق سته چي د ضرورت په وخت کي د عادل سړي أموال تقسیم کړي نو باغي بیا تر څا غوره دی د هغه مال خو به په طریقه اولیٰ تقسیمول کیږي. ځکه چي دا قاعده خو ډېره مشهوره ده چي د غټ ضرر د ختمولو لپاره به کوچنی ضرر زغمل کیږي.

ويحبس الإمام إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله امام د باغيانو أموال را وګرځوي او قبضه پر وکړي نو امام به هغه نه باغيانو ته واپس کوي او نه به يې په مجاهدينو کې تقسيموي. ها! کله چې هغوی توبه وکړي نو بيا به يې هغو ته واپس کوي. ځکه چې د توبې کولو په وجه د حبس او راګرځولو ضرورت ختم سو او ځرنګه چې دا أموال غنيمت جوړېدای نه سي. نو ځکه اوس خپلو مالکانو ته د هغوی په واپس کولو کې هيڅ حرج نسته. او له دې څخه بغير چې کوم جنګي سپارل دي (يعني آسونه او داسې نور) امام ته پکار دي چې هغوی خرڅ کړي او د هغوی قيمت د ځان سره وساتي. ځکه چې د څارويو په حفاظت کې پرېشاني او ستونزه سته، لېکن د قيمت په ساتلو کې هيڅ ستونزه نسته.

## د باغيانو اخيستل سوی خراج او عشر

قَالَ: وَمَا جَبَاهُ أَهْلُ الْبَغْيِ مِنَ الْبِلَادِ الَّتِي غَلَبُوا عَلَيْهَا مِنَ الْخَرَاجِ وَالْعُشْرِ فرمايي: او کوم خراج او عشر چې باغيان له هغه علاقو څخه جمع کړي چې پر هغوی باغيان غالب سوي وي لَمْ يَأْخُذْهُ الْإِمَامُ ثَانِيًا نو امام به [له هغوی څخه] دويم وار عشر او خراج نه اخلي لِأَنَّ وِلَايَةَ الْأَخْذِ لَهُ بِاعْتِبَارِ الْحِمَايَةِ ځکه چې امام لره د اخيستلو ولايت د حفاظت په وجه حاصل دی وَلَمْ يَحْمِهِمْ حالانکې امام د هغو حفاظت نه وکړی سو فَإِنْ كَانُوا صَرَفُوهُ فِي حَقِّهِ او که باغيانو هغه مال د هغه په مصرف کې خرچ کړی وي [يعني خراج او عشر يې د خراج او عشر په مصرف کې خرچ کړی وي] أَجْزَأَ مَنْ أُخِذَ مِنْهُ نو له کومو خلکو څخه چې دا مال اخيستل سوی وی د هغو له طرفه به کافي وي لِوُصُولِ الْحَقِّ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ ځکه چې حق خپل مستحق ته رسېدلی دی وَإِنْ لَمْ يَكُونُوا صَرَفُوهُ فِي حَقِّهِ او که باغيانو هغه مال د هغه په مصرف کې نه وي خرچ کړی فَعَلَى أَهْلِهِ فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى أَنْ يُعِيدُوا ذٰلِكَ نو پر هر مال لرونکي [صاحبُ المال] به فيما بينه وبين الله هغه دويم وار ورکول لازم وي لِأَنَّهُ لَمْ يَصِلْ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ ځکه چې هغه خپل مستحق ته رسېدلی نه دي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: قَالُوا لَا إِعَادَةَ عَلَيْهِمْ فِي الْخَرَاجِ مشائخو فرمايلي دي: چې په خراج کې پر هغو اعاده نسته لِأَنَّهُمْ مُقَاتِلَةٌ ځکه چې باغيان هم يو ډول جنګ کونکي [مجاهدين] دي فَكَانُوا مَصَارِفَ وَإِنْ كَانُوا أَغْنِيَاءَ نو هغوی به هم د خراج مصرف وي که څه هم هغوی مالدار وي وَفِي الْعُشْرِ إِنْ كَانُوا فُقَرَاءَ فَكَذٰلِكَ او که چېرې هغوی غريبان

وي نو په عشر کي به هم دغه حکم وي لِأَنَّهُ حَقُّ الْفُقَرَاءِ ځکه چي عشر د غریبانو حق دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الزَّكَاةِ او په کتاب الزکاة کي موږ د دي بیان کړی دی وَفِي الْمُسْتَقْبَلِ يَأْخُذُ الْإِمَامُ او په مستقبل ارا روان وخت ا کي به ا د هغه علاقي له خلکو څخه ا امام خراج او عشر اخلي لِأَنَّهُ يَحْمِيهِمْ فِيهِ ځکه چي په مستقبل کي امام د هغو حفاظت کوي لِظُهُورِ وِلَايَتِهِ ځکه چي د امام ولایت ښکاره او غالب ا سو ا یعني هغه علاقه او د هغي أهل اوس د امام تر قبضه او غلبه لاندي راغلی. نو ځکه به په مستقبل کي امام له هغو څخه خراج او عشر اخلي ا وَمَنْ قَتَلَ رَجُلًا وَهُمَا مِنْ عَسْكَرِ أَهْلِ الْبَغْيِ او څوک چي يو سړی قتل کړي او دوی ا قاتل او مقتول ا دواړه د باغيانو د لښکر څخه وي ثُمَّ ظُهِرَ عَلَيْهِمْ بيا بر باغيانو ا د مسلمانانو ا غلبه وسي فَلَيْسَ عَلَيْهِمْ شَيْءٌ نو پر هغو ا یعني پر قاتل ا به هيڅ شی واجب نه وي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لِإِمَامِ الْعَدْلِ حِينَ الْقَتْلِ ځکه چي د قتل په وخت کي پر هغو د عادل امام ولایت نه وو فَلَمْ يَنْعَقِدْ مُوجِبًا لهذا هغه قتل د قصاص موجب او واجبونکی ا نه سو كَالْقَتْلِ فِي دَارِ الْحَرْبِ لکه د دار الحرب قتل وَإِنْ غَلَبُوا عَلَى مِصْرٍ او که باغيان پر يو ښار غالب سي فَقَتَلَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ عَمْدًا بيا د ښار له خلکو څخه يو سړی بل ښاري سړی قصداً قتل کړي ثُمَّ ظُهِرَ عَلَى الْمِصْرِ بيا پر ښار ا د مسلمانانو ا غلبه وسي فَإِنَّهُ يُقْتَصُّ مِنْهُ نو له قاتل څخه به قصاص اخيستل کيږي وَتَأْوِيلُهُ: إِذَا لَمْ يَجْرِ عَلَى أَهْلِهِ أَحْكَامُهُمْ وَأُزْعِجُوا قَبْلَ ذَلِكَ او د دې تأويل دا دی: چي کله پر ښار د باغيانو فرمان جاري سوی نه وی او اله قبضي کولو څخه ا مخکي باغيان اله هغه ښار څخه ا ليري کړی سوي وي وَفِي ذَلِكَ لَمْ تَنْقَطِعْ وِلَايَةُ الْإِمَامِ نو په داسي صورت کي اله هغه ښار څخه ا د امام ولايت ختم نه سو فَيَجِبُ الْقِصَاصُ نو ځکه به قصاص واجبيږي.

**اللغات**: ﴿جباه﴾ د ماضي صيغه ده؛ له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: خراج او محصول جمع کول. ﴿حماية﴾ حفاظت. ﴿صرفوه﴾ د ضرب ماضي ده: صرفول. خرچول. مصرفول. ﴿مُقاتِلة﴾ (د تاء په کسره سره) د مُقَاتِلٌ جمع ده: د جنګ کونکو جماعت. فوج. مجاهدين. ﴿موجب﴾ د افعال اسم فاعل دی: واجبونکی. سبب. ﴿ازعجوا﴾ د افعال له باب څخه د جمع مذکر غائب ماضي مجهول صيغه ده: ليري کول. شړل (پسي اخيستل).

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی که چیرې باغیان د مسلمانانو پر یو علاقه قبضه وکړي او له خلګو څخه خراج او عشر واخلي، تر دې وروسته که امامُ المسلمین پر هغه علاقې غالب سي نو له هغو خلګو څخه دویم وار د هغه کال عشر او خراج اخیستل صحیح نه دي؛ ځکه چې امام ته د حفاظت کولو په وجه د عشر او خراج د اخیستلو حق حاصل دی، حالانکې پر هغه علاقې د باغیانو د غالبېدلو په وجه د امام له طرفه د علاقې د خلګو حفاظت او صیانت نه وسو. بیا که چیرې باغیانو هغه خراج او عشر په صحیح مصرف کې (یعني د عشر او خراج په خپل مصرف کې) خرچ کړی وي نو ورکونکي خلګ به د هغه کال له عشر او خراج څخه بريُ الذمه وي (او غاړي به یې خلاصي وي) لېکن که باغیانو هغه په صحیح مصرف کې خرچ کړی نه وي نو په دې صورت کې دیانتاً یعني فیما بینهم و بین الله دویم وار عشر او خراج ځني اخیستل واجب دي، لېکن قضاءً واجب نه دي. صاحب د هدایې د مشائخو په حواله سره فرمایي چې له هغو څخه به دویم وار نه اخیستل کیږي. ځکه چې خراج په خپل مصرف کې صرف سوی دی ځکه چې باغیان هم یو ډول مجاهدین دي . او مجاهدین د خراج مصرف دي. لهذا که چیرې باغیانو خراج په خپلو ذاتي ضروریاتو کې صرف کړی وي نو هم به ورکونکي خلګ بريُ الذمه وي. هغه که باغیان مالدار وي یا غریب وي.

او که باغیان غریب او محتاجه وي نو د عشر به هم دغه حکم وي. ځکه چې عشر د غریبانو حق دی نو ګواکې هغه حق خپل مستحق ته حاصل سو. دا فیصله خو د سږ کال (روان کال) ده. لېکن له را روان کال څخه به امام د هغه علاقې له خلګو څخه د خراج او عشر اخیستلو کار شروع کوي. ځکه چې په را روان وخت کې د هغو حفاظت امام کوي.

**ومن قتل رجلا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې که یو باغي بل باغي قتل کړي او بیا مسلمانان پر هغو غالب سي نو پر قاتل نه قصاص سته او نه دیت. ځکه چې د قتل په وخت کې قاتل او مقتول دواړه د عادل امام له ولایت څخه خارج وو لهذا دا قتل د قصاص موجب واقع سوی نه وو. نو څرنګه چې د دارُ الحرب قتل د قصاص موجب نه دی، همداسې دا قتل هم د قصاص موجب نه دی.

که باغیان پر یو ښار غلبه وکړي لېکن تر اوسه پر ښار د باغیانو پوره قبضه راغلې نه وي چې له هغه ښار څخه دوی پسې واخیستل سي او په دې دوران کې د هغه ښار یو سړی بل سړی قتل کړي او بیا مسلمانان پر هغه ښار قبضه وکړي، نو له قاتل څخه به قصاص اخیستل کیږي. ځکه کله چې پر هغه ښار د باغیانو پوره قبضه نه راغله نو هغه د عادل امام له ولایت څخه خارج سو او قتل د عادل امام په ولایت کې واقع سو. نو ځکه به دا قتل د قصاص موجب وي.

# د باغیانو سره په جنګ کې د قاتل او مقتول د وارث جوړېدل بیان

وَإِذَا قَتَلَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْعَدْلِ بَاغِيًا فرمايي: که له عالانو خلکو څخه یو سړی اله باغیانو څخه ا یو باغي قتل کړي اله أهل العدل څخه مراد هغه مسلمانان دي کوم چې باغیان نه وي ا فَإِنَّهُ يَرِثُهُ نو هم به قاتل د مقتول وارث کیږي فَإِنْ قَتَلَهُ الْبَاغِي او که باغي عادل قتل کړي وَقَالَ: قَدْ كُنْتُ عَلَى حَقٍّ وَأَنَا الْآنَ عَلَى حَقٍّ او داسي ووايي: چې زه پر حق وم او اوس هم پر حق یم وَرِثَهُ نو هغه به د مقتول وارث کیږي وَإِنْ قَالَ: قَتَلْتُهُ وَأَنَا أَعْلَمُ أَنِّي عَلَى الْبَاطِلِ او که داسي ووايي: ما هغه په داسي حال کي قتل کړی چې زه په دې خبر وم چې زه پر حق نه یم لَمْ يَرِثْهُ نو هغه به د مقتول نه وارث کیږي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا حکم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ: أَبُو يُوسُفَ ❁ : لَا يَرِثُ الْبَاغِي فِي الْوَجْهَيْنِ امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کي به باغي د عادل مقتول نه وارث کیږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَأَصْلُهُ: أَنَّ الْعَادِلَ إِذَا أَتْلَفَ نَفْسَ الْبَاغِي أَوْ مَالَهُ لَا يَضْمَنُ وَلَا يَأْثَمُ او د دې اصل دا دی چې کله عادل سړی د باغي نفس یا د هغه مال هلاک کړي نو هغه به نه ضامن کیږي او نه به ګنهګاره کیږي لِأَنَّهُ مَأْمُورٌ بِقِتَالِهِمْ دَفْعًا لِشَرِّهِمْ ځکه چې د باغیانو د شرّ لیرې کولو لپاره عادل سړي ته د هغو سره د جنګ کولو ااو قتلولو ا حکم سوی دی وَالْبَاغِي إِذَا قَتَلَ الْعَادِلَ لَا يَجِبُ الضَّمَانُ عِنْدَنَا وَيَأْثَمُ او باغي که چیري عادل قتل کړي نو زموږ په نېز به پر هغه ضمان نه واجبیږي الیکن ا هغه به ګنهګاره وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي الْقَدِيمِ: إِنَّهُ يَجِبُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل پخواني ااول ا قول کي فرمايلي دي: چې پر هغه به ضمان واجبیږي وَعَلَى هَذَا الْخِلَافُ إِذَا تَابَ الْمُرْتَدُّ وَقَدْ أَتْلَفَ نَفْسًا أَوْ مَالًا او پر همدغه اختلاف دي کله چې مرتد توبه وکړي حال دا چې هغه د ارتداد په حالت کي اد یو چا ا نفس یا مال هلاک کړی وي لَهُ: أَنَّهُ أَتْلَفَ مَالًا مَعْصُومًا أَوْ قَتَلَ نَفْسًا مَعْصُومَةً د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې هغه محفوظ مال یا محفوظ نفس هلاک کړی فَيَجِبُ الضَّمَانُ نو ا په دې وجه ا به پر هغه ضمان واجبیږي

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٢٢)، [القول الراجح ج:١، ص:٥٠٧]

اِعْتِبَارًا بِمَا قَبْلَ الْمَنْعَةِ د طاقت له حصول څخه پر مخکښي حالت باندي په قياس کولو سره وَلَنَا إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ او زموږ دليل د صحابه وو إجماع ده کوم چي امام زهري روايت کړې ده وَلِأَنَّهُ أَتْلَفَ عَنْ تَأْوِيلٍ فَاسِدٍ او ځکه چي هغه د فاسد تأويل په وجه امال يا نفس ا هلاک کړی وَالْفَاسِدُ مِنْهُ مُلْحَقٌ بِالصَّحِيحِ إِذَا ضُمَّتْ إِلَيْهِ الْمَنْعَةُ فِي حَقِّ الدَّفْعِ او کله چي د باغي سره طاقت موجود وي نو د ضمان د دفع کېدلو په حق کي فاسد تأويل هم د صحيح تأويل سره ملحق کيږي كَمَا فِي مَنْعَةِ أَهْلِ الْحَرْبِ وَتَأْوِيلِهِمْ لکه د حربيانو د قوت او د هغو د تأويل چي هم دغه حکم دی وَهَذَا لِأَنَّ الْأَحْكَامَ لَا بُدَّ فِيهَا مِنَ الْإِلْزَامِ أَوِ الِالْتِزَامِ او دا حکم ځکه دی چي د شرعي أحکامو لپاره الزام يا التزام ضروري دی وَلَا الْتِزَامَ او باغي التزام نه کوي لِاعْتِقَادِ الْإِبَاحَةِ عَنْ تَأْوِيلٍ ځکه چي هغه په خپل فاسد تأويل سره ادعادل نفس او مال ا مباح ګڼي وَلَا إِلْزَامَ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ او پر باغي اد امام له طرفه هم ا هيڅ حکم نه لازمول کيږي. ځکه چي پر هغه د امام ولايت نه وي لِوُجُودِ الْمَنْعَةِ ځکه چي طاقت موجود وي ايعني ځکه چي باغي ته قوت حاصل وي ا وَالْوِلَايَةُ بَاقِيَةٌ قَبْلَ الْمَنْعَةِ او اد امام ا ولايت خو تر طاقت مخکي پاته وي انه وروسته ا وَعِنْدَ عَدَمِ التَّأْوِيلِ ثَبَتَ الِالْتِزَامُ اعْتِقَادًا او د تأويل د نشتوالي په صورت کي اعتقاداً التزام ثابتيږي بِخِلَافِ الْإِثْمِ لِأَنَّهُ لَا مَنْعَةَ فِي حَقِّ الشَّارِعِ په خلاف د ګناه. ځکه چي د شريعت په حق کي طاقت لره هيڅ اعتبار نه وي إِذَا ثَبَتَ هَذَا فَنَقُولُ: قَتْلُ الْعَادِلِ الْبَاغِيَ قَتْلٌ بِحَقٍّ کله چي دا ثابته سوه نو موږ وايو: چي د عادل سړي لپاره د باغي قتل کول دا برحق قتل دی ايعني که عادل سړی باغي قتل کړي نو دا په ناحقه قتل نه دی بلکي پرحق قتل دی ا فَلَا يَمْنَعُ الْإِرْثَ نو ځکه به دا قتل وراثت نه منع کوي ايعني وراثت لره به مانع نه وي ا وَلِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ فِي قَتْلِ الْبَاغِي الْعَادِلَ: أَنَّ التَّأْوِيلَ الْفَاسِدَ إِنَّمَا يُعْتَبَرُ فِي حَقِّ الدَّفْعِ او په دې هکله "چي باغي عادل سړی قتل کړي" د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي فاسد تأويل د ضمان دفع کېدلو په حق کي معتبر دی وَالْحَاجَةُ هَهُنَا إِلَى اسْتِحْقَاقِ الْإِرْثِ حالانکي دلته د وراثت د استحقاق ثابتولو ته ضرورت سته فَلَا يَكُونُ التَّأْوِيلُ مُعْتَبَرًا فِي حَقِّ الْإِرْثِ نو ځکه به د وراثت په حق کي فاسد تأويل

معتبر نه وي وَلَهُمَا فِيهِ: أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى دَفْعِ الْحِرْمَانِ أَيْضًا او په دې کې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې دلته د حرمان دفع کولو ته هم ضرورت سته إِذِ الْقَرَابَةُ سَبَبُ الْإِرْثِ ځکه چې قرابت د وراثت سبب دی فَيُعْتَبَرُ الْفَاسِدُ فِيهِ لهذا د حرمان په دفع کولو کې به هم فاسد تأويل ته اعتبار ورکول کيږي إِلَّا أَنَّ مِنْ شَرْطِهِ بَقَاءَهُ عَلَى دِيَانَتِهِ ليکن د دې اعتبار شرط دا دی: چې هغه [باغي] به پر خپل ديانت [او تأويل] باقي پاته وي فَإِذَا قَالَ: كُنْتُ عَلَى الْبَاطِلِ همدا وجه ده که هغه ووايي: چې زه پر باطل وم [او له خپل ديانت او تأويل څخه واوړي] لَمْ يُوجَدِ الدَّافِعُ نو [په دې صورت کې] دافع موجود نه سو فَوَجَبَ الضَّمَانُ نو ځکه به ضمان واجب وي.

**اللغات**: ﴿أتلف﴾ د افعال ماضي ده: برباد ول، هلاکول. ﴿منفعة﴾ د مدافعت قوت (له ځان څخه د دفاع کولو قوت)، دفاعي طاقت. ﴿إلزام﴾ د افعال مصدر دی، متعدي باب دی، يعني پر چا يو شی لازمول. ﴿التزام﴾ د افتعال مصدر دی، لازمي باب دی، يعني په خپله ذمه يو شی اخيستل (يو کار په غاړه اخيستل). پر ځان لازمول. ﴿حِرمان﴾ محروم کېدل (محرومېدل)، مراد ځنې له ميراث څخه محرومېدل دي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که عادل سړی يو باغي قتل کړي (او دوی يو د بل قريب وي) نو عادل قاتل به د هغه باغي مقتول وارث کيږي، د دې په خلاف که باغي يو عادل قتل کړي او داسې ووايي: چې زه تر قتل مخکې هم پر حق وم او اوس هم پر حق يم، نو هغه باغي به هم د مقتول عادل وارث کيږي. ليکن که قاتل ووايي: چې ما ته معلومه وه چې زه پر حق نه وم بيا مې هم هغه قتل کړی، نو قاتل به د هغه مقتول نه وارث کيږي. دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی، د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز باغي قاتل بالکل د عادل مقتول نه وارث کيږي برابره ده هغه "أنا على الحق" ووايي يا "إني أعلم أنا على الباطل" ووايي.

صاحب د هدايې فرمايي چې د دې اختلاف اصل دا دی چې که عادل د يو باغي نفس او د هغه مال هلاک کړي نو پر عادل به نه ضمان وي او نه به هغه گنهگاره وي، ځکه چې عادل سړی د باغيانو د شر ليري کولو لپاره د هغو پر قتل او قتال مأمور دی. همدارنگه که باغي يو عادل قتل کړي نو زموږ په نيز خو به پر هغه ضمان نه وي ليکن هغه به گنهکار وي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله اول قول دا دی چې باغي به ضامن وي، ځکه چې هغه د محترم او معصوم نفس هلاکونکی دی. همدارنگه که يو مرتد د ارتداد په حالت کې د يو چا نفس يا مال هلاک کړی وي بيا هغه توبه وکړي، نو زموږ په نيز به هغه د مخکني جرم ضامن نه وي. ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به ضامن وي.

په دې مسئله کې دامام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې باغي په حقيقت کې يو محترم او معصوم نفس قتل کړی دی او که چيري هغه د طاقت او قوت له حصول څخه مخکې يو معصوم نفس قتل کړي وای نو پر هغه به ضمان واجب وای لهٰذا بعد حصول المنعة يعني په دغه مسئله کې به هم د قتل په وجه پر هغه ضمان واجب وي.

د ضمان نه واجبېدلو په هکله زموږ نقلي دليل د صحابه وو اجماع ده. د هغه تفصيل دا دی چې سلميان بن هشام امام زهري رَحِمَهُ الله ته يو خط وليکی چې يوه ښځه له خپل خاوند څخه وتښتېده او د خوارجو سره يو ځای سوه او ويې ويل چې زما قوم مشرک دا او هلته يې نکاح وکړه بيا يې توبه وکړه او واپس راغله. نو د دې څه حکم دی؟ نو امام زهري رَحِمَهُ الله د دې خط په جواب کې دا حکم وليکی: "أما بعد: فإن الفتنة الأولى ثارت وأصحاب رسول الله ﷺ ممن شهد بدرا كثير، فاجتمع رأيهم على أن لا يقيموا على أحد حدا في فرج استحلوه بالقرآن ولا قصاص في دم استحلوه بتأويل القرآن... إلخ" (بناية ج:۶، ص:۷۴۸). يعني کله چې د خوارجو اوله فتنه را پورته سوه په هغه وخت کې ډېر بدري صحابه موجود ول، په هغه وخت کې د هغو فيصله پر دې خبره وسوه چې که خوارج په قرآني تأويل سره ښځه حلاله وګڼي نو پر هغو به حدّ نه جاري کيږي، همدارنګه که هغوی په يو قرآني تأويل سره يو سړی حلال او مباحُ الدم وګڼي او هغه قتل کړي نو پر هغو به قصاص واجب نه وي. او څرنګه چې د دې مسئلې په اول جزء کې باغي د "قد كنت على حق، وأنا الآن على الحق" په تأويل سره قتل کړی دی نو په دې وجه زموږ په نېز پر هغه قصاص او ضمان نسته او هغه د ميراث مستحق هم دی. او د باغي تأويل که څه هم فاسد دی، لېکن د طاقت او قوت په وخت کې د ضمان دفع کولو په هکله دا تأويل د صحيح تأويل سره ملحق دی، لکه کله چې د جنګ په دوران کې حربيان يو څو مسلمانان قتل کړي يا د مسلمانانو مالونه چور کړي بيا هغه حربيان هم اسلام راوړي نو پر هغو قصاص يا ضمان نسته. همدغسې پر باغيانو هم زموږ په نېز ضمان نسته. او پر باغيانو په دې وجه هم ضمان نسته چې ضمان يو شرعي حکم دی او د شرعي حکم لپاره د امام له طرفه الزام يا په رضا سره د هغه التزام ضروري دی او د باغي په حق کې الزام او التزام دواړه نسته. الزام خو ځکه نسته چې دا باغي په خپل طاقت او قوت سره د امام د له ولايت څخه خارج دی. او التزام ځکه نسته چې هغه په خپل فاسد تأويل سره د مسلمان او عادل کس مال او نفس مباح ګڼلی دی. او تأويل دا دی چې باغي (خارجي) د قرآن کريم د دې آيت "وَمَنْ يَعْصِ اللهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا... إلخ" [سورة الجن: ۲۳] په خاطر هر عادل سړی عاصي او ګنهکار ګڼي (يعني باغي دې آيت ته په کتلو سره پر بل مسلمان [عادل] د ګنهکاره خيال کوي) او دا تأويل کوي چې عادل د کتاب (قرآن) پر موجب عمل نه کوي نو په دې وجه هغه مباحُ الدم دی.

**والولاية إلخ:** د دې حاصل دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله چې بعد المنعة د باغي قتل پر قبل المنعة قياسوي. دا صحيح نه دي، ځکه چې قبل المنعة باغي د امام په ولايت کې وي او پر هغه الزام متحقق او ثابت وي. نو ځکه

به په قبل المنعة والا قتل کي پر هغه ضمان واجب وي، لېکن په بعد المنعة والا قتل کي به پر هغه ضمان یا قصاص نه وي. همدارنګه که د هغه له طرفه تأویل سوی نه وی یا باطل تأویل سوی وي نو هم به پر هغه ضمان وي، ځکه چي په دې صورت کي به اعتقاداً پر هغه التزام ثابت وي. او په هر صورت کي به هغه ګنهګاره وي برابره ده پر هغه ضمان وي او که نه وي یعني په یوه صورت کي هم هغه له ګناه څخه نه خلاصیږي. ځکه چي ګناه د شریعت حق دی او د شریعت په معامله کي منعة یا عدم منعة لره هیڅ اعتبار نه وي.

په دې ټولو تفصیلاتو سره دا خبره ښکاره سوه چي د عادل لپاره د باغي قتلول برحق دي همدا وجه ده چي تر قتل وروسته هم عادل د باغي مقتول میراث حاصلوي (یعني تر قتل وروسته هم عادل د باغي وارث کیږي). ځکه چي برحق قتل له میراث څخه د محرومېدلو (حرمان) سبب دی نه بلکي فقط ناحقه قتل د حرمان سبب دی.

که چیري باغي عادل قتل کړي، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز هغه په هیڅ صورت کي د مقتول نه وارث کیږي یعني که تأویل وکړي او که یې نه وکړي، ځکه چي فاسد تأویل که څه هم د ضمان دفع کېدلو په حق کي معتبر دی، لېکن د میراث ثابتولو په باره کي معتبر نه دی. او دلته د قاتل په حق کي د میراث د استحقاق او اثبات ضرورت سته نو ځکه به د هغه تأویل دلته معتبر او مؤثر نه وي. په دې سلسله کي د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي د باغي (باغي) تأویل دلته هم دافع دی او هغه د حرمان دافع دی یعني د قرابت په وجه د خپل مورث د میراث مستحق دی لېکن قتل د میراث دافع دی. لهذا د هغه تأویل به د حرمان دافع ګرځول کیږي او هغه ته به میراث ورکول کیږي. لېکن شرط دا دی چي هغه به پر خپل تأویل ولاړ او مُصر (ټینګار کونکی) وي له همدې کبله په متن کي تر "قد کنت علیٰ حق" وروسته د "وأنا الآن علیٰ حق" شرط لګېدلی دی.

او که چیري هغه "وأنا أعلم أني علی الباطل" ووایي نو د هغه په حق کي د حرمان دافع نه موجودیږي لهذا هغه به له میراث څخه محرم وي او د مقتول ضمان به هم ورکوي.

## پر فتنه ګرو (خوارجو او داسي نورو) وسله خرڅول

قال: **وَيُكْرَهُ بَيْعُ السِّلَاحِ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ وَفِي عَسَاكِرِهِمْ** فرمایي: چي پر فتنه ګرو او د هغو په لښکرونو کي وسله خرڅول مکروه دي **لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ** ځکه چي دا د ګناه پر کار مرسته کول دي **وَلَيْسَ بِبَيْعِهِ بِالْكُوفَةِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَمَنْ لَمْ يُعْرَفْ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ بَأْسٌ** الېکن! په دې کي څه حرج نسته چي په کوفه کي د کوفې پر خلکو او پر هغه کس کوم چي له فتنه ګرنو څخه نه معلومیږي وسله خرڅه کړی سي **لِأَنَّ الْغَلَبَةَ فِي الْأَمْصَارِ لِأَهْلِ الصَّلَاحِ** ځکه چي په ښارونو کي وسله لرونکي (اسلحه داره) خلک زیات وي **وَإِنَّمَا يُكْرَهُ بَيْعُ نَفْسِ السِّلَاحِ** او خاص د وسلې خرڅول مکروه دي **لَا بَيْعُ مَا لَا يُقَاتَلُ بِهِ إِلَّا بِصَنْعَةٍ** او د هغه شي خرڅول مکروه نه دي چي له جوړښت (او کاریګری) څخه بغیر په هغه سره جنګ نه سي کېدلای ایعني د

اوسپني او داسي نورو خرڅول مکروه نه دي. ځکه که له اوسپني څخه وسله جوړه نه کړی سي. نو محض په اوسپنه سره جنګ نه سي کېدلای! أَلَا تَرَى أَنَّهُ يُكْرَهُ بَيْعُ الْمَعَازِفِ وَلَا يُكْرَهُ بَيْعُ الْخَشَبِ آیا نه ګورې! چي د موسيقۍ د آلاتو خرڅول مکروه دي لېکن د لرګيو (او تختو) خرڅول مکروه نه دي وَعَلَى هٰذَا الْخَمْرُ مَعَ الْعِنَبِ او پر همدغه حکم د شرابو او انګورو بيع هم ده.

**اللغات**: ﴿سلاح﴾ وسله. اسلحه. ﴿اعانـة﴾ د افعال مصدر دی: امداد. مرسته کول. ﴿صنعة﴾ جوړښت (جوړول). کاريګري. ﴿معازف﴾ د ساز او موسيقۍ آلات (د سروز آلات. لکه ډول. رباب. شپېلۍ او داسي نور).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د مسلمان لپاره پر خوارجو او د هغو په لښکر ځای کي وسله (اسلحه) خرڅول مکروه دي. ځکه چي دا اِعانة علی المعصية دی. او په قرآن کي موږ ته د اعانة علی الاطاعة حکم سوی دی او له اعانة علی المعصية څخه منع سوي يو الله تعالیٰ فرمايلي دي: "تَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ". [سورة المائدة: ٢]

که يو څوک په کوفه کي د کوفې پر خلکو وسله خرڅوي يا يې پر يو داسي سړي خرڅوي چي خرڅونکی هغه نه پېژني (چي باغي او خراجي دی که عادل دی) نو په دې بيع کي هيڅ حرج نسته. ځکه چي په ښار کي به شمېره وسلوالرونکي (اسلحه داره) خلک ګرځي او هر وسله لرونکی خارجي يا باغي نه وي. همدارنګه خارجي او باغي ښکاره وي او معلومېږي. لهذا پر داسي خلکو په وسله خرڅولو کي هيڅ حرج نسته. او د کراهت تعلق د نفسِ وسلې سره دی. د هغو شيانو سره کراهت هيڅ تعلق نه لري چي له هغوی څخه وسله جوړېږي لکه اوسپنه او داسي نور. ځکه چي له جوړولو څخه بغير په اوسپنه سره جنګ نه سي کېدلای. همدا وجه ده چي د موسيقۍ د آلاتو (لکه رباب او داسي نورو) بيع مکروه ده لېکن د کومو لرګيو څخه چي هغه جوړېږي د هغه بيع صحيح ده. همدارنګه د انګورو بيع جائز ده لېکن د شرابو بيع حرام ده. ځکه چي د معصيت تعلق د شراب او رباب سره دی نه د انګور او لرګيو سره. همداسي په دې مسئله کي هم معصيت د نفسِ سلاح سره متعلق دی. نه د اوسپني او داسي نورو سره. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ اللَّقِيطِ

(دا) كتاب د لقيط (د أحكامو په بيان كي) دی

**تشريح**: تر كتابُ السير وروسته د كتابُ اللقيط د بيانولو وجه دا ده چې د مجاهد په څير د لقيط نفس هم په خطره كي وي، خو څرنګه چې د جهاد مشروعيت او فضيلت په قرآن او احديث سره ثابت دی او جهاد أفضل الأعمال باعتبار الأحول ګرځول سوی دی. نو ځكه د هغه بيان د لقيط تر بيان مخكي سوي دی.

**د لقيط لغوي او اصطلاحي معنی**: د لقيط لغوي معنی ده: له ځمكي څخه را پورته كړی سوی بچی (يعني هغه بچی چې يو ځای پروت وي او يو څوك هغه را پورته كړی او د ځان سره يې واخلي)، او د لقيط شرعي معنی ده: هغه بچی كوم چې مور وپلار د لوږي او غربت له بيري څخه يا د زنا له تهمت څخه د ځان ساتلو په وجه په لاره كي غورځولی وي.

## د غورځول سوي بچي حكم

| |
|---|
| اَللَّقِيطُ سُمِّيَ بِهِ بِاعْتِبَارِ مَآلِهِ لقيط ته د انجام [وروستني حالت] په اعتبار سره لقيط ويل سوي دي لِمَا أَنَّهُ يُلْتَقَطُ ځكه چې هغه [له ځمكي څخه] را پورته كول كيږي وَالِالْتِقَاطُ مَنْدُوبٌ إِلَيْهِ او اد غورځول سوي بچي] را پورته كول مستحب دي لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْيَائِهِ ځكه چې په دې كي هغه ته ژوند وركول دي وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ ضَيَاعُهُ فَوَاجِبٌ او كه د سړي غالب ګومان دا وي چې هغه به ضايع سي نو د هغه را پورته كول واجب دي قَالَ: اللَّقِيطُ حُرٌّ فرمايي: چې لقيط [غورځول سوی بچي] آزاد دی لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي بَنِي آدَمَ إِنَّمَا هُوَ الْحُرِّيَّةُ ځكه چې أصل د آدم په زامنو [انسانانو] كي آزادي ده وَكَذَا الدَّارُ دَارُ الْأَحْرَارِ او همدارنګه دار الاسلام د آزادو خلكو كور [استوګنځی] دی وَلِأَنَّ الْحُكْمَ لِلْغَالِبِ او په دې وجه [هم] چې حكم غالب لره وي وَنَفَقَتُهُ فِي بَيْتِ الْمَالِ او د لقيط نفقه به له بيت المال څخه وركول كيږي هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ همدا له حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ |

عَنْهُمَا څخه روايت سوي دي وَلِأَنَّهُ مُسْلِمٌ عَاجِزٌ عَنِ التَّكَسُّبِ او ځکه چي لقيط [هم] داسي مسلمان دی کوم چي له کسب او کار کولو څخه عاجز دی وَلَا مَالَ لَهُ وَلَا قَرَابَةَ او د هغه سره نه څه مال سته او نه يې يو قريب سته فَأَشْبَهَ الْمُقْعَدَ الَّذِي لَا مَالَ لَهُ نو لقيط د هغه شوټ سره مشابه سو چي د هغه سره مال نه وي وَلِأَنَّ مِيرَاثَهُ لِبَيْتِ الْمَالِ او ځکه چي د لقيط ميراث د بيتُ المال دی وَالْخَرَاجُ بِالضَّمَانِ او ګټه په تاوان سره ده [يعني څوک چي ګټه او نفع (ميراث) حاصلوي نو هغه به ضمان او تاوان (نفقه) هم ورکوي] وَلِهَذَا كَانَتْ جِنَايَتُهُ فِيهِ همدا وجه ده چي د لقيط د جرم ضمان هم په بيتُ المال کي واجبيږي وَالْمُلْتَقِطُ مُتَبَرِّعٌ فِي الْإِنْفَاقِ عَلَيْهِ او پر لقيط باندي د مال په خرچولو کي ملتقط احسان کونکی دی [يعني ملتقط چي لقيط ته کومه نفقه او خرچه ورکوي، دا د هغه له طرفه احسان دی، لهذا ملتقط وروسته هغه د لقيط څخه نه سي اخيستلای] لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ ځکه چي پر لقيط د ملتقط ولايت نسته إِلَّا أَنْ يَأْمُرَهُ الْقَاضِي بِهِ لِيَكُونَ دَيْنًا عَلَيْهِ خو دا چي قاضي ملتقط ته پر لقيط د انفاق [خرچولو] حکم وکړي ذ دي لپاره چي دا انفاق پر هغه قرض وګرځي لِعُمُومِ الْوِلَايَةِ ځکه چي د قاضي ولايت عام دی.

**اللغات**: ﴿لقيط﴾ راپورته کړی سوی (را اخيستل سوی)، مراد ځني هغه بچی دی کوم چي په يو ځای او لاره کي غورځول سوی وي، داسي بچي ته مُلْتَقَط هم وايي، او دې بچي راپورته کونکي (را اخيستونکي) ته مُلْتَقِط وايي (د تاء په کسره سره). ﴿مآل﴾ انجام، پای، آخر، وروستنی حالت. ﴿إحياء﴾ د افعال مصدر دی: ژوندی کول، ژوند وربخښل. ﴿نفقة﴾ د خوراک، څښاک او داسي نورو ضروریاتو خرچه. ﴿مُقعد﴾ پر کونه ناست، ډېر شوټ (شل وشوټ). ﴿إنفاق﴾ د افعال مصدر دی: خرچول، نفقه او خرچه ورکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي لقيط خو أصلاً طريح يعني د مطروح (غورځول سوي) په معنیٰ سره وي ليکن څرنګه چي هغه عموماً د لاري څخه راپورته کول کيږي (را اخيستل کيږي) نو ځکه د مآل (وروستني حالت) په اعتبار سره هغه ته لقيط ويل کيږي. التقاط (د بچي راپورته کول او را اخيستل) مستحب دي ليکن که چيري د بچي د هلاکت او د هغه د ضياع ډېره وي نو په داسي صورت کي التقاط واجب دی، ځکه چي په دې کي د بچي إحياء ده او إحياء مستحسن کار دی. په قرآن کي ذکر سوي دي: "وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا". [سورة المائدة: ٣٢]

لقيط حُرّ او آزاد دی. ځکه چي بنو آدم (انسانان) حُر الأصل وي همدا وجه ده چي زموږ مور وپلار يعني حضرت آدم او حواء عليهما السلام هم آزاد وو. او بل دا چي دارُ الاسلام د آزادو خلکو ملک دی او د هغه زیاتره اوسېدونکي آزاد وي. لهذا د هغو په متابعت کي به لقيط هم آزاد وي. او که چیري د لقيط سره مال نه وي نو د هغه نفقه به له بيتُ المال څخه ورکول کيږي. ځکه چي له حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه لقيط ته له بيتُ المال څخه خرچه ورکول ثابت او منقول دي. دويمه خبره دا ده چي لقيط هم مسلمان دی او له کار کولو څخه عاجز دی. لهذا څرنګه چي مسلمان شل وشوټ ته نفقه ورکول کيږي همداسي به لقيط ته هم نفقه ورکول. ځکه که لقيط مړ سي او مال پریږدي نو د هغه مال او ميراث هم بيتُ المال ته ورکول کيږي لهذا د هغه نفقه به هم بيتُ المال ورکوي. ځکه چي د "الغُرْمُ بِالْغُنْم" قاعده ډېره مشهوره ده. له همدې کبله به د لقيط د جنايت ضمان هم بيتُ المال ورکوي. او مُلتقط چي د لقيط په پرورش او پالنه کي کوم مال خرچوي ملتقط په هغه کي متبرع او محسن دی. ځکه چي پر لقيط د ملتقط هيڅ ولايت نسته. لهذا ملتقط تر بلوغت وروسته د لقيط څخه هغه مال نه سي اخيستلای او نه يې له بيتُ المال څخه اخيستلای سي. ها! که قاضي ملتقط ته پر لقيط د مال خرچولو حکم کړی وي او داسي يې ورته ويلي وي چي "ته د لقيط تر بلوغت وروسته ته له هغه څخه خپل حساب او قرض واخله!". نو په دې صورت کي چي ملتقط کوم مال پر لقيط مصرف کړی وي هغه به د لقيط پر ذمه قرض وي او وروسته به هغه خپل دغه قرض د لقيط څخه اخلي. ځکه چي د قاضي ولايت عام وي.

## د لقيط زيات حقدار به څوک وي؟

قال: فَإِنْ الْتَقَطَهُ رَجُلٌ فرمايي: که يو سړی لقيط را پورته کړي لَمْ يَكُنْ لِغَيْرِهِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْهُ نو بل چا ته دا حق نسته چي له ملتقط [را پورته کونکي] څخه هغه واخلي لِأَنَّهُ ثَبَتَ حَقُّ الْحِفْظِ لَهُ ځکه چي [د لقيط] د حفاظت حق هغه ته حاصل سو لِسَبْقِ يَدِهِ ځکه چي اول هغه [پر لقيط] قبضه وکړه فَإِنِ ادَّعَى مُدَّعٍ أَنَّهُ ابْنُهُ او که يو دعوىٰ کونکي دعوىٰ وکړي چي دا لقيط زما زوی دی فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو د هغه قول به معتبر وي مَعْنَاهُ: إِذَا لَمْ يَدَّعِ الْمُلْتَقِطُ نَسَبَهُ د دې مطلب دا دی: چي کله ملتقط د لقيط د نسب دعوىٰ نه وکړي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يُقْبَلَ قَوْلُهُ او قياس دا دی: چي د مدعي قول [دعوىٰ] دي نه قبليږي لِأَنَّهُ يَتَضَمَّنُ إِبْطَالَ حَقِّ الْمُلْتَقِطِ ځکه چي دا دعوىٰ د

متلقط د حق باطلولو لره شامله ده وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ إِقْرَارٌ لِلصَّبِيِّ بِمَا يَنْفَعُهُ د استحسان دليل دا دی: چي دا د بچي [لقيط] په حق کي د هغه شي اقرار کول دي کوم چي د بچي لپاره نفع مند دي لِأَنَّهُ يَتَشَرَّفُ بِالنَّسَبِ وَيُعَيَّرُ بِعَدَمِهِ ځکه چي په نسب ثابتېدلو سره هغه عزتمن [معزز] ګڼل کيږي او د نسب په نشتوالي سره هغه ته پېغور ورکول کيږي ايعني د نسب نه ثابتېدلو په صورت کي به هغه ته پېغور ورکول کيږي] ثُمَّ قِيلَ: يَصِحُّ فِي حَقِّهِ دُونَ إِبْطَالِ يَدِ الْمُلْتَقِطِ بيا يو قول دا دی: چي دا دعوىٰ به فقط د نسب په ثبوت کي صحيح وي او د ملتقط د قبضې په باطلولو کي به معتبره نه وي وَقِيلَ: يَبْتَنِيْ عَلَيْهِ بُطْلَانُ يَدِهِ دويم قول دا دی: چي د ملتقط د قبضې باطلېدل به هم پر هغه مبني وي وَلَوِ ادَّعَاهُ الْمُلْتَقِطُ او که چيري ملتقط [د لقيط] د نسب دعوىٰ وکړي قِيلَ: يَصِحُّ قِيَاسًا وَاسْتِحْسَانًا نو يو قول دا دی: چي د قياس او استحسان دواړو په اعتبار سره د هغه دعوىٰ صحيح کيږي. وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ عَلَى الْقِيَاسِ وَالِاسْتِحْسَانِ او صحيح خبره دا ده چي هغه د قياس په اعتبار سره نه صحيح کيږي، فقط د استحسان په اعتبار سره صحيح کيږي وَقَدْ عُرِفَ فِي الْأَصْلِ او په مبسوط کي دا معلوم سوي دي ايعني دا خبره په مبسوط کي هم ذکر سوې ده] وَإِنِ ادَّعَاهُ اثْنَانِ وَوَصَفَ أَحَدُهُمَا عَلَامَةً فِي جَسَدِهِ او که دوه خلک [د لقيط] د نسب دعوىٰ وکړي او په دوی کي يو سړی د لقيط په بدن کي يو علامت هم بيان کړي فَهُوَ أَوْلَى بِهِ نو هغه [علامت بيانونکي] به د لقيط زيات حقداره وي لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ ځکه چي ظاهري حال د هغه په حق کي ګواهي ورکونکی دی لِمُوَافَقَةِ الْعَلَامَةِ كَلَامَهُ ځکه چي علامت د هغه د خبري موافق دی وَإِنْ لَمْ يَصِفْ أَحَدُهُمَا عَلَامَةً او که په دوی کي يو هم علامت بيان نه کړي فَهُوَ ابْنُهُمَا نو لقيط به د دوی دواړو زوی وي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي السَّبَبِ ځکه چي په سبب [دعوىٰ] کي دواړه برابر دي وَلَوْ سَبَقَتْ دَعْوَةُ أَحَدِهِمَا او که په دوی کي د يوه سړي دعوىٰ مخکي وي فَهُوَ ابْنُهُ نو لقيط به د هغه زوی وي. لِأَنَّهُ ثَبَتَ فِي زَمَانٍ لَا مُنَازِعَ لَهُ فِيهِ ځکه چي د هغه حق په داسي زمانه کي ثابت سوی دی چي په هغه زمانه کي د ده هيڅ مخالف [او دعوىٰ کونکي] نسته إِلَّا إِذَا أَقَامَ الْآخَرُ الْبَيِّنَةَ خو دا چي دويم کس بيّنه [ګواهي] پېش کړي لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ أَقْوَى ځکه چي بيّنه زياته قوي ده.

**اللغات**: ﴿سَبْق﴾ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: وړاندیتوب کول، مخکي کېدل. ﴿يتشرّف﴾ د تفعّل مضارع معلومه ده: عزتمن کېدل، عزتمن ګڼل. ﴿يُعَيّر﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: پېغور ورکول. ﴿جسد﴾ جسم، بدن. ﴿أقام﴾ د افعال ماضي ده: درول، مراد ځني ګواهان درول (حاضرول) دي.

**تشریح**: د عبارت مطلب له ترجمې څخه هم ښکاره دی خو په لنډه توګه یې خلاصه دا ده چي فقط ملتقط به د لقیط زیات حقدار وي. لېکن که یو څوک د لقیط د نسب دعویٰ وکړي او ملتقط خاموش پاته سي یعني هغه دعویٰ نه وکړي نو استحساناً به د مدعي دعویٰ معتبره وي. ځکه چي د نسب په ثبوت سره به هغه بچي (لقیط) ته شرف او عزت حاصل سي او د معدومُ النسب کېدلو په صورت کي به هغه ته عار او پېغور ورکول کیږي. پاته عبارت واضح دی.

که چیري دوه خلګ د لقیط په هکله دا دعویٰ وکړي چي هغه زما زوی دی او په دوی کي یو سړی علامت (نښاني) هم بیان کړی مثلاً ووایي چي د دې بچي په راسته طرف کي داغ (مرېی) دی. او دا علامت صحیح ثابت سي. نو د علامت بیانونکي دعویٰ به معتبره وي. ځکه چي ظاهري حالت د هغه په حق کي ګواهي ورکوي ځکه چي د هغه کلام صحیح وختی. او قاعده دا ده چي "أن من ساعده الظاهر فالقول قوله" یعني ظاهري حالت چي د چا موافق وي نو خبره به هم د هغه معتبره وي. او که چیري دوی دواړه علامت بیان نه کړي نو دواړه به د لقیط حقداره وي لېکن که د یوه دعویٰ مخکي وي نو هغه ته به ترجیح ورکول کیږي. همدارنګه که په دوی کي یو سړی وروسته دعویٰ وکړي لېکن بیّنه او ګواهي هم پېش کړي. نو اوس به د ګواهی او بیّنه په وجه د هغه دعویٰ ثابتیږي او لقیط به د هغه وي. ځکه چي د بیّنه او ګواهی مخته د هیڅ خبره نه چلیږي. ځکه چي هغه زیات قوي حجت دی.

## د لقیط په باره کي د ذمي د نسب دعویٰ کول

وَإِذَا وُجِدَ فِي مِصْرٍ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ فِي قَرْيَةٍ مِنْ قُرَاهُمْ او که د مسلمانانو په یو ښار کي یا د مسلمانانو په یو کلي (اطرافي علاقه) کي لقیط پیدا سي فَادَّعَى ذِمِّيٌّ أَنَّهُ ابْنُهُ بیا یو ذمي دعوی وکړي چي هغه زما زوی دی ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ وَكَانَ مُسْلِمًا نو د ذمي سره به د هغه لقیط نسب ثابتیږي او هغه به مسلمان وي وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی لِأَنَّ دَعْوَاهُ تَضَمَّنَ النَّسَبَ وَهُوَ نَافِعٌ لِلصَّغِيرِ

ځکه چې د ذمي دعوىٰ نسب لره شامليږي او دا د بچي القيط ا لپاره نفع مند دي وَإِبْطَالُ الْإِسْلَامِ الثَّابِتِ بِالدَّارِ وَهُوَيَضُرُّهُ او د ذمي دعوىٰ د اسلام باطلولو لره اهم ا شامليږي كوم چې په دارُ الاسلام سره ثابت دی او دا د هغه لپاره مُضر دي فَصَحَّتْ دَعْوَتُهُ فِيمَا يَنْفَعُهُ دُونَ مَا يَضُرُّهُ لهذا كوم شی چې د بچي لپاره نفع مند دي په هغه كي به د ذمي دعوىٰ صحيح كيږي او كوم چې شی چې د بچي لپاره مُضر دي په هغه كي به نه صحنيح كيږي وَإِنْ وُجِدَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ قُرَى أَهْلِ الذِّمَّةِ أَوْ فِي بِيعَةٍ أَوْ كَنِيسَةٍ او كه چيري د ذميانو په يو كلي يا په يو گرجا او كليسا كي لقيط پيدا سي كَانَ ذِمِّيًا نو هغه به ذمي وي وَهٰذَا الْجَوَابُ فِيمَا إِذَا كَانَ الْوَاجِدُ ذِمِّيًا رِوَايَةً وَاحِدَةً او همدا حكم په هغه صورت كي هم دی كله چي پيدا كونكی ذمي وي وَإِنْ كَانَ الْوَاجِدُ مُسْلِمًا فِي هٰذَا الْمَكَانِ أَوْ ذِمِّيًّا فِي مَكَانِ الْمُسْلِمِينَ او كه چيري پيدا كونكی مسلمان وي د ذميانو په علاقه كي يا ذمي وي د مسلمانانو په علاقه كي اِخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِيهِ نو په دې سلسله كي روايات مختلف دي فَفِي رِوَايَةِ كِتَابِ اللَّقِيطِ اُعْتُبِرَ الْمَكَانُ [د مبسوط ا د كتابُ اللقيط په روايت كي مكان [علاقې] ته اعتبار وركول سوی دی لِسَبْقِهِ ځكه چي مكان مخكي دی وَفِي كِتَابِ الدَّعْوَى فِي بَعْضِ النُّسَخِ اُعْتُبِرَ الْوَاجِدُ او [د مبسوط ا د ځينو نسخو په كتابُ الدعوىٰ كي پيدا كونكي ته اعتبار وركول سوی دی وَهُوَ رِوَايَةُ ابْنِ سَمَاعَةَ عَنْ مُحَمَّدٍ او همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د محمد بن سماعه روايت دی لِقُوَّةِ الْيَدِ ځكه چي قبضه قوي وي أَلَا تَرَى أَنَّ تَبَعِيَّةَ الْأَبَوَيْنِ فَوْقَ تَبَعِيَّةِ الدَّارِ آيا ته نه گوري! چي د مور و پلار تبعيت د دارُ الاسلام له تبعيت څخه لوړ وي حَتّٰى إِذَا سُبِيَ مَعَ الصَّغِيرِ أَحَدُهُمَا همدا وجه كه له مور و پلار څخه يو د بچي سره [په دارُ الاسلام كي] قيد كړی سي يُعْتَبَرُ كَافِرًا نو [بيا هم] بچی كافر شمارل كيږي وَفِي بَعْضِ نُسَخِهِ اُعْتُبِرَ الْإِسْلَامُ او د مبسوط په ځينو نسخو كي اسلام ته اعتبار وركول سوی دی نَظَرًا لِلصَّغِيرِ پر كوچني د شفقت كولو لپاره [او د هغه د مصلحت او فايدې لپاره].

**اللغات**: ﴿قرية﴾ قصبه. له ښار څخه بهر د أطرافو علاقه چي په هغه كي خلك آباد وي. د أطرافو كلی. ﴿بيعة﴾ د عيسايانو معبد (عبادتځی). د كفارو معبد. ﴿كنيسة﴾ د يهودو او عيسايانو معبد. كليسا. ﴿سَبْق﴾ مصدر دی. له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: وړانديتوب كول. مخكي كېدل.

**تشريح: مسئله**: دا ده كه په يو مسلمان ښار يا مسلمانه قريه كې يو لقيط پيدا سي او يو ذمي دا دعوىٰ وكړي چې دا زما زوى دى نو استحساناً به له دې ذمي سره د هغه لقيط نسب خو ثابتيږي ليكن هغه به ذمي نه وي. بلكې مسلمان به وي. ځكه چې د دې ذمي دعوىٰ پر دوو شيانو مشتمله ده: ① د ځان سره د بچي نسب ثابتول (ثبوت النسب). ② په دارُ الاسلام كې د بچي د موجود والي په وجه د هغه مسلمانوالى باطلول. او په دوى كې اول شى يعني د نسب ثبوت د لقيط په حق كې مفيد دى نو ځكه به په دې هكله د ذمي دعوىٰ معتبره وي. ليكن په دويم شي يعني د اسلام د إبطال په هكله به د هغه دعوىٰ مقبوله او معتبره نه وي او هغه بچى (لقيط) به مسلمان وي. ځكه كه د اسلام د إبطال په هكله دعوىٰ معتبره ومنل سي نو په دې كې د بچي زيات ضرر دى.

د دې په خلاف كه چيرې د ذميانو په يو كلي او قريه كې يا په بيعه او كليسا كې لقيط پيدا سي نو هغه به ذمي وي همدارنګه كه لقيط يو ذمي پيدا كړى وي نو هم به هغه ذمي وي. او كه چيرې يو مسلمان د ذميانو په علاقه كې يا په بيعه او كليسا كې لقيط پيدا كړي، يا يو ذمي د مسلمانانو په علاقه كې لقيط پيدا كړي، نو په دې هكله روايات مختلف دي. د مبسوط په كتابُ اللقيط كې ذكر سوي دي چې په كوم ځاى كې لقيط پيدا سي هغه ته به اعتبار وركول كيږي. يعني كه د ذميانو په علاقه كې پيدا سي نو هغه ذمي دى كه څه هم واجد (پيدا كونكى) مسلمان وي او كه د مسلمانانو په علاقه كې پيدا سي نو هغه به مسلمان وي كه څه هم واجد ذمي وي. او د مبسوط د ځينو نسخو په كتابُ الدعوىٰ كې ذكر سوي دي چې واجد (پيدا كونكي) ته به اعتبار وركول كيږي. كه واجد مسلمان وي نو لقيط به مسلمان وي او كه واجد ذمي وي نو لقيط به ذمي وي، همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د محمد بن سماعه روايت دى. د دې روايت دليل دا دى چې پيدا كونكى پر هغه لقيط قابض وي (يعني لقيط د هغه په قبضه كې وي)، او د حكم په ثابتولو كې قبضې لره دخل او اعتبار سته. همدا وجه ده كه يو بچى د خپل مور و پلار سره وي نو هغه د دوى پيروي كونكى او تابع منل كيږي برابره ده دوى په دارُ الاسلام كې وي يا په دارُ الكفر كې وي، همدارنګه كه د بچي سره په مور و پلار كې يو قيد كړى سي مثلاً پلار ذمي وي او بيا هغه او بچى دواړه په دارُ الاسلام كې قيد كړى سي، نو د دارُ الاسلام په وجه بچى مسلمان نه شمارل كيږي بلكې د پلار په متابعت كې بچى هم كافر شمارل كيږي. لذا دا چې دا ثابته سوه چې اعتبار قبضې لره دى، نو ځكه به قابض (واجد) ته اعتبار وركول كيږي.

او د مبسوط د ځينو نسخو په كتابُ الدعوىٰ كې ذكر سوي دي چې په هر حال كې به بچى مسلمان ګرځول كيږي برابره ده هغه كه هر ځاى پيدا سي او كه هر څوك يې پيدا كړي؛ ځكه چې دا د بچي (لقيط) په حق كې شفقت دى چې هغه مسلمان وګرځول سي او كه ذمي وګرځول سي نو دا د هغه په حق كې نقصان او ضرر دى. او د بچي په حق كې فقط د شفقت كار او أمر معتبر وي، لهذا په هر حال كې به هغه مسلمان منل كيږي.

## د لقيط په باره كي د غلام كېدلو دعوىٰ كول

وَمَنِ ادَّعٰى أَنَّ اللَّقِيطَ عَبْدُهُ او كوم سړى چي دا دعوىٰ وكړي چي لقيط د هغه غلام دى لَمْ يُقْبَلْ مِنْهُ نو د هغه دعوىٰ به نه قبليږي لِأَنَّهُ حُرٌّ ظَاهِرًا ځكه چي د ظاهري حال په اعتبار سره لقيط آزاد دى إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ أَنَّهُ عَبْدُهُ خو دا چي [مُدعي] پر دې خبره بيّنه پېش كړي چي لقيط د هغه غلام دى فَإِنِ ادَّعٰى عَبْدٌ أَنَّهُ ابْنُهُ او كه يو غلام دا دعوىٰ وكړي چي لقيط د هغه زوى دى ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو د هغه غلام سره به د لقيط نسب ثابتيږي لِأَنَّهُ يَنْفَعُهُ ځكه چي د نسب ثبوت د لقيط لپاره نفع مند دى وَكَانَ حُرًّا او هغه به آزاد وي لِأَنَّ الْمَمْلُوكَ قَدْ تَلِدُ لَهُ الْحُرَّةُ ځكه چي د غلام لپاره ځيني وخت آزاده ښځه بچى زيږوي ايعني ځيني وخت د غلام ښځه آزاده وي. او دا تاسي ته معلومه ده چي د آزادي ښځي به هم آزاد وي] فَلَا تَبْطُلُ الْحُرِّيَّةُ الظَّاهِرَةُ بِالشَّكِّ لهذا د شك په وجه به ظاهري حُريت [آزادي] نه باطليږي وَالْحُرُّ فِي دَعْوَتِهِ اللَّقِيطَ أَوْلٰى مِنَ الْعَبْدِ وَالْمُسْلِمُ أَوْلٰى مِنَ الذِّمِّيِّ او د لقيط په دعوىٰ كولو كي به آزاد تر غلام زيات غوره [او د هغه مستحق] وي او مسلمان به تر ذمي زيات غوره وي تَرْجِيحًا لِمَا هُوَ الْأَنْظَرُ فِي حَقِّهِ هغه شي ته په ترجيح وركولو سره كوم چي د بچي په حق كي زيات مصلحت [او شفقت] والا دى وَإِنْ وُجِدَ مَعَ اللَّقِيطِ مَالٌ مَشْدُودٌ عَلَيْهِ او كه چيري د لقيط سره پر هغه باندي تړل سوى مال موجود وي فَهُوَ لَهُ اعْتِبَارًا لِلظَّاهِرِ نو د ظاهري حال په اعتبار كولو سره به هغه مال هم د لقيط وي وَكَذَا إِذَا كَانَ مَشْدُودًا عَلٰى دَابَّةٍ وَهُوَ عَلَيْهَا او همدارنګه كه مال پر يو سپارلۍ باندي تړل سوى وي او لقيط پر هغه سپارلۍ [اپينول سوى] وي. انو هم به مال د لقيط وي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي [اوس] مونږ ذكر كړى ثُمَّ يَصْرِفُهُ الْوَاجِدُ إِلَيْهِ بِأَمْرِ الْقَاضِي بيا به پيدا كونكى [ملتقط] د قاضي په حكم سره هغه مال پر لقيط صرفوي [اخرچوي] لِأَنَّهُ مَالٌ ضَائِعٌ ځكه چي دا ضايع كېدونكى مال دى وَلِلْقَاضِي وِلَايَةُ صَرْفِ مِثْلِهِ إِلَيْهِ او قاضي ته پر لقيط د داسي مال د صرفولو ولايت سته وَقِيلَ: يَصْرِفُهُ بِغَيْرِ أَمْرِ الْقَاضِي او ويل سوي دي: چي واجد د قاضي له حكم څخه بغير هغه مال پر لقيط صرفولاى سي لِأَنَّهُ لِلَّقِيطِ ظَاهِرًا ځكه چي په ښكاره هغه د لقيط مال دى وَلَهُ وِلَايَةُ

الْإِنْفَاقِ وَشِرَاءُ مَا لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ كَالطَّعَامِ وَالْكِسْوَةِ او واجد لره پر لقيط د خرچولو حق سته او كوم شيان چي د لقيط لپاره ضروري دي د هغه د رانيولو حق هم ورته سته لكه خوراک او جامې لِأَنَّهُ مِنَ الْإِنْفَاقِ ځكه چي دا ټوله [پر لقيط] د خرچولو شيان دي [او د هغه له نفقې او خرچې ځخه دي] وَلَا يَجُوزُ تَزْوِيجُ الْمُلْتَقِطِ او د ملتقط لپاره د لقيط نكاح كول جائز نه دي لِانْعِدَامِ سَبَبِ الْوِلَايَةِ مِنَ الْقَرَابَةِ وَالْمِلْكِ وَالسَّلْطَنَةِ ځكه چي د ولايت سبب يعني قرابت، ملكيت او حاكميت اد ملتقط په حق كي] نسته. [مطلب دا چي د نكاح كولو او واده وركولو حق درېو كسانو ته حاصل وي: (۱) قريب ته. (۲) مالک او مولیٰ ته. (۳) د ملک حاكم او باچا ته. او ملتقط په دوی كي يو هم نه دی. نو ځكه به هغه ته دا حق نه وي چي لقيط ته واده ور وكړي].

**اللغات**: ﴿أنظر﴾ زيات مصلحت والا (زيات فايده من)، زيات شفقت والا. ﴿صرف﴾ د ضرب مصدر دی: خرچول، صرفول، مصرفول (لګول). ﴿كسوة﴾ جامې، كالي. ﴿انفاق﴾ د افعال مصدر دی: خرچول، نفقه او خرچه وركول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه يو ځوک دا دعویٰ وكړي چي دا لقيط زما غلام دی نو محض په دعویٰ سره به لقيط د هغه نه غلام كيږي؛ ځكه چي لقيط حُر الأصل دی ځكه چي هغه هم په بنو آدم كي داخل دی او په تمام بنو آدم كي حُريت أصل دی. ها! كه چيري مُدعي پر خپله دعویٰ بيّنه پېش كړي نو د هغه دعویٰ به معتبره وي. همدارنګه كه يو غلام دا دعویٰ وكړي چي دا لقيط زما زوی دی نو د هغه غلام سره به د لقيط نسب ثابتيږي، ځكه چي د نسب په ثبوت كي د لقيط نفع او فايده ده نو ځكه به د هغه سره د لقيط نسب ثابتيږي، ليكن لقيط به آزاد وي. ځكه چي داسي كېدای سي چي له غلام ځخه دي آزاد بچی پيدا سي هغه په دې توګه چي د غلام ښځه آزاده وي. نو دا ضروري نه دی چي د غلام بچی به خامخا غلام وي، لهذا د بچي ظاهري حُريت كوم چي اوس هغه ته حاصل دی دا به د دې شک په وجه نه زائليږي چي شايد د هغه مور به مملوكه (مينځه) وي.

**والحر في دعوته إلخ**: د دې حاصل دا دی چي كه آزاد سړی هم د لقيط د نسب دعویٰ وكړي او غلام يې هم وكړي يا يو مسلمان او ذمي دواړه د لقيط د نسب دعویٰ وكړي. نو آزاد او مسلمان له غلام او ذمي ځخه زيات حقداره او اولیٰ دي. ځكه چي حريت او اسلام د لقيط په حق كي له عبديت او ذميت ځخه غوره او أنفع دی او په دې كي د بچي لپاره زيات شفقت دی.

وإن وجد مع اللقيط إلخ: فرمايي كه چيري د لقيط سره مال هم موجود وي يعني پر لقيط تړل سوی وي يا مال او لقيط دواړه پر يو سپارلي باندي (مثلاً پر اُوښ باندي) ايښول سوی وي نو هغه مال به د دې لقيط وي، ځكه كله چي هغه مال د ده سره دی نو ښكاره خبره ده چي پر هغه فقط د لقيط قبضه ده او قبضه د ملكيت دليل ده. نو ځكه به لقيط د هغه مالک وي، بيا چي كوم كس لقيط پيدا كړي هغه به د قاضي په حكم او اجازه سره دا مال د لقيط په ضرورياتو كي صرفوي، ځكه چي د لقيط په شير دا مال هم ضياع او هلاكت ته نژدې دی. او څرنګه چي قاضي ته پر داسي خلكو د داسي أموالو د صرف ولايت حاصل دی نو ځكه به هغه واجد ته د صرفولو (خرڅولو) حكم كوي چي دغه مال له ضياع څخه محفوظ سي.

د ځيني حضراتو رايه دا ده چي واجد د قاضي له حكم او اجازې څخه بغير هم هغه مال پر لقيط صرفولای سي: ځكه چي هغه د لقيط خپل مال دی او لقيط په خپلو ضرورياتو كي د هغه صرفولو ته محتاج هم دی، لېكن څرنګه چي هغه په خپله پر صرفولو او د ضرورياتو پر رانيولو قادر نه دی، نو ځكه به د هغه له طرفه ملتقط دا كارونه كوي. لېكن د ملتقط لپاره د لقيط نكاح كول او واده وركول جائز نه دي، ځكه چي د نكاح لپاره ولايت ضروري دی او د ولايت مدار پر قرابت، ملكيت او حاكميت باندي دی، حالانكي د ملتقط په حق كي دا شيان معدوم دي، نو ځكه به ملتقط لره د نكاح كولو ولايت حاصل نه وي او د هغه لپاره به لقيط ته نكاح او واده وركول صحيح نه وي.

## د لقيط په مال كي تصرّف كول

قال: وَلَا تَصَرُّفُهُ فِي مَالِ الْمُلْتَقِطِ او د پيدا كونكي [واجد] لپاره د راپورته كړی سوي بچي [لقيط] په مال كي [تجارتي] تصرّف كول جائز نه دي اعْتِبَارًا بِالْأُمِّ پر مور په قياس كولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ لِتَثْمِيرِ الْمَالِ او دا ځكه چي تصرف د مال زياتولو لپاره وي وَذٰلِكَ يَتَحَقَّقُ بِالرَّأْيِ الْكَامِلِ وَالشَّفَقَةِ الْوَافِرَةِ او تثمير په كامله رايه او بشپړ شفقت سره ثابتېدای سي وَالْمَوْجُودُ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَحَدُهُمَا حالانكي له دوی [واجد او اُم] څخه په هر يوه كي فقط يو شی موجود دی قَالَ: وَيَجُوزُ أَنْ يَقْبِضَ لَهُ الْهِبَةَ فرمايي: او جائز دي چي ملتقط [واجد] د لقيط لپاره پر هبه قبضه وكړي لِأَنَّهُ نَفْعٌ مَحْضٌ ځكه چي هبه محض [سراسر] نفع ده وَلِهٰذَا يَمْلِكُهُ الصَّغِيرُ بِنَفْسِهِ إِذَا كَانَ عَاقِلًا همدا وجه ده كه كوچنی عاقل وي نو هغه په خپله پر هبې د قبضه كولو ملكيت لري وَتَمْلِكُهُ الْأُمُّ

وَوَصِيُّهَا او د هغه مور او د مور وصي هم د دې ملکيت لري قال: وَيُسَلِّمُهُ فِي صَنَاعَةٍ فرمايي: چې ملتقط لقيط يو کسب [پيشې] ته ورسپارلی سي [مطلب دا چې د ملتقط لپاره جائز دي چې لقيط په يو کسب او پېشه لګيا کړي د دې لپاره چې هغه هُنر او کسب زده کړي] لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ تَثْقِيفِهِ وَحِفْظِ حَالِهِ ځکه چې دا د لقيط د برابرولو [غوره جوړولو] او د هغه د حالت د حفاظت کولو له باب څخه دي قال: وَيُؤَاجِرُهُ فرمايي: او ملتقط هغه په أجرت [هم] ورکولای سي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَهَذَا رِوَايَةُ الْقُدُورِيِّ فِي مُخْتَصَرِهِ ناتوانه بنده فرمايي: چې دا په مختصرُ القدوري کې د امام قدور رَحِمَهُ الله روايت دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: لَا يَجُوزُ أَنْ يُؤَاجِرَهُ او په جامع صغير کې دي: چې د ملتقط لپاره لقيط په أجرت ورکول جائز نه دي ذَكَرَهُ فِي الْكَرَاهِيَةِ امام محمد رَحِمَهُ الله دا په كتابُ الكراهية کې ذکر کړي دي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح دي وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّهُ يَرْجِعُ إِلَى تَثْقِيفِهِ د اول قول [يعني د امام قدوري د روايت] دليل دا دی: چې په أجرت ورکول هم د لقيط برابرولو ته رجوع کوي [يعني په دې سره هم لقيط غوره جوړېږي] وَوَجْهُ الثَّانِي: أَنَّهُ لَا يَمْلِكُ إِتْلَافَ مَنَافِعِهِ او د دويم [يعني د جامع صغير د] قول دليل دا دی: چې ملتقط د لقيط د منافعو د ضايع کولو ملکيت نه لري فَأَشْبَهَ الْعَمَّ نو ملتقط د اکا سره مشابه سو بِخِلَافِ الْأُمِّ په خلاف د مور لِأَنَّهَا تَمْلِكُهُ ځکه چې مور د دې ملکيت لري عَلَى مَا نَذْكُرُهُ فِي الْكَرَاهِيَةِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چې د دې بيان به موږ انشاء الله په كتابُ الكراهية کې وکړو.

**اللغات**: ﴿تثمير﴾ د تفعيل مصدر دی: اضافه کول. زياتول. ﴿وافرة﴾ بشپړ. پوره. ﴿تثقيف﴾ د تفعيل مصدر دی: سمول (برابرول)، غوره جوړول. ﴿صناعة﴾ (د صاد په فتحه او کسره دواړو سره ويل کېدای سي): کاريګري، کسب، پېشه. ﴿يواجره﴾ د مفاعلې مضارع ده: په أجرت ورکول (په کرايه ورکول)، مزدوري په کول. ﴿إتلاف﴾ د افعال مصدر دی: برباد ول. ضايع کول (تلفول).

**تشريح**: په دې عبارت کې څلور مسئلې ذکر سوي دي:

(١)... ملتقط (واجد) د لقيط په مال کې تجارتي تصرّفات نه سي کولای لکه څرنګه چې يې د لقيط مور نه سي کولای: ځکه چې دا تصرف په مال کې د اضافه کولو په نيت سره کېږي او مال په کامله رايه او مکمل شفقت سره زياتېږي، حالانکي په ملتقط او مور کې فقط يو شی موجود دی،

ځکه چې د ملتقط رايه کامله ده خو شفقت يې ناقص دی او د مور شفقت کامل دی خو رايه يې ناقصه ده، حال دا چې د تجارتي تصرّفاتو لپاره کاملُ الرأی او کاملُ الشفقة کېدل ضروري دي او دا شيان په دوی کې معدوم دی نو ځکه به دوی ته د دغه تصرف اختيار نه وي.

(۲)... د ملتقط لپاره د لقيط په نامه سره راتلونکي تحفې قبلول او پر هغوی قبضه کول جائز دي. ځکه چې په دې کې د لقيط سراسر نفع ده، او ملتقط لره د لقيط په هکله د هر نفع مند کار کولو اختيار او جواز حاصل دی. همدا وجه ده چې که بچی (لقيط) باشعوره وي نو هغه د خپل ولي له اجازې څخه بغير د نفع مند شي د اخيستلو مالک دی او د هغه مور او د مور وصي ته هم دا اختيار سته. لهذا ملتقط ته به هم دا اختيار ورکول کيږي.

(۳)... د ملتقط لپاره دا هم جائز دي چې بچي (لقيط) ته هنر او کار ور وښيي او صناعت او کاريګري ور زده کړي، ځکه چې په دې کې هم د لقيط خير او نفع ده او په دې سره د هغه مستقبل ځلانده ګرځي.

(۴)... د امام قدوري رَحِمَهُ الله د روايت مطابق ملتقط پر أجرت او مزدورۍ لقيط لګولای سي، ليکن د جامع صغير د كتابُ الكراهية مطابق د ملتقط لپاره دا جائز نه دي. د امام قدوري رَحِمَهُ الله دليل هغه دی کوم چې د هنر او کار ښوولو په هکله د لقيط د خير او نفع په حواله سره ذکر سو. او د جامعِ صغير د قول دليل دا دی چې که په لقيط محنت او مزدوري وکړی سي نو د هغه صلاحيت او قوت به ختم سي او ملتقط ته دا حق نسته چې هغه د لقيط صلاحيت او منافع ختم کړي، لهذا هغه ته به په لقيط سره د محنت او مزدورۍ کولو حق هم نه وي، لکه څرنګه چې يو اکا ته په خپل واره د محنت او مزدورۍ کولو حق نسته همداسې ملتقط ته هم دا حق نسته، د دې په خلاف مور ته دا حق سته چې خپل کوچني بچيان پر مزدورۍ او أجرت ولګوي. او د جامعِ صغير والا قول زيات صحيح دي. او د قدوري د قول او دليل جواب دا دی چې إجاره او مزدوري پر هنر او کاريګرۍ قياسول صحيح نه دي. ځکه چې په دې دواړو کې ډېر فرق دی. والله أعلم وعلمهُ أتم



# كِتَابُ اللُّقَطَةِ

(دا) كتاب د لقطې (د احكامو په بيان كي) دی

**تشريح**: مخكي تر دې د لقيط احكام بيان سول. او اوس د لقطې احكام بيانيږي. څرنګه چي د لقيط تعلق د انسان سره دی. نو د انسان د كرامت او ستروالي په خاطر كتابُ اللقيط د لقطې له بحث څخه مخكي بيان سوی دی.

ښكاره دي وي چي "لُقَطَة" پر وزن د "لُقَمَة" هغه مال ته وايي كوم چي په عامه لاره او عام ځای كي پروت وي او يو څوک هغه د حفاظت په نيت سره را واخلي. (بناية ج:۶. ص:۷۶۵)

## د لقطې حكم

قَالَ: اللُّقَطَةُ أَمَانَةٌ إِذَا أَشْهَدَ الْمُلْتَقِطُ أَنَّهُ يَأْخُذُهَا لِيَحْفَظَهَا وَيَرُدَّهَا عَلَى صَاحِبِهَا فرمايي: لقطه د ملتقط سره امانت ده [په دې شرط] كله چي ملتقط پر دې خبره ګواه حاضر كړي چي هغه د لقطې د حفاظت او خپل مالک ته د هغې د واپس كولو په نيت سره هغه اخلي [يعني كله چي سړی د لقطې مال واخلي او ګواه ودروي چي دا زه د حفاظت لپاره اخلم، نو هغه مال به د ده په لاس كي امانت وي. د دې مطلب دا دی چي كه دا مال د اخيستونكي (ملتقط) په لاس كي هلاک سي نو پر هغه به ضمان نه واجبيږي] لِأَنَّ الْأَخْذَ عَلَى هٰذَا الْوَجْهِ مَأْذُونٌ فِيهِ شَرْعًا ځكه چي په دې نيت سره اخيستل شرعاً مأذون دي [يعني په شريعت كي د دې اجازه وركول سوې ده] بَلْ هُوَ الْأَفْضَلُ عِنْدَ عَامَّةِ الْعُلَمَاءِ بلكي دا د زياتره علماؤ په نيز أفضل دي وَهُوَ الْوَاجِبُ إِذَا خَافَ الضَّيَاعَ او دا [د مال را اخيستل] واجب دی كله چي هغه د مال پر ضايع كېدلو وبيرېږي عَلَى مَا قَالُوا لكه څرنګه چي علماؤ فرمايلي دي وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ لَا تَكُونُ مَضْمُونَةً عَلَيْهِ او كله چي حكم دا دی نو لقطه به پر ملتقط نه مضمون كيږي [يعني كله چي د لقطې مال امانت دی، نو د لقطې ضمان به پر ملتقط نه واجبيږي، يعني كه لقطه هلاكه سي او بيا مالک حاضر سي نو مالک ته به دا حق نه وي چي د ملتقط څخه د هغه ضمان او تاوان واخلي] وَكَذٰلِكَ إِذَا تَصَادَقَا أَنَّهُ أَخَذَهَا لِلْمَالِكِ او همدارنګه كله چي مالک او ملتقط پر دې خبره اتفاق وكړي چي هغه د مالک لپاره لقطه اخيستې وه [يعني كه ملتقط د اخيستلو په وخت ګواه حاضر كړی نه وي، لېكن مالک او ملتقط دواړه تصديق وكړي چي ملتقط ما ته د راكولو په

نيت دا شي را اخيستى وو، نو په داسي صورت کي به هم لقطه امانت وي| لِأَنَّ تَصَادُقَهُمَا حُجَّةٌ فِي حَقِّهِمَا ځکه چي د دوی اتفاق د دوی په حق کي حجت دی |مطلب دا چي د مالک له طرفه د ملتقط تصديق کېدل حجت دی او د ګواه جوړولو په څېر دی| فَصَارَ كَالْبَيِّنَةِ نو دا د بينې په څېر سو |يعني د ګواه جوړولو په څېر سو| وَلَوْ أَقَرَّ أَنَّهُ أَخَذَهَا لِنَفْسِهِ او که ملتقط دا اقرار وکړي چي هغه خپل ځان لپاره لقطه را اخيستې وه يَضْمَنُ بِالْإِجْمَاعِ نو هغه به بالاتفاق ضامن کيږي لِأَنَّهُ أَخَذَ مَالَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ وَبِغَيْرِ إِذْنِ الشَّرْعِ ځکه چي هغه د بل چا مال د هغه او د شريعت له اجازې څخه بغير واخيستی وَإِنْ لَمْ يُشْهِدِ الشُّهُودُ عَلَيْهِ وَقَالَ الْآخِذُ: أَخَذْتُهُ لِلْمَالِكِ وَكَذَّبَهُ الْمَالِكُ او که اخيستونکی |د را اخيستلو په وخت کي| پر هغه ګواهان حاضر نه کړي او ووايي: ما د مالک لپاره هغه |مال| را اخيستی وو او مالک د هغه تکذيب وکړي يَضْمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه ضامن کيږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: لَا يَضْمَنُ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نه به ضامن کيږي وَالْقَوْلُ قَوْلُهُ او قول به د ملتقط |اخيستونکي| معتبر وي لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ ځکه چي ظاهري حال د هغه په حق کي ګواه دی |يعني ظاهري حال د دې ګواهي ورکوي چي هغه د ورکولو په نيت سره مال را اخيستی دی| لِاخْتِيَارِهِ الْحِسْبَةَ دُونَ الْمَعْصِيَةِ ځکه چي هغه نېک کار کړی دی، نه د ګناه کار وَلَهُمَا: أَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ وَهُوَ أَخْذُ مَالِ الْغَيْرِ وَادَّعَى مَا يُبْرِئُهُ وَهُوَ الْأَخْذُ لِمَالِكِهِ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي ملتقط په خپله د ضمان د سبب اقرار وکړی (چي هغه د بل چا مال اخيستل دي) او هغه داسي دعوی هم وکړه کوم چي هغه له ضمان څخه بري کړي (چي هغه د خپل ځان لپاره د مال را اخيستل دي) وَفِيهِ وَقَعَ الشَّكُّ فَلَا يَبْرَأُ لهذا د هغه په خبره کي شک واقع سو، نو ځکه به هغه نه بري کيږي |او ضمان به پر واجيبږي| وَمَا ذَكَرَ مِنَ الظَّاهِرِ يُعَارِضُهُ مِثْلُهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله چي کوم د "ظاهري حال" يادونه کړې ده د هغه په شان |بل| ظاهري حال د هغه معارض دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنْ يَكُونَ الْمُتَصَرِّفُ عَامِلًا لِنَفْسِهِ ځکه چي ښکاره دا ده چي تصرف کونکی |اخيستونکی| د

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٥٠)، وكذا في البحر الرائق (ج:٥، ص:١٥١).[القول الراجح ج:١، ص:٥٠٧]

خپل ځان لپاره کار کوي [په دې سره امام ابو يوسف ته جواب ورکوي، هغه ووېل چې ظاهري حال دا دی چې هغه د ورکولو په نيت سره مال را اخيستی دی، نو فرمايي چې بل ظاهري حال دا هم چې هغه به د خپل ځان لپاره مال را اخيستی وي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل مضبوط نه سو] وَيَكْفِيهِ فِي الْإِشْهَادِ أَنْ يَقُولَ: مَنْ سَمِعْتُمُوهُ يُنْشِدُ لُقَطَةً فَدُلُّوهُ عَلَيَّ او د ملتقط د إشهاد لپاره دا کافي دي چې هغه داسې ووايي: [اې خلکو!] که تاسي څوک ووينئ! چې هغه د خپلي لقطې پوښتنه [او پلټنه] کوي نو هغه ته زما نوم ور وښه ورياست! [يعني که ملتقط فقط دغه خبره او اعلان وکړي، نو دا به ګڼل کيږي چې هغه ګواهان حاضر کړل، او په دې سره د لقطې مال د هغه سره امانت ګرځي] وَاحِدَةً كَانَتِ اللُّقَطَةُ أَوْ أَكْثَرَ برابره ده لقطه يوه وي، يا زياتي وي لِأَنَّهُ اسْمُ جِنْسٍ ځکه چې "لُقَطَةً" اسم جنس دی.

**اللغات**: ﴿أشهد﴾ د افعال ماضي ده، أَشْهَدَ يُشْهِدُ إِشْهَادًا: يو څوک پر خپله خبره ګواه جوړول، ګواه حاضرول، ګواه درول، ﴿مأذون﴾ د سمع اسم مفعول دی: اجازه ورکړی سوی، ﴿تصادقا﴾ د تفاعل ماضي ده: يو د بل تصديق کول، ﴿حسبة﴾ د ثواب او نېکۍ کار، ﴿يُنشِد﴾ د افعال مضارع ده: په ورک شي پسي پوښتنه کول، د ورک شي اعلان کول، ﴿سمعتموه﴾ د سمع له باب څخه د جمع مذکر مخاطب ماضي صيغه ده: اورېدل، ﴿دُلُّوه﴾ د نصر له باب څخه د جمع مذکر امر حاضر صيغه ده: دلالت کول، لارښوونه کول.

**تشريح**: عبارت په ترجمه کي تشريح سو.

## د لقطې لپاره د تشهير حکم

قَالَ: فَإِنْ كَانَتْ أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ عَرَّفَهَا أَيَّامًا فرمايي: که چيري لقطه د لسو درهمو څخه کمه وي نو ملتقط دي يو څو ورځي د هغې تشهير وکړي [يعني د لقطې په باره کي دي خلک خبر کړي او هغه دي مشهوره کړي چې دا د چا ده؟] وَإِنْ كَانَتْ عَشَرَةً فَصَاعِدًا عَرَّفَهَا حَوْلًا او که لقطه د لسو درهمو وي يا تر دې زياته وي نو ټوله کال دي د هغې تشهير وکړي قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: وَهَذِهِ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ ناتوانه بنده فرمايي: چې دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت دی وَقَوْلُهُ أَيَّامًا مَعْنَاهُ عَلَى حَسَبِ مَا يَرَى الْإِمَامُ او د امام قدوري د دې قول "أيامًا" مطلب دا دی چې د امام د رايي مطابق دي ملتقط تشهير وکړي [يعني څومره ورځي چې امام وښيي، ملتقط دي هغومره ورځي د لقطې تشهير وکړي] وَقَدَّرَهُ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ بِالْحَوْلِ مِنْ غَيْرِ تَفْصِيلٍ بَيْنَ الْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي په يوه کال سره د دې اندازه کړې ده او په قليل او کثير کي يې هيڅ فرق نه دی کړی

[يعني كه څه هم لقطه د لسو درهمو څخه كمه وي، نو هم به يو كال د هغې تشهير كوي] وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام مالك او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول دى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: "مَنِ الْتَقَطَ شَيْئًا فَلْيُعَرِّفْهُ سَنَةً" مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ ځكه چي نبي كريم ﷺ فرمايلي دي: كوم څوک چي يو شى را پورته كړي نو هغه ته پكار دي چي يو كال يې تشهير وكړي" دا فرمان له څه تفصيل څخه بغير وارد سوى دى وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّ التَّقْدِيرَ بِالْحَوْلِ وَرَدَ فِي لُقَطَةٍ كَانَتْ مِائَةَ دِينَارٍ تُسَاوِي أَلْفَ دِرْهَمٍ د اول قول [يعني كه لقطه د لسو درهمو څخه كمه وي، نو يو څو ورځي به د هغې تشهير كوي، نه يو كال] دليل دا دى: چي په يوه كال سره اندازه كول د هغه لقطې په هكله وارد سوي وه كوم چي د سلو دينارو وه [او اسل ديناره د زرو درهمو سره برابر دي [حديث په حاشيه كي ذكر سو] وَالْعَشَرَةُ وَمَا فَوْقَهَا فِي مَعْنَى الْأَلْفِ فِي تَعَلُّقِ الْقَطْعِ بِهِ فِي السَّرِقَةِ وَتَعَلُّقِ اسْتِحْلَالِ الْفَرْجِ بِهِ او لس درهمه او تر هغه زيات د زرو درهمو په معني كي دي [ځكه چي] د غلا په صورت كي د هغه سره [يعني د لسو درهمو سره] قطعُ اليد متعلق ده او د هغه سره د ښځي د فرج حلالوالى متعلق دى [يعني كه څوک لس درهمه غلا كړي نو د هغه لاس پرېكول كيږي، او په لسو درهمو سره د ښځي فرج حلال كېداى سي، همدارنګه كه زر درهمه غلا كړي نو هم د هغه لاس پرېكول كيږي....] وَلَيْسَتْ فِي مَعْنَاهَا فِي حَقِّ تَعَلُّقِ الزَّكَاةِ همدا وجه ده چي لس درهمه وما فوقها [د مال سره] د زكاة متعلق كېدلو په حق كي د زرو [ألف] په معنىٰ كي نه دي [يعني په زر درهمه كي خو زكاة واجبيږي، لېكن په لسو درهمو كي نه واجبيږي] فَأَوْجَبْنَا التَّعْرِيفَ بِالْحَوْلِ احْتِيَاطًا نو ځكه موږ احيتاطاً تر يوه كال پوري تشهيرول واجب وګرځول [يعني په دې وجه موږ احتياطاً لس درهمه د زرو درهمو سره برابر كړه او په لسو درهمو كي مو هم د يوه كال تشهيرولو حكم وكړى، لېكن د لسو څخه كم دارهم په هيڅ اعتبار سره هم د زرو درهمو په څېر نه دي، نو ځكه موږ په هغه كي فقط د يو څو مناسبو ورځو د تشهيرولو حكم وكړى] وَمَا دُونَ الْعَشَرَةِ لَيْسَ فِي مَعْنَى الْأَلْفِ بِوَجْهٍ مَا او د لسو څخه كم درهمونه په هيڅ اعتبار سره هم د زرو په معنىٰ كي نه دي فَفَوَّضْنَا إِلَى رَأْيِ الْمُبْتَلَى بِهِ نو ځكه موږ هغه د مبتلىٰ بهٖ رايي ته حواله كړه وَقِيلَ:

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه ج:۴ ص:۱۸۲ رقمُ الحديث: ۳۵ وبخاري في كتاب الخصومات باب ضالة الإبل رقم الحديث:۲۴۲۷. حديث دا دى: عن أبي بن كعب قال: أخذتُ صرة مائة دينار، فأتيتُ رسول الله ﷺ فقال: عرِّفها حولًا...إلخ. (يعني ما يوه خلته پيدا كړه چي په هغې كي سل ديناره وه، او د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم، نو نبي ﷺ وفرمايل: چي يو كال د هغې تشهير وكړه!).

اَلصَّحِيحُ أَنَّ شَيْئًا مِنْ هَذِهِ الْمَقَادِيرِ لَيْسَ بِلَازِمٍ او يو قول دا دى: چي له دې مقدارونو څخه يو مقدار هم لازم او ضروري نه دى وَيُفَوَّضُ إِلَى رَأْيِ الْمُلْتَقِطِ او هغه به د ملتقط (اخيستونكي) رايي ته سپارل كيږي يُعَرِّفُهَا إِلَى أَنْ يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّ صَاحِبَهَا لَا يَطْلُبُهَا بَعْدَ ذٰلِكَ هغه به دومره ورځي د لقطې تشهير كوي چي د هغه غالب گومان سي چي تر دې وروسته به د لقطې مالک د خپلي لقطې پلټنه (او پوښتنه) نه كوي ثُمَّ يَتَصَدَّقُ بِهَا بيا دې ملتقط هغه صدقه كړي وَإِنْ كَانَتِ اللُّقَطَةُ شَيْئًا لَا يَبْقَى او كه لقطه يو داسي شى وي چي نه پاتيږي (ابلكي ژر خرابيږي) عَرَّفَهُ حَتَّى إِذَا خَافَ أَنْ يَفْسُدَ تَصَدَّقَ بِهِ نو ملتقط دې د هغه تشهير كوي تر دې چي هغه محسوس كړي چي اوس به دا شى خراب سي نو (بيا) دې هغه صدقه كړي وَيَنْبَغِي أَنْ يُعَرِّفَهَا فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي أَصَابَهَا او پكار دي چي ملتقط په هغه ځاى كي د لقطې تشهير وكړي چيري چي يې لقطه پيدا كړې وي وَفِي الْجَامِعِ او د خلكو د جمع كېدلو په ځاى كي هم د هغه تشهير كول پكار دي (لكه بازار، جامع مسجد او داسي نور) فَإِنَّ ذٰلِكَ أَقْرَبُ إِلَى الْوُصُولِ إِلَى صَاحِبِهَا ځكه چي په دې طريقه سره مالک ته لقطه رسېدل زيات ممكن دي وَإِنْ كَانَتِ اللُّقَطَةُ شَيْئًا يُعْلَمُ أَنَّ صَاحِبَهَا لَا يَطْلُبُهَا كَالنَّوَاةِ وَقُشُورِ الرُّمَّانِ او كه لقطه يو داسي معمولي شى وي چي د هغه په هكله دا معلومه وي چي مالک به د هغه پلټنه نه كوي لكه د خرما تاكى او د انارو پوستكي يَكُونُ إِلْقَاؤُهُ إِبَاحَةً نو د هغه غورځول به د اباحت دليل وي (مطلب دا چي داسي معمولي غورځول سوى شى د هر چا لپاره مباح دى) حَتَّى جَازَ الِانْتِفَاعُ بِهِ مِنْ غَيْرِ تَعْرِيفٍ تر دې چي له تشهير څخه بغير به له دې شي څخه نفع اخيستل جائز وي وَلَكِنَّهُ مُبْقًى عَلَى مِلْكِ مَالِكِهِ خو دا شى به د خپل مالک پر ملكيت قائم وي (يعني دا شى كه څه هم معمولي دى، خو بيا به هم د خپل اصلي مالک په ملكيت كي پاته وي) لِأَنَّ التَّمْلِيكَ مِنَ الْمَجْهُولِ لَا يَصِحُّ ځكه چي د نامعلوم كس له طرفه تمليک صحيح نه دي (يعني قاعده دا ده چي د مجهول مالک له طرفه يو څوک مالک جوړول كېداى نه دي، نو ځكه به دا شى د معمولي والي باوجود د هغه په ملكيت كي پاته وي).

**اللغات**: ﴿عرفها﴾ د تفعيل ماضي ده، عَرَّفَ يُعَرِّفُ تَعْرِيفًا: ور پېژندل، تشهير كول (مشهورول)، اعلان كول. ﴿استحلال﴾ د استفعال مصدر دى: حلالول (حلال گرځول). ﴿يتصدّق﴾ د تفعل مضارع دي: صدقه كول، خيراتول. ﴿أصاب﴾ د دې باب ډيري معناوي دي، دلته يې معنىٰ ده: پيدا كول او اخيستل. ﴿تمليک﴾ د تفعيل مصدر دى: مالک جوړول.

**تشريح**: عبارت په ترجمه كي تشريح سو.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا تَصَدَّقَ بِهَا فرمايي: كه چيري د لقطې مالک راسي انو ملتقط دي هغه ته خپله لقطه ورکړي ا کنې هغه دي صدقه کړي إِيصَالًا لِلْحَقِّ إِلَى الْمُسْتَحِقِّ د دې لپاره چي حق خپل مستحق ته ورسيږي [مطلب دا چي مالک ته د دې ثواب ورسيږي او د فقير ضرورت پوره سي ا وَهُوَ وَاجِبٌ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ او دا کار د امکان په اندازه واجب دی وَذٰلِكَ بِإِيصَالِ عَيْنِهَا عِنْدَ الظَّفَرِ بِصَاحِبِهَا او هغه دا چي کله د لقطې مالک پيدا کړي نو هغه ته دي عين لقطه ورکړي وَإِيصَالِ الْعِوَضِ وَهُوَ الثَّوَابُ عَلَى اعْتِبَارِ إِجَازَةِ التَّصَدُّقِ بِهَا او [که مالک پيدا نه سي نو] هغه ته دي عوض يعني ثواب ورسول سي په دې اُميد چي مالک به هغه ته د صدقه کولو اجازه ورکړي وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهَا رَجَاءَ الظَّفَرِ بِصَاحِبِهَا او که ملتقط وغواړي نو د مالک د پيدا کولو تر وخته پوري دي هغه د ځان سره وساتي قَالَ: فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا يَعْنِي بَعْدَ مَا تَصَدَّقَ بِهَا بيا که تر صدقه کولو وروسته د لقطې مالک راسي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الصَّدَقَةَ وَلَهُ ثَوَابُهَا نو هغه ته اختيار دی. که وغواړي نو صدقه دي نافذ کړي او د صدقې ثواب دي حاصل کړي لِأَنَّ التَّصَدُّقَ وَإِنْ حَصَلَ بِإِذْنِ الشَّرْعِ لَمْ يَحْصُلْ بِإِذْنِهِ ځکه که څه هم صدقه د شريعت په اجازه سره سوې ده لېکن د هغه په اجازه سره نه ده سوې فَيَتَوَقَّفُ عَلَى إِجَازَتِهِ لهذا د صداقې نفاذ به د هغه پر اجازه موقوف وي وَالْمِلْكُ يَثْبُتُ لِلْفَقِيرِ قَبْلَ الْإِجَازَةِ او د هغه تر اجازې مخکي [هم] د فقير ملکيت ثابتيږي [د دې جملې پوره مطلب به په تشريح کي بيان سي] فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى قِيَامِ الْمَحَلِّ نو د ملکيت ثبوت به د صدقې پر محل نه موقوف کيږي بِخِلَافِ بَيْعِ الْفُضُولِيِّ په خلاف د بيع فضولي لِثُبُوتِهِ بَعْدَ الْإِجَازَةِ فِيهِ ځکه چي په هغه کي [فقط] تر اجازې وروسته ملکيت ثابتيږي وَإِنْ شَاءَ ضَمِنَ الْمُلْتَقِطَ او که وغواړي نو له ملتقط څخه دي ضمان [تاوان] واخلي لِأَنَّهُ سَلَّمَ مَالَهُ إِلَى غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ ځکه چي ملتقط د مالک له اجازې څخه بغير د هغه مال بل چا ته سپارلی دی إِلَّا أَنَّهُ بِإِبَاحَةٍ مِنْ جِهَةِ الشَّرْعِ او که څه هم ملتقط ته د شريعت له طرفه اباحت حاصل دی وَهٰذَا لَا يُنَافِي الضَّمَانَ حَقًّا لِلْعَبْدِ لېکن دا اباحت د بنده په حق

كي د ضمان منافي نه دی كَمَا فِي تَنَاوُلِ مَالِ الْغَيْرِ حَالَةَ الْمَخْمَصَةِ لكه د سختي لوږي په حالت كي چي د بل چا مال خوړل د ضمان منافي نه دي وَإِنْ شَاءَ ضَمِنَ الْمِسْكِينَ إِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ او كه وغواړي نو له مسكين څخه دي ضمان واخلي كه چيري لقطه د مسكين په لاس كي هلاك سوې وي [يعني د مسكين د لاس څخه وتلې وي] لِأَنَّهُ قَبَضَ مَالَهُ بِغَيْرِ إِذْنِهِ ځكه چي مسكين د مالك له اجازې څخه بغير د هغه پر مال قبضه كړې ده وَإِنْ كَانَ قَائِمًا أَخَذَهُ او كه لقطه [د مسكين سره] موجودوي نو مالك دي هغه ځني واخلي لِأَنَّهُ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ ځكه چي هغه بعينهٖ خپل مال پيدا كړی [يعني ځكه چي دا خاص د مالك خپل شی دی].

**اللغات**. ﴿إيصال﴾ د افعال مصدر دی: رَسَول. ﴿ظفر﴾ د سمع ماضـي ده: كامیابېدل. بريالی كېدل. مراد ځني د مالك په پيدا كېدلو كي د ملتقط كامیابېدل دي. ﴿أمسكها﴾ د افعال ماضي ده: نيول. راګرځول. ﴿أمضى﴾ د افعال ماضې ده: جاري كول. نافذول. ﴿مخمصة﴾ سخته لوږه.

**تشريح**: والملك يثبت إلخ: په دې عبارت سره د فقير د مالك كېدلو او د بيع فضولي په مينځ كي يو فرق بيانوي. صورت يې دا دی چي كه تر صدقه كولو وروسته د لقطې مالك راسي. او په هغه وخت كي د فقير د لاس څخه لقطه وتلې او ختمه سوې وي (مثلاً هغه خوړلې وي او داسي نور). نو آيا اوس به دا فقير د مالك په اجازه سره د هغه لقطې مالك كيږي. كه نه؟ نو د دې جواب وركوي چي هو! كه د لقمې تر ختمېدلو وروسته مالك اجازه وركړې نو هم به فقير د لقطې مالك جوړيږي.

د دې په خلاف بيع فضولي يعني كه زيد د خالد له اجازې څخه بغير د هغه پُسه پر عمر خرڅ كړي. نو دا بيع به هغه وخت جائز وي او هغه وخت به عمر د پُسه مالك كيږي "كله چي خالد (مالك) د بيع اجازه وركړي او پُسه د عمر په لاس كي موجود وي". ليكن كه پُسه د عمر د لاس څخه وتلی وي او خالد اجازه وركړې نو بيع نه صحيح كيږي. ځكه چي د بيع فضولي د جواز لپاره د مبيع موجودېدل ضروري دي. ليكن د فقير د مالك كېدلو لپاره د صدقه كړی سوي شي (لقطې) موجودېدل ضروري نه دي. د دواړو په مينځ كي همدا فرق دی. پاته عبارت واضح دی.

# د څارويو لقطه

قَالَ: وَيَجُوزُ الِالْتِقَاطُ فِي الشَّاةِ وَالْبَقَرِ وَالْبَعِيرِ فرمايي: چې پسه، غوا او اوښ هم د لقطې په توګه اخيستل [او نيول] جائز دي وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: إِذَا وُجِدَ الْبَعِيرُ وَالْبَقَرُ فِي الصَّحْرَاءِ امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که اوښ او غوا په صحراء [بيابان] کې پيدا سي فَالتَّرْكُ أَفْضَلُ نو [د هغوی] پرېښوول لأفضل دي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْفَرَسُ او آس هم پر دغه اختلاف دی لَهُمَا: أَنَّ الْأَصْلَ فِي أَخْذِ مَالِ الْغَيْرِ الْحُرْمَةُ د دې حضراتو دليل دا دی: چې د بل چا د مال په اخيستلو کې حرمت أصل دی وَالْإِبَاحَةُ مَخَافَةَ الضَّيَاعِ او اباحت [روايښت] د ضايع کېدلو د بيري په وجه ثابتيږي وَإِذَا كَانَ مَعَهَا مَا تَدْفَعُ عَنْ نَفْسِهَا او کله چې په خپله د لقطې سره دومره قوت وي چې هغه له خپل ځان څخه دفاع کولای سي يَقِلُّ الضَّيَاعُ نو د ضياع خطره کمه وي وَلٰكِنَّهُ يُتَوَهَّمُ لېکن د ضياع وهم کيږي [يعني که څه هم د ضياع خطره کمه وي خو بيا هم د ضياع وهم خامخا پاته وي] فَيُقْضَى بِالْكَرَاهَةِ وَالنَّدْبُ إِلَى التَّرْكِ نو ځکه به د هغه اخيستل [نيول] مکروه ګرځول کيږي او د هغه پرېښوول به اولیٰ [او افضل] ګرځول کيږي وَلَنَا: أَنَّهَا لُقَطَةٌ يُتَوَهَّمُ ضَيَاعُهَا زموږ دليل دا دی: چې اوښ [او داسې نور] هم داسې لقطه ده چې د هغې د ضياع وهم کيږي [يعني د هغې د ضياع وهم پاته دی] فَيُسْتَحَبُّ أَخْذُهَا وَتَعْرِيفُهَا صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ لهذا د خلکو د أموالو د ساتلو په خاطر به د هغې اخيستل او تشهيرول مستحب وي كَمَا فِي الشَّاةِ لکه په پسه کې چې هم دغه حکم دی فَإِنْ أَنْفَقَ الْمُلْتَقِطُ عَلَيْهَا بِغَيْرِ إِذْنِ الْحَاكِمِ بيا که ملتقط د قاضي له حکم څخه بغير پر دغه لقطې څه خرچ وکړي [يعني په خپل مال هغه ته خوراکه او داسې نور رانيسي] فَهُوَ مُتَبَرِّعٌ نو هغه به [په دې کې] احسان کونکی وي [يعني دا به هغه له طرفه احسان وي، لهذا که مالک پيدا سي نو د ملتقط لپاره به جائز نه وي چې له هغه څخه د دې مال او عوض غوښتنه وکړي، ځکه چې دا د ملتقط له طرفه احسان دی] لِقُصُورِ وِلَايَتِهِ عَنْ ذِمَّةِ الْمَالِكِ ځکه چې پر مالک د ملتقط ولايت کم دی [مطلب دا چې پر مالک هغه ته ولايت حاصل نه دی] وَإِنْ أَنْفَقَ بِأَمْرِهِ او که ملتقط د قاضي په حکم سره خرچ وکړي كَانَ ذٰلِكَ دَيْنًا عَلَى صَاحِبِهَا نو دا خرچه به د لقطې پر مالک قرض وي لِأَنَّ لِلْقَاضِي وِلَايَةً فِي مَالِ الْغَائِبِ نَظَرًا لَهُ ځکه چې

قاضي ته د شفقت [او مصلحت] پر بناء د غائب په مال کي ولايت حاصل دی وَقَدْ يَكُونُ النَّظَرُ فِي الْإِنْفَاقِ او کله په خرچولو کي [هم] شفقت [او مصلحت] وي عَلَى مَا نُبَيِّنُ چي وروسته به مورږ دي بيان وکړو.

**اللغات**: ﴿شاة﴾ پسه، بزه او داسي نورو ته وايي. ﴿يُقضٰى﴾ د ضرب مضارع مجهوله ده: فيصله کول. ﴿أنفق﴾ د افعال ماضي ده: خرچول، خرچه او نفقه ورکول. ﴿قصور﴾ کوتاهي، کموالی. ﴿نظر﴾ مصلحت (ښېګڼه، ښه والی، فايده)، شفقت.

**تشريح**: صورت د مسئلې او عبارت واضح دی.

## د څاريو د لقطې خرچه

وَإِذَا رُفِعَ ذٰلِكَ إِلَى الْحَاكِمِ او کله چي دا معامله د قاضي مخته پېش کړی سي [مثلاً يو څوک غوا د لقطې په توګه ونيسي او قاضي ته مسئله پېش کړي] نَظَرَ فِيهِ نو قاضي دي په هغه کي غور وکړي فَإِنْ كَانَ لِلْبَهِيمَةِ مَنْفَعَةٌ که چيري د څاروي لپاره يو منفعت وي [مثلاً غوا شيدې کولای سي، يا مثلاً خار باز وړلای سي] آجَرَهَا وَأَنْفَقَ عَلَيْهَا مِنْ أُجْرَتِهَا نو قاضي دي څاروی په أجرت ورکړي او د هغه أجرت دي پر هغه خرچ کړي [مطلب دا چي قاضي دي هغه سړي ته حکم وکړي چي خر په أجرت ورکوه! يا مثلاً شيدې خرڅوه! او د هغه پيسې پر څاروي مصرفوه! او کله چي مالک راسي، نو هغه ته خپل څاروی حواله کړه!] لِأَنَّ فِيهِ إِبْقَاءَ الْعَيْنِ عَلَى مِلْكِهِ مِنْ غَيْرِ إِلْزَامِ الدَّيْنِ عَلَيْهِ ځکه چي په داسي کولو کي پر مالک د قرض لازمولو څخه بغير د هغه په ملکيت کي د عَين [غوا او داسي نورو] باقي ساتل دي وَكَذٰلِكَ يُفْعَلُ بِالْعَبْدِ الْآبِقِ او د تښتېدلي غلام سره به هم داسي کيږي [يعني هغه به په أجرت او مزدورۍ ورکول کيږي او د أجرت پيسې به پر هغه خرچول کيږي، تر دې چي مالک راسي] وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهَا مَنْفَعَةٌ وَخَافَ أَنْ تَسْتَغْرِقَ النَّفَقَةُ قِيمَتَهَا او که د څاروي هيڅ منفعت نه وي او دا بېره وي چي نفقه به د هغه ټوله قيمت ونيسي [او د مالک لپاره به د څاروي اخيستلو پر ځای د نفقې زيات خرچ او قرض اداء کول لازم وي] بَاعَهَا وَأَمَرَ بِحِفْظِ ثَمَنِهَا نو قاضي دي هغه څاروی خرڅ کړي او د هغه د قيمت ساتلو حکم دي وکړي إِبْقَاءً لَهُ مَعْنًى عِنْدَ تَعَذُّرِ إِبْقَائِهِ صُورَةً د دې لپاره چي صورتاً د څاروي د ابقاء د مشکلوالي په

وجه معناً هغه باقي وساتل سي ﴿وَإِنْ كَانَ الْأَصْلَحُ الْإِنْفَاقَ عَلَيْهَا﴾ او كه پر لقطې خرڅ كول انفقه وركول ا زيات مناسب وي ﴿أَذِنَ فِي ذٰلِكَ وَجَعَلَ النَّفَقَةَ دَيْنًا عَلٰى مَالِكِهَا﴾ نو قاضي دي د انفاق اجازه وركړي او نفقه دي د لقطې پر مالک قرض وګرځوي ﴿لِأَنَّهُ نَصَبَ نَاظِرًا﴾ ځكه چي قاضي د مُشفق په حيثيت مقرر سوى دى [مطلب دا چي قاضي د دې لپاره متعين سوى دى چي د يو چا په حق كي د شفقت او مصلحت فيصله وكړي] ﴿وَفِي هٰذَا نَظَرٌ مِنَ الْجَانِبَيْنِ﴾ او په داسي كولو كي د دواړو طرفو لپاره شفقت [او مصلحت] دى [ځكه چي مالک ته به خپل شى حاصل سي او ملتقط ته به خپل قرض (يعني خرڅ كړى سوى مال) حاصل سي] ﴿قَالُوا: إِنَّمَا يَأْمُرُ بِالْإِنْفَاقِ يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ عَلٰى قَدْرِ مَا يَرٰى﴾ مشائخو فرمايلي دي: چي قاضي به دوې يا درې ورځي د انفاق [خرڅولو] حكم كوي څرنګه چي هغه مناسب وګڼي ﴿رَجَاءَ أَنْ يَظْهَرَ مَالِكُهَا﴾ په دې اُميد چي [په دې مودت كي به] د لقطې مالک ښكاره سي ﴿فَإِذَا لَمْ يَظْهَرْ يَأْمُرُ بِبَيْعِهَا﴾ ليكن كه هغه ښكاره نه سي نو قاضي به د لقطې د خرڅولو حكم كوي ﴿لِأَنَّ دَارَّةَ النَّفَقَةِ مُسْتَأْصِلَةٌ﴾ ځكه چي مستقل خرڅه وركول [لقطه] له منځه وړي [او پر مالک به د لقطې اخيستلو پر ځاى زيات قرض وركول لازم وي] ﴿فَلَا نَظَرَ فِي الْإِنْفَاقِ مُدَّةً مَدِيدَةً﴾ لهذا تر ډېر وخته په خرڅه وركولو كي هيڅ شفقت [او مصلحت] نسته ﴿قَالَ: وَفِي الْأَصْلِ شَرَطَ إِقَامَةَ الْبَيِّنَةِ﴾ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط كي د ګواهۍ پېشولو شرط لګولى دى ﴿وَهُوَ الصَّحِيحُ﴾ همدا صحيح دي ﴿لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ غَصْبًا فِي يَدِهِ﴾ ځكه كېداى سي چي لقطه به د ملتقط په قبضه كي غصب وي ﴿فَلَا يَأْمُرُ فِيهِ بِالْإِنْفَاقِ﴾ او په غصب كي قاضي د انفاق حكم كولاى نه سي ﴿وَإِنَّمَا يَأْمُرُ بِهِ فِي الْوَدِيعَةِ﴾ [ځكه] دا حكم خو قاضي فقط د امانت په صورت كي كولاى سي ﴿فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيِّنَةِ لِكَشْفِ الْحَالِ﴾ لهذا د حالت [او معاملې] ښكارولو لپاره ګواهي پېشول ضروري دي ﴿وَلَيْسَتِ الْبَيِّنَةُ تُقَامُ لِلْقَضَاءِ﴾ او د قاضي د فيصلې لپاره دي بينه نه پېشول كيږي [مطلب دا چي دلته دا ګواهي د حالت معلومولو او ښكارولو لپاره ده، نه د فيصلې لپاره] ﴿وَإِنْ قَالَ: لَا بَيِّنَةَ لِي﴾ او كه هغه ووايي: چي زما سره بينه نسته ﴿يَقُولُ الْقَاضِي لَهُ: أَنْفِقْ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتَ صَادِقًا فِيمَا قُلْتَ حَتّٰى تَرْجِعَ عَلٰى

اَلْمَالِكِ إِنْ كَانَ صَادِقًا نو قاضي دي هغه ته ووايي: كه چيري ته په خپل قول كي ريښتونى يې! نو پر هغه خرچ كوه! تر دې چي ته پر مالک رجوع وكړي ايعني هغه خرچ او قرض به ته بيرته له مالک څخه واخلې ا كه چيري ته املتقطا په خپل قول كي ريښتونى وې! وَلَا يَرْجِعُ إِنْ كَانَ غَاصِبًا او كه چيري ته املتقطا غاصب وې نو پر مالک به رجوع نه كوې اخلاصه دا چي كه ملتقط ووايي چي زما سره د لقطې رااخيستلو (التقاط) په وخت كي گواهان نه وو اوس هم گواهان نه لرم، نو قاضي دي هغه ته دا ووايي چي ته پر لقطه خرچ كوه كه چيري ستا أمين والى او ملتقط والى ثابت سي نو تا ته به له مالک څخه د خرچ او قرض اخيستلو اختيار وې او كه ته غاصب ثابت سوې نو لقطه به هغه ته واپس كوې! ا وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: وَجَعَلَ النَّفَقَةَ دَيْنًا عَلَى صَاحِبِهَا إِشَارَةٌ إِلَى او په قدوري [متن] كي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول: "وجعل النفقة دينا على صاحبها" و دې خبري ته اشاره ده أَنَّهُ إِنَّمَا يَرْجِعُ عَلَى الْمَالِكِ بَعْدَ مَا حَضَرَ وَلَمْ تُبَعِ اللُّقَطَةُ إِذَا شَرَطَ الْقَاضِي الرُّجُوعَ عَلَى الْمَالِكِ چي ملتقط د مالک تر حاضرېدلو وروسته هغه وخت پر مالک رجوع كولاى سي كله چي لقطه خرڅه كړى سوې نه وي او قاضي پر مالک د رجوع كولو شرط لګولى وي ايعني لقطه به موجوده وي او قاضي به د فيصلې په وخت كي ملتقط ته دا ويلي دي چي ته دا خرچ او نفقه له مالک څخه واپس واخله، يعني ستا دا خرچ د مالک پر ذمه قرض دی، لېكن كه قاضي فقط د انفاق حكم ورته كړى وى او دواپس اخيستلو خبره يې نه وي كړې، نو ملتقط ته به دا حق نه وي چي له مالک څخه خرچ (خرچ كړى سوى مال) واخلي ا وَهَذِهِ رِوَايَةٌ وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا روايت أصح دی.

**اللغات**: ﴿بهيمة﴾ څاروى، ﴿آجرها﴾ د افعال ماضي ده: په كرايه وركول. ﴿إبقاء﴾ د افعال مصدر دی: پاته كول، باقي ساتل. ﴿تستغرق﴾ د استفعال مضارع ده: غرقېدل. ﴿ناظر﴾ مشفق، د مصلحت رعايت كونكى. ﴿مستأصلة﴾ د استفعال مؤنث اسمِ فاعل دی: له بېخه كېنونكى، له منځه وړونكى (ختمونكى).

**تشريح**: عبارت واضح دی، مشكل ځايونه په عبارت كي تشريح سول.

## د پورتنى مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِذَا حَضَرَ يَعْنِي الْمَالِكُ فرمايي: او كه چيري مالک حاضر سي فَلِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يَمْنَعَهَا مِنْهُ حَتَّى يُحْضِرَ النَّفَقَةَ نو ملتقط ته دا حق سته چي د لقطې څاروى له مالک څخه منع كړي تر دې چي مالک د نفقې مال حاضر كړي لِأَنَّهُ حَيِيَ بِنَفَقَتِهِ ځكه هغه څاروى د ملتقط په نفقه سره ژوند پاته سوى دی فَصَارَ كَأَنَّهُ اسْتَفَادَ الْمِلْكَ مِنْ جِهَتِهِ نو داسي سو ګواكي مالک د ملتقط له طرفه د ملكيت مالک

سوی دی [یعنې ګواکې ملتقط پر مالک لقطه (څاروی) خرڅ کړی] فَأَشْبَهَ الْمَبِيعَ نو دا مبیع سره مشابه سو وَأَقْرَبُ مِنْ ذٰلِكَ رَادُّ الْآبِقِ او د تښتېدلي غلام واپس کونکی [او نیونکی] هم دې ته نژدې دی فَإِنَّ لَهُ الْحَبْسَ لِاسْتِيفَاءِ الْجُعَلِ نو هغه ته به هم د خرڅې تر اخیستلو پورې [د غلام] راګرځولو حق حاصل وي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې [اوس] موږ ذکر کړی ثُمَّ لَا يَسْقُطُ دَيْنُ النَّفَقَةِ بِهَلَاكِهِ فِي يَدِ الْمُلْتَقِطِ قَبْلَ الْحَبْسِ بیا تر راګرځولو مخکې د ملتقط په قبضه کې د څاروي په هلاکېدلو سره به د نفقې قرض نه ساقطیږي [یعنې که ملتقط پر څاروي څه خرچه وکړه. او بیا هغه د خرچ اخیستلو لپاره تر اوسه له مالک څخه څاروی راګرځولی نه وو چې په دې وخت کې څاروی هلاک سو، نو د هلاکېدلو باوجود ملتقط له مالک څخه هغه مال اخیستلای سي کوم چې یې پر څاروي خرچ کړی وي] وَيَسْقُطُ إِذَا هَلَكَ بَعْدَ الْحَبْسِ او که چیري تر راګرځولو وروسته هغه هلاک سي نو قرض ساقطیږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ بِالْحَبْسِ شَبِيهَ الرَّهْنِ ځکه چې د راګرځولو په وجه دا د رهن سره مشابه سو.

**اللغات**: ﴿رادّ﴾ د نصر اسمِ فاعل دی: واپس کونکی (واپس راوستونکی)، مراد ځني د تښتېدلي غلام نیونکی او اخیستونکی دی. ﴿نفقة﴾ خرچه. ﴿حبس﴾ قیدول. راګرځول. منع کول (مراد ځني د خرچ اخیستلو په نیت له مالک څخه لقطه راګرځول دي. یعنې چې ملتقط مالک ته ووایي: تر څو چې تا ما ته د خرچې او نفقې مال راکړی نه وي، تر هغه وخته زه تا ته لقطه نه درکوم).

**تشریح**: عبارت واضح دی.

## د حل او حرم لقطه

قَالَ: وَلُقَطَةُ الْحِلِّ وَالْحَرَمِ سَوَاءٌ فرمایي: او د حل او حرم دواړو لقطه برابره ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ التَّعْرِيفُ فِي لُقَطَةِ الْحَرَمِ إِلَى أَنْ يَجِيءَ صَاحِبُهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د حرم د لقطې تشهیر کول واجب دي تر دې چې د لقطې مالک راسي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِي الْحَرَمِ[1]: وَلَا يَحِلُّ لُقَطَتُهَا إِلَّا لِمُنْشِدٍ ځکه د حرم په هکله نبي ﷺ فرمایلي دي: چې د حرم لقطه فقط د هغه کس لپاره حلاله ده کوم چې

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في باب كيف تعرف لقطة أهل مكة، رقم الحديث:٢٤٣٣.

د لقطې په باره کې پوښتنه [او اعلان] کوي [يعني لقطه فقط د خپل مالک لپاره حلاله ده] وَلَنَا قَوْلُهُ الْعَلِيْلَا [1] : اِعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً او زموږ دليل دا دی اچې نبي ﷺ ته يو أعرابي راغلی او پوښتنه يې ځنې وکړه: چې که زه لقطه (مثلاً دراهم) پيدا کړم، نو څه وکړم، نو انبي ﷺ وفرمايل: چې ته د لقطې خلته او رېښکۍ ځان ته معلوم کړه! او بيا يو کال د هغه تشهير کوه! ايعني مثلاً که ته خلته پيدا کړې چې په هغه کې دارهم وي، نو ته د هغه يو کال تشهير کوه او د خلتې شکل او رېښکۍ وپېژنه! ځکه که مالک راسي نو ته به له هغه څخه د علامت په توګه د خلتې د رنګ او رېښکۍ پوښتنه کوې!ا مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ دا فرمان له څه تفصيل څخه بغير وارد سوی دی ايعني په دې حديث کې د حِل او حرم تر مينځ هيڅ فرق سوی نه دی اوَلِأَنَّهَا لُقَطَةٌ او ځکه چې هغه هم لقطه ده وَفِي التَّصَدُّقِ بَعْدَ مُدَّةِ التَّعْرِيفِ إِبْقَاءُ مِلْكِ الْمَالِكِ مِنْ وَجْهٍ او د تشهير تر مودت وروسته د هغه په صدقه کولو کې من وجه د مالک د ملکيت ابقاء ده فَيَمْلِكُهُ كَمَا فِي سَائِرِهَا لهذا د نورو لقطو په څېر به ملتقط د هغه هم مالک کيږي وَتَأْوِيلُ مَا رُوِيَ أَنَّهُ لَا يَحِلُّ الِالْتِقَاطُ إِلَّا لِلتَّعْرِيفِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روايت کړی سوي حديث تاويل دا دی چې فقط د تشهير کولو لپاره د [بل چا مال] را اخيستل حلال دي وَالتَّخْصِيصُ بِالْحَرَمِ لِبَيَانِ أَنَّهُ لَا يَسْقُطُ التَّعْرِيفُ فِيهِ او د حرم تخصيص په دې وجه دی چې دا ښکاره سي چې د حرم په لقطه کې هم تشهير ساقط نه دی لِمَكَانِ أَنَّهُ لِلْغُرَبَاءِ ظَاهِرًا ځکه چې حرم په ښکاره د مسافرانو ځای دی ايعني خلک به دا وهم کوي چې حرم خو د مسافرانو ځای دی او خلک ځي راځي لهذا په حرم کې د تشهير هيڅ فايده نسته، نو نبي کريم ﷺ دا اعلان وکړی چې د حرم په لقطه کې هم تشهير واجب دی او ساقط نه دی!.

**اللغات:** ﴿حِل﴾ غير حرم، د حرم شريف له علاقې څخه بغير نور ټولو علاقو ته "حِل" وايي. ﴿تعريف﴾ تشهير کول، اعلان کول. ﴿منشد﴾ د افعال له باب څخه د اسم فاعل صيغه ده: هغه کس کوم چې د خپل ورک سوي شي په باره کې اعلان او پوښتنه کوي. ﴿عفاص﴾ دا به هغه خلتې (تېلۍ) ته ويل کېده کوم چې به له څرمني يا بل شي څخه جوړه وه او شپانه به خپله توښه پکښې ساتل، او عفاص سرپوښ ته هم وايي، خو دلته يې اوله معنیٰ مراد ده ﴿وكاء﴾ هغه تار او رېښکۍ چې په هغه سره د خلتې خوله يا داسي بل شی تړل کيږي. ﴿غرباء﴾ جمع د غريب ده: پردېس، مسافر.

**تشريح :** عبارت واضح دی.

---

[1] تخريجه: أخرجه البخاري في باب ضالة الابل، رقم الحديث: ٢٤٢٧.

## د لقطې د مالک کېدلو دعویٰ کول

وَإِذَا حَضَرَ رَجُلٌ فَادَّعَى اللُّقَطَةَ او كه څيري يو سړی حاضر سي او د لقطې دعویٰ وکړي لَمْ تُدْفَعْ إِلَيْهِ حَتَّى يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ نو تر څو چي هغه ګواهي پېش نه کړي تر هغه وخته به لقطه هغه ته نه ورکول کيږي فَإِنْ أَعْطَى عَلَامَتَهَا او كه هغه [د لقطې] يو علامت بيان کړي حَلَّ لِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يَدْفَعَهَا إِلَيْهِ نو د ملتقط لپاره هغه لقطه ورکول حلال دي وَلَا يُجْبَرُ عَلَى ذٰلِكَ فِي الْقَضَاءِ لېکن قضاءً به ملتقط پر دې نه مجبورول کيږي وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: يُجْبَرُ امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه به مجبورول کيږي وَالْعَلَامَةُ مِثْلُ أَنْ يُسَمِّيَ وَزْنَ الدَّرَاهِمِ وَعَدَدَهَا وَوِكَاءَهَا وَوِعَاءَهَا او علامت دا دی: چي مثلاً د دراهمو. وزن. د هغوی شمېر. د هغوی [د خلتې] تار [ربنکی] او د هغوی د محفوظه کېدلو شی [خلته] وښيي لَهُمَا: أَنَّ صَاحِبَ الْيَدِ يُنَازِعُهُ فِي الْيَدِ وَلَا يُنَازِعُهُ فِي الْمِلْكِ د دې حضراتو دليل دا دی: چي ملتقط د قبضې په هکله د مالک سره منازعت [او مخالفت] کوي او د ملکيت په هکله منازعت نه ور سره کوي فَيُشْتَرَطُ الْوَصْفُ لهذا د لقطې د وصف بيانول به شرط وي لِوُجُودِ الْمُنَازَعَةِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي من وجه منازعت موجود دی وَلَا تُشْتَرَطُ إِقَامَةُ الْبَيِّنَةِ او بيّنه پېشول به شرط نه وي لِعَدَمِ الْمُنَازَعَةِ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي من وجه منازعت معدوم دی وَلَنَا أَنَّ الْيَدَ حَقٌّ مَقْصُودٌ كَالْمِلْكِ زموږ دليل دا دی: چي د ملکيت په څير قبضه هم مقصود حق دی فَلَا يَسْتَحِقُّ إِلَّا بِحُجَّةٍ وَهُوَ الْبَيِّنَةُ لهذا د حجت يعني د بيّنې له پېشولو څخه بغير به هغه د دې مستحق نه وي اِعْتِبَارًا بِالْمِلْكِ پر ملکيت باندي په قياس کولو سره إِلَّا أَنَّهُ يَحِلُّ لَهُ الدَّفْعُ عِنْدَ إِصَابَةِ الْعَلَامَةِ خو ابيا هم [د علامت بيانولو په صورت کي به د ملتقط لپاره ورکول حلال وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَعَرَفَ عِفَاصَهَا وَعَدَدَهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: که څيري د لقطې مالک راسي او هغه د لقطې خلته [تېلۍ] او د هغه شمېر بيان کړي نو ته! لقطه هغه ته ورکړه! وَهٰذَا لِلْإِبَاحَةِ او دا حکم د اباحت [روايښت] لپاره دی عَمَلًا بِالْمَشْهُورِ پر مشهور حديث باندي په عمل کولو سره وَهُوَ

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب اللقطة باب معرفة العفاص والوكاء رقم الحديث:٥

قَوْلُهُ ﷺ: اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي او هغه [مشهور حديث] د نبي ﷺ دا فرمان دی: چې بيّنه پېشول پر مدعي لازم دي وَيَأْخُذُ مِنْهُ كَفِيلًا إِذَا كَانَ يَدْفَعُهُ إِلَيْهِ اسْتِيثَاقًا او ملتقط چې کله مالک ته لقطه ورکړې نو د اطمينان [او احتياط] په توګه دي له مالک څخه يو کفيل واخلي وَهٰذَا بِلَا خِلَافٍ او په دې کې هيڅ اختلاف نسته لِأَنَّهُ يَأْخُذُ الْكَفِيلَ لِنَفْسِهِ ځکه چې ملتقط د خپل ذات لپاره کفيل غواړي بِخِلَافِ التَّكْفِيلِ لِوَارِثٍ غَائِبٍ عِنْدَهُ په خلاف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غائب وارث لپاره د کفيل اخيستلو [يعني د هغه په نېز دا صحيح نه دي] وَإِذَا صُدِّقَ قِيلَ: لَا يُجْبَرُ عَلَى الدَّفْعِ او که چيرې ملتقط د مالک تصديق وکړي نو يو قول دا دی: چې هغه به مالک ته [د لقطې] پر ورکولو نه مجبورول کيږي كَالْوَكِيلِ بِقَبْضِ الْوَدِيعَةِ إِذَا صَدَّقَهُ لکه وکيل بقبض الوديعة کله چې مودَع [امانت ساتونکی] د هغه تصديق وکړي [نو مودَع هم هغه ته پر وديعت [امانت] ورکولو نه مجبورول کيږي، همداسې به دا هم وي] وَقِيلَ: يُجْبَرُ او يو قول دا دی: چې هغه به مالک ته د لقطې پر ورکولو مجبورول کيږي لِأَنَّ الْمَالِكَ هٰهُنَا غَيْرُ ظَاهِرٍ ځکه چې مالک دلته ښکاره نه دی وَالْمُودِعُ مَالِكٌ ظَاهِرًا او امانت ورکونکی ښکاره مالک دی وَلَا يَتَصَدَّقُ بِاللُّقَطَةِ عَلَى غَنِيٍّ او ملتقط به پر مالدار سړي لقطه نه صدقه کوي لِأَنَّ الْمَأْمُورَ بِهِ هُوَ التَّصَدُّقُ ځکه د کوم شي حکم چې سوی دی هغه صدقه کول دي لِقَوْلِهِ ﷺ: فَإِنْ لَمْ يَأْتِ يَعْنِي صَاحِبَهَا فَلْيَتَصَدَّقْ بِهِ ځکه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: نو که د لقطې مالک را نه سي نو ملتقط دي هغه صدقه کړي وَالصَّدَقَةُ لَا تَكُونُ عَلَى غَنِيٍّ او پر مالدار باندي صدقه نه کيږي فَأَشْبَهَ الصَّدَقَةَ الْمَفْرُوضَةَ نو دا د فرضي صدقې [زكاة] سره مشابه سو.

**اللغات**: ﴿ينازعه﴾ د مفاعلې مضارع ده: جنګ کول، مخالفت کول، دعوه کول. ﴿وعاء﴾ هغه څه چې په هغه کې يو شی ساتل کيږي، لکه لوښی، خلته (تېلی)، دلته ځنې مراد د پيسو ساتلو خلته ده (چې اوس د هغه پر ځای بټوه استعماليږي). ﴿استيثاق﴾ د استفعال مصدر دی: اطمينان پيدا کول، وثيقه اخيستل. ﴿وديعة﴾ امانت. ﴿مُوْدِع﴾ هغه کس چې بل چا ته يې امانت اېښی وي (امانت ورکونکی). مُوْدَع: هغه کس چې امانت ور ته اېښول سوی وي (امانت ساتونکی).

**تشريح**: عبارت واضح دی.

## د مالدار لپاره د لقطې څخه نفع اخيستل

وَإِنْ كَانَ الْمُلْتَقِطُ غَنِيًّا او كه ملتقط مالدار وي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا نو هغه ته جائز نه دي چي د لقطې څخه نفع واخلي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوزُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز دي لِقَوْلِهِ عليه السلام فِي حَدِيثِ أُبَيٍّ رضي الله عنه: فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ وَإِلَّا فَانْتَفِعْ بِهَا ځكه چي د أبى بن كعب رضي الله عنه په حديث كي نبي ﷺ فرمايلي دي: كه چيري د لقطې مالک راسي نو ته هغه ته لقطه ورکړه! کنې په خپله د لقطې څخه نفع واخله! وَكَانَ مِنَ الْمَيَاسِيرِ او أبى بن كعب له مالدارانو څخه وو وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا يُبَاحُ لِلْفَقِيرِ حَمْلًا لَهُ عَلَى رَفْعِهَا صِيَانَةً لَهَا او ځكه چي د غريب لپاره په دې وجه لقطه روا وي چي هغه لقطه راپورته کړي د هغې حفاظت وکړي وَالْغَنِيُّ يُشَارِكُهُ فِيهِ او په دې معنیٰ كي مالدار كس [هم] د هغه سره شريک دی وَلَنَا: أَنَّهُ مَالُ الْغَيْرِ زموږ دليل دا دی: چي دا د بل چا مال دی فَلَا يُبَاحُ الِانْتِفَاعُ بِهِ إِلَّا بِرِضَاهُ لهذا د هغه له ضا څخه بغير به له دې څخه نفع اخيستل جائز نه وي لِإِطْلَاقِ النُّصُوصِ ځكه نصوص مطلق دي وَالْإِبَاحَةُ لِلْفَقِيرِ لِمَا رَوَيْنَاهُ أَوْ بِالْإِجْمَاعِ او د غريب لپاره اباحت [روايښت] د هغه حديث په وجه دی كوم چي موږ روايت كړی يا د اجماع په وجه دی فَيَبْقَى مَا وَرَاءَهُ عَلَى الْأَصْلِ نو له غريب څخه بغير د بل كس [مالدار] حكم به پر أصل [ممانعت] پاته وي وَالْغَنِيُّ مَحْمُولٌ عَلَى الْأَخْذِ لِاحْتِمَالِ افْتِقَارِهِ فِي مُدَّةِ التَّعْرِيفِ او مالدار پر داسي را اخيستلو [راپورته كولو] حمل كړی سوی دی چي كېدای سي د تعريف [تشهير] په مودت كي به هغه محتاج سي [يعني مالدار به په دې اُميد لقطه را اخلي چي شايد هغه به د اعلان او تشهير كولو په مودت كي غريب سي] وَالْفَقِيرُ قَدْ يَتَوَانَى لِاحْتِمَالِ اسْتِغْنَائِهِ فِيهَا او فقير هم كله [د هغه په حفاظت كي] سستي كوي چي شايد هغه به په دې مودت كي مالدار سي وَانْتِفَاعُ أُبَيٍّ رضي الله عنه كَانَ بِإِذْنِ الْإِمَامِ او د أبى بن كعب رضي الله عنه انتفاع د امام په اجازه سره وه وَهُوَ جَائِزٌ بِإِذْنِهِ او د امام په اجازه سره انتفاع [زموږ په نېز هم] جائز ده وَإِنْ كَانَ الْمُلْتَقِطُ فَقِيرًا او كه ملتقط غريب وي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا نو په دې كي هيڅ پروا نسته چي هغه د لقطې څخه نفع واخلي لِمَا فِيهِ مِنْ تَحْقِيقِ النَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځكه چي په دې كي له دواړو طرفونو څخه شفقت [او مصلحت] ثابتيږي وَلِهَذَا جَازَ الدَّفْعُ إِلَى فَقِيرٍ غَيْرِهِ او له همدې وجهي له ملتقط څخه بغير بل غريب ته لقطه وركول جائز دي وَكَذَا إِذَا كَانَ الْفَقِيرُ أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ أَوْ زَوْجَتَهُ همدارنګه كه د ملتقط پلار يا زوی يا ښځه فقيره وي انو هم هغو ته د لقطې څخه نفع اخيستل جائز دي! وَإِنْ كَانَ هُوَ غَنِيًّا كه څه هم ملتقط مالدار وي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړی.

**اللغات**: ﴿**ملتقط**﴾ د لوېدلي شي راپورته کونکی. ﴿**افتقار**﴾ د افتعال مصدر دی: محتاجه کېدل. غريب کېدل. ﴿**تعريف**﴾ تشهير کول (مشهورول). د ورک سوي شي اعلان کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که چېري متلقط مالدار وي. نو زموږ په نېز هغه ته دا جائز نه دي چي د لقطي څخه نفع او فايده واخلي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي: ځکه چي حضرت أبی بن کعب رضي الله عنه ته د دې حکم سوی وو چي د لقطې څخه فايده واخلي حالانکي ابی بن کعب رضي الله عنه مالدار وو. د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي د غريب لپاره په همدې مقصد انتفاع جائز وي چي لقطه را پورته کړي او حفاظت يې وکړي او دا مقصد له مالدار څخه هم متحقق کېدای سي، نو ځکه به د انتفاع په حکم کي غريب او مالدار دواړه برابر وي.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل دا دی، چي وروره! لقطه د بل چا مال دی او د بل چا له اجازې څخه بغير د هغه له مال څخه نفع اخيستل جائز نه دي، ځکه چي د قرآن کريم په دې آيت "وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ" او په "لَا تَعْتَدُوٓا" او داسي نورو نصوصو کي علی الإطلاق د بل چا د مال پر استعمالولو بنديز لګول سوی دی. لهذا په دې بنديز کي به مالدار او غريب دواړه برابر وي. لېکن څرنګه چي "صدقه کولو والا حديث" ته په کتني سره د غريب لپاره د صدقې جواز په وجه د هغه استعمالول مباح ګرځول سوي دي. لهذا دا اباحت به فقط د غريب په حق کي ثابت وي او د غني په حق کي به د ممانعت او بندير حکم پر خپل أصل پاته وي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي "د را پورته کولو په مقصد کي غريب او مالدار دواړه برابر دي" دا صحيح نه ده. ځکه چي مالک هغه په دې وجه راپورته کوي چي شايد د تعريف او تشهير په مودت کيّ به زه غريب سم او دې مال ته به مجبوره سم. يا غريب کله په دې وجه د لقطې په حفاظت کي سستي کوي چي شايد د تعريف په مودت کي به زه مالدار سم. لهذا د لقطې په را پورته کولو کي خو به دواړه برابر وي. لېکن د لقطې څخه نفع اخيستل به فقط د غريب سره خاص وي. همدارنګه د أبی بن کعب رضي الله عنه په حديث سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل نيول صحيح نه دي، ځکه چي د أبی بن کعب لپاره د انتفاع جواز د امام (نبي کريم ﷺ) په اجازه سره وو او د أبی بن کعب سره خاص وو. او د امام په اجازه سره خو موږ هم د انتفاع د جواز قائل يو. لېکن په دې حديث سره علی الإطلاق انتفاع جائز ګرځول صحيح نه دي.

که چېري ملتقط غريب او فقير وي نو هغه ته د لقطې څخه نفع اخيستل جائز دي. ځکه چي په دې کي د ملتقط غريب هم فايده ده او د مالک هم فايده ده چي هغه ته به ثواب حاصل سي. همدا وجه ده چي له ملتقط څخه بغير بل غريب ته لقطه ورکول او د بل غريب لپاره له هغه څخه نفع اخيستل جائز دي. همدارنګه که د ملتقط پلار يا د هغه زوی يا ښځه غريبه وي نو د هغو لپاره هم د لقطې څخه نفع اخيستل جائز دي که څه هم ملتقط مالدار وي. ځکه چي په دې کي د دواړو طرفونو لپاره مصلحت او فايده ده. والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الْإِبَاقِ

(دا) كتاب د غلام تښتېدلو (د احكامو په بيان كي) دی

**تشريح**: إبَاق مصدر دی، د سمع، ضرب او نصر ټولو بابونو څخه راځي او د دې معنیٰ ده: تښتېدل.
آبِق هغه غلام ته وايي كوم چي له خپل مالک (مولیٰ) څخه سرکښي کوي او قصداً تښتي. او په تېښته اموخته وي.

## د آبق او ضالّ تعريف او احكام

اَلْآبِقُ أَخْذُهُ أَفْضَلُ فِي حَقِّ مَنْ يَقْوىٰ عَلَيْهِ د تښتېدلي غلام نيول د هغه كس په حق كي غوره دي كوم چي د هغه پر حفاظت كولو قدرت لري لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْيَائِهِ ځكه چي په داسي كولو كي د مالک حق ژوندی كول [باقي ساتل] دي وَأَمَّا الضَّالُّ فَقَدْ قِيلَ: كَذٰلِكَ وَقَدْ قِيلَ: تَرْكُهُ أَفْضَلُ او كوم چي بې لاري غلام دی [يعني هغه غلام چي لار څني ورکه وي] نو يو قول دا دی: چي د هغه حكم هم دا ډول دی [يعني د آبق په څېر دی] او بل قول دا دی: چي د ضالّ غلام پرېښوول غوره دي لِأَنَّهُ لَا يَبْرَحُ مَكَانَهُ ځكه چي هغه له خپل ځای څخه لېري نه ځي فَيَجِدُهُ الْمَالِكُ نو مالک به [په آساني سره] هغه پيدا كړي وَلَا كَذٰلِكَ الْآبِقُ او آبق داسي نه دی ثُمَّ آخِذُ الْآبِقِ يَأْتِي بِهِ إِلَى السُّلْطَانِ بيا د آبق نيونكی دي هغه باچا [او حاكم] ته راولي لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلىٰ حِفْظِهِ بِنَفْسِهِ ځكه چي نيونكی په خپله د هغه د حفاظت كولو قدرت نه لري بِخِلَافِ اللُّقَطَةِ په خلاف د لقطې ثُمَّ إِذَا رُفِعَ الْآبِقُ إِلَيْهِ بيا چي كله باچا ته آبق پېش كړی سي يَحْبِسُهُ نو باچا دي هغه قيد كړي وَلَوْ رُفِعَ الضَّالُّ او كه باچا ته ضالّ غلام پېش كړی سي لَا يَحْبِسُهُ نو هغه دي نه قيدوي لِأَنَّهُ لَا يُؤْمَنُ عَلَى الْآبِقِ الْإِبَاقُ ثَانِيًا بِخِلَافِ الضَّالِّ ځكه چي د آبق غلام د دوباره تښتېدلو ېېره [او خطره] پاته وي. په خلاف د ضال غلام ايعني پر آبق غلام هيڅ بروسه نشته. هر وخت د هغه د تښتېدلو خطره وي. او په ضال غلام كي د دې امكان نسته] قَالَ: وَمَنْ رَدَّ الْآبِقَ عَلىٰ مَوْلَاهُ مِنْ مَسِيرَةِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا فرمايي: كوم كس چي آبق غلام د دريو ورځو يا تر دې له زياتي

مسافې څخه خپل مالک ته راولي فَلَهُ عَلَيْهِ جُعْلُهُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا نو د راوستونکي لپاره به پر مالک څلوېښت [۴۰] درهمه حقُ الزحمه [خرچ] واجب وي وَإِنْ رَدَّهُ لِأَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ او كه تر دې له كمې مسافې څخه يې راولي فَبِحِسَابِهِ نو د هغه په حساب سره به جُعل [حقُ الزحمه] واجب وي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحساني حكم دى وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ شَيْءٌ إِلَّا بِالشَّرْطِ او قياس دا دى: چې له شرط څخه بغير دې د راوستونكي لپاره هيڅ شى نه وي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِمَنَافِعِهِ ځكه چې راوستونكى په خپلو منافعو سره احسان كونكى دى [يعني هغه چې كومه نفع مالک ته رسولې ده، دا د هغه له طرفه احسان دى، او د احسان كونكي لپاره پر مالک هيڅ شى نه واجبيږي، ځكه چې احسان او تبرّع "بېله عوضه" وي] فَأَشْبَهَ الْعَبْدَ الضَّالَّ نو دا د ضال غلام په شېر سو وَلَنَا: أَنَّ الصَّحَابَةَ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ اتَّفَقُوا عَلَى وُجُوبِ أَصْلِ الْجُعْلِ زموږ دليل دا دى: چې صحابه [خو] پر أصل حقُ الزحمه [خرچ] متفق وو إِلَّا أَنَّ مِنْهُمْ مَنْ أَوْجَبَ أَرْبَعِينَ وَمِنْهُمْ مَنْ أَوْجَبَ مَا دُونَهَا لېكن له هغو څخه ځينو څلوېښت درهمه واجب كړي دي او ځينو تر دې كم واجب كړي دي فَأَوْجَبْنَا الْأَرْبَعِينَ فِي مَسِيرَةِ السَّفَرِ وَمَا دُونَهَا فِيمَا دُونَهُ تَوْفِيقًا وَتَلْفِيقًا بَيْنَهُمَا نو ځكه موږ په دواړو كې د موافقت پيدا كولو لپاره د سفر په مسافه كې [خو] څلوېښت درهمه واجب كړل او له هغه څخه په كمه مسافه كې مو كم واجب كړل وَلِأَنَّ إِيجَابَ الْجُعْلِ أَصْلُهُ حَامِلٌ عَلَى الرَّدِّ او ځكه چې د جُعل د إيجاب اصل مقصد انسان [د غلام] پر راوستلو آماده كول [هڅول] دي [او خلكو ته د دې كار شوق او رغبت وركول دي] إِذِ الْحِسْبَةُ نَادِرَةٌ ځكه چې د ثواب په نيت داسې كار كول شاذ ونادر دي فَتَحْصُلُ صِيَانَةُ أَمْوَالِ النَّاسِ لهذا [په جعل سره به] د خلكو د أموالو حفاظت حاصل سي وَالتَّقْدِيرُ بِالسَّمْعِ او [د څلوېښتو درهمو] اندازه كول [متعيّنول] پر سماع موقوف دي وَلَا سَمْعَ فِي الضَّالِّ او د ضال غلام په هكله هيڅ سماع نسته فَامْتَنَعَ نو په دې وجه په ضال كې دا تقدير منع دى وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى صِيَانَةِ الضَّالِّ دُونَهَا إِلَى صِيَانَةِ الْآبِقِ او ځكه چې د آبق د حفاظت په مقابله كې د ضال حفاظت كم [آسانه] دى لِأَنَّهُ لَا يَتَوَارَى وَالْآبِقُ يَخْتَفِي ځكه چې ضالّ نه پټيږي حالانكې آبق پټيږي [او غلى كرځي] وَيُقَدَّرُ الرَّضْخُ فِي الرَّدِّ عَمَّا دُونَ السَّفَرِ بِاصْطِلَاحِهِمَا او د سفر تر مودت له كمې مسافې څخه د

واپس راوستلو په عوض کې به د مالک او رادّ په اتفاق سره عطیه [حقُ الزحمه] ټاکل کیږي أَوْ يُفَوَّضُ إِلَى رَأْيِ الْقَاضِي یا دا ټاکل به د قاضي رایې ته سپارل کیږي وَقِيلَ: تُقَسَّمُ الْأَرْبَعُونَ عَلَى الْأَيَّامِ الثَّلَاثَةِ او یو قول دا دی: چې څلوېښت درهمه به پر دریو ورځو تقسیمول کیږي إِذْ هِيَ أَقَلُّ مُدَّةِ السَّفَرِ ځکه چې درې ورځې د سفر د مودې کمه اندازه ده.

**اللغات:** ﴿آبق﴾ تښتېدونکی غلام (په تېښته اموخته غلام)، ﴿إحياء﴾ د افعال مصدر دی: ژوندي کول، ﴿ضالّ﴾ ګمراه، بې لارې، هغه غلام چې لار ځني ورکه وي، ﴿لا يبرح﴾ د فتح مصدر دی: له خپل ځای څخه لیرې کېدل، جلا کېدل، ﴿مسيرة﴾ تګ، مسافه (واټن)، فاصله، ﴿جُعل﴾ د تښتېدلي غلام د واپس راوستلو حقُ الزحمه، أجرت (مزدوري)، خرچ، ﴿حِسبة﴾ ثواب، جزا (مراد ځني د ثواب اُمید ساتل او د ثواب نیت کول دي)، ﴿رضخ﴾ لږ عطیه. (مراد ځني حقُ الزحمه او اُجرت دی).

**تشریح:** د آبق تعریف تاسي ته معلوم سو او ضال هغه غلام ته وایي چې لاره ځني ورکه سي او د خپل کور طرف او درک ځني هېر سي، آبق نیول او خپل مالک ته حواله کول أفضل دي او د ضالّ د نیولو په هکله دوه قولونه دي: ① هغه هم نیول أفضل دي، ② د هغه نه نیول أفضل دي، ځکه چې هغه خو په خپله د کور او منزل په تلاش کې دی او د هغه د تیښتې امکان هم نسته لېکن د آبق او تښتېدونکی غلام په هکله همېشه د تیښتې امکان وي.

**قال: ومن ردّ إلخ:** مسئله دا دي که یو سړی د دریو ورځو له مسافې څخه یا تر دې له زیاتي مسافې څخه مالک (مولیٰ) ته نیول سوی غلام راولي، نو را وستونکي ته به څلوېښت (۴۰) درهمه خرچ ورکول کیږي چې هغه به د غلام له مالک څخه اخیستل کیږي، او که تر دې له کمې مسافې څخه یې راولي نو د هغه مسافې مطابق به حقُ الزحمه ورکول کیږي، دا استحساني حکم دی، د قیاس تقاضا دا ده چې که مالک د دې غلام د راوستونکي لپاره د انعام یا داسي بل شي شرط لګولی وي نو په دې صورت کې خو به هغه ته حقُ الزحمه ورکول کیږي او که چیرې د مالک له طرفه یو داسي شرط نه وي نو راوستونکی به متبرّع وي او هغه ته به هیڅ شی نه ورکول کیږي لکه څرنګه چې د ضالّ غلام راوستونکی چې د هیڅ شي حق نه لري، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی.

**ولنا إلخ:** زموږ دلیل دا دی چې صحابه وو د واپس راوستونکي لپاره د أصل جُعل (حقُ الزحمه) پر وجوب متفق دي لېکن د جُعل په مقدار کې د هغوی اختلاف دی، حضرت عمر، حضرت معاویه او

حضرت بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُمْ څلوېښت درهمه جُعل واجب کړی دی. او له حضرت علي او حضرت عمرو بن دينار رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا څخه د لسو درهمو إيجاب روايت سوی دی. او موږ د دواړو فريقو په قول کې د تطبيق کولو لپاره دا فيصله وکړه چې هغه راوستونکي ته به څلوېښت درهمه ورکول کيږي کوم چې د سفر د مودت (دريو ورځو) په اندازه يا تر دې له زيات ليري ځای څخه آبق غلام واپس راولي، او تر دې له کمي مسافې څخه راوستونکي ته به کم ورکول کيږي.

زموږ دويم دليل دا دی چې په دې زمانه کې د ثواب په نيت آبق غلام او داسي نور راوستل انتهائي شاذ ونادر دي. نو په دې وجه راوستونکي ته انعام او حقُ الزحمه ورکول غوره دي. د دې لپاره چې خلک داسي کار ته رغبت وکړي او مالونه له ضياع څخه وساتل سي.

**والتقدير بالسمع إلخ:** د دې حاصل دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله چې آبق پر ضالّ قياسوي دا صحيح نه دي. ځکه چې د آبق په هکله د څلوېښتو درهمه اندازه په سماع سره ثابته سوې ده او د ضالّ په هکله هيڅ سماع روايت سوې نه ده. نو په دې وجه آبق پر ضالّ قياسول صحيح نه دي او په دې وجه هم صحيح نه دي چې د ضالّ په نسبت د آبق حفاظت زيات ضروري دی، ځکه چې آبق پټ او غلی اووسي او نيول يې مشکل وي حالانکې ضالّ پټ نه اووسي لهذا په دې حواله سره هم يو د بل مشابه ګرځول صحيح نه دي.

**ويقدر الرضخ إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که د سفر تر مودت يعني تر دريو ورځو له کمي مُسافې څخه يو څوک آبق راولي نو د هغه جُعل او حقُ الزحمه به د مالک او رادّ (واپس راوستونکي) په اتفاق سره ټاکل کيږي يا به يې قاضي د خپلي رايي مطابق ټاکي. يا به څلوېښت درهمه به پر دريو ورځو تقسيمول کيږي او د هري ورځي د مسافې په مقابله کې به تقريبا ديارلس (١٣.٣٣) ورکول کيږي.

## د واپس راوستونکي اُجرت

قَالَ: وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعِينَ فرمايي: که د غلام قيمت له څلوېښتو درهمو څخه کم وي يُقْضَى لَهُ بِقِيمَتِهِ إِلَّا دِرْهَمًا نو د واپس راوستونکي [رادّ] لپاره به له يوه درهم څخه بغير د غلام په ټوله قيمت سره فيصله کيږي [مطلب دا چې رادّ ته به (٣٩) درهمه ورکول کيږي] قَالَ: وَهٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: لَهُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغه لپاره به څلوېښت درهمه وي لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِهَا ثَبَتَ بِالنَّصِّ ځکه چې د څلوېښتو درهمو تقدير په نص سره ثابت سوی دی فَلَا يُنْقَصُ

---

* القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٥٨). [القول الراجح ج:١، ص:٥٠٩]

عَنْهَا لهذا په هغه کي به کمي نه کيږي وَلِهٰذَا لَا يَجُوزُ الصُّلْحُ عَلَى الزِّيَادَةِ همدا وجه ده چي اد مالک او رادّ لپاره ا له څلوېښتو درهمو څخه پر زياتو صلح کول جائز نه دي بِخِلَافِ الصُّلْحِ عَلَى الْأَقَلِّ په خلاف پر کمو درهمو د صلح کولو لِأَنَّهُ حَطٌّ مِنْهُ ځکه چي دا د رادّ له طرفه کمول دي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْمَقْصُودَ حَمْلُ الْغَيْرِ عَلَى الرَّدِّ دامام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د جعل مقصود ا د غلام ا پر واپس راوستلو د بل چا آماده کول [هڅول] دي ايعني له جعل څخه مقصود د دې کار "ردّ" وطرف ته د خلکو تشويقول دي چي خلک هم پر دې کار آماده سي ا لِيُحْيَا مَالُ الْمَالِكِ د دې لپاره چي د مالک مال باقي پاته سي فَيَنْقُصُ دِرْهَمٌ لِيَسْلَمَ لَهُ شَيْءٌ نو يو درهم به کمول کيږي د دې لپاره چي مالک ته هم څه شی پاته سي تَحْقِيقًا لِلْفَائِدَةِ د فايدې ثابتولو لپاره وَأُمُّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرُ فِي هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْقِنِّ إِذَا كَانَ الرَّدُّ فِي حَيَاةِ الْمَوْلَى او أُمِ ولد او مدبر په دې حکم کي د خالص غلام په شير دي. په دې شرط چي "ردّ" (واپس راوستل) د غلام په ژوند کي وي لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْيَاءِ مِلْكِهِ ځکه چي په دې ردّ کي د مالک د ملکيت ژوندی کول [باقي ساتل] دي وَلَوْ رُدَّ بَعْدَ مَمَاتِهِ او که د مالک تر مرګ وروسته [مدبر يا اُم ولد] راوستل سي لَا جُعْلَ فِيهِمَا نو په دوی دواړو کي به جُعل نه وي لِأَنَّهُمَا يُعْتَقَانِ بِالْمَوْتِ ځکه چي دوی دواړه د مالک په مرګ سره آزاديږي بِخِلَافِ الْقِنِّ په خلاف د خالص غلام [کوم چي مُدبر او داسي نور نه وي] وَلَوْ كَانَ الرَّادُّ أَبَا الْمَوْلَى أَوِ ابْنَهُ وَهُوَ فِي عِيَالِهِ او که چيري واپس را ستونکی د مالک پلار يا د هغه زوی وي او هغه د همدې مالک له کورنۍ څخه وي أَوْ أَحَدَ الزَّوْجَيْنِ عَلَى الْآخَرِ يا له خاوند او ښځي څخه يو د بل لپاره د غلام راوستونکی وي فَلَا جُعْلَ نو [په دې صورت کي هم] جعل نسته لِأَنَّ هٰؤُلَاءِ يَتَبَرَّعُونَ بِالرَّدِّ عَادَةً ځکه چي دغه کسان عموماً په ردّ کي تبرّع کوي ايعني د احسان په توګه آبق غلام راولي [ وَلَا يَتَنَاوَلُهُمْ إِطْلَاقُ الْكِتَابِ او د کتاب اطلاق دوی ته شامل نه دی.

**اللغات:** ﴿حطّ﴾ د نصر مصدر دی: کښته کېدل، کمول. ﴿ردّ﴾ دا هم د نصر مصدر دی: واپس کول. مراد ځني د آبق غلام راوستل دی. ﴿قِن﴾ خالص غلام (کوم چي مدبر او داسي نور نه وي). ﴿لِيَسْلَم﴾ د سمع مضارع ده. د دې په صله کي چي "لَهُ" راسي نو د "مخصوص کېدلو" (خاص کېدلو) په معنیٰ سره راځي. يعني يو درهم به کمول کيږي د دې لپاره چي د مالک لپاره هم څه شی (يو درهم) مخصوص سي.

**تشريح : مسئله** : دا ده که چيري د واپس راوستل سوي غلام قيمت تر څلويښتو درهمو کم وي نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به رادّ (واپس راوستونکي) تـه (۳۹) درهمـه ورکـول کيـږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به پوره څلويښت درهمه ورکول کيږي، ځکه چي د أَرْبَعُوْن تقدير پـه نص سره ثابت دی، لهذا په دې کي به نه کمي کيږي او نه به زياتوب کيږي، اوس که مالک او رادّ له څلويښتو درهمو څخه پر زياتو صلح وکړي نو زياتوب به معتبر نه وي، ها! له دې څخه پر کمو صلح کول جائز دي. ځکه چي دا صاحبُ الحق يعني د رادّ له طرفه حطّ او کمي ده او هغه په خپله د خپل حق پر ساقطولو راضي دی.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د جُعل ورکول مقصد دا دی چي نور خلک هـم داسي کار ته رغبت وکړي د دې لپاره چي د أموالو حفاظت وسي. نو ځکه غوره همدا ده چي له څلويښتو څخه يو درهـم کـم کـړی سي د دې لپـاره چي مالـک تـه هـم څـه پاتـه سي او پـه دواړو طرفونو کي شفقت او مصلحت ثابت سي.

**وأما أم الولد إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که أمِ ولد يا مدبر غلام تښتېدلی وي او بيا هغه د مالک په ژوند کي واپس راوستل سي، نو هغوی به د قِن او غلام په حکم کي وي، ځکه چي په دې کي د مالک د ملکيت احياء ده، ليکن که د مالک تر مرګ وروسته هغوی واپس راوستل سي نو په هغوی کي به جُعل نه وي او راوستونکي ته به جُعل حقُ الزحمه نه ورکول کيږي، ځکه چي د مالک په مرګ سره هغوی دواړه آزاديږي او پر مملوک د مالک ملکيت نه پاتيږي. او که د مالک پلار يا زوی هغه راوستی وي او زوی د مالک په ترييه کي وي يا له خاوند او ښځي څخه يوه د بل آبق غلام راوستی وي، نو په دوی کي به هيڅا ته هم ته جُعل نه ورکول کيږي، ځکه چي عموماً دا خلک دا احسان په توګه دا کار کوي، او د عوض او بدلې پروا نه کوي، نو په دې وجه به د "عليه جُعله أربعون... إلخ" په اطلاق کي دوی شامل او داخل نه وي.

## د واپس راوستونکي شرعي حيثيت

قَالَ: وَإِنْ أَبَقَ مِنَ الَّذِي رَدَّهُ فرمايي: که غلام له واپس راوستونکي [رادّ] څخه وتښتي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ ضمان نسته لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چي آبق غلام د هغه په قبضه کي امانت دی لٰكِنَّ هٰذَا إِذَا أَشْهَدَ ليکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي رادّ ګواه جوړ کړي وي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي اللُّقَطَةِ او په کتابُ اللقطة کي موږ د دې بيان وکړی قَالَ: وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ أَنَّهُ لَا شَيْءَ لَهُ وَهُوَ صَحِيحٌ أَيْضًا صاحب د هدايې فرمايي: چي د قدوري په بعضي نسخو کي چي دا ذکر سوي دي

چي د راد لپاره به هيڅ شی نه وي [يعني راد ته به جُعل نه ورکول کيږي] دا هم صحيح دي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَائِعِ مِنَ الْمَالِكِ ځکه چي هغه پر مالک د خرڅونکي په معنیٰ سره دی [يعني ګواکي هغه پر مالک آبق غلام خرڅوي] وَلِهَذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَ الْآبِقَ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْجُعْلَ همدا وجه ده چي راد ته دا حق سته چي آبق [تر هغه وخته] راوګرځوي تر دې چي [له مالک څخه] جُعل واخلي بِمَنْزِلَةِ الْبَائِعِ بِحَبْسِ الْمَبِيعِ لِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ لکه بائع چي د ثمن اخيستلو لپاره مبيع را ګرځولای سي وَكَذَا إِذَا مَاتَ فِي يَدِهِ او همدارنګه که غلام د راد په قبضه کي مړ سي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو هم پر هغه هيڅ ضمان نسته لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی قَالَ: وَلَوْ أَعْتَقَهُ الْمَوْلَى كَمَا لَقِيَهُ فرمايي: که چيري مالک آبق غلام آزاد کړي څرنګه چي هغه ووينی [يعني که دآبق د ليدلو په وخت کي سمدستي مالک هغه زاد کړي] صَارَ قَابِضًا بِالْإِعْتَاقِ نو د آزادولو په وجه به هغه قبضه کونکی شمارل کيږي كَمَا فِي الْعَبْدِ الْمُشْتَرَى لکه په رانيول سوي غلام کي [چي هم دغه حکم دی] وَكَذَا إِذَا بَاعَهُ مِنَ الرَّادِّ او همدارنګه کله چي مالک پر راد آبق غلام خرڅ کړي لِسَلَامَةِ الْبَدَلِ لَهُ ځکه چي د هغه لپاره بدل محفوظ [او مخصوص] دی وَالرَّدُّ وَإِنْ كَانَ لَهُ حُكْمُ الْبَيْعِ لَكِنَّهُ بَيْعٌ مِنْ وَجْهٍ او [د غلام] واپس راوستل که څه هم د بيع په حکم کي دي ليکن دا [فقط] په يوه اعتبار سره بيع ده فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ النَّهْيِ الْوَارِدِ عَنْ بَيْعِ مَا لَمْ يُقْبَضْ لهذا دا به تر هغه نهي لاندي نه داخليږي کوم چي تر قبضې مخکي د يو شي د خرڅولو په هکله وارد سوي دي [يعني په حديث کي ذکر سوي دي چي قبل القبض مبيع خرڅول جائز نه دي، ليکن دلته په دې وجه د مالک لپاره دا جائز چي "دآبق غلام تر قبضه کولو مخکي هغه پر راد خرڅ کړي" چي دا معامله من کل وجه بيع نه ده، بلکې من وجه بيع ده] فَجَازَ نو ځکه به دا [معامله] جائز وي.

**اللغات**: ﴿يستوفی﴾ د استفعال مضارع ده: خپل حق اخيستل، حاصلول. ﴿لقيه﴾ د سمع ماضي ده: ملاقات کول، ليدل، استقبال کول. ﴿رادّ﴾ د نصر اسم فاعل دی: واپس کونکی (واپس راوستونکی)، مراد څني د غلام راوستونکی دی.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو آسانه دی چي آبق غلام د راد په قبضه کي امانت دی او که په امانت کي تعدیٰ نه وسي نو د هغه د هلاکېدلو په صورت کي پر مودَع ضمان نه واجبيږي. لهذا که چيري آبق غلام له راد څخه وتښتي يا د هغه په بقضه کي مړ سي نو پر هغه به ضمان نه واجبيږي. په دې شرط

چي راډ به هغه غلام د نيولو په وخت کي پر دې خبره ګواه جوړ کړي وي چي زه تا مالک ته د واپس بېولو په نيت سره نيسم. او پر نيولو او راوستلو چي کوم خرڅ سوی وي هغه به هم راډ ته نه ورکول کيږي (کله چي اله راډ څخه غلام ولاړ سي). ځکه چي راډ د بائع په معنیٰ سره دی (يعني ګواکي هغه پر مالک آبق غلام خرڅوي) او بائع چي تر څو مشتري ته مبيع ور کړې نه وي تر هغه وخته پوري د ثمن نه مستحق کيږي همداسي راډ چي تر څو مالک ته آبق غلام حواله نه کړي نو هغه به هم د جعل مستحق نه وي.

**قال إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که راډ مالک ته غلام راولي او مالک يې تر قبضه کولو مخکي آزاد کړي نو په دې إعتاق سره به مالک قابض شمارل کيږي او پر هغه به د راډ جُعل واجب وي لکه څرنګه چي مشتري يو غلام رانيسي او تر قبضې مخکي يې آزاد کړي نو د إعتاق په وجه به هغه هم قابض شمارل کيږي او پر هغه به د دې غلام ثمن واجب وي. او که چيري مالک هغه غلام پر راډ خرڅ کړي نو هم جائز دي. ځکه راډ چي د کوم جُعل مستحق دی هغه د مالک سره دی لهذا هغه به ثمن ګرځول کيږي او بيع به صحيح وي. او رد (واپس راوستل) که څه هم د بيع په معنیٰ سره دی خو څرنګه چي دا من وجه د بيع په معنیٰ سره دی نو په دې وجه له قبل القبض څخه چي د بيع کوم ممانعت وارد سوی دی په هغه ممانعت کي به دا صورت او معامله داخله نه وي. ځکه چي د ممانعت تعلق د هغه معاملې سره دی کوم چي من کل وجه د بيع په معنیٰ سره وي.

## د غلام نيولو په وخت کي د ګواه جوړلو بيان

قَالَ: وَيَنْبَغِي إِذَا أَخَذَهُ أَنْ يُشْهِدَ أَنَّهُ يَأْخُذُهُ لِيَرُدَّهُ فرمايي: چي کله يو سړی آبق غلام ونيسي نو هغه ته پکار دي چي پر دې خبره ګواه جوړ کړي چي هغه دا غلام [مالک ته] د واپس کولو [بېولو] لپاره نيسي فَالْإِشْهَادُ حَتْمٌ فِيهِ عَلَيْهِ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ [1] نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د نيونکي [آخذ] لپاره إشهاد لازم [واجب] دی [لیکن د امام ابو يوسف او ائمه ثلاثه وو په نيز واجب نه دی] حَتَّى لَوْ رَدَّهُ مَنْ لَمْ يُشْهِدْ وَقْتَ الْأَخْذِ تر دې که يو داسی سړی غلام [مالک ته] واپس کړي چي هغه د نيولو په وخت کي ګواه جوړ کړی نه وي لَا جُعْلَ لَهُ عِنْدَهُمَا نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه لپاره جعل [حق الزحمه] نسته لِأَنَّ تَرْكَ الْإِشْهَادِ أَمَارَةٌ أَنَّهُ أَخَذَهُ لِنَفْسِهِ ځکه چي د إشهاد پرېښودل د دې

[1] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في البحر الرائق (ج:٥، ص:١٦٢). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٠]

خبري نښه او دليل دی چي هغه د خپل ځان لپاره غلام نيولی دی وَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَاهُ مِنَ الْآخِذِ أَوِ اتَّهَبَهُ أَوْ وَرِثَهُ فَرَدَّهُ عَلَى مَوْلَاهُ او داسي سو لکه راد چي له نيونکي څخه دا غلام رانيسي يا يې په هبه يا وارثت کي حاصل کړي بيا يې مالک ته واپس کړي لَا جُعْلَ لَهُ نو په دې صورت کي به هم د هغه لپاره جُعل نه وي لِأَنَّهُ رَدَّهُ لِنَفْسِهِ ځکه چي هغه د خپل ځان لپاره واپس کړی دی مطلب دا چي هغه د دې لپاره مالک ته غلام راوستی دی چي خپله يې ځني واخلي إِلَّا إِذَا أَشْهَدَ أَنَّهُ اشْتَرَاهُ لِيَرُدَّهُ خو دا چي هغه راد مشتري پر دې خبره گواه جوړ کړي چي هغه مالک ته د واپس کولو لپاره دا غلام رانيولی دی فَيَكُونُ لَهُ الْجُعْلُ نو د هغه لپاره به هم جُعل وي وَهُوَ مُتَبَرِّعٌ فِي أَدَاءِ الثَّمَنِ او هغه به د ثمن په اداء کولو کي احسان کونکی وي.

**اللغات:** ﴿يُشهِد﴾ د افعال مضارع ده. أَشْهَدَ يُشْهِدُ إِشْهَادًا: يو څوک پر خپله خبره گواه جوړول. گواه کول. ﴿أمارة﴾ علامت، نښه (نښاني). ﴿اتهبه﴾ د افتعال ماضي ده: د هبې او تحفې په توگه حاصلول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي که د غلام واپس راوستونکی (راد) د نيولو په وخت کي پر دې خبره گواه جوړ نه کړي چي زه غلام مالک ته د بيولو او هغه ته د ورکولو لپاره نيسم. نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به هغه د جُعل مستحق نه وي، ځکه چي "ترکُ الإشهاد" د دې خبري دليل دی چي د هغه په زړه کي غلا پټه ده او هغه د خپل ځان لپاره غلام نيسي. لکه څرنگه چي يو سړی له آخذ څخه دا غلام رانيسي يا يې په هبه او ميراث کي ترلاسه کړي او بيا يې مالک ته واپس راولي نو هغه هم د جُعل مستحق نه دی، ځکه چي دغه سړی مالک ته د ورکولو لپاره غلام راوستلی او واپس کړی نه دی بلکي يا خو له مالک څخه يې د اخيستلو لپاره راوستی دی يا د دې لپاره يې راوستی دی چي غلام په رانيولو سره چي هغه کوم ضمان واجب سوی دی د هغه د ليري کولو لپاره مالک ته دا خبره وربښکاره کوي چي وروره! ستا غلام ما واخيستی. ها! که چيري د رانيولو په وخت کي دا سړی هم غلام يا بل څوک پر دې خبره گواه جوړ کړي چي زه مالک ته د ورکولو لپاره دا غلام رانيسم. نو بيا به هغه هم د غلام واپس کولو په وخت کي د جُعل مستحق وي. لېکن په رانيولو کي چي هغه کوم ثمن ورکړی وي د هغه مستحق به نه وي او د هغه ثمن په هکله به دئ متبرع او مُحسن گرځول کيږي.

## د واپس راوستونكي اجرت به پر چا وي؟

وَإِنْ كَانَ الْآبِقُ رَهْنًا او كه آبق غلام رهن وي فَالْجُعْلُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نو جُعل به پر مُرتهن وي لِأَنَّهُ أَحْيَا مَالِيَّتَهُ بِالرَّدِّ ځكه چي راډ په واپس كولو سره د مرتهن ماليت [او ملكيت] ژوندى كړى [له ماليت څخه هغه مال مراد دى كوم چي مرتهن و راهن ته په قرض وركړى وي] وَهِيَ حَقُّهُ او دا ماليت د مرتهن حق دى إِذِ الِاسْتِيفَاءُ مِنْهَا ځكه چي له همدې ماليت څخه به د مرتهن حق وركول كيږي وَالْجُعْلُ بِمُقَابَلَةِ إِحْيَاءِ الْمَالِيَّةِ او جعل د ماليت دژوندي كولو [باقي ساتلو] په مقابله كي وي فَيَكُونُ عَلَيْهِ لهذا دا جُعل به پر مرتهن وي وَالرَّدُّ فِي حَيَاةِ الرَّاهِنِ وَبَعْدَهُ سَوَاءٌ او د راهن په ژوند كي او تر هغه وروسته [په دواړو وختو كي] واپس كول برابر دي لِأَنَّ الرَّهْنَ لَا يَبْطُلُ بِالْمَوْتِ ځكه چي د راهن په مرگ سره رهن نه باطليږي وَهَذَا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ أَوْ أَقَلَّ مِنْهُ دا [حكم] په هغه صورت كي دى كله چي د مرهون غلام قيمت د قرض په شير يا تر هغه كم وي فَإِنْ كَانَتْ أَكْثَرَ [ليكن] كه د هغه قيمت له قرض څخه زيات وي فَبِقَدْرِ الدَّيْنِ عَلَيْهِ وَالْبَاقِي عَلَى الرَّاهِنِ نو د قرض په اندازه جُعل به پر مرتهن وي او پاته جُعل به پر راهن وي لِأَنَّ حَقَّهُ بِالْقَدْرِ الْمَضْمُونِ ځكه چي د مرتهن حق په مضمونه اندازه سره وي [مطلب دا چي د مرتهن حق د قرض په اندازه وي] فَصَارَ كَثَمَنِ الدَّوَاءِ وَتَخْلِيصُهُ عَنِ الْجِنَايَةِ بِالْفِدَاءِ نو داسي سو لكه د دواء [او علاج] قيمت او له جنايت څخه د غلام خلاصولو فديه [جرمانه] وَإِنْ كَانَ مَدْيُونًا فَعَلَى الْمَوْلَى إِنِ اخْتَارَ قَضَاءَ الدَّيْنِ او كه هغه غلام مديون وي نو جُعل به پر مالک وي [په دې شرط] كه چيري مالک د قرض اداء كول اختيار كړي [او د قرض په اداء كولو راضي سي] وَإِنْ بِيعَ بُدِئَ بِالْجُعْلِ وَالْبَاقِي لِلْغُرَمَاءِ او كه چيري غلام خرڅ كړى سي نو اول به جُعل اداء كيږي او پاته ثمن به د قرض غوښتونكو لپاره وي لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ الْمِلْكِ ځكه چي جُعل د ملكيت خرچه [صرفه] ده وَالْمِلْكُ فِيهِ كَالْمَوْقُوفِ او په دې غلام كي ملكيت د موقوف په شير دى [يعني ملكيت پكښي موقوف دى] فَتَجِبُ عَلَى مَنْ يَسْتَقِرُّ لَهُ لهذا د چا لپاره چي ملكيت ثابت سي جعل به [هم] پر هغه واجب وي وَإِنْ كَانَ جَانِيًا او كه آبق غلام جنايتكار وي [يعني جرم او جنايت

وکړي، مثلاً قتلِ خطاء وکړي ا فَعَلَى الْمَوْلَى إِنِ اخْتَارَ الْفِدَاءَ نو جُعل به پر مالک وي که چیري هغه فديه ورکول اختيار کړي لِعَوْدِ الْمَنْفَعَةِ إِلَيْهِ ځکه چې د "ردّ" منفعت د هغه وطرف ته راجع کیږي وَعَلَى الْأَوْلِيَاءِ إِنِ اخْتَارَ الدَّفْعَ او که چیري مالک په جنايت کي د غلام ورکول اختيار کړي نو جُعل به اد مقتول] پر اولياء وي لِعَوْدِهَا إِلَيْهِمْ ځکه چې اوس منفعت د هغو وطرف ته راجع کیږي وَإِنْ كَانَ مَوْهُوبًا او که آبق هبه کړی سوي وي فَعَلَى الْمَوْهُوبِ لَهُ نو چا ته چې آبق هبه کړی سوي وي جُعل به پر هغه وي وَإِنْ رَجَعَ الْوَاهِبُ فِي هِبَتِهِ بَعْدَ الرَّدِّ که څه هم تر "ردّ" وروسته هبه کونکي خپله هبه واپس اخیستې وي لِأَنَّ الْمَنْفَعَةَ لِلْوَاهِبِ مَا حَصَلَتْ بِالرَّدِّ بَلْ بِتَرْكِ الْمَوْهُوبِ لَهُ التَّصَرُّفَ فِيهِ بَعْدَ الرَّدِّ ځکه چې په "ردّ" سره واهب ته هیڅ فايده حاصله نه سوه بلکي د هغه فايده به هغه وخت وي کله چې موهوب لهُ تر "ردّ" وروسته په هغه کي تصرّف پريږدي وَإِنْ كَانَ لِصَبِيٍّ فَالْجُعْلُ فِي مَالِهِ او که آبق غلام د يو بچي وي نو جُعل به د هغه په مال کي وي لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ مِلْكِهِ ځکه چې جُعل د هغه د ملکيت خرچ دی وَإِنْ رَدَّهُ وَصِيُّهُ فَلَا جُعْلَ لَهُ او که د بچي وصي هغه [آبق غلام] واپس کړي [راولي] نو د وصي لپاره به جُعل نه وي لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِي يَتَوَلَّى الرَّدَّ فِيهِ ځکه چې د غلام واپس کول [رواستل] فقط د وصي ذمه واري ده.

**اللغات:** ﴿مرتهن﴾ چا ته چې رهن اېښول سوي وي، مثلاً که زيد پنځه سوه درهمه له خالد څخه په قرض واخلي او زيد د قرض په بدله کي هغه ته غلام په رهن (گروي) کي کښېږدي، نو زيد راهن سو او عمر مرتهن سو، او غلام رهن او مرهون سو. ﴿جُعل﴾ حقُ الزحمه، معاوضه، اُجرت. ﴿الردّ﴾ واپس کول، مراد ځني د آبق غلام راوستل دي. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: حق اخيستل، حاصلول (ترلاسه کول). ﴿تخليص﴾ د تفعيل مصدر دی: خلاصول، نجات ورکول. ﴿جناية﴾ جرم. ﴿فداء﴾ فديه. تاوان. ضمان. جرمانه. ﴿مؤنة﴾ مشقت. خرچه (خرچ، صرفه).

**تشريح:** په دې عبارت کي څو مسئلې بيان سوي دي او ټولي آسانه دي. مثلاً که آبق غلام مرهون وي نو د هغه د واپس راوستونکي جُعل به پر مرتهن وي، ځکه چې د دې غلام سره د مرتهن حق تړلی دی او دا غلام د هغه د مال حق دی لهذا جُعل به هم پر هغه وي، برابره ده غلام د راهن په ژوند کي واپس کړی سي يا د هغه تر مرگ وروسته واپس کړی سي په هر صورت کي به د غلام جُعل پر مرتهن وي، په دې شرط چې د غلام قيمت به د مرتهن د قرض سره برابر وي يا له هغه څخه به کم وي، لېکن که د

هغه قيمت د مرتهن له قرض ځخه زيات وي مثلاً قرض پنځه سوه درهمه وي او د غلام قيمت شپږ سوه درهمه وي نو د قرض په اندازه جُعل به پر مرتهن وي او پاته جعل به پر راهن وي. ځکه چي د مرتهن حق په مرهون كي د هغه د حق او حصې په اندازه مضمون دی لهذا داسي سو لكه مرهون غلام چي د مرتهن سره مريض سي يا غلام يو جنايت او جرم وكړي نو د غلام په علاج كي يا له جنايت ځخه د هغه په خلاصولو كي چي ځومره خرڅه وسي نو هغه به هم پر مرتهن د خپل قرض او حصې په اندازه واجب وي او باقي به پر راهن واجب وي. همداسي به دلته هم جُعل پر مرتهن فقط د خپلي حصې په اندازه واجب وي.

**وإن كان مديونا الخ:** فرمايي چي كه آبق غلام مديون (مقروض) وي او مالک د هغه قرض اداء كول وغواړي نو پر مالک به جعل واجب وي او كه مالک د قرض له اداء كولو ځخه انكار وكړي او د غلام خرڅولو نوبت راسي نو د هغه له ثمن ځخه به مخكي جُعل اداء كيږي بيا به پاته ثمن غرماؤ (قرض غوښتونكو) ته وركول كيږي ځكه چي جُعل د ملكيت صرفه او خرڅه ده او د دې غلام ملكيت تر اوسه موقوف دی د مالک هم كېدای سي او كه مالک د هغه قرض وركول نه غواړي نو د غرماؤ هم كېدای سي لهذا چا ته چي ملكيت حاصل سي جُعل به هم پر هغه وي.

او كه آبق غلام جنايت وكړي او مالک د هغه فديه وركول وغواړي نو پر مالک به جُعل وي او كه مالک په جنايت كي غلام وركول وغواړي نو د مقتول پر اولياؤ به جُعل وي. ځكه چي په اول صورت كي به د غلام منفعت مالک ته حاصل وي او په دويم صورت كي به د هغه منفعت د مقتول اولياؤ ته حاصل وي. همدارنګه كه آبق غلام يو چا ته هبه كړی سوی وي نو د هغه د راد جُعل به پر واهب نه وي بلكي پر موهوب لهٗ به وي كه څه هم له ردّ (واپس كولو) ځخه وروسته واهب خپله هبه واپس واخلي، ځكه چي د ردّ په وخت كي دا غلام د موهوب لهٗ په قبضه كي وو او په ردّ سره واهب ته هيڅ فايده حاصله نه سوه. نو ګواكي دا جُعل د موهوب لهٗ د ملكيت خرڅه سوه فلذا يجب عليه.

كه چيري د آبق غلام مالک يو نابالغه بچی وي نو د هغه بچي په مال كي به جُعل وي. ځكه چي داد هغه د ملكيت صرفه او خرڅه ده. ها! كه چيري راد د بچي وصي وي نو وصي به د هيڅ شي مستحق نه وي. ځكه چي د دې غلام نيول او بچي ته حواله كول د وصي ذمي واري ده. لهذا وصي د دې غلام په واپس كولو سره خپله فريضه اداء كړه نو ريې هيڅ مېرانه كړې نه ده چي انعام وركول سي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# كِتَابُ الْمَفْقُودِ

(دا) كتاب د مفقود (د احكامو په بيان كې) دى

**تشريح**: "مفقود" هغه سړي ته وايي چې د ژوند او مرګ هيڅ پته يې نه وي.

## د مفقودُ الخبر احكام

**إِذَا غَابَ الرَّجُلُ فَلَمْ يُعْرَفْ لَهُ مَوْضِعٌ وَلَا يُعْلَمُ أَحَيٌّ هُوَ أَمْ مَيِّتٌ** كه يو سړى غائب سي او د هغه هيڅ ټكانه معلومه نه وي او دا (هم) معلومه نه وي چې آيا هغه ژوندى دى يا مړ دى!؟ **نَصَبَ الْقَاضِي مَنْ يَحْفَظُ مَالَهُ وَيَقُومُ عَلَيْهِ وَيَسْتَوْفِي حَقَّهُ** نو قاضي دې يو سړى متعين كړي چې هغه د ده د مال حفاظت وكړي او پر هغه نګراني وكړي او د ده حق (له خلكو څخه) واخلي لِأَنَّ الْقَاضِيَ نُصِبَ نَاظِرًا لِكُلِّ عَاجِزٍ عَنِ النَّظَرِ لِنَفْسِهِ ځكه چې قاضي د هر هغه كس لپاره نګران (محافظ) مقرر سوى دى كوم چې د خپل ځان (او خپلو ضرورياتو) له نګرانۍ څخه عاجز وي وَالْمَفْقُودُ بِهَذِهِ الصِّفَةِ او مفقود هم په دې توګه دى وَصَارَ كَالصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او مفقود د بچي او لېوني په حكم كې سو وَفِي نَصْبِ الْحَافِظِ لِمَالِهِ وَالْقَائِمِ عَلَيْهِ نَظَرٌ لَهُ او د مفقود د مال لپاره د ساتونكي (محافظ) او نګران په مقرر كولو كې پر هغه شفقت دى وَقَوْلُهُ يَسْتَوْفِي حَقَّهُ لِإِخْفَاءِ أَنَّهُ يَقْبِضُ غَلَّاتِهِ وَالدَّيْنَ الَّذِي أَقَرَّ بِهِ غَرِيمٌ مِنْ غُرَمَائِهِ او د ماتن دا قول "يستوفي حقه" د دې خبرې د وضاحت لپاره دى چې هغه نګران دې د مفقود پر غلو قبضه كوي او پر هغه قرض دې قبضه كوي چې د مفقود له قرض اخيستونكو (پور وړو) څخه يو د هغه اقرار وكړي لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ ځكه چې دا هم په حفاظت كې داخل دي وَيُخَاصِمُ فِي دَيْنٍ وَجَبَ بِعَقْدِهِ او دا نګران به په داسې قرض كې هم مخاصمت (دعوى) كوي كوم چې په خپله د ده په عقد سره واجب سوي وي لِأَنَّهُ أَصِيلٌ فِي حُقُوقِهِ ځكه چې نګران په خپلو حقوقو كې أصل ذمه وار وي وَلَا يُخَاصِمُ فِي الَّذِي تَوَلَّاهُ الْمَفْقُودُ او په هغه قرض كې مخاصمت نه سي كولاى چې مفقود د هغه ذمه

واري اخيستې وه [يعني چي مفقود د هغه ذمه وار وي] وَلَا فِي نَصِيبٍ لَهُ فِي عَقَارٍ أَوْ عُرُوضٍ فِي يَدِ رَجُلٍ او نه په جايداد کي د مفقود د حصې په هکله او د داسي سامان په هکله مخاصمت کولای سي کوم چي د يو سړي په قبضه کي وي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالِكٍ وَلَا نَائِبٍ عَنْهُ ځکه چي نګران نه خو د هغه مالک دی او نه د مفقود له طرفه نائب دی إِنَّمَا هُوَ وَكِيلٌ بِالْقَبْضِ مِنْ جِهَةِ الْقَاضِي هغه خو د قاضي له طرفه وکيل بالقبض دی وَأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْخُصُومَةَ بِلَا خِلَافٍ او د قاضي وکيل بالقبض بيله اختلافه د خصومت [دعویٰ کولو] ملکيت نه لري إِنَّمَا الْخِلَافُ فِي الْوَكِيلِ بِالْقَبْضِ مِنْ جِهَةِ الْمَالِكِ فِي الدَّيْنِ اختلاف خو د هغه وکيل په باره کي دی کوم چي د مالک له طرفه پر قرض د قبضه کولو وکيل وي وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ يَتَضَمَّنُ الْحُكْمَ بِهِ قَضَاءً عَلَى الْغَائِبِ او کله چي معامله داسي ده نو د دې حکم به قضاء على الغائب ته شامل وي وَأَنَّهُ لَا يَجُوزُ حالانکي قضاء على الغائب جائز نه ده إِلَّا إِذَا رَآهُ الْقَاضِي وَقَضَى بِهِ خو دا چي که قاضي هغه مناسب وګڼي او د هغه فيصله وکړي [نو صحيح دي] لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ ځکه چي دا معامله مجتهد فيه ده [مطلب دا چي په دې کي قاضي په خپل اجتهاد سره فيصله کولای سي] ثُمَّ مَا كَانَ يُخَافُ عَلَيْهِ الْفَسَادَ بيا هغه شی چي د هغه د خرابېدلو بېره وي يَبِيعُهُ الْقَاضِي نو قاضي به هغه خرڅوي لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ عَلَيْهِ حِفْظُ صُورَتِهِ ځکه چي صورتاً پر هغه د دې حفاظت [ساتل] ناممکن دي فَيَنْظُرُ لَهُ بِحِفْظِ الْمَعْنَى لهذا معناً به د دې حفاظت کوي [او معناً حفاظت دا دی چي دا خرڅ کړی سي او ثمن يې محفوظ کړی سي] وَلَا يَبِيعُ مَا لَا يُخَافُ عَلَيْهِ الْفَسَادُ فِي نَفَقَةٍ وَلَا غَيْرِهَا او د کوم شي د خرابېدلو بېره چي نه وي هغه به په نفقه او داسي نورو کي نه خرڅوي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الْغَائِبِ إِلَّا فِي حِفْظِ مَالِهِ ځکه چي قاضي ته پر غائب فقط د هغه د مال ساتلو [حفاظت کولو] په هکله ولايت حاصل دی فَلَا يَسُوغُ لَهُ تَرْكُ حِفْظِ الصُّورَةِ لهذا [په دې صورت کي به] د هغه لپاره د صورتاً حفاظت پرېښوول جائز نه وي وَهُوَ مُمْكِنٌ [ځکه چي] صورتاً حفاظت کول ممکن دي

**اللغات**: ﴿نصب﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب او نصر دواړو څخه راځي. او له تفعيل څخه هم کېدای سي: مقرر کول، متعيّنول، ټاکل. ﴿يقوم عليه﴾ د نصر مضارع ده. د دې باب په صله کي چي "عَلَى" راسي نو د "نګراني او نګهباني کولو" او "پام کولو" په معنیٰ سره راځي. ﴿ناظر﴾ د مصلحت

رعایت کونکی، ﴿غلّات﴾ جمع د غلّةٌ ده: غله، پیداوار، له فصل څخه ترلاسه کړی سوې خوراکه، لکه غنم او داسي نور. ﴿إخفاء﴾ د افعال مصدر دی: پټول، د "سرپوښ لیري کولو" او "پردې لیري کولو" په معنیٰ سره هم راځي (مصباح اللغات). ﴿غريم﴾ قرض اخیستونکی (قرضدا) پور وړی. ﴿يخاصم﴾ د مفاعلې مضارع ده. خَاصَمَ يُخَاصِمُ مُخَاصَمَةً: جنګ او جګړه کول. دعویٰ کول (د قاضي مخته یو معامله پېشول او خپل حق غوښتل)، ﴿لا يسوغ﴾ د نصر له باب څخه د نفي صیغه ده: ګنجائش کېدل، جائز کېدل. (أحسن الهداية)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي هیڅ درک او ټکانه معلومه نه وي او د هغه د ژوند او مرګ هیڅ پته نه وي نو قاضي دي د داسي مفقود (غائب) د مال د حفاظت او ساتنې لپاره یو نګران (ساتونکی) مقرر کړی چي هغه به د مفقود د مال حفاظت کوي او د هغه حقوق به له خلکو څخه اخلي لکه څرنګه چي قاضي د کوچني (صغیر) او لېوني په مال کي داسي محافظ او نګران متعین کوي. دا نګران به د مفقود پر پیداوار (غلو) قبضه کوي او د مفقود له غرماؤ چي څوک پر خپل ځان د مفقود د قرض اقرر وکړي پر هغه قرض به قبضه کوي. او د ده په عقد او معامله سره چي کوم قرض واجب سي د هغه په هکله خو دئ (نګران) مخاصمت کولای سي، لېکن د مفقود په عقد او معامله سره چي کوم قرض واجب سوی وي همدارنګه د مفقود د ځمکي او جایداد په هکله چي کومه معامله وي د هغه په هکله دئ مخاصمت نه سي کولای، ځکه چي د مخاصمت لپاره ملکیت یا نیابت ضروري دی او په محافظ او نګران کي دا دواړه شیان معدوم دي او نګران خو فقط د قاضي له طرفه وکیل بالقبض وي نو ځکه به هغه ته د دې حق نه وي. ځکه چي وکیل بالقبض من جهة المالک د مخاصمت مالک نه وي او که چیري مونږ هغه د مخاصمت مالک وګرځوو نو دا به قضاء علی الغائب وي او قضاء علی الغائب جائز نه ده. ها! که چیري قاضي په دې کي مصحلت ووینې نو دا حکم نافذولای سي ځکه چي په دې کي د اجتهاد ګنجائش سته.

**ثم ماكان إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که د مفقود په مال کي خرابېدونکي شیان مثلاً مېوه او داسي نور وي نو قاضي دي هغه خرڅ کړي او د هغوی ثمن دي وساتي. ځکه کله چي صورتاً د هغوی حفاظت ناممکن دی نو په ثمن ساتلو سره دي معناً د هغوی حفاظت وسي، لېکن د کومو شیانو د خرابېدلو ېره چي نه وي قاضي هغه نه سي خرڅولای، ځکه چي د هغه شیانو په باقي ساتلو کي شفقت او مصلحت دی او په خرڅولو کي یې هیڅ شفقت نسته.

## د مفقود کوم قريبان د نفقې حق لري؟

قَالَ: وَيُنْفِقُ عَلٰى زَوْجَتِهٖ وَأَوْلَادِهٖ مِنْ مَالِهٖ فرمايي: چې نګران [محافظ] به د مفقود له مال څخه د هغه د ښځې او بچيانو نفقه ورکوي وَلَيْسَ هٰذَا الْحُكْمُ مَقْصُوْرًا عَلَى الْأَوْلَادِ بَلْ يَعُمُّ جَمِيْعَ قَرَابَةِ الْوِلَادِ او دا حکم [فقط] پر بچيانو منحصر نه دی بلکې تمام ولادتي [پيدايښتي] قريبانو ته عام دی وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ مَنْ يَسْتَحِقُّ النَّفَقَةَ فِيْ مَالِهٖ حَالَ حَضْرَتِهٖ بِغَيْرِ قَضَاءِ الْقَاضِيْ او قاعده دا ده: چې هر هغه کس کوم چې د مفقود د موجود والي [حضور] په وخت کې د قاضي له قضاء څخه بغير د مفقود په مال کې د نفقې مستحق وي يُنْفِقُ عَلَيْهِ مِنْ مَالِهٖ عِنْدَ غَيْبَتِهٖ هغه ته به د مفقود په غائبوالي کې [هم] د مفقود له مال څخه نفقه ورکول کيږي لِأَنَّ الْقَضَاءَ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ إِعَانَةً ځکه چې په دې صورت کې به د قاضي فيصله فقط د مرستې [همکارۍ] کولو په توګه وي وَكُلُّ مَنْ لَا يَسْتَحِقُّهَا فِيْ حَضْرَتِهٖ إِلَّا بِالْقَضَاءِ او هر هغه کس کوم چې د مفقود په موجود والي کې د قاضي له قضاء څخه بغير د نفقې مستحق نه وي لَا يُنْفِقُ عَلَيْهِ مِنْ مَالِهٖ فِيْ غَيْبَتِهٖ نو دا نګران به هغه ته د مفقود په غائبوالي کې [هم] نفقه نه ورکوي لِأَنَّ النَّفَقَةَ حِيْنَئِذٍ تَجِبُ بِالْقَضَاءِ ځکه چې په دې وخت کې به نفقه د قاضي په قضاء [فيصلې] سره واجبيږي وَالْقَضَاءُ عَلَى الْغَائِبِ مُمْتَنِعٌ او پر غائب سړي [د قاضي] فيصله کول ممنوع دي فَمِنَ الْأَوَّلِ الْأَوْلَادُ الصِّغَارُ وَالْإِنَاثُ مِنَ الْكِبَارِ وَالزَّمْنٰى مِنَ الذُّكُوْرِ الْكِبَارِ له اول قسم څخه نابالغه بچيان دي، بالغې نجوني دي او بالغه شوتان [شلان] دي وَمِنَ الثَّانِي الْأَخُ وَالْأُخْتُ وَالْخَالُ وَالْخَالَةُ او له دويم قسم څخه ورور، خور، ماما او خاله دي وَقَوْلُهٗ مِنْ مَالِهٖ مُرَادُهُ الدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِيْرُ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله له دې قول "من ماله" څخه دراهم او دنانير مراد دي لِأَنَّ حَقَّهُمْ فِي الْمَطْعُوْمِ وَالْمَلْبُوْسِ ځکه چې د مستحقينو حق په خوراک او جامې کې دی فَإِذَا لَمْ يَكُنْ ذٰلِكَ فِيْ مَالِهٖ يُحْتَاجُ إِلَى الْقَضَاءِ بِالْقِيْمَةِ [لېکن] کله چې د مفقود په مال کې مطعوم او ملبوس نه وي نو د قيمت فيصلې کولو ته به ضرورت وي وَهِيَ النُّقُوْدُ او قيمت دوه نغد مالونه دي [يعني دراهم او دنانير] وَالتِّبْرُ بِمَنْزِلَتِهِمَا فِيْ هٰذَا الْحُكْمِ او د سرو او سپينو زرو ټوکړه انه جوړه کړې سوې سکه] په دې حکم کې د

دراهمو او دنانيرو په درجه کي ده لِأَنَّهُ يَصْلُحُ قِيمَةً كَالْمَضْرُوبِ ځکه چي د جوړي کړی سوي سکې په څير تبر هم قيمت جوړېدای سي وَهَذَا إِذَا كَانَتْ فِي يَدِ الْقَاضِي او دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي دا مال د قاضي په قبضه کي وي فَإِنْ كَانَتْ وَدِيعَةً أَوْ دَيْنًا لېکن که د مفقود مال امانت يا قرض وي [يعني د يو چا سره د امانت يا قرض په توګه موجود وي] يُنْفِقُ عَلَيْهِمْ مِنْهُمَا إِذَا كَانَ الْمُودَعُ وَالْمَدْيُونُ مُقِرَّيْنَ بِالدَّيْنِ وَالْوَدِيعَةِ وَالنِّكَاحِ وَالنَّسَبِ نو له هغه امانت او قرض څخه به د مفقود ښځي، بچيانو [او نورو] ته نفقه ورکول کيږي [په دې شرط] که چيري چيري مودَع او مقروض د امانت او قرض او د نکاح او نسب اقرار کونکي وي [يعني د امانت او قرض اقرار هم کوي او د دې اقرار هم کوي چي دا ښځه او بچيان د مفقود ښځه او بچيان دي] وَهَذَا إِذَا لَمْ يَكُونَا ظَاهِرَيْنِ عِنْدَ الْقَاضِي [لېکن] دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي امانت او قرض [او نکاح او نسب] د قاضي سره ښکاره نه وي [يعني قاضي ته د دې علم او خبر نه وي] فَإِنْ كَانَا ظَاهِرَيْنِ فَلَا حَاجَةَ إِلَى الْإِقْرَارِ او که چيري ښکار وي نو بيا د مودَع او مقروض اقرار ته هيڅ ضرورت نسته وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا ظَاهِرًا يُشْتَرَطُ الْإِقْرَارُ بِمَا لَيْسَ بِظَاهِرٍ او که په دوی کي يو ظاهر وي نو د غير ظاهر په هکله به اقرار شرط وي هَذَا هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح دي فَإِنْ دَفَعَ الْمُودَعُ بِنَفْسِهِ أَوْ مَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ بِغَيْرِ أَمْرِ الْقَاضِي نو که مودَع يا مقروض د قاضي له حکم څخه بغير هغو ته نفقه ورکړي يَضْمَنُ الْمُودَعُ وَلَا يَبْرَأُ الْمَدْيُونُ نو مودَع به ضامن کيږي او مقروض به له قرض څخه نه بري کيږي لِأَنَّهُ مَا أَدَّى إِلَى صَاحِبِ الْحَقِّ وَلَا إِلَى نَائِبِهِ ځکه چي هغه نه د حق خاوند [مفقود] ته قرض اداء کړی دی او نه يې د هغه نائب ته بِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ بِأَمْرِ الْقَاضِي په خلاف د هغه صورت کله چي [مودَع او مديون] د قاضي په حکم سره نفقه ورکړې وي لِأَنَّ الْقَاضِيَ نَائِبٌ عَنْهُ ځکه چي قاضي د مفقود نائب دی وَإِنْ كَانَ الْمُودَعُ وَالْمَدْيُونُ جَاحِدَيْنِ أَصْلًا أَوْ كَانَا جَاحِدَيْنِ الزَّوْجِيَّةَ وَالنَّسَبَ او که مودَع او مقروض د امانت او قرض منکر وي يا د زوجيت [نکاح] او نسب منکر وي لَمْ يَنْتَصِبْ أَحَدٌ مِنْ مُسْتَحِقِّي النَّفَقَةِ خَصْمًا فِي ذَلِكَ نو د نفقې له مستحقينو څخه هيڅوک هم په دې سلسله کي خصم [مدعي] کېدلای نه سي لِأَنَّ مَا يَدَّعِيهِ لِلْغَائِبِ لَمْ يَتَعَيَّنْ سَبَبًا

لِثُبُوْتِ حَقِّهٖ وَهُوَ النَّفَقَةُ ځکه دا خصم چي د غائب لپاره د کوم شي دعویٰ کوي هغه به د ده د حق يعني د نفقې د ثابتېدلو لپاره سبب نه وي لِأَنَّهَا كَمَا تَجِبُ فِي هٰذَا الْمَالِ ځکه څرنګه چي په دې مال [امانت او قرض] کي نفقه واجبېدای سي تَجِبُ فِي مَالٍ آخَرَ لِلْمَفْقُوْدِ همداسي د مفقود په بل مال کي هم واجبېدای سي.

**اللغات**: ﴿يُنفق﴾ د افعال مضارع ده: خرڅول، نفقه او خرڅه ورکول. ﴿مقصور﴾ منحصر، محدود. ﴿حضرة﴾ حضور، موجود والی (موجودګي). ﴿إعانة﴾ د افعال مصدر دی: مرسته او همکاري کول. امداد (مدد کول). ﴿ممتنع﴾ د افتعال اسم فاعل دی: ممنوع، ناممکن. ﴿زمنى﴾ زَمِن ته منسوب دی: شوټ او شل، معذوره. ﴿مطعوم﴾ د خوراک شی، د خوراک سامان. ﴿تِبْر﴾ خالص سره او سپين زره (د سرو او سپينو زرو ټوکړه، ټوټه). هغه سره او سپين زره چي تر اوسه سکّه ځني جوړه سوې نه وي. ﴿مضروب﴾ له سرو او سپينو زرو څخه جوړ کړی سوې سکّه چي د حکومت له طرفه مُهر پر وهل سوی وي، يعني دينار او درهم. ﴿جاحدين﴾ د فتح له باب څخه د جمع اسم فاعل صيغه ده. جَحَدَ يَجْحَدُ جَحْدًا وجُحُوْدًا: انکار کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم کسان د مفقود د موجود والي په وخت کي د قاضي له قضاء څخه بغير د ولادتي قرابت په وجه د هغه په مال کي د نفقې مستحق وي مثلاً د هغه نابالغه بچيان، بالغه نجوني او بالغه معذورين، دغه کسان به د مفقود په غائبوالي کي هم د هغه په مال کي د نفقې مستحق وي او د قاضي له طرفه متعين سوې نګران به دوی ته د مفقود له مال څخه نفقه ورکوي. او کوم کسان چي د مفقود د موجود والي په وخت کي د قاضي له قضاء څخه بغير د نفقې مستحق نه وي لکه ورور، خور، خاله، ماما او داسي نور، نو هغوی به د مفقود د غائبوالي په وخت کي هم د نفقې مستحق نه وي، ځکه که چيري قاضي هغو ته د نفقې ورکولو حکم وکړي نو دا به قضاء على الغائب وي، او قضاء على الغائب جائز نه ده.

په نفقه کې خوراک او جامې (کالي) داخل دي که چيري د مفقود په أموالو کي مطعوم او ملبوس وي نو صحيح ده يعني هغه به ورکول کيږي او که نه وي نو د هغوی قيمت يعني دراهم او دنانير به ورکول کيږي په دې شرط چي د مفقود دغه أموال د قاضي په قبضه کي وي او که چيري دا أموال ديو چا سره د امانت يا قرض په توګه وي او قاضي ته معلومه وي چي د مفقود أموال د فلانکي او فلانکي سره موجود دي نو له هغه أموالو څخه به مستحقينو ته نفقه ورکول کيږي او په دې صورت کي به د

مودَع او مدیون د اقرار ضرورت نه وي. ها! که چیرې قاضي ته معلومه نه وي چې د مفقود أموال د دوی سره موجود دي نو د دوی (مودَع او مدیون) اقرار به ضروري وي. نو که هغوی اقرار وکړي چې زموږ سره د مفقود مال سته او فلانۍ ښځه د هغه مابنه (زوجه) ده او دا د هغه بچیان دي نو له دې مال څخه به هغو ته نفقه ورکول کیږي، او که چیرې قاضي ته د دې دواړو یعني د مال او مستحقینو خبر نه وي نو د دې لپاره به هم د مودَع او مدیون اقرار ضروري وي او د دوی تر اقرار وروسته به فیصله کیږي.

فإن دفع المودَع إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مودَع یا مدیون د قاضي له حکم څخه بغیر د مفقود ښځې او بچیانو ته نفقه ورکړي نو مودَع به د هغومره مال ضامن وي او مدیون به له دین څخه بري نه وي؛ ځکه چې دوی خو نه صاحبُ الحق یعني مفقود ته خپل حق ورکړی دی او نه یې د هغه نائب ته ورکړی دی او ګواکې د بل په مال کې یې تصرّف کړی دی کوم چې د ضمان موجب دی. ها! که چیرې یې د قاضي په حکم سره ورکړی وي نو ضمان نه پرواجبیږي. ځکه چې د قاضي ولایت عام دی او هغه د مفقود نائب دی.

او که چیرې مودَع یا مدیون له أصل یعني له امانت او قرض څخه انکار کوي یا وایي چې دا ښځه او بچیان د مفقود نه دي، نو په دې کسانو کې هیڅوک هم د مودَع یا مدیون خصم کېدلای نه سي (یعني پر مودَع یا مدیون دعویٰ نه سي کولای)، ځکه که خصم جوړ سي او دعویٰ وکړي نو هغه به پر غائب د نفقې دعویٰ وکړي حالانکې دا دعویٰ معتبره نه ده. ځکه څرنګه چې په امانت او قرض کې نفقه واجب ده همداسې په نورو مالونو کې هم واجب ده او دا وجوب فقط په امانت او قرض کې منحصر نه دی لهذا قاضي به دغه کسانو (ښځې، بچیانو او داسې نورو) ته وایي چې د مفقود په کوم مال کې چې انکار نه وي تاسې له هغه څخه نفقه واخلئ! او دلته (په امانت او قرض کې) انکار او جنجال دی نو ځکه دلته نفقه پرېږدئ!.

## د مفقود د ښځې احکام

قَالَ: وَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ فرمایي: چې د مفقود او د هغه د ښځې په مینځ کې به تفریق نه کیږي وَقَالَ مَالِكٌ: إِذَا مَضَى أَرْبَعُ سِنِينَ يُفَرِّقُ الْقَاضِي بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چې کله څلور کاله تېر سي نو قاضي دي د دوی په مینځ کې تفریق وکړي وَتَعْتَدُّ عِدَّةَ الْوَفَاةِ ثُمَّ تَتَزَوَّجُ مَنْ شَاءَتْ او ښځه دي له تفریق وروسته د خاوند د وفات عدت تېر کړي بیا چې د چا سره وغواړي د هغه سره دي نکاح وکړي لِأَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هَكَذَا قَضَى فِي الَّذِي اسْتَهْوَاهُ الْجِنُّ بِالْمَدِينَةِ ځکه په مدینه منوره کې چې کوم کس پېریانو پورته کړی وو د هغه په هکله حضرت عمر رضي الله عنه همدغسې فیصله وکړه وَكَفَى بِهِ إِمَامًا او ازموږ لپاره د هغه پیشوا کېدل کافي دي وَلِأَنَّهُ مَنَعَ حَقَّهَا بِالْغَيْبَةِ او ځکه چې مفقود په غائبېدلو سره د ښځې حق منع کړی فَيُفَرِّقُ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا بَعْدَ مُضِيِّ

مُدَّةٍ لهذا تر مودت تېرېدلو وروسته به قاضي د دوی په مينځ کي تفريق کوي اعْتِبَارًا بِالْإِيلَاءِ وَالْعِنَّةِ پر ايلاء او عنة باندي په قياس کولو سره وَبَعْدَ هٰذَا الِاعْتِبَارِ أَخَذَ الْمِقْدَارَ مِنْهُمَا الْأَرْبَعَ مِنَ الْإِيلَاءِ وَالسِّنِينَ مِنَ الْعِنَّةِ او تر دې قياس وروسته دي له ايلاء کونکي [مولي] او عنين شخه د دې مودت مقدار را واخيستل سي نو له ايلاء ځخه دي "څلور" را واخيستل سي او له عنة ځخه دي "کال" را واخيستل سي عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ د دې لپاره چي پر دواړو مشابهتونو عمل وسي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَام فِي امْرَأَةِ الْمَفْقُودِ[1] : أَنَّهَا امْرَأَتُهُ حَتَّى يَأْتِيَهَا الْبَيَانُ زموږ دليل د مفقود د ښځي په هکله د نبي ﷺ دا فرمان دی: چي دا ښځه د مفقود ښځه ده تر دې چي هغې ته يو بيان راسي ايعني تر دې چي د خاوند د مرګ يا د طلاق خبره واضحه سي] وَقَوْلُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِيهَا: هِيَ امْرَأَةٌ أُبْتُلِيَتْ فَلْتَصْبِرْ حَتَّى يَسْتَبِينَ مَوْتٌ أَوْ طَلَاقٌ او اهمدارنګه زموږ دليل ا د مفقود د ښځي په هکله د حضرت علي رضي الله عنه دا قول دی: چي دا ښځه په يو مصيبت مبتلا سوې ده هغې ته پکار دي چي صبر وکړي تر دې چي د هغې د خاوند مرګ يا د هغه له طرفه طلاق واضح سي خَرَجَ بَيَانًا لِلْبَيَانِ الْمَذْكُورِ فِي الْمَرْفُوعِ د حضرت علي دا قول د هغه "البيان" لپاره د بيان په توګه صادر سوی دی کوم چي په حديث مرفوع کي ذکر سو ايعني په پورتني حديث کي چي کوم د "البيان" لفظ ذکر مو، د حضرت علي رضي الله عنه په قول کي د هغه وضاحت سوی دی] وَلِأَنَّ النِّكَاحَ عُرِفَ ثُبُوتُهُ او ځکه چي نکاح په يقيني توګه ثابته ده وَالْغَيْبَةُ لَا تُوجِبُ الْفُرْقَةَ او غائبوالی فرقت نه واجبوي وَالْمَوْتُ فِي حَيِّزِ الِاحْتِمَالِ او د مفقود مرګ د احتمال په ځای کي دی ايعني د هغه مړ کېدل محتمل دي] فَلَا يُزَالُ النِّكَاحُ بِالشَّكِّ لهذا د شک په وجه به نکاح نه زائليږي وَعُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رَجَعَ إِلَى قَوْلِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رضي الله عنه [وروسته] د حضرت علي رضي الله عنه د قول وطرف ته رجوع وکړه وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْإِيلَاءِ او پر ايلاء هغه قياسول صحيح نه دي لِأَنَّهُ كَانَ طَلَاقًا مُعَجَّلًا ځکه چي ايلاء [د جاهليت په زمانه کي] معجّل طلاق وو فَاعْتُبِرَ فِي الشَّرْعِ مُؤَجَّلًا لېکن په شريعت کي هغه مؤجل وګرځېدی فَكَانَ مُوجِبًا لِلْفُرْقَةِ نو په دې وجه به ايلاء د فرقت موجب وي وَلَا بِالْعِنَّةِ او هغه پر عنة قياسول هم صحيح نه دي لِأَنَّ الْغَيْبَةَ تُعْقِبُ الْأَوْبَةَ ځکه چي غائبوالی تر ځان وروسته

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه ج:٣، ص:٣١٢.

واپس والی راولي ايعني د سړي دغائبوالي په صورت کي د هغه د واپس راتللو اُميد پاته وي ا وَالْعِنَّةُ قَلَّمَا تَنْحَلُّ بَعْدَ اسْتِمْرَارِهَا سَنَةً لیکن که د عنة مرض تر يو کال جاري وي نو د هغه د روغوالي اُميد ډېر کم پاتيږي.

**اللغات:** ﴿لا يفرّق﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: سره جلا کول، بېلول. مراد ځني د خاوند او ښځي په مينځ کي نکاح ختمول دي. ﴿استهواه﴾ د استفعال ماضي ده: حيرانول (لالهانده کول). بې هوښه کول. شارحينو د دې لفظ معنیٰ په "پورته کولو" او "وړلو سره" کړي دي، يعني هغه کس کوم چې پېريانو پورته کړی او وړی وو. ﴿عنّة﴾ نامردي، پر جماع قدرت نه لرل، چې داسي کس ته "عنين" وايي. ﴿أَوْبَة﴾ د نصر له باب څخه اسمِ مرة دی: رجوع کول، واپس رجوع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې تر څو د مفقود د مرګ پته معلومه نه سي يا دا معلومه نه سي چې هغه خپلي ښځي ته طلاق ورکړی دی تر هغه وخته به زموږ په نېز د مفقود او د هغه د ښځي په مينځ کي تفريق نه کيږي. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې که د مفقود د غائبېدلو له وخت څخه څلور کاله تېر سي نو قاضي دې د هغه او د ښځي په مينځ کي تفريق وکړي او ښځه چې تر عدت وروسته د کوم سړي سره نکاح وغواړي د هغه سره دې نکاح وکړي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چې په مدينه منوره کي يو سړی پېرانانو پورته کړی وو او د هغه ښځه حضرت عمر ﷛ ته راغله او دا معامله يې هغه ته ذکر کړه، نو حضرت عمر ﷛ هغې ته وويل چې څلور کاله وروسته راسه! څلور کاله وروسته هغه بيا راغله، نو حضرت عمر ﷛ د هغې له قوم څخه پوښتنه وکړه او د هغو تر تصديق وروسته يې هغه ښځي ته د عدت تېرولو او دويم ځای د نکاح کولو حکم وکړی (د هدايې په صفحه: ۶۶۲، دويمه حاشيه کي د دې پوره وضاحت موجود دی، وهكذا فى البناية ج: ۶، ص: ۸۱۲) او د حضرت عمر لپاره دا فيصله د حجت او دليل لپاره کافي ده.

د امام مالک عقلي دليل دا دی چې د عنين او ايلاء کونکي (مُولي) په څېر مفقود هم د خپلي ښځي حق ضايع کړی دی، لهذا څرنګه چې د ايلاکونکي او عنين او د دوی د ښځو په مينځ کي تر يو مودت وروسته تفريق کيږي همداسي به د مفقود او د هغه د ښځي په مينځ کي تر يو مودت يعني تر څلورو کالو وروسته تفريق کيږي. او د څلورو کالو مقدار به د مُولي او عنين دواړو له مجموعې څخه را اخيستل کيږي يعني د مُولي له څلورو مياشتو څخه به "څلور" (أربع) را اخيستل کيږي او د عنين له يوه کال څخه به "کال" را اخيستل کيږي، او په دې توګه په دواړو مشابهتونو باندي په عمل کولو سره به تر څلورو کالو وروسته د مفقود او ښځي په مينځ کي تفريق کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د مفقود د ښځي په هکله نبي کريم ﷺ دا فرمايلي دي چې "هغه د مفقود ښځه ده تر لې چې هغې ته يو بيان راسي" (يعني تر څو چې هغې ته د مفقود د مرګ يا د هغه له طرفه د طلاق خبر راغلی نه وي تر هغه وخته دا د مفقود ښځه ده)، او له حضرت علي ﷛ څخه هم دا روايت سوی دی چې "د مفقود

ښځه په مصیبت مبتلا سوې ده هغې ته صبر کول پکار دي تر دې چې د مفقود د مرګ پته معلومه سي یا د هغه له طرفه طلاق ورکول ثابت سي"، لهذا تر څو چې د مفقود معامله ښکاره نه سي تر هغه وخته به د هغه او ښځې په مینځ کي تفریق نه کیږي، او ځکه چي نکاح په یقیني توګه ثابته ده او غیبوبت د فُرقت موجب نه دی، همدارنګه د مفقود مړ کېدل هم یقیني نه دي بلکي فقط احتمال یې سته، او په یقین سره ثابت سوی شی د شک په وجه سره نه زائلیږي د فقهي دا مشهوره قاعده ده "الیقین لا یزول بالشک".

او امام مالک چي د حضرت عمر ﷺ په فرمان سره دلیل نیسي، دا صحیح نه دي، ځکه چي حضرت عمر ﷺ د حضرت علي ﷺ د قول وطرف ته رجوع وکړه، او پر ایلاء او عنین هم قیاس کول صحیح نه دي، ځکه چي ایلاء د جاهلیت په زمانه کي طلاق معجّل وو نو شریعت هم هغه طلاق وګرځوی لېکن معجل یې د څلورو میاشتو په تأجیل سره مؤجّل کړی او طلاق د فرقت موجب دی حالانکي د مفقود غیبوبت د فرقت موجب نه دی او د هغه له طرفه طلاق هم واقع سوی نه دی.

او کوم چي د عِنّة معامله ده نو که چیري عنین تر یوه کاله پوري په دې مرض مبتلا وي نو د هغه د روغېدلو امکان ختمیږي حالانکي د مفقود او غائب د واپس راتللو امکان باقي پاته وي، نو پر غیرِ مُتوقع کار به د مُتوقع کار قیاسول څرنګه صحیح وي! .

## څومره مودت به مفقود ته انتظار کیږي؟

قَالَ: وَإِذَا تَمَّ لَهُ مِائَةٌ وَعِشْرُونَ سَنَةً مِنْ يَوْمِ وُلِدَ فرمایي: که چیري د پیدایښت له ورځي څخه د مفقود یو سل وشل [۱۲۰] کاله پوره سي حَكَمْنَا بِمَوْتِهِ نو موږ به د هغه د مرګ فیصله کوو قَالَ: وَهَذِهِ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد روایت دی وَفِي ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ ❁ يُقَدَّرُ بِمَوْتِ الْأَقْرَانِ او په ظاهر د مذهب کي به [د مفقود] د همزولو په مرګ سره د هغه مرګ اندازه کیږي وَفِي الْمَرْوِيِّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ بِمِائَةِ سَنَةٍ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په نقل سوي روایت کي په سلو [۱۰۰] کالو سره د هغه مرګ اندازه کړی سوی دی وَقَدَّرَهُ بَعْضُهُمْ بِتِسْعِينَ او ځیني حضراتو په نوي [۹۰] کالو سره اندازه کړی دی وَالْأَقْيَسُ أَنْ لَا يُقَدَّرَ بِشَيْءٍ او قیاس دا دی چي په هیڅ مودت سره اندازه نه کړی سي وَالْأَرْفَقُ أَنْ

---

❁ القول الراجح: په دې سلسله کي مفتیٰ به قول د امام مالک رَحِمَهُ الله دی کوم چي په تېر عبارت کي بیان سو چي په څلور کالو سره به اندازه کیږي، یعني څلور کاله وروسته به د مفقود او ښځي په مینځ کي تفریق کیږي. ..(الخ)، كما قال العلامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله : لو أفتى به في موضع الضرورة أي على مذهب مالك في المفقود لا بأس به على ما أظن (رد المحتار ج:۳، ص:۳۶۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۱۱]

يُقَدَّرَ بِتِسْعِينَ او زيات آسانه دا ده [يعني آساني او نرمي په دې كي ده] چي په نوي [۹۰] كالو سره هغه اندازه كړى سي وَإِذَا حُكِمَ بِمَوْتِهِ او كله چي د مفقود د مرګ فيصله وسي اِعْتَدَّتْ امْرَأَتُهُ عِدَّةَ الْوَفَاةِ مِنْ ذٰلِكَ الْوَقْتِ نو له هغه وخت څخه دي د مفقود ښځه د وفات عدت تېر كړي وَقُسِّمَ مَالُهُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ الْمَوْجُودِينَ فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ او په هغه وخت كي چي د مفقود كوم وارثان موجود وي د هغو په مينځ كي دي د مفقود مال تقسيم كړى سي كَأَنَّهُ مَاتَ فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ مُعَايَنَةً ګواكي په هغه وخت كي دا مفقود [د هغو] د سترګو مخته مړ سوى دى إِذِ الْحُكْمِيُّ مُعْتَبَرٌ بِالْحَقِيقِيِّ ځكه چي حكمي مرګ پر حقيقي مرګ قياس كړى سوى دى وَمَنْ مَاتَ قَبْلَ ذٰلِكَ او كوم كس چي تر هغه وخت مخكي مړ سوى وي لَمْ يَرِثْ مِنْهُ نو هغه به د مفقود نه وارث كيږي لِأَنَّهُ لَمْ يُحْكَمْ بِمَوْتِهِ فِيهَا ځكه چي د مفقود والي په وخت كي د مفقود د مرګ فيصله نه وه سوې فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَتْ حَيَاتُهُ مَعْلُومَةً نو داسي سو لكه د هغه د ژوند درک چي معلوم وي وَلَا يَرِثُ الْمَفْقُودُ أَحَدًا مَاتَ فِي حَالِ فَقْدِهِ او مفقود به هم د خپل داسي مورث نه وارث كيږي كوم چي د ده د ورک والي په وخت كي مړ سوى وي لِأَنَّ بَقَاءَهُ حَيًّا فِي ذٰلِكَ الْوَقْتِ بِاسْتِصْحَابِ الْحَالِ ځكه چي په هغه وخت كي د مفقود ژوندى كېدل د استصحابُ الحال په وجه دي وَهُوَ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً فِي الْاِسْتِحْقَاقِ او استصحابُ الحال د وراثت د مستحق كېدلو لپاره حجت نه سي جوړېداى.

**اللغات**: ﴿أقيس﴾ د قياس زيات مطابق. ﴿أرفق﴾ زيات نرمي والا. زيات آسانه. ﴿معاينة﴾ د مفاعلې مصدر دى: په خپله ليدل. ﴿فقد﴾ د ضرب مصدر دى: وركېدل. نيستي كېدل (مراد ځني غائبېدل دي). ﴿استصحابُ الحال﴾ دا يو محاوره ده. مطلب يې دا دى چي مخكي كوم حالت روان او جاري وي هغه حالت اوس هم فرضول (منل). مثلاً مفقود د ژوند په حالت كي غائب سو. نو د دې مخكني ژوند په وجه وروسته هم هغه ژوندى شمارل او منل دې ته "استحصاب الحال" وايي.

**تشريح**: سوال دا دى چي كه د مفقود هيڅ پته او ټكانه معلونه وي نو تر څو به د هغه انتظار كيږي؟ او د هغه د ژوند او مرګ په هكله به كله فيصله كيږي؟ د دې جواب دا دى چي په دې سلسله كي درې روايتونه دي: ① اول روايت كوم چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه حسن بن زياد نقل كړى دى. دا دى چي د مفقود له پيداينبت څخه واخله په كومه ورځ چي د هغه عمر يو سل وشل (۱۲۰) كاله سي

(يعني د هغه عمر ۱۲۰ كالو ته ورسيږي) په هغه ورځ به د مفقود د مرګ فيصله كيږي. ② ظاهرُ المذهب دا دی چي د مفقود عمر به د هغه د همعصرو او همزولو خلكو د عمر سره اندازه كيږي او د هغه د مرګ فيصله به كيږي، ③ دريم روايت دا دی چي كله د هغه د غائبېدلو له وخت څخه نوي (۹۰) كاله تېر سي نو د هغه د مرګ فيصله به كيږي، همدا دريم مقدار أصح او أرفق للناس دی (بنايه ج:۶، ص:۸۱۷). او كله چي د مفقود د مرګ فيصله وسي، نو له هغه ورځي څخه دي د مفقود ښځه د وفات عدت شروع كړي، او په هغه وخت كي چي د مفقود كوم وارثان موجود وي د هغو په مېنځ كي دي د مفقود أموال تقسيم كړی سي لكه څرنګه چي په حقيقي مرګ كي هم دغه صورت اختيارول كيږي.

ومن مات إلخ: فرمايي چي د مفقود د مرګ له فيصلې كولو څخه مخكي چي د هغه كوم وارثان مړه سوي وي هغوی به اوس د مفقود نه وارث كيږي او مفقود به هم د هغو نه وارث كيږي: دا خلك خو به ځكه د مفقود نه وارث كيږي چي د مفقود د غائبوالي (ورك والي) په دوران كي د هغه د مرګ فيصله سوې نه وه او هغه ژوندی وو. لېكن څرنګه چي د هغه د ژوند فيصله د استصحابُ الحال په وجه ده. او استصحابُ الحال زموږ په نېز د "دفع" لپاره حجت جوړېدای سي لېكن د "استحقاق" لپاره حجت نه سي جوړېدای، نو هغسي موږ دلته هم وكړه چي د مفقود د مرګ له فيصلې څخه مخكي مړه سوي وارثان مو د مفقود له ميراث څخه دفع كړل او د هغو له ميراث څخه مو د مفقود استحقاق ختم كړی.

## د مفقود وصيت موقوف كېدل

وَكَذٰلِكَ لَوْ أَوْصٰى لِلْمَفْقُودِ وَمَاتَ الْمُوْصِيْ او همدارنګه كه د مفقود لپاره څه وصيت سوی وي او وصيت كونكی مړ سوی وي [نو وصيت به صحيح نه وي] ثُمَّ الْأَصْلُ: أَنَّهُ لَوْ كَانَ مَعَ الْمَفْقُودِ وَارِثٌ لَا يُحْجَبُ بِهِ وَلٰكِنَّهُ يُنْتَقَصُ حَقُّهُ بِهِ بيا قاعده دا ده: چي كه د مفقود سره يو داسي وارث وي كوم چي د مفقود په وجه له وراثت څخه نه محروميږي لېكن د مفقود په وجه د هغه حصه كميږي [لكه د مفقود خور] يُعْطٰى أَقَلَّ النَّصِيبَيْنِ وَيُوقَفُ الْبَاقِيْ نو هغه وارث ته به په دوو حصو كي كمه حصه وركول كيږي او پاته مال به موقوف ساتل كيږي وَإِنْ كَانَ مَعَهُ وَارِثٌ يُحْجَبُ بِهِ او كه د مفقود سره داسي وارث وي كوم چي د مفقود په وجه محروميږي [لكه د مفقود زوی او لور] لَا يُعْطٰى أَصْلًا نو هغه وارث ته به بالكل [هيڅ ميراث] نه وركول كيږي بَيَانُهُ: رَجُلٌ مَاتَ عَنِ ابْنَتَيْنِ وَابْنٍ مَفْقُودٍ وَابْنِ ابْنٍ وَبِنْتِ ابْنٍ د دې وضاحت دا دی: چي [مثلاً] يو سړی مړ سو [او] دوې لوڼي، يو مفقود، يو لمسی او يوه لمسۍ

يې پرېښوول وَالْمَالُ فِي يَدِ الأَجْنَبِيِّ او د هغه مال د يو أجنبي په قبضه کې وو وَتَصَادَقُوا عَلَى فَقْدِ الابْنِ او دې خلکو ايعني أجنبي او وارثانو ا هم اد مړي ا د زوی پر ورک والي اتفاق وکړی وَطَلَبَتِ الابْنَتَانِ الْمِيرَاثَ او اد مړي ا دوو لوڼو د ميراث مطالبه وکړه تُعْطَيَانِ النِّصْفَ نو هغو ته به د ټوله مال نصف ورکول کېږي لِأَنَّهُ مُتَيَقَّنٌ بِهِ ځکه چې نصف متيقن دی وَيُوقَفُ النِّصْفُ الآخَرُ او بل ا پاته ا نصف به موقوف کېږي وَلَا يُعْطِي وَلَدَ الابْنِ او د زوي بچيانو المسيانو ا ته به هيڅ شی نه ورکول کېږي لِأَنَّهُمْ يُحْجَبُونَ بِالْمَفْقُودِ وَلَوْكَانَ حَيًّا ځکه چې د مفقود په وجه هغوی محرومېږي که چېرې مفقود ژوندی وي امطلب دا چې که چېرې مفقود ژوندی وای نو لمسيانو ته به هيڅ حق نه حاصلېدای ا فَلَا يَسْتَحِقُّونَ الْمِيرَاثَ بِالشَّكِّ لهذا د شک وجه به هغوی د ميراث نه مستحق کېږي وَلَا يُنْزَعُ مِنْ يَدِ الأَجْنَبِيِّ إِلَّا إِذَا ظَهَرَتْ مِنْهُ خِيَانَةٌ او هغه مال به د أجنبي له قبضې څخه نه کښل کېږي خو دا چې د هغه له طرفه خيانت ښکاره سي وَنَظِيرُ هٰذَا الْحَمْلُ او د مفقود مثال "حمل" دی فَإِنَّهُ يُوقَفُ لَهُ مِيرَاثُ ابْنٍ وَاحِدٍ عَلَى مَا عَلَيْهِ الْفَتْوٰى ځکه چې د حمل لپاره هم د يوه زوی ميراث موقوف کېږي لکه څرنګه چې پر دې فتوىٰ ده وَلَوْكَانَ مَعَهُ وَارِثٌ آخَرُ إِنْ كَانَ لَا يَسْقُطُ بِحَالٍ وَلَا يَتَغَيَّرُ بِالْحَمْلِ او که د حمل سره بل داسي وارث هم وي چې د هغه حصه په هيڅ حال کې نه ساقطېږي او د حمل په وجه د هغه په حصه کې تغيّر وتبدّل نه راځي يُعْطِي كُلَّ نَصِيبَهُ نو هغه ته به خپل پوره حصه ورکول کېږي وَإِنْ كَانَ مِمَّنْ يَسْقُطُ بِالْحَمْلِ او که هغه داسي وراث وي چې د حمل په وجه د هغه حصه ساقطېږي لَا يُعْطِي نو هغه ته به هيڅ شی نه ورکول کېږي وَإِنْ كَانَ مِمَّنْ يَتَغَيَّرُ بِهِ او که هغه داسي وارث چې د هغه حصه د حمل په وجه بدلېږي اکمي او زياتوب پکښې راځي ا يُعْطِي الأَقَلَّ نو هغه ته به أقلّ ايعني په دوو حصه کې کمه حصه ا ورکول کېږي لِلتَّيَقُّنِ بِهِ ځکه چې أقل متيقن وي كَمَا فِي الْمَفْقُودِ لکه څرنګه چې په مفقود کې اهم داسي کېږي ا وَقَدْ شَرَحْنَاهُ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي بِأَتَمَّ مِنْ هٰذَا او دا امسئله ا موږ په كفاية المنتهي کې تر دې هم په زيات تفصيل سره بيان کړې ده.

**اللغات**: ﴿لا يُحجَب﴾ د نصر له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: پټېدل. مراد ځني محرومېدل او منع کېدل. ﴿تصادقوا﴾ د تفاعل ماضي ده: يو د بل تصديق کول. مراد ځني پر يو خبره اتفاق کول دي. ﴿لا يُنزَع﴾ د فتح له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: کښل، کاږل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دي څرنګه چې د مفقود د ژوند او مرګ تر فيصلې مخکې د هغه وراثت موقوف پاتيږي همداسې د هغه د وصيت حکم هم موقوف پاتيږي. ځکه چې وصيت ميراث خور ده. نو که يو چا د مفقود لپاره د يو شي وصيت کړی وي ليکن د مفقود تر حال ښکاره کېدلو مخکې هغه مړ سي نو وصيت به موقوف وي او کله چې د هغه حال ښکاره سي په هغه وخت کې به پر وصيت عمل کيږي.

صاحب د هدايې فرمايي چې د مفقود د وارث کېدلو په هکله قاعده دا ده چې که چيري د مفقود سره يو قوي او مضبوط وارث وي کوم کې چې د دې مفقود په وجه له ميراث څخه نه محروميږي مثلاً د ده خوندي د ده سره د پلار په وراثت کې شريکې وي او د ده حالت معلوم نه وي نو داسې وارث ته به أقلُ النصيبين يعني په دوو حصو کې چې د هغه کومه لږ مقدار والا حصه جوړيږي هغه به ورکول کيږي او که يو وارث داسې وي چې هغه د مفقود په وجه محروميږي مثلاً د مفقود سره د پلار په وراثت کې د مفقود زوی او لور هم وي نو هغو ته به هيڅ نه ورکول کيږي. ځکه چې د زوی په موجود والي کې لمسي او لمسۍ ته هيڅ نه حاصليږي.

د دې مثال دا دی چې زيد مړ سو، او تر شايې دا کسان پرېښوول: دوې لوڼې، يو مفقود زوی، يو لمسی او يوه لمسۍ (يعني د مفقود يو زوی او يوه لور)، او د زيد مال د يو أجنبي سړي سره وو، نو هغه أجنبي او د زيد نورو وارثانو پر دې خبره اتفاق وکړی چې د ميّت (زيد) زوی مفقود دی (يعني ټولو د هغه مفقود والی تسليم کړی)، نو د لوڼو د ميراث پر مطالبه به قاضي لوڼو ته د ټوله ميراث نصف ورکړي ځکه چې نصف أقل دی او متعيّن دی. ځکه که مفقود (زوی) مړ وشمارل سي نو د لوڼو حصه به دوه ثلثه وي او که هغه ژوندی وشمارل سي نو هغو ته به نصف حاصليږي او څرنګه چې نصف له دوو ثلثو څخه کم دی (او کم متعين او متيقن وي)، نو د متيقن کېدلو په وجه به همدا (نصف) ورکول کيږي او پاته نصف به ساتل کيږي او له هغه پاته نصف څخه به د ميت (زيد) لمسي او لمسۍ ته حصه نه ورکول کيږي، ځکه که چيري مفقود ژوندی وي نو هغه به د دې نصف مستحق وي او د هغه په وجه به دا لمسي او لمسۍ محروميږي او څرنګه چې د هغه پته او ټکانه معلومه نه ده او د ژوند او مرګ درک يې هم معلوم نه دی لهذا د هغه د بچيانو (لمسي او لمسۍ) د ميراث په مستحق کېدلو کې شک دی او په شک سره استحقاق نه ثابتيږي. نو ځکه به دا کسان (لمسي او لمسۍ) د خپل مفقود پلار وجه د خپل مړه سوي نيکه (زيد) له ميراث څخه محروم پاتيږي.

او کوم نصف چي باقي پاته سوی وي هغه به د أجنبي سره پرېښوول کيږي؛ ځکه چي ميّت هغه أمين ګڼلی دی او پر هغه يې اعتماد کړی دی، لهذا تر څو چي د دې أجنبي له طرفه يو خيانت ښکاره نه سي هغه مال به له ده څخه نه اخيستل کيږي. په پورتني مسئله کي چي په دې الفاظو "والمال فى يد الأجنبى" او "تصادقوا على فقد الإبن" سره چي کوم قيدونه لګېدلي دي. په دوی کي د اول قيد "والمال فى يد الأجنبى" فايده دا ده چي که مال د أجنبي سره نه وي بلکي د ميت د لوڼو سره وي نو له هغه څخه د لوڼو تر حصې ورکولو وروسته دي قاضي باقي مال بير ته د لوڼو سره پرېږدي او داسي دي نه کوي چي هغه باقي مال ځني واخلي او د خپل ځان يا د بل چا سره يې کښېږدي، او د "تصادقوا" د قيد فايده دا ده چي که أجنبي او وارثان د زوی پر مفقود والي متفق نه وي بلکي أجنبي دا اقرار وکړي چي مفقود د خپل پلار تر مرګ مخکي مړ سوی دی نو په دې صورت کي به د ميّت دوو لوڼو ته د نصف پر ځای دوه ثلثه ورکول کيږي. (بناية ج:٦، ص:٨٢٠)

ونظيرهذا الحمل إلخ: فرمايي چي څرنګه د مفقود په وجه نيم ميراث راګرځول کيږي او موقوف کيږي همدسي به د حمل په وجه هم د يوه نر بچي (زوی) ميراث راګرځول کيږي، يعني که يو سړی مړ سي او د هغه ښځه حامله وي نو د حمل په وجه به د مفتیٰ به قول مطابق د يوه نر بچي ميراث موقوف کيږي، او که چيري د حمل سره يو داسي وارث وي چي هغه د حمل په وجه محرومېدونکی او ساقطېدونکی نه وي لکه زوی او نيکه، نو د مفقود د خوند په څير به هغه ته هم له ميراث څخه خپله حصه ورکول کيږي، او که هغه داسي وارث وي د حمل په وجه محروميږي لکه د ميّت لمسی او د ميّت ورور، نو هغه ته به هيڅ شی نه ورکول کيږي، او که د وارث حصه د حمل په وجه کميږي او زياتيږي لکه د حمل د مړ والي په صورت کي چي مور د ثُلث مستحقه ده او د حمل د ژوندي والي په صورت کي هغه د سُدس مستحقه ده، نو هغې ته به أقل يعني سُدس ورکول کيږي، ځکه چي أقلّ متيقن وي. صاحب د هدايې فرمايي چي د دې مسئلې نور وضاحت او تفصيل په کفايةُ المنتهي کي ذکر سوی دی. فقط والله أعلم



# كِتَابُ الشَّرِكَةُ

(دا) كتاب د نكاح (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح:** مخكي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله كتابُ المفقود بيان كړى. او اوس كتابُ الشركة بيانوي. كتابُ الشركة يې ځكه د كتابُ المفقود سره متصل بيان كړى دى چي څرنګه د مفقود مال د حاضرينو سره امانت وي همدارنګه د شركت مال هم د دواړو شريكانو په مينځ كي امانت وي. او د علمو أموالو په څير د مفقود په مال كي هم اشتراك وي.

شِرْكَة او شَرِكَة د سمع د باب مصدر دى په معنىٰ سره د "شريک كېدلو". په يو شي كي د دوو خلكو يا څو خلكو شريكېدلو ته "شركت" وايي.

| |
|---|
| **الشَّرِكَةُ جَائِزَةٌ** شركت كول جائز دي لِأَنَّهُ ﷺ بُعِثَ وَالنَّاسُ يَتَعَامَلُونَ بِهَا ځكه كله چي نبي كريم ﷺ [اُمت ته] ولېږلى سو نو په هغه زمانه كي خلكو د شركت معامله كول فَقَرَّرَهُمْ عَلَيْهِ نو نبي كريم ﷺ هغوى پر دې باقي پرېښوول. |

**اللغات:** ﴿بُعِثَ﴾ د فتح له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: استول، لېږل. ﴿قرّرنا﴾ د تفعيل ماضي ده: باقي ساتل، باقي پرېښوول.

## د شركت دوه بنيادي قسمونه او د هغوى تعريفات

| |
|---|
| قَالَ: **الشَّرِكَةُ ضَرْبَانِ: شَرِكَةُ أَمْلَاكٍ وَشَرِكَةُ عُقُودٍ** فرمايي: شركت پر دوه قسمه دى: ① د ملكيتونو شركت، ② د عقدونو [معاملاتو] شركت **فَشَرِكَةُ الْأَمْلَاكِ: الْعَيْنُ يَرِثُهَا رَجُلَانِ أَوْ يَشْتَرِيَانِهَا** شركت أملاک دا دى: چي دوه خلګ د يو شي وارثان سي يا دواړه يو شى [په ګډه] رانيسي **فَلَا يَجُوزُ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ إِلَّا بِإِذْنِهِ** نو په دوى دواړو كي ديوه لپاره د بل په حصه كي د هغه له اجازت څخه بغير تصرّف كول جائز نه دي **وَكُلٌّ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ كَالْأَجْنَبِيِّ** او په دوى كي هر يو د خپل ملګري په حصه كي د پردي سړي په څير دى **وَهَذِهِ الشَّرِكَةُ تَتَحَقَّقُ فِي غَيْرِ الْمَذْكُورِ فِي الْكِتَابِ** او دا شركت په قدوري [متن] كي له ذكر كړى سوي صورت [وراثت او شراء] څخه بغير |

[په بل طريقه سره] هم ثابتيږي كَمَا إِذَا اتَّهَبَ رَجُلَانِ عَيْنًا أَوْ مَلَكَاهَا بِالِاسْتِيلَاءِ لکه دوه خلک چي يو شی په هبه کي حاصل کړي يا په غلبه سره [په زوره] د يو شي مالکان سي أَوِ اخْتَلَطَ مَالُهُمَا مِنْ غَيْرِ صُنْعِ أَحَدِهِمَا أَوْ بِخَلْطِهِمَا خَلْطًا يَمْنَعُ التَّمْيِيزَ رَأْسًا أَوْ إِلَّا بِحَرَجٍ يا [مثلاً] د دوو خلکو مال (د يوه له فعل څخه بغير يا د دواړو په ګډولو) داسي سره ګډ سي چي د مالونو په مينځ کي توپير کول اسره جلال کول [نا ممکن وي يا ممکن وي خو په تکليف سره وَيَجُوزُ بَيْعُ أَحَدِهِمَا نَصِيبَهُ مِنْ شَرِيكِهِ فِي جَمِيعِ الصُّوَرِ وَمِنْ غَيْرِ شَرِيكِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ او په ټولو صورتونو کي له دواړو شريکانو څخه د هر يوه لپاره پر بل شريک خپله حصه خرڅول جائز دي او د شريک له اجازت څخه بغير پر بل چا [هم] خرڅول جائز دي إِلَّا فِي صُورَةِ الْخَلْطِ وَالِاخْتِلَاطِ فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ إِلَّا بِإِذْنِهِ ليکن د ګډولو او ګډيدلو په صورت کي [فقط] د شريک په اجازت سره جائز دي وَقَدْ بَيَّنَّا الْفَرْقَ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او په كفاية المنتهي کي موږ فرق بيان کړی دی وَالضَّرْبُ الثَّانِي شَرِكَةُ الْعُقُودِ او دويم قسم شرکتِ عقود دی وَرُكْنُهَا الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ او د هغه رکن إيجاب وقبول دی وَهُوَ: أَنْ يَقُولَ أَحَدُهُمَا: شَارَكْتُكَ فِي كَذَا وَكَذَا وَيَقُولَ الْآخَرُ: قَبِلْتُ او هغه دا دی: چي په دوو خلکو کي يو سړی داسي ووايي: ما ستا سره په فلاني او فلاني شي کي شرکت وکړی ايعني ستا سره په فلاني شي يا فلاني کار کي شرکت کوم] او دويم سړی ووايي: چي ما قبول کړی وَشَرْطُهُ: أَنْ يَكُونَ التَّصَرُّفُ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ عَقْدَ الشَّرِكَةِ قَابِلًا لِلْوَكَالَةِ او د هغه شرط دا دی: چي پر کوم شي د شرکت عقد واقع سوی وي هغه به د وکالت قابل وي لِيَكُونَ مَا يُسْتَفَادُ بِالتَّصَرُّفِ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا د دې لپاره چي په تصرّف سره حاصليدونکی مال د دوی په مينځ کي مشترک سي فَيَتَحَقَّقُ حُكْمُهُ الْمَطْلُوبُ مِنْهُ او د شرکت مطلوب [او مقصد] حاصل سي.

**اللغات:** ﴿اتّهب﴾ د افتعال ماضي ده: د هبې په توګه حاصلول (ترلاسه کول). په هديه کي حاصلول. ﴿الاستيلاء﴾ د افتعال اسم مصدر دی: غلبه. قبضه. ﴿صنع﴾ د فتح مصدر دی: کول (يو کار کول). جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي شرکت پر دوه قسمه دی: ① شرکت أملاک. شرکت عقود.

(۱)... شرکت أملاک دا دی چي مثلاً دوه ورونه په مشترکه توګه د يو شي وارثان سي. يا مثلاً دوه خلک په ګډه يو شی رانيسي. يا دوو خلکو ته په مشترکه توګه يو شی هديه کړی سی. يا دوه خلک

په زوره (قهراً) له كفارو څخه يو شی واخلي او په مشتركه توګه پر هغه قابض سي. يا د دوو خلكو مال داسي سره ګډ سي چي د هغه تر مينځ امتياز او توپير كول مشكل سي. مثلاً د يوه سړي غنم د بل سړي په غنمو ګډ سي، يا د يوه غنم د بل په اُوربشو ګډ سي او په ډېر تكليف دواړه سره جلا كيږي. نو دا ټوله صورتونه په "شركت أملاک" كي داخل دي، د دې صورتونو حكم دا دی چي يو شريک د بل شريک له اجازت او رضا څخه بغير په مشترک مال كي تصرّف نه سي كولای. لېكن يو شريک پر بل شريک خپله حصه خرڅولای سي، او له شريک څخه بغېر پر بل دريم سړي هم خپله حصه خرڅولای سي برابره ده له خپل شريک څخه اجازت واخلي يا يې نه واخلي. لېكن د خلط ملط او ګډېدلو په صورت كي يو شريک د بل شريک له اجازې څخه بغير پر دريم سړي خپله حصه نه سي خرڅولای، ځكه چي د اختلاط او خلط والي په صورت كي هر. هر شريک د هرې دانې مالک دی او ښكاره خبره ده چي كله بائع پر دريم سړي خپله حصه خرڅه كړي نو هغه به مشتري ته د خپل شريک د حصې او ملكيت وركونكی وګرځي، حالانكي د بل شريک له اجازت څخه بغير د هغه په مال كي تصرّف كول جائز نه دي، نو ځكه موږ د خلط والي په صورت كي د بل شريک اجازت او رضا ضروري ګرځولې ده.

د دې په خلاف كه چيري په شراء، وراثت يا هبه سره دوو خلكو ته په مشتركه توګه يو مال حاصل سوی وي نو هغه مال به بالكل له ابتداء څخه د دوی په مينځ كي مشترک وي او خرڅونكی شريک به د خپلې حصې خرڅونكی وي، ځكه څرنګه چي د هغه حصه په خرڅ كړی سوي مال كي سته همداسي په پاته سوي مال كي هم سته او كه هغه په خرڅولو سره د دويم شريک په مشتركه حصه كي تصرف كوي نو د دويم شريک د حصې په پرېښوولو سره خپل مشترک مال هم هغه ته وركوي. لهذا د دواړو حصې برابري دي او يوه شريک ته هم له بل څخه دا جازت اخيستلو ضرورت نسته. همدا هغه فرق دی كوم چي په كفاية المنتهي كي ذكر سوی دی. (أحسن الهداية)

(٢)... د شركت دويم قسم شركت عقود دی. يعني په عقد او معامله كي دوه يا څو خلک شريكېدل. دا قسم په ايجاب او قبول سره منعقَد كيږي. خو شرط دا دی چي پر كوم شي چي عقد (معامله) واقع سوی وي هغه به د وكالت لائق وي، د دې لپاره چي په عقد سره حاصلېدونكې نفع د دوی په مينځ كي مشتركه كړی سي. صاحب د كتاب په دې شرط "قابل للوكالة" سره د لرګيو او بوټو او د ښكار كولو له عقد څخه احتراز كړی دی، ځكه چي په دې صورتونو كي فقط د فاعل او مباشر ملكيت ثابتيږي او په هغه كي اشتراک نه راځي (د مباشر معنیٰ ده "په خپله كار كونكی" يعني كوم شريک چي په خپله بوټي ټولوي يا ښكار كوي. فقط د هغه ملكيت پكښي ثابتيږي او اشتراک نه پكښي راځي). (بنايه)

## د "شرکتِ عقود" أقسام او د "شرکتِ مفاوضه" تعریف

ثُمَّ هِيَ أَرْبَعَةُ أَوْجُهٍ: مُفَاوَضَةٌ وَعِنَانٌ وَشَرِكَةُ الصَّنَائِعِ وَشَرِكَةُ الْوُجُوهِ بیا شرکتِ عقود پر څلور قسمه دي: ① شرکتِ مفاوضه ② شرکتِ عنان ③ شرکتِ صنائع ④ شرکتِ وجوه فَأَمَّا شَرِكَةُ الْمُفَاوَضَةِ فَهِيَ أَنْ يَشْتَرِكَ الرَّجُلَانِ فَيَتَسَاوَيَانِ فِي مَالِهِمَا وَتَصَرُّفِهِمَا وَدَيْنِهِمَا شرکتِ مفاوضه دا دي چي دوه خلک شرکت وکړي او دواړه په مال کي او په تصرّف کي او په قرض کي برابر وي لِأَنَّهَا شَرِكَةٌ عَامَّةٌ فِي جَمِيعِ التِّجَارَاتِ ځکه چي دا شرکت په ټولو تجاراتو کي عام دی يُفَوِّضُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَمْرَ الشَّرِكَةِ إِلَى صَاحِبِهِ عَلَى الْإِطْلَاقِ [او] هر شریک علی الإطلاق د شرکت معامله خپل ملګري ته حواله کوي إِذْ هِيَ مِنَ الْمُسَاوَاةِ ځکه چي مفاوضه د برابر والي په معنیٰ سره ده قَالَ قَائِلُهُمْ: "لَا يُصْلِحُ النَّاسَ فَوْضَى لَا سَرَاةَ لَهُمْ یو شاعر ویلي دي: "کله چي خلک ټوله برابر وي او د هغو لپاره هیڅ مشر نه وي نو داسي خلک سمېدلای نه سي ایعني کوم قوم چي یو هوښیار مشر او سردار نه لري هغه ترقي نه سي کولای، ځکه چي د دې قوم د شخړو او لانجو د حل کولو لپاره او د صلحي او روغي لپاره به څوک نه وي. او ځکه چي د چا مشر معلوم نه وي نو په هغه کي به څرنګه سمون راسي] وَلَا سَرَاةَ إِذَا جُهَّالُهُمْ سَادُوا" او که جاهلان د خلکو مشران جوړ سي نو دا مشران نه دي [مطلب دا چي که د قوم مشر جاهل وي نو داسي دی لکه هغوی چي مشر نه لري، ځکه چي جاهل مشر پر مشر نه شمارل کیږي، لکه څرنګه چي ویل کیږي: چي مشر يې ګمبر وي نو اختر به يې ماخیګر وي] أَيْ مُتَسَاوِينَ له فَوْضَى څخه مراد متساويين [برابر خلک] دي [نو معلومه سوه چي مفاوضه د مساوات په معنیٰ سره ده] فَلَا بُدَّ مِنْ تَحْقِيقِ الْمُسَاوَاةِ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً لهذا په ابتداء او انتهاء دواړو کي د مساوات ثابتېدل ضروري دي وَذَلِكَ فِي الْمَالِ وَالْمُرَادُ بِهِ مَا تَصِحُّ الشَّرِكَةُ فِيهِ او دا مساوات به په داسي مال کي وي چي په هغه کي شرکت صحیح کیږي وَلَا يُعْتَبَرُ التَّفَاضُلُ فِيمَا لَا يَصِحُّ الشَّرِكَةُ فِيهِ او په کوم مال کي چي شرکت نه صحیح کیږي په هغه کي د تفاضل اعتبار نه کیږي وَكَذَا فِي التَّصَرُّفِ همدارنګه په تصرّف کي هم مساوات ضروري دی لِأَنَّهُ لَوْ مَلَكَ أَحَدُهُمَا تَصَرُّفًا لَا يَمْلِكُ الْآخَرُ ځکه که یو شریک د داسي تصرّف مالک سي چي دویم شریک د هغه مالک نه وي لَفَاتَ التَّسَاوِي نو مساوات به فوت سي وَكَذَلِكَ فِي الدَّيْنِ همدارنګه د قرض په معامله کي هم

مساوات ضروري دی لِمَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى د هغه دليل په وجه چې هغه به موږ انشاء الله بيان كړو وَهٰذِهِ الشَّرِكَةُ جَائِزَةٌ عِنْدَنَا اسْتِحْسَانًا او دا شركت زموږ په نيز استحساناً جائز دی وَفِي الْقِيَاسِ لَا تَجُوزُ او قياساً جائز نه دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی وَقَالَ مَالِكٌ: لَا أَعْرِفُ مَا الْمُفَاوَضَةُ او امام مالك رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زه بالكل مفاوضه نه پېژنم! وَجْهُ الْقِيَاسِ: أَنَّهَا تَضَمَّنَتِ الْوَكَالَةَ بِمَجْهُولِ الْجِنْسِ وَالْكَفَالَةَ بِمَجْهُولٍ د قياس دليل دا دی: چې عقد مفاوضه مجهولُ الجنس وكالت ته او مجهول كفالت ته متضمن [شامل] دی [يعني په عقد مفاوضه كې اوس [ابتداءً] دا خبره معلومه نه ده چې څه شي رانيسي او څه كار كوي!؟] وَكُلُّ ذٰلِكَ بِانْفِرَادِهِ فَاسِدٌ حالانكې داسې وكالت او كفالت په انفرادي توګه فاسد دی [يعني يوازې مجهول وكالت او يوازې مجهول كفالت هم فاسد دی. لهذا چې دواړه سره يو ځای وي نو هم به فاسد وي] وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ قَوْلُهُ ﷺ [1]: فَاوِضُوا فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْبَرَكَةِ د استحسان دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: تاسې عقد مفاوضه كوئ! ځكه چې په دې كې غټ بركت دی وَكَذَا النَّاسُ يُعَامِلُونَهَا مِنْ غَيْرِ نَكِيرٍ همدارنګه خلك له څه نكير [بنديز او ممانعت] څخه بغير په خپل مينځ كې عقد مفاوضه كوی وَبِهِ يُتْرَكُ الْقِيَاسُ او په داسې تعامل سره قياس پرېښوول كيږي وَالْجَهَالَةُ مُتَحَمَّلَةٌ تَبَعًا او د وكالت او كفالت والا جهالت تبعاً برداشت كړی سوی دی [يعني په وكالت او كفالت كې چې كوم جهالت دی هغه د تابع په توګه دی. يعني تابع دی أصل نه دی. نو ځكه به هغه برداشت كيږي او څه پروا به نه په كيږي] كَمَا فِي الْمُضَارَبَةِ لكه څرنګه چې په مضاربت كې برداشت كړی سوی دی وَلَا تَنْعَقِدُ إِلَّا بِلَفْظَةِ الْمُفَاوَضَةِ او شركت مفاوضه فقط د "مفاوضه" په لفظ سره منعقد كيږي لِبُعْدِ شَرَائِطِهَا عَنْ عِلْمِ الْعَوَامِّ ځكه چې د شركت مفاوضه شرطونه د عوامو له علم څخه ليرې وي [يعني عوام د دې په شرائطو نا خبر وي] حَتّٰى لَوْ بَيَّنَا جَمِيعَ مَا تَقْتَضِيهِ تر دې كه دواړه شريكان د ټولو ضروري شرطونو وضاحت وكړي تَجُوزُ نو جائز دي [مطلب دا چې كه يو شريك د مفاوضې لفظ نه ووايي خو د مفاوضې شرطونه بيان كړي، نو بيا هم مفاوضه منعقد كيږي. ځكه چې اعتبار معنیٰ لره دی او معنیٰ بيان كړی سوه] لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْمَعْنٰى ځكه چې [أصلاً] اعتبار معنیٰ لره دی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب التجارات باب الشركة والمضاربة رقم الحديث: ۲۲۸۹

**اللغات**: ﴿أوجه﴾ جمع د "وَجْهٌ" ده: صورتونه، قسمونه. ﴿يتساويا﴾ د تفاعل مضارع ده: برابرېدل. ﴿مساواة﴾ د مفاعلې مصدر دی: برابرېدل، يو شی د بل شي مثل کېدل، برابر والی، برابري. ﴿فَوْضٰى﴾ برابر، مساوي، سره يو شی، لکه څرنګه چې ويل کيږي: قَوْمٌ فَوْضٰى: دا هغه قوم ته وايي چې ټوله سره برابر وي او هيڅ مشر او رئيس نه لري. او ويل کيږي مَالٌ فَوْضٰى بينهما: يعني دا مال د دوی په مينځ کي په مساوي توګه سره ګډ دی. هر يو يې استعمالولای سي. ﴿سَراة﴾ جمع د سَرِيٌّ ده: رئيس، سردار، مشر. سَرَاةٌ په أصل کي سَرَيَةٌ پر وزن د فَعَلَةٌ وو (لکه طَلَبَةٌ) بيا ياء په الف سره بدله سوه سَرَاةٌ سو. سَرِيٌّ پر وزن د فَعِيلٌ دی. او د فعيل جمع پر وزن د فَعَلَة نه راځي، بس فقط دغه سَرِيٌّ دی چې جمع يې سَرَاةٌ راغلې ده په عربي کي د دې بل مثال نسته. صاحب د مصباح وايي: "وَالسَّرِيُّ: الرَّئِيْسُ. وَالْجَمْعُ سَرَاةٌ. وَهُوَ جَمْعٌ عَزِيزٌ لَا يَكَادُ يُوجَدُ لَهُ نَظِيرٌ. لِأَنَّهُ لَا يُجْمَعُ فَعِيلٌ عَلٰى فَعَلَةٍ". ﴿سادوا﴾ د نصر ماضي ده: سردار کېدل، مشر کېدل. ﴿تفاضل﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه زياتېدل، اضافه کېدل. ﴿بُعْد﴾ ليري والی. ﴿تضمنت﴾ د تفعل ماضي ده: مشتمل کېدل، شاملېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي د شرکت عقود څلور اقسام بيان سوي دي: ① مفاوضه. ② عنان. ③شرکت صنائع. ④ شرکت وجوه. په دوی کي اول شرکت مفاوضه بيان سوی دی. شرکت مفاوضه دا دی چې دوه خلک په خپل مينځ کي د إيجاب او قبول په ذريعه په دې توګه د شرکت عقد وکړي چې هغوی دواړه به په مال کي هم مساوي (برابر) وي او په تصرف او دَين کي به هم برابر وي. ځکه چې شرکت مفاوضه عام دی او د تجارت ټولو صورتونو ته شامل او داخل دی او په دواړو شريکانو کي هر هر شريک علی الإطلاق (بدون القيد) خپل ملګري (شريک) ته پوره اختيار ورکوي. ځکه چې د مفاوضه معنیٰ همدا ده" مساوات او برابري". لکه څرنګه چې د عربو يو شاعر مفاوضه د مساوات او برابری په معنیٰ سره استعمال کړې ده. او برابري هغه وخت ثابتيږي کله چې پر يوه شريک هم هيڅ قيد او پابندي نه وي او هريو په تصرف کي آزاد وي. او د شرکت مفاوضه د وقوع او تحقق لپاره دا ضروري دي چې مال به د شرکت قابل وي. يعني په کوم مال کي چې عقد مفاوضه وسي هغه به دارهم او دنانير وي. عُروض او عقار به نه وي. ځکه چې په عُروض او عقار کي شرکت نه صحيح کيږي. ځکه چې په هغه کي په کمي بيشي (کمښت او زياتوب) سره عقد فاسديږي.

د عقد مفاوضه د صحت لپاره دا هم ضروري دي چې په دواړو شريکانو کي به د تصرف أهليت وي. او د قرض او داسي نورو په معامله کي هم برابري ضروري ده. او د شرکت مفاوضه جواز استحساناً دی. لېکن قياس د دې شرکت د جواز منکر دی. امام شافعي رَحِمَهُ الله هم د قياس سره دی. او امام مالک

خو بالكل د شركتِ مفاوضه د وجود انكار كړى دى؛ د قياس دليل دا دى چي شركت مفاوضه د مجهولُ الجنس وكالت او د مجهول كفالت ته شامل وي حالانكي په انفرادي توګه د مجهولَ وكالت هم فاسد دى او كفالت يې هم فاسد دى، لهذا كله چي په انفرادي توګه دا فاسد دي نو د عقد مفاوضه په ضمن كي به هم فاسد وي او د دې په وجه به عقد مفاوضه هم فاسد وي، ځكه كوم شى چي فاسد لره متضمن او شامل وي، هغه هم فاسد وي.

د استحسان دليل دا حديث دى: "فَاوِضُوْا فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْبَرَكَةِ" (يعني تاسي عقد مفاوضه كوئ، ځكه چي په دې كي زيات بركت دى)، په دې حديث سره په ښكاره توګه دا خبره ثابتيږي چي عقد مفاوضه صحيح او جائز دى، په فتحُ القدير او بنايه كي ذكر سوي دي چي دا حديث غريب دى او د دې مضمونَ سره نه لګيږي خو د دغه حديث په معنىٰ سره په ابن ماجه كي د صالح بن صُهيب په حواله سره دا حديث ذكر سوى دى: "ثلاثٌ فيهنّ البركة: البيع إلى أجل، والمفاوضة، واختلاط البُرّ للشعير للبيت لا للبيع" (يعني په دريو شيانو كي بركت دى: په ميعادي (مياد) بيع كي، په عقد مفاوضه كي، او د كور لپاره د غنمو او اوربشو په ګډولو كي، نه د خرڅولو لپاره). د شركت مفاوضه د جواز دليل دا دى چي په خلكو كي د عقد مفاوضه تعامل جاري وو كه چيري دا ممنوع واى نو د اُمّت فقهاؤ او علماؤ به هيڅ كله هم د دې جواز زغملي نه واى، نو د داسي تعامل په وجه به قياس پرېښوول كيږي. او په دې كي چي د وكالت بالمجهول او كفالت بالمجهول په حواله سره چي كوم جهالت وي هغه تبعاً وي قصداً نه وي، او داسي كېداى سي چي يو شى دي قصداً صحيح نه وي لېكن تبعاً دي صحيح وي، لكه عقد مضاربت چي كه څه هم "د مجهول شي د رانيولو لپاره د وكيل پر جوړولو" متضمن او مشتمل وي لېكن دا تضمن تبعاً وي نو ځكه مضاربت صحيح دى. حالانكي قصداً او أصلاً توكيل بشراء المجهول فاسد دى، همداسي عقدِ مفاوضه هم تبعاً وكالت بالمجهول ته د متضمن كېدلو په وجه صحيح دى.

**ولا تنعقد إلخ:** فرمايي څرنګه چي زياتره خلك د مفاوضې له أحكامو او مسائلو څخه نا واقف دي نو ځكه به دا عقد فقط د "مفاوضه" په لفظ سره صحيح كيږي، ها! كه چيري متفاوضان د دې معاني او مفهوم د خلكو مخته واضح كړي نو بيا به په نورو الفاظو سره هم دا عقد منعقد كيږي.

## شركت مفاوضه او د شريكينو مذهب

قَالَ: فَيَجُوزُ بَيْنَ الْحُرَّيْنِ الْكَبِيرَيْنِ مُسْلِمَيْنِ أَوْ ذِمِّيَّيْنِ فرمايي: عقدِ مفاوضه د دوو بالغو، آزادو مسلمانانو يا ذميانو په مينځ كي جائز دى لِتَحَقُّقِ التَّسَاوِيْ ځكه چي په دوى كي مساوات موجود دي وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا كِتَابِيًّا وَالْآخَرُ مَجُوسِيًّا او كه يو شريك كتابي وي او بل مجوسي تَجُوزُ أَيْضًا نو هم جائز دى لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړى وَلَا تَجُوزُ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْمَمْلُوكِ

وَلَا بَيْنَ الصَّبِيِّ وَالْبَالِغِ او د آزاد او غلام او د بچي او بالغ په مينځ كي عقد مفاوضه جائز نه دى لِانْعِدَامِ الْمُسَاوَاةِ ځكه چي [په دوى كي] مساوات معدوم دى لِأَنَّ الْحُرَّ الْبَالِغَ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ وَالْكَفَالَةَ ځكه چي آزاد او بالغ د تصرّف او كفالت ملكيت لري وَالْمَمْلُوكُ لَا يَمْلِكُ وَاحِدًا مِنْهُمَا إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلَى او مملوك [غلام] د خپل مالك له اجازت څخه بغير په دې دواړو كي د يوه شي ملكيت هم نه لري وَالصَّبِيُّ لَا يَمْلِكُ الْكَفَالَةَ وَلَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ إِلَّا بِإِذْنِ الْوَلِيِّ او بچى هم نه د كفالت ملكيت لري او نه د ولي له اجازت څخه بغير د تصرّف ملكيت لري قَالَ: وَلَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرِ فرمايي: چي د مسلمان او كافر په مينځ كي هم عقد مفاوضه جائز نه دى وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دى وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: يَجُوزُ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز دى لِلتَّسَاوِي بَيْنَهُمَا فِي الْوَكَالَةِ وَالْكَفَالَةِ ځكه چي د دوى په مينځ كي په وكالت او كفالت كي مساوات وي وَلَا مُعْتَبَرَ بِزِيَادَةِ تَصَرُّفٍ يَمْلِكُهُ أَحَدُهُمَا او د تصرف هغه زياتوب لره هيڅ اعتبار نسته چي په دوى كي يو [شريک] د هغه مالک وي كَالْمُفَاوَضَةِ بَيْنَ الشَّفْعَوِيِّ وَالْحَنَفِيِّ فَإِنَّهَا جَائِزَةٌ لكه د شافعي مسلكه او د حنفي مسلكه سړي په مينځ كي چي مفاوضه جائز ده وَيَتَفَاوَتَانِ فِي التَّصَرُّفِ فِي مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ كه څه هم دوى دواړه په داسي ذبيحه كي په تصرّف كولو كي يو له بل څخه مختلف دي چي پر هغې بسم الله ويل سوي نه وي إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ خو [د مسلمان او كافر په مينځ كي عقد مفاوضه] مكروه دى لِأَنَّ الذِّمِّيَّ لَا يَهْتَدِي إِلَى الْجَائِزِ مِنَ الْعُقُودِ ځكه چي ذمي د جائزو عقودو وطرف ته هدايت نه مومي [مطلب دا چي ذمي ته د جائزو عقودو هدايت حاصل نه وي] وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَا تَسَاوِيَ فِي التَّصَرُّفِ د طرفينو دليل دا دى: چي په تصرف كي مساوات ضروري نه دى فَإِنَّ الذِّمِّيَّ لَوِ اشْتَرَى بِرَأْسِ الْمَالِ خُمُورًا أَوْ خَنَازِيرَ ځكه كه ذمي د شركت په مال سره شراب يا خنزير رانيسي صَحَّ نو صحيح دي وَلَوِ اشْتَرَاهَا مُسْلِمٌ او كه يو مسلمان يې رانيسي لَا يَصِحُّ نو صحيح نه دي وَلَا يَجُوزُ بَيْنَ

---

* القول الراجح قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله ، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۳۷۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۱۲]

الْعَبْدَيْنِ وَلَا بَيْنَ الصَّبِيَّيْنِ وَلَا بَيْنَ الْمُكَاتَبَيْنِ او د دوو غلامانو، دوو بچيانو او دوو مكاتبينو په مينځ كي عقد مفاوضه جائز نه دی لِانْعِدَامِ صِحَّةِ الْكَفَالَةِ ځكه چي په دوی كي د كفالت صفت معدوم دی وَفِي كُلِّ مَوْضِعٍ لَمْ تَصِحَّ الْمُفَاوَضَةُ لِفَقْدِ شَرْطِهَا وَلَا يُشْتَرَطُ ذٰلِكَ فِي الْعِنَانِ كَانَ عِنَانًا او هر هغه ځای چيري چي د شرط د فقدان په وجه مفاوضه صحيح نه وي او هغه شرط په عنان كي مشروط نه وي نو عقد به عنان وي لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِ الْعِنَانِ ځكه چي په هغه كي د عنان شرطونه جمع دي إِذْ هُوَ قَدْ يَكُونُ خَاصًّا وَقَدْ يَكُونُ عَامًّا ځكه چي شركت عنان كله خاص وي او كله عام وي.

**اللغات**: ﴿التساوى﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل سره برابرېدل (يو تربله برابرېدل) ﴿خمور﴾ جمع د خَمْرٌ ده: شراب.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د دوو آزادو، بالغو مسلمانانو او ذميانو په مينځ كي عقد مفاوضه جائز دی. ځكه چي په دوی كي مساوات موجود دی، همدارنګه كه يوشريک كتابي وي او بل مجوسي وي نو د دوی په مينځ كي هم عقد مفاوضه جائز دی، ځكه چي ټوله كفر يو ملت (ملة واحده) دی او په مجوسي او كتابي كي مساوات موجود دی. ها! په آزاد او غلام كي او په بالغ او نابالغ كي عقد مفاوضه صحيح نه دی، ځكه چي په دوی كي مساوات معدوم دی. ځكه چي آزاد او بالغ د تصرف او كفالت دواړو مالک دی او غلام د مالک له اجازت څخه بغير د هيڅ شي هم مالک نه دی، لهذا په دې حواله سره په دوی كي مساوات معدوم دی، او كله چي مساوات معدوم دی نو ښكاره خبره ده چي مفاوضه به هم معدومه وي ځكه چي همدا مفاوضه مساوات دی.

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مسلمان او كافر په مينځ كي عقد مفاوضه صحيح نه دی. ليكن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز صحيح دی: ځكه چي په كفالت او وكالت كي د مسلمان او كافر په مينځ كي مساوات دی او په تصرف كي فوقيت او اختلاف لره اعتبار نسته. د دې مثال دا دی لكه يو سړی چي قصداً د څاروي ذبح كولو په وخت كي تسميه (بسم الله) نه وايي نو د شافعي سړي په نيز هغه څاروی حلال دی ليكن د حنفي سړي په نيز حلال نه دی. خو د دې اختلاف باوجود د شافعي او حنفي په مينځ كي عقد مفاوضه جائز دی، لهذا د مسلمان او كافر په مينځ كي چي په تصرف كي څه اختلاف دی، هغه لره هم اعتبار نسته. لنډه دا چي څرنګه د حنفي او شافعي په مينځ كي عقد مفاوضه جائز دی همداسي د مسلمان او كافر په مينځ كي هم جائز دی خو مكروه دی. ځكه چي ذمي د جائزو حقوقو كوښښ نه كوي او ځيني ځايونه د شريعت مطابق كار نه كوي.

د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چې د مسلمان او كافر په تصرف كې مساوات نشته. ځكه كه ذمي په راسُ المال او أصل مال سره شراب او خنزير رانيسي نو صحيح دي. لېكن د مسلمانان لپاره د دې رانيول صحيح نه ده. لنډه دا چې د مفاوضې د صحت لپاره مساوات فى التصرف ضروري دى حالانكې په مسلمان او كافر كې د تصرف په حواله سره مساوات معدوم دى نو په دې وجه دا عقد جائز نه دى.

ولايجو إلخ: فرمايي چې په دوو غلامانو. دوو بچيانو او دوو مكاتبو غلامانو كې هم عقد مفاوضه صحيح نه دى. ځكه چې عقد مفاوضه كفالت لره متضمن وي حالانكې له غلام. بچي او مكاتب څخه كفالت نه صحيح كيږي (يعني دا كسان كفيل نه سي جوړېداى). او كه چيري دا كسان د كفالت له شرط څخه بغير عقد مفاوضه وكړي نو دا عقد له مفاوضه څخه عنان گرځي. ځكه چې عقد عنان كله خاص وي او كله عام وي لېكن عقد مفاوضه فقط عام وي. او نه خاص كيږي.

## د "عقد مفاوضه" د شريكانو شرعي حيثيت

قَالَ: وَتَنْعَقِدُ عَلَى الْوَكَالَةِ وَالْكَفَالَةِ فرمايي: او عقد مفاوضه پر وكالت او كفالت منعقد كيږي أَمَّا الْوَكَالَةُ فَلِتَحَقُّقِ الْمَقْصُودِ وَهُوَ الشَّرِكَةُ فِي الْمَالِ پر وكالت [خو] به ځكه منعقد كيږي چې په وكالت سره د هغه مقصد يعني "په مال كي شركت" حاصل سي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لكه امخكي [چې موږ د دې بيان وكړى وَأَمَّا الْكَفَالَةُ فَلِتَحَقُّقِ الْمُسَاوَاةِ فِيمَا هُوَ مِنْ مَوَاجِبِ التِّجَارَاتِ او پر كفاله ځكه به دا عقد منعقد كيږي چې د تجارت [كاروبار] په لوازماتو كي مساوات ثابت سي وَهُوَ تَوَجُّهُ الْمُطَالَبَةِ نَحْوَهُمَا جَمِيعًا او هغه دواړو شريكانو ته د مطالبې متوجه كېدل دي [يعني د كفالت مطلب دا دى چې د قرض مطالبه پر دواړو وي] قَالَ: وَمَا يَشْتَرِيهِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَكُونُ عَلَى الشَّرِكَةِ إِلَّا طَعَامَ أَهْلِهِ وَكِسْوَتَهُمْ وَكَذَا كِسْوَتُهُ وَكَذَا الْإِدَامُ فرمايي: او له شريكينو څخه چې هر شريك هم يو شى رانيسي هغه به د دوى په مينځ كي مشترك وي ماسوا د هغه د آل او اولاد له خوراك او د هغوى له جامو [كاليو] څخه او همدارنگه ماسوا د هغه له خپلو جامو او سالن [اكتغ] څخه لِأَنَّ مُقْتَضَى الْعَقْدِ الْمُسَاوَاةُ ځكه چې عقد مفاوضه تقاضا مساوات دى [يعني عقد مفاوضه د مساوات متقاضي دى] وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا قَائِمٌ مَقَامَ صَاحِبِهِ فِي التَّصَرُّفِ او په شريكينو كي هر يو شريك په تصرف كي د خپل ملگري قائم مقام دى وَكَانَ شِرَاءُ أَحَدِهِمَا كَشِرَائِهِمَا او د يوه شريك شراء ارانيول] د دواړو د شراء قائم مقام ده إِلَّا مَا

اسْتِثْنَاؤُهُ فِي الْكِتَابِ ماسوا له هغه شیانو څخه کوم چې یې په متن کې مستثنیٰ کړل وَهُوَ اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی لِأَنَّهُ مُسْتَثْنًى عَنِ الْمُفَاوَضَةِ لِلضَّرُورَةِ ځکه چې دا شیان د ضرورت پر بناء له مفاوضې څخه مستثنیٰ ګرځول سوي دي فَإِنَّ الْحَاجَةَ الرَّاتِبَةَ مَعْلُومَةُ الْوُقُوعِ ځکه چې د ورځني ضروریاتو [خواک او داسې نورو] واقع کېدل معلوم دي وَلَا يُمْكِنُ إِيجَابُهُ عَلَى صَاحِبِهِ وَلَا التَّصَرُّفُ مِنْ مَالِهِ او دا [شیانو] پر خپل ملګري [شریک] لازمول او د هغه له مال څخه پوره کول ممکن نه دي وَلَا بُدَّ مِنَ الشِّرَاءِ فَيَخْتَصُّ بِهِ ضَرُورَةً او [څرنګه] چې [د دې شیانو] رانیول ضروري دي نو ځکه به د ضرورت پر بناء دوی خاص وي وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَكُونَ عَلَى الشِّرْكَةِ او قیاس دا دی: چې دوی دې هم مشترک وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی وَلِلْبَائِعِ أَنْ يَأْخُذَ بِالثَّمَنِ أَيَّهُمَا شَاءَ او بائع [اخرڅونکي] ته دا حق سته چې په دې دواړو شریکانو کې له هر یوه څخه وغواړي ثمن واخلي الْمُشْتَرِي بِالْأَصَالَةِ وَصَاحِبُهُ بِالْكَفَالَةِ له مشتري څخه د أصیل کېدلو په وجه اود هغه له ملګري [دویم شریک] څخه د کفیل کېدلو په وجه وَيَرْجِعُ الْكَفِيلُ عَلَى الْمُشْتَرِي بِحِصَّتِهِ مِمَّا أَدَّى بیا به کفیل [دویم شریک] له مشتري شریک د خپلې حصې په اندازه اداء کړی سوی قیمت اخلي لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنًا عَلَيْهِ مِنْ مَالٍ مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُمَا ځکه چې کفیل له مشترک څخه مال څخه د مشتري قرض [ثمن] اداء کړی دی قَالَ: وَمَا يَلْزَمُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنَ الدُّيُونِ بَدَلًا عَمَّا يَصِحُّ فِيهِ الِاشْتِرَاكُ فَالْآخَرُ ضَامِنٌ لَهُ فرمايي: چې په کوم عقد [معامله] کې چې شرکت صحیح وي د هغه په عوض کې چې پر هر شریک کوم قرض لازم سي نو دویم شریک به د هغه ضامن وي تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ د دې لپاره چې مساوات ثابت سي فَمِمَّا يَصِحُّ الِاشْتِرَاكُ فِيهِ: الشِّرَاءُ وَالْبَيْعُ وَالِاسْتِئْجَارُ نو هغه عقود چې په هغوی کې شرکت صحیح کیږي دا دي: رانیول. په أجرت اخیستل [په کرایه نیول] وَمِنَ الْقِسْمِ الْآخَرِ الْجِنَايَةُ وَالنِّكَاحُ وَالْخُلْعُ وَالصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ وَعَنِ النَّفَقَةِ او له دویم قسم څخه ایعني هغه عقود چې شرکت نه پکښې صحیح کیږي هغه] د شریک جرم کول دي، نکاح کول دي، خلع کول دي، په قصداً قتل کې صلح کول دي، او د ښځې د نفقې په باره کې صلح کول دي.

**اللغات**: ﴿مواجب﴾ جمع د مُوْجِب ده: سبب، لازمي وجه. ﴿كسوة﴾ جامې. كالي (ملبوسات). ﴿إدام﴾ سالن، كتغ. ﴿راتبة﴾ دژوند او معمول، ورځني، همېشني. ﴿جناية﴾ جرم.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي د عقدِ مفاوضې له دواړو شريكانو څخه به هر شريك د خپل شريک له طرفه وكيل هم وي او كفيل به هم وي، وكيل كېدل خو ځكه ضروري دي چي د شركت فى المال تر ثبوت وروسته شركت فى الربح هم ثابت سي، او كفيل كېدل ځكه ضروري دي چي كه چيري په دې تجارت كي نقصان يا قرض وسي نو هغه پر دواړو لازم سي او له دواړو څخه په مساوي توګه د هغه مطالبه وكړى سي.

**قال وما يشتريه إلخ**: د دې حاصل دا دى چي په دواړو شريكانو كي چي هر شريک د تجارت په نيت سره يو شى رانيسي هغه به د دوى په مينځ كي مشترک وي، لېكن د ژوند ضروريات او ورځني ضروري شيان به مشترک نه وي، نو كوم شريک چي د خپل ځان او أهل وعيال لپاره د خوراک او څښاک شيان رانيسي هغه به مشترک نه وي، ځكه چي ضرور تاً هغوى له مفاوضې څخه مستثنى كړځول سوي دي، او د هغوى ضرورت هره ورځ پېښېږي او دا ضرورت واضح دى. لهذا د دې شيانو سره به مشتري خاص وي او بل يو به د هغه سره په دې كي نه شريک كېږي، دا حكم پر استحسان مبني دى، كنې د قياس تقاضا دا ده چي دا شيان دي هم مشترک وي، ځكه چي عقد مفاوضه د مساوات تقاضا كوي او مساوات په هغه صورت كي ثابتيږي كله چي شركت موجود سي.

**وللبائع إلخ**: فرمايي چي كه څه هم د ژوند ضروريات به په متفاوضينو كي مشترک نه وي، لېكن دويم شريک به د مشتري له طرفه كفيل وي، او بائع ته به اختيار وي كه وغواړي نو له مشتري يعني له أصيل څخه دي ثمن واخلي او كه وغواړي نو له دويم شريک يعني له كفيل څخه دي يې واخلي. او كه كفيل يې وركړې نو هغه دي له مشتري څخه د هغه د حصې په اندازه اداء كړى سوى ثمن واخلي. ځكه چي دغه كفيل د مشتري قرض (ثمن) له مشترک مال څخه اداء كړى دى حالانكي مبيع مشتركه نه ده. همدا حكم د هغه قرض هم دى چي هغه په دې دواړو شريكانو كي پر يوه شريک لازم سي او د داسي عقد په عوض كي لازم سي چي په هغه كي اشتراک صحيح وي لكه بيع او شراء. استيجار او داسي نور. نو دا قرض به پر دواړو لازم وي د دې لپاره چي مساوات ثابت سي. لېكن په كومو عقودو كي چي اشتراک صحيح نه وي لكه د جنايت ضمان (جرمانه). د نكاح كولو مهر. بدلِ خلع او بدلِ صلح او داسي نور. نو په هغه كي به دويم شريک د مباشر (فاعل) شريک نه وي.

# په مفاوضه کې د يوه شريک کفاله قبلول

قَالَ: وَلَوْ كَفَلَ أَحَدُهُمَا بِمَالٍ عَنْ أَجْنَبِيٍّ فرمايي: که چيرې له دواړو شريکانو څخه يو شريک د أجنبي سړي له طرفه د مال کفالت وکړي لَزِمَ صَاحِبَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه پر ملګري هم هغه مال لازميږي وَقَالَا ❁: لَا يَلْزَمُهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې نه پر لازميږي لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ ځکه چې دا [کفاله] تبرّع ده وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ مِنَ الصَّبِيِّ وَالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ وَالْمُكَاتَبِ همدا وجه ده چې د بچي، مأذون غلام او مکاتب له طرفه کفاله نه صحيح کيږي وَلَوْ صَدَرَ مِنَ الْمَرِيضِ او که چيرې [د مرضُ الموت] مريض کفاله وکړي يَصِحُّ مِنَ الثُّلُثِ نو د هغه د مال له دريمې حصې څخه صحيح کيږي وَصَارَ كَالْإِقْرَاضِ وَالْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ او دا د قرض ورکولو [قرض اداء کولو] او د نفس د کفالت کولو په څير سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً وَمُعَاوَضَةٌ بَقَاءً د امام صاحب دليل دا دی: چې دا [کفاله] ابتداءً تبرع ده او بقاءً معاوضه ده لِأَنَّهُ يَسْتَوْجِبُ الضَّمَانَ بِمَا يُؤَدِّي عَلَى الْمَكْفُولِ عَنْهُ إِذَا كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِأَمْرِهِ ځکه که چيرې کفاله د مکفول عنه په حکم سره وي نو پر مکفول عنه به د هغه له طرفه اداء کړی سوی ضمان واجب وي فَبِالنَّظَرِ إِلَى الْبَقَاءِ تَتَضَمَّنُهُ الْمُفَاوَضَةُ لهذا د بقاء وطرف ته په نظر کولو سره هغه لره مفاوضه شامليږي وَبِالنَّظَرِ إِلَى الِابْتِدَاءِ لَمْ تَصِحَّ مِمَّنْ ذَكَرَهُ او د ابتداء ايعني د تبرّع] وطرف په نظر کولو سره د بچي، غلام او مکاتب له طرفه دا نه صحيح کيږي وَتَصِحُّ مِنَ الثُّلُثِ مِنَ الْمَرِيضِ او د مريض د مال له دريمې حصې څخه صحيح کيږي بِخِلَافِ الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ په خلاف د کفاله بالنفس لِأَنَّهَا تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً ځکه چې کفاله بالنفس په ابتداء کې هم تبرع ده او په انتهاء کې هم تبرّع ده وَأَمَّا الْإِقْرَاضُ او کوم چې د قرض ورکول دي ايعني د أجنبي له طرفه قرض اداء کول] فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يَلْزَمُ صَاحِبَهُ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چې دا هم د شريک پر ملګري لازميږي وَلَوْ سُلِّمَ فَهُوَ إِعَارَةٌ او که دا تسليم کړی سي چې دا د هغه پر ملګري نه لازميږي نو دا به إعاره وي فَيَكُونُ لِمِثْلِهَا حُكْمُ عَيْنِهَا لَا حُكْمُ الْبَدَلِ او د دې مثل ته به د عين

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٧١). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٢]

حکم حاصل وي. نه د بدل حَتّٰى لَايَصِحَّ فِيهِ الْأَجَلُ تر دې چې په هغه کي به ميعاد [وخت ټاکل] صحيح نه وي فَلَا يَتَحَقَّقُ مُعَاوَضَةً لهذا هغه به د معاوضې په توګه ثابت نه سي وَلَوْ كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که چيري دا کفاله د مکفول عنه [أجنبي] له حکم څخه بغير وي لَمْ تَلْزَمْ صَاحِبَهُ فِي الصَّحِيحِ نو د صحيح قول مطابق د شريک [کفيل] پر ملګري نه لازميږي لِانْعِدَامِ مَعْنَى الْمُفَاوَضَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] د مفاوضې معنیٰ معدومه ده وَمُطْلَقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ مَحْمُولٌ عَلَى الْمُقَيَّدِ او د متن مطلق حکم پر مقيد محمول دی وَضَمَانُ الْغَصْبِ وَالِاسْتِهْلَاكِ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د غصب او استهلاک ضمان د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د کفالت په درجه کي دی لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ انْتِهَاءً ځکه چي هغه انتهاءً معاوضه ده.

**اللغات:** **﴿كفّل﴾** د تفعيل ماضي ده: ضمانت اخيستل. ذمه واري اخيستل. کفاله بالمال: په خپله غاړه د يو چا د مال ذمه واري اخيستل (د يو چا د مال ذمه وار کېدل). **﴿مأذون﴾** اجازه ورکړی سوی، هغه غلام ته وايي چي د مالک له طرفه د تجارت او کاروبار کولو اجازه ورکول سوې وي. **﴿مكفول عنه﴾** د کوم سړي له طرفه چي شريک کفيل او ذمه وار جوړ سوي وي هغه ته مکفول عنه وايي. **﴿كفاله بالنفس﴾** د قاضي مخته د يو چا د حاضرولو ذمه واري اخيستل (مثلاً زيد قتل وکړي او قاضي د هغه طلب وکړي او خالد ذمه واري واخلي چي زه به هغه ستا مخته حاضروم. دې ته کفاله بالنفس وايي. دا په ابتداء او انتهاء دواړو کي تبرّع او احسان دی. ځکه چي په دې خالد ته هيڅ مال او پيسې نه حاصليږي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د عقد مفاوضې له دواړو شريکانو څخه يو شريک د يو داسي اجنبي له طرفه کفاله بالمال قبوله کړي کوم چي د دوی سره په کاروبار کي شريک نه وي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به پر دويم شريک هم دا کفاله لازم وي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به لازم نه وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي دا عقد تبرّع او احسان دی. همدا وجه ده چي د بچي. غلام او مکاتب له طرفه د دې عقد قبوليت نه صحيح کيږي (يعني دوی کفاله نه سي قبلولای). همدارنګه که يو مريض دا عقد قبول وکړي نو د هغه د مال له دريمي حصې څخه معتبر کيږي. لهذا کوم شريک چي دا قبول کړي نو دا کفاله به د هغه تر ذات پوري محدوده وي او له هغه څخه به د دويم شريک و طرف ته نه

متعدي کيږي، او لکه څرنګه چې يو شريک د يو اجنبي قرض اداء کړي يا کفاله بالنفس قبوله کړي نو دويم شريک په هغه کې نه شريک کيږي، همداسې به دلته هم دغه کفاله بالمال پر دويم شريک نه لازميږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې د دې کفالت دوه حيثيته دي: ① دا ابتداءً تبرع ده. ځکه چې نقط يو شريک هغه قبلوي، ② لېکن انتهاءً دا معاوضه او مفاوضه ده، ځکه کله چې موږ دويم شريک په دغه کفاله کې شريک کړو نو هغه او کفيل شريک به له مکفول عنه څخه دومره مال (پيسې) اخلي کوم چې دوی مکفول عنه ته ورکړي وي په دې شرط چې کفاله د مکفول عنه په حکم سره وي. اوس چې د ابتداء وطرف ته وکتل سي نو دا تبرّع ده او د انتهاء وطرف ته چې وکتل سي نو معاوضه او مفاوضه ده.

لهذا په "الاعتبار بالخواتم" باندې عمل کولو سره موږ دا معاوضه وګرځول او پر دويم شريک مو لازم کړه. پاته سوه د کفاله بالنفس مسئله؛ نو هغه د ابتداء او انتهاء په دواړو حالتونو کې تبرّع ده او په هغه کې کفيل له مکفول عنه څخه هيڅ شی واپس نه سي اخيستلای نو په دې وجه هغه کفاله پر دويم شريک نه لازميږي. او پاته سوه د قرض مسئله؛ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زياد په روايت کې دا هم پر دويم شريک لازميږي، لهذا په دې دوو مسئلو سره د امام صاحب په خلاف دليل نيول صحيح نه وي.

او که چيري موږ دا تسليم کړو چې د قرض اداء کول پر دويم شريک نه لازميږي نو بيا هم دا مفاوضه نه ده بلکې إعاره ده او مکفول عنه چې کفيل ته کوم مال واپس کوي هغه عين دی. بدل نه دی او په هغه کې ميعاد صحيح نه دی، نو په دې وجه به په هغه کې د معاوضې معنیٰ ثابته نه وي، او ښکاره خبره ده چې کله د معاوضې معنیٰ پکښې نه وي نو شرکت به هم ثابت نه وي.

او که چيري دا کفاله د مکفول عنه په حکم سره نه وي نو بيا خو دا سراسر احسان دی او د هيچا په نېز هم پر دويم شريک نه لازميږي، ځکه چې اوس بالکل د مفاوضې معنیٰ معدومه ده. او په متن کې چې کوم د "لزم صاحبه" حکم دی هغه لزوم په مکفول عنه سره مقيّد دی.

<u>وضمان الغصب إلخ</u>: که يو څوک د بل څامال غصب کړي يا يې هلاک کړي او يو شريک د هغه ذمي واري قبوله کړي او ضمان يې ورکړي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا هم د کفالت په حکم کې وي او پر دويم شريک به لازم وي، ځکه که څه هم دا ابتداءً تبرّع ده لېکن انتهاءً معاوضه ده. او په مخکنې مسئله کې امام صاحب رَحِمَهُ الله د انتهاء اعتبار کړی دی لهذا دلته به هم د انتهاء اعتبار کيږي.

## د يوه مفاوض شريک په مال کې اضافه راتلل

قَالَ: فَإِنْ وَرِثَ أَحَدُهُمَا مَا لَا يَصِحُّ فِيهِ الشَّرِكَةُ أَوْ وَهَبَ لَهُ وَوَصَلَ إِلَى يَدِهِ فرمايي: كه له دواړو شريكانو څخه يو د داسې مال وارث سي چې په هغه کې شرکت نه صحيح کيږي يا يوه شريک ته مال هبه کړی سي او د هغه لاس ته ورسيږي بَطَلَتِ الْمُفَاوَضَةُ وَصَارَتْ عِنَانًا نو مفاوضه باطليږي او هغه شرکت عنان ګرځي لِفَوَاتِ الْمُسَاوَاةِ فِيمَا يَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ ځکه چې په رأسُ المال کې مساوات نوت سو إِذْ هِيَ شَرْطٌ فِيهِ ابْتِدَاءً وَبَقَاءً حالانکې په دې عقد کې ابتداء او بقاءً مساوات ضروري دی وَهَذَا لِأَنَّ الْآخَرَ لَا يُشَارِكُهُ فِيمَا أَصَابَهُ او د دې [بطلان] يوه وجه دا [هم] ده چې کوم شريک ته دا مال رسېدلی دی په هغه کې دويم شريک د ده سره نه شريک کيږي لِانْعِدَامِ السَّبَبِ فِي حَقِّهِ ځکه چې د هغه په حق کې د شرکت سبب معدوم دی [يعني د دويم شريک په حق کې وراثت او هبه نسته] إِلَّا أَنَّهَا تَنْقَلِبُ عِنَانًا لِلْإِمْكَانِ خو دا شرکت به شرکت عنان ګرځي فَإِنَّ الْمُسَاوَاةَ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيهِ ځکه چې په عنان کې مساوات شرط نه دی وَلِدَوَامِهِ حُكْمُ الِابْتِدَاءِ او د هغه دوام [بقاء] ته د ابتداء حکم حاصل دی لِكَوْنِهِ غَيْرَ لَازِمٍ ځکه چې عنان غير لازم عقد دی فَإِنْ وَرِثَ أَحَدُهُمَا عَرَضًا او که له دواړو شريکانو څخه يو د څه سامان وارث سي فَهُوَ لَهُ وَلَا تَفْسُدُ الْمُفَاوَضَةُ نو هغه به د ده وي او عقد مفاوضه به نه باطليږي وَكَذَا الْعَقَارُ او همدا حکم د جايداد هم دی لِأَنَّهُ لَا تَصِحُّ فِيهِ الشَّرِكَةُ ځکه چې په هغه کې شرکت نه صحيح کيږي فَلَا تُشْتَرَطُ الْمُسَاوَاةُ فِيهِ لهذا په هغه کې به مساوات هم شرط نه وي.

**اللغات:** ﴿عرض﴾ سامان (له نغد مال [نقودو] څخه بغير نور شيان)، ﴿عقار﴾ هر هغه ملکيت کوم چې ثابتُ الأصل وي يعني بل ځای ته نه نقل کيږي لکه ځمکه، کور چې هغه ته جايداد وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د عقد مفاوضې له دواړو شريکانو څخه يوه شريک ته په وراثت کې يو داسې مال حاصل سي چې په هغه کې شرکت نه صحيح کيږي يا يوه شريک ته څه مال هديه کړی سي او هغه پر مال قبضه هم وکړي نو د دوی په مينځ کې چې کوم عقد مفاوضه وو هغه باطليږي او دا شرکت په شرکت عنان بدليږي، ځکه چې په رأسُ المال کې مساوات فوت سو حالانکې په دې عقد کې په ابتداء او بقاء دواړو کې مساوات ضروري وو. او هغه معدوم سو. همدارنګه کوم شريک ته چې هبه يا وراثت حاصل سوی دی هغه يوازې د دې مال مالک دی او په دې

کي د دويم شريک هيڅ حق نسته، ځکه چي د هغه په حق کي د شرکت سبب نسته. نو په دې حواله سره به هم فقط وارث يا موهوب لهٔ شريک د دغه نوي حاصل کړی سوي مال سره خاص وي او مساوات به نه وي نو ځکه به شرکتِ مفاوضه باطليږي، لېکن دا به عنان ګرځي، ځکه چي په عنان کي مساوات ضروري نه دی او څرنګه چي عنان غير لازم عقد دی او د هغه د بقاء او ابتداء حکم يو ډول دی. نو په دې وجه په هغه کي که ابتداءً مساوات وي او که نه وي د شرکت پر صحت به هيڅ أثر نه پرېوځي.

که يو شريک د څه سامان يا د څه جايداد وارث سي او په هغه کي شرکت صحيح نه وي نو دا شی (سامان يا جايداد) به فقط د هغه مملوک وي (يعني د هغه په ملکيت کي به وي) او د دې په وجه به عقد مفاوضه نه فاسديږي: ځکه کله چي په دغه شي کي شرکت صحيح نه دی نو ښکاره خبره ده چي مساوات به هم پکښې شرط نه وي او کله چي مساوات شرط نه دی نو د مساوات د نشتوالي په وجه به د عقد پر صحت أثر هم نه پرېوځي.



## فَصْلٌ

(دا) فصل (د هغه مالونو په بيان کی دی کوم چي په شرکت کي رأسُ المال جوړ پيدا ی سي)

### د "شرکت مفاوضه" أموال

وَلَا تَنْعَقِدُ الشَّرِكَةُ إِلَّا بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ وَالْفُلُوسِ النَّافِقَةِ او شرکتِ مفاوضه [فقط] په دراهمو. دنانيرو او رائجُ الوقت پيسو سره منعقد کيږي وَقَالَ مَالِكٌ: تَجُوزُ بِالْعُرُوضِ وَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ أَيْضًا إِذَا كَانَ الْجِنْسُ وَاحِدًا امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په سامان، کيلي او وزني شيانو سره هم شرکتِ مفاوضه منعقد کيږي [په دې شرط] کله چي [د کيلي او وزني شيانو] جنس يو وي لِأَنَّهَا عُقِدَتْ عَلَى رَأْسِ مَالٍ مَعْلُومٍ ځکه چي دا شرکت هم پر معلوم او متعين رأسُ المال منعقد سو فَأَشْبَهَ النُّقُودَ لهذا دا شيان [هم] د نقودو [نغدو] سره مشابه سول بِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ په خلاف د مضاربت لِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهَا ځکه چي قياس له مضاربت څخه [يعني د مضاربت له جواز څخه] انکار کوي لِمَا

فِيهَا مِنْ رِبْحِ مَا لَمْ يُضْمَنْ ځکه چي په مضاربت کي له داسي مال څخه نفع اخيستل کيږي کوم چي نه مضمون کيږي ايعني د مضاربت مال داسي مال دی چي د هغه ضمان نه واجبيږي. يعني كه له مضارب څخه هلاک سي نو پر هغه ضمان نه واجبيږي. دا په ياد لرئ! چي د کوم مال ضمان چي واجبيږي هغه ته مضمون مال وايي او د کوم مال ضمان چي نه واجبيږي هغه ته غير مضمون مال وي ا فَتَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِ الشَّرْعِ لهذا د مضاربت جواز به د شريعت پر مورد منحصر وي وَلَنَا: أَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى رِبْحِ مَا لَمْ يُضْمَنْ زموږ دليل دا دی چي ا په سامان، کيلي او وزني شيانو کي د عقد شرکت جواز ا په داسي مال سره د نفع حاصلولو سبب دی کوم چي مضمون نه دی لِأَنَّهُ إِذَا بَاعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا رَأْسَ مَالِهِ وَتَفَاضَلَ الثَّمَنَانِ ځکه کله چي له دواړو شريکانو څخه هر شريک خپل رأسُ المال خرڅ کړي او د دواړو په ثمن کي کمي او زياتوب وي امطلب دا چي د يوه شريک ثمن له بل څخه زيات وي ا فَمَا يَسْتَحِقُّهُ أَحَدُهُمَا مِنَ الزِّيَادَةِ فِي مَالِ صَاحِبِهِ رِبْحُ مَا لَمْ يَمْلِكْ وَمَا لَمْ يُضْمَنْ نو په دوی دواړو کي چي يو شريک د خپل ملکري په مال کي د کوم زياتوب مستحق وي هغه به د داسي مال نفع وي چي دا شريک به نه د هغه ملکيت لري او نه به د هغه ضامن کيږي ايعني هغه مال به نه د ده مملوک وي او نه به هغه مضمون وي ا بِخِلَافِ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ په خلاف د دراهمو او دنانيرو لِأَنَّ ثَمَنَ مَا يَشْتَرِيهِ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چي ا په هغه کي به ا د رانيول سي شي ثمن د مشتري پر ذمه وي إِذْ هِيَ لَا تَتَعَيَّنُ ځکه چي أثمان انقودا نه متعين کيږي فَكَانَ رِبْحُ مَا ضَمِنَ لهذا دا به د داسي مال وي نفع کوم چي مضمون دی ايعني دا به د مضمون مال نفع وي ا وَلِأَنَّ أَوَّلَ التَّصَرُّفِ فِي الْعُرُوضِ الْبَيْعُ وَفِي النُّقُودِ الشِّرَاءُ او ځکه چي په سامان کي اول تصرّف بيع ده او په نقودو کي اول تصرّف شراء ده وَبَيْعُ أَحَدِهِمَا مَالَهُ عَلَى أَنْ يَكُونَ الْآخَرُ شَرِيكًا فِي ثَمَنِهِ لَا يَجُوزُ او د يوه شريک پر دې شرط مال خرڅول چي دويم شريک به په ثمن کي د هغه شريک وي جائز نه دي وَشِرَاءُ أَحَدِهِمَا شَيْئًا بِمَالِهِ عَلَى أَنْ يَكُونَ الْمَبِيعُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ جَائِزٌ الېکن ا په خپل مال سره د يوه شريک پر دې شرط يو شی خرڅول چي مبيع به د هغه او د هغه د ملګري په مينځ کي مشترکه وي جائز دي وَأَمَّا الْفُلُوسُ النَّافِقَةُ فَلِأَنَّهَا تَرُوجُ رَوَاجَ الْأَثْمَانِ او رائج فلوس ا پيسې ا د أثمانو په څير رواج دي ايعني د أثمانو په څير چليږي ا فَالْتَحَقَتْ بِهَا نو ځکه دوی ا په حکم کي ا د أثمانو سره يو ځای سو قَالُوا: هَذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ مشائخو فرمايلي دي: چي دا د امام محمد رحمه الله قول دی لِأَنَّهَا

مُلْحَقَةٌ بِالنُّقُودِ عِنْدَهُ ځکه چې د هغه په نيز فلوس [په حکم کې] د نغدو سره يوځاى کړى سوي دي حَتَّى لَا تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِيْنِ تر دې چې دوى [فلوس] په متعين کولو سره نه متعين کيږي وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ اثْنَيْنِ بِوَاحِدٍ بِأَعْيَانِهَا او دوه متعين فلوس د يوه متعين فلوس په عوض کې خرڅول جائز نه دي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې معلوم سوي دي أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ لَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ وَالْمُضَارَبَةُ بِهَا ليکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په فلوسو سره شرکت او مضاربت کول جائز نه دي لِأَنَّ ثَمَنِيَّتَهَا تَتَبَدَّلُ سَاعَةً فَسَاعَةً ځکه چې د دوى ثمن کېدل ګړي په ګړي بدليږي وَتَصِيرُ سِلَعًا او دوى سامان ګرځي وَرُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ مِثْلُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو قول د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څير روايت سوى دى وَالْأَوَّلُ أَقْيَسُ وَأَظْهَرُ ليکن د امام ابو يوسف [اول قول د قياس زيات موافق او زيات ښکاره دى وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ صِحَّةُ الْمُضَارَبَةِ بِهَا او له امام صاحب څخه يو روايت دا دى چې په فلوسو سره مضاربت صحيح دى.

**اللغات**: ﴿فلوس﴾ روپۍ، پيسې، ﴿نافقة﴾ رائجُ الوقت. هغه پيسې کوم چې په اوس وخت کې رواج وي، ﴿عروض﴾ جمع د عَرَضٌ ده: له نغدو څخه بغير نور شيان. سامان. ﴿النقود﴾ جمع د نقد ده: نغدي (نغد مال لکه دراهم، دنانير، افغانۍ، کلداري او داسي نور)، ﴿ربح﴾ نفع، ګټه، منافع، ﴿سِلَع﴾ سامان.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چې زموږ په نيز فقط په دراهمو، دنانيرو او په هغه سکو او پيسو سره شرکت مفاوضه صحيح دى کوم چې رائج وي (يعني خلک رانيول او خرڅول په کوي). او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز له دې څخه بغير پر عروضو (سامانونو) او پر کيلي او وزني شيانو سره هم شرکت مفاوضه منعقد کيږي، په دې شرط چې هغه له يوه جنس (جنس واحد) څخه وي. ځکه چې د نقودو په څير دا هم معلوم او متعين رأسُ المال دى. او پر معلوم رأسُ المال شرکت مفاوضه کول صحيح کيږي لهذا پر عروضو او کيلي او وزني شيانو به هم صحيح کيږي، ليکن پر عروضو يا کيلي او وزني شيانو به عقد مضاربت نه صحيح کيږي، ځکه چې د عقد مضاربت صحت د دراهمو او دنانيرو (نقودو) سره خاص دى. او قياس په عروضو او داسي نورو کې د مضاربت د جواز منکر دى. ځکه په

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين: قوله: والفلوس النافقة أي الرائجة...والجواز بها هو الصحيح، لأنها أثمان باصطلاح الكل، فلا تبطل ما لم يصطلح على ضده (رد المحتار ج:٣، ص:٣٧٢). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٥]

مضاربت کي چي کوم مال وي هغه د مضارب په قبضه کي امانت وي او نه مضمون کيږي (يعني که د مضارب په قبضه کي هلاک سي نو پر مضارب ضمان نه واجبيږي) نو له هغه مال څخه حاصلېدونکې نفع د غير مضمون مال نفع ده لهذا د ربُ المال لپاره د هغه اخيستل صحيح نه دي. لېکن شريعت د نقودو يعني د دراهمو او دنانيرو په عوض کي مضاربت جائز ګرځولای دی لها دا جواز به فقط د نقودو سره خاص وي او د عروضو او داسي نورو وطرف ته به نه متعدي کيږي.

**ولنا أنه يؤدي إلخ**: زموږ دليل دا دی چي که موږ پر عروضو او داسي نورو (يعني کيلي او وزني شيانو) عقد شرکت جائز وګرځوو نو دا به "په غير مضمون مال سره نفع حاصلولو" ته متضمن وي په دې توګه چي کله دواړه شريکان خپل رأسُ المال په زيات ثمن سره خرڅ کړي او ديوه ثمن د بل له ثمن څخه زيات وي نو د زيات ثمن حاصلونکي به د شرکت په مال سره د داسي زيات توب مستحق وګرځي چي هغه نه د ده په ملکيت کي دی او نه هغه مال پر ده مضمون دی او ربح ما لم يضمن جائز نه ده. نو په دې وجه به پر عروضو د عقد شرکت انعقاد هم جائز نه وي. ها! پر نقودو (دراهمو او دنانيرو) جائز دي، ځکه چي نقود او أثمان په متعينولو سره نه متعين کيږي. لهذا په دوی کي به د هر هر شريک ثمن د هغه پر ذمه واجب وي او ما وجب في الذمه مضمون کيږي. نو ځکه به په دې صورت کي حاصلېدونکی مال د مضمون مال له قبيلې څخه وي او عقد شرکت به صحيح به وي.

د دې سلسلې دويم دليل دا دی چي په عروضو کي اول تصرّف د بيع وي لېکن په نقودو کي اول تصرف د شراء وي او که أحدُ الشريکين پر دې شرط خپل مال خرڅ کړي چي دويم شريک به په ثمن کي زما سره شريک وي نو جائز نه دي. ځکه چي دا شرکت د وکالت مقتضي دی او په عروضو کي داسي توکيل جائز نه دی کوم چي شرکت لره متضمن وي. لهذا کله چي په عروضو کي شرکت نه وي نو ښکاره خبره ده چي په ثمن کي به هم شرکت نه وي. او د شرکت د نشتوالي وجه دا هم ده چي وکيل بالبيع أمين وي. اوس که دا وکيل د خپل ځان لپاره د نفع (ربح) شرط ولګوي نو دا به ربح ما لم يضمن وي (ځکه چي مبيع پر أمانت ساتونکي [أمين] نه مضمون کيږي) او ربح ما لم يضمن جائز نه ده. لېکن که يو شريک په خپل مال سره يو شی رانيسي او خپل ملګری په مبيع کي شريک کړي نو صحيح دي، ځکه چي وکيل بالشراء د ثمن ضامن کيږي او ځکه چي له مبيع څخه د نفع اخيستلو شرط لګول صحيح دي نو دا به د ربح ما ضمن له قبيلې څخه وي او جائز به وي.

**وأما الفلوس النافقة إلخ**: د دې حاصل دا دی چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دارهمو او دنانيرو په څېر په رائجُ الوقت فلوسو (پيسو) سره هم عقدِ مفاوضه او عقدِ مضاربه صحيح دی. او دا فلوس د

هغه په نېز د نقودو سره ملحق دي. همدا وجه ده چې د دراهمو او دنانيرو په څېر دا هم په متعينولو سره نه متعين كيږي او يو متعين فلوس د دوو متعينو فلوسو په عوض كي خرڅول صحيح نه دي. لېكن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د فلوسو په عوض كي شركت او مضاربت صحيح نه دی. ځكه چې د فلوسو ثمنيت حتمي او يقيني نه دی او هر وخت په دوی كي ترميم كيږي تر دې چې په ځينې وختونو كي د دوی ثمنيت بالكل ختميږي او سامان ګرځي او زموږ په نېز پر سامان مفاوضه او مضاربت كول صحيح نه دي لهذا پر فلوسو به هم دا عقود صحيح نه وي.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو قول د امام محمد رَحِمَهُ الله د قولِ په څېر نقل سوی دی (يعني په يوه قول كې د هغه په نېز هم په فلوسو سره دا عقدونه صحيح دي). لېكن د هغه اول قول كوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذكر سوی دی. أصح او أظهر دی.

## له پورتنی مسئلې څخه استثناء

قَالَ: وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ بِمَا سِوَى ذٰلِكَ فرمايي: او له دې مالونو څه بغير په نورو سره شركت مفاوضه جائز نه دی إِلَّا أَنْ يَتَعَامَلَ النَّاسُ بِالتِّبْرِ وَالنُّقْرَةِ خو دا چې خلك د سروزو او سپينو زرو په ټوټه سره [د شركت] معامله كوي [تبر او نقره د سرو او سپينو زره هغه ټوټه ته وايي چې په هغې لاس وهل سوی نه وي. يعني دينار او درهم ځني تيار سوي نه وي] فَتَصِحُّ الشَّرِكَةُ بِهِمَا نو په دې دواړو سره به هم شركت صحيح كيږي هٰكَذَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ همداسې په قدوري كې ذكر سوي دي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَلَا تَكُونُ الْمُفَاوَضَةُ بِمَثَاقِيلِ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ او په جامعِ صغير كي ذكر سوي دي: چې د سرو او سپينو زرو په مثقالونو [يعني په ټوټو] سره به شركت مفاوضه نه منعقد كيږي وَمُرَادُهُ التِّبْرُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد تبر دی فَعَلَى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ التِّبْرُ سِلْعَةٌ تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ نو د دې روايت مطابق تبر يو سامان دی كوم چې په متعينولو سره متعين كيږي فَلَا تَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ فِي الْمُضَارَبَاتِ وَالشَّرِكَاتِ نو هغه به په عقدِ شركت او مضاربت كي د رأسُ المال جوړېدلو لائق نه وي وَذَكَرَ فِي كِتَابِ الصَّرْفِ أَنَّ النُّقْرَةَ لَا تَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ او امام محمد رَحِمَهُ الله [د جامع صغير] په كتاب الصرف كي ذكر كړي دي چې نقره په متعينولو سره نه متعين كيږي حَتّٰى لَا يَنْفَسِخُ الْعَقْدُ بِهَا بِهَلَاكِهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ همدا وجه ده چې له ورسپارلو څخه مخكي د هغه په هلاكېدلو سره عقد نه فسخ كيږي

فَعَلٰى تِلْكَ الرِّوَايَةِ تَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ فِيهِمَا نو د دې روايت مطابق نقره او تبر په شركت او مضاربت كي رأسُ المال جوړېدای سي وَهٰذَا لِمَا عُرِفَ أَنَّهُمَا خُلِقَا ثَمَنَيْنِ فِي الْأَصْلِ او دا ځكه چي سره زر او سپين زر په أصل كي ثمن پيدا سوي دي إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ أَصَحُّ لېكن اد جامع صغير ا اول روايت زيات صحيح دی لِأَنَّهَا وَإِنْ خُلِقَتْ لِلتِّجَارَةِ فِي الْأَصْلِ لٰكِنَّ الثَّمَنِيَّةَ تَخْتَصُّ بِالضَّرْبِ الْمَخْصُوصِ ځكه چي سره او سپين زره كه څه هم په أصل كي د تجارت لپاره پيدا سوي دي لېكن د دوی ثمنيت په مخصوصه طريقه د تيارولو اجوړولو ا سره خاص دی ايعني دوی په هغه وخت كي ثمن ګرځي كله چي دينار او درهم څني تيار سي ا لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ لَا يُصْرَفُ إِلٰى شَيْءٍ آخَرَ ظَاهِرًا ځكه چي په هغه وخت كي په ظاهره دوی د بل شي وطرف ته نه سي ګرځول كېدای إِلَّا أَنْ يَجْرِيَ التَّعَامُلُ بِاسْتِعْمَالِهِمَا ثَمَنًا خو دا چي د غير مضروب والي انا تيار والي ا په حالت كي د ثمن په توګه د دوی د استعمالولو تعامل جاري وي فَنَزَلَ التَّعَامُلُ بِمَنْزِلَةِ الضَّرْبِ نو تعامل به د تيارولو اجوړولو ا قائم مقام ګرځول كيږي فَيَكُونُ ثَمَنًا نو دوی به اهم ا ثمن كيږي وَيَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ او د رأسُ المال جوړېدلو قابل به وي ثُمَّ قَوْلُهُ "وَلَا تَجُوزُ بِمَا سِوٰى ذٰلِكَ" يَتَنَاوَلُ الْمَكِيلَ وَالْمَوْزُونَ وَالْعَدَدِيَّ الْمُتَقَارِبَ بيا د امام قدوي رَحِمَهُ الله دا قول "چي عقد مفاوضه له دې مالونو څخه بغير په نورو سره جائز نه دی" دا قول كيلي. وزني او عددي متقارب اټولو ا ته شامليږي وَلَا خِلَافَ فِيهِ بَيْنَنَا قَبْلَ الْخَلْطِ او تر ګډولو مخكي په دې كي زموږ په مينځ كي اختلاف نسته وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا رِبْحُ مَتَاعِهِ او په دواړو شريكانو كي د هر شريک لپاره به د هغه د خپل سامان نفع وي وَعَلَيْهِ وَضِيعَتُهُ او پر هر شريک به د خپل سامان تاوان اهم ا وي امطلب دا چي هر شريک به د خپل نفع او نقصان ذمه وار وي ا وَإِنْ خَلَطَا ثُمَّ اشْتَرَكَا او كه دوی دواړه مال سره ګډ كړي بيا عقد شركت وكړي فَكَذٰلِكَ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ نو هم دغه حكم دی د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول كي وَالشَّرِكَةُ شَرِكَةُ مِلْكٍ لَا شَرِكَةُ عَقْدٍ او دا شركت به شركت ملک وي. شركت عقد به نه وي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ تَصِحُّ شَرِكَةُ الْعَقْدِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به شركت صحيح كيږي وَثَمَرَةُ الِاخْتِلَافِ تَظْهَرُ عِنْدَ التَّسَاوِي فِي الْمَالَيْنِ وَاشْتِرَاطِ

التَّفَاضُلِ فِي الرِّبْحِ او د اختلاف ثمره به په دواړو مالونو کي د برابر والي په وخت کي او په نفع کي د کمي او زیاتوب د شرط لګولو په صورت کي ښکاره کیږي فَظَاهِرُ الرِّوَايَةِ مَا قَالَهُ أَبُو يُوسُفَ نو ظاهر روایت هغه دی کوم چي امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله وویل لِأَنَّهُ يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ بَعْدَ الْخَلْطِ كَمَا تَعَيَّنَ قَبْلَهُ ځکه چي تر ګډولو وروسته هم دا مال په متعینولو سره متعین کیږي لکه څرنګه چي تر ګډولو مخکي متعین کیږي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّهَا ثَمَنٌ مِنْ وَجْهٍ د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي کیلي او وزني شی من وجه ثمن دی حَتَّى جَازَ الْبَيْعُ بِهَا دَيْنًا فِي الذِّمَّةِ همدا وجه ده چي هغه [کیلي او وزني شی] پر خپله ذمه قرض ګرځول او د هغه په عوض کي بیع کول جائز دي وَمَبِيعٌ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ او [کیلي او وزني شی] منْ وجه مبیع هم دی په دې حیثیت سره چي هغه په متعینولو سره متعین کیږي فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهَيْنِ بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْحَالَيْنِ لهذا د دواړو حالتونو وطرف ته په اضافت کولو سره موږ په دواړو مشابهتونو عمل وکړی بِخِلَافِ الْعُرُوضِ په خلاف د سامانونو لِأَنَّهَا لَيْسَتْ ثَمَنًا بِحَالٍ ځکه چي هغوی په هیڅ حالت کي هم أثمان نه دي وَلَوِ اخْتَلَفَا جِنْسًا كَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالزَّيْتِ وَالسَّمْنِ او که چیري کیلي او وزني شیان مختلفُ الجنس وي لکه غنم او اُوربشي. د زیتون تېل او غوړي فَخُلِطَا او بیا دواړه سره ګډ کړی سي لَا تَنْعَقِدُ الشَّرِكَةُ بِهَا بِالِاتِّفَاقِ نو په هغوی سره به بالاتفاق شرکت نه منعقد کیږي وَالْفَرْقُ لِمُحَمَّدٍ أَنَّ الْمَخْلُوطَ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره د فرق دلیل دا دی چي د یوه جنس مخلوط [ګډ کړی سوي] شیان له ذواتُ الأمثال څخه وي وَمِنْ جِنْسَيْنِ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ او د دوو جنسونو مخلوط شیان له ذواتُ القیم څخه وي فَتَتَمَكَّنُ الْجَهَالَةُ كَمَا فِي الْعُرُوضِ لهذا د سامان په څیر په هغوی کي هم جهالت پیدا سو وَإِذَا لَمْ تَصِحَّ الشَّرِكَةُ او کله چي شرکت صحیح نه سو فَحُكْمُ الْخَلْطِ قَدْ بَيَّنَّاهُ فِي كِتَابِ الْقَضَاءِ نو په کتابُ القضاء کي موږ د خلط [ګډولو] حکم بیان کړی دی.

**اللغات**: ﴿تِبر﴾ د سرو زرو ټوټه (ټوکره). ناتیار کړی سوي سره زره چي تر اوسه په غالب او سانچه کي جوړ سوي نه وي، یعني دینار څني جوړ سوی نه وي. ﴿نُقرة﴾ د سپینو زرو ټوټه. ناتیار کړی

سوي سپين زر، چي تر اوسه درهم ځني جوړ سوي نه وي، ﴿ضَرْب﴾ د ضرب مصدر دی، د دې باب ډيري معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: له سرو او سپينو زرو څخه سکه تيارول (يعني په خپل مخصوص غالب کي اچول او دينار او درهم ځني جوړول)، ﴿ربح﴾ نفع، منافع، ﴿وضيعة﴾ نقصان (تاوان)، ﴿زيت﴾ د زيتون تېل (روغن)، ﴿سمن﴾ غوړي.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي له دراهمو او دنانيرو څخه بغير د سرو زرو يا سپنو زرو پر ټوټه (ټوکره) باندي عقد مفاوضه کول جائز نه دي، لېکن که په يو ښار او علاقه کي تِبر او نقره د ثمن حيثيت حاصل وي او د هغه ځای خلک په دې سره هم معاملات کوي نو په هغه ځای کي به په دې شيانو (تبر او نقره) سره هم عقد مفاوضه جائز وي، دا د مختصرُ القدوري مضمون دی. د جامعِ صغير د روايت مطابق تبر او نقره سامان دی او د عروضو په څېر په مضاربت او مفاوضه کي هغه هم د رأسُ المال جوړېدلو لائق نه دي. لېکن د جامعِ صغير په کتابُ الصرف کي دا حکم ذکر سوی دی چي نقره په متعينولو سره نه متعين کيږي او که دا د ثمن په عوض کي ورکول سي او د مبيع له تسليمولو څخه مخکي دا هلاک سي نو د دې په هلاکېدلو سره عقد هم نه فسخ کيږي، د دې روايت مطابق نقره په مفاوضه او مضاربت کي رأسُ المال جوړېدای سي، او په دې دواړو روايتونو کي اول روايت أصح او معتبر دی، ځکه چي نقره او تبر که څه هم د تجارت لپاره پيدا سوي دي خو بيا هم په دوی کي هغه وخت ثمنيت راځي کله چي دوی په مخصوصه طريقه سره جوړ کړی سی او وترا شل سي کاريګري پکښي وسي او د ثمنيت قابل جوړ کړی سي (چي هغه ته مضروب يا دراهم او دنانير وايي) خو که چيري دا غيرِ مضروب وي نو بيا به د عروضو په حکم کي وي او د عروضو په څير به پر دوی هم عقد شرکت او مضاربت نه صحيح کيږي. ها! که چيري په يو ځای کي د غيرِ مضروب تبر او نقره د ثمن کېدلو رواج وي، نو د رواج په وجه به دوی د مضروب قائم مقام وي او ثمن به وي او پر دوی به مفاوضه او مضاربت کول صحيح وي.

**ثم قوله ولايجوز إلخ**: فرمايي په متن کي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا فرمايلي دي "ولا يجوز بما سوى ذلک" په هغه کي د تبر او نقره سره کيلي او وزني شيان او عددیّ متقارب شيان ټوله داخل دي. او که چيري د دوو خلکو دا مال (يعني کيلي او وزني شيان او داسي نور) سره ګډ سوی نه وي نو زموږ په نېز بالاتفاق پر هغه مال مضاربت او مفاوضه کول جائز نه دي او هر هر شريک به د خپل مال د نفع او نقصان ذمه وار وي، او که چيري دواړو شريکانو خپل دغه مال سره ګډ کړی وي او بيا عقدِ مفاوضه وکړي نو

هم به د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا عقد مفاوضه نه وي او هر هر شريک به د خپل مال د نفع او نقصان ذمه وار وي او دا شرکت به فقط د ملکيت شرکت وي چې محض د دوی ملکيت سره مخلوط دی لېکن د دوی نفع به مخلوط نه وي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به دا شرکت "د عقد شرکت" وي او که چيرې د أحدُ الشريکين لپاره د زياتي نفع شرط ولګول سي نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به جائز وي لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به جائز نه وي. ځکه کيلي او وزني شيان چې ځرنګه قبل الخلط متعين کېدای سي همداسي بعد الخلط هم متعين کېدای سي او متعين کېدونکی شی د مفاوضې او مضاربت رأسُ المال جوړېدلای نه سي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د کيلي او وزني شيانو دوه حيثيته ده: ①... دا من وجه ثمن دي، مثلاً که يو سړی د غنمو يا د هګيو يا د اُوسپني يعني په عددیِ متقارب کيلي او وزني شيانو کي د يو شي په عوض کي بل شی رانيسي او بيا دا سړی په هغه وخت کي بائع ته دا شی (يعني غنم يا هګۍ يا اُوسپنه) نه ورکړي بلکي دا وعده ور سره وکړي چې وروسته يې درکوم (يعني پر ځان يې قرض کړي)، نو دا شی به د ثمن په درجه کي وي او د مشتري پر ذمه به د ثمن په توګه واجب وي. ②... او کيلي او وزني شيان من وجه مبيع دي، ځکه چې دوی په متعينولو سره متعين کيږي، لهذا موږ د قبل الخلط او بعد الخلط د دواړو حالتونو اعتبار وکړی او قبل الخلط مو دوی د عُروضو مشابه وګرځول او د دوی په عوض کي مو عقد شرکت باطل وګرځوی او د بعد الخلط والا د حالت په اعتبار کولو سره مو دوی د أثمانو مشابه وګرځول او د دوی په عوض کي مو شرکت او مضاربت صحيح وګرځوی.

**ولو اختلفا إلخ**: فرمايي که کيلي او وزني شيان مختلفُ الجنس وي مثلاً د يوه شريک د غنم وي او د بل شريک د اُوربشي وي يا د يوه شريک د زيتون تېل وي او د بل د غوړي وي او بيا دواړه خپل سامانونه سره ګډ (مخلوط) کړي نو په دې سره بالاتفاق شرکت نه منعقد کيږي (نه ثابتيږي). دا نه منعقد کېدل د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز خو ښکاره دي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې مخلوط من جنسين او په مخلوط من جنس واحد کي فرق دا دی چې مخلوط من جنس واحد له ذواتُ الأمثال څخه وي او که يو څوک هغه ضايع او هلاک کړي نو پر ضايع کونکي د هغه مثل واجبيږي او مخلوط من جنسين له ذواتُ القيم څخه وي او په دې کي د رأسُ المال د تقسيم په وخت کي له شريکينو څخه هر شريک ته خپله حصه نه رسيږي او په هغه کي جهالت راځي او مساوات ختميږي. نو په دې وجه په مخلوط من جنسين شي سره عقد شرکت او مضاربت نه ثابتيږي او دې صورت ته "خلط" ويل کيږي او د خلط او مخلوط حکم موږ په کتابُ القضاء کي بيان کړی. او له کتابُ القضاء

نُخه د جامع صغير يا د كفاية المنتهي كتابُ القضاء مراد دی والله أعلم بحقيقة الحال. (بناية ج: ۶. ص: ۸۵۲)

## په سامان او عروضو کې شرکت مفاوضه

قَالَ: وَإِذَا أَرَادَ الشَّرِكَةَ بِالْعُرُوضِ فرمايي: كه [دوه خلک] په سامان سره شركت كول وغواړي بَاعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفَ مَالِهِ بِنِصْفِ مَالِ الْآخَرِ نو هريو دې خپل نصف ' نيمايي [مال د بل د نصف مال په عوض کې خرڅ کړي ثُمَّ عَقَدَ الشَّرِكَةَ بيا دې عقد شركت وكړي قَالَ: وَهَذِهِ الشَّرِكَةُ مِلْكٌ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا شركت ملك دی [يعني د ملكيت شركت دی] لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْعُرُوضَ لَا تَصْلُحُ رَأْسَ مَالِ الشَّرِكَةِ د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړی چې عروض د شركت رأسُ المال جوړيدلای نه سي وَتَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ قِيمَةُ مَتَاعِهِمَا عَلَى السَّوَاءِ او د دې تأويل دا دی چې دا [حكم] په هغه صورت کې دی كله چې د دوی د سامان قيمت برابر وي وَلَوْ كَانَ بَيْنَهُمَا تَفَاوُتٌ او كه د سامان په قيمت کې تفاوت [توپير] وي يَبِيعُ صَاحِبُ الْأَقَلِّ بِقَدْرِ مَا تَثْبُتُ بِهِ الشَّرِكَةُ نو كم قيمت والا دې په هغه مقدار سره خپل سامان خرڅ كړي چې په هغه سره شركت ثابت سي.

**اللغات**: ﴿عروض﴾ جمع د عَرَضٌ ده: سامان. ﴿تفاوت﴾ توپير. فرق.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې په سامان او اسبابو کې عقد شركت صحيح نه دی. ليكن كه يو سړی په دې کې شركت كول وغواړي نو د هغه لپاره حيله دا ده چې په دواړو شريكانو کې دې هر شريک خپل نصف (نيمايي) سامان د بل شريک د نصف سامان په عوض کې خرڅ كړي (مطلب دا چې دواړه شريكان دې په خپل مينځ کې د نصف سامان سوداسره وكړي. هر شريک دې بل شريک ته خپل نصف سامان وركړي او د هغه نصف سامان دې څني واخلي) د دې لپاره چې د هريوه نصف سامان پر بل شريک مضمون سي او دواړو ته ربح ما ضمن حاصل سي. ليكن دا حكم په هغه صورت کې دی كله چې د دواړو خلكو د سامان قيمت برابر وي او كه د دواړو د سامان قيمت برابر نه وي او په هغه کې كمي او زياتوب وي مثلاً زيد او خالد دواړو سل. سل كېلو غنم راوړه او د شركت اراده يې

وکړه او د زيد د غنمو قيمت کم وو او د خالد د غنمو قيمت زيات وو. نو زيد دي خپل غنم پر خالد په زيات قيمت خرڅ کړي خو په دومره حساب سره دي يې پر خرڅ کړي چې د دواړو قيمت برابر سي.

## د "شرکت عنان" تعريف

قَالَ: وَأَمَّا شَرِكَةُ الْعِنَانِ فَتَنْعَقِدُ عَلَى الْوَكَالَةِ دُونَ الْكَفَالَةِ فرمايي: او کوم چي شرکت عنان دی نو هغه پر وکالت منعقد کيږي. نه پر کفالت وَهِيَ: أَنْ يَشْتَرِكَ اثْنَانِ فِي نَوْعِ بَزٍّ أَوْ طَعَامٍ أَوْ يَشْتَرِكَانِ فِي عُمُومِ التِّجَارَاتِ وَلَا يَذْكُرَانِ الْكَفَالَةَ او شرکت عنان دا دی: چي دوه خلګ په يو ډول کپړه [تهوکرا] يا غله کي شرکت کي وکړي يا په عام تجارت کي شرکت وکړي او کفاله ذکر نه کړي وَانْعِقَادُهُ عَلَى الْوَكَالَةِ لِتَحَقُّقِ مَقْصُودِهِ او دا [شرکت عنان] ځکه پر وکالت منعقد کيږي چي [په وکالت سره] د دې مقصود حاصليږي كَمَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي موږ د دې بيان وکړی وَلَا تَنْعَقِدُ عَلَى الْكَفَالَةِ او دا شرکت پر کفاله نه منعقد کيږي لِأَنَّ اللَّفْظَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْأَعْرَاضِ ځکه چي د عنان لفظ له إعراض څخه مشتق دی يُقَالُ: "عَنَّ لَهُ" أَيْ أَعْرَضَ لکه څرنګه چي ويل کيږي: "عَنَّ لَهُ" يعني هغه إعراض وکړی وَهَذَا لَا يُنْبِئُ عَنِ الْكَفَالَةِ او دا معنیٰ د کفالت خبر نه ورکوي [يعني په دې لفظ کي د کفالت معنیٰ نسته] وَحُكْمُ التَّصَرُّفِ لَا يَثْبُتُ بِخِلَافِ مُقْتَضَى اللَّفْظِ او د لفظ د متقضیٰ په خلاف حکم نه ثابتيږي وَيَصِحُّ التَّفَاضُلُ فِي الْمَالِ او [د يو شريک] په مال کي کمي و زياتوب [کمي بيشي] صحيح ده [يعني په شرکت عنان کي دا صحيح دي چي د يوه شريک مال له بل شريک څخه زيات وي] لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چي دې ته ضرورت سته وَلَيْسَ مِنْ قَضِيَّةِ اللَّفْظِ الْمُسَاوَاةُ او مساوات د عنان د لفظ تقاضا نه ده.

**اللغات**: ﴿بز﴾ جامه. کپړه. تهوکر. ﴿إعراض﴾ د افعال مصدر دی: مخ اړول. توجه نه کول (پاملرنه نه کول). ﴿قضية﴾ مقتضیٰ. تقاضا.

**تشريح**: په دې عبارت کي د شرکت عقود دويم قسم "شرکت عنان" بيان سوی دی. حاصل يې دا دی چي شرکت عنان پر وکالت منعقد کيږي پر کفالت نه منعقد کيږي يعني دواړه شريکان يو د بل وکيل کيږي. ځکه چي په دې کي يو شريک د بل شريک په مال کي تصرف کوي کوم چي له وکالت څخه بغير نه ثابتيږي. لېکن يو د بل کفيل نه کيږي. ځکه چي د عنان معنیٰ ده "اعراض کول" او په

كفالت كي د اعراض معنیٰ نسته او قاعده دا ده چي د لفظ د مقتضا په خلاف د هغه حكم نه ثابتيري (يعني لفظ چي د كوم شي تقاضا كوي د هغه خلاف حكم نه ثابتيږي). لهذا په دې حواله سره به شركت عنان له كفالت څخه خالي وي. او كه چيري په شركت عنان كي د يوه شريك مال له بل شريك څخه زيات وي نو هيڅ پروا نه لري او په دې تفاضل سره د عنان پر صحت هيڅ أثر نه پرېوځي. ځكه چي په شركت عنان كي په رأسُ المال كي مساوات شرط نه دی.

## په "شركت عنان" كي د يوه شريك لپاره د زياتي نفع شرط لګول

وَيَصِحُّ أَنْ يَتَسَاوَيَا فِي الْمَالِ وَيَتَفَاضَلَا فِي الرِّبْحِ او دا [هم] صحيح دي چي دواړه شريكان په مال كي برابر وي او په نفع كي يو له بل څخه زيات وي [يعني د ګټي په حصول كي يو شريك كم وي او بل زيات وي] وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا تَجُوزُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي جائز نه دي لِأَنَّ التَّفَاضُلَ فِيهِ يُؤَدِّي إِلَى رِبْحِ مَا لَمْ يُضْمَنْ ځكه چي په نفع كي تفاضل د ربح ما لم يضمن سبب جوړيږي فَإِنَّ الْمَالَ إِذَا كَانَ نِصْفَيْنِ وَالرِّبْحَ أَثْلَاثًا ځكه كه مال نيم. نيم وي او نفع درې حصې وي [يعني د يوه شريك لپاره دوې حصې وي او د بل شريك لپاره فقط يوه حصه وي] فَصَاحِبُ الزِّيَادَةِ يَسْتَحِقُّهَا بِلَا ضَمَانٍ نو زياتي حصې والا به له څه ضمان څخه بغير د دې زياتوب مستحق وي إِذِ الضَّمَانُ بِقَدْرِ رَأْسِ الْمَالِ حالانكي ضمان د رأسُ المال په اندازه واجبيږي وَلِأَنَّ الشَّرِكَةَ عِنْدَهُمَا فِي الرِّبْحِ لِلشَّرِكَةِ فِي الْأَصْلِ او ځكه چي د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز د نفع شركت په أصل [رأسُ المال] كي د شركت په وجه وي وَلِهَذَا يَشْتَرِطَانِ الْخَلْطَ له همدې كبله دا حضرات د خلط [ګډولو] شرط لګوي فَصَارَ رِبْحُ الْمَالِ بِمَنْزِلَةِ نَمَاءِ الْأَعْيَانِ نو د مال نفع د عَين [او أصل] د زياتوب په شير سوه فَيَسْتَحِقُّ بِقَدْرِ الْمِلْكِ فِي الْأَصْلِ لهذا هر شريك به په أصل مال كي د خپل ملكيت په اندازه د نفع مستحق وي وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ [1]: اَلرِّبْحُ عَلَى مَا شَرَطَا وَالْوَضِيعَةُ عَلَى قَدْرِ الْمَالَيْنِ زموږ دليل د نبي كريم ﷺ دا إرشاد دی: چي نفع به د دواړو شريكانو د شرط مطابق وي او نقصان به د دواړو مالونو په اندازه وي وَلَمْ يُفَصِّلْ په دې إرشاد كي نبي ﷺ د تفاضل او تساوي تر مينځ هيڅ فرق كړی

[1] تخريج: صاحب د هدايې فرمايي چي دا أصلاً د حضرت علي رضي الله عنه قول دی كوم چي په مصنف عبد الرزاق كي ذكر سوی دی.(بـ - تحفة الفصاري ـ ج:٨، ص:١٩١، رقم:١٥١٦٦)

نه دي وَلِأَنَّ الرِّبْحَ كَمَا يُسْتَحَقُّ بِالْمَالِ يُسْتَحَقُّ بِالْعَمَلِ او ځکه څرنګه چي شريک د مال په وجه د نفعي مستحق کيږي همداسي د کار په وجه هم د نفعي مستحق کيږي كَمَا فِي الْمُضَارَبَةِ لکه څرنګه چي په مضاربت کي اهم داسي کيږي! وَقَدْ يَكُونُ أَحَدُهُمَا أَحْذَقَ وَأَهْدٰى وَأَكْثَرَ عَمَلًا وَأَقْوٰى او کله يو شريک په کاروبا کي زيات ماهر او زيات واقف او زيات کار کونکی او زيات قوي وي فَلَا يَرْضٰى بِالْمُسَاوَاةِ نو هغه د مساوي نفعي په اخيستلو نه راضي کيږي فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى التَّفَاضُلِ نو ځکه تفاضل ته ضرورت محسوس سو بِخِلَافِ اِشْتِرَاطِ جَمِيعِ الرِّبْحِ لِأَحَدِهِمَا په خلاف د يوه شريک لپاره د ټولي نفعي په شرط لګولو کي لِأَنَّهُ يَخْرُجُ الْعَقْدُ بِهِ مِنَ الشَّرِكَةِ وَمِنَ الْمُضَارَبَةِ أَيْضًا ځکه چي د داسي شرط په وجه عقد له شرکت کېدلو څخه وځي او له مضاربت کېدلو څخه هم وځي إِلَى قَرْضٍ بِاشْتِرَاطِهِ لِلْعَامِلِ أَوْ إِلَى بِضَاعَةٍ بِاشْتِرَاطِهِ لِرَبِّ الْمَالِ اځکه! که چيري د کار کونکي شريک لپاره ټوله نفع شرط وي نو دا عقد به قرض وګرځي او که د ربُ المال اد مالِ والا الپاره ټوله نفع شرط وي نو دا به بضاعت وګرځي ايعني دا به داسي وي لکه ربُ المال کي چي له عامل څخه مُفت او بېله عوضه کار اخلي!

وَهٰذَا الْعَقْدُ يُشْبِهُ الْمُضَارَبَةَ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ يَعْمَلُ فِي مَالِ الشَّرِيكِ او دا عقد د مضاربت سره مشابه دی په دې حيثيت سره چي يو شريک د بل شريک په مال سره کار کوي وَيُشْبِهُ الشَّرِكَةَ اسْمًا وَعَمَلًا او ادا عقدا د نوم او کار په اعتبار سره د شرکت سره مشابه دی فَإِنَّهُمَا يَعْمَلَانِ ځکه چي اد دې عقدا دواړه شريکان کار کوي فَعَمِلْنَا بِشَبَهِ الْمُضَارَبَةِ وَقُلْنَا يَصِحُّ اشْتِرَاطُ الرِّبْحِ مِنْ غَيْرِ ضَمَانٍ نو ځکه موږ د مضاربت په مشابهت باندي عمل وکړی او وموويل: چي بغير له ضمان څخه د نفع شرط لګول صحيح دي وَبِشَبَهِ الشَّرِكَةِ حَتّٰى لَا تَبْطُلُ بِاشْتِرَاطِ الْعَمَلِ عَلَيْهِمَا او د شرکت په مشابهت مو هم عمل وکړی. تر دې چي پر دواړو شريکانو د عمل په شرطېدلو سره به دا عقد نه باطليږي.

**اللغات**: ﴿خَلْط﴾ د ضرب مصدر دی: ګډول. ﴿نماء﴾ د نصر اسمِ مصدر دی: وده. اضافه. زياتېدنه. ﴿وضيعة﴾ نقصان. تاوان. ﴿أحذق﴾ زيات ماهر. ﴿أهدٰى﴾ په لاره زيات واقف (خبر). ﴿بضاعة﴾ سرمايه. دولت. مراد څني په عامل مُفت (بېله عوضه) کار کول دي (په تشريح کي به يې وضاحت وسي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که دواړه شريکان په مال کې برابر وي لېکن په نفع (ګټه) کې مساوات او برابري نه وي بلکې په دوی کې ديوه لپاره د زياتې نفعې شرط لګول سوی وي نو زموږ په نېز دا صحيح دي. لېکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا اللہ په نېز صحيح نه دي.

**دليل**: د دې حضراتو يو دليل دا دی چې د نفعې زياتوب ربح ما لم يضمن لره متضمن دی او ربح ما لم يضمن جائز نه ده. دويم دليل دا دی چې د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُ اللہ په نېز د أصل رأس المال د شرکت په تناسب سره په نفع کې شرکت ثابتيږي. همدا وجه ده چې د دوی په نېز د دواړو شريکانو مال سره ګډېدل (مخلوط کېدل) شرط دي او د مال نفع په حقيقت کې د عَين او د رأسُ المال د اضافې په څير ده. لهذا په أصل (رأس المال) کې چې د کوم شريک څومره ملکيت وي په هغه حساب سره به هغه ته نفع هم ورکول کيږي.

**زموږ دليل**: د نبي کريم ﷺ دا إرشاد دی: "الربح على ما شرطا... إلخ" (يعني دواړو شريکانو ته به نفع په هغه اعتبار سره ورکول کيږي کوم چې دوی شرط کړی وي. لېکن د دواړو شريکانو نقصان به د دوی د رأسُ المال په اندازه وي). له دې څخه معلومه سوه چې په نفع کې د زياتوب شرط لګول صحيح دي، ځکه چې نبي کريم ﷺ مطلق د "على ما شرطا" حکم بيان کړی دی. او د تفاضل او تساوی هيڅ شرط يې نه دي لګولی.

زموږ دويم دليل دا دی چې د نفع استحقاق چې څرنګه په مال سره کيږي همداسې په عمل او کار سره هم کيږي. او کله معامله داسې وي چې په شريکَينو کې يو شريک زيات هوښيار وي يعني په کاروبار کې زيات ماهر وي او هغه زياته نفع غواړي او په مساوي نفع نه راضي کيږي او په هغه صورت کې د شرکت باقي ساتلو لپاره له تفاضل څخه بغير بله هيڅ لاره نه وي. لهذا په دې حواله سره به هم تفاضل جائز وي. لېکن که چيري ديو شريک لپاره د ټولې نفعې (ګټې) شرط لګول سوی وي. نو دا جائز نه دي، ځکه چې په دې صورت کې به عقد نه شرکت وي او نه مضاربت (يعني ديوه شريک لپاره د ټولې ګټې د شرط لګولو په وجه عقد نه شرکت پاتيږي او نه مضاربت). ځکه چې په شرکت او مضاربت کې فقط يوه فرد ته ټوله نفع نه ورکول کيږي. بلکې په دوی کې نفع مشترکه وي. اوس که چيري موږ د عامل شريک لپاره د ټولې نفعې شرط ولګوو نو دا عقد به قرض وګرځي يعني ګواکې عامل شريک له دويم شريک څخه قرض اخلي. کار په کوي او ټوله نفع په خپله اخلي. او که د ربُ المال لپاره د ټولې نفعې شرط ولګول سي نو دا به بضاعة وي يعني دا به داسې وي لکه ربُ المال چې د عامل څخه مفت (موت) کار اخلي او بېله څه عوضه په هغه خپله سرمايه ډېروي. او عقد شرکت په قرض او بضاعت بدلول صحيح نه دي. نو په دې وجه ديوه شريک لپاره د ټولې نفع شرط لګول

صحیح نه دي. او د شرکت عنان دوه حیثیته دي: (۱)... یو دا چي هغه د مضاربت سره مشابه دی، ځکه چي په هغه کي یو شریک د بل شریک په مال سره کار کوي لکه څرنګه چي مضارب د رب المال په مال سره کار کوي، (۲)... بل دا چي هغه د شرکت مفاوضه سره هم مشابه دی، ځکه چي د هغه نوم "شرکت عنان" دی، او د مفاوضې په څیر د شرکت عنان دواړه شریکان هم کار کوي: او موږ په دواړو مشابهتونو باندي عمل وکړی، نو د مضاربت په مشابهت باندي په عمل کولو سره موږ وویل چي څرنګه مضارب د ربح ما لم یضمن مستحق کیږي همداسي د عنان یو شریک هم د تفاضل په شرط سره د ربح ما لم یضمن مستحق کېدای سي، او د شرکت مفاوضه په مشابهت باندي په عمل کولو سره موږ وویل چي څرنګه په مفاوضه کي دواړه شریکان کار کوي همداسي به د عنان دواړه شریکان هم کار کوي، او د دواړو د کار په شرط به دا شرکت نه باطلیږي (یعني که په عنان کي دا شرط ولګول سي چي دواړه شریکان به کار کوي، نو په دې سره به دا شرکت نه باطلیږي، ځکه چي دا شرکت د "شرکت مفاوضه" سره هم مشابه دی).

## د شرکت عنان په هکله یو څو مسئلې

قَالَ: وَيَجُوزُ أَنْ يَعْقِدَهَا كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِبَعْضِ مَالِهِ دُونَ الْبَعْضِ فرمايي: او د هر شریک لپاره دا جائز دي چي خپل څه مال په شرکت کي ولګوي او څه نه ولګوي لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ فِي الْمَالِ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيهِ ځکه چي په شرکت عنان کي مساوات في المال شرط نه دی إِذْ اللَّفْظُ لَا يَقْتَضِيهِ ځکه چي د عنان لفظ د مساوات تقاضا نه کوي وَلَا يَصِحُّ إِلَّا بِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْمُفَاوَضَةَ تَصِحُّ بِهِ او شرکت عنان فقط په هغو شیانو سره صحیح کیږي کوم چي موږ بیان کړل چي په هغوی سره مفاوضه صحیح کیږي لِلْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَيَجُوزُ أَنْ يَشْتَرِكَا وَمِنْ جِهَةِ أَحَدِهِمَا دَنَانِيرُ وَمِنَ الْآخَرِ دَرَاهِمُ وَكَذَا مِنْ أَحَدِهِمَا دَرَاهِمُ بِيضٌ وَمِنَ الْآخَرِ سُودٌ او په شرکت عنان کي دا هم جائز دي چي د یوه شریک له طرفه دنانیر وي او د بل شریک له طرفه دراهم وي همدارنګه دا هم صحیح دي چي په دوی کي د یوه له طرفه سپین دراهم وي او د بل شریک له طرفه تور دراهم وي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دا جائز نه دي وَهَذَا بِنَاءً عَلَى اشْتِرَاطِ الْخَلْطِ وَعَدَمِهِ او دا اختلاف د مال ګډولو پر شرطېدلو یا نه شرطېدلو دی فَإِنَّ عِنْدَهُمَا شَرْطٌ ځکه چي د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نیز خلط [د مال سره ګډول] شرط دي وَلَا

يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ فِي مُخْتَلِفِي الْجِنْسِ حال دا چې په دوو مختلف الجنس مالونو کې خلط نه ثابتیږي وَسَنُبَيِّنُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالىٰ او وروسته به موږ انشاء الله د دې بیان وکړو قَالَ: وَمَا اشْتَرَاهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِلشَّرِكَةِ طُولِبَ بِثَمَنِهِ دُونَ الْآخَرِ او له شریکینو څخه چې هر یو د شرکت لپاره کوم شی رانیسي د ثمن مطالبه به له هغه څخه کیږي، نه له بل شریک څخه لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ يَتَضَمَّنُ الْوَكَالَةَ دُونَ الْكَفَالَةِ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی چې دا عقد فقط وکالت لره متضمن دی. نه کفالت لره وَالْوَكِيلُ هُوَ الْأَصْلُ فِي الْحُقُوقِ او د مطالبې په حقوقو کې فقط وکیل أصل دی قَالَ: ثُمَّ يَرْجِعُ عَلَى شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنْهُ فرمایي: بیا به مشتري له خپل شریک څخه د هغه د حصې په اندازه ثمن واپس اخلي مَعْنَاهُ إِذَا أَدَّى مِنْ مَالِ نَفْسِهِ یعني کله چې مشتري شریک له خپل مال څخه [ثمن] اداء کړی وي لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مِنْ جِهَتِهِ فِي حِصَّتِهِ ځکه چې دئ [مشتري] د خپل شریک په حصه کې د هغه له طرفه وکیل دی فَإِذَا نَقَدَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ رَجَعَ عَلَيْهِ لهذا کله چې دئ له خپل مال څخه [د خپل شریک له طرفه] نغد ثمن اداء کړي نو دئ به پر هغه رجوع کوي فَإِنْ كَانَ لَا يُعْرَفُ ذٰلِكَ إِلَّا بِقَوْلِهِ او که رانیول [شراء] داسې وي چې فقط د مشتري له قول څخه معلومیږي فَعَلَيْهِ الْحُجَّةُ نو پر هغه به بیّنه پېشول لازم وي لِأَنَّهُ يَدَّعِي وُجُوبَ الْمَالِ فِي ذِمَّةِ الْآخَرِ ځکه چې دغه مشتري د دویم شریک [یعني د خپل شریک] پر ذمه د مال د وجوب دعوی کوي وَهُوَ يُنْكِرُ او هغه د دې انکار کوي وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ او قول د منکر معتبر وي د هغه د قسم سره.

**اللغات:** ﴿بِيض﴾ جمع د أَبْيَض ده: سپین، ﴿سُوْد﴾ جمع د أَسْوَد ده: تور. ﴿يتضمّن﴾ د تفعّل مضارع ده: ضمناً شاملېدل، مشتمل کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې درې مسئلې بیان سوي دي:

(١)... اوله مسئله دا ده چې د شرکت عنان لپاره دا ضروري نه دي چې هر شریک خپل ټوله مال په دې کې ولګوي، بلکې که څه مال ولګول سي او څه د ځان سره وساتل سي نو دا هم صحیح او جائز دي. او دا هم ضروري نه دي چې د هر شریک مال به د بل شریک د مال سره برابر وي: ځکه چې په شرکت عنان

كي مساوات شرط نه دی او د "عنان" لفظ د مساوات تقاضا هم نه کوي. او څرنګه چې په دراهمو، دنانيرو او فلوسو سره عقد مفاوضه صحيح دي همداسې په دې نقودو او فلوسو سره شرکت عنان هم صحيح دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې که له شريکينو څخه د يوه شريک مال دنانير وي او د بل شريک مال دراهم وي يا د يوه شريک د سپين دراهم وي او د بل د تور درهم وي، نو هم صحيح او جائز دي. لېکن د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه دي، ځکه چې د دوی په نېز د شرکت د صحت (صحيح کېدلو) لپاره د مال مخلوط والی شرط دی او په مختلفُ الجنس شيانو کي خلط ممکن نه دی. نو په دې وجه د دوی په نېز دا شرط دي چې د دواړو شريکانو مال به يو ډول او يو قسم وي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده که چيري يو شريک په مشترکه توګه يو شی رانيسي نو بائع به له مشتري (رانيونکي شريک) څخه د ثمن مطالبه کوي له دويم عاقد (دويم شريک) څخه يې نه سي کولای. ځکه چي شرکت عنان فقط پر وکالت مشتمل وي، نه پر کفالت. لهذا يو شريک د وکيل په توګه د دويم شريک له طرفه رانيول (شراء) خو کولای سي لېکن د ثمن مطالبه به فقط له مشتري څخه کيږي، ها! بيا به دا مشتري له دويم شريک څخه د هغه د حصې ثمن واپس اخلي: ځکه چي دئ د خپل شريک له طرفه د هغه په حصه کي وکيل دی او وکيل لره دا حق سته چي له مؤکل څخه ثمن واخلي.

فإن كان لا يعرف إلخ: د دې حاصل دا دی چي که "رانيول" فقط د مشتري له قول څخه معلوم سي (او د هغه لپاره هيڅ ظاهري ثبوت نه وي)، مثلاً مشتري شريک داسي ووايي چي ما په زرو درهمو يو غلام رانيوی او له خپل مال څخه مي د هغه ثمن (قيمت) ورکړی او غلام مړ سو، نو ښکاره خبره ده چي دلته "رانيول" فقط د مشتري له قول څخه ښکاره کيږي (او د هغه لپاره څه ظاهري ثبوت نسته). نو په دغسي صورت کي له دويم شريک څخه د ثمن اخيستلو لپاره پر مشتري حجت او بيّنه پېښول لازم دي، او که هغه بيّنه پيش نه کړی سي، نو د دويم شريک قول به د قسم سره معتبر وي. ځکه چي هغه د مشتري د دعوې منکر دی او د منکر قول د يمين سره معتبر وي. لکه څرنګه چي ويل سوي دي: "البينة على المدعى واليمين على من أنكر".

## د شريکينو د مال هلاکېدل

قَالَ: وَإِذَا هَلَكَ مَالُ الشَّرِكَةِ أَوْ أَحَدُ الْمَالَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَشْتَرِيَا شَيْئًا فرمايي: که چيري د شرکت په مال سره د يو شي تر رانيولو مخکي د شرکت ټوله مال هلاک سي يا د يوه شريک مال هلاک سي بَطَلَتْ الشَّرِكَةُ نو شرکت باطليږي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ فِي عَقْدِ الشَّرِكَةِ الْمَالُ ځکه چي په عقد شرکت کي مال معقود عليه وي فَإِنَّهُ يَتَعَيَّنُ فِيهِ او هغه مال په دې عقد کي متعيّن کيږي كَمَا فِي الْهِبَةِ وَالْوَصِيَّةِ لکه

څرنګه چې په هبه او وصيت کې [متعين کيږي] وَبِهَلَاكِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ يَبْطُلُ الْعَقْدُ او د معقود عليه په هلاکېدلو سره عقد باطليږي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې په بيع کې [د معقود عليه (مبيع) په هلاکېدلو سره بيع باطليږي] بِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ وَالْوَكَالَةِ الْمُفْرَدَةِ په خلاف د مضاربت او وکالت مفرده لِأَنَّهُ لَا يَتَعَيَّنُ الثَّمَنَانِ فِيهِمَا بِالتَّعْيِينِ ځکه چې په دې دواړو عقدونو کې په متعينولو سره ثمن نه متعين کيږي وَإِنَّمَا يَتَعَيَّنَانِ بِالْقَبْضِ بلکې په قبضه سره ثمن متعين کيږي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې معلوم سوي دي وَهَذَا ظَاهِرٌ فِيمَا إِذَا هَلَكَ الْمَالَانِ او دا [د شرکت باطلېدل] د دواړو مالونو د هلاکېدلو په صورت کې ښکاره دي وَكَذَا إِذَا هَلَكَ أَحَدُهُمَا او همدارنګه کله چې د يوه شريک مال هلاک سي [نو شرکت به ځکه باطليږي] لِأَنَّهُ مَا رَضِيَ بِشَرِكَةِ صَاحِبِهِ فِي مَالِهِ إِلَّا لِيُشْرِكَهُ فِي مَالِهِ ځکه د کوم شريک مال چې هلاک سوی نه دی هغه په خپل مال کې [فقط] په دې وجه د خپل شريک په شريکولو راضي وو چې هغه دئ په خپل مال کې شريک کړي فَإِذَا فَاتَ ذَلِكَ لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِشَرِكَتِهِ لېکن کله چې د هغه شريک مال فوت سو نو دا شريک به [په خپل مال کې] د هغه پر شرکت راضي نه وي فَيَبْطُلُ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد باطليږي لِعَدَمِ فَائِدَتِهِ ځکه چې [اوس] د هغه په صحيح کېدو کې هيڅ فايده نسته وَأَيُّهُمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ صَاحِبِهِ إِنْ هَلَكَ فِي يَدِهِ فَظَاهِرٌ او په دواړو کې چې کوم مال هلاک سي که چيري د مالک په قبضه کې هلاک سي نو ښکاره ده [چې هغه به نه مضمون کيږي] وَكَذَا إِذَا كَانَ هَلَكَ فِي يَدِ الْآخَرِ همدارنګه که د بل شريک په قبضه کې هلاک سي [نو هم به نه مضمون کيږي] لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چې دا مال د هغه په لاس کې امانت دی بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْخَلْطِ په خلاف تر خلط [ګډولو] وروسته حَيْثُ يَهْلِكُ عَلَى الشَّرِكَةِ ځکه چې په دې صورت کې به هلاکت پر شرکت وي لِأَنَّهُ لَا يَتَمَيَّزُ ځکه چې [تر خلط وروسته دواړه مالونه] سره جلا کېدای نه سي فَيُجْعَلُ الْهَلَاكُ مِنَ الْمَالَيْنِ لهذا هلاکت به له دواړو مالونو څخه شمارل کيږي وَإِنِ اشْتَرَى أَحَدُهُمَا بِمَالِهِ وَهَلَكَ مَالُ الْآخَرِ قَبْلَ الشِّرَاءِ او که چيري يو شريک په خپل مال سره يو شی رانيسي او د دويم شريک له رانيولو څخه مخکې د هغه مال هلاک سي فَالْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا عَلَى مَا

شَرْطًا نو رانيول سوى شى به د دوى په مينځ کي د دوى د شرط مطابق مشترک وي لِأَنَّ الْمِلْكَ حِينَ وَقَعَ وَقَعَ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا ځکه کله چي په رانيول سوي شي کي ملکيت واقع سو نو [په هغه وخت کي] ملکيت مشترک واقع سو لِقِيَامِ الشَّرِكَةِ وَقْتَ الشِّرَاءِ ځکه چي د شراء [رانيولو] په وخت کي شرکت پاته وو فَلَا يَتَغَيَّرُ الْحُكْمُ بِهَلَاكِ مَالِ الْآخَرِ بَعْدَ ذٰلِكَ لهذا تر شراء وروسته به د بل شريک د مال په هلاکېدلو سره حکم نه بدليږي ثُمَّ الشَّرِكَةُ شَرِكَةُ عَقْدٍ عِنْدَ مُحَمَّدٍ بيا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به دا شرکت "شرکت عقد" وي خِلَافًا لِلْحَسَنِ بْنِ زِيَادٍ په خلاف د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله حَتّٰى أَنَّ أَيُّهُمَا بَاعَ جَازَ بَيْعُهُ حتىٰ په دوى کي چي کوم شريک هم رانيول سوى شى خرڅ کړي نو د هغه بيع به جائز وي لِأَنَّ الشَّرِكَةَ قَدْ تَمَّتْ فِي الْمُشْتَرَىٰ ځکه چي په رانيول سوي شي کي شرکت بشپړ [مکمّل] سو فَلَا يَنْتَقِضُ بِهَلَاكِ الْمَالِ بَعْدَ تَمَامِهَا لهذا د شرکت تر بشپړتيا وروسته به د مال په هلاکېدلو سره شرکت نه ماتيږي.

**اللغات**: ﴿معقود عليه﴾ پر کوم شي چي عقد (معامله) وکړى سي. ﴿لا يتميّز﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: جلا کېدل، بېلېدل، عليحده کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که دوه خلک شرکت سره وکړي خو تر اوسه يې د شرکت په مال سره يو شى رانيولى نه وي چي په دې دواړن کي د دواړو مال يا د يوه شريک مال هلاک سي، نو عقد شرکت باطليږي، ځکه چي په عقد شرکت کي معقود عليه مال وي او مال په متعينولو سره متعين کيږي، لهذا د مال په هلاکېدلو سره به عقد هم باطليږي، لکه څرنګه چي د مال په هلاکېدلو سره بيع باطليږي. د دې په خلاف مضاربت او وکالت مفرده دی يعني هغه وکالت کوم چي مستقل وي او د عقد مفاوضه او داسي نورو په ضمن کي ثابت نه وي. په دې (وکالت مفرده او مضاربت کي) د مال په هلاکېدلو سره هيڅ فرق نه راځي او دوى نه باطليږي، ځکه چي په دوى کي په متعينولو سره ثمن نه متعين کيږي، بلکي په قبضه کولو سره متعين کيږي.

**وهذا ظاهر إلخ**: فرمايي چي که د دواړو شريکانو مال هلاک سوى وي نو د شرکت بُطلان خو ښکاره دی. او که د يوه شريک مال هلاک سوى وي نو په دې وجه به شرکت باطليږي چي هر شريک په خپل مال کي دويم شريک په دې مقصد او په دې وجه شريک کوي چي ته به ستا په مال کي ما هم شريک کوې! اوس ښکاره خبره ده چي د کوم شريک مال ضائع سوى او هلاک سوى وي دويم شريک هغه په

خپل مال کي نه شريک کوي، ځکه چي دا دويم شريک د هغه په مال کي شريک نه سو نو په دې وجه به دا دويم شريک په دې راضي نه وي چي هغه په خپل مال کي شريک کړي. لهذا شرکت به باطل سي. او که هلاکېدونکی مال د صاحبُ المال په قبضه کي هلاک سي نو ښکاره خبره ده چي مضمون به نه وي، ځکه چي د هر شريک سره د دويم شريک مال امانت وي او امانت مال نه مضمون کيږي. لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي د دواړو مالونه مخلوط (سره ګډ کړل سوي) نه وي. خو که چيري د دواړو مال مخلوط وي نو د مال هلاکت به مشترک وي؛ ځکه چي تر مخلوطېدلو وروسته به هغوی کي امتياز او توپير کول مشکل وي.

وإن اشترىٰ: د دې حاصل دا دی چي که يو شريک په خپل مال سره يو شی رانيسي او د دويم شريک تر شراء (رانيولو) مخکي د هغه مال هلاک سي نو هم به رانيول سوی شی د دوی په مينځ کي مشترک وي، ځکه چي د رانيولو په وخت کي رانيول سوی شی مشترک وو (او په هغه کي د دويم شريک شرکت ثابت وو). لهذا وروسته به د دويم شريک د مال په هلاکېدلو سره د دغه ثابت سوي شرکت په حکم کي هيڅ تغيّر او تبدّل نه کيږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به دا شرکت "شرکتِ عقد" وي. لېکن د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله په نېز به دا "شرکتِ ملک" وي او د أحدُ الشريکَين لپاره به د هغه شي خرڅول جائز وي.

## په مخکنۍ مسئله کي د رانيول سوي سامان حکم

قَالَ: وَيَرْجِعُ عَلَىٰ شَرِيكِهِ بِحِصَّةٍ مِنْ ثَمَنِهِ فرمايي: او مشتري به له خپل شريک څخه د هغه د حصې په اندازه ثمن واپس اخلي لِأَنَّهُ اِشْتَرَىٰ نِصْفَهُ بِوَكَالَتِهِ وَنَقَدَ الثَّمَنَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ ځکه چي هغه د خپل شريک په وکالت سره نصف مشتریٰ [د رانيول سوي شي نيمه حصه] رانيولې ده او له خپل مال څخه يې نغد ثمن اداء کړی دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او [مخکي] مورږ د دې بيان وکړی هَذَا إِذَا اشْتَرَىٰ أَحَدُهُمَا بِأَحَدِ الْمَالَيْنِ أَوَّلًا ثُمَّ هَلَكَ مَالُ الْآخَرِ دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي أحدُ الشريکَين په دواړو مالونو کي په يوه مال سره اول يو شی رانيسي. بيا د بل شريک مال هلاک سي أَمَّا إِذَا هَلَكَ مَالُ أَحَدِهِمَا ثُمَّ اشْتَرَى الْآخَرُ بِمَالِ الْآخَرِ لېکن که [مخکي] په دوی کي د يوه شريک مال هلاک سي. بيا بل شريک په خپل مال سره يو شی رانيسي إِنْ صَرَّحَا بِالْوَكَالَةِ فِي عَقْدِ الشَّرِكَةِ نو که چيري دوی په عقد شرکت کي د وکالت صراحت کړی وي ايمني د عقد شرکت په وخت کي يې په صراحت سره د وکالت

خبره ذكر كړې وي اَ فَالْمُشْتَرَى مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا نو رانيول سوى شى به د دوى په مينځ كې د دوى د شرط مطابق مشترک وي لِأَنَّ الشَّرِكَةَ إِنْ بَطَلَتْ فَالْوَكَالَةُ الْمُصَرَّحُ بِهَا قَائِمَةٌ ځكه شركت كه څه هم باطل سو لېكن ذكر كړى سوى وكالت خو موجود دى فَكَانَ مُشْتَرَكًا بِحُكْمِ الْوَكَالَةِ نو د وكالت په حكم سره به هغه د دوى په مينځ كي مشترک وي وَيَكُونُ شَرِكَةَ مِلْكٍ او دا شركت به د ملكيت شركت وي وَيَرْجِعُ عَلَى شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ او مشتري به له خپل شريک څخه د هغه د حصې ثمن واپس اخلي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي مورږ ذكر كړى وَإِنْ ذَكَرَا مُجَرَّدَ الشَّرِكَةِ وَلَمْ يَنُصَّا عَلَى الْوَكَالَةِ فِيهَا او كه دواړو شريكانو فقط د شركت يادونه كړې وي او په هغه كي يې د وكالت صراحت كړى نه وي كَانَ الْمُشْتَرَى لِلَّذِي اشْتَرَاهُ خَاصَّةً نو رانيول سوى شى به فقط د مشتري وي لِأَنَّ الْوُقُوعَ عَلَى الشَّرِكَةِ حُكْمُ الْوَكَالَةِ الَّتِي تَضَمَّنَتْهَا الشَّرِكَةُ ځكه چي په رانيول سوى شي كي هغه وخت شركت واقع كيږي كله چي عقد شركت وكالت لره متضمن وي فَإِذَا بَطَلَتْ لېكن كله چي شركت باطل سو يَبْطُلُ مَا فِي ضِمْنِهَا نو كوم شى چي د شركت په ضمن كي دى هغه به هم باطليږي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَرَّحَ بِالْوَكَالَةِ په خلاف د هغه صورت كله چي يې د وكالت صرحت كړى وي لِأَنَّهَا مَقْصُودَةٌ ځكه چي اپه هغه صورت كي ا وكالت مقصود وي.

**اللغات**: ﴿صرّحا﴾ د تفعيل ماضي ده: صراحت كول. يو خبره په ښكاره الفاظو سره بيانول.(په خوله بيانول). ﴿تضمّنت﴾ د تفعّل ماضي ده: ضمناً شاملېدل. مشتمل كېدل (مشتملېدل).

﴿مجرّد﴾ محض. خالي. فقط.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دى چي په مخكني مسئله كي چي كله يو شريک په خپل مال سره په مشتركه توګه يو شى رانيسي او بيا د دويم شريک تر شراء مخكي د هغه (دويم شريک) مال هلاک سي. نو رانيول سوى شى به د دواړو په مينځ كي مشترک وي. او مشتري به له خپل ملګري (دويم شريک) څخه د هغه د حصې ثمن واپس اخلي. لېكن كه په دواړو شريكانو كي د يوه شريک تر شراء مخكي د أحدُ الشريكَين (يوه شريک) مال هلاک سي او بيا دويم شريک په خپل مال سره يو شى رانيسي. نو دا شى به هغه وخت د دوى په مينځ كي مشترک كيږي كله چي دواړو شريكانو په عقد شركت كي د وكالت صراحت كړى وي. ځكه چي تر شراء مخكي د أحدُ الشريكَين د مال په

هلاکېدلو سره خو شرکت باطليږي او فقط د وکالت په وجه به رانيول سوی شی د دوی په مينځ کي مشترک وي، او په دې صورت کې به هم مشتري له خپل ملګري (دويم شريک) څخه د هغه د حصې په اندازه ثمن واپس اخلي. او که چيري دواړو شريکانو په عقد شرکت کي د وکالت صراحت کړی نه وي بلکي د شرکت يادونه يې کړې وي، نو رانيول سوی شی به فقط د مشتري وي او په دې کي به د دويم شريک هيڅ شرکت نه وي، ځکه چي د دويم شريک شرکت په هغه صورت کي ثابتيږي کله چي په عقد شرکت کي وکالت شامل وي، لهذا کله چي دلته په عقد کي وکالت شامل او ثابت نه دی. نو رانيول سوی شی به هم د مشتري لپاره خاص وي.

## د شرکت لپاره د مال ګډولو شرط

قَالَ: وَيَجُوزُ الشِّرْكَةُ وَإِنْ لَمْ يَخْلِطَا الْمَالَ فرمايي: او شرکت جائز دی که څه هم شريکانو مال سره ګډ کړی نه وي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا تَجُوزُ [لېکن] امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [له خلط څخه بغير شرکت] جائز نه دی لِأَنَّ الرِّبْحَ فَرْعُ الْمَالِ ځکه چي نفع د مال فرع ده وَلَا يَقَعُ الْفَرْعُ عَلَى الشِّرْكَةِ إِلَّا بَعْدَ الشِّرْكَةِ فِي الْأَصْلِ او په أصل کي له شرکت څخه بغير په فرع کي شرکت نه واقع کيږي وَأَنَّهُ بِالْخَلْطِ او په أصل کي په خلط سره شرکت ثابتيږي وَهَذَا لِأَنَّ الْمَحَلَّ هُوَ الْمَالُ او دا حکم ځکه دی چي د شرکت محل مال دی وَلِهَذَا يُضَافُ إِلَيْهِ همدا وجه ده چي عقد د مال وطرف ته منسوب کيږي وَيُشْتَرَطُ تَعْيِينُ رَأْسِ الْمَالِ او د رأسُ المال تعيين شرط دی بِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ په خلاف د مضاربت لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِشَرِكَةٍ ځکه چي هغه شرکت نه دی وَإِنَّمَا هُوَ يَعْمَلُ لِرَبِّ الْمَالِ [ځکه] مضارب خو د ربُ المال لپاره کار کوي فَيَسْتَحِقُّ الرِّبْحَ عَلَى عَمَلِهِ بيا پر خپل کار د مزدورۍ مستحق کيږي [يعني بيا د خپل عمل په عوض کي مزدوري ورکول کيږي] أَمَّا هَهُنَا بِخِلَافِهِ لېکن دلته حالت د هغه په خلاف دی وَهَذَا أَصْلٌ كَبِيرٌ لَهُمَا او دا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله غتې [قوي] أصل دی حَتَّى يُعْتَبَرَ اتِّحَادُ الْجِنْسِ وَيُشْتَرَطُ الْخَلْطُ همدا وجه ده چي [د دوی په نيز] د جنس يو والي ضروري دي او خلط شرط دی وَلَا يَجُوزُ التَّفَاضُلُ فِي الرِّبْحِ مَعَ التَّسَاوِي فِي الْمَالِ او په مال کي د برابر والي په صورت کي په نفع کي کمي وزياتوب [کمي بيشي] جائز نه ده وَلَا يَجُوزُ شِرْكَةُ التَّقَبُّلِ وَالْأَعْمَالِ لِانْعِدَامِ الْمَالِ او د مال د نشتوالي په وجه شرکت تقبل و أعمال [شرکت صنائع]

جائز نه دي وَلَنَا: أَنَّ الشِّرْكَةَ فِي الرِّبْحِ مُسْتَنِدَةٌ إِلَى الْعَقْدِ دُونَ الْمَالِ زموږ دليل دا دی: چي د نفع شرکت د عقد وطرف ته منسوب دی، نه د مال وطرف ته لِأَنَّ الْعَقْدَ يُسَمَّى شِرْكَةً ځکه چي همدې عقد ته شرکت ويل کيږي فَلَا بُدَّ مِنْ تَحَقُّقِ مَعْنَى هٰذَا الِاسْمِ فِيهِ لهذا په عقد کي د دغه نوم معنیٰ ثابتېدل ضروري دي فَلَمْ يَكُنْ الْخَلْطُ شَرْطًا نو ځکه به ګډول شرط نه وي وَلِأَنَّ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيرَ لَا يَتَعَيَّنَانِ او ځکه چي دراهم او دنانير نه متعين کيږي فَلَا يُسْتَفَادُ الرِّبْحُ بِرَأْسِ الْمَالِ لهذا په رأس المال سره نفع حاصلېدای نه سي وَإِنَّمَا يُسْتَفَادُ بِالتَّصَرُّفِ بلکي نفع خو په تصرّف سره حاصلیږي لِأَنَّهُ فِي النِّصْفِ أَصِيلٌ وَفِي النِّصْفِ وَكِيلٌ ځکه چي هر شريک په نصف (نيمايي) مال کي أصيل وي او په نصف مال کي وکيل وي وَإِذَا تَحَقَّقَتِ الشِّرْكَةُ فِي التَّصَرُّفِ بِدُونِ الْخَلْطِ او کله چي له خلط څخه بغير په تصرف کي شرکت ثابت سو تَحَقَّقَتْ فِي الْمُسْتَفَادِ بِهِ وَهُوَ الرِّبْحُ بِدُونِهِ نو په تصرّف سره په حاصل کړی سوي شي يعني په نفع کي به هم له خلط څخه بغير شرکت ثابتیږي وَصَارَ كَالْمُضَارَبَةِ او دا د مضاربت په څېر سو فَلَا يُشْتَرَطُ اتِّحَادُ الْجِنْسِ وَالتَّسَاوِي فِي الرِّبْحِ لهذا د جنس يو والی او په نفع کی برابر والی به شرط نه وي وَتَصِحُّ شِرْكَةُ التَّقَبُّلِ او شرکت تقبّل به صحيح وي.

**اللغات**: ﴿فرع﴾ ښاخ، څانګه. جمع: فُرُوْع. ﴿خَلْط﴾ د ضرب مصدر دی: ګډول. ﴿تساوی﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل سره برابرېدل، خپل مينځوی برابر والی. ﴿مستندة﴾ د استفعال اسم فاعل دی: منسوب. ﴿لا يستفاد﴾ د استفعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: حاصلول. ﴿مُستفاد﴾ د استفعال اسم مفعول دی: حاصل کړی سوی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز د مال له ګډولو (مخلوط کولو) څخه بغير هم عقد شرکت صحيح او جائز دی، لېکن د امام او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز له خلط (ګډولو) څخه بغير شرکت جائز نه دی.

**دليل**: د دې حضراتو دليل دا دی چي په مشترکه توګه په تجارت کولو سره چي کومه نفع حاصلیږي هغه د مال فرع ده او دا معلومه خبره ده چي که په أصل او مال کي شرکت نه وي نو فرع به هم مشترکه نه وي، او په أصل کي اشتراک په خلط او ګډولو سره راځي. نو په دې وجه زموږ (د شوافعو) په نېز شرکت صحيح نه دی. او د دې خبري دليل "چي نفع د مال فرع ده" دا دی چي د شرکت او نفعي محل

مال دی همدا وجه ده چې دا عقد د مال وطرف ته منسوب کیږي او "عقد شرکة المال" ورته ویل کیږي. نو په دې وجه به د نفعې د حصول او د عقد د جواز مدار پر مال وي او د عقد د صحت لپاره به د مال مشترک کېدل ضروري وي. د دې په خلاف د مضاربت معامله ده. نو په مضاربت کې خلط شرط نه دی او له اختلاط څخه بغیر هم مضاربت جائز دی. ځکه چې په مضاربت کې خو له سره بالکل شرکت نشته. ځکه مضارب د ربُ المال لپاره کار کوي او خپله مزدوري اخلي.

صاحب د هدایې فرمایي چې نفع د مال فرع کېدل د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قوي أصل دی په همدې وجه د دې حضراتو په نېز د مال مخلوط کېدل او له یوه جنس څخه کېدل ضروري دي. ځکه چې د مختلفُ الجنس کېدلو په صورت کې به خلط ممکن نه وي. او د دې حضراتو په نېز که د دواړو شریکانو مال برابر وي نو په نفع کې به هم مساوات شرط وي. او څرنګه چې په شرکت تقبّل (شرکت صنائع) کې مال نشته. نو په دې وجه د دوی په نېز د شرکت دغه قسم صحیح نه دی.

**زموږ دلیل:** په دې سلسله کې زموږ دلیل دا دی چې د نفع د شرکت تعلق د عقد سره دی. د مال سره نه دی، ځکه چې د دغه عقد نوم شرکت دی، دویمه خبره دا ده چې دراهم او دنانیر په عقودو کې په متیعّنولو سره نه متعین کیږي، لهذا د هغوی په ذریعه حاصلېدونکې نفع به د عقد سره متعلق وي او د مال سره به متعلق نه وي. او عقد "عقد شرکت" دی. نو د عقد په وجه به په نفع کې هم شرکت وي. او څرنګه چې په عقد شرکت کې له مال ګډولو (خلط) څخه بغیر د تصرف په ذریعه د دواړو خلکو (شریکانو) شرکت صحیح دی. لهذا په نفع کې به هم د دواړو شرکت صحیح وي. او کله چې په أصل یعني په عقد کې د خلط ضرورت محسوس نه سو نو په عقد سره چې کومه نفع حاصلیږي په هغه کې به هم د خلط ضرورت نه وي. او له خلط څخه بغیر به په عقد کې هم شرکت ثابتیږي او په نفع کې هم.

## د شرکت په هکله یو څو مسئلې

قَالَ: وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ إِذَا شُرِطَ لِأَحَدِهِمَا دَرَاهِمُ مُسَمَّاةٌ مِنَ الرِّبْحِ فرمایي: او عقد شرکت جائز نه دی کله چې د أحدُ الشریکَین لپاره له نفعې څخه د څو متعیّنو [مخصوصو] دراهمو شرط ولګول سي لِأَنَّهُ شَرْطٌ يُوجِبُ انْقِطَاعَ الشَّرِكَةِ ځکه چې دا یو داسې شرط دی کوم چې شرکت ختموي فَعَسَاهُ لَا يَخْرُجُ إِلَّا قَدْرَ الْمُسَمَّى لِأَحَدِهِمَا او کېدای سي چې فقط هغه دارهم [په نفع کې] راووځي کوم چې د أحدُ الشریکَین لپاره متعین کړ سوي وي وَنَظِيرُهُ فِي الْمُزَارَعَةِ او د دې مثال په مزارعت کې موجود دی قَالَ: وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُتَفَاوِضَيْنِ وَشَرِيكَيْ الْعِنَانِ أَنْ يُبْضِعَ الْمَالَ فرمایي: چې په دواړو مفاوضه کونکو او د عنان په دواړو شریکانو کې هر شریک ته دا حق سته چې خپل مال په بضاعت ورکړي

لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ فِي عَقْدِ الشَّرِكَةِ ځکه چې په عقد شرکت کې په بضاعت مال ورکول عادت [او رواج] دي وَلِأَنَّ لَهُ أَنْ يَسْتَأْجِرَ عَلَى الْعَمَلِ او ځکه چې شريک ته دا اختيار هم سته چې د کار کولو لپاره په اُجرت يو مزدور [أجير] ونيسي وَالتَّحْصِيلُ بِغَيْرِ عِوَضٍ دُونَهُ او بېله عوضه [بېله اُجرته] د نفع حاصلول له دې څخه هم کم [او سپک] دي [يعني يو دليل دا هم دی چې د شريک لپاره دا جائز دي چې د کار لپاره يو عامل په اُجرت ونيسي، او په بضاعت کې شريک مُفت او بېله عوضه له عامل څخه کار اخلي کوم چې له اُجرت څخه هم کم دي، نو ځکه به شريک دا کار هم کولای سي] فَيَمْلِكُهُ نو ځکه به شريک د دې [بضاعت] ملکيت هم لري وَكَذَا لَهُ أَنْ يُودِعَهُ همدارنګه د شريک لپاره دا هم جائز دي چې د شرکت مال [يو چا ته] په امانت کښېږدي لِأَنَّهُ مُعْتَادٌ ځکه چې دا هم عادت دي وَلَا يَجِدُ التَّاجِرُ مِنْهُ بُدًّا او د تاجر لپاره له دې څخه هيڅ چاره نسته قَالَ: وَيَدْفَعُهُ مُضَارَبَةً فرمايي: او شريک په مضاربت هم مال ورکولای سي لِأَنَّهَا دُونَ الشَّرِكَةِ ځکه چې مضاربت له شرکت څخه د کمې درجې دی فَيَتَضَمَّنُهَا نو ځکه به شرکت مضاربت لره شامل وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چې د شريک لپاره په مضابت مال ورکول جائز نه دي لِأَنَّهُ نَوْعُ شَرِكَةٍ ځکه چې مضاربت هم يو ډول شرکت دی وَالْأَصَحُّ هُوَ الْأَوَّلُ او زيات صحيح اول قول دی وَهُوَ رِوَايَةُ الْأَصْلِ او هغه د مبسوط روايت دی لِأَنَّ الشَّرِكَةَ غَيْرُ مَقْصُودَةٍ وَإِنَّمَا الْمَقْصُودُ تَحْصِيلُ الرِّبْحِ ځکه چې په مضاربت سره شرکت مقصود نه وي بلکې نفع حاصلول مقصود وي كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهُ بِأَجْرٍ [او دا داسې دی] لکه يو څوک چې په اُجرت ونيسي بَلْ أَوْلَىٰ بلکې مضاربت خو په درجه اولیٰ جائز دی لِأَنَّهُ تَحْصِيلٌ بِدُونِ ضَمَانٍ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې دا پر خپله ذمه د يو شي د لازمولو څخه بغير نفع حاصلول دي بِخِلَافِ الشَّرِكَةِ حَيْثُ لَا يَمْلِكُهَا په خلاف د شرکت. ځکه چې شريک د هغه ملکيت نه لري لِأَنَّ الشَّيْءَ لَا يَسْتَتْبِعُ مِثْلَهُ ځکه چې شی د خپل همځيره [هَمْ مثله] شي د تابع په توګه نه ثابتيږي قَالَ: وَيُوَكِّلُ مَنْ يَتَصَرَّفُ فِيهِ فرمايي: او هر شريک يو څوک وکيل [هم] جوړولای سي چې هغه د شرکت په مال کې تصرّف [تجارت] وکړي لِأَنَّ التَّوْكِيلَ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ مِنْ تَوَابِعِ التِّجَارَةِ ځکه

چې د خرڅولو او رانيولو لپاره وكيل جوړول د تجارت د لوازماتو څخه دي وَالشَّرِكَةُ انْعَقَدَتْ لِلتِّجَارَةِ او عقدِ شركت د تجارت لپاره منعقد كيږي بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ په خلاف د وكيل بالشراء [يعني هغه وكيل كوم چې ديو شي پر رانيولو وكيل جوړ سوى وي] حَيْثُ لَا يَمْلِكُ أَنْ يُوَكِّلَ غَيْرَهُ ځكه هغه د دې ملكيت نه لري چې بل څوك وكيل جوړ كړي لِأَنَّهُ عَقْدٌ خَاصٌّ طُلِبَ مِنْهُ تَحْصِيلَ الْعَيْنِ ځكه چې دا يو خاص عقد دى چې په هغه سره د عَين حاصلول مقصود دي فَلَا يَسْتَتْبِعُ مِثْلَهُ لهذا هغه به د خپل همځيره شي د تابع په توګه نه ثابتيږي قَالَ: وَيَدُهُ فِي الْمَالِ يَدُ أَمَانَةٍ فرمايي: او د شريک په مال كې د شريک قبضه د امانت قبضه ده [مطلب دا چې د هر شريک په قبضه كې د بل شريک مال امانت دى] لِأَنَّهُ قَبَضَ الْمَالَ بِإِذْنِ الْمَالِكِ لَا عَلَى وَجْهِ الْبَدَلِ وَالْوَثِيقَةِ ځكه چې شريک د مالک په اجازت سره بې له څه عوضه او بې له وثيقې د هغه پر مال قبضه كړې ده فَصَارَ كَالْوَدِيعَةِ نو دا د امانت په څېر سو.

**اللغات**: ﴿مُسمّاة﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دى: مقرر، متعيّن، ټاكل سوى. ﴿انقطاع﴾ د انفعال مصدر دى: قطع كېدل، پرېكېدل (شكېدل)، ختمېدل. ﴿نظير﴾ مثل، مشابه، مثال. ﴿يبضع﴾ د افعال مضارع ده: سرمايه جوړول، د بضاعت په توګه وركول، د كاروبار لپاره وركول. يعني يو چا ته په دې مقصد مال وركول چې ته په دې مال كار او ګټه وكړه، او بيا د دې په بدله كې هغه ته عوض نه وركول. دې ته "په بضاعت وركول" وايي. ﴿وثيقة﴾ هغه شى چې معامله په مضبوطه سي، اقرار نامه، سند، دستاويز.

**تشريح**: په دې عبارت كې پنځه مسئلې بيان سوي دي:

(١)... كه چېري د أحدُ الشريكَين (يوه شريک) لپاره له نفعې څخه ديو څو متعيّن دراهمو شرط ولګول سي نو شركت باطليږي (مثلاً يو شريک دا شرط ولګوي چې له نفعې [ګټې] څخه به پنځوس درهمه اول ما ته راكول كيږي او بيا به پاته نفع نصف، نصف تقسيمول كيږي، داسې شركت باطل دى)؛ ځكه كېداى سي چې كله فقط متعيّن دراهم په نفع كې راووځي (مثلاً ټوله نفع به فقط پنځو درهمه وي) او دويم شريک به بالكل محروم سي، نو په دې وجه به دا شركت باطليږي. لكه د مزارعت او بزګرى كولو په صورت كې چې د مالک لپاره د داسې شرط په لګولو سره مزارعت باطليږي.

(۲)... د مفاوضې او عنان هر شريک ته دا جائز دي چې بل سړي ته د بضاعت په توګه مال ورکړي؛ ځکه چې په عقد شرکت کي د بضاعت رواج او عادت دی، او بل دا چې کله مالک او شريک ته دا حق سته چې يو څوک په أجرت ونيسي او کار او ګټه پـه وکړي، نو هغه ته به په طريقه اولیٰ دا حق هم وي چې بېله عوضـه پـه يو چا بضاعت وکړي. او هر شريک ته دا هم جائز دي چې بل سړي ته د امانت (وديعت) په توګه مال ورکړي، ځکه چې په تجارت کي د دغه ټولو شيانو ضرورت پيښيږي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده چې هر شريک تـه دا حق هم سته چې خپـل مال پـه مضاربت ورکړي، ځکه چې مضاربت له شرکت څخه کمتر (د لاندي درجې) وي، ځکه په شرکت کي چې کوم نقصان وسي هغه پر هر شريک لازميږي، لېکن د مضاربت نقصان پر مضارب نه لازميږي بلکي فقط پر ربُ المال لازميږي. او کله چې په شرکت کي د مال ورکول جائز دي نو په مضاربت کي به هم د مال ورکول جائز وي، دا د مبسوط روايت دی او همدا أصح دی، ځکه چې د مضاربت په توګه په مال ورکولو کي شرکت مقصود نه وي بلکي د نفعې (ګټې) حصول مقصود وي، او څرنګه چې د مضاربت په صورت کي که مضارب نفع حاصله نه کړي نو پر ربُ المال د هغه مزدوري (حقُ الزحمه) نه لازميږي، حال دا چې د استيجار په صورت کي يعني په أجرت او کرايه باندي د مزدور (أجير) د نيولو په صورت کي که نفع وي يا نه وي پـه هر صـورت کي به مالک مزدور ته خپله مزدوري ورکوي، نو په دې حواله سره مضاربت له استيجار څخه آسانه او سپک دی او استيجار جائز دی نو مضاربت به په طريقه اولیٰ جائز وي. خو يوه شريک ته دا حق او اختيـار نسـته چې لـه خپـل ملګري (دويم شريک) څخه بغير د يو بل چا سره عقد شرکت وکړي؛ ځکه چې يو شی د خپـل هَمْ مثله دويم شي نه تابع کيږي يعني د هغه د تابع پـه توګـه نه ثابتيږي، مطلب دا چې شرکت پر ښوول او هماغه شرکت اختيارول صحيح نه دي.

(۴)... څلورمه مسئله دا ده چې هر شريک ته په عقد شرکت کي د تجارت کولو لپاره د وکيل جوړولو حق هم سته؛ ځکه چې د بيع او شراء لپاره وکيـل جوړول د تجارت د لوازماتو څخه دي، او د شرکت مقصد هم تجارت دی، نو په دې وجه توکيل (وکيل جوړول) صحيح دي. لېکن که يو څوک وکيل بالشراء وي، نو د مؤکل له اجازت څخه بغير هغه بل څوک وکيل نه سي جوړولای، ځکه چې توکيل بالشراء خاص عقد دی او په هغه سره د متعين شي تحصيل مقصود وي، او وکيل چې بل څوک وکيل جوړ کړي نو دا استتباع بمثله دی، حالانکي حکم دا دی چې "الشئ لا يستتبع بمثله".

(۵)... پنځمه مسئله دا ده چې د هر شريک سره چې د بل شريک کوم مال وي هغه د امانت په توګه دی، يعني د هلاکېدلو په صورت کي نه مضمون کيږي، لکه څرنګه چې د وديعت (امانت) مال نه مضمون کيږي.

## د "شركت صنائع" بيان

قَالَ: وَأَمَّا شِرْكَةُ الصَّنَائِعِ وَيُسَمّٰى شِرْكَةَ التَّقَبُّلِ فرمايي: كوم چي شركتِ صنائع دى چي هغه ته "شركتِ تقبّل" ويل كيږي كَالْخَيَّاطِيْنِ وَالصَّبَّاغِيْنِ يَشْتَرِكَانِ عَلٰى أَنْ يَتَقَبَّلَا الْأَعْمَالَ وَيَكُوْنَ الْكَسْبُ بَيْنَهُمَا لكه دوه خياطان [درزيان] او دوه رنګرېزان چي پر دې خبره شركت وكړي چي دوى دواړه به كار كوي او ګټه به د دوى په مينځ كي مشتركه وي فَيَجُوْزُ ذٰلِكَ نو دا جائز دي وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا حكم زموږ په نېز دى وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا تَجُوْزُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي جائز نه دى لِأَنَّ هٰذِهِ شِرْكَةٌ لَا تُفِيْدُ مَقْصُوْدَهَا وَهُوَ التَّثْمِيْرُ ځكه چي دا يو داسي شركت دى كوم چي د شركت مقصود نه فايده كوي [يعني د شركت مقصود نه پكښي حاصليږي] او مقصود د مال زياتول [نفع حاصلول] دي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ ځكه چي د رأس المال وجود ضروري دى وَهٰذَا لِأَنَّ الشِّرْكَةَ فِي الرِّبْحِ تَبْتَنِيْ عَلَى الشِّرْكَةِ فِي الْمَالِ عَلٰى أَصْلِهِمَا او دا حكم ځكه دى چي د دې حضراتو پر أصل شركت فى الربح په شركت فى المال باندي مبني دى عَلٰى مَا قَرَّرْنَاهُ لكه [مخكي] چي موږ د دې بيان وكړى وَلَنَا: أَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهُ التَّحْصِيْلُ زموږ دليل دا دى: چي په عقد شركت سره د مال [نفع] حاصلول مقصود دي وَهُوَ مُمْكِنٌ بِالتَّوْكِيْلِ او دا مقصود په توكيل [وكيل جوړولو] سره ممكن دى لِأَنَّهُ لَمَّا كَانَ وَكِيْلًا فِي النِّصْفِ أَصِيْلًا فِي النِّصْفِ ځكه كله چي هر شريک په نصف كي وكيل دى او په نصف كي أصيل دى تَحَقَّقَتِ الشِّرْكَةُ فِي الْمَالِ الْمُسْتَفَادِ نو په حاصل كړى سوي مال كي شركت ثابت سو وَلَا يُشْتَرَطُ فِيْهِ اِتِّحَادُ الْعَمَلِ وَالْمَكَانِ او په شركت كي د كار او مقام يو والى شرط نه دى خِلَافًا لِمَالِكٍ وَزُفَرَ فِيْهِمَا په دې دواړو كي د امام مالک او امام زفر رَحِمَهُمَا الله اختلاف دى لِأَنَّ الْمَعْنَى الْمُجَوِّزَ لِلشِّرْكَةِ وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ لَا يَتَفَاوَتُ ځكه چي د شركت جائز ګرځونكي معنىٰ كوم چي موږ ذكر كړه [يعني نفع حاصلول] نه متفاوت كيږي وَلَوْ شَرَطَا الْعَمَلَ نِصْفَيْنِ وَالْمَالَ أَثْلَاثًا او كه دواړه شريكان د نيم. نيم كار كولو او په نفع كي د دريو حصو شرط ولګوي [يعني دا شرط ولګوي چي كار به دواړه نيم په نيمه كوو. او نفع به د يوه لپاره دوې حصې (دوه ثلثه) وي او د بل لپاره به يوه حصه وي] جَازَ نو

هم جائز دي وَفِي الْقِيَاسِ: لَا يَجُوزُ او قياس دا دی: چي جائز نه دي لِأَنَّ الضَّمَانَ بِقَدْرِ الْعَمَلِ ځکه چي ضمان ابدله ا د کار په اندازه سره وي فَالزِّيَادَةُ عَلَيْهِ رِبْحُ مَا لَمْ يُضْمَنْ لهذا تر کار زيات ضمان به "ربح ما لم يضمن" وي فَلَمْ يَجُزِ الْعَقْدُ نو ځکه به عقد نه جائز کيږي لِتَأْدِيَتِهِ إِلَيْهِ ځکه چي همدا عقد د ربح انفع ا سبب جوړيږي وَصَارَ كَشَرِكَةِ الْوُجُوهِ او دا د شرکت وجوه په شير سو وَلَكِنَّا نَقُولُ: مَا يَأْخُذُهُ لَا يَأْخُذُهُ رِبْحًا ليکن موږ وايو: چي کوم څه ازياتوب ا چي هغه اخلي هغه د نفعي په توګه نه اخلي لِأَنَّ الرِّبْحَ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ ځکه چي نفع د جنس د يو والي په صورت کي وي وَقَدِ اخْتَلَفَ حالانکي ادلته ا أصل او نفع سره مختلف دي لِأَنَّ رَأْسَ الْمَالِ عَمَلٌ وَالرِّبْحَ مَالٌ ځکه چي رأسُ المال کار دی او نفع مال دی فَكَانَ بَدَلَ الْعَمَلِ لهذا هغه چي کوم څه اخيستي دي هغه د کار عوض دی وَالْعَمَلُ يَتَقَوَّمُ بِالتَّقْوِيمِ او عمل په تقويم سره متقوّم کيږي ايعني پر کار چي قيمت ولګول سي نو هغه هم متقوم (قيمت والا) ګرځي ا فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ مَا قُوِّمَ بِهِ لهذا په کوم مقدار سره چي د هغه قيمت لګول سوی وي په هغه مقدار سره به ثابتيږي فَلَا يَحْرُمُ نو زياتوب به حرام نه وي بِخِلَافِ شَرِكَةِ الْوُجُوهِ په خلاف د شرکت وجوه لِأَنَّ جِنْسَ الْمَالِ مُتَّفِقٌ ځکه چي په هغه کي جنس متفق وي وَالرِّبْحُ يَتَحَقَّقُ فِي الْجِنْسِ الْمُتَّفِقِ او نفع په متفق کي جنس کي ثابتيږي وَرِبْحُ مَا لَمْ يُضْمَنْ لَا يَجُوزُ إِلَّا فِي الْمُضَارَبَةِ او "ربح ما لم يضمن" صرف په مضاربت کي جائز ده.

**اللغات**: ﴿خيّاط﴾ درزي، ګنډونکی، د جامو او کاليو جوړونکی، ﴿صبّاغ﴾ رنګريز، هغه څوک چي جامې او ټوکران رنګوي، ﴿تثمير﴾ د تفعيل مصدر دی: اضافه کول، زياتول، ډېرول، ﴿تبتني﴾ د افتعال مضارع ده: مبني کېدل، ﴿تقويم﴾ د تفعيل مصدر دی: قيمت لګول (قيمت او بيه پر ايښوول).

**تشريح**: په دې عبارت کي د شرکت دريم قسم يعني "شرکت صنائع" بيان سوی دی. شرکت صنائع دا دی چي دوه کاريګر (کسبګر) خلک پر دې خبره شرکت وکړي چي دواړه به په ګډه کار کوو او کومه نفع (ګټه) چي حاصله سي هغه به زموږ په مينځ کي مشترکه وي. نو زموږ (د احنافو) په نيز دا شرکت جائز دی. ليکن د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دی.

**دليل**: د دې حضراتو دليل دا دی چې په دغه شرکت سره د شرکت مقصود يعني "د نفع حصول" نه حاصليږي. ځکه چې د ربح (نفع) د حصول لپاره د رأسُ المال موجود ېدل ضروري دي او دلته رأسُ المال معدوم دی. او د دې حضراتو په نېز شرکت في الربح په شرکت في المال باندې مبني دی. او ځرنګه چې دلته شرکت في المال معدوم دی، نو ځکه به شرکت في الربح هم معدوم وي.

**زموږ دليل**: دا دی چې د عقدِ شرکت مقصد د نفعې حصول دی او دا حصول په دې توګه متحقق کيږي چې يو شريک بل شريک وکيل جوړ کړي (او دلته هم يو شريک بل شريک وکيل جوړوي). ځکه چې هر شريک په نصف کې وکيل وي او په نصف کې أصيل وي. او د وکالت په حواله سره شرکت متحقق کيږي. او د شرکت د تحقق او ثبوت لپاره د کار او مقام يو والي (اتحاد) ضروري نه دې، ځکه چې د شرکت جائز کونکی شی يعني تحصيلُ الربح د کار او مقام په مختلف کېدلو سره نه مختلف کيږي. لهذا کله چې دلته أصل مقصود حاصليږي نو بيا به د رأسُ المال په موجود والي او نشتوالي سره د شرکت په صحت کې هيڅ فرق او نقصان نه راځي.

ولوشرط إلخ: د دې حاصل دا دی چې که دواړه شريکان دا شرط ولګوي چې موږ به دواړه برابر کار کوو لېکن په نفع (ګټه) کې به ديوه لپاره دوې حصې وي او د بل لپاره به يوه حصه وي. نو دا استحساناً جائز دي. لېکن قياساً جائز نه دي، د قياس دليل دا دی چې نقصان او نفع د عمل په اندازه ورکول کيږي او ځرنګه چې دلته عمل نصف دی. لهذا ربح (نفع) هم نصف ورکول پکار دي. او له نصف څخه زائد اخيستل ربح ما لم يضمن ده او ربح ما لم يضمن جائز نه ده. او لکه ځرنګه چې په شركة في الوجوه کې تفاضل في الربح جائز نه دی، همداسې په دې مسئله کې هم تفاضل في الربح جائز نه دی.

د استحسان دليل دا دی چې په دې مسئله کې چې دواړه شريکان کوم څه اخلي هغه نفع (ګټه) نه ده بلکې د دوی د کار او عمل أجرت دی. او د کار أجرت له تاکل سوي حساب څخه کم يا زيات هم اخيستل کېدای سي؛ ځکه چې دلته عمل رأسُ المال دی او أجرت مال دی او په دې دواړو کې اختلاف دی. حالانکې په شرکتِ وجوه کې د مال جنس متفق او متحد وي او په متفقُ الجنس کې نفع متحقق کيږي. او په متفقُ الجنس کې (د ځان لپاره) د زياتې نفعې (ګټې) شرط لګول جائز وي. لېکن په شرکتِ صنائع کې جنس مختلف دی. او د جنس د اختلاف په صورت کې تفاضل جائز دی. لکه ځرنګه چې د مضاربت په صورت کې ربح ما لم يضمن هم جائز ده.

## د شركت صنائع نتيجه

قَالَ: وَمَا يَتَقَبَّلُهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنَ الْعَمَلِ فرمايي: او په شريكانو كي چي هر شريک كوم كار هم قبول كړي يَلْزَمُهُ وَيَلْزَمُ شَرِيكَهُ هغه به پر ده او د ده پر شريک لازم وي حَتَّى إِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُطَالَبُ بِالْعَمَلِ تر دې چي په دوی كي به له هر يوه څخه د عمل مطالبه كيږي وَيُطَالِبُ بِالْأَجْرِ او هر شريک به د اُجرت مطالبه كوي وَيَبْرَأُ الدَّافِعُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ او اُجرت وركونكي به يوه شريک ته د اُجرت په وركولو سره بري كيږي وَهَذَا ظَاهِرٌ فِي الْمُفَاوَضَةِ په مفاوضه كي خو دا ښكاره دي وَفِي غَيْرِهَا اسْتِحْسَانٌ او له مفاوضې څخه بغير په بل صورت كي استحساناً جائز دي وَالْقِيَاسُ خِلَافُ ذَلِكَ ليكن قياس د دې مخالف دی لِأَنَّ الشَّرِكَةَ وَقَعَتْ مُطْلَقَةً ځكه چي دا شركت مطلق واقع سوی دی وَالْكَفَالَةُ مُقْتَضَى الْمُفَاوَضَةِ او كفالت د مفاوضې مقتضیٰ ده [يعني په مفاوضه كي كفاله هم وي] وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ هَذِهِ الشَّرِكَةَ مُقْتَضِيَةٌ لِلضَّمَانِ د استحسان دليل دا دی: چي دا شركت د ضمان تقاضا كونكی دی أَلَا تَرَى أَنَّ مَا يَتَقَبَّلُهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنَ الْعَمَلِ مَضْمُونٌ عَلَى الْآخَرِ آيا ته نه ګوري! چي په دوی كي هر شريک يو كار قبل كړي هغه به پر بل شريک مضمون وي وَلِهَذَا يَسْتَحِقُّ الْأَجْرَ بِسَبَبِ نَفَاذِ تَقَبُّلِهِ عَلَيْهِ او له همدې كبله د يوه شريک د كار قبلول پر دويم شريک باندي د نافذېدلو په وجه دويم شريک د اُجرت مستحق كيږي [يعني همدا وجه ده چي پر يوه شريک د كار لازمېدلو په وجه دويم شريک هم د اُجرت اخيستلو مستحق كيږي] فَجَرَى مَجْرَى الْمُفَاوَضَةِ فِي ضَمَانِ الْعَمَلِ وَاقْتِضَاءِ الْبَدَلِ لهذا د كار په ضمان او د عوض په تقاضا كولو [مطالبه كولو] كي به دا عقد د مفاوضې قائم مقام وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي كله زموږ په نيز شركت صنائع جائز دی نو له شريكانو څخه چي كوم شريک هم كار قبول كړي هغه به پر دويم شريک هم لازم وي او له دواړو شريكانو څخه به د هغه كار مطالبه كيږي، همدارنګه د هر شريک لپاره به د هغه كار د اُجرت مطالبه كول صحيح وي. دا ټوله شيان خو په عقد مفاوضه كي ښكاره دي. يعني كه د تقبّل شركت د مفاوضې او مساوات په توګه وي نو بيا خو ښكاره ده چي دواړه شريكان به په هر شي كي شريک وي. ليكن كه مطلق شركت تقبل وي او په هغه كي د مفاوضې شرط نه وي، نو په هغه صورت كي استحساناً مساوات ثابتيږي، قياساً نه ثابتيږي: د قياس دليل دا دی چي په مطلق شركت كي كفاله نه وي او له كفالې څخه بغير مساوات نه

ثابتيږي. د استحسان دليل دا دی چې د مفاوضې له صراحت څخه بغير هم په دغه شرکت کې ضمان او مساوات ثابتيږي. همدا وجه ده چې ديوه شريک قبول کړی سوی کار پر دويم شريک لازميږي او د کار تر قبلولو وروسته دويم شريک د أجرت مستحق کيږي (يعني که فقط يو شريک کار قبول کړي نو دويم شريک د هغه کار د أجرت مطالبه کولای سي). لهذا د مفاوضې له صراحت څخه بغير به هم دا شرکت "د کار د ضمان او أجرت د مطالبې په حواله سره" د شرکتِ مفاوضه په درجه کې وي. او په دواړو کې به مساوات ثابت وي.

## د شرکتِ وجوه أحکام

قَالَ: وَأَمَّا شِرْكَةُ الْوُجُوهِ فَالرَّجُلَانِ يَشْتَرِكَانِ وَلَا مَالَ لَهُمَا عَلَى أَنْ يَشْتَرِيَا بِوُجُوهِهِمَا وَيَبِيعَا فرمايي: او شرکتِ وجوه دا دی چې دوه داسي خلک کوم چې مال نه لري پر دې خبره شرکت وکړي چې دوی به په خپل وجاهت [اعتبار او تعلقاتو] سره [په قرض] رانيول او خرڅول کوي فَتَصِحُّ الشَّرِكَةُ عَلَى هٰذَا نو په دې توګه شرکت کول صحيح دي سُمِّيَتْ بِهِ لِأَنَّهُ لَا يَشْتَرِي بِالنَّسِيئَةِ إِلَّا مَنْ كَانَ لَهُ وَجَاهَةٌ عِنْدَ النَّاسِ او دې ته شرکتِ وجوه ځکه وايي چې په قرض هغه سړی شی رانيولای سي کوم چې د خلکو په نيز عزت [اعتبار او رسوخ] لري وَإِنَّمَا تَصِحُّ مُفَاوَضَةً لِأَنَّهُ يُمْكِنُ تَحْقِيقُ الْكَفَالَةِ وَالْوَكَالَةِ فِي الْأَبْدَالِ او دا شرکت د مفاوضې په توګه ځکه صحيح دی چې په عوضونو [يعني په أثمانو] کې کفالت او وکالت ثابتول ممکن دي وَإِذَا أُطْلِقَتْ تَكُونُ عِنَانًا او که چيري دغه شرکت مطلق کړی سي نو دا به شرکتِ عنان وګرځي لِأَنَّ مُطْلَقَهُ يَنْصَرِفُ إِلَيْهِ ځکه چې مطلق شرکت د عنان وطرف ته ګرځول کيږي وَهِيَ جَائِزَةٌ عِنْدَنَا او دا شرکت زموږ په نيز جائز دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله وَالْوَجْهُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ مَا قَدَّمْنَاهُ فِي شِرْكَةِ التَّقَبُّلِ او د دواړو طرفونو دليلونه په شرکتِ تقبّل کې موږ بيان کړل قَالَ: وَكُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَكِيلُ الْآخَرِ فِيمَا يَشْتَرِيهِ فرمايي: او له شريکينو څخه به هر شريک د دويم شريک وکيل وي په هغه شي کې کوم چې يې هر شريک رانيسي لِأَنَّ التَّصَرُّفَ عَلَى الْغَيْرِ لَا يَجُوزُ إِلَّا بِوَكَالَةٍ أَوْ بِوِلَايَةٍ ځکه چې له وکالت يا ولايت څخه بغير پر بل چا تصرّف جائز نه دی وَلَا وِلَايَةَ او دلته ولايت نسته فَتَعَيَّنَ الْوَكَالَةُ نو ځکه وکالت متعين دی فَإِنْ شَرَطَا أَنَّ الْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ وَالرِّبْحَ كَذٰلِكَ بيا که دواړه شريکان دا شرط ولګوي چې رانيول سوی

شی به د دوی په مینځ کي نیم، نیم وي او نفع [ګټه] به هم نیمه. نیمه وي يَجُوزُ نو جائز دي وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَفَاضَلَا فِيهِ لېکن په نفع کي کمي وزیاتوب [کمي بیشي] کول جائز نه دي ایعني دا جائز نه دي چي يو شريک زياته نفع واخلي او بل کمه واخلي] وَإِنْ شَرَطَا أَنْ يَكُونَ الْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا او که دا شرط ولګوي چي رانيول سوی شی به د دوی په مینځ کي د دریو حصو په حساب سره وي فَالرِّبْحُ كَذٰلِكَ نو نفع به هم داسي وي ايعني که دوی دا شرط ولګوي چي ديوه شريک رانيول سوی شی به يو ثلث (يوه دريمه حصه) وي او دبل شريک رانيول سوی شی به دوه ثلثه وي، نو نفع به هم په دغه تناسب سره هر يوه ته ورکول کيږي، يعني د کوم شريک رانيول سوی شی چي يو ثلث وي هغه ته به يو ثلث نفع ورکول کيږي، او د کوم شريک شی چي دوه ثلثه وي هغه ته به دوه ثلثه نفع ورکول کيږي، له دې څخه د کم او زيات شرط لګول جائز نه دي] وَهٰذَا لِأَنَّ الرِّبْحَ لَا يُسْتَحَقُّ إِلَّا بِالْمَالِ أَوِ الْعَمَلِ أَوْ بِالضَّمَانِ ځکه چي د نفعي [ګټي] استحقاق خو يا په مال سره وي يا په کار سره وي يا په ضمان [ذمه واری] سره وي فَرَبُّ الْمَالِ يَسْتَحِقُّهُ بِالْمَالِ نو ربُّ المال د مال په وجه د نفعي مستحق کيږي وَالْمُضَارِبُ يَسْتَحِقُّهُ بِالْعَمَلِ او مضارب د کار په وجه د نفعي مستحق کيږي وَالْأُسْتَاذُ الَّذِي يُلْقِي الْعَمَلَ عَلَى التِّلْمِيذِ بِالنِّصْفِ بِالضَّمَانِ او هغه استاذ [ذمه وار] کوم چي د نصف ورکولو په عوض کي پر شاګرد [مزدور] کار اچوي هغه د ضمان [ذمه واری] په وجه د نفعي مستحق کيږي ايعني ځيني خلګ د ذمه واری اخيستلو په ذريعه د نفع مستحق کيږي، او هغه په دې توګه چي يو ټيکه دار (ذمه وار) د يو کار ذمه واري واخلي (يعني يو ټيکه ووهي) او کار په مزدورانو کوي، او نصف أجرت مزدورانو ته ورکوي او پاته نيم أجرت په خپله اخلي، نو دا ټيکه دار د ضمان او ذمه واری په ذريعه د نفعي مستحق کيږي] وَلَا يُسْتَحَقُّ بِمَا سِوَاهَا او له دې صورتونو څخه بغير په يو بل صورت سره د نفعي استحقاق نه ثابتيږي أَلَا تَرَى أَنَّ مَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ: تَصَرَّفْ فِي مَالِكَ عَلَى أَنَّ لِي رِبْحَهُ آيا ته نه ګوري! چي که يو څوک بل چا ته ووايي: ته په خپل مال سره تجارت کوه! د دې لپاره چي د هغه نفع [ګټه] به زما وي لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دي لِعَدَمِ هٰذِهِ الْمَعَانِي ځکه چي دغه اسباب [صورتونه] معدوم دي وَاسْتِحْقَاقُ الرِّبْحِ فِي شَرِكَةِ الْوُجُوهِ بِالضَّمَانِ او په شرکت وجوه کي د نفعي استحقاق په ضمان سره وي عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه امخکي [چي موږ] ادې] بيان وکړی وَالضَّمَانُ عَلَى قَدْرِ الْمِلْكِ فِي الْمُشْتَرَى او ضمان په رانيول سوي شي کي د ملکيت په اندازه ثابتيږي وَكَانَ الرِّبْحُ الزَّائِدُ عَلَيْهِ رِبْحَ مَا لَمْ يُضْمَنْ او پر هغه زايده نفع ايعني تر هغه زياته نفع

اخيستل ابه "ربح مالم يضمن" وي فَلَا يَصِحُّ اشْتِرَاطُهُ إِلَّا فِي الْمُضَارَبَةِ لهذا د "ربح مالم يضمن" شرط لګول صحيح نه دي، مګر په مضاربت کي وَالْوُجُوهُ لَيْسَتْ فِي مَعْنَاهَا او شرکت وجوه د مضاربت په معنیٰ سره نه دی بِخِلَافِ الْعِنَانِ په خلاف د شرکت عنان لِأَنَّهُ فِي مَعْنَاهَا مِنْ حَيْثُ أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَعْمَلُ فِي مَالِ صَاحِبِهِ ځکه چي هغه د مضاربت په معنیٰ سره دی په دې حيثيت سره چي په شرکت عنان کي هر شريک د خپل ملګري په مال سره کار کوي فَيُلْحَقُ بِهَا نو ځکه به شرکت عنان ا په حکم کي ا د مضاربت سره يو ځای کيږي. والله أعلم

**اللغات**: ﴿وجوه﴾ جمع د وَجْهٌ ده. د دې لفظ ډيري معناوي دي. دلته يې معنیٰ ده: وجاهت (عزت او رعب) يعني اعتبار او رسوخ. شناخت او پيژندګلوي (تعلقات). ﴿نسيئة﴾ پور. قرض. ﴿يلقي﴾ د افعال مضارع ده: اچول. ﴿ربح﴾ نفع. ګټه. منافع.

**تشريح**: په دې عبارت کي شرکت وجوه بيان سوی دی. د شرکت وجوه تعريف دا دی چي دوه داسي خلګ چي د هغو سره مال نه وي پر دې شرط شرکت وکړي چي په ما او تا کي به هريو په خپل وجاهت او په خپلو تعلقاتو سره د خلګو مالونه په قرض رانيسو او هغه به خرڅوو او کومه ګټه او نفع چي وسي هغه به د هر يوه لپاره نصف. نصف يا د شراء مطابق وي. نو زموږ په نېز دا شرکت صحيح دی، لېکن د شوافعو په نېز صحيح نه دی. ځکه چي د هغو په نېز د نفع شرکت د مال پر شرکت مبني دی او دلته مال نسته. نو په دې وجه دا شرکت صحيح نه دی. لېکن زموږ په نېز د شرکت صحت پر عقد مبني دی او دلته عقد موجود دی. په "والوجه من الجانبين" سره همدې طرف ته صاحب د کتاب اشاره کړې ده.

**والمفاوضة إلخ**: فرمايي چي دا شرکت د مفاوضې په توګه ځکه صحيح دی چي په مفاوضه کي کفالت او وکالت وي او په دې شرکت کي که څه هم ابتداءً کفالت نه وي خو بقاءً يعني په ثمن او مبيع کي کفالت وي.

**قال وكل واحد إلخ**: د دې حاصل دا دی چي په دواړو شريکانو کي چي هر شريک کوم شی رانيسي په هغه کي به رانيونکی شريک د دويم شريک وکيل وي او نفع به د دوی د خپل مينځوي شرط مطابق په دوی کي تقسيمول کيږي. او د يوه شريک لپاره هم د زياتي نفعي (ګټي) د اخيستلو شرط لګول صحيح نه دي، ځکه چي په دې شرکت کي د نفعي استحقاق د ضمان په وجه سره او د ضمان په اعتبار سره حاصليږي. او ضمان په رانيول سوي شي کي د حصې او ملکيت په تناسب سره واجبيږي. نو په دې وجه به د زياتي نفعي د اخيستلو شرط "ربح مالم يضمن" لره متضمن وي او ربح مالم يضمن جائز نه ده. ځکه چي هغه په مضاربت کي جائز ده او شرکت وجوه د مضاربت په معنیٰ سره نه دی (يعني په شرکت وجوه کي د مضاربت هيڅ معنیٰ نسته). والله أعلم بالصواب

# فَصْلٌ فِي الشَّرِكَةِ الْفَاسِدَةِ

(دا) فصل په (بيان د) فاسد شركت كي دى

## په ښكار كولو يا د بوټو (لرګيو) په جمع كولو كي شركت كول

وَلَايَجُوزُ الشَّرِكَةُ فِي الِاحْتِطَابِ وَالِاصْطِيَادِ او د بوټو [لرګيو] په جمع كولو او ښكار كولو كي شركت جائز نه دى وَمَا اصْطَادَهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَوِ احْتَطَبَهُ او په دواړو كي چي هر يو ښكار وكړي يا بوټي جمع كړي [ټول كړي] فَهُوَلَهُ دُونَ صَاحِبِهِ نو دا به [فقط] د هغه وي. نه د هغه د ملګري وَعَلٰى هٰذَا الِاشْتِرَاكُ فِي أَخْذِ كُلِّ شَيْءٍ مُبَاحٍ او په هر مباح [روا] شي كي د شركت كولو همدغه حكم دى لِأَنَّ الشَّرِكَةَ مُتَضَمِّنَةٌ مَعْنَى الْوَكَالَةِ ځكه چي شركت د وكالت معنىٰ لره متضمن وي وَالتَّوْكِيلُ فِي أَخْذِ الْمَالِ الْمُبَاحِ بَاطِلٌ او د مباح مال [مباح شي] د اخيستلو لپاره وكيل جوړول باطل دي لِأَنَّ أَمْرَ الْمُوَكِّلِ بِهِ غَيْرُ صَحِيحٍ ځكه چي په مباح شي [او مباح كار] سره د مؤكل حكم كول صحيح نه دي وَالْوَكِيلُ يَمْلِكُهُ بِدُونِ أَمْرِهِ او وكيل د مؤكل له حكم څخه بغير هم د هغه ملكيت لري [يعني وكيل د مؤكل له حكم څخه بغير هم مباح شى اخيستلاى سي] فَلَا يَصْلُحُ نَائِبًا عَنْهُ لهذا [په مباح شي كي او وكيل د مؤكل له طرفه نائب نه سي جوړېدلاى وَإِنَّمَا يَثْبُتُ الْمِلْكُ لَهُمَا بِالْأَخْذِ وَإِحْرَازِ الْمُبَاحِ او د دواړو ملكيت به د مباح شي په اخيستلو او جمع كولو سره ثابتيږي فَإِنْ أَخَذَاهُ مَعًا نو كه دوه خلك پر يوه ځاى مباح شى واخلي [مثلاً دواړه په يوه وار ښكار ونيسي] فَهُوَبَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو هغه به د دوى په مينځ كي نيم. نيم وي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ ځكه چي دوى دواړه د استحقاق په سبب كي برابر دي وَإِنْ أَخَذَهُ أَحَدُهُمَا وَلَمْ يَعْمَلِ الْآخَرُ شَيْئًا او كه په دوى كي يو هغه واخلي او دويم هيڅ كار نه وكړي فَهُوَلِلْعَامِلِ نو هغه به د كار كونكي وي وَإِنْ عَمِلَ أَحَدُهُمَا وَأَعَانَهُ الْآخَرُ فِي عَمَلِهِ بِأَنْ قَلَعَهُ

أَحَدُهُمَا وَجَمَعَهُ الْآخَرُ أَوْ قَلَعَهُ وَجَمَعَهُ وَحَمَلَهُ الْآخَرُ او كه په دوى كي يو كار وكړي او دويم په كار كي د هغه سره مدد امرسته او كړي په دې توګه چي يو بوټي وكاږي او دويم يې سره جمع كړي يا يو بوټي وكاږي او سره جمع يې كړي او دويم هغه را پورته كړي او د خرڅلاو ځاى ته يې راوړي ا فَلِلْمُعِينِ أَجْرُ الْمِثْلِ بَالِغًا مَا بَلَغَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله به نېز به مدد كونكي امرستيال ا ته مثلي اُجرت وركول كيږي هغه كه هر څو ته ورسيږي ايعني كه څه هم مثلي اُجرت د هغه شي تر نيم قيمت زيات سي ا وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ* لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ ثَمَنِ ذٰلِكَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د هغه شي تر نيم قيمت زيات اُجرت نه وركول كيږي وَقَدْ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ او دا اختلاف په خپل ځاى كي پېژندل سوى ا بيان سوى ا دى.

**اللغات**: ﴿احتطاب﴾ د افتعال مصدر دى: بوټي او لرګي ټولول (جمع كول). ﴿اصطياد﴾ دا هم د افتعال مصدر دى: ښكار كول. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دى: ذخيره كول (جمع كول). محفوظول (خوندي كول، محفوظ ځاى ته نقل كول). ﴿استواء﴾ د استفعال مصدر دى: برابرېدل. ﴿أعان﴾ د افعال ماضي ده: مدد كول. مرسته او تعاون كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي د بوټو (لرګيو) په را ټولولو او د ښكار او داسي نورو په كولو كي شركت كول جائز نه دي. يعني داسي نه سي كېداى چي يو سړى بوټي ټول كړي يا ښكار وكړي او بل سړى محض د زباني شركت پر بناء د هغه سره په دې كي شريک سي. دا صحيح نه دى. بلكي بوټي به فقط د ټولونكي (جمع كونكي) وي او ښكار به فقط د ښكاري وي. د هر مباح (روا) شي د را اخيستلو همدغه حكم دى، ځكه چي شركت د وكالت معنىٰ لره متضمن دى، حال دا چي د مباح مال د را اخيستلو لپاره وكيل جوړول صحيح نه دي، ځكه چي بغير له وكالت څخه هم مباح مال را اخيستل جائز دي.

او كه چيري دوه خلګ په ګډه بوټي ټول كړي يا ښكار ونيسي. نو دا شى به د دوى په مينځ كي نيم، نيم وي، ځكه چي دواړو په ګډه هغه حاصل كړى دى، لېكن كه فقط يو سړى هغه حاصل كړي او بل سړى د هغه سره هيڅ تعاون او مرسته نه وكړي، نو فقط حاصلونكى سړى به د هغه شي مالک او مستحق وي. ها! كه چيري بل سړى په هغه كي تعاون ور سره وكړي. مثلاً يو سړى پر ښكار واري وكړي او بل سړى هغه ونيسي. يا يو سړى بوټي را وكاږي او بل سړى هغه سره جمع كړي. نو تعاون

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٨٣). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٧]

کونکی (مرستیال) ته به أجرت مثلي ورکول کیږي. یعني پر داسي تعاون چي په هغه ځای کي څومره أجرت ورکول کیږي هغه به معاون ته هم ورکول کیږي که څه هم دا أجرت د هغه شي تر نیم قیمت زیات سي په کوم شي کي چي معاون تعاون کړی وي. دا حکم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز دی.
او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز به معاون ته أجرت خو ورکول کیږي لیکن په کوم شي کي چي یې تعاون کړی وي د هغه شي تر نیم قیمت به زیات أجرت نه ورکول کیږي.

## د شرکت فاسده یو مثال او د شرکت فاسدېدلو صورتونه

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَكَا وَلِأَحَدِهِمَا بَغْلٌ وَلِلْآخَرِ رَاوِيَةٌ يَسْتَقِي عَلَيْهِمَا الْمَاءَ فرمایي: او که دوه خلک (داسي) شرکت وکړي چي په هغوی کي به د یوه لپاره غاتره وي او د بل لپاره به ژی وي چي پر دواړو به اوبه راخلي (یعني ژی به ډکوي او پر غاتره به یې راوړي او پر خلکو به یې خرڅوي) فَالْكَسْبُ بَيْنَهُمَا او ګټه به د دوی په مینځ کي مشترکه وي لَمْ تَصِحَّ الشَّرِكَةُ نو داسي شرکت صحیح نه دي وَالْكَسْبُ كُلُّهُ لِلَّذِي اسْتَقَى او ټوله نفع به د اوبو د را اخیستونکي لپاره وي (أصول: اوبه یو مباح شی دی. نو کوم یوه چي پر اوبو قبضه کړې وي، یعني له ځاه څخه یې را اخیستي وي او ژی یې په ډک کړی وی. نو اوبه به د هغه وي او د هغه ملکیت به وي. لهذا ګټه به هم د هغه وي. او دویم سړی به د هغه د مزدور (أجیر) په توګه وي. او هغه ته به خپل أجرت ورکوي) وَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ الرَّاوِيَةِ إِنْ كَانَ الْعَامِلُ صَاحِبَ الْبَغْلِ او پر هغه به د ژي أجرت مثلي واجب وي که چیري غاتري والا کار کونکی وي (یعني د اوبو را اخیستونکی او د ژي ډکونکی وي) وَإِنْ كَانَ صَاحِبَ الرَّاوِيَةِ فَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ الْبَغْلِ او که کار کونکی د ژي والا وي نو پر هغه به د غاتري أجرت مثلي واجب وي أَمَّا فَسَادُ الشَّرِكَةِ فَلِانْعِقَادِهَا عَلَى إِحْرَازِ الْمُبَاحِ وَهُوَ الْمَاءُ کوم چي د شرکت فاسدېدل دي نو هغه ځکه چي شرکت د مباح مال یعني د اوبو پر جمع کولو منعقد سوی دی وَأَمَّا وُجُوبُ الْأَجْرِ فَلِأَنَّ الْمُبَاحَ إِذَا صَارَ مِلْكًا لِلْمُحْرِزِ وَهُوَ الْمُسْتَقِي او أجرت ځکه واجب دی چي کله مباح مال د جمع کونکي یعني د اوبو را اخیستونکي ملکیت وګرځېدی فَقَدِ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ مِلْكِ الْغَيْرِ وَهُوَ الْبَغْلُ أَوِ الرَّاوِيَةُ بِعَقْدٍ فَاسِدٍ نو هغه په فاسد عقد سره د بل چا (دویم شریک) د ملکیت منافع حاصل کړل او ملکیت غاتره یا ژی دی فَيَلْزَمُهُ أَجْرُهُ نو ځکه به پر ده د هغه أجرت لازم وي وَكُلُّ شَرِكَةٍ فَاسِدَةٍ فَالرِّبْحُ فِيهِمَا عَلَى قَدْرِ الْمَالِ او په هر شرکت فاسده کي به نفع د مال په اندازه وي

وَيَبْطُلُ شَرْطُ التَّفَاضُلِ او | په هغه کې | به د تفاضل شرط باطل وي لِأَنَّ الرِّبْحَ فِيهِ تَابِعٌ لِلْمَالِ ځکه چې په شرکت فاسده کې نفع د مال تابع وي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ لهذا نفع به د مال په اندازه تاکل کيږي كَمَا أَنَّ الرَّيْعَ تَابِعٌ لِلْبَذْرِ فِي الْمُزَارَعَةِ لکه په مزارعت | او کښت | کې چې پيداوار | فصل | د تخم تابع کيږي وَالزِّيَادَةُ إِنَّمَا تُسْتَحَقُّ بِالتَّسْمِيَةِ او د نفعې زياتوب په متعينولو سره مستحق ګرځي | يعني د نفعې زياتوب په تعيين سره ثابتيږي | وَقَدْ فَسَدَتْ حالانکې شرکت فاسد سو فَبَقِيَ الِاسْتِحْقَاقُ عَلَى قَدْرِ رَأْسِ الْمَالِ لهذا | اوس | د رأس المال په اندازه استحقاق | مستحق کېدل | باقي پاته سو وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ أَوِ ارْتَدَّ وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ او که له دواړو شريکانو څخه يو شريک مړ سي يا مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي بَطَلَتِ الشَّرِكَةُ نو شرکت باطليږي لِأَنَّهَا تَتَضَمَّنُ الْوَكَالَةَ ځکه چې شرکت وکالت لره متضمن وي وَلَا بُدَّ مِنْهَا او د شرکت لپاره وکالت ضروري دي لِيَتَحَقَّقَ الشَّرِكَةُ د دې لپاره چې شرکت ثابت سي عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکې چې تېر سو وَالْوَكَالَةُ تَبْطُلُ بِالْمَوْتِ وَكَذَا بِالِالْتِحَاقِ مُرْتَدًّا او په مرګ سره همدارنګه دارُ الحرب ته په تللو سره وکالت باطليږي إِذَا قَضَى الْقَاضِي بِلَحَاقِهِ | په دې شرط | کله چې قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله کړې وي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْتِ ځکه چې دارُ الحرب ته تلل د مرګ په درجه کې دي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ د دې بيان وکړی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا عَلِمَ الشَّرِيكُ بِمَوْتِ صَاحِبِهِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ او په دې کې هيڅ فرق نسته چې شريک د خپل ملګري په مرګ خبر وي. يا خبر نه وي لِأَنَّهُ عَزْلٌ حُكْمِيٌّ ځکه چې دا حکمي عزل دی | يعني دا په حکمي توګه معزولول دي | فَإِذَا بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ بَطَلَتِ الشَّرِكَةُ نو کله چې وکالت باطل سي نو شرکت هم به باطليږي بِخِلَافِ مَا إِذَا فَسَخَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ الشَّرِكَةَ په خلاف د هغه صورت کله چې يو شريک شرکت فسخ کړي حَيْثُ يَتَوَقَّفُ عَلَى عِلْمِ الْآخَرِ نو | په دې صورت کې | دا | فسخ | د دويم شريک پر خبر تيا موقوفه کيږي لِأَنَّهُ عَزْلٌ قَصْدِيٌّ ځکه چې دا قصدي عزل دی | يعني دا قصداً معزولول دي | .

**اللغات**: ﴿راوية﴾ غټ ژی، هغه څرمني خلته چي پخوا به د اُوبو محفوظه كولو لپاره استعمالېده. ﴿استقٰ﴾ د استفعال مصدر دی: د اوبو طلب كول. له څاه، تالاب او داسي نورو ځخه اوبه را اخيستل (راكښل). مراد ځني د اُوبو را اخيستل او ژی په ډكول دي. ﴿إحراز﴾ د افعال مصدر دی: جمع كول، محفوظه كول (خوندي كول). ﴿استوفٰی﴾ د استفعال ماضي ده: حق اخيستل، حاصلول. ﴿ربح﴾ فصل، پيداوار، غله. ﴿عزل﴾ د ضرب مصدر دی: معزوله كول (معزولول). له كار او دندني ځخه ليري كول (برطرفه كول).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی كه چيري دوه خلک په خپل مينځ کي داسي شركت (شراكت) وكړي چي غاتره (يا مثلاً خر) به د يوه سړي وي او ژی به د بل سړي وي او دواړه به پر غاتري اوبه راوړي بيا به يې خرڅوي او كومه نفع (ګټه) چي وسي هغه به د دوی په مينځ کي مشركه وي. نو داسي شركت صحيح نه دی، ځكه چي دا شركت پر مباح مال يعني پر اُوبو او د اُوبو پر جمع او راوړلو (إحرازُ الماء) باندي منعقد سوی دی، او په مباحاتو كي شركت باطل دی. او ټوله نفع (ګټه) به دژي ډكونكي ته وركول كيږي. يعني كه فقط غاتري والا ژی ډک كړی وي نو هغه به ټوله نفع اخلي او دژي والا ته به د خپل ژي اُجرت مثلي وركوي. او كه ژي والا ژی ډک كړی وي. نو غاتري والا ته به د غاتري اُجرت مثلي وركوي؛ ځكه چي دلته عامل د فاسد عقد په ذريعه د خپل ملګري د ملكيت منافع حاصل كړل، نو ځكه به پر هغه خامخا اُجرت واجب وي.

**وكل شركة إلخ**: فرمايي چي په هر شركت فاسده كي شريكينو ته حاصلېدونكې نفع به د دوی د رأسُ المال مطابق وركول كيږي. مثلاً د يوه شريک دوه سوه روپۍ رأسُ المال وي او د بل شريک سل روپۍ رأسُ المال وي. نو د نفع تقسيم به أثلاثاً وي (يعني ۲۰۰ والا ته به دوې حصې وركول كيږي. او ۱۰۰ والا ته به يوه حصه وركول كيږي) او د كمي و زياتوب شرط به باطل وي. ځكه چي په شركت فاسده كي نفع د مال تابع كيږي لكه څرنګه چي د كښت پيداوار (فصل او غله) د كښت د تخم تابع كيږي. او د تفاضل استحقاق په شرط او تعيين سره كيږي. او د شرط صحت د شركت پر صحت موقوف وي (يعني كه شركت صحيح وي نو شرط صحيح كيږي. كني نه صحيح كيږي). لهذا په شركت فاسده كي د شركت فاسدېدلو په وجه شرط هم فاسديږي. نو په دې وجه به د نفعي د تقسيم ټوله دار ومدار پر رأسُ المال وي.

**وإذا مات إلخ**: د دې حاصل دا دی چي كه أحدُ الشريكَين مړ سي يا مرتد سي او دارُ الحرب ته ولاړ سي او قاضي دارُ الحرب ته د هغه د تللو فيصله هم وكړي، نو شركت باطليږي؛ ځكه چي شركت وكالت لره متضمن وي او په مرګ او لحاق بدار الحرب سره وكالت باطليږي. نو ځكه به په دې شيانو سره شركت هم باطليږي. برابره ده دويم شريک د خپل شريک په مرګ او په لحاق خبر وي او كه نه وي په

هر صورت کي شرکت باطليږي، ځکه دا حکمي عزل دی، او عزل حکمي د معزولتيا پر علم او خبر موقوف نه وي، ها! که چيري عزل قصدي وي مثلاً يو شريک شرکت فسخ کړي نو تر څو چي دويم شريک په فسخ خبر نه سي، تر هغه وخته پوري فسخ نه ثابتيږي، ځکه که موږ په دې صورت کي د دويم شريک له خبرېدلو څخه بغير فسخ صادره کړو نو هغه ته به ضرر او نقصان ورسيږي حالانکي د "لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ" دستور او قاعده مشهور ده.





## د شريک له طرفه زکاة ورکول

وَلَيْسَ لِأَحَدِ الشَّرِيكَيْنِ أَنْ يُؤَدِّيَ زَكَاةَ مَالِ الْآخَرِ إِلَّا بِإِذْنِهِ او په دواړو شريکانو کي يوه ته دا حق نسته چي د بل شريک له اجازت څخه بغير د هغه د مال زکاة اداء کړي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ التِّجَارَةِ ځکه چي دا د تجارت له جنس څخه نه دي فَإِنْ أَذِنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِصَاحِبِهِ أَنْ يُؤَدِّيَ زَكَاتَهُ او که هر شريک خپل ملګري ته د خپل زکاة اداء کولو اجازه ورکړې وي [يعني هر شريک بل ته دا اجازه ورکړې چي ته زما زکاة اداء کولای سې! ] فَأَدَّى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بيا په دوی کي هر يو زکاة اداء کړي فَالثَّانِي ضَامِنٌ عَلِمَ بِأَدَاءِ الْأَوَّلِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ نو دويم [يعني وروسته اداء کونکي] به ضامن وي برابره ده هغه د اول په اداء کولو خبر وي او که نه وي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا❁: لَا يَضْمَنُ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که دويم ته معلومه نه وي نو هغه به نه ضامن کيږي وَهَذَا إِذَا أَدَّيَا عَلَى التَّعَاقُبِ او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي دوی يو تر

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، كما ذكر في التنوير (ج:٣، ص:٢٨٥). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٧]

بل وروسته اداء کړی وي أَمَّا إِذَا أَدَّيَا مَعًا لېکن که دوی یو ځای اداء کړی وي ضَمِنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نَصِيبَ صَاحِبِهِ نو په دوی کې به هر یو د خپل ملګري د حصې ضامن وي وَعَلَى هٰذَا الْاِخْتِلَافِ الْمَأْمُورُ بِأَدَاءِ الزَّكَاةِ إِذَا تَصَدَّقَ عَلَى الْفَقِيرِ بَعْدَ مَا أَدَّى الْآمِرُ بِنَفْسِهِ او پر همدغه اختلاف هغه سړی دی چې د زکاة اداء کولو حکم ورته سوی وي، کله چې هغه فقیر ته [د زکاة مال] صدقه کړي وروسته تر دې چې حکم کونکي يې په خپله اداء کړي لَهُمَا: أَنَّهُ مَأْمُورٌ بِالتَّمْلِيكِ مِنَ الْفَقِيرِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې دا سړی د فقير پر مالک جوړولو مأمور دی وَقَدْ أَتَى بِهِ او هغه دا کار وکړی فَلَا يَضْمَنُ لِلْمُوَكِّلِ نو ځکه به هغه د مؤکل نه ضامن کیږي [یعني د مؤکل لپاره به پر هغه ضمان واجب نه وي] وَهٰذَا لِأَنَّ فِي وُسْعِهِ التَّمْلِيكَ لَا وُقُوعَهُ زَكَاةً او دا ځکه چې د هغه په وس کې [فقط] مالک جوړول دي. نه زکاة واقع کول لِتَعَلُّقِهِ بِنِيَّةِ الْمُوَكِّلِ ځکه چې دا د مؤکل [آمر] د نيت سره تعلق لري وَإِنَّمَا يُطْلَبُ مِنْهُ مَا فِي وُسْعِهِ او له انسان څخه د هغه شي مطالبه کیږي کوم چې د ده په وس کې وي وَصَارَ كَالْمَأْمُورِ بِذَبْحِ دَمِ الْإِحْصَارِ إِذَا ذَبَحَ بَعْدَ مَا زَالَ الْإِحْصَارُ وَحَجَّ الْآمِرُ او دا د هغه سړي په څېر سو چې د "دمِ إحصار" ذبح کولو حکم ورته سوی وي، او هغه إحصار تر ختمېدلو او د حکم کونکي تر حج کولو وروسته "دمِ إحصار" ذبح کړي لَمْ يَضْمَنِ الْمَأْمُورُ عَلِمَ أَوْ لَا نو [په دې صورت کې هم] هغه نه ضامن کیږي برابره ده هغه [د إحصار په ختمېدلو] خبر وي او که نه وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ مَأْمُورٌ بِأَدَاءِ الزَّكَاةِ د امام صاحب دليل دا دی: چې وکيل ته د زکاة اداء کولو حکم سوی دی وَالْمُؤَدَّى لَمْ يَقَعْ زَكَاةً او کوم څه چې وکيل اداء کړي دي هغه زکاة واقع سوی نه دی فَصَارَ مُخَالِفًا نو وکيل د مؤکل [آمر] د حکم مخالفت کونکي سو وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْأَمْرِ إِخْرَاجُ نَفْسِهِ عَنْ عُهْدَةِ الْوَاجِبِ او دا ځکه چې په وکيل جوړولو سره د مؤکل مقصد خپل ځان د واجب له ذمه واری څخه خلاصول دي [مطلب دا چې د هغه مقصد خپله غاړه خلاصول دي] لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ لَا يَلْتَزِمُ الضَّرَرَ إِلَّا لِدَفْعِ الضَّرَرِ ځکه چې ښکاره همدا ده چې هغه فقط اله خپل ځان څخه [د ضرر لیري کولو لپاره پر ځان ضرر لازموي وَهٰذَا الْمَقْصُودُ حَصَلَ بِأَدَائِهِ وَعَرِيَ أَدَاءَ الْمَأْمُورِ عَنْهُ او دا مقصود په خپله د مؤکل

په اداء کولو سره حاصل سو او د مأمور او وکيل [اداء له دې مقصود څخه خالي سوه فَصَارَ مَعْزُولاً عَلِمَ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ نو ځکه به هغه معزول وي [يعني ګواکي هغه د زکاة اداء کولو له کار څخه برطرفه کړی سوی دی] برابره ده هغه [د مؤکل په اداء کولو] خبر وي او که نه وي لِأَنَّهُ عَزْلٌ حُكْمِيٌّ ځکه چي دا حکمي معزولول دي وَأَمَّا دَمُ الْإِحْصَارِ فَقَدْ قِيلَ: هُوَعَلَى هٰذَا الْاِخْتِلَافِ او کوم چي دم إحصار دی نو يو قول دا دی: چي هغه هم پر دغه اختلاف دی وَقِيلَ: بَيْنَهُمَا فَرْقٌ او بل قول دا دی: چي د دوی په مينځ کي فرق دی وَوَجْهُهُ: أَنَّ الدَّمَ لَيْسَ بِوَاجِبٍ عَلَيْهِ او د فرق وجه دا ده: چي پر مُحصر قرباني کول واجب نه دی فَإِنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يَصْبِرَ حَتَّى يَزُولَ الْإِحْصَارُ ځکه چي هغه لره صبر کول ممکن دي تر دې چي إحصار ختم سي وَفِي مَسْأَلَتِنَا الْأَدَاءُ وَاجِبٌ او زموږ په دې مسئله کي زکاة اداء کول واجب دي فَاعْتُبِرَ الْإِسْقَاطُ مَقْصُودًا فِيهِ دُونَ دَمِ الْإِحْصَارِ لهذا په دې کي به إسقاط د مقصود په توګه معتبر وي، نه په دم إحصار کي [مطلب دا چي د زکاة ساقطول مقصود دي، او د دم إحصار ساقطول مقصود نه دي].

**اللغات**: ﴿أذن﴾ د سمع ماضي ده: اجازه ورکول (اجازت رکول). ﴿التعاقب﴾ د تفاعل مصدر دی: يو تر بل وروسته کېدل. ﴿تمليك﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک کول (يو څوک د يو شي مالک جوړول). ﴿إحصار﴾ د افعال مصدر دی: له حج څخه منع کېدل (يعني چي حج کونکی له حج کولو څخه منع کړی سي). ﴿عهدة﴾ ذمه واري (ذمه داري). ﴿إسقاط﴾ د افعال مصدر دی: ساقطول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د شرکت مفاوضه او شرکت عنان په دواړو شريکانو کي د هر شريک لپاره د بل شريک له اجازت څخه بغير د هغه د مال زکاة ورکول صحيح نه دي: ځکه چي زکاة اداء کول د تجارت سره متعلق نه دی، او أَحدُ الشريکَين ته د بل شريک په مال کي فقط د تجارتي تصرّف حق سته. د زکاة اداء کولو حق هغه ته نسته. ها! که چيري هر شريک بل ته د خپل مال د زکاة ورکولو اجازه ورکړې وي او بيا قصه دا پېښه سي چي يو وار په خپله مالک زکاة اداء کړي. او دويم وار يې د هغه له طرفه شريک اداء کړي، نو دا دويم وار اداء کونکي شريک به د اداء کړی سوي مال ضامن وي. (يعني خومره زکاة چي يې ايستلې وي هغه به بيرته شريک (مالک) ته ورکوي) برابره ده اداء کونکی شريک په دې خبر وي او که نه وي چي له دغه مال څخه زکاة ايستل سوی دی. دا حکم دا امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي که بل شريک په دې خبر نه وي. نو هغه به

نه ضامن کيږي. په فتحُ القدير کي ذکر سوي دي چي که په خبر هم وي، نو هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه نه ضامن کيږي. برابره ده دواړو يو تر بل وروسته اداء کړې وي او که يو ځاى (معاً) يې اداء کړې وي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به ديو ځاى (معا!) اداء کولو په صورت کي هر شريک د خپل ملګري د حصې ضامن وي.

همدارنګه که يو شريک دويم شريک ته د خپل مال د زکاة اداء کولو أمر وکړي او وکيل يې جوړ کړي اوبيا دغه آمر (مؤکل) په خپله (بذات خود) زکاة اداء کړي او تر دې وروسته وکيل د زکاة مال يو فقير ته صدقه کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه ضامن کيږي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه ضامن کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دى چي وکيل فقط په دې مأمور دى چي يو فقير (د زکاة د مال) مالک جوړ کړي او وکيل خپل کار وکړى. لهذا د مؤکل د بذات خود زکاة اداء کولو په وجه به هغه نه ضامن کيږي. ځکه چي په دې کي د مؤکل غلطي ده. نه د وکيل. او بل دا چي د وکيل په وس کي صرف فقير ته مال ورکول او د هغه مالک جوړول دي. نه د زکاة واقع کول. او د "لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا" په وجه له انسان څخه فقط د هغه شي مطالبه کيږي کوم چي د هغه په وس کي وي. او دلته چي د وکيل په وس کي څه وه هغه يې وکړه. نو په دې وجه به پر هغه ضمان واجب نه وي. لکه کله چي يو حاجي مُحصَر سي او هغه د "دمِ إحصار" د ذبح کولو لپاره يو څوک خپل وکيل جوړ کړي، بيا د إحصار تر ختمېدلو او له حج څخه د مؤکل (حاجي) تر فارغېدلو وروسته وکيل دمِ إحصار ذبح کړي. نو هم به وکيل د هغه نه ضامن کيږي. برابره ده وکيل په إحصار ختمېدلو او د مؤکل په حج کولو خبر وي او که نه وي. همداسي به دلته هم وکيل نه ضامن کيږي. برابره ده هغه د مؤکل په فعل خبر وي او که نه وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دى چي دلته مؤکل (آمر) وکيل ته د مال بربادولو حکم نه دي کړى بلکي د زکاة اداء کولو او د خپلي غاړي خلاصولو حکم يې ورته کړى دى. حالانکي کله چي مؤکل په خپله زکاة اداء کړى نو د هغه مقصود يعني "فراغُ الذمه" (غاړه خلاصېدل) حاصل سو. لهذا د وکيل فعل (اداء کول) د مؤکل له مقصود څخه خالي دي. نو ځکه به وکيل معزول شمارل کيږي. او دا به عزل حکمي وي او د عزل حکمي لپاره دا ضروري نه دي چي وکيل به په عزل خبر او واقف وي. لهذا چي کله د وکيل فعل د مؤکل له مقصود څخه خالي دى نو ځکه به هغه لره اعتبار نه وي او پر وکيل به ضمان واجب وي.

**وأما دم إلخ**: فرمايي صاحبين رَحِمَهُمَا الله چي دغه مسئله پر دمِ إحصار قياسوي، دا صحيح نه دي، ځکه چي د يوه قول مطابق د دمِ إحصار مسئله هم د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کي مختلف فيه

ده. لهذا په دې سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په خلاف دليل نيول صحيح نه دي. او که چيري دا خبره مونږ تسليم کړو چي دا مسئله متفق عليها ده يعني د دم إحصار په مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم پر وکيل (مأمور) باندي ضمان نشته. نو د دې جواب دا دی چي پر مُحصر قرباني واجب نه ده او د هغه لپاره د إحصار تر ختميدلو پوري صبر کول ممکن او متوقع دي. لېکن د زکاة په مسئله کي زکاة اداء کول واجب دي او په زکاة کي "اسقاطُ الذمة" معتبر دی. او په دم إحصار کي إسقاط معتبر نه دی. نو په دې حواله سره په دواړو کي فرق دی. لهذا يوه مسئله پر بلي قياسول صحيح نه دي.

## که په شرکت مفاوضه کي يو شريک د ځان لپاره مينځه رانيسي (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَإِذَا أَذِنَ أَحَدُ الْمُتَفَاوِضَيْنِ لِصَاحِبِهِ أَنْ يَشْتَرِيَ جَارِيَةً فَيَطَأَهَا فرمايي: که يو مفاوضه کونکي شريک خپل ملګري ته دا اجازه ورکړي چي دئ مينځه رانيسي او د هغې سره وطي وکړي فَفَعَلَ او دئ [همداسي] وکړي فَهِيَ لَهُ بِغَيْرِ شَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به هغه مينځه له څه عوض [ضمان] څخه بغير د ده وي وَقَالَا [*]: يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِنِصْفِ الثَّمَنِ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي اجازه ورکونکي به له هغه څخه نصف ثمن اخلي لِأَنَّهُ أَدَّى دَيْنًا عَلَيْهِ خَاصَّةً مِنْ مَالٍ مُشْتَرَكٍ ځکه چي مشتري له مشترک مال څخه داسي قرض اداء کړی دی کوم چي فقط پر مشتري واجب دی فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ صَاحِبُهُ بِنَصِيبِهِ نو ځکه به د مشتري ملګری له هغه څخه خپله حصه واپس اخلي كَمَا فِي شِرَاءِ الطَّعَامِ وَالْكِسْوَةِ لکه څرنګه چي اد خپل أهل وعيال لپاره] د غلې او جامې په رانيولو کي [هم دغه حکم دی] وَهَذَا لِأَنَّ الْمِلْكَ وَاقِعٌ لَهُ خَاصَّةً او دا ځکه چي ملکيت فقط مشتري ته حاصل سوی دی وَالثَّمَنُ بِمُقَابَلَةِ الْمِلْكِ او ثمن د ملکيت په مقابله کي واجبيږي وَلَهُ: أَنَّ الْجَارِيَةَ دَخَلَتْ فِي الشَّرِكَةِ عَلَى الْبَتَاتِ جَرْيًا عَلَى مُقْتَضَى الشَّرِكَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د شرکت په مقتضیٰ باندي په عمل کولو سره دا مينځه يقيناً په شرکت کي داخله سوې ده [يعني دا مينځه يقيناً په مشترکه توګه د دواړو شريکانو مملوکه سوې ده] إِذْ هُمَا لَا يَمْلِكَانِ تَغْيِيرَهُ ځکه چي دوی دواړه [شريکان] د شرکت د مقتضیٰ بدلولو ملکيت [اختيار] نه لري فَأَشْبَهَ حَالَ

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٣، ص:٣٠٥). [القول الراجح ج:١، ص:٥١٩]

عَدَمِ الْإِذْنِ نو دا د اجازه نه ورکولو د حالت سره مشابه سو غَيْرَ أَنَّ الْإِذْنَ يَتَضَمَّنُ هِبَةَ نَصِيبِهِ مِنْهُ خو ابيا هم ا اجازه ورکول د هغه ا اجازه ورکونکي شريک ا له طرفه د خپلي حصي هبه کولو لره متضمن دي ايعني ګواکي هغه خپله حصه مشتري شريک ته هبه کړه ا لِأَنَّ الْوَطْءَ لَا يَحِلُّ إِلَّا بِالْمِلْكِ ځکه چي له ملکيت څخه بغير وطي نه روا کيږي وَلَا وَجْهَ إِلَى إِثْبَاتِهِ بِالْبَيْعِ او د بيع په ذريعه د ملکيت ثابتولو هيڅ صورت نسته لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ مُخَالِفٌ مُقْتَضَى الشَّرِكَةِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي دا د شرکت د متقضیٰ خلاف دي فَأَثْبَتْنَاهُ بِالْهِبَةِ الثَّابِتَةِ فِي ضِمْنِ الْإِذْنِ لهذا موږ د اجازت په ضمن کې د ثابتېدونکي هبې په ذريعه ملکيت ثابت کړی بِخِلَافِ الطَّعَامِ وَالْكِسْوَةِ په خلاف د غلې او جامې لِأَنَّ ذٰلِكَ مُسْتَثْنًى عَنْهَا لِلضَّرُورَةِ ځکه چي د ضرورت په وجه دا شيان له شرکت څخه مستثنیٰ دي فَيَقَعُ الْمِلْكُ لَهُ خَاصَّةً بِنَفْسِ الْعَقْدِ لهذا په دوی کي به په نفسِ عقد سره مشري ته ملکيت حاصليږي فَكَانَ مُؤَدِّيًا دَيْنًا عَلَيْهِ مِنْ مَالِ الشَّرِكَةِ نو مشتري به د شرکت له مال څخه د خپل قرض اداء کونکی وي وَفِي مَسْأَلَتِنَا قَضَى دَيْنًا عَلَيْهِمَا او زموږ په دې مسئله کي مشتري داسي قرض ا ثمن ا اداء کړی دی کوم چي پر دواړو شريکانو لازم دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی دی وَلِلْبَائِعِ أَنْ يَأْخُذَ بِالثَّمَنِ أَيَّهُمَا شَاءَ او بائع لره دا اختيار سته چي ثمن واخلي له هر هغه شريک څخه کوم چي بائع وغواړي بِالِاتِّفَاقِ دا ا حکم ا بالاتفاق دی لِأَنَّهُ دَيْنٌ وَجَبَ بِسَبَبِ التِّجَارَةِ ځکه چي دا داسي قرض دی کوم چي د تجارت په سبب واجب سوی دی وَالْمُفَاوَضَةُ تَضَمَّنَتِ الْكَفَالَةَ او مفاوضه کفالې لره متضمنه وي فَصَارَ كَالطَّعَامِ وَالْكِسْوَةِ نو دا د غلې او جامې په څير سوه.

**اللغات**: ﴿طعام﴾ د دې لفظ څو معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: غله. د أهل وعيال خوراکه. ﴿کسوة﴾ جامې، کالي (کپړې). ﴿على البتات﴾ په قطعي توګه. په يقيني توګه (يقيناً).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په شرکتِ مفاوضه کي يو شريک بل شريک ته د دې اجازه ورکړي چي مينځه رانيسي او جماع ور سره وکړي. او بيا هغه يوه مينځه رانيسي او له مشترک مال څخه د هغې ثمن اداء کړي او د هغې سره وطي وکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به مينځه د مشتري او واطي مملوک وي (يعني فقط د هغه په ملکيت کي به وي) او د امام صاحب په نيز به پر هغه د دويم شريک لپاره هيڅ ضمان واجب نه وي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به دويم شريک (کوم

اجازه ورکړې ده) له مشتري څخه نیم ثمن واپس اخلي. ځکه چې مشتري له مشترک مال څخه خپل قرض اداء کړی دی او د دې قرض یعني د ثمن مکمّل عوض او نفع هم هغه ته رسېدلې ده. نو په دې وجه به دویم شریک له هغه څخه د خپلې حصې ثمن واپس اخلي. لکه څرنګه چې یو شریک د خپل أهل وعیال لپاره په مشترک مال سره غلّه یا جامې (طعام یا کسوة) رانیسي. نو دویم شریک له هغه څخه نیم ثمن واپس اخلي.

وله إن الجارية إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې کله دواړه شریکان د شرکت مفاوضه په توګه سره مشترک دي. نو ښکاره خبره ده چې دغه رانیول سوې مینځه په مشترکه توګه د دوی په ملکیت کې داخله سوه. ځکه چې شرکتِ مفاوضه د مساوات تقاضا کوي او شریکَین د دې مساوات د ختمولو ملکیت نه لري. او دا معامله د عدمِ رجوع په هکله د اجازت نه ورکولو سره مشابه سوه. لېکن څرنګه چې د مشتري لپاره وطي فقط د دویم شریک په اجازه سره حلال او روا دي. نو د دویم شریک له طرفه اجازه ورکول به هبه کولو لره متضمن وي او دا به ویل کیږي چې دویم شریک مشتري ته د شراء او وطي په اجازه ورکولو سره خپله حصه هغه ته هبه کړه. او په هبه کې رجوع نه کیږي. نو په دې وجه به دویم شریک له مشتري څخه هیڅ شی واپس نه اخلي. او مینځه به هغه ته مُفت (بېله عوضه) ورکول کیږي. او په دې مسئله کې د مشتري لپاره د وطي د حلّت یوازینی لار همدا ده. ځکه چې موږ د بیع په ذریعه د مشتري لپاره ملکیت نه سو ثابتولای او دا نه سو ویلای چې هغه ټوله مینځه صرف د خپل ځان لپاره رانیولې ده، ځکه چې دا د عقدِ شرکت په خلاف دي.

او دا مسئله د طعام او کِسوة پر مسئلې قیاسول هم صحیح نه دي، ځکه چې طعام او کسوة ضرورتاً له عقد شرکت او اشتراک څخه مستثنیٰ دي، او په طعام او کسوة کې صرف د مشتري ملکیت ثابتیږي او مشتري له مشترک مال څخه د دې ثمن اداء کوي، نو ځکه به د هغه ملګری (دویم شریک) له هغه څخه د خپلې حصې ثمن واپس اخلي. لېکن په دغه مسئله کې مشتري داسې قرض اداء کوي کوم چې پر دواړو شریکانو لازم دی (یعني پر مشتري هم لازم دی او د هغه پر بل شریک هم لازم دی). نو ځکه به هغه ته له خپل ملګري څخه د واپس اخیستلو حق نه وي. او بائع لره به له هر شریک څخه د ثمن اخیستلو اختیار وي (یعني بائع چې له کوم شریک څخه وغواړي، خپل ثمن اخیستلای سي)؛ ځکه چې دا ثمن د تجارت په وجه واجب سوی دی او دا شرکت "شرکتِ مفاوضه" دی. نو ځکه به دا شرکت کفالې لره متضمّن وي او ثمن به هم پر دواړو واجب وي، او کله چې ثمن پر دواړو واجب دی، نو د هغه مطالبه به هم له دواړو څخه کیږي. فقط والله أعلم



# كِتَابُ الْوَقْفِ

(دا) كتاب د وقف (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: له كتابُ الشركة څخه وروسته د كتابُ الوقف بيانولو وجه دا ده چي په شركت او وقف دواړو كي أصل او رأسُ المال (په خپل ملكيت كيٰ) باقي پرېښوول كيږي او د هغه منافع حاصلول كيږي، لېكن په شركت كي أصل ملكيت دانسان په ملكيت (قبضه) كي باقي وي لېكن په وقف كي د زياتره حضراتو په نېز دا ملكيت د واقف له ملكيت (قبضې) څخه وځي، نو په دې وجه شركت پر وقف مخكي كړى سو.

**د وقف لغوي او اصطلاحي معنـــى**: د وقف لغوي معنىٰ ده: منع كول (راګرځول)، دربدل. او د شريعت په اصطلاح كي د وقف تعريف دا دى چي مالک عَين (يعني يو شى) په خپل ملكيت كي باقي وساتي او د هغه منافع صدقه كړي. (څرنګه چي په وقف كي واقف ځمكه، جايداد يا بل شى د غريبانو لپاره راګرځوي، نو ځكه دې ته وقف وايي). (أثمارُ الهداية)

## د وقف شرعي حيثيت

قَالَ: أَبُوحَنِيفَةَ: لَا يَزُولُ مِلْكُ الْوَاقِفِ عَنِ الْوَقْفِ إِلَّا أَنْ يَحْكُمَ بِهِ الْحَاكِمُ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له موقوف شي څخه د واقف ملكيت نه ختميږي مګر دا چي حاكم د دې فيصله وكړي اچي موقوف شى د واقف له ملكيت څخه ووتى ا أَوْ يُعَلِّقَهُ بِمَوْتِهِ فَيَقُولَ: إِذَا مِتُّ فَقَدْ وَقَفْتُ دَارِي عَلَى كَذَا يا واقف هغه پر خپل مرګ معلق كړي او داسي ووايي: چي كله زه مړ سم نو زما كور د فلانكي لپاره وقف دى وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: يَزُولُ مِلْكُهُ بِمُجَرَّدِ الْقَوْلِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي محض اد وقف كولو ا په قول سره د هغه ملكيت ختميږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَزُولُ حَتَّى يَجْعَلَ لِلْوَقْفِ وَلِيًّا وَيُسَلِّمَهُ إِلَيْهِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي اد واقف ملكيت تر هغه وخته ا نه ختميږي تر دې چي واقف يو څوک د موقوف شي متولي اسرپرست ا جوړ كړي او شى هغه ته وسپاري قَالَ: الْوَقْفُ لُغَةً هُوَ الْحَبْسُ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د وقف لغوي معنىٰ ده: منع كول

راګرځول ا يَقُولُ: وَقَفْتُ الدَّابَّةَ وَأَوْقَفْتُهَا بِمَعْنًى وايي: وقفتُ الدّابةَ او أوقفتُها دا دواړه په يوه معنىٰ سره دي ا ځكه چې د دواړو معنىٰ دا ده: "ما سپارلي راوګرځوله. يعني له تګ كولو څخه مې منع كړه"ا وَهُوَ فِي الشَّرْعِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ: حَبْسُ الْعَيْنِ عَلَى مِلْكِ الْوَاقِفِ وَالتَّصَدُّقُ بِالْمَنْفَعَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د وقف شرعي معنىٰ ده: عَين اموقوف شی ا د واقف په ملكيت كې راګرځول اباقي ساتل ا او د هغه منفعت امنافع ا صدقه كول بِمَنْزِلَةِ الْعَارِيَّةِ د عاريت په څير ايعني لكه په عاريت كې چې هم داسې كيږي ا ثُمَّ قِيلَ: الْمَنْفَعَةُ مَعْدُومَةٌ بيا ويل سوي دي ايعني پر دې اعتراض سوی دی ا: چې منفعت خو اوس معدوم دی فَالتَّصَدُّقُ بِالْمَعْدُومِ لَا يَصِحُّ او معدوم شی صدقه كول صحيح نه دي فَلَا يَجُوزُ الْوَقْفُ أَصْلًا عِنْدَهُ لهذا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به بالكل وقف صحيح نه وي وَهُوَ الْمَلْفُوظُ فِي الْأَصْلِ او همدا په مبسوط كې ذكر سوي دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ جَائِزٌ عِنْدَهُ إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ لَازِمٍ اخو ا زياته صحيح خبره دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وقف جائز دی. ليكن لازم نه دی. بِمَنْزِلَةِ الْعَارِيَّةِ د عاريت په څير ايعني لكه عاريت چې جائز دی. ليكن لازم نه دی ا وَعِنْدَهُمَا: حَبْسُ الْعَيْنِ عَلَى حُكْمِ مِلْكِ اللهِ تَعَالَى او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د وقف شرعي معنىٰ ده: عَين اموقوف شی ا د الله تعالىٰ د ملكيت په حكم كې راګرځول اباقي ساتل ا فَيَزُولُ مِلْكُ الْوَاقِفِ عَنْهُ إِلَى اللهِ تَعَالَى عَلَى وَجْهٍ تَعُودُ مَنْفَعَتُهُ إِلَى الْعِبَادِ نو له موقوف شي به څخه د واقف ملكيت ختميږي د الله تعالىٰ وطرف ته به منتقل كيږي. په دې توګه چې د هغه نفع به بندګانو ته رسيږي فَيَلْزَمُ وَلَا يُبَاعُ وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ لهذا اد صاحبينو په نيز ا به هغه لازم وي. او هغه به نه خرڅول كيږي او نه به اچا ته ا هبه كيږي او نه به ميراث كيږي ايعني نه به په ميراث كې وركول كيږي ا وَاللَّفْظُ يَنْتَظِمُهُمَا او د وقف لفظ دغو دواړو معناوو املكيت ختميدلو او نه ختميدلو ا ته شامل دی وَالتَّرْجِيحُ بِالدَّلِيلِ او ترجيح به په دليل سره وي لَهُمَا قَوْلُ النَّبِيِّ ﷺ [1] لِعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حِينَ أَرَادَ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِأَرْضٍ لَهُ تُدْعَى ثَمْغًا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې كله حضرت عمر رضي الله عنه

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الوصايا، باب وما للوصيّ، رقم الحديث: ٢٧٦٤.

وغوښتل چې په خيبر کې خپله د "ثمغ" په نامه ځمکه صدقه کړي نو نبي کريم ﷺ هغه ته وفرمايل "تَصَدَّقْ بِأَصْلِهَا لَا يُبَاعُ وَلَا يُورَثُ وَلَا يُوهَبُ" چې ته أصل ځمکه صدقه کړه د دې لپاره چې ادويم وار] خرڅه نه کړی سي او نه ميراث کړی سي او نه هبه کړی سي وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ مَاسَّةٌ إِلَى أَنْ يَلْزَمَ الْوَقْفُ مِنْهُ او ځکه چې واقف ته هم د دې ضرورت وي چې د هغه له طرفه وقف لازم سي لِيَصِلَ ثَوَابُهُ إِلَيْهِ عَلَى الدَّوَامِ د دې لپاره چې هغه ته هميشه د وقف ثواب رسيږي وَقَدْ أَمْكَنَ دَفْعُ حَاجَتِهِ بِإِسْقَاطِ الْمِلْكِ وَجَعْلِهِ لِلَّهِ تَعَالَى او د هغه دا ضرورت پوره کول په دې توګه ممکن دي چې د هغه له ذات څخه ملکيت ساقط کړی سي او د الله تعالى‌پاره ثابت کړی سي إِذْ لَهُ نَظِيرٌ فِي الشَّرْعِ وَهُوَ الْمَسْجِدُ ځکه چې په شريعت کې د دې مثال موجود دی او هغه مسجد دی فَيُجْعَلُ كَذَلِكَ لهذا وقف به همداسي ګرځول کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ عليه السلام[2]: لَا حَبْسَ عَنْ فَرَائِضِ اللهِ تَعَالَى د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: چې د الله په فرائضو کې حبس نسته وَعَنْ شُرَيْحٍ[3]: جَاءَ مُحَمَّدٌ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِبَيْعِ الْحَبِيسِ او له حضرت شريح څخه روايت سوی دی: چې نبي کريم ﷺ حبس خرڅ کړی ايعني د نبي ﷺ په زمانه کې چې خلکو د بُت په نامه کوم څارويان راګرځولي او وقف کړي ول، هغه يې خرڅ کړل] وَلِأَنَّ الْمِلْكَ بَاقٍ فِيهِ بِدَلِيلِ أَنَّهُ يَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ زِرَاعَةً وَسُكْنَى وَغَيْرَ ذَلِكَ او ځکه چې په موقوف شي کې د واقف ملکيت باقي پاته وي په دې دليل چې د کښتکرۍ او استوګنې او داسي نورو په اعتبار سره د واقف لپاره له موقوفه ځمکې څخه نفع اخيستل جائز دي وَالْمِلْكُ فِيهِ لِلْوَاقِفِ او د هغه ملکيت [فقط] د واقف وي أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ فِيهِ بِصَرْفِ غَلَّاتِهِ إِلَى مَصَارِفِهَا وَنَصْبِ الْقُوَّامِ فِيهَا آيا ته نه ګورې! چې واقف لره دا ولايت [اختيار] سته چې د موقوفه ځمکې غلې په خپلو مصارفو کې صرف کړي او په هغوی کې ايعني د غلو لپاره] نګران متعين کړي إِلَّا أَنَّهُ يَتَصَدَّقُ بِمَنَافِعِهِ خو [څرنګه چې] واقف د موقوف شي منافع

---

[2] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه، باب في الفرائض ج:٢ ص:٦٨.

[3] تخريج: حضرت شريح رَحِمَهُ الله تابعي دی. او د هغه دا قول په سنن بيهقي کې ذکر سوی دی (باب من قال: لا حبس عن فرائض الله ج:٦، ص:٢٦٩، رقم:١١٩٠٠).

صدقه کوي فَصَارَ شَبِيهَ الْعَارِيَةِ نو ځکه دا د عاريت سره مشابه سو (عاريت دې ته وايي چي يو شی له مالک څخه د خواست او امانت په توګه وغوښتل سي. او مالک هغه شی ورکړي. نو هغه شی د مالک په ملکيت کي پاته وي. او له هغه څخه فقط د نفع اخيستلو اجازه وي. نو امام صاحب رحمة الله عليه فرمايي چي وقف هم داسي دی) وَلِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى التَّصَدُّقِ بِالْغَلَّةِ دَائِمًا او ځکه چي واقف د همېشه لپاره (د موقوفه ځمکي) د غلې صدقه کولو ته محتاج دی وَلَا تَصَدُّقَ عَنْهُ إِلَّا بِالْبَقَاءِ عَلَى مِلْكِهِ او د هغه له طرفه صدقه کول ممکن نه دي مګر د هغه په ملکيت کي د موقوف شي په پاتېدلو سره وَلِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ أَنْ يُزَالَ مِلْكُهُ لَا إِلَى مَالِكٍ او د نا مالک (غير مالک) طرف ته د هغه ملکيت زائلول ممکن هم نه دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَشْرُوعٍ مَعَ بَقَائِهِ ځکه چي دا د ملکيت د بقاء سره دا مشروع نه دي (يعني دا مشروع نه دي چي يو شی دي باقي وي او د هغه مالک دي نه وي) كَالسَّائِبَةِ لکه سائبه ښاروی چي صحيح نه دی (سائبه هغه ښاروي (اوښ) ته وايي کوم چي د بُت په نامه پرېښوول سي (وقف کړی سي) چي أصل مالک هم د هغه مالک پاته نه سي او بل څوک هم د هغه مالک نه وي لکه د نبوت په زمانه کي چي به خلکو همداسي کول. نو شارع (نبي ﷺ) هغوی له دې څخه منع کړل) بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ په خلاف د غلام آزادولو لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ ځکه چي هغه (ګواکي) ضايع کول دی (دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي که يو څوک غلام آزاد کړي نو د هغه له ملکيت څخه هم غلام وځي او د بل چا په ملکيت کي هم نه داخلېږي. نو دا څرنګه جائز دي؟ د جواب حاصل دا دی چي جائز دا نه دي چي يو شي دي موجود وي او هغه دي د يو چا په ملکيت کي نه وي. او غلام آزادول ګواکي د هغه غلامتوب هلاکول او ضايع کول دي. نو ځکه هغه جائز دي) وَبِخِلَافِ الْمَسْجِدِ لِأَنَّهُ جُعِلَ خَالِصًا لِلَّهِ تَعَالَى او په خلاف د مسجد. ځکه چي مسجد خالص د الله تعالیٰ لپاره جوړېږي وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ همدا وجه ده چي له هغه څخه نفع اخيستل جائز نه دي وَهَهُنَا لَمْ يَنْقَطِعْ حَقُّ الْعَبْدِ عَنْهُ او دلته (په وقف کي (له موقوف شي څخه د واقف ملکيت نه ختمېږي فَلَمْ يَصِرْ خَالِصًا لِلَّهِ تَعَالَى لهذا واقف خالص د الله لپاره نه سو قَالَ فِي الْكِتَابِ: "لَا يَزُولُ مِلْكُ الْوَاقِفِ إِلَّا أَنْ يَحْكُمَ بِهِ الْحَاكِمُ أَوْ يُعَلِّقَهُ بِمَوْتِهِ" وَهَذَا فِي حُكْمِ الْحَاكِمِ صَحِيحٌ امام قدوري چي په متن کي ووېل: "لا يزول ملک الواقف... إلخ" دا د حاکم د فيصلې په باره کي صحيح دي لِأَنَّهُ قَضَاءٌ فِي مُجْتَهَدٍ فِيهِ ځکه

چي دا په مجتهد فيه [اختلافي] مسئله کي فيصله کول دي أَمَّا فِي تَعْلِيقِهِ بِالْمَوْتِ فَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا يَزُولُ مِلْكُهُ لیکن په مرګ باندي د وقف معلق کولو په صورت کي صحيح خبره دا ده چي د واقف ملکيت نه ختميږي إِلَّا أَنَّهُ تَصَدَّقَ بِمَنَافِعِهِ مُؤَبَّدًا لیکن هغه د همېشه لپاره د هغه منافع صدقه کړي فَيَصِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ بِالْمَنَافِعِ مُؤَبَّدًا لهذا دا به د همېشه لپاره د منافعو د وصيت کولو په درجه کي وي فَيَلْزَمُ نو ځکه به [د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم] وقف لازم وي وَالْمُرَادُ بِالْحَاكِمِ الْمُوَلَّى او له حاکم څخه هغه سړی مراد دی چي د باچا [امامُ المسلمين] له طرفه د قضاء ولايت ورکول سوی وي فَأَمَّا الْمُحَكَّمُ فَفِيهِ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ پاته سو هغه حاکم [فيصله کونکی] کوم چي خلکو منتخب کړی وي، نو د هغه په حکم کي د مشائخو اختلاف دی وَلَوْ وَقَفَ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ او که يو څوک خپل د مرګ په مرض کي وقف وکړي قَالَ الطَّحَاوِيُّ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ نو امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا تر مرګ وروسته د وصيت کولو په څير دي وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او صحيح دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا وقف لازم نه دی وَعِنْدَهُمَا يَلْزَمُهُ إِلَّا أَنَّهُ يُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز لازم دی. لیکن [د ميت د مال] له دريمي حصې څخه به د هغه اعتبار کيږي [نافذيږي] وَالْوَقْفُ فِي الصِّحَّةِ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ او د روغتيا په حالت کي به له ټوله مال څخه وقف معتبر کيږي [نافذيږي] وَإِذَا كَانَ الْمِلْكُ يَزُولُ عِنْدَهُمَا يَزُولُ بِالْقَوْلِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ او کله چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز ملکيت ختميږي نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز محض په قول [وَقَفْتُ ويلو] سره هم ملکيت ختميږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ لِأَنَّهُ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ ځکه چي د إعتاق په څير وقف هم د ملکيت ساقطول دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا بُدَّ مِنَ التَّسْلِيمِ إِلَى الْمُتَوَلِّي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د ملکيت د ختمېدلو لپاره متولي [موقوف عليه] ته سپارل ضروري دي لِأَنَّهُ حَقُّ اللهِ تَعَالَى ځکه چي وقف د الله تعالیٰ حق دی وَإِنَّمَا يَثْبُتُ فِيهِ فِي ضِمْنِ التَّسْلِيمِ إِلَى الْعَبْدِ او بنده ته په سپارلو سره ضمناً په هغه کي د الله تعالیٰ ملکيت ثابتيږي لِأَنَّ التَّمْلِيكَ مِنَ اللهِ تَعَالَى "وَهُوَ مَالِكُ الْأَشْيَاءِ" لَا

يتحقق مقصودًا لهذا الله تعالىٰ بالقصد مالک جوړول "حال دا چي هغه د ټولو شيانو مالک دی" صحيح نه دي وَقَدْ يَكُونُ تَبَعًا لِغَيْرِهِ بلکي د بل چا په تبع کي ايعني د بنده په واسطه سره ا به د الله تعالى لپاره ملکيت ثابتيږي فَيَأْخُذُ حُكْمَهُ او هغه به د تمليک حکم اخلي فَيَنْزِلُ مَنْزِلَةَ الزَّكَاةِ وَالصَّدَقَةِ نو وقف کول به د زکاة او صدقې په څير وي.

**اللغات**: ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: منع کول. راګرځول. بندول. صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: حَبَسَهُ: مَنَعَهُ. و أمْسَكَهُ. وسَجَنَهُ. ﴿ينتظمها﴾ د افتعال مضارع ده: شاملېدل. مشتملېدل. ﴿غلّة﴾ دانې. حبوب. پيداوار (له کښت څخه حاصلي کړی سوي دانې لکه غنم او داسي نور). مراد ځني د موقوف شي منافع دي. ﴿إتلاف﴾ د افعال مصدر دی: ضايع کول. هلاکول. بربادول. ضايع کول. ﴿مُوَلّٰى﴾ د تفعيل له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده. هغه کس چي باچا هغه والي او حاکم (فيصله کونکی) جوړ کړی وي. ولّٰى يُوَلِّيْ تَوْلِيَةً: والي جوړول. يو څوک والي ټاکل. ولايت ور سپارل. ﴿مُحكّم﴾ د تفعيل له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: هغه کس چي مدعي او مدعي عليه حَكَم (فيصله کونکی) جوړ کړی وي. ﴿مؤبّد﴾ همېشنی. دائمي.

**تشريح**: د عبارت مطلب له ترجمې څخه ښکاره دی او آسانه هم دی. د وقف په سلسله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله أصح او معتمد قول دا دی چي وقف خو جائز او صحيح دی لېکن لازم نه دی. يعني د يو شي له وقف کولو څخه وروسته له موقوف (وقف کړی سوي شي) څخه د واقف حق او ملکيت نه ختمېږي بلکي باقي پاتېږي. او د واقف لپاره د امام صاحب په نېز د هغه خرڅول. هبه کول او په ميراث کي ورکول صحيح دي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وقف صحيح هم دی او لازم هم دی. يعني د دوی په نېز له موقوف شي څخه د واقف ملکيت په بشپړه توګه ختمېږي. او د واقف لپاره د موقوف شي خرڅول. هبه کول او په ميراث کي ورکول صحيح نه دي. د دواړو فريقو دلائل په عبارت کي موجود دي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دليل کي د دې حديث "لا حبس عن فرائض الله" مطلب دا دی چي کله انسان مړ سي نو د هغه هيڅ مال هم له ميراث کېدلو څخه منع کېدای نه سي او د هغه هر مال په ميراث کي تقسيمول کېدای سي (مطلب دا چي د هغه هر مال ميراث ګرځي) او وقف هم د هغه مال دی. لهذا دا به هم په ميراث کي تقسيمول کيږي. لېکن شيخ الاسلام رَحِمَهُ الله په خپل مبسوط کي په

دې حديث سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل نيول (استدلال) صحيح ګڼلي نه دي. ځکه چې اول خو دا حديث د وقف سره متعلق نه دى او دويمه خبره دا ده چې کله په وقف کولو سره موقوف مال د واقف له ملکيت څخه وځي نو ښکاره خبره ده چې هغه به ميراث هم نه ګرځي. او که موږ په دې حديث سره د امام صاحب استدلال صحيح وګڼو نو دا به فقط د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره متعلق وي او د دې حکم به عام نه وي. همدارنګه د حضرت شُريح رَحِمَهُ الله د حديث پس منظر دا دى چې کفارو به ګران بيه اوښان او څارويان (وصيله، سائبه، بحيره او حام) د بُتانو په نامه راګرځول (وقف کول) او د هغوى له خرڅولو او رانيولو څخه به يې اعراض کوى. نو نبي کريم ﷺ له دې څخه منع وکړه او دا معامله يې بالکل ختم کړه. او محبوسه او موقوفه څاريوان يې خرڅ کړل او اُمت ته يې دا وښوول چې په اسلام کې د سائبه، وصيله او داسې نورو هيڅ حقيقت نشته (لکه څرنګه چې د قرآن کريم په دې آيت کې هم د دغو څاريو يادونه سوې ده: "مَا جَعَلَ اللهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ وَلَا سَآئِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ ... إلخ" (سورة المائدة: ١٠٣)). لهذا د نبي کريم ﷺ دا عمل د جاهليت د زمانې د رواج ختمولو لپاره وو. نه د موقوف شي (څاروي) د خرڅولو لپاره. لهذا په دې حديث سره هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل نيول صحيح نه دي. له همدې کبله زياتره فقهاؤ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول ته ترجيح ورکړې ده او د شيخ الاسلام خواهر زاد او داسې نورو مشائخو په نيز هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول محقق، مختار او مفتیٰ به دى. (بنايه ج: ۶، ص: ۸۹۰ - ۸۹۵)

قال في الكتاب: لايزول ملك الوقف إلخ: تر دې عبارت لاندې صاحب د هدايې فرمايلي دي: "وهٰذا فى حكم الحاكم صحيح" د دې مطلب دا دى چې که يو سړى يو شى وقف کړي او متولي (موقوف عليه) ته يې وسپاري. بيا واقف له متولي څخه موقوف شى واپس اخيستل وغواړي او متولي له دې څخه انکار وکړي. او دواړه په دعوىٰ حاکم ته راسي، بيا حکم د دې وقف د لازمېدلو فيصله وکړي (يعني دا فيصله وکړي چې موقوف شي د واقف له ملکيت څخه ووتى. او په هغه کې د واقف هيڅ ملکيت نشته). نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم دا وقف لازميږي. خو شرط دا دى چې حاکم به د وخت د باچا (امامُ المسلمين) له طرفه ټاکل سوى وي. ليکن تعليق بالموت والا وقف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نه لازميږي خو بيا هم له هغه څخه چې کوم منافع حاصليږي هغه به د همېشه لپاره صدقه کول کيږي.

د مرض الموت وقف هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز نه لازميږي، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز لازميږي او د مال له دريمي حصې څخه به نافذيږي. پاتـه سوه د وقف د لزوم مسئله. نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د "وَقَفْتُ" په ويلو سره پر وقف لازميږي. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د وقف د لزوم لپاره متولي ته د موقوف شي سپارل ضروري دي (يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز وقف هغه وخت لازميږي کله چې واقف موقوف عليه ته موقوف شی وسپاري)؛ ځکه چې د وقف مالک د الله تعالىٰ ذات دی او الله تعالىٰ د ټوله جهان خالق او مالک دی. لهذا براه راست (بېله واسطې) هغوی مالک جوړول صحيح نه دي. نو څرنګه چې په صدقه او زکاة کي د فقير په واسطه سره د الله لپاره ملکيت ثابتيږي. همداسي به په وقف کي د موقوف عليه په واسطه سره د الله لپاره ملکيت ثابتيږي.

## د واقف له ملکيت څخه د موقوف شي وتل

قَالَ: وَإِذَا صَحَّ الْوَقْفُ عَلَى اخْتِلَافِهِمْ وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ: وَإِذَا اسْتُحِقَّ مَكَانَ قَوْلِهِ إِذَا صَحَّ فرمايي: او کله چي د مشائخو د اختلاف باوجود وقف صحيح دی (او په ځيني نسخو کي د "وإذا صحّ" پر ځای "وإذا استحقّ" دی) خَرَجَ مِنْ مِلْكِ الْوَاقِفِ وَلَمْ يَدْخُلْ فِي مِلْكِ الْمَوْقُوفِ عَلَيْهِ نو موقوف شی به د موقوف له ملکيت څخه وځي ليکن ا د موقوف عليه [متولي] په ملکيت کي به نه داخليږي لِأَنَّهُ لَوْ دَخَلَ فِي مِلْكِ الْمَوْقُوفِ عَلَيْهِ لَا يَتَوَقَّفُ عَلَيْهِ ځکه که د موقوف عليه په ملکيت کي داخل سي نو پر هغه به موقوف نه سي بَلْ يَنْفُذُ بَيْعُهُ كَسَائِرِ أَمْلَاكِهِ بلکي په هغه کي به د موقوف عليه [متولي] بيع نافذيږي لکه د هغه په نورو ملکيتونو کي چي نافذيږي وَلِأَنَّهُ لَوْ مَلَكَهُ لَمَا انْتَقَلَ عَنْهُ بِشَرْطِ الْمَالِكِ الْأَوَّلِ كَسَائِرِ أَمْلَاكِهِ او ځکه که موقوف عليه مالک کېدای نو د اول مالک [واقف] په شرط سره به هغه شی له موقوف عليه څخه [د بل چا ملکيت ته] نه منتقل کېدای لکه څرنګه چي د هغه نور ملکيت نه منتقل کيږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: قَوْلُهُ "خَرَجَ عَنْ مِلْكِ الْوَاقِفِ" يَجِبُ أَنْ يَكُونَ قَوْلُهُمَا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي سَبَقَ تَقْرِيرُهُ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د امام قدوري دا قول "خرج عن ملك الواقف" به د صاحبينو پر قول وي د هغه اختلاف په وجه کوم چي مخکي تېر سو.

**اللغات**: ﴿لا يتوقّف﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: موقوف کېدل. ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ټول. نور (باقي. پاته).

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دي چي كله زموږ د امامانو په مينځ كي د وقف د لزوم او عدم لزوم د اختلاف باوجود وقف جائز او صحيح دی، نو اوس د دې حكم دا دی چي موقوف شی خو به د واقف له ملكيت څخه وځي، لېكن د موقوف عليه په ملكيت كي به نه داخليږي؛ ځكه كه د موقوف عليه په ملكيت كي داخلېدلای نو هغه ته به د موقوف شي د خرڅولو حق او اختيار هم وای لكه څرنګه چي د خپلو مملوكه شيانو د خرڅولو حق هغه ته سته، حال دا چي هغه ته د موقوف شي د خرڅولو حق نسته. دويمه خبره دا ده كه واقف داسي ووايي چي "دا شی د فلانكي موقوف عليه لپاره تر ټوله كال وقف دی او تر كال وروسته د فلانكي سړي لپاره وقف دی" نو تر كال وروسته هغه شی په خپله د موقوف عليه له ملكيت څخه وځي. حالانكي كه موقوف عليه د موقوف شي مالک وای نو هغه به د ده له ملكيت څخه نه وتلای، معلومه سوه چي موقوف عليه د وقف نه مالک كيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا خبره "خرج عن ملك الوقف" د صاحبينو پر قول خو صحيح ده، لېكن د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول خو يا صحيح نه ده، او كه صحيح سي نو د حاكم د حكم او فيصلې په قيد سره صحيح ده.

## د مشترک شي وقف

قَالَ: وَوَقْفُ الْمُشَاعِ جَائِزٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فرمايي: او د مشترک شي وقف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مِنْ تَمَامِ الْقَبْضِ ځكه چي تقسيمول د قبضې له بشپړتيا څخه دي وَالْقَبْضُ عِنْدَهُ لَيْسَ بِشَرْطٍ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر مشترک شي قبضه شرط نه ده فَكَذَا تَتِمَّتُهُ لهذا د هغه تتمه [او لوازمات] به هم شرط نه وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَجُوزُ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مشترک شي وقف جائز نه دی لِأَنَّ أَصْلَ الْقَبْضِ عِنْدَهُ شَرْطٌ ځكه چي د هغه په نيز پر أصل قبضه شرط ده فَكَذَا مَا يَتِمُّ بِهِ لهذا د هغه پر مُتمّم به هم قبضه شرط وي وَهَذَا فِيمَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ دا اختلاف په هغه شي كي دی كوم چي د تقسيم قابل [لائق] وي [يعني تقسيمېدلای سي] وَأَمَّا فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ لېكن كوم شی چي د تقسيم قابل نه وي فَيَجُوزُ مَعَ الشُّيُوعِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ أَيْضًا نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د اشتراک [مشترک والي] باوجود د هغه وقف جائز دی لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُهُ بِالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ الْمُنَفَّذَةِ ځكه چي امام محمد رَحِمَهُ الله هغه پر سپارل سوي هبه او صدقه باندي قياسوي إِلَّا فِي الْمَسْجِدِ وَالْمَقْبَرَةِ لېكن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د مسجد او هديرې [قبرستان]

استثناء کړې ده فَإِنَّهُ لَا يَتِمُّ مَعَ الشُّيُوعِ فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ أَيْضًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو کوم شی چې د تقسيم قابل نه وي په هغه کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د اشتراک سره وقف جائز نه دی لِأَنَّ بَقَاءَ الشَّرِكَةِ يَمْنَعُ الْخُلُوصَ لِلّٰهِ تَعَالٰى ځکه چې د شرکت بقاء د الله لپاره خالص کېدل مانع کوي وَلِأَنَّ الْمُهَايَاةَ فِيهِمَا فِي غَايَةِ الْقُبْحِ او ځکه چې په مسجد او هديره کې نوبت تاکل ډېر بد دي بِأَنْ يُقْبَرَ فِيهِ الْمَوْتٰى سَنَةً وَيُزْرَعَ سَنَةً وَيُصَلّٰى فِيهِ فِي وَقْتٍ وَيُتَّخَذَ إِصْطَبْلًا فِي وَقْتٍ په دې توګه چې يو کال په هغه [موقوفه ځمکه] کې مړي ښخول کيږي او يو کال کښتکري پکښې کيږي او يو وخت په هغه کې لمونځ کيږي او بل وخت غوجل پکښې جوړيږي بِخِلَافِ الْوَقْفِ په خلاف د وقف لِإِمْكَانِ الِاسْتِغْلَالِ وَقِسْمَةِ الْغَلَّةِ ځکه چې [له موقوفه ځمکې څخه] غله حاصلول او [بيا] غله تقسيمول ممکن دي وَلَوْ وَقَفَهُ الْكُلَّ ثُمَّ اُسْتُحِقَّ جُزْءٌ مِنْهُ او که يو څوک يو شی [مثلاً ځمکه] وقف کړي بيا د هغه يوه حصه [د بل چا] مستحقه ثابته سي [يعني وروسته ثابته سي چې په هغه موقوف شي کې يوه حصه د بل چا ده] بَطَلَ فِي الْبَاقِي عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به په پاته حصه کې وقف باطليږي لِأَنَّ الشُّيُوعَ مُقَارِنٌ ځکه چې اشتراک مقارن وو كَمَا فِي الْهِبَةِ لکه څرنګه چې په هبه کې [هم دغه حکم دی] بِخِلَافِ مَا إِذَا رَجَعَ الْوَاهِبُ فِي الْبَعْضِ په خلاف د هغه صورت کله چې واهب [د موهوب شي] څه حصه واپس واخلي أَوْ رَجَعَ الْوَارِثُ فِي الثُّلُثَيْنِ بَعْدَ مَوْتِ الْمَرِيضِ وَقَدْ وَهَبَ أَوْ وَقَفَ فِي مَرَضِهِ يا د مريض تر مرګ وروسته وارثان دوې حصې واپس واخلي حال دا چې مريض په خپل مرضُ الموت کې [اهغه شی ټوله] هبه کړی يا وقف کړی وي وَفِي الْمَالِ ضِيقٌ او [د هغه] په مال کې تنګي وي لِأَنَّ الشُّيُوعَ فِي ذٰلِكَ طَارِئٌ ځکه چې په دې کې اشتراک طاري دي [يعني ځکه چې په دې صورت کې اشتراک وروسته راغلی دی] وَلَوْ اُسْتُحِقَّ جُزْءٌ مُمَيَّزٌ بِعَيْنِهِ او که يو داسې حصه مستحقه ثابته سي کوم چې معيَّنه او جلا وي لَمْ يَبْطُلْ فِي الْبَاقِي نو په پاته حصه کې به وقف نه باطليږي لِعَدَمِ الشُّيُوعِ ځکه چې شيوع معدوم دی وَلِهٰذَا جَازَ فِي الِابْتِدَاءِ همدا وجه ده چې ابتداءً هم د هغه [معيَّنې حصې] وقف جائز دی وَعَلٰى هٰذَا الْهِبَةُ وَالصَّدَقَةُ الْمَمْلُوكَةُ او د هبې او مملوکه صدقې هم دغه حکم دی.

**اللغات**: ﴿مُشاع﴾ د ضرب اسمِ مفعول دی: غوړول سوی (نشر کړی سوی). مشترک. ﴿تمام﴾ د ضرب مصدر دی: پوره کېدل. بشپړېدل. ﴿منفذة﴾ د تفعیل له باب څخه د مؤنث اسمِ مفعول صیغه ده: نافذه کړی سوې. مراد ځني سپارل سوې صدقه ده یعني هغه صدقه کوم چي فقیر ته وسپارل سي. ﴿مهاياة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په نوبت نوبت یو کار کول. نفع په وار او نوبت تقسیمول چي یوه ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي او بل ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي. ﴿قبح﴾ بدي. ګندګي. ﴿استغلال﴾ د استفعال مصدر دی: له ځمکي څخه غله اخیستل. غله حاصلول. ﴿مقارن﴾ د مفاعلې اسمِ فاعل دی: ور سره یو ځای سوی (متصل). ﴿ضيق﴾ تنګي. ﴿طاري﴾ وروسته راغلی. وروسته ثابت سوی. (أثمار الهداية)

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مُشاع شي یعني د مشترک او قابلِ تقسیم شي وقف کول جائز دي: ځکه چي د هغه په نېز محض د "وقفتُ" په ویلو سره وقف صحیح کېږي او د وقف د صحت لپاره د هغه په نېز موقوف علیه (متولي) ته موقوف شی سپارل شرط نه دي. له همدې کبله د هغه په نېز پر أصل یعني پر وقف کړی سوي شي قبضه کول هم شرط نه دي. نو په دې وجه د مشاع تقسیم هم شرط نه دی. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مشاع او مشترک شي وقف صحیح نه دی. ځکه چي د دوی په نېز وقف هغه وخت پوره کېږي کله چي موقوف علیه ته موقوف شی وسپارل سي. همدا وجه ده چي دوی په نېز پر موقوف شي قبضه کول شرط دي. او څرنګه چي د مُشاع شي له تقسیمولو څخه بغیر پوره قبضه ثابتېدای نه سي. نو ځکه به د وقف د صحت لپاره تقسیم هم شرط وي. لېکن دا اختلاف په هغو شیانو کي دی کوم چي قابلِ تقسیم وي (یعني تقسیم قبلوي). او هغه شیان کوم چي قابلِ تقسیم نه وي. په هغوی کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د اشتراک او شیوع د موجود والي باوجود وقف جائز دی. ځکه کله چي په هغوی کي تقسیم ممکن نه دی نو څرنګه به تقسیم پکښې شرط کړی سي. او څرنګه چي یو څوک ناقابل تقسیم مُشاع (مشترک شی) هبه یا صدقه کړي نو صحیح دي. همداسي به د ناقابلِ تقسیم مُشاع شي وقف هم صحیح وي.

**إلا في المسجد والمقبرة إلخ**: دا استثناء د متن د شروع یعني د "و وقف المُشاع جائز... إلخ" سره متعلق ده. حاصل یې دا دی چي که یو سړی د مسجد او هدیرې (قبرستان) لپاره مشاعه او مشترکه ځمکه وقف کړي. نو دا وقف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز هم صحیح نه دی که څه هم هغه ځمکه قابلِ

تقسيم نه وي. ځکه چې د مسجد او هديرې وقف د الله تعالیٰ لپاره خاص وي او شرکت د خصوص منافي دی، ځکه چې د مشترکې ځمکې د وقف کولو مطلب به دا وي چې يو کال واقف په دې ځمکه کې مړي ښخوي او مسجد پکښې جوړوي او دويم کال دويم شريک په دې ځمکه کښته وکرنه کوي او غوجل او ګورم پکښې جوړوي. او ښکاره خبره ده چې دا ډېره ناوړه خبره ده او د مسجد او هديرې د احترام خلاف کار دی. نو ځکه د دې شيانو لپاره مشترکه ځمکه وقف کول جائز نه دي. هـا! له دې څخه بغير د خير او ښېګڼې په يو بل کار کې د هغې وقف کول جائز دی، ځکه داسې کېدای سي چې د هغې منافع تقسيم کړی سي او د وقف حصه د وقف په مصارفو کې صرف کړی سي او شريک ته د هغه خپله حصه ورکول سي.

**ولو وقف الكل إلخ**: د دې حاصل دا دی که يو سړی ځمکه وقف کړي بيا د هغې ځکمې يوه حصه د بل چا مستحقه وخيږي (يعني تر وقف وروسته ثابته سي چې د موقوفه ځمکې يوه حصه د بل چا ده).

نو په دې صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ټوله وقف باطليږي، ځکه چې په دې ځمکه کې له مخکې څخه شيوع (شراکت) وو او د مستحق سړي حق د وقف په وخت کې هم موجود وو. لهذا پر موقوفه ځمکه د واقف پوره قبضه نه وه بلکې دا ځمکه د هغه او د بل سړي په مينځ کې مشترکه وه. نو څرنګه چې د يو شي د هبه کولو په وخت کې هغه شی مشترک وي نو هبه باطليږي. همداسې که د وقف په وخت کې هغه مشترک وي نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز وقف باطليږي. هـا! که چيرې په هبه کې طاري شيوع وي يعنې د هبې په وخت کې شيوع نه وي. بلکې واهب څه حصه واپس واخلي. يا مثلاً يو څوک په مرضُ الموت کې خپل ټوله مال هبه يا وقف کړی او تر مرګ وروسته د هغه وارثان له دغه مال څخه دوې حصې واخلي او فقط په يوه حصه کې د هبې يا وقف اجازت ورکړي. او له دې څخه بغير د مړي نور مال نه وي. نو دې ته طاري شيوع وايي او په دې سره هبه يا وقف نه باطليږي. همدارنګه که د موهوبه يا موقوفه ځمکې په يو معيّنه حصه کې د بل چا استحقاق ثابت سي نو په پاته حصه کې وقف او هبه نه باطليږي، ځکه چې د مستحقې حصې د متعيّن والي او جلا والي په وجه شيوع معدوم دی. همدا وجه ده که چيرې په شروع او ابتداء کې يو شريک خپله حصه وقف يا هبه کړي او دويم شريک يې وقف يا هبه نه کړي او د دواړو حصې يو تر بله سره جلا او معتيّنې وي (يعني د هر شريک حصه له بل شريک څخه عليحده او معلومه وي) نو وقف او هبه صحيح دي. او د مملوکه صدقې هم دغه حکم دی. له مملوکه څخه "مُسَلَّمَةً إِلَى الفَقِيرِ" مراد دی.

## د وقف د پوره کېدلو شرط

قَالَ: وَلَا يَتِمُّ الْوَقْفُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ حَتَّى يَجْعَلَ آخِرَهُ بِجِهَةٍ لَا تَنْقَطِعُ أَبَدًا فرمايي: د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وقف په هغه صورت کي پوره کيږي کله چي د هغه په آخر کي داوښوول سي چي د دې مصرف به هغه وي کوم چي همېشه ختمېدونکی نه وي ايعني هغه وخت وقف پوره کيږي کله چي واقف ووايي چي "دا د همېشه لپاره وقف دي" او په داسي ځای کي يې وقف وکړي کوم چي د همېشه لپاره د وقف مصرف وي لکه مساجد، مقابر او داسي نور ا وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: إِذَا سُمِّيَ فِيهِ جِهَةٌ تَنْقَطِعُ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که داسي مصرف متعين کړی سي کوم چي ختمېدونکی وي جَازَ نو هم جائز دي وَصَارَ بَعْدَهَا لِلْفُقَرَاءِ او تر دې وروسته به وقف د فقراؤ لپاره وي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِمْ که څه هم واقف د هغو تعيين نه وکړي لَهُمَا: أَنَّ مُوجَبَ الْوَقْفِ زَوَالُ الْمِلْكِ بِدُونِ التَّمْلِيكِ د طرفينو دليل دا دی: چي د وقف موجب د ملکيت زوال دی له تمليک څخه بغير ايعني برابره ده د واقف ملکيت ختم سي، او که ختم نه سي ا وَأَنَّهُ يَتَأَبَّدُ كَالْعِتْقِ او هغه د عتق په څېر همېشه پاتيږي فَإِذَا كَانَتِ الْجِهَةُ يُتَوَهَّمُ انْقِطَاعُهَا بيا که د وقف مصرف داسي وي چي د هغه ختمېدل موهوم اشکمن ا وي لَا يَتَوَفَّرُ عَلَيْهِ مُقْتَضَاهُ نو په دې سره به د وقف مقصد کما حقهٗ نه پوره کيږي فَلِهَذَا كَانَ التَّوْقِيتُ مُبْطِلًا لَهُ كَالتَّوْقِيتِ فِي الْبَيْعِ لهذا توقيت به هغه باطلوي لکه په بيع کي چي توقيت هغه باطلوي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ التَّقَرُّبُ إِلَى اللهِ تَعَالَى د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د وقف مقصد د الله تقرّب [او ثواب] حاصلول دي وَهُوَ مُوَفَّرٌ عَلَيْهِ او په وقف سره دا مقصد په پوره توګه حاصليږي لِأَنَّ التَّقَرُّبَ تَارَةً يَكُونُ فِي الصَّرْفِ إِلَى جِهَةٍ تَنْقَطِعُ ځکه چي کله نا کله تقرّب په ختمېدونکي مصرف کي په وقف کولو سره حاصليږي وَمَرَّةً بِالصَّرْفِ إِلَى جِهَةٍ تَتَأَبَّدُ او کله په دائمي مصرف کي په وقف کولو سره تقرّب حاصليږي فَيَصِحُّ فِي الْوَجْهَيْنِ لهذا په دواړو صورتونو کي به وقف صحيح وي وَقِيلَ: إِنَّ التَّأْبِيدَ شَرْطٌ بِالْإِجْمَاعِ يو قول دا دی: چي تأبيد بالاتفاق شرط دی إِلَّا أَنَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا يُشْتَرَطُ ذِكْرُ التَّأْبِيدِ لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز تأبيد ذکر کول شرط نه دي لِأَنَّ لَفْظَةَ الْوَقْفِ وَالصَّدَقَةِ مُنْبِئَةٌ عَنْهُ ځکه چي د وقف لفظ او د صدقې لفظ [په خپله اد

تأبيد خبر ورکوي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ إِزَالَةُ الْمِلْكِ بِدُونِ التَّمْلِيكِ كَالْعِتْقِ دهغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي وقف له تمليک څخه بغير د مکيت زائلول دي. لکه عتق وَلِهٰذَا قَالَ: فِي الْكِتَابِ فِي بَيَانِ قَوْلِهِ "وَصَارَ بَعْدَهَا لِلْفُقَرَاءِ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِمْ" له همدې کبله امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول په بيان کي ويلي دي: "وصار بعدها للفقراء وإن لم يسمهم" وَهٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ ذِكْرُ التَّأْبِيدِ شَرْطٌ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز تأبيد ذکر کول شرط دي لِأَنَّ هٰذَا صَدَقَةٌ بِالْمَنْفَعَةِ أَوْ بِالْغَلَّةِ ځکه چي دا د منفعت يا غلې صدقه ده وَذٰلِكَ قَدْ يَكُونُ مُؤَقَّتًا وَقَدْ يَكُونُ مُؤَبَّدًا او دا کله مؤقت [ديو څو وخت لپاره] وي او کله مؤبد [همېشنی] وي فَمُطْلَقُهُ لَا يَنْصَرِفُ إِلَى التَّأْبِيدِ لهذا مطلق وقف به د تأبيد وطرف ته نه راجع کيږي فَلَا بُدَّ مِنَ التَّنْصِيصِ نو ځکه به د تأبيد صراحت کول ضروري وي

**اللغات:** ﴿جهة﴾ طرف، خوا، صاحب د أحسنُ الهدايې د دې لفظ معنیٰ په "مصرف" سره کړې ده. مصرف د اسم ظرف صيغه ده معنیٰ يې ده "د صرفولو ځای" لکه چي ويل کيږي چي "فقراء او داسي نور د زکاة مصرف دي" يعني زکاة به په دوی کي مصرفيږي، نو امام قدوري فرمايي چي د وقف مصرف به دائمي او همېشنی وي.... ﴿لم يسمهم﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: ذکر کول، متعين کول (ټاکل، معلومول). ﴿يتأبّد﴾ د تفعّل مضارع ده: ابدي کېدل (همېشنی کېدل). ﴿توقيت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت مقرر کول (وخت ټاکل). ﴿تقرّب﴾ د تفعّل مصدر دی: قرب او نژدېکت حاصلول (مراد ځني ثواب حاصلول دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وقف په هغه صورت کي پوره کيږي کله چي د هغه مصرف دائمي او ابدي وي مثلاً د مساجدو، مقابرو، فقراؤ او مساکينو لپاره وقف کړی سوي وي. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز وقف په هر حال کي صحيح دي برابره ده د هغه مصرف دائمي وي يا وقتي وي (يعني د مؤقت وخت لپاره وي). او د وقتي کېدلو په صورت کي به تر وخت ختمېدلو وروسته هغه د فقراؤ او مساکينو وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي د وقف موجب دا دی چي له موقوف شي څخه د واقف ملکيت ختم سي برابره ده هغه د بل چا په ملکيت کي داخل سي او که نه سي. او د ملکيت زوال دائمي او ابدي وي لهذا

وقف به هم دائمي او ابدي وي. او كه چيري په غير دائمي او ختمېدونكي مصرف كي وقف وكړى سي نو كما حقهٔ به د هغه مقصد حاصل نه سي، نو په دې وجه موږ د مؤقت او ټاكلي وخت لپاره (مثلاً د پنځو. لسو كالو لپاره) وقف باطل ګرځولى دى لكه څرنګه چي په بيع كي توقيت باطل دى.

**د امام ابو يوسف**: دليل دا دى چي د وقف مقصد الهي تقرب او د ثواب حصول دى. او دا مقصد په مؤبد او مؤقت دواړو كي حاصليږي. لهذا وقتي او ابدي دواړه وقفونه صحيح دي. د ځيني فقهاؤ رايه دا ده چي تأبيد خو د ټولو په نيز شرط دى ليكن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د تأبيد صراحت كول (يعني په ښكاره الفاظو سره ذكر كول) شرط نه دي: ځكه كله چي د وقف موجب د ملكيت ختمول او زائلول دي. نو ښكاره خبره ده چي په هغه كي به په خپله تأبيد وي لكه څرنګه چي په عتق كي بغير له صراحت څخه تأبيد موجود دى. امام محمد رَحِمَهُ الله د تأبيد صراحت كول ضروري ګرځولي دي: ځكه چي وقف د منافعو صدقه كول دي او صدقه مؤقت او مؤبد دواړه قسمه كېداى سي. لهذا تر څو چي د تأبيد صراحت نه وكړى سي تر هغه وخته پوري به تأبيد نه ثابتيږي.

## د منقوله أموالو د وقف كولو حكم

قَالَ: **وَيَجُوزُ وَقْفُ الْعَقَارِ** فرمايي: چي د غير منقوله جايداد وقف جائز دى لِأَنَّ جَمَاعَةً مِنَ الصَّحَابَةِ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ وَقَفُوهُ ځكه چي د صحابه وو يو جماعت عقار وقف كړى دى **وَلَا يَجُوزُ وَقْفُ مَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ** او د هغه شيانو وقف جائز نه دى كوم چي نقل كيږي او له يوه ځاى څخه بل ځاى ته وړل كيږي قَالَ: وَهَذَا عَلَى الْإِرْسَالِ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا د مطلقاً ناجائز والي قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دى **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: إِذَا وَقَفَ ضَيْعَةً بِبَقَرِهَا وَأَكَرَتِهَا وَهُمْ عَبِيدُهُ** امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي كه يو سړى ځمكه د غوييو او بزګرانو سره وقف وكړي او هغه بزګران د واقف غلامان وي **جَازَ** نو جائز دي وَكَذَا سَائِرُ آلَاتِ الْحِرَاثَةِ او د كښتكرۍ د نورو آلاتو هم دغه حكم دى لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْأَرْضِ فِي تَحْصِيلِ مَا هُوَ الْمَقْصُودُ ځكه چي د مقصود اعلىٰ په حاصلولو كي دا د ځمكي تابع دي وَقَدْ يَثْبُتُ مِنَ الْحُكْمِ تَبَعًا مَا لَا يَثْبُتُ مَقْصُودًا او كله داسي شى د تابع په توګه ثابتيږي كوم چي د مقصود په توګه نه ثابتيږي كَالشِّرْبِ فِي الْبَيْعِ وَالْبِنَاءِ فِي الْوَقْفِ لكه د ځمكي په خرڅولو كي اوبه (يعني د اوبو لښتى) او د ځمكي په وقف كولو كي ودانۍ (مثلاً

دېوالونه او داسي نور ا وَمُحَمَّدٌ مَعَهُ فِيهِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په دې حکم کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَ إِفْرَادُ بَعْضِ الْمَنْقُولِ بِالْوَقْفِ عِنْدَهُ ځکه کله چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ځانله [تنها] د ځيني منقولاتو وقف جائز دی فَلأَنْ يَجُوزَ الْوَقْفُ فِيهِ تَبَعًا أَوْلَى نو د غير منقول د تابع په توګه به په طريقه اولیٰ سره په هغه کي وقف جائز وي.

**اللغات**: ﴿عقار﴾ غيرِ منقوله ملکيت. غيرِ منقوله جايداد. ثابتُ الأصل ملکيت (کوم چي له يو ځای څخه بل ځای ته نه نقل کيږي. لکه ځمکه او کور). ﴿يحوّل﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده: اړول. بدلول. له يوه ځای څخه بل ځای ته وړل. ﴿ضيعة﴾ ځمکه. جايداد. ﴿بقر﴾ غويي (غوايي). ﴿أكَرَة﴾ جمع د آكِرٌ ده لکه طَلَبَة چي جمع د طَالِبٌ ده: کښتګر. بزګر. په کښت کَي کار کونکی مزدور. ﴿حراثة﴾ کښتګري (کښت او کرنه کول). ﴿الشِّرْب﴾ د څښلو اُوبه. د اُوبو حصه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د غيرِ منقوله جايداد وقف خو بالاتفاق جائز دی. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د منقول شي وقف مطلقاً جائز نه دی هغه که د تابع په توګه وي يا د مقصود په توګه وي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که يو څوک خپله ځمکه د بزګرانو او يېوې کونکي غويانو سره وقف کړي، نو صحيح دي. او د کښتګرۍ د آلاتو هم دغه حکم دی: ځکه چي أصل مقصود يعني غله او پيداوار له ځمکي څخه حاصليږي او آلات د مقصود په تحصيل کي تابع دي. لهذا د أصل په تابع ګرځولو سره به د منقول وقف هم صحيح وي. او ځيني وخت داسي کيږي چي يو شي مقصوداً او مستقلاً نه جائز کيږي مګر تبعاً جائز کيږي. مثلاً داسي لښتی يوازي (تنها) خرڅول چي په هغه سره ځمکه اوبول کيږي جائز نه دي، لېکن د أصل يعني د ځمکي سره د هغه خرڅول جائز دي. همدارنګه يوازي دېوالونه وقف کول جائز نه دي لېکن د ځمکي په متابعت کي د هغوی وقف کول صحيح دي. نو همداسي به د غيرِ منقول په متابعت کي (يعني د غيرِ منقول د تابع په توګه) د منقول شي وقف کول هم صحيح وي. د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه هم دغه ده. ځکه وروسته به ذکر سي چي په کومو منقولي شيانو کي د خلکو تعامل جاري وي نو د هغوی وقف کول د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی. لهذا کله چي د امام محمد په نېز يوازي (تنها) د هغوی وقف کول جائز دي نو د تابع په توګه به په طريقه اولیٰ جائز وي. په دې اعتبار سره هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره سو.

## آسونه او وسله (اسلحه) وقف کول

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجُوْزُ حَبْسُ الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ وَمَعْنَاهُ وَقْفُهُ فِي سَبِيْلِ اللهِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې آس او وسله راګرځول يعني د الله په لار کې وقف کول جائز دي وَأَبُوْيُوْسُفَ مَعَهُ فِيهِ عَلٰى مَا قَالُوا او په دې سلسله کې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم د هغه سره دی، لکه څرنګه چې مشائخو فرمايلي دي وَهُوَ اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوْزَ او قياس دا دی چې د دې شيانو وقف دې جائز نه وي لِمَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ مخکې بيان کړی دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ الْآثَارُ الْمَشْهُوْرَةُ فِيهِ د استحسان دليل هغه آثار دي کوم چې د داسې وقف د جواز په هکله [منقول او] مشهور دي مِنْهَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: وَأَمَّا خَالِدٌ فَقَدْ حَبَسَ أَدْرُعًا وَأَفْرَاسًا لَهُ فِي سَبِيْلِ اللهِ تَعَالٰى وَطَلْحَةُ حَبَسَ دُرُوعَهُ فِي سَبِيْلِ اللهِ تَعَالٰى له هغوی څخه يو د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی: چې خالد خپلې زغرې او خپل آسونه د الله په لار کې وقف کړل او طلحه خپلې زغرې د الله په لار کې وقف کړې وَيُرْوٰى أَكْرَاعَهُ او په يوه روايت کې "أكراعه" روايت سوې دي [کوم چې جمع د "کُرَاع" ده] وَالْكُرَاعُ: الْخَيْلُ او له کراع څخه آس مراد دی وَيَدْخُلُ فِي حُكْمِهِ الْإِبِلُ او اوښ هم د "خَيْل" (آس) په حکم کې داخل دی لِأَنَّ الْعَرَبَ يُجَاهِدُوْنَ عَلَيْهَا ځکه چې عرب پر اوښانو هم جهاد کوي وَكَذَا السِّلَاحُ يُحْمَلُ عَلَيْهَا او همدارنګه پر اوښانو وسله [هم] بارول کيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ يَجُوْزُ وَقْفُ مَا فِيهِ تَعَامُلٌ مِنَ الْمَنْقُوْلَاتِ له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چې په کومو منقولاتو کې چې د معاملې کولو رواج وي د هغوی وقف جائز دی كَالْفَأْسِ وَالْمَرِّ وَالْقَدُوْمِ وَالْمِنْشَارِ وَالْجِنَازَةِ وَثِيَابِهَا وَالْقُدُوْرِ وَالْمَرَاجِلِ وَالْمَصَاحِفِ لکه تبر، تېشه، کُلنګ، آره، تابوت او د تابوت کپړې، دېګونه، کټوې [کټوياڼ] وَعِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ لَا يَجُوْزُ ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دي لِأَنَّ الْقِيَاسَ إِنَّمَا يُتْرَكُ بِالنَّصِّ ځکه چې قياس د نص په وجه پرېښوول کيږي وَالنَّصُّ

---

[1] تخريج: أخرجه بخاري ومسلم بمعناه (بخاري، ص:١٩٨، رقم:١٤٦٨، وكذا في ص:٤٨٥، رقم:٢٧٦٩. ومسلم ص:٣١٦، رقم: ٢٢٧٧/٩٨٣)

وَزَدْنِي الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ او نص [فقط] د آسونو او اسلحې په هکله وارد سوی دی فَيُقْتَصَرُ عَلَيْهِ لهذا نص به [فقط] پر هغه منحصر کيږي وَمُحَمَّدٌ يَقُولُ: الْقِيَاسُ قَدْ يُتْرَكُ بِالتَّعَامُلِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي کله نا کله قياس د تعامل په وجه پرېښوول کيږي كَمَا فِي الِاسْتِصْنَاعِ لکه څرنګه چي په استصناع کي کيږي وَقَدْ وُجِدَ التَّعَامُلُ فِي هَذِهِ الْأَشْيَاءِ او د دې شيانو په وقف کي تعامل جاري دی وَعَنْ نَصِيرِ بْنِ يَحْيَى أَنَّهُ وَقَفَ كُتُبَهُ إِلْحَاقًا لَهَا بِالْمَصَاحِفِ او له نصير بن يحيىٰ څخه روايت سوی دی چي هغه خپل کتابونه وقف کړل، په قرآن شريف باندي په قياس کولو سره وَهَذَا صَحِيحٌ او دا صحيح دي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ يُمْسَكُ لِلدِّينِ تَعْلِيمًا وَتَعَلُّمًا وَقِرَاءَةً ځکه چي قرآن او ديني کتابونه هر يو د ښوولو، زده کولو او لوستلو لپاره وقف کيږي وَأَكْثَرُ فُقَهَاءِ الْأَمْصَارِ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ او د ښارونو زياتره فقهاء د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول عمل کوي وَمَا لَا تَعَامُلَ فِيهِ لَا يَجُوزُ عِنْدَنَا وَقْفُهُ او په کومو منقولاتو کي چي تعامل نه وي زموږ په نيز د هغوی وقف کول جائز نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: كُلُّ مَا يُمْكِنُ الِانْتِفَاعُ بِهِ مَعَ بَقَاءِ أَصْلِهِ وَيَجُوزُ بَيْعُهُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: هر هغه شی چي له هغه څخه نفع اخيستل او د هغه أصل باقي پاتېدل ممکن وي او د هغه خرڅول جائز وي يَجُوزُ وَقْفُهُ نو د هغه وقف کول هم جائز دی لِأَنَّهُ يُمْكِنُ الِانْتِفَاعُ بِهِ ځکه چي له هغه څخه نفع اخيستل ممکن دي فَأَشْبَهَ الْعَقَارَ وَالْكُرَاعَ وَالسِّلَاحَ نو دا د جايداد، آس او وسلې سره مشابه سو وَلَنَا: أَنَّ الْوَقْفَ فِيهِ لَا يَتَأَبَّدُ مِنْهُ زموږ دليل دا دی: چي په دي کي وقف أبدي نه وي [او د وقف أبدي کېدل ضروري دي] عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه مخکي چي موږ د دې بيان وکړی فَصَارَ كَالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ نو دا داسي سو لکه دراهم او دنانير بِخِلَافِ الْعَقَارِ په خلاف د جايداد وَلَا مُعَارِضَ مِنْ حَيْثُ السَّمْعُ وَلَا مِنْ حَيْثُ التَّعَامُلُ او دلته هيڅ معارض نسته نه د حديث او أثر په اعتبار سره او نه د تعامل په اعتبار سره فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ لهذا حکم پر أصل قياس باقي پاته سو وَهَذَا لِأَنَّ الْعَقَارَ يَتَأَبَّدُ او دا ځکه چي جايداد أبدي وي [يعني همېشه باقي پاتېږي] وَالْجِهَادُ سَنَامُ الدِّينِ او جهاد دين أعلىٰ رکن دی فَكَانَ مَعْنَى الْقُرْبَةِ فِيهِمَا أَقْوَى نو په کراع او سلاح کي به د قربت معنیٰ قوي وي فَلَا يَكُونُ غَيْرُهُمَا فِي

مَعْنَاهُمَا لهذا له دوي څخه بغير نور شيان به د دوی په معنیٰ سره نه وي.

**اللغات**: ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: منع کول، راګرځول، مراد ځني وقف کول دی. ﴿کُراع﴾ جنګي سپارلي (هغه سپارلي چي جنګ پر کېدای سي)، آس، اوښ او داسي نور. ﴿سلاح﴾ اسلحه. وسله. ﴿ادرع﴾ جمع د دِرْعٌ ده: زغره. ﴿فأس﴾ تبر، تبرزين. ﴿مرّ﴾ تېشه. ﴿قدوم﴾ کُلنګ (دوه سرې کهی). ﴿منشار﴾ آره. ﴿جنازة﴾ تابوت. ﴿قُدور﴾ جمع د قِدْرٌ: دېګ. ﴿مراجل﴾ جمع د مِرْجَلٌ ده: ګټو (کټوی). خاورين دېګی. ﴿استصناع﴾ د جوړولو طلب کول. د يو شي جوړولو امر کول (د جوړولو فرمايش کول). مثلاً يو څوک نجار ته امر وکړي چي دومره اندازه تېبل راجوړ کړه. نو دې ته "استصناع" وايي. په استصناع کي مبيع مجهول وي ځکه چي اوس تېبل موجود نه دی. خو د خلکو د تعامل په وجه استصناع جائز ګرځول سوې ده. لهذا په کومو منقولي شيانو کي چي تعامل وي د هغوی وقف به هم جائز وي (دا د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دی). ﴿سنام﴾ د اوښ بُوک. مراد ځني أعلیٰ او لوړ رکن دی (يعني جهاد د اسلام أعلیٰ او أهمه حصه ده).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي وسله او آسونه د الله په لار کي وقف کول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز استحساناً جائز دي، لېکن قياساً جائز نه دي؛ ځکه چي د دې شيانو په وقف کي تأبيد معدوم وي. د استحسان دليل دا دی چي له خالد بن وليد او طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د زغرو او آسونو وقف کول ثابت دي "ولم ينكر عليه النبي ﷺ" او د نبي کريم ﷺ انکار نه کول په دغه شيانو کي د وقف جائز کېدلو واضح دليل دی. او د اوښ هم دغه حکم دی. ځکه چي عرب پر اوښانو هم جهاد کوي او پر هغوی د جهاد سامان باروي.

**وعن محمد إلخ**: مسئله دا ده چي په کومو منقولي شيانو کي چي د تعامل او معاملې رواج جاري وي لکه تبر، تېشه او داسي نور. نو د هغوی وقف د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی. لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دی؛ ځکه چي قياس په هغوی کي د وقف د جواز انکار کوي. او قياس د نص په وجه پرېښوول کيږي. او څرنګه چي نص فقط د کراع او سلاح په هکله وارد سوی دی. لهذا فقط پر همدوی به نص منحصر کيږي. او له دوی څخه بغير په نورو شيانو کي به قياس پر خپل أصل باقي پاتيږي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د تعامل په وجه سره هم کله قياس پرېښوول کيږي لکه په استصناع کي چي د خلکو د تعامل په وجه قياس پرېښوول سوی دی او هغه جائز ګرځول سوی دی.

او په دې شیانو کې هم تعامل جاري دی. نو ځکه به په دوی کې وقف صحیح وي. په روایاتو کې ذکر سوي دي چې د حسن بن زیاد شاګرد "نصیر بن یحیی" په قرآن شریف باندې په قیاس کولو سره خپل دیني کتابونه وقف کړل او مشائخو د هغه د دې فعل ستاینه وکړه او پر همدې یې فتوی ورکړه: ځکه چې د قرآن شریف په څېر دیني کتابونه هم د لوستلو او ښوولو (ور زده کولو) لپاره وقف کېږي. او د قرآن کریم وقف جائز دی. لهذا د دیني کتابونو وقف به هم جائز وي. او په کومو شیانو کې چې تعامل نه وي. په هغوی کې زموږ په نېز وقف جائز نه دی.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې د کوم شي أصل باقي پرېښوول او له هغه څخه نفع اخیستل ممکن وي او د هغه خرڅول جائز وي. نو د هغه وقف به هم جائز وي. لکه د کراع او وسلې وقف چې جائز دی. زموږ دلیل دا دی چې د وقف د صحت لپاره تأبید شرط دی او په منقولاتو کې عموماً تأبید نه وي. لهذا د هغوی وقف به هم جائز نه وي. لکه څرنګه چې د دراهمو او دنانیرو وقف جائز نه دی. د دې په خلاف په عقار کې تأبید موجود دی. لهذا منقولات پر عقار قیاسول صحیح نه دي. همدارنګه پر کراع او وسلې هم منقولات قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې په کراع او سلاح کې خلافُ القیاس په نص سره د وقف جواز ثابت دی. لهذا پر دوی به نور شیان نه قیاسول کېږي. ځکه قاعده دا ده چې "ما ثبت علی خلاف القیاس فغیره لا یُقاس علیه". او په کومو شیانو کې چې د وقف جواز په تعامل سره ثابت وي پر هغوی هم داسې شی قیاسول صحیح نه دي چې په هغه کې تعامل معدوم وي. او بل دا چې په وسله او آسونو سره جهاد کېږي او جهاد د اسلام اعلیٰ رکن دی. نو په کراع او سلاح کې چې په کومه اندازه د قربت معنیٰ سته هغه په نورو منقولاتو کې نسته. نو په دې وجه د کراع او سلاح وقف جائز دی. او له دوی څخه بغیر د نور منقولاتو (چې په هغوی کې تعامل نه وي) وقف جائز نه دی.

## تر وقف پوره کېدلو وروسته د بیع او داسي نورو حکم

قال: وَإِذَا صَحَّ الْوَقْفُ فرمایي: او کله چې وقف صحیح سي أیعني کله چې وقف لازم سي ا لَمْ يَجُزْ بَيْعُهُ وَلَا تَمْلِيكُهُ نو د هغه خرڅول او د یو چا په ملکیت کې ورکول جائز نه دي إِلَّا أَنْ يَكُونَ مُشَاعًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فَيَطْلُبُ الشَّرِيكُ الْقِسْمَةَ فَيَصِحُّ مُقَاسَمَتُهُ خو دا چې هغه وقف مُشترک وي نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دویم شریک د تقسیم مطالبه کولای سي او د هغه تقسیم کول او ېش ا به صحیح وي أَمَّا امْتِنَاعُ التَّمْلِيكِ فَلِمَا بَيَّنَّا کوم چې د تملیک ممنوع کېدل دي نو د هغه دلیل په

وجه دي كوم چي موږ امخكي ا بيان كړى وَأَمَّا جَوَازُ الْقِسْمَةِ فَلِأَنَّهَا تَمْيِيزٌ وَإِفْرَازٌ او كوم چي د تقسيم جائز كېدل دي نو ځكه چي تقسيم بېلول او جلا كول دي ا يعني خپله حصه د بل چا له حصې څخه جلا كول دي ا غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّ الْغَالِبَ فِي غَيْرِ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ مَعْنَى الْمُبَادَلَةِ آخري پاى يې دا دى ا يعني په تقسيم سره به فقط دا خرابي منځ ته راسي ا چي له كيلي او وزني شي څخه بغير په نورو شيانو كي به د مبادلې معنى غالبه وي إِلَّا أَنَّ فِي الْوَقْفِ جَعَلْنَا الْغَالِبَ مَعْنَى الْإِفْرَازِ نَظَرًا لِلْوَقْفِ لېكن د وقف وطرف ته په كتلو [او پر واقف د شفقت كولو ا په خاطر موږ په وقف كي د إفراز معنى غالبه كړه فَلَمْ تَكُنْ بَيْعًا وَتَمْلِيكًا لهذا دا به بيع او تمليک نه وي ثُمَّ إِنْ وَقَفَ نَصِيبَهُ مِنْ عَقَارٍ مُشْتَرَكٍ فَهُوَ الَّذِي يُقَاسِمُ شَرِيكَهُ بيا كه [يو څوک ا له مشترک عقار څخه خپله حصه وقف كړي نو همدا واقف به په خپل شريک سره تقسيم كوي [او خپله حصه به په جلا كوي ا لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لِلْوَاقِفِ وَبَعْدَ الْمَوْتِ إِلَى وَصِيِّهِ ځكه چي [پر وقف ا فقط واقف لره ولايت وي او د واقف تر مرګ وروسته د هغه وصي [ولي ا لره ولايت وي وَإِنْ وَقَفَ نِصْفَ عَقَارٍ خَالِصٍ لَهُ او كه [يو څوک ا د داسي ځمكي نيمه حصه وقف وكړي كوم چي د هغه لپاره خالص [غير مشترک ا وي فَالَّذِي يُقَاسِمُهُ الْقَاضِي نو [په دې صورت كي ا به قاضي په واقف تقسيم كوي أَوْ يَبِيعُ نَصِيبَهُ الْبَاقِيَ مِنْ رَجُلٍ ثُمَّ يُقَاسِمُهُ الْمُشْتَرِي ثُمَّ يَشْتَرِي ذٰلِكَ مِنْهُ يا به واقف خپله پاته حصه پر يو سړي خرڅوي چي بيا به هغه [مشتري ا په واقف تقسيم كوي [او ا بيا به واقف له مشتري څخه [خپله حصه ا رانيسي لِأَنَّ الْوَاحِدَ لَا يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ مُقَاسِمًا وَمُقَاسَمًا ځكه چي دا جائز نه دي چي فقط يو سړى دي هم تقسيم كونكى وي او هم تقسيم كړى سوى وَلَوْ كَانَ فِي الْقِسْمَةِ فَضْلُ دَرَاهِمَ او كه په تقسيم كي څه اضافي دراهم وي إِنْ أَعْطَى الْوَاقِفُ لَا يَجُوزُ نو كه مشتري واقف ته هغه دراهم وركړي. دا جائز نه دي لِامْتِنَاعِ بَيْعِ الْوَقْفِ ځكه چي د وقف [موقوف شي ا خرڅول ممنوع دي وَإِنْ أَعْطَى الْوَاقِفُ جَازَ او كه واقف يې مشتري ته وركړي، نو جائز دي وَيَكُونُ بِقَدْرِ الدَّرَاهِمِ شِرَاءً او هغه به د شراء په اعتبار سره د دراهمو په اندازه وي. ايعني د دې مطلب به دا وي چي واقف څه حصه په دراهمو سره رانيوله او هغه يې وقف كړه ا.

**اللغات**: ﴿تمليك﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک جوړول. ﴿مقاسمة﴾ د مفاعلې مصدر دی: وېشنه. تقسيم کول (پټواري). تقسيمول او خپله حصه اخيستل. ﴿إفراز﴾ د افعال مصدر دی: د بل چا له مال څخه خپل مال جلا کول (عليحده کول). ﴿فضل﴾ اضافي. زيات (زايد).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د وقف تر صحيح کېدلو او لازمېدلو وروسته د هغه خرڅول يا په يو بله طريقه سره هغه ديو چا په ملکيت کي ورکول جائز نه دي. لېکن که چيري وقف د مُشاع او مشترک شي وي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د غيرِ واقف د مطالبه کولو په صورت کي د هغه تقسيمول صحيح او جائز دي؛ ځکه چي په وقف کړی سوي (موقوف شي) کي د هغه هم حق او حصه سته. او فقط په تقسيم سره هغه ته خپله حصه ورکول ممکن دي. نو په دې وجه د مُشاع شي تقسيم جائز دی. لېکن يو څوک د هغه مالک جوړول جائز نه دي؛ ځکه مخکي د حضرت عمر ﷺ د صدقه کولو په هکله دا حديث "تصدق بأصله لا يُباع ولا يُورث ولا يُوهب" ذکر سو. کوم چي د دې خبري دليل دی چي تر وقف کولو وروسته د وقف تمليک ممنوع دی.

د وقف (موقوف شي) په تقسيمولو سره به فقط دا خرابي منځ ته راسي چي که چيري وقف د غيرِ کَيلي او غيرِ وزني شي وي (يعني موقوف شی غيرِ مکيلي او غيرِ موزوني وي)، نو د هغه تقسيم به د "مُبادله" په معنیٰ سره وي. او مبادله په بيع کي کيږي، لهذا دا تقسيم به من وجه بيع وي. حالانکي د وقف بيع صحيح نه ده؟ د دې جواب دا دی چي که څه هم تقسيم د مبادلې په معنیٰ سره دی، لېکن په وقف کي پر واقف د رحم او شفقت کولو په خاطر د واقف د تصرف صحيح کولو لپاره موږ د إفراز او عليحده کولو معنیٰ غالب وګرځول. او په إفراز کي د تقسيم معنیٰ نسته. لهذا دا تقسيم به بيع او تمليک نه وي. نو ځکه به صحيح وي.

**ثم إن وقف إلخ**: د دې حاصل دا دی که يو څوک له مشترک عقار (غيرِ منقوله جايداد) څخه خپله حصه وقف وکړي، نو واقف به په خپل شريک سره د ځمکي او خپلي حصې تقسيم کوي. قاضي به د دې تقسيم نه کوي؛ ځکه چي پر موقوف شي فقط واقف ته ولايت حاصل دی او تر واقف وروسته به د هغه وصي ته دا ولايت حاصل وي لهذا قاضي به دا تقسيم نه کوي. د دې په خلاف که يو څوک د غيرِ مشترک عقار نيمه حصه وقف کړي نو په دې صورت کي به د دغه نيمي حصې تقسيم قاضي په واقف سره کوي يا د دې صورت به دا وي چي واقف خپله پاته (مابقي) حصه پر يو سړي خرڅه کړي او بيا دا سړی په واقف سره هغه تقسيم کړي؛ ځکه که چيري پر واقف تقسيم لازم کړی

سي نو شخص واحد به هم مُقاسم سي او هم به مُقاسم سي (یعني هم به په خپله تقسیم کونکی وګرځي او هم به په بل چا تقسیم کونکی وګرځي). حالانکي دا صحیح نه دي. (أحسن الهدایة)

**ولوکان في القسمة إلخ:** فرمایي چي که په وېش او تقسیم کي یو طرف ته دارهم وي. مثلا په دواړو شریکانو کي د یوه شریک حصه غوره وي. او د دویم شریک په حصه کي څه نقص او کمي وي. او د هغه له طرفه دارهم وټاکل سي. نو واقف ته د هغه دارهمو اخیستل جائز نه دي. ځکه که واقف دراهم واخلي نو هغه به د دې په مقابله کي د وقف (موقوفه ځمکي) څه حصه ورکوي. حالانکي د وقف بیع ممنوع ده. نو په دې وجه د واقف لپاره د دې دراهمو اخیستل جائز نه دي. ها! که واقف دا دراهم مشتري ته حواله کړي او بیا مشتري د دې دراهمو په عوض کي څه عقار واقف ته ورکړي او واقف هغه واخلي بیا یې وقف کړي نو دا صحیح او جائز دي.

## د موقوف شي منافع به چیري صرفول کیږي؟

قَالَ: وَالْوَاجِبُ أَنْ يَبْتَدِأَ مِنْ ارْتِفَاعِ الْوَقْفِ بِعِمَارَتِهِ فرمایي: چي د وقف منافع به تر ټولو مخکي د هغه په تعمیر [ودانولو او مرمت کولو] کي صرفول کیږي شَرَطَ ذٰلِكَ الْوَاقِفُ أَوْ لَمْ يَشْتَرِطْ برابره ده واقف د دې شرط لګولی وي او که نه وي لِأَنَّ قَصْدَ الْوَاقِفِ صَرْفُ الْغَلَّةِ مُؤَبَّدًا ځکه چي د واقف مقصد دا دی چي د وقف پیداوار [منافع] همېشه صرف کړی سي وَلَا تَبْقَى دَائِمَةً إِلَّا بِالْعِمَارَةِ او پیداوار فقط په تعمیرولو [ودانولو] سره همېشه پاتیږي فَيَثْبُتُ شَرْطُ الْعِمَارَةِ اقْتِضَاءً لهذا اقتضاءً به تعمیرول شرط وي وَلِأَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ او ځکه چي نفع د ضمان [خرچ] په مقابله کي وي [یعني څوک چي له یو شي څخه نفع اخلي نو د دې شي خرچ او مصرف هم پر هغه لازم وي] وَصَارَ كَنَفَقَةِ الْعَبْدِ الْمُوصٰى بِخِدْمَتِهِ فَإِنَّهَا عَلَى الْمُوصٰى لَهُ بِهَا او دا داسي سو لکه د خدمت لپاره د وصیت کړی سوي غلام نفقه چي پر مؤصیٰ لهٗ بالخدمت باندي واجبیږي ثُمَّ إِنْ كَانَ الْوَقْفُ عَلَى الْفُقَرَاءِ وَلَا يُظْفَرُ بِهِمْ بیا که وقف پر فقیرانو سوی وي [او هغوی دومره ډېر وي] چي له هغو څخه اد تعمیر [خرچ اخیستل کېدلای نه سي وَأَقْرَبُ أَمْوَالِهِمْ هٰذِهِ الْغَلَّةُ او هغو ته زیات نژدې د همدغه وقف پیداوار [ګټه] وي فَيَجِبُ فِيهَا نو په هغه [پیداوار] سره به تعمیرول واجب وي وَلَوْ كَانَ الْوَقْفُ عَلٰى رَجُلٍ بِعَيْنِهِ وَآخِرُهُ لِلْفُقَرَاءِ او که وقف پر یو معیّن [معلوم] سړي سوی وي او تر هغه وروسته د فقیرانو لپاره وي فَهُوَ فِي مَالِهِ أَيِّ مَالِهِ شَاءَ فِي حَالِ حَيَاتِهِ نو د وقف تعمیر [تعمیرول] به د هغه سړي

په مال كي واجب وي برابره ده كه هغه سړی له خپل هر مال څخه وغواړي په خپل ژوند كي دي تعمير وكړي وَلَا يُؤْخَذُ مِنَ الْغَلَّةِ او فقط د وقف له پيداوار (گټي) څخه دي د تعمير خرچه نه اخيستل كيږي لِأَنَّهُ مُعَيَّنٌ يُمْكِنُ مُطَالَبَتُهُ ځكه چي دا وقف د يو معيّن سړي لپاره دی او له هغه څخه د تعمير مطالبه كول ممكن دي وَإِنَّمَا يَسْتَحِقُّ الْعِمَارَةَ عَلَيْهِ بِقَدْرِ مَا يَبْقَى الْمَوْقُوفُ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي وَقَفَهُ او په وقف كي به دومره اندازه تعمير كيږي چي په هغه سره وقف پر خپل هغه حالت پاته سي په كوم حالت كي چي واقف هغه وقف كړی وو وَإِنْ خَرِبَ يُبْنَى عَلَى ذٰلِكَ الْوَصْفِ او كه هغه خراب سي نو پر هغه (مخكني) صفت (او حالت) به هغه جوړول كيږي لِأَنَّهَا بِصِفَتِهَا صَارَتْ غَلَّتُهَا مَصْرُوفَةً إِلَى الْمَوْقُوفِ عَلَيْهِ ځكه چي په هماغه صفت سره د هغه پيداوار (گټه) پر موقوف عليه (متولي) باندي د صرفولو لپاره وقف كړی سوې وه فَأَمَّا الزِّيَادَةُ عَلَى ذٰلِكَ فَلَيْسَتْ بِمُسْتَحَقَّةٍ عَلَيْهِ لهذا تر دې زيات تعميرول به پر موقوف عليه واجب نه وي وَالْغَلَّةُ مُسْتَحَقَّةٌ او (فقط) موقوف عليه د هغه د پيداوار (گټي) مستحق دی فَلَا يَجُوزُ صَرْفُهَا إِلَى شَيْءٍ آخَرَ إِلَّا بِرِضَاهُ لهذا د هغه له رضا څخه بغير دغه پيداوار په بل شي كي صرفول (خرچول) جائز نه دي وَلَوْ كَانَ الْوَقْفُ عَلَى الْفُقَرَاءِ او كه وقف د فقراؤ لپاره وي فَكَذٰلِكَ عِنْدَ الْبَعْضِ نو د ځيني مشائخو په نيز هم دغه حكم دی وَعِنْدَ الْآخَرِينَ يَجُوزُ ذٰلِكَ او د نورو مشائخو په نيز په تعيمر كي زياتوب كول جائز دي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ لېكن اول قول زيات صحيح دی لِأَنَّ الصَّرْفَ إِلَى الْعِمَارَةِ ضَرُورَةُ إِبْقَاءِ الْوَقْفِ ځكه چي په تعمير كي پيداوار (او گټه) صرفول د وقف د باقي ساتلو د ضرورت په وجه دي وَلَا ضَرُورَةَ فِي الزِّيَادَةِ او په زياتوب كولو كي هيڅ ضرورت نسته.

**اللغات:** ﴿ارتفاع﴾ نفع. گټه. آمدن. منافع. ﴿عمارة﴾ ودانول. تعميرول (تعمير). جوړول. ﴿الغلة﴾ پيداوار. له ځمكي څخه ترلاسه كړی سوې نفع (حاصلات). مراد ځني د موقوف شي گټه او منافع دي. ﴿خراج بالضمان﴾ گټه په تاوان سره ده. دا يو محاوره ده. مطلب يې دا دی چي كوم څوك له يو شي څخه فايده او نفع اخلي د هغه شي خرچ او مصرف هم پر ده لازميږي (لكه پښتو كي چي هم ځيني وخت د دې مقصد لپاره داسي ويل كيږي چي "گټه په تاوان سره ده"). ﴿لا يظفر﴾ د

سمع له باب څخه د نفي صيغه ده: کامیابېدل، برى ترلاسه کول، غالبېدل، ديو شي حاصلول (ترلاسه کول)، ﴿إبقاء﴾ د افعال مصدر دی: باقي ساتل (خوندي ساتل، باقي پرېښوول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې د وقف په پيداوار او منافعو سره به تر ټولو مخکې د هغه د تعمير او جوړولو کار شروع کيږي، برابره ده واقف د دې شرط لګولی وي او که نه وي: ځکه چې د واقف مقصد دا وي چې د هغه وقف همېشه باقي پاته سي او د دې صورت همدغه دی. دويمه خبره دا ده چې کله د موقوف عليه منافع موقوف عليه ته حاصلېږي نو ښکاره خبره ده چې د وقف د تعمير خرچ به هم پر هغه وي چې دا به د وقف له ګټې او منافعو څخه پوره کول کيږي. لکه د يو سړي لپاره چې يو څوک وصيت وکړي چې زما د غه غلام به د هغه خدمت کوي، نو ښکاره خبره ده چې د دې غلام خرچه به هم پر هغه سړي (مخدوم) لازمه وي، همداسې به دلته هم د وقف د تعمير خرچه پر موقوف عليه لازمه وي.

**ثم إن كان إلخ**: فرمايي که چيري وقف پر غريبانو سوی وی او دا نامکمنه وي چې ټوله غريبان سره جمع کړل سي او له هغو څخه د تعمير لپاره خرچ واخيستل سي، نو د همدې وقف په پيداوار او منافعو سره به تعمير کيږي، ها! که چيري وقف پر يو معيّن سړي وي، نو بيا د وقف په پيداوار سره تعمير ضروري نه دي، بلکې دا سړی په خپل بل مال سره هم تعمير کولای سي او بيا چې کله د وقف پيداوار او منافع حاصل کړي نو له هغه څخه به حساب اخلي، ځکه چې د وقف پيداوار هم د هغه دی او خپل مال هم د هغه دی. مطلب دا چې دواړه د هغه مالونه دي. لهذا هغه ته به اختيار وي چې په کوم مال سره وغواړي په هغه سره دې تعيمر وکړي. او په تعمير کې د زيات خرچ کولو ضرورت نسته. بلکې په کوم حالت او صفت سره چې واقف وقف کړی وي د هغه مطابق به موقوف عليه تعمير کوي او له بې ځايه اسراف څخه به پوره ځان ساتي.

**ولو كان الوقف على الفقراء إلخ**: د دې حاصل دا دی چې که وقف پر يو معين سړي نه وي، بلکې پر غريبانو وي، نو د ځينو مشائخو په نېز حکم دا دی چې په دې صورت کې به هم د ضرورت په اندازه تعمير کيږي او زيات تعمير جائز نه دي، لېکن د ځينې حضراتو په نېز په دې صورت کې هم زيات تعمير او خرچ کول صحيح او جائز دي، لېکن د عدم جواز والا قول أصح دی. ځکه چې په تعمير کې د وقف پيداوار او منافع خرچول د وقف د باقي ساتلو د ضرورت په وجه دي، او ښکاره خبره ده چې د زيات تعمير هيڅ ضرورت نسته، نو په دې وجه له ضرورت څخه زيات خرچ کول جائز نه دي.

## د خپل اولاد لپاره د وقف کړی سوي کور تعمیر (جوړول) به د چا پر ذمه وي؟

قَالَ: فَإِنْ وَقَفَ دَارًا عَلٰى سُكْنٰى وَلَدِهٖ فرمايي: او كه ايو څوك ا د خپل اولاد د استوګنې لپاره يو كور وقف كړي فَالْعِمَارَةُ عَلٰى مَنْ لَهُ سُكْنٰى نو د هغه كور تعمير ا تعميرول ا به د هغه چا پر ذمه وي كوم چي په هغه كي اوسيږي لِأَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ ځكه چي نفع د ضمان په مقابله كي وي عَلٰى مَا مَرَّ لكه امخكي ا چي تېر سو فَصَارَ كَنَفَقَةِ الْعَبْدِ الْمُوصٰى بِخِدْمَتِهٖ نو داسي سو لكه د موصى بالخدمت غلام نفقه فَإِنِ امْتَنَعَ مِنْ ذٰلِكَ او كه موقوف عليه له تعمير څخه انكار وكړي أَوْ كَانَ فَقِيْرًا يا دئ غريب وي آجَرَهَا الْحَاكِمُ وَعَمَّرَهَا بِأُجْرَتِهَا نو حاكم دي هغه اكور ا ده ته په أجرت اكرايه ا وركړي او د هغه په أجرت سره دي كور تعمير كړي وَإِذَا عَمَّرَهَا او كله چي كور تعمير كړي ايعني جوړ او برابر يې كړي ا رَدَّهَا إِلٰى مَنْ لَهُ السُّكْنٰى نو هغه دي ابيرته ا صاحبُ السكنىٰ ته واپس كړي لِأَنَّ فِيْ ذٰلِكَ رِعَايَةَ الْحَقَّيْنِ حَقِّ الْوَاقِفِ وَحَقِّ صَاحِبِ السُّكْنٰى ځكه چي په داسي كولو كي د واقف او صاحبُ السكنىٰ دواړو رعايت سته لِأَنَّهُ لَوْلَمْ يُعَمِّرْهَا ځكه كه حاكم هغه تعمير نه كړي تَفُوْتُ السُّكْنٰى أَصْلًا نو بالكل به استوګنه فوت سي وَالْأَوَّلُ أَوْلٰى لهذا تعميرول غوره دي وَلَا يُجْبَرُ الْمُمْتَنِعُ عَلَى الْعِمَارَةِ او انكار كونكي به پر تعمير نه مجبورول كيږي لِمَا فِيْهِ مِنْ إِتْلَافِ مَالِهٖ ځكه چي په دې سره د هغه مال ضايع كيږي فَأَشْبَهَ امْتِنَاعَ صَاحِبِ الْبَذْرِ فِي الْمُزَارَعَةِ نو دا په كښتګرى كي د تُخم والا د انكار كولو سره مشابه سو فَلَا يَكُوْنُ امْتِنَاعُهُ رِضًا مِنْهُ بِبُطْلَانِ حَقِّهٖ لهذا د هغه انكار كول به د خپل حق په بُطلان راضي كېدل نه وي لِأَنَّهُ فِيْ حَيِّزِ التَّرَدُّدِ ځكه چي اوس هغه د شك په ځاى كي دى ايعني د هغه انكار په شك كي دى چي په كومه وجه هغه انكار كوي ا وَلَا تَصِحُّ إِجَارَةُ مَنْ لَهُ السُّكْنٰى او د صاحبُ السكنىٰ لپاره اموقوف كور ا په أجرت وركول صحيح نه دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَالِكٍ ځكه چي هغه اد موقوف كور ا مالك نه دى.

**اللغات**: ﴿سكنٰى﴾ استوګنه، استوګه، اوسېدل. ﴿عمارة﴾ تعميرول (ودانول، جوړول او مرمت كول).

﴿آجرها﴾ د افعال ماضي ده. آجَرَ يُؤْجِرُ إِجَارَةً: په أجرت وركول، په كرايه وركول. ﴿حيز﴾ په عربي كي د دې لفظ اعراب داسي دي: حَيِّز او حَيْز: مقام، يو شي ته څرمه ځاى (مصباح اللغات). ﴿التردد﴾ د تفعّل اسمِ مصدر دى: شك، غيريقيني كيفيت (زړه نازړه توب).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک خپل کور د خپلو بچیانو د استوګنې لپاره وقف کړي نو څوک چې په هغه کور کې اوسیږي پر هغه به د کور تعمیر لازم وي. ځکه چې فقط هغه له کور څخه نفع او فایده اخلي. لهذا په "الخراج بالضمان" باندې په عمل کولو سره به تعمیر پر هغه لازم وي. او که هغه له تعمیر څخه انکار وکړي یا غریب وي او د هغه سره د تعمیر خرچه نه وي. نو قاضي به هغه کور په کرایه ورکوي او د هغه په کرایه سره به تعمیر کوي. او کله چې د تعمیر کار پوره سي نو صاحبُ السکنیٰ ته به یې حواله کوي: ځکه چې په تعمیر نه کولو سره به استوګنه بالکل فوت سي او د واقف مقصد به حاصل نه سي. لهذا د انکار کولو په صورت کې به د حاکم لپاره تعمیرول ضروري وي.

**ولایُجبر الممتنع إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که صاحب السکنیٰ له تعمیر څخه انکار وکړي نو هغه به پر تعمیر نه مجبورول کیږي: ځکه چې په جبر کولو سره به د هغه د مال بربادول لازم سي. لهذا څرنګه چې صاحب البذر د تخم له کرلو څخه انکار وکړي نو هغه نه مجبورول کیږي همداسې به دغه منکر هم نه مجبورول کیږي. او د هغه انکار به د خپل حق پر بطلان د راضي کېدلو دلیل هم نه وي: ځکه چې د هغه انکار د شک په دائره کې دی دا هم کېدای سي چې هغه د خرچ د نشتوالي په وجه انکار کوي او دا هم کېدای سي چې هغه د قاضي د تعمیرولو په امید سره انکار کوي. لهذا د شک په وجه به د هغه حق نه باطلیږي. او که چیرې صاحبُ السکنیٰ دا کور په کرایه ورکول وغواړي. نو د هغه لپاره دا صحیح نه دي: ځکه چې هغه د دې کور مالک نه دی.

## له وقف څخه مات سوي سامان حکم

قَالَ: وَمَا انْهَدَمَ مِنْ بِنَاءِ الْوَقْفِ وَآلَتِهِ فرمایي: او کوم څه چې د وقف له عمارت ایعني له بام. دېوال او داسې نورو څخه ا او د وقف له آلاتو څخه را ولوېږي صَرَفَهُ الْحَاكِمُ فِي عِمَارَةِ الْوَقْفِ إِنِ احْتَاجَ إِلَيْهِ نو حاکم دې هغه سامان د وقف په تعمیرولو کې صرف کړي که چیرې هغه ته ضرورت وي وَإِنِ اسْتَغْنَى عَنْهُ أَمْسَكَهُ حَتَّى يَحْتَاجَ إِلَى عِمَارَتِهِ او که هغه ته ضرورت نه وي نو حاکم دې یې راوګرځوي تر دې چې د هغه تعمیرولو ته ضرورت پیدا سي فَيَصْرِفُهُ فِيهَا نو بیا ا دې په تعمیر کې هغه صرف کړي لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنَ الْعِمَارَةِ لِيَبْقَى عَلَى التَّأْبِيدِ ځکه چې په دائمي توګه د وقف پاتېدلو لپاره تعمیر ا تعمیرول ا ضروري دي فَيَحْصُلَ مَقْصُودُ الْوَاقِفِ د دې لپاره چې د واقف مقصود حاصل سي فَإِنْ مَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَيْهِ فِي الْحَالِ بیا که هغه ارا لوېدلي سامان ا ته حالاً اسمدستي ا ضرورت پیدا

سي صَرَفَهَا فِيهَا وَإِلَّا أَمْسَكَهَا نو هغه دي په تعمير كي صرف كړي كنې هغه دي راوګرځوي حَتّى لَا يَتَعَذَّرَ عَلَيْهِ ذٰلِكَ أَوَانَ الْحَاجَةِ تر دې چې د ضرورت په وخت كي پر ده تعمير مشكل نه سي فَيَبْطُلُ الْمَقْصُودُ نو مقصود به باطل سي وَإِنْ تَعَذَّرَ إِعَادَةُ عَيْنِهِ إِلَى مَوْضِعِهِ او كه هغه بعينه خپل ځاى ته واپس كول او په خپل ځاى كي لګول ناممكن وي بِيعَ وَصُرِفَ ثَمَنُهُ إِلَى الْمَرَمَّةِ نو هغه دي خرڅ كړى سي او د هغه ثمن دي په مرمت (ترميم او جوړښت) كي صرف كړى سي صَرْفًا لِلْبَدَلِ إِلَى مَصْرِفِ الْمُبْدَلِ د دې لپاره چي د مُبدل پر ځاى بدل صرف كړى سي وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَقْسِمَهُ يَعْنِي النُّقْضَ بَيْنَ مُسْتَحِقِّي الْوَقْفِ او جائز نه دي چي مات سوى (را لوېدلى) سامان د وقف په مستحقينو كي صرف كړي لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنَ الْعَيْنِ ځكه چي سامان د عين وقف حصه ده وَلَا حَقَّ لِلْمَوْقُوفِ عَلَيْهِمْ فِيهِ او په دې كي د موقوف عليهم هيڅ حق نسته وَإِنَّمَا حَقُّهُمْ فِي الْمَنَافِعِ ځكه (د دوى حق خو فقط) په منافعو كي سته وَالْعَيْنُ حَقُّ اللَّهِ تَعَالَى او عين د الله تعالىٰ حق دى فَلَا يُصْرَفُ إِلَيْهِمْ غَيْرُ حَقِّهِمْ لهذا هغو ته به له خپل حق څخه بغير (د وقف) بل شى نه وركول كيږي.

**اللغات**: ﴿انهدم﴾ د انفعال ماضي ده: نړېدل. رالوېدل. ﴿بناء﴾ عمارت. ودانى. ﴿أمسك﴾ د افعال ماضي ده: راګرځول (مراد ځني خوندي كول دي). ﴿لا يتعذر﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: مشكل كېدل. ناممكن كېدل. ﴿نُقْض﴾ د عمارت او بناء هغه حصه كوم چي ماته سي (را ولوېږي). جمع يې: أنقاض ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه چيري د وقف عمارت (بناء) ماته سي يا د وقف له بناء څخه يو شى رايله سي او په تعمير كي هغه ته ضرورت وي. نو حاكم او قاضي ته پكار دي چي دوباره د هغه مرمت او اصلاح كړي او هغه سامان په عمارت كي ولګوي. او كه ضرورت نه وي. نو هغه دي خوندي وساتي د دې لپاره چي د ضرورت پيښېدلو په وخت كي هغه استعمال كړى سي: ځكه چي د واقف د مقصود پوره كولو لپاره خو يو ورځ نه يو ورځ د تعمير ضرورت پيښيږي. نو ځكه غوره همدا ده چي هغه خوندي او محفوظ وساتل سي د دې لپاره چي وروسته يوه ستونزه پيدا نه سي.

او كه بعينه هغه سامان په خپل ځاى كي لګول ناممكن وي نو هغه دي خرڅ كړى سي او د هغه ثمن دي په مرمت او تعمير كي ولګول سي. د دې لپاره چي د مُبدل پر ځاى بدل په كار ولګول سي.

لېکن هغه سامان به په موقوف علیهم کي نه تقسیمول کیږي (بلکي هغه به خامخا په یو شي نه یو شي کي صرفول کیږي)، ځکه چي هغه سامان د عین حصه ده. او عین د الله تعالیٰ دی. لهذا د الله تعالیٰ حق به په بندګانو (موقوف علیهم) کي تقسیمول صحیح نه وي.

## په وقف کي د خپل ځان لپاره شرط لګول

قَالَ: وَإِذَا جَعَلَ الْوَاقِفُ غَلَّةَ الْوَقْفِ لِنَفْسِهِ فرمايي: او که واقف د وقف پیداوار (منافع) د خپل ځان لپاره خاص وګرځوي أَوْ جَعَلَ الْوِلَايَةَ إِلَيْهِ یا د وقف ولایت د ځان لپاره خاص وګرځوي جَازَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي قَالَ: ذَكَرَ فَصْلَيْنِ: شَرَطَ الْغَلَّةِ لِنَفْسِهِ وَجَعَلَ الْوِلَايَةِ إِلَيْهِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دوې جلا مسئلې بیان کړي دي: ① د خپل ځان لپاره د پیداوار شرط لګول ② او د ځان لپاره ولایت خاصول أَمَّا الْأَوَّلُ فَهُوَ جَائِزٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ کوم چي اوله مسئله ده نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده وَلَا يَجُوزُ عَلَى قِيَاسِ قَوْلِ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول پر قیاس جائز نه ده وَهُوَ قَوْلُ هِلَالٍ الرَّازِيِّ او همدا د "هلال رازي" قول دی وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او همدا خبره امام شافعي رَحِمَهُ الله کړې ده وَقِيلَ: إِنَّ الِاخْتِلَافَ بَيْنَهُمَا بِنَاءٌ عَلَى الِاخْتِلَافِ فِي اشْتِرَاطِ الْقَبْضِ وَالْإِفْرَازِ او یو قول دا دی: چي د دې حضراتو په مینځ کي چي کوم اختلاف دی دا پر هغه اختلاف مبني دی کوم چي د متولي د قبضې د شرط والي او د إفراز کولو په هکله د دوی اختلاف دی وَقِيلَ: هِيَ مَسْأَلَةٌ مُبْتَدَأَةٌ دویم قول دا دی: چي دا نوې (مستقله) مسئله ده وَالْخِلَافُ فِيمَا إِذَا شَرَطَ الْبَعْضَ لِنَفْسِهِ فِي حَيَاتِهِ وَبَعْدَ مَوْتِهِ لِلْفُقَرَاءِ وَفِيمَا إِذَا شَرَطَ الْكُلَّ لِنَفْسِهِ فِي حَيَاتِهِ وَبَعْدَ مَوْتِهِ لِلْفُقَرَاءِ سَوَاءٌ او دا اختلاف برابر دی په هغه صورت کي کله چي په خپل ژوند کي څه منافع د خپل ځان لپاره شرط کړي او تر خپل مرګ وروسته یې د فقیرانو لپاره وقف کړي او په هغه صورت کي کله چي په خپل ژوند کي ټوله منافع د ځان لپاره شرط کړي او تر مرګ وروسته یې د فقیرانو لپاره وقف کړي ایعني په دې دواړو صورتونو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله اختلاف دی) وَلَوْ وَقَفَ وَشَرَطَ الْبَعْضَ أَوِ الْكُلَّ لِأُمَّهَاتِ أَوْلَادِهِ وَمُدَبَّرِيهِ مَا دَامُوا أَحْيَاءً فَإِذَا مَاتُوا فَهُوَ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ او که څوک وقف وکړي او دا شرط ولګوي چي (د وقف (څه یا ټوله منافع د هغه د أم ولد

مينځو او د هغه د مدبرو غلامانو لپاره دي تر څو چي هغوی ژوندي وي او د هغوی تر مرګ وروسته د غريبانو او مسکينانو لپاره دي فَقَدْ قِيلَ: يَجُوزُ بِالاِتِّفَاقِ نو يو قول دا دی: چي دا بالاتفاق جائز دي وَقَدْ قِيلَ: هُوَعَلَى الْخِلَافِ أَيْضًا او بل قول دا دی چي دا هم مختلف فيه دي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح دي لِأَنَّ اشْتِرَاطَهُ لَهُمْ فِي حَيَاتِهِ كَاشْتِرَاطِهِ لِنَفْسِهِ ځکه چي په خپل ژوند کي د اُم ولد مينځو او مدبرينو لپاره شرط لګول داسي دي لکه د خپل ځان لپاره شرط لګول وَجْهُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ: أَنَّ الْوَقْفَ تَبَرُّعٌ عَلَى وَجْهِ التَّمْلِيكِ بِالطَّرِيقِ الَّذِي قَدَّمْنَاهُ د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چي وقف په حقيقت کي د تقرّب [او ثواب حاصلولو] په نيت سره د مالک جوړولو په توګه احسان کول دي فَاشْتِرَاطُهُ الْبَعْضَ أَوِ الْكُلَّ لِنَفْسِهِ يُبْطِلُهُ لهذا د خپل ځان لپاره د څه يا ټوله وقف شرط لګول به وقف باطل کړي لِأَنَّ التَّمْلِيكَ مِنْ نَفْسِهِ لَا يَتَحَقَّقُ ځکه چي [په خپل مال سره] خپل ځان مالک جوړول نه متحقق کيږي [يا مطلب دا چي د خپل ځان په مالک جوړولو سره تبرّع نه ثابتيږي] فَصَارَ كَالصَّدَقَةِ الْمُنَفَّذَةِ وَشَرْطِ بَعْضِ بُقْعَةِ الْمَسْجِدِ لِنَفْسِهِ نو دا داسي سو لکه [فقير ته] سپارل سوي صدقه او لکه د ځان لپاره د مسجد د يوې حصې شرط لګول [صدقه منفذه دې ته وايي چي صدقه کونکی فقير ته صدقه وسپاري او بيا د ځان لپاره د صدقې څه حصه شرط کړي چي دومره به زما وي] وَلِأَبِي يُوسُفَ مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَأْكُلُ مِنْ صَدَقَتِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا روايت دی چي نبي کريم ﷺ به د خپلي صدقې له مال څخه خوراک کوی وَالْمُرَادُ مِنْهَا صَدَقَتُهُ الْمَوْقُوفَةُ او له دې څخه موقوفه صدقه [وقف] مراد دی وَلَا يَحِلُّ الْأَكْلُ مِنْهَا إِلَّا بِالشَّرْطِ حالانکي له شرط څخه بغير د وقف له مال څخه خوراک کول روا نه دي فَدَلَّ عَلَى صِحَّتِهِ لهذا دا حديث د شرط پر صحيح کېدلو دليل دی وَلِأَنَّ الْوَقْفَ إِزَالَةُ الْمِلْكِ إِلَى اللهِ تَعَالَى عَلَى وَجْهِ الْقُرْبَةِ او ځکه چي وقف د قربت په نيت د الله لپاره د ملکيت زائلولو نوم دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي مونږ د دې بيان وکړی فَإِذَا شَرَطَ الْبَعْضَ أَوِ الْكُلَّ لِنَفْسِهِ اوس که چيري واقف څه يا ټوله وقف [منافع] د خپل ځان لپاره شرط کړي فَقَدْ جَعَلَ مَا صَارَ مَمْلُوكًا لِلّٰهِ تَعَالَى لِنَفْسِهِ نو هغه د الله تعالیٰ مملوک د خپل

ځان لپاره خاص کړی لانه یجعل ملك نفسه لنفسه او داسي نه ده چي هغه خپل ذاتي ملکيت د
ځان لپاره خاص کړی وهذا جائز او دا جائز دي کما اذا بنی خانا لکه يو څوک چي مسافرخانه
اکاروانسرای اجوړ کړي أو سقاية يا داوبو چيښلو ځای اسبيل اجوړ کړي أو جعل أرضه مقبرة يا
خپله ځمکه هديره وګرځوي وشرط أن ينزله أو يشرب منه أو يدفن فيه او دا شرط ولګوي چي زه به
اهم ا په مسافر خانه کي پاتېږم يا له سبيل څخه به اوبه چيښم يا په هديره کي به ښخول کيږم انو دا
جائز دي ا ولأن مقصوده القربة او ځکه چي د واقف مقصود الهي قربت اثواب حاصلول ا دي وفي
الصرف إلى نفسه ذلك او په خپل ځان باندي په صرفولو سره هم دا مقصود حاصليږي قال عليه
الصلاة والسلام نفقة الرجل على نفسه صدقة نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي پر خپل ځان د سړي
خرچه کول اخپل ځان ته نفقه ورکول اصدقه ده ولو شرط الواقف أن يستبدل به أرضا أخرى إذا شاء
ذلك او که واقف دا شرط ولګوي چي کله هغه وغواړي نو موقوفه ځمکه به په بلي ځمکي بدلوي
ايعني که دا شرط ولګوي چي کله زما خوښه سوه نو دا موقوفه ځمکه به په بلي ځمکي سره بدلوم ا
فهو جائز عند أبي يوسف نو د امام ابو يوسف رحمه الله په نيز دا جائز دي وعند محمد الوقف جائز والشرط
باطل او د امام ابو يوسف رحمه الله په نيز وقف جائز دی او شرط باطل دی ولو شرط الخيار لنفسه في
الوقف ثلاثة أيام او که واقف په وقف کي د خپل ځان لپاره د دريو ورځو شرط ولګوي جاز الوقف
والشرط عند أبي يوسف نو د امام ابو يوسف رحمه الله په نيز وقف او شرط دواړه جائز دي وعند محمد
الوقف باطل او د امام محمد رحمه الله په نيز وقف باطل دی وهذا بناء على ما ذكرنا او دا اختلاف پر
هغه اختلاف مبني دی کوم موږ بيان کړی وأما فصل الولاية فقد نص فيه على قول أبي يوسف او د
ولايت تفصيل دا دی چي امام قدوري په هغه کي دا صراحت کړی دی چي دا د امام ابو يوسف رحمه
الله قول دی ايعني د هغه په نيز جائز دی ا وهو قول هلال أيضا او همدا د هلال رازي قول دی وهو ظاهر
المذهب او همدا ظاهر د مذهب هم دی وذكر هلال في وقفه وقال أقوام: إن شرط الواقف الولاية لنفسه
الکه څرنګه چي ا هلال "رازي" په خپل کتاب الوقف کي ذکر کړي دي: چي ځيني قومونو
ايعني ځيني مشائخو ا ويلي دي: چي که واقف د خپل ځان لپاره د ولايت شرط ولګوي كانت له

وِلَايَةٌ نو ولايت به د هغه وي وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطْ او كه دا شرط نه ولكوي لَمْ تَكُنْ لَهُ الْوِلَايَةُ نو ولايت به د هغه نه وي قَالَ: مَشَايِخُنَا: اَلْأَشْبَهُ أَنْ يَكُونَ هٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ زموږ مشائخو فرمايلي دي: چي زيات نه غوره دا معلوميږي چي دا دي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول وي لِأَنَّ مِنْ أَصْلِهِ: أَنَّ التَّسْلِيمَ إِلَى الْقَيِّمِ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْوَقْفِ ځکه چي د هغه أصل دا دی: چي موقوف شی و سرپرست امتولي ا ته سپارل اد هغه په نيز ا د وقف د صحيح كېدلو لپاره شرط دي فَإِذَا سَلَّمَ لَمْ يَبْقَ لَهُ وِلَايَةٌ فِيهِ لهذا كله چي واقف موقوف شی متولي ته وسپاري نو په هغه كي د ده ولايت ختم سي وَلَنَا: أَنَّ الْمُتَوَلِّيَ إِنَّمَا يَسْتَفِيدُ الْوِلَايَةَ مِنْ جِهَتِهِ بِشَرْطِهِ زموږ دليل دا دی: چي متولي صرف د واقف له طرفه ولايت حاصلوي فَيَسْتَحِيلُ أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ الْوِلَايَةُ وَغَيْرُهُ يَسْتَفِيدُ الْوِلَايَةَ مِنْهُ او دا محال انامكن ا دي چي په خپله واقف لره ولايت نه وي او بل كس له هغه څخه ولايت حاصل كړي وَلِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَى هٰذَا الْوَقْفِ او ځكه چي واقف تر ټولو خلكو زيات دغه وقف ته زيات نژدې دی فَيَكُونُ أَوْلَى بِوِلَايَتِهِ لهذا افقط ا واقف به د هغه د ولايت زيات مستحق وي كَمَنِ اتَّخَذَ مَسْجِدًا لكه يو شوك چي مسجد جوړ كړي يَكُونُ أَوْلَى بِعِمَارَتِهِ وَنَصْبِ الْمُؤَذِّنِ فِيهِ نو افقط ا هغه به د مسجد د تعميرولو امرمت كولو ا او په هغه كي د مؤذن ټاكلو زيات حقدار وي وَكَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا او لكه يو شوك چي يو غلام آزاد كړي كَانَ الْوَلَاءُ لَهُ نو د مُعتق غلام ولاء به افقط ا د آزادونكي وي لِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِ ځكه چي آزادونكی تر ټولو خلكو مُعتق غلام ته زيات نژدې دی وَلَوْ أَنَّ الْوَاقِفَ شَرَطَ وِلَايَتَهُ لِنَفْسِهِ او كه واقف د خپل ځان لپاره د ولايت شرط ولكوي وَكَانَ الْوَاقِفُ غَيْرَ مَأْمُونٍ عَلَى الْوَقْفِ او د وقف په باره كي هغه قابل اعتماد نه وي او دا خطره وي چي هغه به په خپله وقف استعمالوي ا فَلِلْقَاضِي أَنْ يَنْزِعَهَا مِنْ يَدِهِ نَظَرًا لِلْفُقَرَاءِ نو قاضي ته دا حق سته چي پر غريبانو د شفقت كولو په خاطر د هغه د لاس څخه ولايت وكاږي كَمَا لَهُ أَنْ يُخْرِجَ الْوَصِيَّ نَظَرًا لِلصِّغَارِ لكه څرنگه چي قاضي ته دا حق سته چي هغه پر كوچنيانو د شفقت كولو په خاطر وصي اد كوچنيانو له مال څخه ا وباسي وَكَذَا إِذَا شَرَطَ أَنْ لَيْسَ لِلسُّلْطَانِ وَلَا لِقَاضٍ أَنْ يُخْرِجَهَا مِنْ يَدِهِ وَيُوَلِّيَهَا غَيْرَهُ او همدارنگه كه واقف دا شرط ولكوي

چي باچا او قاضي ته دا حق نسته چي هغه وقف زما د لاس [قبضې] څخه وباسي او بل څوک د هغه ولي جوړ کړي لِأَنَّهُ شَرْطٌ مُخَالِفٌ لِحُكْمِ الشَّرْعِ ځکه چي دا د شريعت د حکم مخالف شرط دی ايعني د واقف دا شرط د شريعت خلاف دی [فَبَطَلَ نو ځکه به باطليږي.

**اللغات**: ﴿غلّة﴾ غله، پيداوار. مراد ځني د موقوف شي منافع دي. ﴿ولاية﴾ سرپرست کېدل (مشر کېدل). د ساتلو ذمه وار کېدل. ﴿إفراز﴾ د افعال مصدر دی: عليحده کول، جلا کول. ﴿خان﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: مسافر خانه، کاروانسرای، هغه سرای او ځای کوم چي د مسافرانو د شپه تېر او تم کېدلو لپاره جوړ سوی وي (لکه پخوا چي به په يوه اوږده لار کي داسي سرايونه د سخي طبيعته مالدارانو له طرفه جوړېدل). ﴿سقاية﴾ د اُوبو چيښلو ځای، سبيل. په لار کي د لاروپانو د اُوبو چيښلو لپاره جوړ سوی ځای. ﴿عمارة﴾ ودانول، تعميرول، ترميم او اصلاح کول (مرمت کول). ﴿يلزعها﴾ د ضرب مضارع ده: کښل (کاږل)، اخيستل.

**تشريح**: په دې عبارت کي څو مسئلې بيان سوي دي، اوله مسئله دا ده که چيري واقف دا شرط ولګوي چي د وقف پيداوار او منافع به زما وي او هغه به زه اخلم. يا دا شرط ولګوي چي د وقف ولايت (مشري) به زما وي، نو د اول صورت يعني د پيداوار اخيستلو شرط د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دی. همدا د هلال رازي او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله قول هم دی، د ځيني حضراتو رايه دا ده چي د امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُ الله دا اختلاف په حقيقت کي پر هغه اختلاف مبني دی چي د امام محمد په نيز موقوف شی متولي ته سپارل او له خپل ملکيت څخه جلا کول شرط دي، او د ځيني حضراتو رايه دا ده چي دا مستقله او نوې مسئله ده.

او برابره ده واقف که د ټوله پيداوار د اخيستلو شرط ولګوي يا د څه پيداوار د اخيستلو شرط ولګوي په هر صورت کي د دې مسئلې حکم مختلف فيه دی.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي په وقف کي د تقرّب او ثواب په نيت سره بل څوک د خپل مملوکه شي د پيداوار مالک جوړول کيږي، او دا ښکاره خبره ده چي د څه يا ټوله پيداوار د اخيستلو شرط لګول د دغه تمليک منافي دي، نو ځکه به په دې شرط سره وقف باطليږي. ځکه چي په داسي شرط لګولو کي خپل ذات د خپل مملوکه شي مالک جوړول دي او تمليک من نفسه صحيح نه دی (په لنډه توګه د امام محمد دليل داسي هم ويل کېدای سي چي د وقف مطلب دا دی: "د الله لپاره تبرع او احسان کول". اوس که واقف د خپل ځان لپاره شرط ولګوي نو وقف تبرّع پاته نه سو. نو ځکه به په دې شرط

سره وقف باطليږي)، لکه څرنګه چي يو سړی فقير ته يو شی صدقه کړي او هغه ته يې وسپاري يا د مسجد لپاره ځمکه وقف کړي او متولي ته يې وسپاري. اوس که دا سړی له صدقه شوی مسلمه شخه يا له وقف کړی سوي ځمکي څخه د ځان لپاره د ګټه اخيستلو شرط ولګوي، نو د هغه وقف باطليږي. همداسي په دې مسئله کي د پيداوار په شرط لګولو سره هم وقف باطليږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي په حديث کي دي چي نبي کريم ﷺ به له صدقې څخه خوراک کوی، او له صدقې څخه مراد وقف کړی سوی شی دی، او دا خبره تسليم سوې ده چي د خوراک له شرط لګولو څخه بغير له موقوف مال څخه خوراک کول حلال نه دي. نو له دې څخه معلومه سوه چي د واقف لپاره له وقف څخه د ګټه اخيستلو شرط لګول صحيح او جائز دی، او داسي شرط د وقف مُبطل نه دی.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چي وقف "د قربت په نيت سره د الله لپاره د ملکيت ختمولو" ته وايي، اوس که چيري واقف له وقف څخه د ګټه اخيستلو شرط لګوي نو هغه د الله له مملوکه شي د اخيستلو شرط لګوي، نه له خپل مملوکه شي څخه، نو ځکه دا شرط صحيح دی. ځکه چي د الله مملوکه شي اخيستل صحيح دي، د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي د مسافرانو د اوسېدلو او آرام کولو لپاره مسافر خانه جوړه کړي يا د لاروېانو لپاره د اوبو چيښلو ځای (سبيل) جوړ کړي يا خپله ځمکه د خلکو لپاره هديره وګرځوي، بيا هغه په خپله په مسافر خانه کي پاته سي يا له سبيل څخه اوبه وچيښي يا په هديره کي د خپل ځان او د خپلو خلکو د ښخولو شرط ولګوي. نو دا صحيح او جائز دي. همداسي په دغه مسئله کي له وقف کړی سوي شي څخه د ګټه پيداوار د اخيستلو شرط لګول هم جائز دي.

دريم دليل دا دی چي د واقف مقصود قربت دی، او پر خپل ځان د وقف د پيداوار په خرچولو سره هم دا مقصود حاصليږي، ځکه چي په حديث مبارک کي ذکر سوي دي "نَفَقَةُ الرَّجُلِ عَلٰى نَفْسِه صَدَقَةٌ".

ولوشرط إلخ: فرمايي که واقف دا شرط ولګوي چي کله زه وغواړم نو موقوفه ځمکه به په بلي ځمکي سره بدلوم (يعني هغه به په بلي ځمکي سره سودا کوم)، نو دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز استحساناً جائز دي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز شرط جائز نه دی، او وقف جائز دی. همدا قياس دی. او که واقف د وقف کولو په هکله د خپل ځان لپاره د دريو ورځو خيار شرط ولګوي (مثلاً داسي ووايي چي زه دغه شی اوس وقف کوم او د دې فيصله به درې ورځي وروسته کوم، يعني د دغه فيصلې لپاره درې ورځي اختيار اخلم)، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز شرط او وقف دواړه جائز

دي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز وقف باطل دی. او دا اختلاف په حقيقت کي پر هغه اختلاف مبني دی چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د واقف لپاره دا جائز دي چي د خپل ځان لپاره د وقف پيداوار او منافع خاص کړي (لکه اوس چي د هغه مسلک بيان سو). نو په همدې وجه د هغه په نيز خيار شرط هم جائز دی. او څرنګه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د واقف لپاره د وقف پيداوار او منافع اخيستل صحيح نه دي. لهذا د هغه په نيز خيار شرط لګول هم جائز نه دي.

**وأما فصل الولاية إلخ:** تر اوسه پوري د پيداوار اخيستلو په هکله د شرط لګولو بيان وو. اوس له دې ځايه څخه د ولايت اخيستلو په هکله د شرط لګولو بيان کوي. په دې هکله د امام قدوري رَحِمَهُ الله وضاحت دا دی چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په قول او د هلال رازي رَحِمَهُ الله په کتاب الوقف کي د دې خبري صراحت سوی دی چي که واقف د خپل ځان لپاره د ولايت اخيستلو شرط ولګوي نو هغه ته به ولايت ورکول کيږي او له شرط لګولو څخه بغير به نه ورکول کيږي. زمونږ مشائخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي د هلال رازي دا صراحت د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول سره زيات مشابه دی، ځکه چي دا ناممکنه ده چي يو څوک له داسي کس څخه ولايت حاصل کړي چي هغه په خپله د ولايت مالک نه وي، دا د فقهي مشهوره قاعده ده "مَنْ لَا يَمْلِكُ شَيْئًا لَا يُمَلِّكُهُ غَيْرَهُ" يعني څوک چي په خپله د يو شي مالک نه وي هغه بل څوک هم د دې شي مالک نه سي جوړولای.

په دې هکله دويم دليل دا دی چي فقط واقف تر ټولو زيات وقف ته نژدې وي. او د وقف په هکله زيات واقفيت او خبر هغه ته وي. لهذا د وقف د ولايت زيات مستحق به هم فقط هغه وي. لکه يو څوک چي مسجد جوړ کړي، نو د مسجد د تعمير او ترميم کولو، د مؤذن لګولو او د داسي نورو زيات مستحق فقط هغه وي.

**ولو أن الواقف إلخ:** مسئله دا ده که واقف يو شی وقف کړي او د ځان لپاره د ولايت شرط ولګوي. حال دا چي هغه معتمد سړی نه وي. او د هغه له طرفه په وقف کي د لاس وهلو او د وقف استعمالولو خطره وي. نو قاضي ته دا حق سته چي له هغه څخه ولايت سلب کړي او يو أمين سړي ته يې وسپاري. لکه کله چي د يتيمانو د وصي په هکله دا خطره وي چي هغه به د دوی په مال کي خيانت وکړي. نو قاضي هغه هم برطرفه کولای سي.

که چيري واقف دا شرط لګولی وي چي باچا يا قاضي به ما له ولايت څخه نه برطرفه کوي. نو هم به قاضي هغه ته درس ورکوي او ولايت به څني اخلي. ځکه چي دا شرط د شريعت خلاف دی. ځکه چي د قاضي ولايت عام وي او هغه د مسلمانانو د معاملاتو د إصلاح او سمون لپاره ټاکل سوی وي. او دلته واقف صاحب د خپل مفاد په خاطر د قاضي د ولايت ساقطولو شرط لګوي. لهذا شريعت دا زغملای نه سي.



# فَصْلٌ (فِيْ بِنَاءِ الْمَسْجِدِ وَغَيْرِهِ)

(دا) فصل (د مسجد او د داسې نورو دينې ځايونو د جوړولو په بيان کي دی)

## د مسجد وقف کله د وقف کونکي له ملکيت څخه وځي؟

وَإِذَا بَنَى مَسْجِدًا لَمْ يَزُلْ مِلْكُهُ عَنْهُ حَتَّى يُفْرِزَهُ عَنْ مِلْكِهِ بِطَرِيقِهِ وَيَأْذَنَ لِلنَّاسِ بِالصَّلَاةِ فِيهِ او که يو څوک مسجد جوړ کړي نو له هغه څخه د ده ملکيت نه ختميږي تر دې چې هغه له خپل ملکيت څخه جلا کړي د هغه د لارې سره (مطلب دا چې د مسجد لاره ايله کړي يعني) خلکو ته په هغه کي د لمونځ کولو اجازه ورکړي فَإِذَا صَلَّى فِيهِ وَاحِدٌ بيا (که فقط يو سړی په هغه کي لمونځ وکړي زَالَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَنْ مِلْكِهِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه مسجد د ده له ملکيت څخه وځي أَمَّا الْإِفْرَازُ فَلِأَنَّهُ لَا يَخْلُصُ لِلَّهِ تَعَالَى إِلَّا بِهِ کوم چي إفراز دی (نو دا ځکه ضروري دی) چي له دې څخه بغير هغه د الله لپاره نه خالص کيږي وَأَمَّا الصَّلَاةُ فِيهِ فَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ التَّسْلِيمِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او کوم چي په هغه کي لمونځ کول دي (نو دا) ځکه (ضروري دي) چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د وقف د صحت لپاره (د وقف) ور سپارل ضروري دي وَيُشْتَرَطُ تَسْلِيمُ نَوْعِهِ او د وقف د نوع (او حالت) مطابق ورسپارل شرط دي (يعني وقف چي څرنګه ورسپارل کيږي فقط هغسي ورسپارل شرط دي) وَذَلِكَ فِي الْمَسْجِدِ بِالصَّلَاةِ فِيهِ او دا په مسجد کي د لمونځ کولو په ذريعه ثابتيږي أَوْ لِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْقَبْضُ يا (په بله وينا دا) چي کله پر مسجد حقيقي قبضه کول ناممکن دي فَقَامَ تَحَقُّقُ الْمَقْصُودِ مَقَامَهُ نو د مسجد د مقصد ثابتېدل (پوره کېدل) به د قبضې قائم مقام وي ثُمَّ يَكْتَفِي بِصَلَاةِ الْوَاحِدِ فِيهِ فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَكَذَا عَنْ مُحَمَّدٍ بيا له طرفينو رَحِمَهُمَا الله څخه په يوه روايت کي فقط د يوه سړي لمونځ کول د تسليم (ورسپارلو) لپاره کافي دي لِأَنَّ فِعْلَ الْجِنْسِ مُتَعَذِّرٌ ځکه چي د پوره جنس فعل ناممکن دی فَيُشْتَرَطُ أَدْنَاهُ لهذا د جنس ادنیٰ به شرط وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ يُشْتَرَطُ

الصَّلَاةُ بِالْجَمَاعَةِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی: چي په جماعت سره لمونځ

ا يکښي [1] اکول شرط دي لِأَنَّ الْمَسْجِدَ بُنِيَ لِذٰلِكَ فِي الْغَالِبِ ځکه چي مسجد عموما د جماعت د

لمانځه لپاره جوړيږي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: يَزُوْلُ مِلْكُهُ بِقَوْلِهِ جَعَلْتُهُ مَسْجِدًا امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله

فرمايي: چي [فقط] د جوړونکي په دې قول "جعلته مسجدًا" سره د هغه ملکيت ختميږي لِأَنَّ

التَّسْلِيْمَ عِنْدَهُ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه چي د هغه په نيز ورسپارل شرط نه دي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ لِمِلْكِ الْعَبْدِ ځکه

چي وقف د بنده د ملکيت ساقطول دي فَيَصِيْرُ خَالِصًا لِلّٰهِ تَعَالٰى بِسُقُوْطِ حَقِّ الْعَبْدِ لهذا [فقط] د بنده د

حق په سقوط سره به هغه له خالص لله گرځي وَصَارَ كَالْإِعْتَاقِ او هغه د إعتاق په څير دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ

مِنْ قَبْلُ او مخکي مو د دې بيان وکړي.

**اللغات**: ﴿يفرزه﴾ د افعال مضارع ده: عليحده کول. جلا کول. ﴿طريق﴾ لاره. ﴿لا يخلص﴾ د نصر له باب څخه د نفي صيغه ده: خالص کېدل. ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل. ﴿إعتاق﴾ د افعال مصدر دی: غلام آزادول.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که يو سړی مسجد جوړ کړي نو تر څو چي دا سړی هغه مسجد له خپل ملکيت څخه جلا نه کړي او په هغه کي خلکو ته د لمونځ کولو عام اجازت نه ورکړي. تر هغه وخته پوري به دا مسجد د هغه له ملکيت څخه نه وځي: له خپل ملکيت څخه جلا کول ځکه ضروري دي چي مسجد خالص د الله لپاره وگرځي. او په مسجد کي لمونځ کېدل ځکه ضروري دي چي همدا د مسجد د ورسپارلو طريقه ده. او مخکي ذکر سوه چي د طرفينو په نيز د موقوف شي ور سپارل شرط دي. نو ځکه به دا دواړه شيان د ملکيت د ختمېدلو لپاره ضروري وي.

بيا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز يو روايت دا دی چي که فقط يو سړی هم په هغه مسجد کي لمونځ وکړي نو هغه به د باني له ملکيت څخه وځي: ځکه چي په هغه کي د هر مسلمان فرد لمونځ کول ناممکن دي. لهذا د جنس د ادنی يعني د فرد واحد په لمونځ کولو سره به تسليم ثابتيږي.

له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت دا دی چي د تسليم د ثبوت لپاره د جماعت لمونځ شرط دی. ځکه چي عموماً په مسجدونو کي په جماعت سره لمونځ کيږي او مسجدونه هم د جماعت د لمانځه لپاره تعميرول کيږي. لهذا فقط د يوه سړي په لمونځ کولو سره به تسليم نه ثابتيږي.

او ځرنګه چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د وقف د صحت لپاره تسليم شرط نه دی. نو ځکه که باني فقط "جعلتُه مسجدا" ووايي نو د امام ابو يوسف په نيز به مسجد د هغه له ملکيت څخه وځي او د الله لپاره به خالص ګرځي. لکه ځرنګه چې د غلام په إعتاق (آزادولو) کې محض د "أعتقتُ" په ويلو سره إعتاق ثابتيږي، ځکه چې دا د بنده د ملکيت إسقاط دی او د إسقاط لپاره تسليم شرط نه دی.

## د مسجد د زېرخانې او بالا خانې حکم

قَالَ: وَمَنْ جَعَلَ مَسْجِدًا تَحْتَهُ سِرْدَابٌ أَوْ فَوْقَهُ بَيْتٌ وَجَعَلَ بَابَ الْمَسْجِدِ إِلَى الطَّرِيقِ وَعَزَلَهُ عَنْ مِلْكِهِ فرمايي: او که څوک داسې مسجد جوړ کړي چې تر هغه لاندې زېرخانه وي يا پر هغه د پاسه خونه [بالاخانه] وي او د مسجد دروازه د لارې وطرف ته راوباسي او هغه له خپل ملکيت څخه جلا کړي نو هغه به مسجد نه وي [فَلَهُ أَنْ يَبِيعَهُ او ده [باني] ته به د مسجد خرڅولو اختيار وي وَإِنْ مَاتَ يُورَثُ عَنْهُ او که مړ سي نو هغه [مسجد] به د ده له طرفه ميراث کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَخْلُصْ لِلَّهِ تَعَالَى ځکه چې هغه خالص د الله لپاره نه سو لِبَقَاءِ حَقِّ الْعَبْدِ مُتَعَلِّقًا بِهِ ځکه چې د هغه سره د بنده حق تړلی پاته دی وَلَوْ كَانَ السِّرْدَابُ لِمَصَالِحِ الْمَسْجِدِ او که زېرخانه د مسجد د منافعو لپاره وي جَازَ نو وقف جائز دی كَمَا فِي مَسْجِدِ بَيْتِ الْمَقْدِسِ لکه د بيتُ المقدس په مسجد کې وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: إِذَا جَعَلَ السُّفْلَ مَسْجِدًا وَعَلَى ظَهْرِهِ مَسْكَنٌ او حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی دی چې هغه فرمايلي دي: که څوک لاندې والا حصه مسجد وګرځوي او پر هغه د پاسه استوګنځی [خونه يا کور] وي فَهُوَ مَسْجِدٌ نو هغه مسجد دی لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مِمَّا يَتَأَبَّدُ ځکه چې مسجد له هغو شيانو څخه دی کوم چې همېشه پاتيږي وَذَلِكَ يَتَحَقَّقُ فِي السُّفْلِ دُونَ الْعُلْوِ دا خبره په لاندې والا حصه کې ثابتيږي، نه په پورتنۍ حصه کې وَعَنْ مُحَمَّدٍ عَلَى عَكْسِ هَذَا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د دې برعکس روايت سوی دی لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مُعَظَّمٌ ځکه چې مسجد د تعظيم لائق دی [يعني د هغه تعظيم او عزت به کيږي] وَإِذَا كَانَ فَوْقَهُ مَسْكَنٌ أَوْ مُسْتَغَلٌّ او کله چې د هغه د پاسه استوګنځی يا د کرايې والا ځای وي يَتَعَذَّرُ تَعْظِيمُهُ نو د هغه تعظيم به ناممکن وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ جَوَّزَ فِي الْوَجْهَيْنِ حِينَ قَدِمَ بَغْدَادَ وَرَأَى ضِيقَ الْمَنَازِلِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه

روايت سوى دى: چې هغه دواړه صورتونه جائز وګرځول. کله چې هغه بغداد ته راغلى او د ځايونو تنګي يې وليدل فَكَأَنَّهُ اعْتَبَرَ الضَّرُوْرَةَ ګواکې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د ضرورت اعتبار کړى دى ايعني د ضرورت پر بناء يې دواړه صورتونه جائز ګرځولي دي ا وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ حِيْنَ دَخَلَ الرَّيَّ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى: چې کله هغه د "ري" ښار ته داخل سو أَجَازَ ذٰلِكَ كُلَّهُ نو د دې ټولو ايعني د دواړو صورتونو ا اجازه يې ورکړه لِمَا قُلْنَا د هغه څه په وجه کوم چې موږ ذکر کړه ايعني د ضرورت پر بناء ا قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنِ اتَّخَذَ وَسَطَ دَارِهِ مَسْجِدًا وَأَذِنَ لِلنَّاسِ بِالدُّخُوْلِ فِيْهِ فرمايي: همدارنګه که څوک خپل د کور مينځ انس ا مسجد وګرځوي او په هغه کي خلګو ته د راتللو اجازه ورکړي انو هم دغه حکم دى ا يَعْنِيْ لَهُ أَنْ يَّبِيْعَهُ وَيُوْرَثُ عَنْهُ يعني هغه ته د دې ځاى د خرڅولو اختيار سته او دا ځاى د هغه له طرفه ميراث کيږي لِأَنَّ الْمَسْجِدَ مَا لَا يَكُوْنُ لِأَحَدٍ فِيْهِ حَقُّ الْمَنْعِ ځکه چې مسجد هغه ځاى ته وايي چې په هغه کي هيچا ته د منع کولو حق حاصل نه وي وَإِذَا كَانَ مِلْكُهُ مُحِيْطًا بِجَوَانِبِهِ حال دا چې کله د دې مسجد څلور سره طرفو ته د مالک ملکيت دى كَانَ لَهُ حَقُّ الْمَنْعِ نو هغه ته د منع کولو حق حاصل دى فَلَمْ يَصِرْ مَسْجِدًا نو ځکه دا ا ځاى ا مسجد نه سو لِأَنَّهُ أَبْقَى الطَّرِيْقَ لِنَفْسِهِ ځکه چې هغه د خپل ځان لپاره اهم ا لاره باقي وساتل فَلَمْ يَخْلُصْ لِلّٰهِ تَعَالٰى لهذا دا خالص د الله لپاره نه سو وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوْرَثُ وَلَا يُوْهَبُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى چې دا ځاى [په مسجد وي او دا ا نه خرڅول کېداى سي او نه ميراث کېداى سي او نه هبه کېداى سي اعْتَبَرَهُ مَسْجِدًا [ګواکې ا هغه دا مسجد ګڼلى دى وَهٰكَذَا عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يَصِيْرُ مَسْجِدًا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه هم دغه روايت سوى دئ چې دا ځاى مسجد ګرځي لِأَنَّهُ لَمَّا رَضِيَ بِكَوْنِهِ مَسْجِدًا وَلَا يَصِيْرُ مَسْجِدًا إِلَّا بِالطَّرِيْقِ دَخَلَ فِيْهِ الطَّرِيْقُ ځکه کله چې هغه د دې ځاى په مسجد کېدلو راضي سو نو لاره هم په هغه کي داخله سوه ځکه چې د لارې څخه بغير هغه مسجد نه ګرځي وَصَارَ مُسْتَحَقًّا او هغه لاره مستحقه وګرځېده ايعني د مسجد لاره وګرځېده ا كَمَا يَدْخُلُ فِي الْإِجَارَةِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ لکه په إجاره کي چې هم له وضاحت کولو څخه بغير لاره داخليږي.

**اللغات**: ﴿سرداب﴾ زېرخانه، زېر زميني، ﴿عزله﴾ د ضرب ماضي ده: جلا كول، عليحده كول، ﴿سُفل﴾ او سِفل: لاندي والا، لاندي حصه، ﴿عُلو﴾ او عِلو او عَلو: لوړ والی (پورته والی)، لوړه حصه، ﴿مسكن﴾ د اوسېدلو ځای، استوګنځی، ﴿مستغل﴾ د كرايې ځای (هغه كور يا خونه چي مالك د كرايې لپاره جوړ كړی وي).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه يو څوک په داسي ځای كي مسجد جوړ كړي چي تر هغه لاندي زېرخانه وي يا پر هغه د پاسه خونه يا كور وي او د مسجد دروازه د عامي لاري وطرف ته را واباسي، نو شرعاً او ظاهراً به هغه مسجد نه وي او جوړونكي (باني) ته به د هغه د خرڅولو حق وي، همدارنګه كه دئ مړ سي نو د ده وارثان به په هغه كي د ميراث مستحق وي، ځكه چي د هغه سره د مالک حق تړلی دی نو په دې وجه هغه د الله لپاره خالص نه سو. ها! كه چيري زېرخانه يا بالاخانه د مسجد د مصالحو او ضروريا تو لپاره جوړه سوې وي نو هغه مسجد به شرعاً او ظاهراً مسجد وي. لكه د بيتُ المقدس زېرخانه چي وقف ده او د هيچا په ملكيت كي نه ده.

حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا قول نقل كړی دی چي كه يو څوک د يو ځای لاندي حصه او لاندي چت مسجد وګرځوي او پر هغه د پاسه كور او د استوګني ځای وي. نو دا لاندي حصه به مسجد وي. ځكه چي د مسجد لپاره تأبيد ضرور دی او په لاندي حصه كي تأبيد او دوام متحقق دی. د دې په خلاف كه پورتنی (لوړه) حصه مسجد وګرځول سي او په لاندي حصه كي كور او استوګنځی وي. نو هغه مسجد به شرعي مسجد نه وي. او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د دې برعكس روايت سوی دی. يعني د هغه په نېز پورتنی حصه مسجد ګرځول صحيح دي او لاندينی حصه مسجد ګرځول صحيح نه دي. ځكه چي مسجد محترم او معظم وي اوس كه د هغه د پاسه استوګنځی وي نو په دې سره به د هغه تعظيم فوت سي. نو په دې وجه لاندي خصه مسجد ګرځول صحيح نه دي.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي كله هغه د بغداد ښار ته ولاړی او هلته يې وليدل چي كورونه تنګ جوړ سوي دي او مسجدونه هم تنګ جوړ سوي دي. نو هغه په دواړو صورتونو كي مسجد شرعي مسجد وګرځوي يعني برابره ده تر هغه لاندي زېرخانه وي يا د پاسه يې بالاخانه وي په هر صورت كي به هغه شرعي مسجد وي كنې! داسي ځای به نه پيدا كيږي چي خلک به هغه كي په جماعت سره لمونځ وكړي. او كله چي امام محمد رَحِمَهُ الله د "رَی" ښار ته ولاړی، نو هغه هم د ضرورت پر بناء په دواړو صورتونو كي جوړ سوي مسجد ته د شرعي مسجد حكم وركړی.

او نن سبا په ګران ببه څمکو والا ښارونو (لکه د هندوستان بمبئي او نورو ښارونو) کي هم داسي ډېر مساجد آباد دي او په هغوی کي پنځه وخته لمونځونه کيږي.

**وقال وكذالك إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که څوک د خپل کور د حويلۍ (غولي) په مينځ کي مسجد جوړ کړي او په هغه کي د لمونځ کولو عام اجازت ورکړي. لېکن هغه له خپل ملکيت څخه عليحده او جلا نه کړي، او نه د عامي لاري وطرف ته د مسجد دروازه را وباسي. نو هغه ته به هم شرعي مسجد نه ويل کيږي او جوړونکي (باني) ته به د هغه د خرڅولو او هبه کولو حق وي. ځکه چي مسجد هغه ځای ته ويل کيږي چي په هغه کي هيچا ته د منع حق حاصل نه وي. حالانکي دلته د حويلۍ په مينځ کي مسجد واقع دی او څلور سره طرفونو ته د مالک ملکيت دی. نو په دې وجه هغه ته د منع حق حاصل دی او کله چي هم هغه وغواړي نو د خپلي حويلۍ دروازه بندولای سي او عام اجازت ختمولای سي. نو ځکه به دا ځای او مسجد خالص د الله لپاره نه وي او د دې بيع او تمليک به صحيح وي.

په دې سلسله کي له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه دويم روايت دا دی چي دا ځای مسجد سو (او د الله لپاره وقف سو) لهذا د مالک لپاره د هغه خرڅول. هبه کول او داسي نور هيڅ شی صحيح نه دي. ځکه کله چي مالک هغه جوړ کړی او د مسجد نوم يې ورکړی او عامو خلکو ته يې په هغه کي د لمونځ کولو اجازه ورکړه، نو ښکاره خبره ده چي اوس هغه د ده له ملکيت څخه ووتی. پاته سوه د لاري مسئله. نو لاره د وضاحت او صراحت څخه بغير په هغه کي داخليږي. ځکه چي د لاري څخه بغير مسجد ته ګرسره مسجد نه ويل کيږي او بل دا چي څوک د مسجد لپاره غټ ځای ورکولای سي نو لاره بيا څه قصه لري د هغه په ورکولو کي به هيڅ بخل نه کوي. او لکه څرنګه چي په کرايه باندي د کور ورکولو په صورت کي د لاري له وضاحت او ذکر څخه بغير په هغه کور کي لاره داخليږي. همداسي به دلته هم په دې مسجد کي د هغه لاره داخليږي.

## د مسجد خرڅولو او داسي نورو حکم

قَالَ: وَمَنِ اتَّخَذَ أَرْضَهُ مَسْجِدًا او که څوک خپله ځمکه مسجد وګرځوي ايعني مسجد پکښي جوړ کړي ا لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِيهِ وَلَا يَبِيعَهُ وَلَا يُورَثُ عَنْهُ نو هغه ته دا حق نسته چي دا ځای واپس واخلي او نه هغه دا خرڅولای سي او نه د هغه له طرفه ميراث کېدای سي لِأَنَّهُ يُخْرَزُ عَنْ حَقِّ الْعِبَادِ وَصَارَ خَالِصًا لِلَّهِ ځکه چي داسي ځای د بندګانو له حق څخه محفوظه کيږي ايعني د بندګانو له حق څخه وځي ا او د الله لپاره خالص ګرځي وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَشْيَاءَ كُلَّهَا لِلَّهِ تَعَالَىٰ او دا ځکه چي تمام شيان د

الله تعالىٰ دي وَإِذَا أَسْقَطَ الْعَبْدُ مَا ثَبَتَ لَهُ مِنَ الْحَقِّ او كله چي بنده هغه حق ساقط كړي كوم چي د ده لپاره ثابت وي رَجَعَ إِلَى أَصْلِهِ نو هغه حق د خپل أصليت وطرف ته وګرځېدى فَانْقَطَعَ تَصَرُّفُهُ عَنْهُ نو له هغه څخه د بنده تصرف ختم سو كَمَا فِي الْإِعْتَاقِ لكه څرنګه چي اد غلام ا په آزادولو كي [داسي كيږي] وَلَوْ خَرِبَ مَا حَوْلَ الْمَسْجِدِ وَاسْتُغْنِيَ عَنْهُ او كه د مسجد شاوخوا ځايونه ويران سي او مسجد ته ضرورت پاته نه سي يَبْقَى مَسْجِدًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو هم هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز مسجد پاتيږي لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ مِنْهُ ځكه چي هغه د بنده له طرفه إسقاط دى امطلب دا چي څوك مسجد جوړ كړي نو هغه له دې مسجد څخه خپل حق ساقط كړى او د هغه ملكيت ختم سوا فَلَا يَعُودُ إِلَى مِلْكِهِ لهذا دا به د هغه ملكيت ته [دوباره] نه واپس كيږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَعُودُ إِلَى مِلْكِ الْبَانِي أَوْ إِلَى وَارِثِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به هغه د جوړونكي [باني] و ملكيت ته يا د هغه تر مرګ وروسته د وارث و ملكيت ته واپس كيږي لِأَنَّهُ عَيَّنَهُ لِنَوْعِ قُرْبَةٍ ځكه چي جوړونكي د يو قسم عبادت لپاره دا ځاى متعين كړى وو وَقَدِ انْقَطَعَتْ او [اوس] هغه عبادت ختم سو فَصَارَ كَحَصِيرِ الْمَسْجِدِ وَحَشِيشِهِ إِذَا اسْتُغْنِيَ عَنْهُ نو داسي سو لكه د مسجد چټايي او د مسجد وابنه كله چي هغوى ته ضرورت پاته نه سي إِلَّا أَنَّ أَبَا يُوسُفَ يَقُولُ فِي الْحَصِيرِ وَالْحَشِيشِ أَنَّهُ يُنْقَلُ إِلَى مَسْجِدٍ آخَرَ لېكن د چټايي او وښو په باره كي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي هغوى به بل مسجد ته نقل كيږي.

**اللغات**: ﴿يُحرز﴾ د نصر مضارع مجهوله ده: حفاظت كول. خوندي كول. ساتل. ﴿خرِب﴾ د سمع ماضي ده: خرابېدل. ورانېدل. ويرانېدل (ويجاړېدل). كنډواله كېدل. ﴿استغنى عنه﴾ د استفعال له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده: بې نيازه كېدل. بې پروا كېدل. ضرورت او اړتيا نه پاتېدل. ﴿حصير﴾ چټايي. پوزى. (لكه اوس چي د دې پر ځاى درى استعماليږي). ﴿حشيش﴾ وچ وابنه (پخوا به د مسجد مختنه د سايې لپاره ځاى جوړېدى او پر هغه د پاسه به وابنه او نور څه اچول كېده. دلته له "حشيش" څخه هغه وابنه مراد دي. أثمار الهداية)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو څوك په خپله ځمكه كي مسجد جوړ كړي. نو هغه وقف سو. اوس باني او مالك ته دا حق نسته چي هغه ځاى خرڅ كړي يا يې په ميراث كي ور كړي: ځكه چي د مسجد په جوړولو سره هغه ځاى خالص د الله لپاره وګرځېدى. او دا ځكه چي د دنيا او ما فيها هر شي د الله مملوك دى او

فقط د بندګانو د ضرورت په خاطر د هغو لپاره ملکیت او د استعمال اباحت (روایښت) ثابت کړی سوی دی.
اوس که یو څوک د الله په نامه یو شی وقف کړي او خپل ثابت سوی حق ساقط کړي. نو هغه شی د خپل
أصلي او حقیقي مالک (الله جَلَّ جَلَالُهُ) وملکیت ته منتقل کیږي او بیرته د بنده ملکیت ته نه را ګرځي. لکه څرنګه
چي یو غلام تر آزادولو وروسته د خپل أصل وطرف ته د حُریت (آزادۍ) وطرف ته منتقل کیږي او بیرته د
مالک (مولیٰ) وملکیت ته نه را ګرځي. همدا حال د مسجد هم دی چي هغه بیرته د باني ملکیت ته نه
را ګرځي.

ونو بعد إلخ: د دې حاصل دا دی که د مسجد شاوخوا علاقه ویرانه سي، مثلاً مسجد د صحراء په یو کلي کي
وي او بیا هغه کلی په صحراء بدل سي او مسجد ته ضرورت پاته نه سي. نو په دې صورت کي هغه مسجد د
امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مخکي په څیر مسجد پاتیږي او د باني ملکیت ته نه واپس کیږي. ځکه چي
هغه د باني له ملکیت څخه ووتی او د الله لپاره خالص سو. لهذا اوس په هغه کي هیڅ رجوع کېدلای نه سي.
د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به په دې صورت کي هغه د مسجد باني یا د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل
کیږي. ځکه چي باني هغه د یو خاص مقصد یعني د لمونځ او عبادت لپاره جوړ کړی او وقف کړی وو. او دا
مقصد فوت سو ځکه چي د شاوخوا ځایونو د هلاکېدلو په وجه به اوس په هغه کي لمونځ نه کیږي. لهذا اوس
به هغه بیرته د باني ملکیت ته را ګرځي. د دې مثال داسي دی لکه یو څوک چي مسجد ته چټایي یا نور څه
مثلاً وابنه راوړي. او بیا هغه ته هیڅ ضرورت پاته نه سي (مثلاً د هغه پر ځای خلک بله چټایي یا نور وابنه
راوړي). نو د عامو خلکو لپاره د هغه استعمالول مباح دي. همداسي کله چي مسجد ته هیڅ ضرورت پاته نه
سي، نو د باني لپاره به هغه ځای په کار اچول (استعمالول) او تصرف پکښي کول مباح وي. لېکن په حصیر
او حشیش سره د امام ابو یوسف په خلاف دلیل نیول صحیح نه دي. ځکه چي د حصیر او حشیش په
صورت کي هم د هغه په نېز اباحت نسته بلکي حکم یې دا دی چي هغوی به یو بل مسجد ته (چي هلته
ضرورت وي) وړل کیږي. همدا مُحقق او مفتیٰ به قول دی.

## د اوبو چینلو ځای (سبیل)، مسافرخانه (کاروانسرای) او د داسي نورو جوړولو حکم

قَالَ: وَمَنْ بَنٰى سِقَايَةً لِلْمُسْلِمِيْنَ فرمایي: او که یو څوک د مسلمانانو لپاره د اوبو چینلو ځای
(سبیل) جوړ کړي أَوْ خَانًا يَسْكُنُهُ بَنُو السَّبِيْلِ یا مسافرخانه جوړه کړي چي په هغه کي مسافران
اوسیږي أَوْ رِبَاطًا یا رباط جوړ کړي (یعني یا داسي ځای جوړ کړي چي په هغه کي مجاهدین د سرحد د
حفاظت لپاره اوسیږي) أَوْ جَعَلَ أَرْضَهٗ مَقْبَرَةً یا خپله ځمکه هدیره وګرځوي لَمْ يَزَلْ مِلْكُهٗ عَنْ ذٰلِكَ حَتّٰى
يَحْكُمَ بِهِ الْحَاكِمُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو تر هغه وخته به له دې اشیانو (څخه د باني (جوړونکي) ملکیت نه

ختميږي تر څو چي حاکم د دې فيصله نه وکړي. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لِأَنَّهُ لَمْ يَنْقَطِعْ عَنْ حَقِّ الْعَبْدِ ځکه چي تر اوسه هغه شی د بنده (باني) له حق څخه قطع سوی نه دی أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهِ آيا ته نه ګورې! چي باني لره دا حق سته چي له هغه څخه نفع واخلي فَيَسْكُنَ فِي الْخَانِ وَيَنْزِلَ فِي الرِّبَاطِ (يعني هغه ته دا حق سته چي) په مسافرخانه کي اووسيږي او په رباط کي (ځيني وخت) پاته سي وَيَشْرَبَ مِنَ السِّقَايَةِ وَيُدْفَنَ فِي الْمَقْبَرَةِ او له سبيل څخه اوبه وڅيښي او په هديره کي ښخ کړی سي فَيُشْتَرَطُ حُكْمُ الْحَاكِمِ أَوِ الْإِضَافَةُ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ نو ځکه به د حاکم فيصله کول يا تر خپل مرګ وروسته حالت ته منسوب کول شرط وي كَمَا فِي الْوَقْفِ عَلَى الْفُقَرَاءِ لکه پر غريبانو د وقف کولو په باره کي (چي هم دغه حکم دی) بِخِلَافِ الْمَسْجِدِ په خلاف د مسجد لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ لَهُ حَقُّ الِانْتِفَاعِ بِهِ ځکه چي د واقف لپاره له مسجد څخه د نفع اخيستلو حق نه پاتيږي فَخَلَصَ لِلهِ تَعَالَى مِنْ غَيْرِ حُكْمِ الْحَاكِمِ لهذا هغه د حاکم له حکم څخه بغير د الله لپاره خالص سو وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَزُولُ مِلْكُهُ بِالْقَوْلِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به د واقف ملکيت (فقط) د هغه په قول سره ختميږي كَمَا هُوَ أَصْلُهُ لکه څرنګه چي دا د هغه أصل دی إِذِ التَّسْلِيمُ عِنْدَهُ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه چي (متولي ته) سپارل د هغه په نيز شرط نه دي وَالْوَقْفُ لَازِمٌ او (له ورسپارلو څخه بغير هم د هغه په نيز) وقف لازميږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ إِذَا اسْتَقَى النَّاسُ مِنَ السِّقَايَةِ وَسَكَنُوا الْخَانَ وَالرِّبَاطَ وَدُفِنُوا فِي الْمَقْبَرَةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز چي کله خلک له سبيل څخه اوبه واخلي او په مسافرخانه او رباط کي اووسيږي او په هديره کي مړي ښخ کړل سي زَالَ الْمِلْكُ نو د واقف ملکيت ختميږي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ عِنْدَهُ شَرْطٌ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز (متولي ته) سپارل شرط دي وَالشَّرْطُ تَسْلِيمُ نَوْعِهِ او (په هر شي کي) د هغه د نوع (او حالت) مطابق ورسپارل شرط دي وَذَلِكَ بِمَا ذَكَرْنَاهُ او دا زموږ په ذکر سوو صورتونو سره ثابتيږي وَيُكْتَفَى بِالْوَاحِدِ او (د ورسپارلو د ثبوت لپاره) د شخصِ واحد فعل کافي دی لِتَعَذُّرِ فِعْلِ الْجِنْسِ كُلِّهِ ځکه چي د ټوله جنس فعل ناممکن دی وَعَلَى هَذَا الْبِئْرُ الْمَوْقُوفَةُ وَالْحَوْضُ او وقف کړی سوی څاه او حوض هم پر دغه اختلاف دی وَلَوْ سَلَّمَ إِلَى الْمُتَوَلِّي او که واقف متولي (سرپرست) ته موقوف شی وسپاري صَحَّ

التَّسْلِيمُ فِي هٰذِهِ الْوُجُوهِ كُلِّهَا نو په دې ټولو صورتونو کې به تسليم اورسپارل اصحيح کيږي لِأَنَّهُ نَائِبٌ عَنِ الْمَوْقُوفِ عَلَيْهِ ځکه پر کومو کسانو چې وقف سوی وي متولي د هغو نائب وي وَفِعْلُ النَّائِبِ كَفِعْلِ الْمَنُوبِ عَنْهُ او د نائب فعل دأصل قائم مقام وي وَأَمَّا فِي الْمَسْجِدِ فَقَدْ قِيلَ: لَا يَكُونُ تَسْلِيمًا او کوم چې په مسجد کې اد تسليم ثابتېدلو مسئله ده انو يو قول دا دی: چې محض متولي ته په ورسپارلو سره تسليم نه ثابتيږي لِأَنَّهُ لَا تَدْبِيرَ لِلْمُتَوَلِّي فِيهِ ځکه چې په مسجد کې متولي لره هيڅ دخل نه وي وَقِيلَ: يَكُونُ تَسْلِيمًا او بل قول دا دی: چې تسليم ثابتيږي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى مَنْ يَكْنُسُهُ وَيُغْلِقُ بَابَهُ ځکه چې مسجد ته د داسي سړي ضرورت وي چې هغه مسجد جارو کړي او د مسجد دروازه بنده کړي انو په دې وجه د متولي لپاره هم څه نا څه دخل ثابت سوا فَإِذَا سَلَّمَ إِلَيْهِ لهذا کله چې واقف متولي ته هغه وسپاري صَحَّ التَّسْلِيمُ نو تسليم به صحيح کيږي وَالْمَقْبَرَةُ فِي هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْمَسْجِدِ او د تسليم په حکم کې هديره د مسجد په څير ده عَلَى مَا قِيلَ لکه څرنګه چې ويل سوي دي لِأَنَّهُ لَا مُتَوَلِّيَ لَهُ عُرْفًا ځکه چې په عرف کې د هديرې هيڅ متولي نه وي وَقِيلَ: هِيَ بِمَنْزِلَةِ السِّقَايَةِ وَالْخَانِ او بل قول دا دی: چې اد تسليم په حکم کې ا هديره د مسافر خانې او سبيل په څير ده فَيَصِحُّ التَّسْلِيمُ إِلَى الْمُتَوَلِّي نو ځکه به متولي ته ورسپارل صحيح کيږي ااو تسليم به ثابتيږي ا لِأَنَّهُ لَوْ نَصَبَ الْمُتَوَلِّي ځکه که چيري [په خپله] واقف د هديرې لپاره متولي مقرر کړي يَصِحُّ نو صحيح کيږي وَإِنْ كَانَ بِخِلَافِ الْعَادَةِ که څه هم دا د عادت [او عرف] خلاف دي وَلَوْ جَعَلَ دَارًا لَهُ بِمَكَّةَ سُكْنَى لِحَاجِّ بَيْتِ اللهِ وَالْمُعْتَمِرِينَ او که ايو سړی ا په مکه کې موجود خپل کور د حج او عمره کونکو لپاره استوګنځی وګرځوي أَوْ جَعَلَ دَارَهُ فِي غَيْرِ مَكَّةَ سُكْنَى لِلْمَسَاكِينِ يا له مکې څخه بغير په بل ځای کې موجود خپل کور د مسکينانو لپاره استوګنځی وګرځوي أَوْ جَعَلَهَا فِي ثَغْرٍ مِنَ الثُّغُورِ سُكْنَى لِلْغُزَاةِ وَالْمُرَابِطِينَ يا په يو سرحد کې واقع خپل کور د غزا کونکو امجاهدينو ا او د سرحد ساتونکو لپاره استوګنځی وګرځوي أَوْ جَعَلَ غَلَّةَ أَرْضِهِ لِلْغُزَاةِ فِي سَبِيلِ اللهِ تَعَالَىٰ يا د خپلې ځمکې پيداوار [او منافع] د الله په لار کې د غزا کونکو امجاهدينو لپاره ا وقف وګرځوي وَدَفَعَ ذٰلِكَ إِلَىٰ وَالٍ يَقُومُ عَلَيْهِ او دا [شيان] يو متولي اسرپرست ا ته ورکړي کوم چې پر هغه نګراني کوي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَلَا رُجُوعَ فِيهِ او په دې کې رجوع نه سي کېدلای ايعني تر دې وروسته واقف هغه

واپس نه سي اخيستلای؛ لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی إِلَّا أَنَّ فِي الْغَلَّةِ تَحِلُّ لِلْفُقَرَاءِ دُونَ الْأَغْنِيَاءِ ليکن پيداوار به فقط د غريبانو لپاره حلال وي. نه د مالدارانو لپاره وَفِيمَا سِوَاهُ مِنْ سُكْنَى الْخَانِ وَالِاسْتِقَاءِ مِنَ الْبِئْرِ وَالسِّقَايَةِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ يَسْتَوِي فِيهِ الْغَنِيُّ وَالْفَقِيرُ او له دې څخه بغير نور شيان يعني د مسافر خانې په اوسېدلو. له څاه او سبيل څخه د اوبو په را اخيستلو او داسې نورو کې مالدار او غريب دواړه برابره دي وَالْفَارِقُ هُوَ الْعُرْفُ فِي الْفَصْلَيْنِ او په دواړو صورتونو کې فرق کونکی شی عرف عام دی فَإِنَّ أَهْلَ الْعُرْفِ يُرِيدُونَ بِذٰلِكَ فِي الْغَلَّةِ الْفُقَرَاءَ ځکه چي د عرف والا ايعني خلک؛ د پيداوار په وقف سره غريبان مرادوي ايعني که څوک غله وقف وکړي نو په عرف کې دا ګڼل کيږي چي دا فقط د فقيرانو لپاره ده؛ وَفِي غَيْرِهَا التَّسْوِيَةَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ او له پيداوار څخه بغير د بل شي په وقف کې غريبان او مالداران برابر ګڼي وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ تَشْمَلُ الْغَنِيَّ وَالْفَقِيرَ فِي الشُّرْبِ وَالنُّزُولِ او په دې وجه [هم] چي په چيښلو او پاتېدلو کې ضرورت مالدار او غريب دواړو ته شامليږي ايعني د اوبو چيښلو ضرورت او په مسافرخانه کې د پاتېدلو ضرورت غريب او مالدار دواړو ته شامل دی. هر يو دې ته اړتيا لري؛ وَالْغَنِيُّ لَا يَحْتَاجُ إِلَى صَرْفِ هٰذَا الْغَلَّةِ لِغِنَاهُ [ليکن] د دې پيداوار خرچولو [استعمالولو] ته مالدار د خپلي مالدارۍ په وجه هيڅ اړتيا نه لري. والله أعلم بالصواب

**اللغات**: ﴿سقاية﴾ د اوبو چيښلو ځای (کوم چي په لار کې جوړ سوی وي. او لارويان اوبه ځني چيښي). سبيل. ﴿خان﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي. دلته يې معنیٰ ده: مسافر خانه. کاروانسرای. هغه سرای کوم چي په يو اوږده لار کې د مسافرانو د شپه تېر او تم کېدلو لپاره جوړ سوی وي. ﴿بنوالسبيل﴾ د لاري زامنان. مراد ځني مسافرين دي. ﴿رباط﴾ د دې لفظ ډيري معناوي دي چي له هغوی څخه دلته دوې معناوي مراد کېدای سي: ① هغه ځای چي لښکر (مجاهدين) د سرحد د حفاظت لپاره په هغه کې اوسيږي چي زموږ په اصطلاح هغه ته سرحدي پوسته. چاونۍ او داسې نور وايي. ② د غريبانو او فقيرانو د جمع کېدلو ځای (مجمع الفقراء وملجأهم). ﴿استقٰى﴾ د استفعال ماضي ده: د اوبو طلب کول. له حوض. څاه او داسې نورو څخه اوبه را اخيستل. ﴿بئر﴾ څاه. کوهی. جمع آبار. ﴿الغلة﴾ پيداوار (له ځمکې څخه ترلاسه کړې سو غله. حبوب. دانې). د موقوف شي ګټه او منافع. ﴿تسوية﴾ د تفعيل ماضي ده: برابرول. برابري کول. ﴿مرابطين﴾ جمع د مُرَابِطٌ ده: د سرحد د حفاظت لپاره په سرحد کې اوسېدونکي مجاهدين. ﴿نزول﴾ د ضرب مصدر دی: شوه کېدل. پړاو اچول. عارضي قيام کول (د لږ وخت لپاره پاتېدل). ﴿ثغور﴾ جمع د ثَغْرٌ

ده: سرحد. وېش. پوله (باډر). ﴿الشُّکلٰی﴾ مخکي موړ وویل چې د دې لفظ دوې معناوې دي: (۱) اوسول او اوسېدل (استوګه کول). (۲) استوګنځی (مسکن).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړی د مسلمانانو لپاره د اوبو چینبلو ځای (سبیل) جوړ کړي لکه نن سبا چې هم په عامو لارو کې داسې ځایونه جوړ سوي دي. یا مسافر خانه (کاروانسرای) جوړ کړي. یا د مجاهدینو لپاره یو استوګنځی (رباط) جوړ کړي (یا مثلاً د غریبانو لپاره یو ځای جوړ کړي) یا په خپله ځمکه کې هدیره جوړه کړي، نو تر کومه وخته چې قاضي او حاکم د دې شي د وقف کېدلو فیصله نه وکړي (یعني تر څو چې حاکم دا فیصله نه وکړي چې دا شی یعني سبیل یا داسې نور د مسلمانانو لپاره وقف او خاص دی). تر هغه وخته پوري دا شی د صانع او باني له ملکیت څخه نه وځي: ځکه چې تر دې مخکې د شي سره په خپله د باني حق متعلق وي او باني په خپله له هغه څخه نفع اخیستلای سي (لکه څرنګه چې له خپل جایداد څخه نفع اخیستلای سي). لهذا د باني له ملکیت څخه د هغه د خارجېدلو او زائلېدلو لپاره یا د حاکم فیصله او فرمان صادرول ضروري دي. یا په خپله د باني له طرفه دا وضاحت کول ضروري دي چې "زما تر مرګ وروسته دا شی د عوامو لپاره دی". لکه پر فقیرانو چې د یو شي د وقف کولو په صورت کې هم د واقف د ملکیت زائلېدلو لپاره په دغه دوو شیانو کې یو شی (یعني د حاکم فیصله یا إضافة إلی ما بعد الموت) شرط دی. همداسې به په دې مسئله کې هم په دې دواړو کې یو شی شرط وي. دا حکم او دا تفصیل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی.

د دې په خلاف د مسجد مسئله ده. نو هغه له پورتني شیانو (سبیل او داسې نورو) څخه جلا ده. او په هغه کې فقط په وقف کولو سره د واقف ملکیت ختمیږي، ځکه چې د واقف لپاره له مسجد څخه د نفع د اخیستلو هیڅ لاره نسته (یعني هغه د پورتني شیانو په څېر او د خپل جایداد په څېر له مسجد څخه نفع نه سي اخیستلای) او د حاکم له فرمان او فیصلې څخه بغیر هم مسجد د الله لپاره خالص او مختص ګرځي.

**وعند أبي یوسف إلخ**: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز به په دې صورتونو کې محض د واقف په دې قول "جعلتُه للمسلمین" سره د هغه ملکیت ختمیږي. او د مکیت د زوال لپاره به د هیڅ حکم او فیصلې یا دستاویز ضرورت نه وي، ځکه چې د هغه نېز د وقف د صحت لپاره متولي ته موقوف شی ورسپارل (تسلیم إلی المتولی) هم شرط نه دی بلکې محض د واقف په قول سره وقف پوره کیږي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به دغه وقف هغه وخت پوره کیږي کله چې خلک له سبیل څخه اوبه وچیښي یا په مسافر خانه او رباط کې اوسیږي. یا په هدیره کې خلک ښخ کړی سي. یعني تر دې کارونو وروسته به نو هغه ځمکې او جوړ سوي شي څخه د واقف او باني ملکیت ختمیږي، ځکه

چي د هغه په نېز د وقف د صحت لپاره متولي ته موقوف شی ورسپارل (تسليم) شرط دی. او د تسليم صورت همدا دی چي کوم شی د کوم مقصد لپاره جوړ سوی وي په هغه مقصد کي دا شی استعمال سي نو تسليم ثابتيږي. خو د تسليم د ثبوت لپاره د فرد واحد استعمالول کافي دي. ځکه چي له هغه شي څخه د ټوله جنس نفع اخيستل مثلاً له سبيل څخه د ټولو خلګو اوبه چيښل يا په مسافر خانه کي د ټولو اوسېدل ناممکن او محال دي. د وقف کړی سوي حوض او څاه مسئله هم د أحنافو په نېز پر دغه اختلاف ده.

ولو سلم إلخ: د دې حاصل دا دی که باني (واقف) مسافرخانه يا رباط يا هديره يو متولي او منتظم ته وسپاري نو هم به تسليم (ورسپارل) ثابتيږي او وقف به پوره کيږي. او په دې تسليم سره به د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د هغه ملکيت ختميږي. ځکه چي متولي د موقوف عليهم نائب وي او د نائب فعل د أصل د فعل قائم مقام وي. لهذا د متولي قبضه به د هغو (موقوف عليهم) قبضه شمارل کيږي او وقف به پوره کيږي.

وأما في المسجد إلخ: څه مخکي دا خبره ذکر سوه چي که په مسجد کي فقط يو سړی لمونځ وکړي نو تسليم ثابتيږي او وقف پوره کيږي. اوس دلته دا بيانوي چي که تر اوسه په هغه مسجد کي لمونځ سوی نه وي او په دې وخت کي واقف هغه متولي ته وسپاري. نو آيا په دې سره تسليم ثابتيږي (يعني آيا په دې سره وقف پوره کيږي. که نه؟). نو په دې هکله دوه قولونه دي: (۱) يو قول دا دی چي تسليم نه ثابتيږي. ځکه چي متولي لره په مسجد کي هيڅ دخل نه وي. (۲) دويم قول دا دی چي تسليم ثابتيږي. ځکه چي د مسجد لپاره د يوه خادم ضرورت خامخا وي چي هغه مسجد جارو کړي او د مسجد دروازې بندي کړي. نو له دې څخه معلومه سوه چي متولي لره دخل سته. لهذا متولي ته په ورسپارلو سره به هم تسليم ثابتيږي او وقف به پوره کيږي.

او د هديرې په هکله هم دوه قولونه دي: (۱) د مسجد په څېر د هديرې په ورسپارلو سره هم تسليم نه ثابتيږي: ځکه چي په عرف کي د هديرې هيڅ ولي او متولي نه وي. (۲) دويم قول دا دی چي څرنګه په مسافر خانه او داسي نورو کي فقط د يوه سړي په فعل سره تسليم ثابتيږي. همداسي به متولي ته د هديرې په ورسپارلو سره هم تسليم ثابتيږي. يعني وقف به پوره کيږي او له مسجد څخه به د واقف ملکيت ختميږي.

**ولوجعل دارًا له إلخ:** په دې عبارت کې څلور خبرې ذکر سوې دي: ① که يو سړی په مکه مبارکه کې يو کور لري او هغه د حاجيانو او عمره کونکو د استوګنې لپاره وقف کړي، ② يا له مکې مبارکې څخه بغير په يو بل ځای کې خپل کور د مسکينانو د استوګنې لپاره وقف کړي، ③ يا په سرحدي علاقه کې يو کور لري او هغه د مجاهدينو د استوګنې او تم کېدلو لپاره وقف کړي، ④ يا د خپلې ځمکې غله او پيداوار د مجاهدينو او غازيانو لپاره وقف کړي، او دا شيان يو متولي ته وسپاري کوم چې د دې نګراني کوي، نو دا ټوله صورتونه جائز دي او د دې شيانو په ورسپارلو سره به وقف پوره کيږي.

**إلا أن في الغلة إلخ:** لېکن دلته دا خبره تاسې په ياد لرئ! چې د مکان او کور په وقف کې د مالدار او غريب دواړو لپاره اوسېدل روا دي، لېکن د غلې او پيداوار وقف صرف د غريبانو او فقيرانو لپاره روا دی. او دا فرق د عرف په وجه دی، يعني که يو څوک پيداوار او غله وقف کړي، نو په عرف کې دا وقف د غريبانو لپاره ګڼل کيږي. او که مسافرخانه (کاروانسرای) وقف کړي، يا د اوبو چينبلو ځای (سبيل) وقف کړي، نو په عرف کې دغه وقف د غريب او مالدار دواړو طبقو لپاره ګڼل کيږي او په دې هکله دواړو ته په يوه نظر سره کتل کيږي، نو په دې وجه موږ په دواړو کې فرق کړی دی. عقلي دليل دا دی چې د اوبو چينبلو او په کاروانسرای کې پاتېدلو ته غريب او مالدار دواړه اړتيا لري، او غلې (پيداوار) ته فقط غريب اړتيا لري ځکه چې د مالدار او شتمن سره مال او غله ډېره وي، نو په دې وجه به هم د اوبو د چينبلو له ځای (سبيل) او کاروانسرای څخه غرايب او مالدار دواړه نفع اخيستلای سي، لېکن د وقف کړی سوې ځمکې غله او د وقف کړی سوې شي پيداوار او منافع به فقط د غريب او فقير سره خاص وي. او د مالدار او شتمن لپاره به د هغه استعمالول روا نه وي.

الحمدلله! نن د "۱۴۳۹" هجري کال د رمضان د مياشتې په اتلسمه نېټه چې "۲۰۱۸" ميلادي کال د مئي د مياشتې له شپاړسمې نېټې سره سمون لري د جمعې په سپېڅلې ورځ د "فتح الهداية" پنځم ټوک پای ته ورسېدی. الله جلّ جلاله دې په خپل فضل او رحمت سره د پاته ټوکونو د تشريح توفيق هم راکړي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ، وَصَلَّى اللهُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ

مُحَمَّدٍ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَأَهْلِ بَيْتِهٖ وَعِتْرَتِهٖ أَجْمَعِيْنَ، وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِشَارِحِهٖ وِلِوَالِدَيْهِ وَلِأَسَاتِذَتِهٖ وَلِمَنْ قَامَ بِنَشْرِهٖ وَطَبْعِهٖ. (آمين)

احقر حبيب الرحمن مدني



